# تسهيلات

پښتو شرح

# مشکوٰة


تالیف **مولانا شاه فیصل**

فاضل دار العلوم اسلامیه چارسده و امداد العلوم پشاور


د اوویشت (۲۷) خصوصیاتو سره چې یولس (۱۱) په کښې دا دي

1. پېښورې پښتو سره بین القوسین د قندهارې پښتو د کرانو ټکو اضافه
2. د مشکاة د عربي او اردو متداولو شروحاتو مجموعه
3. په ترجمه کښې بین القوسین د مرقاة المفاتیح د اضافي قیوداتو ترجمه
4. د حدیث هرې جملې او دعقې ترجمې نه د آسانتیا د پاره نمبرې ورکول
5. د فقهي اختلافي مسئلو [illegible] آسان حل
6. د اوږدو احادیثو د متن او ترجمې [illegible] تقسیم
7. د هر حدیث د صحاح ستة [illegible]
8. د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتیح [illegible] د مشکلو لغاتو حل
9. د قوله په عنوان سره [illegible] مشکلې جملې تشریح
10. د هر باب په اول [illegible] خلاصه
11. د کتاب په اول [illegible] مقدمه

تسهيلات

# تسهیلات

## پښتو شرح

# مشکواة

تالیف - مولانا شاه فیصل فاضل دارالعلوم اسلامیه چارسده

نهم جلد (۹)

د شلو (۲۰) خصوصیاتو سره چې لس (۱۰) په کښې دا دی

① پېښوري پښتو سره بین القوسین د قندهاري پښتو د ګرانو ټکو اضافه
② د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه
③ په ترجمه کښې بین القوسین د مرقاة المفاتیح داضافي قیوداتو ترجمه
④ دحدیث هرې جملې ته اود هغې ترجمې د آسانتیا دپاره نمبرې ورکول
④ په فقهي اختلافي مسئلو کښې مدلل او آسان مباحث
⑤ د اوږدو احادیثو د متن او ترجمې تقسیم
⑥ دهرحدیث د صحاح سته وغیره څخه تخریج
⑦ د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتیح څخه د مشکلو لغات حل
⑧ دقوله په عنوان سره دحدیث د هرې مشکلې جملې تشریح
⑨ دهرباب په اول کښې دهغې د احادیثو خلاصه
⑩ د کتاب په اول کښې د علوم الحدیث مفیده مقدمه

خورنکي

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائل ۰۳۱۵-۹۵۹۵۷۱۷

# اجمالی فہرست

# د احادیثو د عنواناتو فهرست

......

# فهرست اختلافِ مذاهب



.....

Scanned with

# [۸] بَابٌ فِي الْإِنْذَارِ وَالتَّحْذِيْرِ

## دَ ويرولو او دَ نصيحت كولو بيان

**خلاصة الباب**

**فيه سبعة أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① الانذار بالخطة: ١.

② انذار الأقربين: ٢، ٣.

③ الانذار من الفتن: ٤.

④ التحذير من استحلال المحرمات: ٥، ٦، ٧.

⑤ التحذير من إنقلاب الأحوال : ٥ .

**دنسخو اختلاف:** دَمشكوة شريف په عامو نسخو كښې دلته صرف باب دې دكوم نه چه اشاره ملاويږي چه دا باب دَ مخكيني باب دَ ملحقاتو نه دې مګر ابن ملك رحمه الله دلته هم هغه عنوان ترلې دې كوم چه مونږ پورته ذكر كړې دې.

**په انذار او تحذير كښې فرق:** انذار دَ ويرولو په معنى كښې دې او تحذير دَ نصيحت معنى كښې دې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۳۷۱] په انسانی فطرت كښې دالله تعالى تابعدارى

۵۳۷۱-(١)[١] ① عَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ الْمُجَاشِعِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: ② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ فِي خُطْبَتِهِ: ③ "أَلَا إِنَّ رَبِّي أَمَرَنِي أَنْ أُعَلِّمَكُمْ مَا جَهِلْتُمْ مِمَّا عَلَّمَنِي يَوْمِي هَذَا، ④ كُلُّ مَالٍ نَحَلْتُهُ عَبْدًا حَلَالٌ، ⑤ وَإِنِّي خَلَقْتُ عِبَادِي حُنَفَاءَ كُلَّهُمْ، ⑥ وَإِنَّهُمْ أَتَتْهُمُ الشَّيَاطِينُ فَاجْتَالَتْهُمْ عَنْ دِينِهِمْ ⑦ وَحَرَّمَتْ عَلَيْهِمْ مَا أَحْلَلْتُ لَهُمْ، ⑧ وَأَمَرَتْهُمْ أَنْ يُشْرِكُوا بِي مَا لَمْ أُنْزِلْ بِهِ سُلْطَانًا،

**ترجمه:** ① حضرت عياض ابن حمار مجاشعي رضي الله عنه روايت كوي ② يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپلي جمعي وغيره خطبه كې يا د خه وعظ په دوران كې وفرمايل ③ خلقو واورى ځما رب ماته حكم كړى دى، چې زه تاسو ته هغه خبري وښايم كومي چې تاسو ته نه دى معلومي او ماته يي نن ښودلي دي. ④ دي نه پس حضور صلى الله عليه وسلم د هغه خبرو په سلسله كې داسې بيان فرمائيل شروع كړل. الله تعالى فرمايلي دي، چې كوم مال ماخپل يوبنده ته وركړى دى، هغه حلال دى الله تعالى دافرمايلي دي. ⑤ چې ماخو خپل ټول بندګان د باطل

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب الصفات التى يعرف بها فى الدنيا أهل الجنة وأهل النار (رقم-٦٣ - (٢٨٦٥) واحمد فى المسند: ٤/٢٦٦

خلاف، حق طرف ته مائل پيدا کړه، ⑥ ليکن دا شيطانان هغه بنده ګانو ته راغلل او هغوئ يې د خپل دين نه ګرځولو سره ګمراهي کې واچول ⑦ او په هغوئ يې هغه څيزونه حرام کړل کوم چې ما د هغوئ د پاره حلال کړي وه [يعنې شياطينو هغه خلق داسې ګمراه کړل چې هغوئ په ځان باندې حلال څيزونه حرام کړل] ⑧ او دغه شان شياطينو هغوئ ته حکم ورکړې [يعنې د هغوئ په زړونو کې دا ګمراه کن وسوسه واچوله] چې هغوئ هغه شې زماسره شريك کړي چې د هغه په کارساز کيدو هيڅ دليل نه دې نازل شوې. [يعنې کوم خلق چې د بتانو عبادت کوي او داسې په عبادت کې نور شريکوي. د هغوئ سره د هغوئ په دې فعل هيڅ معقول دليل او استحقاق نشته. دا صرف د شياطينو د ګمراه کولو اثر دې، چې هغوئ داسې ناروا کار کې مبتلا وي.]

**حل اللغات:-** ① نَحَلْتُهُ: هديه يا عطيه ورکول. ② حُنَفَاءَ: جمع د حنيف ده. دَ اسلام په فطرت باندې ئې پيدا کړل. ③ فَاجْتَالَتْهُمْ: دَ اجتيال نه دې، اړولو او بې لارې کول ④ سُلْطَانًا: دليل.

① وَإِنَّ اللَّهَ نَظَرَ إِلَى أَهْلِ الْأَرْضِ فَمَقَتَهُمْ، عَرَبَهُمْ وَعَجَمَهُمْ، إِلَّا بَقَايَا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ، ② وَقَالَ: إِنَّمَا بَعَثْتُكَ لِأَبْتَلِيَكَ وَأَبْتَلِيَ بِكَ ③ وَأَنْزَلْتُ عَلَيْكَ كِتَابًا لَا يَغْسِلُهُ الْمَاءُ، تَقْرَؤُهُ نَائِمًا وَيَقْظَانَ،

**ترجمه:** ① او الله تعالى ماته حکم کړې دې. زمکې والو باندې نظر واچولو. نو هغوئ يې په کفر وشرك باندې متفق او ضلالت او ګمراهي کې مستغرق اوليدل نو الله هغوئ ټول خپل مبغوض او ناخوښه وګرځول، که هغوئ عرب دي يا عجم. ② او الله ﷻ وفرمايل چې ما ته اې محمد ﷺ پيغمبر جوړولو سره دنيا ته ځکه راليږلې يې، چې زه تا اوازمائم، او په تاسره ستاقوم هم وازمائم ③ او ما په تا يوداسې کتاب نازل کړو، چې اوبه يې وينځلې او خرابولې نشي، ته به داکتاب په خوب او وينه هروقت وايې

① وَإِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي أَنْ أُحَرِّقَ قُرَيْشًا ② فَقُلْتُ: رَبِّ! إِذًا يَثْلَغُوا رَأْسِي، فَيَدَعُوهُ خُبْزَةً، ③ قَالَ: اسْتَخْرِجْهُمْ كَمَا أَخْرَجُوكَ وَاغْزُهُمْ نُغْزِكَ، ④ وَأَنْفِقْ فَسَنُنْفِقُ عَلَيْكَ، وَابْعَثْ جَيْشًا نَبْعَثْ خَمْسَةً مِثْلَهُ، ⑤ وَقَاتِلْ بِمَنْ أَطَاعَكَ مَنْ عَصَاكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او الله ﷻ ماته دا حکم کړې دې، چې زه قريش وسوزوم ② ما عرض وکړو، اې خما پروردګاره! قريش خو به خماسر رامات کړي، او ماتولو سره د ډوډئي په شان پلن به يې کړي. ③ او الله تعالى ماته حکم کړې دې چې ته هغوئ د هغوئ د وطن نه وباسه څرنګه چې هغوئ ته دوطن نه ويستلې وې. او د هغوئ سره جهاد وکړه، مونږ به ستا د جهاد د سامان انتظام وکړو ④ ته خپل لښکر والو باندې مال واسباب خرچ کړه که ستاسره مال واسباب نه وي، نو مونږ به درکړو، او د هغه انتظام به وکړو، ته د هغوئ دښمنانو خلاف لښکر وليږه، مونږ به د دښمن د لښکر نه پنځه چنده زيات طاقت سره ستا مدد وکړو ⑤ او

د هغه چا په مدد سره چې ستا تابعدار دی د هغه چا سره او جنګيږه څوک چې ستا نافرماني کوی

**حل اللغات** - ⑤ فَمَقَتَهُمْ: مبغوض او ناخوښه. ⑥ يَثْلَغُوا: دَ ثلغ نه دې سر په دروند کاڼړی باندې چقنړی کول ⑦ اغْزُهُمْ: غزا او کړه دهغوی سره، ⑧ جُنْدًا: لښکر

**تسهيلات:**

**قوله.** قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ فِي خُطْبَتِهِ:

**د خطبې په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دَ جمعې او اخترونو په خطبو کښې ② دَخه وعظ په خطبه کښې حضورپاك عام ارشاد اوفرمائيلو چه ماته زما رب چه نن څه خودلی دی کوم چه تاسو نه پيژنی هغه زه تاسو ته ښايم

**قوله:** كُلُّ مَالٍ نَحَلْتُهُ عَبْدًا حَلَالٌ،

**په جائزه طريقه د مال ګټلو حلال والې:** الله ﷻ فرمايلي دي، چې کوم مال ما خپل يوبنده ته ورکړی دی، هغه حلال دي يعنی کوم سړي ته چې څه مال او اسباب جائز ذرائع سره حاصل شوی دی هغه د هغه په حق کې حلال دی هيڅوك يې د خپل طرف نه حرام نشي ګرځولی څرنګه چې په زمانه جاهليت کې طريقه وه چې خلقو به بعضې صورتونو کې اوښان خامخا ځان باندې حرام کول،

**قوله:** وَإِنِّي خَلَقْتُ عِبَادِي حُنَفَاءَ كُلَّهُمْ،

**په فطرت انسانی کښې دالله تعالی تابعداری:**

الله ﷻ دافرمايلي دي، چې ما خو خپل ټول بندګان د باطل خلاف، حق طرف ته مائل پيدا کړه.

**قوله:** وَإِنَّهُمْ أَتَتْهُمُ الشَّيَاطِينُ فَاجْتَالَتْهُمْ عَنْ دِينِهِمْ

**د شيطانانو په وجه د انسانانو ګمراهی:** دا شيطانان هغه بنده ګانو ته راغلل او هغوئ يي د خپل دين نه ګرځولو سره ګمراهي کې واچول او په هغوئ يي هغه څيزونه حرام کړل کوم چې ما د هغوئ د پاره حلال کړي وه يعنی شياطينو هغه خلق داسې ګمراه کړل چې هغوئ په ځان باندې حلال څيزونه حرام کړل او دغه شان شياطينو هغوئ ته حکم ورکی يعنی د هغوئ په زړونو کې دا ګمراه کن وسوسه واچوله چې هغوئ هغه شی زما سره شريك کړي چې د هغه په کارساز کيدو هيڅ دليل نه دی نازل شوی، يعنی کوم خلق چې د بتانو عبادت کوي او داسې په عبادت کې نور شريکوي، د هغوئ سره د هغوئ په دې فعل هيڅ معقول دليل او استحقاق نشته، داصرف د شياطينو د ګمراه کولو اثر دی، چې هغوئ داسې ناروا کار کې مبتلا وي،

**قوله** وَإِنَّ اللّٰهَ نَظَرَ إِلَىٰ أَهْلِ الْأَرْضِ فَمَقَتَهُمْ عَرَبَهُمْ وَعَجَمَهُمْ:

**د ټولو خلقو ګمراه کیدل:** هرکله چې د دنیا ټول خلق کفر او شرك کې مبتلا وو او د رسول الله ﷺ بعثت پورې ټول ګمراهي باندې متفق او مجتمع وو. چې د موسى علیه السلام قوم خو عیسى علیه السلام منلو نه انکار وکې او د عزیر علیه السلام عبادت کول يې شروع کې. د عیسى علیه السلام قوم د دریو خدایانو قائیل او د دې مشرکانه عقیدې حامل شو چې عیسى علیه السلام د الله خوی دی. وغیره وغیره. نو الله تعالی هغوئ ټول مبغوض ترین بندګان وګرځول

**قوله** إِلَّا بَقَايَا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ:

**د اهل کتابو د يو څو ولي په هدایت قائم پاتې کیدل:** علاوه د اهل کتابو د هغه جماعت نه چې مشرکان نه شوه، بلکې موسى او عیسى علیه السلام باندې ایمان لرلو سره اصل دین باندې قائم او ثابت قدم پاتې شوه. د دې جماعت خلقو نه خو په خپل اسماني کتابونو کې تحریف وکې، او نه يې د خپل دین احکامو کې د خپلې مرضى مطابق څه تبدیلي وکړله. تر دې چې کوم وخت حضرت محمد ﷺ دې دنیا ته پیغمبر رالی نو هغوئ باندې يې هم ایمان راوړی او د اسلام په کړی کې داخل شوه. نو الله تعالی داسې خلق مبغوض غضب وهلی ونه ګرځول،

دا دریمه خبره ده. "مقت" غصه کول مبغوض ګنړل. "بقایامن أهل الکتاب" دې نه مراد هغه یهود او نصارى دی کومو ته چه دَحضورپاك دعوت نه وی رسیدلي او کله چه او رسیدلو نو هغوی فوری قبول کړو او دَدې نه مخکښې یهودو ته او نصارى ته دعوت نه وی رسیدلي او نصارى دَ موسى علیه السلام انکارنه وی کړې. غرض دا چه اول دا خلق په خپل دین باندې قائم وی او بیائی دَ حضورپاك دعوت قبول کړو نودوی ته به دوه اجرونه ملاویږی لکه څنګه چه په کتاب الایمان کښې یوحدیث دې. "وقال" دا څلورمه خبره ده

**قوله:** وَقَالَ: إِنَّمَا بَعَثْتُكَ لِأَبْتَلِيَكَ وَأَبْتَلِيَ بِكَ

**د نبی علیه السلام په بعثت کښې دوه قسمه امتحانات:** اې محمد ﷺ پیغمبر جوړولو سره دنیا ته څکه رالیږلی يې، چې زه تا اوازمائم، (چې ته دخپل قوم په ایذا رساني څرنګه صبر کوې) او په تا سره ستاقوم هم وازمائم (چې ایا هغوئ په تا ایمان راوړی یا په تا سره کفر اختیار وي)

**قوله:** وَأَنْزَلْتُ عَلَيْكَ كِتَابًا لَا يَغْسِلُهُ الْمَاءُ،

**د قرآن پاک حفاظت:** او ما په تا یوداسې کتاب نازل کړو. چې اوبه يې وینځلي او خرابولی نشي، (یعنی عام طور سره په کاغذباندې لیکل شوی کتاب چې اوبو سره وینځلې شي. نو هغه ختم شي، لیکن دا کتاب چې تاباندې نازل شوی دی، یعنی قرآن

کریم داسې نه دی، چې څه اوبه یې وویندې نو ختم شي بلکې دا د هرقسم تحریف او تغیر وتبدل نه محفوظ دی په دې طور چې دا ترقیامته پورې د خلقو په زړونو کې محفوظ شوی دی او د دې احکام همیشه همیشه د پاره باقي او جاري دی.

**قوله** تَقْرَؤُهُ نَائِمًا وَيَقْظَانَ:

**په ویښه اواوده د قرآن لوستلو مطلب:** په اودو او په ویښه باندې لولې یعنی په ویښه باندې په ژبه اوزړه دواړو باندې جاري وی او د اوده کیدو به حالت صرف په قلبی نو ګه باندې جاري وی څکه چه د نبی سترګې اوده کیږی زړه ئې ویښ وی

**قوله** وَإِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي أَنْ أُحَرِّقَ قُرَيْشًا

**د قریشو د هلاکولو حکم:** یعنی اهل قریشو نه چې کوم خلق ایمان نه راوړي، او د کفر حالت باندې قائم دی، هغوئ داسې تباه او برباد کړم، چې د هغوئ نوم نښان باقي پاتې نشي وإن الله امرني"داپنځمه خبره ده چه د قریشو کوم خلق په کفرباندې قائم اودائم وی ماته حکم دې چه زه هغوی داسې ختم کړم لکه چه یوڅیز سوزولوسره ایره کولې شی

**قوله**: فَقُلْتُ: رَبِّ! إِذًا يَثْلَغُوا رَأْسِي، فَيَدَعُوهُ خُبْزَةً،

یعنی چه کله زما سرچقنړې کړې شی نوسربه داسې خورشی لکه چه روټئی خوریږی څکه چه ماسره وسائل خوشته نه.

**قوله**: قَالَ: اسْتَخْرِجْهُمْ كَمَا أَخْرَجُوكَ

**د مشرکانو د مکې څخه د ویستلو حکم:** الله تعالی اوفرمائیل چه ته دوی د مکې نه اوباسه لکه څنګه چه هغوی ته ویستلې وې اودوی سره جنګیږه مونږ به د اسبابو نصرت او د امداد په حوالې سره ستاسو امدادکوو اوستاسو به دهرقسم مقابلې دپاره تیاروو

**اشکال:** په دې حدیث کښې الله تعالی نبی ﷺ ته حکم کړې دې چې اهل مکه د مکې څخه اوباسه حالانکه نبی ﷺ چې کله مکه مکرمه فتح کړه نودوي ټول ئې معاف کړل او د مکې څخه ئې اونه ویستل.

**د اشکال جواب:** د اهل مکه د مکې څخه د ویستلوحکم د عدم ایمان په صورت کښې وو اوکله چې نبی ﷺ مکه مکرمه فتح کړه او هغوی ټولو ته ئې معافی اوکړه نو هغوی مسلمانان شو ددې وجې د هغوی د ویستلوجواز پاتې نشو

**قوله**: وَأَنْفِقْ فَسَنُنْفِقُ عَلَيْكَ،

**په اسلامی لښکرباندې د خرچ کولوحکم:** او په خپل لښکرباندې خرچ کوه که چرې تاسره نه وی نو مونږ به انتظام کوو اوخرچه به درکوو. ته خپل لښکراولیږه مونږ به ستاد لښکرامدادکوو اود کافرانو دلښکرنه به پنځه چنده زیات لښکر درکو اوهغه مسلمانان

و خله کوم چه ستاسو زیات حکم منونکی دی او دهغوی په ذریعه دغه کافران اووهه کوم چه ستاسو نافرمان دی

**قوله وَابْعَثْ جَيْشًا نَبْعَثْ خَمْسَةً مِثْلَهُ،**

**دجنگ بدر په صورت کښې وعده پوره کول**: یعنی تاته او ستا ملگرو ته به داسې غیبي ضعف او همت ورکړو، چې د اهل اسلام يوموټی برابر جماعت به د هغوئ په لښکر جرا ربندي غالب راشي نو د بدرجنگ وشو او مسلمانان صرف دري سوه ديارلس کسان وه د کفارو يو هزار لښکر سره يي جنگ وکې، روایاتو کښې راغلي دي. چې د پنځه زرو فرستو لښکري دمسلمانانو مدد د پاره رالي، او کومو خلقو چې په تاسو ایمان راوړی دی و ستاسو اطاعت گذار وي، هغوئ د ځان سره آخستو سره د هغوئ خلاف جنگ وکې کومو چې ستا نافرماني او ستا نه سرکشي کړي ده او کافر وي (مسلم)

**[۵۳۷۲] خپلوانو ته د اسلام دعوت**

(۳) [۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: «لَمَّا نَزَلَتْ: ﴿وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ [الشعراء: ۲۱۴] [۲] صَعِدَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الصَّفَا فَجَعَلَ يُنَادِي: [۳] "يَا بَنِي فِهْرٍ! يَا بَنِي عَدِيٍّ!" بُطُونِ قُرَيْشٍ حَتَّى اجْتَمَعُوا [۴] فَقَالَ: "أَرَأَيْتَكُمْ لَوْ أَخْبَرْتُكُمْ أَنَّ خَيْلًا بِالْوَادِي تُرِيدُ أَنْ تُغِيرَ عَلَيْكُمْ [۵] أَكُنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ؟" قَالُوا: نَعَمْ، مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ إِلَّا صِدْقًا،

**ترجمه**: [۱] و حضرت ابن عباس وايي، هركله چې دا آيت نازل شو، وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ، یعنی خپل رشته داران کعبي والا اویروه، [۲] نو حضرت محمد ﷺ کوه صفا چې خانه کعبې ته نزدې دي ته تشریف یوورې او د هغه ځای نه يې داويل شروع کړل [۳] اې فهر اولاده! اې بني عدي! يعني د قريشو د ټولو ښاخونو نوم په نوم بلل يې شروع کړل نو د قريشو د ټولو ښاخونو خلق راجمع شوه، [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل تاسو خلق مخکې ماته دا وښايي كه زه تاسو ته داخبر درکړم، چې جنگل کې يو لښکر راتلو سره خکته شوی دی. او تاسو تباه کول غواړي، [۵] نو آيا تاسو به مارېښتني وګڼی هغه ټولو په يوه ژبه اوويل بيشکه ځکه چې زمونږ داهميشه نه داتجربه ده، چې كله تاځه خبره کړي ده، نو رښتيادي کړي ده. ستا د ژبي نه مونږ هيڅ كله شوا د رښتيا نه بله خبره نه ده اوريدله

**حل اللغات**:- ① عَشِيرَ: خاندان. قبيله. ② صَعِدَ: اوختلو. ③ بُطُونِ: د بطن نه دې، خيټې ته وائی، دلته ترې خاندان او قبیلې مراد دی ④ تُغِيرَ: حمله کوی،

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب {وأنذر عشيرتک الأقربين واخفض جناحک} [الشعراء: ۲۱۵] الن جانبک (رقم-۴۷۷۰) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب فی قوله تعالی: {وأنذر عشیرتک الأقربین} [الشعراء: ۲۱۴] (رقم-۳۵۵ - (۲۰۸) واحمد فی المسند: ۳۰۷/۱

[۱] قَالَ: "فَإِنِّي نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٌ شَدِيدٌ"، [۲] فَقَالَ أَبُو لَهَبٍ: تَبًّا لَكَ سَائِرَ الْيَوْمِ، أَلِهَذَا جَمَعْتَنَا؟! [۳] فَنَزَلَتْ: ﴿تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ﴾ [المسد:۱]. » مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۴] وَفِي رِوَايَةٍ: نَادَى: "«يَابَنِي عَبْدِ مَنَافٍ! إِنَّمَا مَثَلِي وَمَثَلُكُمْ كَمَثَلِ رَجُلٍ رَأَى الْعَدُوَّ [۵] فَانْطَلَقَ يَرْبَأُ أَهْلَهُ، فَخَشِيَ أَنْ يَسْبِقُوهُ، فَجَعَلَ يَهْتِفُ: يَاصَبَاحَاهُ!»".

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمایل. کـه تاسـو مـاربـتـنی ګمی نـو واوری، زه د الله د طرف نـه تاسو د هغه سخت ترین عذاب نازلیدو نه مخکې بیرونکی مامور شوی یم یعنی زه د الله د رسول په حیثیت سره ستاسو مخکې د اسلام دعوت پیش کوم، هغه قبول کی که تاسو دا دعوت قبول نه کی، او په ماباندې ایمان رانه وړی نو بیا زه تاسو ته داخبر درکوم چې په تاسو باندې د الله یـو ډیر سخت عـذاب نازلیدونکی دی. [۲] ابولهب چې د حضور ﷺ اکـاوو او د هغـه نـوم عبدالعزیٰ وو، دې خبـري اوریـدو سـره وویـل. تولـه ورځ دې سـتا تباهي وي، آیا دې د پاره تـامونږ راجمع کړي یو، چې مونږ دومره خرابي خبري واورو. [۳] په دې داسورت نازل شو، تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَّتَبَّ، یعنی د ابولهب دواړه لاسونه دې مات شي. او هغه دې برباد شي، او حقیقت دادی چې هغه درسول الله ﷺ د ګستاخي کولو پـه وجه تباه او برباد سو (بخاري، مسلم) [۴] او په یوه روایت کې داسې بیـان شـوی دی. چې حضور ﷺ اواز کولو سره قریش راجمع کړل او وي فرمایل اې د عبد المناف خامنو، خما او ستاسو د حالت مثال د هغه سړي په شان دی چې هغه د دښمن لښکر خپـل قـوم بانـدې حمله آور کیدو د پاره راتلونکی ولیدی [۵] نو هغه خپـل قـوم د هغـه دښمن د قتـل وغـارت ګیري نه دبچ کولو د پاره لاړو، چې یوي غنډۍ باندې ختلو سره د اوچت اواز په ذریعـه د قوم خلق د دښمن د خطري نه آګاه کړي، لیکن د دې خوف نه چې چیرتـه د دښمن لښکر د هغه نه مخکې هغه قوم تـه ونـه رسیږي نوځکه هغه د هغـه ځای نه پـه چغـه چغـه دا وئیـل شروع کړل یا صباحاه یاصباحاه اې قومه دهغه لښکر نه ویریږي کوم چې د سهار په غفلت کې حمله کوي اې قومه دهغه لښکر نه ویریږي کوم چې د سهار په غفلت کې حمله کوي

**حل اللغات:** - ⑤ نَذِيرٌ: ویرونکې، ⑥ تَبًّا: تباه دې شی، ⑦ يَرْبَأُ: حفاظت اوتربیت کوی. ⑧ يَهْتِفُ: په تیز آواز سره نې وئیل ⑨ يَاصَبَاحَاهُ: اې خلقو دسحر په غفلت کښې حمله کونکی دښمن نه اویریږئ. خان ترې بچ کړئ.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَهْلَهُ: أي قومه "أن يسبقوه"

یعنی دغـه محافظ اونګران تـه خطره محسوس شوه کـه پخپلـه لاړشم اوقوم بیـدار کړم نودښمن به اول اورسیږی اوهغوی به هلاك کړی لهذا هغه هم دَهغه ځائی نـه اوچت آواز اوکړو چه "ياصباحاه" اې زما قومه دَ سحرپه وخت دښمن حمله کونکې دې تاسو خپـل ځان

بح کړئی حضورپاك يوځل د قريشو اهم سرداران په دعوت بانديږ راؤغوښتل مگر د دين خبره اونه شوه بيائي دعوت اوکړو اوخبره ئې ښکاره کړه مگر خپلوان ئې اوتختيدل په دريم ځل ئې عام اعلان سره خلق د صفاغونډئې ته راؤغوښتل دعربو دعادت مطابق ئې د ياصباحاه الفاظو سره راؤغوښتل ټول راغله که څوك پخپله رانغلونو خپل نمائنده ئې راؤليږلو حضورپاك اول د خپلې تيرشوی ژوند او سيرت سره متعلق تپوس اوکړو ټولو اووئيل تاسو صادق او آمين يئې نوبيا حضورپاك خپل عام دعوت ورکړو نوخلق اونختيدل ابولهب په حضورپاك بانديږ د کاڼړو غوزارونه اوکړل نو په سورت للهب کښې د هغې جواب راغلو

**[٥٣٧٢] د نبی عليه السلام قريشوته دعوت ورکول**

۵۳۷۲-(١)[٣] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ «لَمَّا نَزَلَتْ: ﴿وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ [الشعراء: ٢١٤] [٢] دَعَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قُرَيْشًا، فَاجْتَمَعُوا، [٣] فَعَمَّ وَخَصَّ، فَقَالَ: "يَا بَنِي كَعْبِ بْنِ لُؤَيٍّ! أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ، [٤] يَا بَنِي مُرَّةَ بْنِ كَعْبٍ! أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ، [٥] يَا بَنِي عَبْدِ شَمْسٍ! أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ، [٦] يَا بَنِي عَبْدِ مَنَافٍ! أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ،

**ترجمه:** [١] و حضرت ابوهريره ﷺ وايي کوم وخت چې دا آيت نازل شو. وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ. يعنی خپل نزدې خاندان والا اويروه، [٢] نو رسول الله ﷺ قريش خلقو ته اواز ورکولو سره وبلل کوم وخت چې هغوئ جمع شوه، [٣] نو حضور ﷺ خطاب تعميم هم وکی، او تخصيص هم يعنی هغوئ يې د لرې جداعلی د نومونو په ذريعه هم مخاطب کړل چې خاص خاص خلقو سره مخصوص خطاب هم اوسي، [٤] نو حضور ﷺ هغه ټولو ته داسې خطاب ورکی اې د کعب بن لوی خامنو! خپل ځان د دوزخ د اور نه وساتی، يعنی ايمان قبول کی نيك عمل کوئ چې د دوزخ د اور نه نجات پيدا کي [٥] اې د مره بن کعب خامنو! خپل ځان د دوزخ د اور نه محفوظ کړي [٦] اې د عبد شمس خامنو! خپل ځان د دوزخ د اور نه محفوظ کړي، اې د عبدمناف خامنو! خپل ځان ددوزخ د اورنه محفوظ کړي،

[١] يَا بَنِي هَاشِمٍ! أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ، [٢] يَا بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ! أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ، [٣] يَا فَاطِمَةُ! أَنْقِذِي نَفْسَكِ مِنَ النَّارِ، [٤] فَإِنِّي لَا أَمْلِكُ لَكُمْ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا، [٥] غَيْرَ أَنَّ لَكُمْ رَحِمًا سَأَبُلُّهَا بِبَلَالِهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [٦] وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ قَالَ: "يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ! اشْتَرُوا أَنْفُسَكُمْ، لَا أُغْنِي عَنْكُمْ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا [٧] وَيَا بَنِي عَبْدِ مَنَافٍ لَا أُغْنِي عَنْكُمْ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا،

---

[٣]) اخرجه البخاري في كتاب الوصايا/باب: هل يدخل النساء والولد في الأقارب؟ (رقم-٢٧٥٣) ومسلم في كتاب الإيمان/باب في قوله تعالى: {وأنذر عشيرتك الأقربين} [الشعراء: ٢١٤] (رقم-٣٤٨ - (٢٠٤) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ومن سورة الشعراء (رقم-٣١٨٥) والنسائي في كتاب الوصايا/باب باب: إذا أوصى لعشيرته الأقربين (رقم-٣٦٤٤) واحمد في المسند: ٢/٣٣٣

**ترجمه**: [۱] اې د هاشم خامنو خپل ځان د دوزخ د اور نه محفوظ کړي. [۲] اې د عبد المطلب خامنو خپل ځان د دوزخ د اور نه محفوظ کړی [۳] او اې ځما د ځګر ټکړې. فاطمې! خپل ځان د دوزخ د اور نه محفوظ کړه. [۴] ځکه زه ستاسو په حق کې د الله د طرف نه د عذاب له قسم نه د هیڅ شي مالك نه يم يعنې زه په تاسو کې هیڅوك د الله د عذاب نه نه شم محفوظ کولی. [۵] البته په ما باندې ستاسو د قرابت حق دی. چې هغه زه د صله رحمي په اوبو سره لندوم. يعنې ځما او ستاسو په منځ کې چې کوم قرابت دی. او د هغه چې په ما کوم حق دی هغه بس دومره دی. چې زه د دې دنيا په معاملاتو کې ستاسو نګراني وکړم ستاسو سره نيك سلوك وکړم. او ستاسو څه ضرورت وي. نو زه په صله رحمي او حسن سلوك او احسان سره د هغه ضرورت پوره کولو کوشش وکړم دا روايت مسلم نقل کړی دی [۶] او کوم روايت چې بخاري او مسلم دواړو نقل کړيدی. په هغه کې دا الفاظ دي. چې حضور ﷺ وفرمايل اې د قريش ډلې! خپل ځانونه واخلئ يعنې په ما باندې ايمان راوړی او د الله د اطاعت او فرمانبرداري په ذريعه کفران نعمت ناشکري ترك کولو سره خپل ځان د دوزخ د اور نه محفوظ کړي، زه ستاسو نه د الله د عذاب نه هيڅ لري کولی نشم، [۷] اې د عبد مناف خامنو! زه تاسو هم د الله د عذاب نه لري کولی نشم

**حل اللغات**:- ① أَنقِذُوا: ځان بچ کړئ. ② رَحِمًا: قرابت. خپلولی. ③ سَأَبُلُّهَا: بل او بلال لوندوالی ته وائی. زه به ددې لوندوالي قائم ساتم. يعنې د رشته دارئ حق به قائم ساتم

> [۱] يَا عَبَّاسُ بْنَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ! لَا أُغْنِي عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا، [۲] وَيَا صَفِيَّةُ عَمَّةَ رَسُولِ اللّٰهِ! لَا أُغْنِي عَنْكِ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا، [۳] وَيَا فَاطِمَةُ بِنْتَ مُحَمَّدٍ! سَلِينِي مَا شِئْتِ مِنْ مَالِي، لَا أُغْنِي عَنْكِ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا".

**ترجمه**: [۱] اې عباس د عبد المطلب زويه! زه تا هم د الله د عذاب څخه لري کولی نشم [۲] او اې د رسول الله ترور د پلار خور صفيې زه ستا نه هم د الله عذاب لري کولی نشم [۳] او اې د پلار د ځګر ټکړې فاطمې! بنت محمد ځما د مال نه چې ته څه غواړې او غواړه زه به در کړم. ليکن د الله د عذاب نه زه تا هم محفوظ کولی نشم

**تسهيلات**:

**قوله**: فَعَمَّ وَخَصَّ

**په عام او خاص خطاب سره رابلل**: يعنې حضور پاك د صفا په غونډئ باندې اودريدو او دوه قسمه خطاب سره ئې خلق راوبلل

① **عام خطاب**: عام خطاب بې دا وو يابنی کعب بن لوئی! اويا بنی عبد المطلب

② **خاص خطاب**: خاص خطاب ئې دا وو يا فاطمه

**قوله** سَأَبُلُّهَا بِبَلَالِهَا:

**د مذکوره جملې مطلب:** یعنی زه به صله رحمی دَ هغې دَلوند والی سره لوند ساتم یعنی دَ خپلولئ حق به قائم ساتم عرب تعلق ساتل لوند والی سره تعبیرکوی لکه څنګه چه یُبس او خشکی الفاظو سره خپلولی ماتول مراد اخلی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۳۷٤] په امت محمدی په آخرت کښې عدم عذاب

-٥٣٧٤-(١)[٣] ① عَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«أُمَّتِي هَذِهِ أُمَّةٌ مَرْحُومَةٌ، ③ لَيْسَ عَلَيْهَا عَذَابٌ فِي الْآخِرَةِ، ④ عَذَابُهَا فِي الدُّنْيَا: الْفِتَنُ وَالزَّلَازِلُ وَالْقَتْلُ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوموسی ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② څما دا امت امت مرحومه دی یعنی د نورو امتونو په نسبت څما د امت خلقو باندې د الله ﷻ رحمت ډیر زیات دی څکه د دوئ د نبي شان هم رحمة للعالمین دی، ③ په دې امت به په آخرت کې عذاب نه وي، ④ د دې امت عذاب هغه په دنیا کې فتنې، زلزلې او ناحق قتل دی (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① مَرْحُومَةٌ: رحم پرې شوې دې. ② الْفِتَنُ: دَ فتنة جمع ده او دَ فتنه څو معانې راځی مثلاً ازمیښت، امتحان، ابتلاء،

**تسهیلات:**

**قوله** لَيْسَ عَلَيْهَا عَذَابٌ فِي الْآخِرَةِ:

**اشکال:** دا جمله دَ هغه احادیثو او آیاتونو معارض ده په کوم کښې چه دَ دې امت دَ کبیره ګناه کونکو دَپاره دَعذاب ذکر دې.

**داشکال دوه جوابونه:** ① دَ دې جملې تعلق دَ صحابه کرامو دَ ډلې سره دې صحابه سره د دې چه معصوم نه دی مګر دَعذاب نه محفوظ دی دریم جواب دادې چه دې نه هغه خلق مراد دی دَچاچه ګناه نه وی.

② دا امت مرحومه دې په دې باندې به په آخرت کښې داسې عذاب نه راځی چه دوی همیشه په دې عذاب کښې دکافرانو په شان په دوزخ کښې راګیرشی بلکه دَدې عذاب عارضی دې چه په دنیاکښې به په هغوی باندې زلزلې راځی دَ قتلونو اوتباهئ فتنې به راځی دَدې سزاګانو تیرولونه پس به آخرت کښې پاك صفا جنت ته ځی

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما یرجی فی القتل (رقم-٤٢٧٨)وابن ماجه فی کتاب الشفعة /باب من باع رباعًا فلیؤذن شریکه (رقم-٢٤٩٢) واحمد فی المسند: ٤١٠/٤

**[٥٣٧٥] دامت محمدی د مختلفو بادشاهانو پیشنهکولی**

(٥)[٥] ١ وَعَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ ٢: " «إِنَّ هٰذَا الْأَمْرَ بَدَأَ نُبُوَّةً وَرَحْمَةً، ٣ ثُمَّ يَكُونُ خِلَافَةً وَرَحْمَةً، ثُمَّ مُلْكًا عَضُوضًا، ٤ ثُمَّ كَائِنٌ جَبْرِيَّةً وَعُتُوًّا وَفَسَادًا فِي الْأَرْضِ، ٥ يَسْتَحِلُّونَ الْحَرِيرَ وَالْفُرُوجَ وَالْخُمُورَ، ٦ يُرْزَقُونَ عَلَى ذٰلِكَ وَيُنْصَرُونَ، حَتَّى يَلْقَوُا اللّٰهَ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ١ او حضرت عبیده بن جراح او حضرت معاذ بن جبل ﷺ چې دواړه د اوچتې درجې صحابه وو کې دي، د رسول الله ﷺ نه روایت کوي حضور ﷺ وفرمایل. ٢ دا امر یعنی دین اسلام، نبوت او رحمت سره ښکاره شو، یعنی دین اسلام چې د ټولو نه مخکې کومه زمانه کې ښکاره شو، او هغه زمانه دنزول وحي او د رحمت او نورانیت زمانه ده ٣ بیا د دې دین اسلام چې کومه زمانه راځي هغه به دخلافت اورحمت زمانه وي بیا چې ددي دین اسلام کومه زمانه راځي هغه به دزبردستي بادشاهت زمانه وي ٤ وبیا چې ددي دین اسلام کومه زمانه راځي هغه به دظلم زوراو قهر وتکبر او زمکه باندې د فتنې او فساد زمانه وي، ٥ هغه وخت چې خلق به ریښمي کپړې جائز ګڼلو سره سره استعمالوي هم. د ښځو شرمګاهونه، او د شرابو ټول انواع واقسام به حلال ګرځوي. ٦ لیکن ددي خیزونو باوجود هغوئ ته به رزق ورکولی شي، او کفارو او د هغوئ د مخالفینو په مقابله کې به د هغوئ مدد کولی شي، تردې چې هغوئ روز جزاء کې الله ﷻ سره یوځای شي. ایعنی هغه خلق اګر که په دومره بدعملیو او د الله ﷻ په نافرمانیو کې مبتلا وي. او دې اعتبارنه هغوئ د عذاب خداوندي مستوجب، او د هلاکت او تباهي. مستحق وي. خو حق تعالی د هغه شي په سبب کوم چې امت مرحومه سره مخصوص دی. هغوئ به دلته په عذاب کې نه مبتلا کوي، او په دې کې شاید دحق تعالی څه حکمت پټ وي. مثلاً داچې هغوئ نه به د مخلوق خداوندي د نظم ونسق او د انتظام مملکت هغه کار اخستل مقصود وي، چې د هغه اهمیت او صلاحیت په هغوئ لري. یا دااګر که هغه خلق خپله فاسق او بد کار وي، لیکن د هغوئ په لاسونو د دین د اصلاح او درستي څه کار سرته رسول مقدر وي[ا دا روایت بهیقي په شعب الایمان کې نقل کړی دی

**حل اللغات:** - ① عَضُوضًا: پرې کونکې. سخته. ② كَائِنٌ: وی به مسلسل. ③ جَبْرِيَّةً: ظلم او سختی. ④ عُتُوًّا: سرکشی. ظلم.

**تسهیلات:**

**دحدیث د بعضې جملوو ضاحت:**

① إِنَّ هٰذَا الْأَمْرَ بَدَأَ نُبُوَّةً وَرَحْمَةً: یعنی دا دین اسلام اودې دنیاوی او اخروی احکام په

---

[5] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ٥٦١٦ والدارمی فی السنن رقم الحدیث ٢١٠١

شروع کېږي داسې ظاهر شو چه دا د نبوت رحمت او شفقت په صورت کښې وو

(۲) ثُمَّ يَكُونُ خِلَافَةً وَرَحْمَةً: يعنې د نبوت د دور نه پس به د خلافت زمانه راځي چه ديرش کالو پورې به چليږي او د حضرت حسن رضي الله عنه په دور بانديې به ختميږي

(۳) ثُمَّ مُلْكًا عَضُوضًا: يعنې بيا به خلقو لره پرې کونکې د ملوکيت دور راځي به کوم کښې چه به ظالمان حکمرانان په خلقو بانديې ظلم کوي سره ددې چه ددې نه به خاص خاص عادلان بادشاهان مستثنی وی ليکن هغه به نادر وی لکه چه حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله عادل بادشاه وو

**قوله ثُمَّ كَائِنٌ جَبْرِيَّةً وَعُتُوًّا:**

**د ظالمانو بادشاهانو بادشاهي:** يعنې د ملك عضوض نه پس خوبه داسې ظالم سرکش او مفسد بادشاهان راځي چه استمرار او دوام سره به په فسق او فجور او ظلم کښې مشغول وی په دوی کښې به څوك عادل نه وی.

**هرڅاته رزق ورکول:** د حديث په آخره کښې دی چه داسې ظالمانو ته به هم الله تعالی رزق ورکوی او د هغوی په خاص خاص مقصدونو کښې به د هغوی امداد کوی ځکه چه الله تعالی رب العالمين دی صرف رب الصالحين نه دی.

**[۵۳۷۷] د شرابو د حلال ګڼرلو باره کې يوه پيشنګوئی**

۵۳۷۷ - (۱) [۲] (۱) وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: (۲) «إِنَّ أَوَّلَ مَا يُكْفَأُ» - قَالَ زَيْدُ بْنُ يَحْيَى الرَّاوِيُّ: يَعْنِي الْإِسْلَامَ - "كَمَا يُكْفَأُ الْإِنَاءُ" يَعْنِي الْخَمْرَ (۳) قِيلَ: فَكَيْفَ يَا رَسُولَ اللَّهِ! وَقَدْ بَيَّنَ اللَّهُ فِيهَا مَا بَيَّنَ؟ (۴) قَالَ: "يُسَمُّونَهَا بِغَيْرِ اسْمِهَا فَيَسْتَحِلُّونَهَا». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** (۱) او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي، ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا واوريدل (۲) د تولو نه مخکې چې کوم کار به اړولی شي، د حديث راوي حضرت زيد ابن يحيی رحمه الله وضاحت وکی يعنې اسلام کې چې د تولو نه مخکې کوم کار اړولی شی څرنګه چې لوښی اړولی شي. هغه به شراب وي، (۳) عرض وشو يارسول الله داسې به ولي کېږي هرکله چې د شرابو متعلق د الله هغه احکام بيان شوی دی، چې تولو بانديې ظاهر شوی هم دی. يعنې هرکله چې د شرابو حرمت نازل شوی دی، او ډيرسختۍ سره مسلمانانو ته د دې نه د پرهيز کولو حکم ورکول شوی دی او د دې حرمت او پرهيز حکم دومره واضح، دومره عام او دومره په تاکيد سره دي چې تول مسلمانان واقف او آګاه شوي دي، نو بيا داسې به څرنګه وي چې د دې حکم به بدل شي، او هغه به مسلمانان د اسلام د مخالفت په لار بوځي؟ (۴) حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل اخلق به د حيلو او بهانو په ذريعه هغه څکل شروع کړي.

(۱) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ۲۱۰۰

او طريقه به دا اختياروي چې! د دې نوم به بدل کړي او دا به حلال وګرځوي (دارمي)

**حل اللغات.** - ① يُكْفَأُ: دَ التـه کولو په معنی کښې دې

**تسهيلات:**

**قوله** إِنَّ أَوَّلَ مَا يُكْفَأُ

**په تحليل الحرام کښې اوله تبديلي:** مطلب دا چه په اسلام کښې دَ نړولو نه اول چه کوم څيز الټه کولوسره اړولې شي هغه به شراب وي چه خلق به شراب څکي او نوم به ورله يا دَ نبيذ يامثلث يا آب جو ايږدي چنانچه نن صبا هم دغه کيږي لهذا يوحرام څيزبه حلال وئيلوسره استعمالوی قصداً سره دَ پوهې حرام ته حلال وائی نوکافر به شی اوکه چرته تاويل کوی نو فاسق به جوړشی بهرحال دَدې حديث تعليم دادې چه خلق به پخپله نه بدليږی بلکه دَ خپل دين بدلولو کوشش به کوی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵۳۷۸] دَ مسلمانانو د مختلفو حکمرانانو پيشنګوئی

۵۳۷۸-(۷) [۲] ① عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«تَكُونُ النُّبُوَّةُ فِيكُمْ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَكُونَ، ③ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى، ④ ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةٌ عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَكُونَ، ⑤ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى، ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا عَاضًّا، فَتَكُونُ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَكُونَ، ⑥ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى،

**ترجمه:** ① حضرت نعمان ابن بشير د حضرت حذيفه نه روايت کوي، هغه اوويل رسول الله ﷺ وفرمايل. ② ستاسو په منځ کې د نبوت وجود او د هغه نور به هغه وخته پورې باقي وي ترڅوپورې چې الله غواړي ③ بيابه الله ﷻ نبي خپل ځان ته د بللو په ذريعه نبوت پورته کړي ④ د دې نه پس به د نبوت په طريقه خلافت قائم کيږي، او هغه به هغه وخته پورې قائم وي ترڅوپورې چې الله ﷻ غواړي. يعني ديرش کاله پورې. ⑤ بيابه الله ﷻ خلافت هم پورته کړي د دې نه پس به د زبردستی د بادشاهت حکومت قائم شي يعني د داسې خلقو د بادشاهت زمانه به راشي، چې په خپلو کې به يوبل داسې چيچي خرنګه چې سپي چيچل کوي، او هغه بادشاهت به هغه وخته پورې قائم وي. ترڅوپورې چې الله غواړي ⑥ بيابه الله ﷻ هغه بادشاهت هم دې دنيا نه پورته کړي.

**حل اللغات:** - ① مِنْهَاجِ: لاره. ② عَاضًّا: پريکونکي.

① ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا جَبْرِيَّةً، فَيَكُونُ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَكُونَ، ② ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى، ③ ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةً عَلَى مِنْهَاجِ نُبُوَّةٍ "، ثُمَّ سَكَتَ»، ④ قَالَ حَبِيبٌ: فَلَمَّا قَامَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ كَتَبْتُ إِلَيْهِ بِهَذَا الْحَدِيثِ أُذَكِّرُهُ إِيَّاهُ، ⑤ وَقُلْتُ:

[۷]) اخرجه احمد فى المسند ۴/۲۷۳

أَرْجُو أَنْ تَكُونَ أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ بَعْدَ الْمُلْكِ الْعَاضِّ وَالْجَبْرِيَّةِ، ⑥فَسُرَّ بِهِ وَأَعْجَبَهُ، يَعْنِي عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ).

**ترجمه:** ①د دې نه پس به د قهر تکبر او زور زبردستی والا د بادشاهت حکومت قائم شي، او هغه به هغه وخته پورې قائم وي ترخو پورې چې الله ﷻ غواړي ②بیابه الله ﷻ هغه بادشاهت هم ختم کړي، ③د دې نه پس به د نبوت په طریقه یعنی عدل وانصاف پوره طور سره جاري کونکې خلافت قائم کړي او د خلافت نه مراد د حضرت عیسی علیه السلام او مهدي علیه السلام زمانه ده دومره فرمایلو سره هغه خاموش سو ④حضرت حبیب ابن سالم چې د دې حدیث د راویانو نه یوراوي دی او د حضرت نعمان بن بشیر ازاد کرده غلام او د هغه کاتب وو، او هغوئ نه حضرت قتاده وغیره روایتونه نقل کوي، بیان یې وکی چې کوم وخت عمر بن عبد العزیز خلیفه مقرر شو، او هغوئ د نبوت په طریقه حکومت قائم کی نو مادي حدیث طرف ته د هغوئ توجه راګرځولو د پاره داحدیث لیکلی هغوئ ته ولیږی ⑤او د خپل دي احساس اظهار مې وکی چې زه دا امید کوم، چې تاسو هغه امیر المؤمنین یعنی خلیفه یې چې د هغه ذکر دي حدیث کې د چیچونکی بادشاهت او قهر وتکبر او زور زبردستي والا بادشاهت نه پس راغلی دی. ⑥حضرت عمر بن عبد العزیز دي خبري سره ډیر خوشحاله او دي شرح هغه ډیر خوشحاله کې [یعنی د دې خبري امید او ارزو هغه ډیر خوشحاله کې چې په حدیث کې د کوم آخري خلافت ذکر شوی دی، شاید د هغه اطلاق څما زمانه خلافت باندې وي] دا روایت امام احمد خپل مسند کې او بیهقي دلائل النبوة کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:** -③جَبْرِيَّةٌ: ظلم زیاتې کونکې،

**تسهیلات:**

**قوله: ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةٌ عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ تَكُونَ:**

**د خلافت علی منهاج النبوة دوه قسمونه:** ① خلافت علی منهاج النبوة په طریق خاص سره دي د دې مصداق صدیق اکبر او فاروق اعظم رضي الله عنهما دی.

② خلافت علی منهاج النبوة په طریق عام سره دې دې کښې حضرت عثمان رضي الله عنه حضرت علی رضي الله عنه اوحضرت معاویه رضي الله عنه اوحضرت حسن رضي الله عنه داخل دی (قاله الشیخ ولی الله في ازالة الخفاء عن خلافة الخلفاء)

**د خلافت نه پس مختلف ادوار:** ①د خلافت نه پس په دې حدیث کښې ملك عضوض ذکر دي ② بیا د دې نه پس د ظلم اوستم اود جبریه د دور ذکر دي

③ دې نه پس بیا خلافت علی منهاج النبوة ذکر دي د کوم نه چه اندازه کیږی چه په دي

کښې دَحضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله دَدور خلافت طرف ته اشاره ده چنانچه هغوی علماؤ په خلفاء راشدین کښې شمیر کړې دې

**قوله. قَالَ حَبِیبٌ: فَلَمَّا قَامَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ العَزِیزِ کَتَبْتُ إِلَیْهِ بِهٰذَا الحَدِیثِ**

یعنی حضرت حبیب بن سالم چه دَ نعمان بن بشیر آزاد کړې شوې غلام او د هغه سیکریټری وو فرمائی چه کله حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله خلیفه جوړ شو نو ما دا بشارت لیکلو سره دَهغه طرف ته اولیږلو او توجه مې ورکړه چه کیدې شی تاسو ددې حدیث مصداق یئی نو هغه ډیر خوشحال شو او هغه له خوشحالیدل پکار وو ځکه چه به دې کښې دَهغه ډیر لوئی منقبت دې

# [۲۷] کِتَابُ الفِتَن ]

## دَفتنو بیان

| خلاصة الباب |
|---|
| فیه أحد وثلاثون حدیثاً مشتملة علی أربع مسائل: |
| ① إخبار النبي ﷺ بإتیان الفتن وأقسامها: ۱، ۲، ۳، ۴، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۸، ۲۹، ۳۰. |
| ② أقسام الناس في الفتن: ۲، ۵، ۲۵. |
| ③ مصداق بعض الفتن: ۳۱. |
| ④ التجنب عن الفتن واللزوم مع الجماعة: ۴، ۶، ۷، ۸، ۱۳، ۱۴، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۶، ۲۷، ۲۸. |

**دفتنة اطلاقات:** الفتن" دَ فتنة جمع ده او دَ فتنه په ګڼو ځیزونو باندې اطلاق کیږی مثلاً مال اولاد. ابتلاء ازمیښت. امتحان، . اوجنون. عذاب، . بیماری ګمراهی شرك وغیره تولو باندې موقع په موقع دَ فتنې اطلاق کیږی خو ددې غالب استعمال په هغه فتنه کښې دې کوم چې د الله تعالی د طرفه په چا باندې نازل شی

**دآفتونو دوه ښکاره قسمونه:** ① هغه آفته دَ کوم علت او سبب چه دَ یو حد پورې معلوم وی دَفتنې په دې قسم کښې ابهام نه وی

② هغه آسمانی آفت دَ کوم علت او سبب وجه چه معلومه نه وی. سبب او علت ئی بالکل پټ وی په ظاهره هیڅ هم نه ښکاری صرف آفت ښکاری دَ فتنې او آفت دې ته قسم ته "فتنة عمیاء" وائی په کوم کښې چه یو سړې دا تمیزنه شی کولې چه حق کوم طرف ته دې او باطل کوم طرف ته دې لکه بغیر دَ څه وجې قتل او تباهی کول چه نه قاتل ته معلوم وی چه

هغه ولې قتل اوکړو اونه مقتول ته پته وی چه هغه ولې قتل کړې شو

**دفتنې خطرناکی:** په اکثروختونوکښې حضورپاك په خپله پیشنګوئی کښې دَ یوحادثې طرف ته اشاره کوی په ظاهره هغه معمولی شان خبره معلومیږی خو چه کله هغه حادثه اوفتنه مخې ته راشی نوهغه پوره معاشره په خپله ګیره کښې اخلی او په هرخاص اوعام باندې دَنیمې ورځې دَ نمر په شان واضح کیږی نوبیا معلومه شی چه په علمی اعتبارسره داخبره څومره وړه او پټه وه مګر په عملی توګه داڅومره مشهوره او لویه ده

**دفتنوپه تعین کښې احتیاط:** دَ فتنو تعین اودَ هغې مصداق خودل ډیر مشکل کاردې دَدې اصل وجه داده چه دَ فتنو یوه اوږده سلسله ده دَ حضورپاك یو پیشنګونی په یوخاص فتنه اوخاص واقعه اوحادثه باندې ورلګول اوهغې سره په خاص توګه یوځائی کول نه دی پکار ډیرکرتې داسې اوشی چې د یوې واقعه په څرګندیدو سره حدیث په هغې باندې چسپان کړی خوبیا هغه چسپانول غلط اوخیژی

**اشکال:** صاحب مشکوة په عنوان کښې "کتاب الفتن" عنوان ذکرکړې دې اودَ کتاب دَ آخره پورې ئی ټول ابواب هم دَدې عنوان لاندې درج کړی دی حالانکه په دې ابوابو کښې دَ بعضې تعلق دَ فتنوسره نه دې. خاص کردَ مناقبو، معجزاتو او دَ فضائلو ابواب دَ کتاب الفتن لاندې څنګه درج کړې شوی دی؟

**داشکال دوه جوابونه:** فتن اوغیرفتن په مینځ کښې دَ فرق دَ پاره دا ضروری نه دی چه دَ کتاب الفتن نه پس کتاب المناقب قائم کړې شی. دواړه مضمونونه جداکولودَپاره دَ باب په ذریعه هم فرق راځی نوترکومې پورې چه دَ فتن بیان دې ترهغه ځائی پورې دَ کتاب الفتن ممتازکولواحاطه ده اودَ کوم ځائی نه چه دَ فتن ابواب ختم شوی دی دَهغه ځائی نه وړاندې دَ ابواب په عنوان سره جدا څیزونه ذکرکړې شوی دی کوم چه مناقب وغیره دی بهرحال په مضامینو کښې دَ فرق کولودَپاره دکتاب دَ عنوان په شان دَ باب عنوان هم کافی شافی کیږی دَ اعتراض ضرورت نشته دې.

② صاحب مشکوة ترکومې پورې چه دَ فتنو ابواب کیخودوسره دَ فتنو بیان کړې دې نودَ هغه ځائی پورې خوهم دَ فتنو بیان دې لیکن دَ کوم ځائی نه چه دَ فتنو ابواب ختم شوی دی هلته کیدې شی چه صاحب مشکوة دکتاب عنوان کیخودوسره څه جدا عنوان لیکلې وومګردکاتبینو دَ غفلت دَ وجې نه هغه کتاب پاتې شو لهذا دَدغه غفلت دَ وجې نه ټول ابواب دَ کتاب الفتن لاندې راغله.

# اَلفَصلُ الاَوَّلُ

## [٥٣٧٩] دَ قيامته پورې دَ راتلونكې فتنو پيشنګوئي

٥٣٧٩ -(٨)[١] ①عَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ②: «قَامَ فِينَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَقَامًا، ③مَا تَرَكَ شَيْئًا يَكُونُ فِي مَقَامِهِ ذٰلِكَ إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ إِلَّا حَدَّثَ بِهِ، ④حَفِظَهُ مَنْ حَفِظَهُ، وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ، ⑤قَدْ عَلِمَهُ أَصْحَابِي هٰؤُلَاءِ، وَإِنَّهُ لَيَكُونُ مِنْهُ الشَّيْءُ، قَدْ نَسِيتُهُ، ⑥فَأَرَاهُ فَأَذْكُرُهُ، كَمَا يَذْكُرُ الرَّجُلُ وَجْهَ الرَّجُلِ إِذَا غَابَ عَنْهُ، ثُمَّ إِذَا رَآهُ عَرَفَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①حضرت حذيفه ﷺ وايي، ②يوه ورځ رسول الله ﷺ زمونږ په منځ کې ودريدی څرنګه چې دوعظ او خطبې د پاره ودريږي، او حضور ﷺ خطبه ارشاد وفرمايه او وعظ يې وکړ چې د هغه په دوران کې حضور ﷺ دهغه فتنو نه آګاهي وفرمايله کومې چې ظاهريدونکې دی ③او د فتنې له قسمه چې کوم څيزونه چې هغه وخت يعنې زمانه نبوت نه واخله ترقيامته پورې واقع کيدونکې وو هغه ټول يې ذکر کړل او په هغه کې يې هيڅ شی بيانولو نه پرې نه ښوو ④هغه خبرې ياد ساتونکو يادې کړې. او څوك چې هيرونکې وو، هغوئ هيرې کړې يعنې حضور ﷺ چې د فتنو ذکر وفرمايه بعضې خلقو خو هغه يادې کړې او بعضې خلقو هيرې کړې، ⑤حضرت حذيفه ﷺ داهم وفرمايل ځما دا دوستان يعنې صحابه ﷺ چې دا وخت ژوندی دی دې واقعې نه چې رسول الله ﷺ په هغه ورځ خپله خطبه کې چې ترقيامته پورې د ظاهريدونکو فتنو ذکر يې فرمايلی وو واقف دی. ليکن په دوئ کې بعضې حضراتو ته د حضور ﷺ بيان کړده خبرې ورته يادې وې، او بعضې حضراتو ته هغه خبرې تفصيل سره ياد نه دې پاتې شوې. ځکه چې د وخت په تيريدو سره نشيان هيره د انسان د خواصو نه ده، او څرنګه چې بيان وشو زه هم د هغه خلقو نه يم چې هغه خبرې مې پوره طور سره ياد نه وې ساتلي. ⑥ليکن حقيقت دادی چې حضور ﷺ د کومې خبرې خبر ورکړی وو، او کومې خبرې چې زما نه هيرې شوې وې که دهغه نه څه خبره پيښه شي، نو زه په هغه ليدو سره خپله حافظه تازه کوم څرنګه چې يو سړي ته يو غائب سړی په مخ په نظر ورسي، نو هغه دمخ په ليدو سره هغه سړی پيژندی شي يعنې عام طور سره داسې کيږي چې يو سړی ډيرې مودې پورې غائب وي نو د هغه شخصيت د ذهن نه غائب شي، او خلق هغه هير کړي، ليکن کله چې هغه

[٨] اخرجه البخاري في كتاب القدر/باب {وكان أمر الله قدراً مقدوراً} [الأحزاب: ٣٨] (رقم-٦٦٠٤) ومسلم في كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب إخبار النبي صلى الله عليه وسلم فيما يكون إلى قيام الساعة (رقم-٢٣ - (٢٨٩١) وابوداود في كتاب الترجل /باب ذكر الفتن ودلائلها (رقم-٤٢٤٠) والترمذي في كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ما أخبر النبي صلى الله عليه وسلم أصحابه بما هو كائن إلى يوم القيامة (رقم-٢١٩١) وابن ماجه في كتاب الفتن/باب ذهاب الأمانة (رقم-٤٠٥٣) واحمد في المسند:٣٨٥/٥

حاضر شي، او د هغه مخ سرګونه مخامخ راشي، نو د هغه هیرکړي شخصیت سمد سمي
یاد کې راشي، او هغه سړی وپیژندل شي، دغه شان خما معامله هم داده چې په کومه
ورځ رسول الله ﷺ کومي خبري بطور پیشنګوئي کړي وي هغه تفصیلي طور سره خما په
ذهن کې نه دي پاتې شوي لیکن هرکله چې د هغه خبرو نه څه خبره پیښه شي. او
حضور ﷺ چې د کومو خبرو خبر ورکړی وو، هغه نه څه خبره واقع شي، نو د هغه په لیدو
سره زه سمدستي لیدو سره وپیژنم چې دا هغه خبره ده د کومي چې حضور ﷺ خبر
ورکړی وو (بخاري)

**تسهیلات:**

**قوله قَدْ عَلِمَهُ أَصْحَابِي هَؤُلَاءِ:**

**دمذکوره جملې مطلب:** یعنی زما ملګروته ښه معلومه ده چه حضورپاك تولو نه خودلی
وو اوکه چرې په دوی کښې بعضو ملګری نه هیرشوي وی هغه جدا خبره ده زه هم د
ډیرې مودې او هیرې د وجې نه بعضې څیزونه هیروم لیکن چه کله هغه واقعه ښکاره
کیږی نوماته پوره نظاره داسې یاده شی لکه چه یوسړې د یوې مودې پورې یو سړی سره
ملاقات نه پس غائب شی نوداسړې هغه بالکل هیرکړی خوچه کله ناڅاپی ملاقات
اوشی نوهغه دي په لیدو سره فوری پیژنی چه داخوهم هغه سړې دي خوك چه ما ډیر
مخکښې لیدلې وو اوبیامې هیرکړې وو.

**[۵۳۸۰] دَ خلقو په زړونو باندې دَ فتنو اثر**

۵۳۸۰-(۲)[۱] وَعَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] «تُعْرَضُ الْفِتَنُ عَلَى الْقُلُوبِ كَالْحَصِيرِ عُودًا عُودًا، [۳] فَأَيُّ قَلْبٍ أُشْرِبَهَا نُكِتَتْ فِيهِ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ، وَأَيُّ قَلْبٍ أَنْكَرَهَا نُكِتَتْ لَهُ نُكْتَةٌ بَيْضَاءُ، حَتَّى يَصِيرَ عَلَى قَلْبَيْنِ: [۴] أَبْيَضُ مِثْلُ الصَّفَا، فَلَا تَضُرُّهُ فِتْنَةٌ مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ، [۵] وَالْآخَرُ أَسْوَدُ مِرْبَادًّا كَالْكُوزِ مُجَخِّيًا لَا يَعْرِفُ مَعْرُوفًا وَلَا يُنْكِرُ مُنْكَرًا [۶] إِلَّا مَا أُشْرِبَ مِنْ هَوَاهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت حذیفه ﷺ وایي ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل [۲] د خلقو په
زړونو کې به فتنې داسې واچول شي، څرنګه چې د چټائي لخې وي، یعنی څرنګه چې
چټائي کې لخي یوبل پسې لګول کیږي دغه شان زړونو باندې هم یوي نه پس بله فتنه
اچول کیږی، [۳] نو کوم زړه چې هغه فتنې قبولې کړي په هغه کې توره نکته پیدا شی، او
کوم زړه چې هغه فتنو قبلولو نه انکار وکړي په هغه کې سپینه نکته پیدا کول کیږی، نو
انسان د هغه فتنو پیښیدو، او د هغوئ زړونو باندې د هغه فتنو د تاثیر او عدم تاثیر د

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب بیان أن الإسلام بدأ غریبًا وسیعود غریبًا، وأنه یأرز بین المسجدین -۲۳۱- (۱٤٤) واحمد فی المسند: ٥/٤٠٥

اعتبار نه دهغوئ زړونه دوه قسمونو کې تقسیم شي، یاداچي د انسانانو زړونه د مذکوره اعتبار مطابق دوه قسمه شي. [۴] یو خوسپین په مثل د سنګ مرمر. چې په هغه هیڅ اثر انداز کېږي نه، واضحه دي وي، چې دي تشبیه کې محض سفیدي مراد نه ده، بلکې د سختی او قوت داعتبار هم لحاظ سائل شوی دی، نو دغه شان زړه باندې هم هیڅ فتنه اثر انداز او ضرر رسان کېږي نه ترڅو پوري چې زمکه او آسمان قائم او باقي وي. یعنی د دې زړه داکیفیت همیشه باقي وي، [۵] او دویم د ایري په شان تور زړه د اړول شوی لوښي پشان چې په هغه کې څه هم وي هغه تري تویي شي، مطلب داچي داسې زړه د ایري په شان تور او دنسکور لوښي په شان د ایمان او معرفت د نور نه خالي وي. نو داسې زړه ښه خونیك ښه او مشروع کارونه پیژني. او نه خراب کارونه بدګڼي، [۶] د هغه خوبس هغه شي سره مطلب وي، چې د خواهشاتو له قسمه په هغه کې ځای شوی دی. او د هغه د محبت هغه اسیر قیدي جوړ شوی دی، یعنی هغه طبعي طور سره د انساني خواهشاتو غلام وي، او د ښه او بد تمیز کولو بغیر هرهغه شی پسې ورزغلي کوم چې د هغه نفس ته مرغوب وي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْحَصِيرِ: پوزکې، ② عُودًاعُودًا: نیغ په نیغه، یوبل پسې، ③ أُشْرِبَهَا: اوئې څکی. یعنی قبوله ئې کړی، ④ نُكِتَتْ: داغ لګی، ⑤ مِرْبَادًّا: أي صار كلون الرماد یعنی دَ ایرو په شان به تور شی ⑥ الْكُوزِ: کوزه. لوټه. ⑦ مُجَخِّيًا: التِه لوښی ته وائی. دلته سرښکته او اولټه کوزه مراد ده

**تسهیلات:**

**قوله: تُعْرَضُ الْفِتَنُ عَلَى الْقُلُوبِ كَالْحَصِيرِ عُودًا عُودًا،**

**د فتنو د کثرد پوزکی د میزرو سره تشبیه:** یعنی چه کله فتنې دیرزیاتې وی نو په انسانی زړونو کښې به فتنې داسې اچولې شی لکه څنګه چه دَ پوزکی میزرې یوبل پسې پوزکی سره یو ځائی کولې شی. نو کوم زړه چه دا فتنې قبولې کړې نو په هغې کښې به یو تور داغ جوړشي او کوم زړه چه دغه فتنې قبولې نه کړی په هغې کښې به سپین داغ جوړیږی.

**قوله: فَأَيُّ قَلْبٍ أُشْرِبَهَا نُكِتَتْ فِيهِ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ:**

**د فتنو د اثر په اعتبار سره د زړونو دوه قسمونه:** ① یو زړه به دَ سنګ مرمر په شان صفا او تك سپین وی کوم ته چه یو فتنه هم نقصان نه شی رسولې

② دویم زړه به دَ ایرو په شان تك تورشی.

**قوله: وَالْآخَرُ أَسْوَدُ مِرْبَادًّا كَالْكُوزِ مُجَخِّيًا لَا يَعْرِفُ مَعْرُوفًا**

**د تورزړه دالټه کوزې سره تشبیه ورکول:** دا لفظ حال واقع دې مطلب دادې چه اوس دا زړه داسې لوټه جوړه شوې ده چه نیغه نه شی اودریدې او سرښکته کیدوسره په دې کښې څه څیز حصاریدې نه شی. اوس دَ اولټه لوټې په شان په دې کښې دَ خیر اونیکئی څه خبره نه

راځي بلکه اوس دا زړه د خواهشاتو داسې غلام جوړشوي دي چه په دې کښې د ښه او بد فرق ختم شوي دې اوس د نیکئي اوبدئي فرق کولونه بغیردا زړه خپلو خواهشاتو پسې منډې وهي اوهره یوه فتنه څکي

**[۵۳۸۱] د خلقو په زړونو کښې د امانت راتلل او بیا وتل**

٥٣٨١-(١٠)[٣][١]وَعَنْهُ، قَالَ: حَدَّثَنَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَدِيثَيْنِ، [٢]رَأَيْتُ أَحَدَهُمَا وَأَنَا أَنْتَظِرُ الْآخَرَ: [٣]حَدَّثَنَا: " «إِنَّ الْأَمَانَةَ نَزَلَتْ فِي جَذْرِ قُلُوبِ الرِّجَالِ، ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ الْقُرْآنِ ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ السُّنَّةِ» ". [٤]وَحَدَّثَنَا عَنْ رَفْعِهَا [٥]قَالَ: " «يَنَامُ الرَّجُلُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ الْأَمَانَةُ مِنْ قَلْبِهِ، فَيَظَلُّ أَثَرُهَا مِثْلَ أَثَرِ الْوَكْتِ،

**ترجمه:** [١]او حضرت حذیفه رضي الله عنه وایي، یوه ورځ رسول الله ﷺ مونږ ته د امانت باره کې او د فتنې د زماني د حوادثو په سلسله کې دوه حدیثونه یعنی دوه خبرې بیان کړي په [٢]هغه کې یوه خو زه وینم اودبلې منتظریم ، [٣]حضور ﷺ مخکښې خبره داوفرمایل چې امانت د خلقو د زړونو ګهرائي (ژوروالی) کې خکته شوی دی. بیا هغوئ د دې امانت په نور سره قرآن وپیژندی او بیا هغوئ سنت وپیژندی [٤]د دې نه پس د امانت پورته کیدو یعنی د ایماني ثمراتو او برکاتو دختمیدو اوپه هغه کې د نقص راتلو حدیث یې بیان کی، [٥]نو وي فرمایل سړی به حسب معمول اوده شي او امانت به د هغه دزړه نه وویستل شي یعنی د هغه د ایمان بعضې ثمرات او انوار به ناقص او کم شي. نو د امانت اثر یعنی نښه چې د ایمان ثمره ده د داغ په شان به پاتې شي حاصل داچې د ایمان دنور اثر او ثمره به ناقص شي،

**حل لغات:** ①جَذْر: جرړې او اصل ته وائی. ②فَيَظَلُّ: نو اوبه ګرځی. جوړه به شی ③الْوَكْتِ: اثر. نشان.

[١]ثُمَّ يَنَامُ نَوْمَةً فَتُقْبَضُ، فَيَبْقَى أَثَرُهَا مِثْلَ أَثَرِ الْمَجْلِ كَجَمْرٍ دَحْرَجْتَهُ عَلَى رِجْلِكَ، [٢]فَنَفِطَ، فَتَرَاهُ مُنْتَبِرًا وَلَيْسَ فِيهِ شَيْءٌ، [٣]وَيُصْبِحُ النَّاسُ يَتَبَايَعُونَ وَلَا يَكَادُ أَحَدٌ يُؤَدِّي الْأَمَانَةَ، [٤]فَيُقَالُ: إِنَّ فِي بَنِي فُلَانٍ رَجُلًا أَمِينًا، [٥]وَيُقَالُ لِلرَّجُلِ: مَا أَعْقَلَهُ! وَمَا أَظْرَفَهُ! وَمَا أَجْلَدَهُ! [٦]وَمَا فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١]بیا چې هغه دوباره اوده شي، او زیات غفلت وربانديږ خورسي نو د هغه د امانت هغه حصه به هم ناقصه شي، او اوبه ویستل شي. کومه چې باقي پاتې شوي وه نو دهغه په زړه کې به د یوي تناکي په شان به داغ پاتې شي، څرنګه چې تاسو د اورسکروټه خپلې پښې باندې ورغړوي [٢]او هغه سره تناکه راووځي چې په ظاهره پړسیدلی پورته ښکاري، لیکن په هغه کې دننه د خرابو او ګنده اوبو نه علاوه نور هیڅ نه وي، [٣]بیا ددي

[١٠] اخرجه البخاري فی کتاب الدعوات/باب الدعاء للمشرکین (رقم-٦٣٩٧) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب رفع الأمانة والإیمان من بعض القلوب. وعرض الفتن علی القلوب (رقم-٢٣٠ - (١٤٣) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب ذهاب الأمانة (رقم-٤٠٥٣) واحمد فی المسند:٣٨٣/٥

صورت حال نه پس هركله چې خلق سهارپورته شي نو حسب معمول خپلو كې به خريد و فروخت اخستون او خرخون كوي، او په هغوئ كې به يو سړى هم داسې نه وي چې امانت اداء كړي، يعنى د شريعت حقوق اداكونكى د فرائضو او واجباتو تكميل كونكى او د خلقو په حق كې خه خيانت او بد ديانتي نه كونكى به چيرته لري لري هم په نظر نه راځي، ④تردي چې امانت او ديانت كې د كمى دراتلو په سبب به داويل كيږي چې د فلاني قبيلي يا فلانى ښار او ابادى كې د خلقو د كثرت باوجود بس يو سړى دى چې امانت دار يعنى كامل الايمان دى، ⑤او په هغه زمانه كې به د يو سړي په حقله چې د نورو دنيادارو په مقابله كې به زيات هوښيار او چالاك وي د مال وجاه حاصلولو زيات صلاحيت به لري د اوچتي درجي شاعر او فصيح او بليغ او اديب په شان به وي د زيات طاقت او قوت حامل او شجاع به وي او زبردست سياسي مهارت چالاكي او د دنياوي شان وشوكت حامل به وي داويل كيږى چې هغه په خپل دنياوي كاروبار او معاملاتو كې څومره عقلمند او هوښيار څومره خوبصورت او دانا خوشگوار اوژبه وردي او څومره چست و چالاك دى ⑥حالانكې د هغه په زړه كې به د ذري د داني برابرهم ايمان نه وي.(بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** -④المَجْل: دَ لاس اثر اونخښي ته وائى كوم چه دسخت كار په وجه پيدا شوى وى، ⑤ جَمْر: سكروټه، ⑥دَحْرَجْتَهُ: اورغروى، ⑦نَفِطَ: په اورسره دَ سوزيدودَ وجې نه په بدن كښې پولئ پيداكيدو ته نفط وائى. ⑧مُنْتَبِرًا: دَ منبر په شان به اوچت او رابهرشوي وى. ⑨مَا أَعْقَلَهُ: څومره عقلمند دي، ⑩مَا أَظْرَفَهُ: څومره هوښيار دي. ⑪مَا أَجْلَدَهُ: څومره چالاكه دي. ⑫خَرْدَلٍ: د أورى، غوښت دانه، د سپيلنى دانه،

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ الْأَمَانَةَ نَزَلَتْ فِي جَذْرِ قُلُوبِ الرِّجَالِ:

**د امانت څخه مراد:** دَ امانت نه دلته دَ حق دَ قبلولو هغه طاقت مراد دې چه دَ پيداكيدو په وخت دَ هربچى په زړه كښې اچولې شى. دَ انسان په زړه كښې دننه دَ حق دَ قبلولودَ دې طاقت دا تخم كرل يوې ډيوې په شان وو چه تردغه وخته پورې لا لګولې شوې نه وه

**قوله:** ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ الْقُرْآنِ ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ السُّنَّةِ

**په قرآن اوسنت سره د هدايت څوريدل:** اوس دَ آسمان نه قرآن پاك نازل شو اودَ نبى كريم ﷺ سنت راغله. دغه دواړو ځيزونو هغه ډيوه روښانه كړه اوس په دې زړه كښې دَ هدايت هغه نور روښانه شو په كوم سره چه اخواديخوا هدايت خور شو. په دې حديث كښې دَهدايت دَ خوريدو داړومبې مرحله بيان كړې شوه.

**قوله:** وَحَدَّثَنَا عَنْ رَفْعِهَا

**د امانت پورته كيدل او ختميدل:** يعنى دَ هدايت اوامانت دَ كوزيدو اوخوريدونه پس

دَهغې دَ اوچتيدو او دَ هدايت دَ نورد ثمراتو دَ ختميدو ذکرئی اوفرمائيلو چه سړې به دَمعمول مطابق اوده کيږی په داسې حالت کښې به دَهغه دَ زړه نه دَ دغه امانت ثمرات اوچتولې شی اوس به په زړه کښې صرف يوه نښه باقی پاتې شی هم دغه نښان او دغه اثرته، الوکت: وئيلې شوې دې

**توله:** قَالَ: "«يَنَامُ الرَّجُلُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ الْأَمَانَةُ مِنْ قَلْبِهِ:

**دنوم په مصداق کښې دوه اقوال:** ① د نوم خخه حقيقی اوده کيدل مراد دی

② ددې خخه دَ غفلت ژوندون مراد دې

**توله:** فَيَظَلُّ أَثَرُهَا مِثْلَ أَثَرِ الْوَكْتِ:

**په زړه کښې د ايمان کمزورې کيدل:** يعنی په ړومبی ځل دَ دغه امانت اوچتيدو نه پس چه کله دوباره داسرې اوده شی نودَ هغه امانت باقی حصه به هم دَ دغه سړی دَ زړه نه اوچته کړې شی. اوس به دا زړه دَ ايمان او امانت نه خالی پاتې شی او په زړه باندې به دَ پولئی په شان نخښه پاتې شی.

**توله:** فَيَبْقَى أَثَرُهَا مِثْلَ أَثَرِ الْمَجْلِ

**د ايمان د کمزورئ خخه روسته د زړه حالت:** ميم باندې زبر دې جيم ساکن دې دَ لاس اثر اونخښې ته وائی په کوم کښې چه دَ زيات سخت کارد وجې نه څرمن سختيدو سره توره شی. يعنی دوباره دَ ايمان او امانت اوچتيدوسره به اوس زړه دَ ايمان نه خالی شی اودَ سختې پولئی په شان به سخت نخښه باقی پاتې شی کوم چه المجل يعنی اثرالعمل سره ياد کړې شوې دې.

**توله:** كَجَمْرٍ دَحْرَجْتَهُ عَلَى رِجْلِكَ، فَنَفِطَ، الخ

**دجمر وضاحت:** دادَ المجل دَ وضاحت دَپاره دَ مثال په توګه بيان کړې شوې دې "أي كتأثيرالجمر" يعنی څنګه چه يوسړې په خپله خپه وغيره باندې سروټکه کيږدی او ګدوډ شی په کوم سره چه هغه ځائی سوزيدو سره پولئی جوړه شی بيا هغه اوپړسيږی اودننه په کښې سخا اوبه اوشی نولکه څنګه چه دا پولئی پړسيدلې ده اودننه هيڅ هم نشته دې دغه شان دَ دې سړی زړه دَايمان اوامانت نه خالی کيږی سره دَدې چه سړې دَ بهر نه ايماندارښکاری مګر دننه به هيڅ هم نه وی

**توله:** وَيُصْبِحُ النَّاسُ يَتَبَايَعُونَ وَلَا يَكَادُ أَحَدٌ يُؤَدِّي الْأَمَانَةَ،

**په خلقو کښې دامانتدارئ فقدان:** يعنی خلق به سحروختی راپاسی اوخرڅول او اخستل به کوی ګرما ګرمی به وی مګر په دوی کښې به يو سړې هم دَ امانت او ديانت والا نه وی. تردې چه خلق به تذکره کوی چه فلانکې قبيله کښې يوديانتدار سړې دې

**قوله: مَا أَعْقَلَهُ! وَمَا أَظْرَفَهُ:**
**ظاهر د باطن خلاف:** بیا به دَ یوسړی باره کښې په یو آواز سره خلق وائی چه واه واه څومره عقل مند دې څومره هوښیاردې څومره تیز دې ددې تعریفونو باوجودبه دَ دغه سړی په زړه کښې دَ اوری دَ دانې برابر ایمان نه وی
**دامانت د زوال درې مراحل:** ① په اوله مرحله کښې به څه امانت لاړشی اومعمولی اثربه پاتې شو
② په دویمه مرحله کښې به لړ شان زیات امانت لاړشی او کم اثربه ئې پاتې شی
③ په دریمه مرحله کښې به ټول هرڅه لاړشی

**[۵۲۸۲] دَ فتنوپه زمانه کښې دعزلت نشینی ترغیب**

۵۳۸۲-(۱)[۳] ①وَعَنْهُ، قَالَ: «كَانَ النَّاسُ يَسْأَلُونَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الْخَيْرِ، ②وَكُنْتُ أَسْأَلُهُ عَنِ الشَّرِّ; مَخَافَةَ أَنْ يُدْرِكَنِي، ③قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّا كُنَّا فِي جَاهِلِيَّةٍ وَشَرٍّ، فَجَاءَنَا اللهُ بِهَذَا الْخَيْرِ، فَهَلْ بَعْدَ هَذَا الْخَيْرِ مِنْ شَرٍّ؟ ④قَالَ: " نَعَمْ "، ⑤قُلْتُ: وَهَلْ بَعْدَ ذَلِكَ الشَّرِّ مِنْ خَيْرٍ؟ ⑥قَالَ: " نَعَمْ، وَفِيهِ دَخَنٌ "،

**ترجمه:** ①او حضرت حذیفه ﷛ وایي، خلقو به اکثره د رسول الله ﷺ نه د نیکي او خیر ښېګړی باره کې پوښتنه کوله. ②او مابه د حضور ﷺ نه د شر او بدي باره کې د ریافت کوی د دي خوف د وجې نه چې چیرته په څه فتنه کې مبتلا نشم! ①یعنی نورو صحابه وو خو به دعبادت او اطاعت باره کې پوښتنه کوله چې زیات نه زیات نیك عمل او ښه کارونه وکړي. لیکن د هغوئ برخلاف څما معمول برعکس وو مابه د حضور ﷺ نه د ګناه او بدو باره کې د ریافت کوی، چې هغه نه پرهیز وشي. ②یاداچي هغه خلقو حضور ﷺ ته په خپل رزق کې دوسعت او د خوشحالی استدعا کوله.چې هغوئ ته اطمینان او فراغت حاصل شي او خپله دنیا د آخرت د فلاح او کامیابي ذریعه جوړه کې او ما به د هغه فتنو باره کې به مې پوښتنه کوله. کومې چې دي دنیا کې واقع کیدي شي. چې نه صرف اخروي ژوند باندې اثر انداز کېږي بلکې د هغه خراب اثرات دنیاوي خوشحالی او د رزق وسعت باندې هم راځي او د پوښتنې بناء داخوف وو چې چیرته زه دي فتنو کې مبتلا نشم. یا د هغه خراب اثرات او اسباب ماته ونه رسیږي، نود اهل علم نه د بدیو خرابیو واقفیت حاصلولو سره هغه نه د بچ کیدو تدبیر اختیارول یوه بهترینه طریقه ده. څکه حکماء او اطباء بلکې بعضې فضلاؤ داطریقه بطور اصول اختیار کړي

[۱۱] ) اخرجه البخاری کتاب المناقب/باب علامات النبوة فی الإسلام (رقم-۳٦۰٦) فی ومسلم فی کتاب الإمارة باب الأمر بلزوم الجماعة عند ظهور الفتن وتحذیر الدعاة إلی الکفر (رقم-٥١ - (١٨٤٧) وابن ماجه فی کتاب الفتن باب العزلة (رقم-۳۹۷۹)

ده، چې د ازاله مرض کې هم ددې اصولو طرف ته اشاره ده، چې مخکې د ماسوی الله نفي شوی ده، هغه نه پس الوهیت ثابت شو]

[۳]حضرت حذیفه بیان وکی چې د خپل مذکوره عادت مطابق یوه ورځ ما عرض وکړو. یارسول الله مونږ خلق د اسلام نه قبل جاهلیت او بدي کې مبتلا وو. بیا الله ﷻ ستاسود پیغمبری صدقه کې،مونږته دا هدایت او خیر یعنی د اسلام رڼا راکړله چې د هغه په وجه مونږ د کفر او ضلالت دتیارو نه لرې شو چې د ګمراهیو او خرابیو او بدي پیښیدونکي وه،نوآیاددي خیرنه پس بیا بدي پیښیدونکي ده [۴]حضور ﷺ وفرمایل. دي خیر نه پس هم بدي پیښیدونکي ده [۵]ما عرض وکړو نو هغه بدي نه پس به بیا د هدایت او خیر ظهور وي، چې د هغه په وجه دین او شریعت به بیا سربالا کیدل وي. [۶]حضور ﷺ وفرمایل هو دي بدي نه پس به بیا د خیر ظهور وي. لیکن دي بدي نه پس چې کوم خیر راځي، په هغه کې به کدورت خیرن والی وي،

**حل اللغات:-** (۱)دَخَنٌ: خرابی،

[۱]قُلْتُ: وَمَا دَخَنُهُ؟[۲]قَالَ: "قَوْمٌ يَسْتَنُّونَ بِغَيْرِ سُنَّتِي، وَيَهْدُونَ بِغَيْرِ هَدْيِي،[۳]تَعْرِفُ مِنْهُمْ وَتُنْكِرُ"،[۴]قُلْتُ: فَهَلْ بَعْدَ ذَلِكَ الْخَيْرِ مِنْ شَرٍّ؟[۵]قَالَ: "نَعَمْ، دُعَاةٌ عَلَى أَبْوَابِ جَهَنَّمَ،[۶]مَنْ أَجَابَهُمْ إِلَيْهَا قَذَفُوهُ فِيهَا"،[۷]قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ! صِفْهُمْ لَنَا،[۸]قَالَ: "هُمْ مِنْ جِلْدَتِنَا، وَيَتَكَلَّمُونَ بِأَلْسِنَتِنَا"،[۹]قُلْتُ: فَمَا تَأْمُرُنِي إِنْ أَدْرَكَنِي ذَلِكَ؟[۱۰]قَالَ: "تَلْزَمُ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِينَ وَإِمَامَهُمْ"،

**ترجمه:** [۱]ما عرض وکړو، د هغه خیر خیرن والی به څه وي؟ [۲]حضور ﷺ وفرمایل ماچې د کدورت خیره کړې ده هغه نه دا مراد دی، چې داسې خلق به پیدا شي چې خپل طریقه او خپل د سنت خلاف به طریقه او سنت اختیار کړي خلق به خپل د نبودلي لارې خلاف لار باندې روان کړي. او خپل د سیرت او کردار خلاف به سیرت او کردار خپل کړي. [۳]ته به په هغوئ کې دیندار هم ووینې. او بې دینه هم ما عرض وکړو. [۴]آیا د دې خیر نه پس به بله څه بدي پیښیږي. [۵]نو حضور ﷺ وفرمایل هو داسې خلق به پیدا شي. چې د دوزخ په دروازو ودریدو سره مخلوق به خپل طرف ته بلي [۶]کوم سړی چې د هغوئ بلنه قبلولو سره دوزخ طرف ته تلل غواړي. هغوئ به هغه دوزخ طرف ته ور دیکه کړي یعنی کوم سړی چې د هغوئ په دهوکه کې راتلو سره هغه ګمراهي کې اونخلي. چې د دوزخ د عذاب مستوجب وي. نو هغه به په دوزخ کې وغورځول شي. [۷]ما عرض وکړو د هغوئ باره کې وضاحت وفرمایي. هغه به کوم خلق وي. آیا مسلمانان به وي. یا غیر مسلم [۸]حضور ﷺ وفرمایل هغه به زمونږ [قوم یا زمونږد ابناء دجنس او زمونږا د ملت خلق وي او زمونږ په ژبه کې به خبري کوي [یعنی هغوئ به عربي ژبه ویونکي وي. یا دا مراد چې د هغوئ خبري به د قرآن او حدیث حوالو سره مزین او پندو نصائح سره ښائسته وي،

او په ظاهره به د هغوئ په ژبه د دين او مذهب خبري وي! خو د هغوئ زړونه به د نيکي او خير نه خالي وي ۹ما عرض وکړو ، بيا خما باره کښ ستاسو څه حکم دی، يعنی که زه هغه خلق پيداکړم نو هغه وخت ماته څه کول پکار دی، ۱۰حضور ﷺ وفرمايل کتاب وسنت باندې عمل کونکو د مسلمانانو جماعت لازم ونيسه او د هغوئ د امام اطاعت کوه يعنی د اهل سنت لار اختيار وه او د اهل سنت چې کوم امام او مقتداء وي. د هغه د طاعت او رعايت خيال ساته،

**حل اللغات**:- ۲يَسْتَنُّونَ: سنت به نه اختياروی،۳دُعَاةٌ: رابلونکی،

۱قُلْتُ: فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمْ جَمَاعَةٌ وَلَا إِمَامٌ؟ ۲قَالَ: "فَاعْتَزِلْ تِلْكَ الفِرَقَ كُلَّهَا، وَلَوْ أَنْ تَعَضَّ بِأَصْلِ شَجَرَةٍ حَتَّى يُدْرِكَكَ الْمَوْتُ وَأَنْتَ عَلَى ذَلِكَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ۳وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: قَالَ: "«يَكُونُ بَعْدِي أَئِمَّةٌ لَا يَهْتَدُونَ بِهُدَايَ، وَلَا يَسْتَنُّونَ بِسُنَّتِي، ۴وَسَيَقُومُ فِيهِمْ رِجَالٌ، قُلُوبُهُمْ قُلُوبُ الشَّيَاطِينِ فِي جُثْمَانِ إِنْسٍ "، ۵قَالَ حُذَيْفَةُ: قُلْتُ كَيْفَ أَصْنَعُ يَا رَسُولَ اللهِ! إِنْ أَدْرَكْتُ ذَلِكَ؟ ۶قَالَ: " تَسْمَعُ وَتُطِيعُ الْأَمِيرَ، وَإِنْ ضَرَبَ ظَهْرَكَ وَأَخَذَ مَالَكَ فَاسْمَعْ وَأَطِعْ»".

**ترجمه**: ۱ما عرض وکړو، که د مسلمانانو څه متفق جماعت نه وي، او نه دهغوئ څه متفقه امير او مقتداء وي، بلکي مسلمانان مختلف جماعتونو کښ منقسم وي او جدا جدا مقتداء پسي روان وي، نو هغه صورت کښ ماته څه کول پکار دی، ۲حضور ﷺ وفرمايل داسې صورت کښ تاته د دې ډلونه جداکيدل پکاردي اګر که چرې د يوي ونې بيخ کښ پناه اخستل راشي، اوپه جنګلوکي پټيدل ولي نه وي، او د دې په وجه سخت نه سخت مصائب او شدائد برداشت کول ولي نه وي، او په هغه جنګلو کښ دوښومانښو خوړلو پورې نوبت ولي رانشي، تردې چې د تنهايي حالت کښ مرګ درته راشي (بخاري . مسلم) ۳او د مسلم په يوه روايت کښ داسې دي، حضور ﷺ وفرمايل زما نه پس به داسې امام يعنی امير، بادشاه قائد او رهنما وي، چې د عقيدې فکر او علم د اعتبار نه خما په لار به نه ځي، او د کردار او عمل د اعتبار نه به خما سنت، او خما طريقه نه خپلوي. يا دا معنی ده چې هغوئ به کتاب او سنت باندې عمل نه کوي ۴او په هغه زمانه کښ به داسې خلق پيدا شي، چې شکل او بدن به يي خود سړو په شان وي، ليکن د هغوئ زړونه به د شيطانانو په شان وي، يعنی هغه خلق به فسق او ګمراهي شقاوت او سخت والي شکوک او شبهات پيداکونکی، دهوکه ورکونکی په عقل ناقص او فاسد خواهشات لرلو کښ د انسانيت ټول حدودونه به بهر ووځي، او دې اعتبار نه د هغوئ شکل وصورت دسړو په شان کيدو باوجود د هغوئ زړه او باطن به د شيطان په شان وي ۵حضرت حذيفه ﷺ وايي په دې اوريدو سره ما عرض وکړو يارسول الله که زه هغه زمانه پيداکړم. نو څه وکړم ۶حضور ﷺ وفرمايل د مسلمانانو امير او مقتداء چې څه

وایي د هغه اوره او د امیر اطاعت کوه په شرط د دې چې د هغه تعلق دځه ګناه سره نه وي، اګر که ته په ملا ووهل شي، او مال در نه په زبردستۍ واخستل شي، بیاهم اوره او اطاعت کوه.

**حل اللغات:-** ④ فَاعْتَزِلْ: جدا اوسیږه، ⑤ الفِرَقَ: د فرقة جمع ده، ډلې، ⑥ تَعَضَّ: چک لګول. ⑦ أَصْلِ: بیخ، ⑧ جُثْمَانِ: بدنونه، شکل اوصورت

**تسهیلات:**

**قوله: وَكُنْتُ أَسْأَلُهُ عَنِ الشَّرِّ:**

**دخیر او شر ځخه مراد:** په دې حدیث کښې دَ خیر لفظ نه اسلام ایمان او اطاعت مراد اخستې شوې دې او دَ شر دَ لفظ نه کفر او فتنه مراد اخستې شوې ده

**قوله: فَهَلْ بَعْدَ هَذَا الْخَيْرِ مِنْ شَرٍّ؟ قَالَ: "نَعَمْ":**

**د شر مصداق:** یعنی دَ اسلام ایمان او دَهدایت دَنور نه پس یارسول الله! اوس په دې امت باندې څه فتنه راتلې شی؟نونبی ﷺ جواب ورکړو چې او. دَ اسلام دَ دې امن او هدایت نه پس به فتنه اوشر راځی. شارحینو لیکلی دی چه دَ دغه شر نه مراد دَ حضرت عثمان دَ وخت فتنه ده په کومه کښې چه هغوی شهید کړې شوې وو.

**قوله: وَهَلْ بَعْدَ ذَلِكَ الشَّرِّ مِنْ خَيْرٍ؟ قَالَ: "نَعَمْ:**

**دخیر مصداق:** یعنی دَ دغه بدعت، ضلالت او شر فساد نه پس به دوباره بیا څه خیر راځی؟ نونبی ﷺ راته اوفرمائیل او دهغې څخه روسته به خیر راځی. علماء لیکی چه دې نه دَ حضرت عمربن عبد العزیز رحمه الله دَدور دَ امن، عدل او دَ انصاف خیرمراد دې

**قوله: وَفِيهِ دَخَنٌ:** یعنی بعضې خلق به دَ سنت تابعداری کوی او بعضې به په خپلو خواهشاتو باندې تګ کوی او په بدعاتو کښې به اخته وی.

**د مذکوره حدیث د مصداقاتو ترتیب:** ① دَاسلام او سلامتئی نه پس به دَ حضرت عثمان رضي الله عنه دَ قتل فتنه راځی.

② دَدې شر نه پس چه به کوم خیر راځی دا دَ حضرت حسن رضي الله عنه او حضرت معاویه رضي الله عنه دَ صلح طرف ته اشاره ده داصلح خو به کیږی مګر زړونه به په پوره توګه باندې صفا نه وی. څه فسادیان خلق به په مینځ کښې وی لکه چه دَخوارجو وجود وو او دَ عبد الله بن زیاد فساد وو او دَ بعضې نورو بې کاره امیرانو وجود وو.

**قوله: هُمْ مِنْ جِلْدَتِنَا، وَيَتَكَلَّمُونَ بِأَلْسِنَتِنَا:**

**د من جدتنا ځخه مراد او ددې مصداق:** یعنی هم زمونږ دَ خپلو څخه به وی دَخپل خاندان څخه به وی هم زمونږ ژبه به وائی مګر فساد به کوی. صحابی تپوس اوکړو چه بیا به مونږ

هغوی سره څه کوو جنګیږو به که پریږدو به ئی؟ حضور پاك او فرمائیل چه اهل حق سره اوسیږئی او د کور په ګوټ کښې کینئ. دا د خوارجو، روافضو او معتزلؤ د فتنو طرف ته اشاري دی

**[۵۲۸۳]د فتنو د راتلو نه مخکښې د نیکو اعمالو اختیارول**

۵۲۸۳-(۱۲)[۵] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" «بَادِرُوا بِالْأَعْمَالِ فِتَنًا كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ، [۳]يُصْبِحُ الرَّجُلُ مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا، وَيُمْسِي مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا، [۴]يَبِيعُ دِينَهُ بِعَرَضٍ مِنَ الدُّنْيَا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوهریره ﷺ وایي، چی رسول الله ﷺ وفرمایل [۲]اعمال صالحه کې تادي کوئ قبل د دې نه چې هغه فتني ظاهري شی چې د توري شپي د ټکرو په شان وي، او د هغه فتنو اثر به داوي [۳]چې سړی به په سهار کې د ایمان په حالت کې وي. او مانبام ته به کافر جوړ شي، او په مانبام کې به مؤمن وي، خو سهار کې به د کفر حالت کې پورته کیږي، [۴]او خپل دین او مذهب به د دنیا د لږ متاع په عوض کې خر خوي (مسلم)

**حل اللغات:** - ①بَادِرُوا: جلتی کوئ، ②فِتَنًا: د فتنة جمع ده او د فتنه خو معانې راځی مثلاً ازمینت، امتحان، ابتلاء،

**تسهیلات:**

**قوله: بَادِرُوا بِالْأَعْمَالِ فِتَنًا:**

**د نیکو اعمالو ترغیب:** یعنی په اعمالو کښې وړاندیوالې کوئی د فتنو د راتلو نه مخکښې مطلب دا چه د نیکو اعمالو څومره توفیق ملاویږی د هغې په اندازه سره نیك اعمال کوئی کیدې شی چه روستو ستاسو نظریات او تفکرات بدل شی او نیك اعمال اونه کړې شئ

**قوله: كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ:**

**د فتنو تشبیه د تیرو سره:** په حدیث شریف کښې ئی د فتنو نه په توري شپې سره تعبیر کړې دی وجه داده چه چاته معلومه نه ده چه هغه فتنې به کله او څنګه رابنکاره کیږی او د هغې نه به د ځان خلاصی څه صورت وی لهذا د راتلونکې فتنونه مخکښې د نیکو اعمالو په ذریعه خپل ژوند مستحکم او د مضبوط جوړولو تاکیدی حکم دې.

[۱۲] ) اخرجه مسلم فی كتاب الإيمان/باب الحث على المبادرة بالأعمال قبل تظاهر الفتن (رقم-۱۸۶ - (۱۱۸) وابوداود فی كتاب الترجل /باب فی النهی عن السعی فی الفتنة (رقم-۴۲۵۹) والترمذی فی كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ستكون فتن كقطع الليل المظلم (رقم-۲۱۹۵) وابن ماجه فی كتاب الفتن/باب ما يكون من الفتن (رقم-۳۹۵۴) واحمد فی المسند:۲/۳۰۴

**قوله: يُصْبِحُ الرَّجُلُ مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا** دَدې جملې ډير مطلبونه كيدې شي

**د حديث په مفهوم كښې مختلف اقوال:** دَ حديث دَ ظاهري الفاظو نه معلوميږي چه كله سحر شي نو انسان به په ايمان سره متصف وي يعني مسلمان به وي ليكن ماښام كيدوسره به دكفر تيارو ته رسيدلې وي پاتې شوه دا خبره چه دكفر نه څه مراد دې؟

① په حديث كښې اصل كفرمراد دې يعني هغه به حقيقتًا په كفركښې داخل شوې وي. يو كس چه سحر راپاځي نو هغه به هغه څيز حلال ګڼړي كوم چه الله تعالى حلال كړې دې او هغه څيز به حرام ګڼړي كوم چه الله تعالى حرام ګرځولې دې ليكن ماښام كيدوسره به دَ هغه ذهن، فكر اوعقيده بدله شوې وي نو هغه به حلال حرام او حرام به حلال ګڼړي دا مطلب زيات راجح دې ځكه چه په حديث الباب كښې كافردَ مؤمن په مقابله كښې راغلې دې

② كفرانِ نعمت مراد دې چه هغه به ناشكرا شي.

③ هغه به دكافرانو مشابهت اختيارونكې شي

④ هغه به دكافرانو والا كاركوي.

## [۵۳۸٤] د فتنوڅخه دلرې اوسيدو تاكيد

۵۳۸٤-(۳)[٦] ①وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②"«سَتَكُونُ فِتَنٌ، الْقَاعِدُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ، وَالْقَائِمُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْمَاشِي، وَالْمَاشِي فِيهَا خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي، ③مَنْ تَشَرَّفَ لَهَا تَسْتَشْرِفُهُ، ④فَمَنْ وَجَدَ مَلْجَأً أَوْ مَعَاذًا فَلْيَعُذْ بِهِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، ⑤وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: قَالَ: "«تَكُونُ فِتْنَةٌ، النَّائِمُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْيَقْظَانِ، وَالْيَقْظَانُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ، وَالْقَائِمُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي، ⑥فَمَنْ وَجَدَ مَلْجَأً أَوْ مَعَاذًا فَلْيَسْتَعِذْ بِهِ»".

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②ډير نزدې فتنې به پيدا شي، [يعني زر يوه غټه فتنه مخې ته راتلونكې ده، ياداچې پرله پسي يا لړ لړ وقفې سره زياتې فتنې ظاهريدونكې دي]، دې فتنو كې به ①ناست د ولاړ نه ښه وي، ②او ولاړ به د ګرځيدونكي نه ښه وي، ③او ګرځيدونكى به د منډې وهونكى [يعنى د څه سورلى په ذريعه يا پياده د زغليدونكي او زر تلونكي نه ښه وي] ③او كوم سړى چې فتنو طرف ته ګوري فتنه به هغه خپل طرف ته راخكي، ④نو كوم سړى چې دې فتنو نه د خلاصون څه ځاى ياد هغه نه د تيښتې څه لار يا پناه ګاه پيداكي، يايوداسې سړى هغه پيداكي، چې د هغه په لمن كې هغه د هغه فتنو نه نجات پيداكي، نو هغه سړي ته پكار دى، چې د هغه په ذريعه پناه حاصله كړي، كه هغه فتنو نه د تيښتې څه لار پيداكي، نو د

[۱۳] ) اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب علامات النبوة في الإسلام(رقم-۳٦۰۱) ومسلم في كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب نزول الفتن كمواقع القطر (رقم-۱۰ - (۲۸۸٦) والترمذي في كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أنه تكون فتنة القاعد فيها خير من القائم (رقم-۲۱۹٤)واحمد في المسند: ۲/۲۸٤

فتنو د ځای نه دي ووځي، يا څه داسې ځای که هغه ته معلوم وي، چې هلته به د پټيدو په وجه د هغه فتنو نه پناه پيدا شي نو هلته ورتلو سره دي پټ شي، يا که يو سړی خپلي سايي کې پناه ورکونکی پيدا شي نو هغه ته ورتلو سره دي پناه واخلي (بخاري، مسلم)

۴ او د مسلم په يوه روايت کې داسې دي، چې حضور ﷺ وفرمايل هرکله چې يوه فتنه ښکاره شي، نو هغه فتنه کې اوده سړي چې هغه دفتني نه غافل او بې خبروي، او د هغه باره کې اطلاعات نه اوري، دويښ يعنی په هغه فتني پوهيدونکی او د هغه خبر لرونکي نه به ښه وي، ويښ سړی که هغه پروت وي يا ناست وي، دولاړسړي نه به ښه وي، او په فتنه کې ولاړسړی به په هغه فتنه کې د سعي او کوشش کونکي نه ښه وي دلته د سعي لفظ دمشي يعنی د تلونکي په معنی کې دی، اود يوشي طرف ته تلل گويا د هغه شي په حق کې د سعي او کوشش کولو برابر دی، په صراح کې ليکلي دي، چې د سعي معنی وي زغليدل تادي کول، او د څه شي په حق کې محنت او عمل کول نو هغه فتنه کې سعي کونکي نه مراد هغه فتنه کې مدد او تعاون ورکول او دهغه په حق کې سعي او کوشش کول دي، ۶ نو کوم سړی چې دهغه فتني نه د تښتيدو لار يا دهغه نه د پناه ځای پيدا کي. نو هغه ته پکار دی، چې هلته تلو سره پناه حاصله کړي.

**حل اللغات:**- ① الْقَاعِدُ: ناست، ② الْمَاشِي: روان، تلونکې، ③ السَّاعِي: کوشش او محنت کونکې، ④ تَشَرَّفَ: چا چه سر ورا وچت کړودا فتنه ئی اوکتله. ⑤ مَلْجَأً: ځائ دپناه،

**تسهيلات:**

**قوله: سَتَكُونُ فِتَنٌ، الْقَاعِدُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ:**

**دفتنې څخه د لرې اوسيدو مراحل:** يعنی چه کوم سړې څومره دَ دې فتنونه لرې وی هم دومره به ښه وی.

① دَدې فتنې نه لرې ناست يوسړې دَولاړ سړی نه بهتر دې

② څوك چه ولاړدې هغه دَ تلونکی سړی نه بهتردې.

③ څوك چه تلونکې دې هغه دَ منډې وهونکی نه بهتردې

دَدې طرف ته منډې وهونکې چونکه دَتولو نه زيات فتنې ته ډيرنيژدې دې په دې وجه دَ تولو نه زيات بد دې. څوك چه څومره لرې دې هغه هم دومره بهتردې

**قوله: مَنْ تَشَرَّفَ لَهَا تَسْتَشْرِفْهُ:**

**د مذکوره جملې وضاحت:** يعنی فتنه دې خپل طرف ته ښه مائل کولو سره راکاږی. مطلب دادې چه کوم سړې په دې فتنو کښې دَمعلوماتو دَ حده پورې زړه لگوی نودا فتنې به هغه په خپله گيره کښې واخلي.

**په ګناه کښې د راښکلو اثر:** دغه شان حال د عامو ګناهونو هم دې مثلاً که زيد د زينب په باره کښې واوريدلو چې هغه ډيره ښکلې ده چې د ښانست ئې ثانى نشته خوبد چلنده هم ده اوس ددې په اوريدو سره دې ته نه دى متوجه کيدل چې دې ته په څخه طريقه ورنزدې شم او وعظ نصيحت ورته اوکرم چې زنا مه کوه الله تعالى درته حسن او جمال درکړې دې ددې شکر ادا کړه څکه چې کيدې شى شيطان په دې سوچ باندې دا زيد هغې ته ورنزدې کړى او په خپله د هغې د حسن او فد فعلى په جال کښې ګرفتار شى نو څکه چې څومره کيدې شى د ګناهونو او د فتنونو د ځايونو څخه لرې اوسيدل پکار دى

**[۵۲۸۵] دمسلمانانو خپل مينځ کښې د جګړې صورت کښې ځانله کيدل**

۵۳۸۵-(۳)[۷] [۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «إِنَّهَا سَتَكُوْنُ فِتَنٌ، أَلَا ثُمَّ تَكُوْنُ فِتَنٌ، أَلَا ثُمَّ تَكُوْنُ فِتْنَةٌ، [۳] الْقَاعِدُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْمَاشِي فِيهَا، وَالْمَاشِي فِيهَا خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي إِلَيْهَا، [۴] أَلَا فَإِذَا وَقَعَتْ فَمَنْ كَانَ لَهُ إِبِلٌ فَلْيَلْحَقْ بِإِبِلِهِ، وَمَنْ كَانَ لَهُ غَنَمٌ فَلْيَلْحَقْ بِغَنَمِهِ، وَمَنْ كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ فَلْيَلْحَقْ بِأَرْضِهِ"،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوبکره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په دې کې شک نشته. چې ډير نزدې د فتنو ظهور به کېږي يادلرى بيابه فتنې پيدا شي او ياد لرى هغه فتنو نه يوه ډيره لويه فتنه يعنى د مسلمانانو خپلو کې محاذ آرائي د خونريزي حادثه به پيښه شي. [۳] دې فتنه کې به ناست د تلونکي سړي نه ښه وي او تلونکى به هغه فتنې ته دزغليدونکى سړي نه ښه وي، [۴] نو آګاه اوسئ کله چې هغه فتنه پيښه شي، نو کوم سړي سره چې په جنګل کې اوښان وي، هغه دې د هغه اوښانو سره يوځاي شى او د چاسره چې بزې (چيلۍ) وي زمکه او مکان وغيره وي، هغه دې خپلې هغه زمکې يا هغه مکان ته لاړ شي. حاصل دا چې کوم ځاى چې هغه فتنه ښکاره شي. هلته دې نه حصاريږي. بلکې هغه ځاى پريخودلو سره چيرته لرې دې لاړ شي او د عافيت يو کونج دې ونيسي. يا دهغه فتنې نه غير متوجه کيدو سره دې خپل کارو بار کې مشغول شي.

[۱] فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ! أَرَأَيْتَ مَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ إِبِلٌ وَلَا غَنَمٌ وَلَا أَرْضٌ؟ [۲] قَالَ: " يَعْمِدُ إِلَى سَيْفِهِ فَيَدُقُّ عَلَى حَدِّهِ بِحَجَرٍ، ثُمَّ لِيَنْجُ إِنِ اسْتَطَاعَ النَّجَاءَ، [۳] اللّٰهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ؟ " ثَلَاثًا، [۴] فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ! أَرَأَيْتَ إِنْ أُكْرِهْتُ حَتَّى يُنْطَلَقَ بِي إِلَى أَحَدِ الصَّفَّيْنِ، فَضَرَبَنِي رَجُلٌ بِسَيْفِهِ أَوْ يَجِيءُ سَهْمٌ فَيَقْتُلُنِي؟ [۵] قَالَ " يَبُوءُ بِإِثْمِهِ وَإِثْمِكَ، وَيَكُوْنُ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] يو سړى په دې اوريدو سره عرض وکړو يارسول الله! ماته دا وښايې که يو سړي

[۱۱] اخرجه مسلم فى كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب نزول الفتن كمواقع القطر(رقم-۱۲ - (۲۸۸۶) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب التثبت فى الفتنة (رقم-۳۹۵۸) واحمد فى المسند:۴۸/۵

سره نه اوښان وي او نه بزي (چيلئ) وي، او نه يو ځاى يې زمکه او مکان وي چې هلته تلو سره گوشه عافيت اختيار کړي، او دهغه فتنې دځاى نه لرې شي، نو هغه ته څه کول پکار دى، [۲] حضور ﷺ وفرمايل هغه ته پکار دى، چې هغه خپلې تورې طرف ته متوجه شي او هغه دې په کاڼي سره ماته کړي يعنى دهغه سره چې څه دجنگ الات او هتيار وي هغه دې بيکاره، او ناقابل استعمال جوړ کړي، چې د هغه په زړه کې د جنگ خيال پيدا نشي او هغه د مسلمانانو د په خپل منځ کې دجنگ وجدال په فتنه کې شريك نشي. داحکم څکه دى چې په دې جنگ کې چې دواړو طرف ته مسلمانان په جنگ وي، او د يو بل خون ريزي کول وي په هغه کې شريکيدل نه دي پکار او بيا هغه سرې ته پکار دى که هغه د فتنې د ځاى نه تښتيدى شي، نو ژردى د هغه ځاى نه ووځي، چې د هغه فتنې د اثراتو نه محفوظ پاتې شي [۳] د دې نه پس حضور ﷺ وفرمايل اې الله ما ستا احکام ستا بنده گانو ته ورسول، دا الفاظ حضور ﷺ درې ځلې وفرمايل [۴] يو سړي عرض وکړو يارسول الله! ماته دا وښايې که زه مجبورولو سره يعنى په زبردستې سره جنگ کونکو دواړو فريقوکې ديو فريق په صف کې ودرول شم، او هلته زه د يو سړي تورې سره ووژل شم، يا دچا تير راتلو سره ماته ولگيږي چې ما د مرگ غيږې ته ورسوي، نو په دې صورت کې به د قاتل او مقتول څه حکم وي [۵] حضور ﷺ وفرمايل ستا هغه قاتل به دخپلې او ستاد گناه سره اونخلې. او په دوزخيانو کې به شمار کړل شي (مسلم)

**حل اللغات:-** ① فَيَدُقُّ: اودې ټکوى، ماته دې کړى، ② حَدِّهِ: تيره طرف د تورې. ③ لِيَنْجُ: تيزې تيزې منډې دې اووهى. ④ النَّجَاءَ: تيزې تيزې منډې وهل

**تسهيلات:**

**قوله: يَعْمِدُ إِلَى سَيْفِهِ فَيَدُقُّ عَلَى حَدِّهِ بِحَجَرٍ:**

**دتورې ماتولو څخه مقصود:** يعنى د خپلې تورې طرف ته متوجه کيدوسره دا په لاس کښې واخلى او د هغې تيره مخ دې په يو کاڼي باندې وهلو سره مات کړى کله چه توره ماته شي نو دا سړې به اوس څه فتنه کښې نه ورځي.

**قوله: ثُمَّ لِيَنْجُ إِنِ اسْتَطَاعَ النَّجَاءَ:**

**د مذکوره جملې مطلب:** مطلب دا دې چه که يو سړې دَدې جنگ نه ويزاره دې او زر زر جدا کيدوسره تختى مگر چامجبوره کولوسره په جنگ کښې په زور باندې ورديکه کړو او هغه اووژلې شو نودَ هغه څه حکم دې؟ نوحضورپاك اوفرمائيل چه وژونکې به دوزخ ته ځي اودا مجبوره به جنت ته ځي

**د فيما بين المسلمين د قتال په صورت کښې په دې کښې شرکت اوعدم شرکت کښې مذاهب:**

په دې حديث کښې دَمسلمانانو په خپل مينځ کښې دَ افتراق او انتشار اوږد داستان

طرف تـه اشاره ده. دَ مسلمانانو پـه خپل مینځ کښې جنګونو کښې حصه اخستو اونـه اخستو سره متعلق د عالمانو اختلاف دې

① دَبعضې صحابه کرامو مسلك دَ دې ظاهري احاديثو مطابق دې چـه پـه دغـه جنګونو کښې بالکل ځان غاړې تـه کول پکاردي دا مسلك دَحضرت ابوبکر ﷺ او ځه نورو صحابه کرامو دې دَدې مسلك تائيد دَ ټولو احاديثونه کيږي

② دويم مسلك دَحضرت عمر ﷺ اودَ هغوی پـه شان خيال لرونکو صحابه کرامو دې چه که فتنه دروازې ته راؤرسی نوبيا دَ دفاع پـه توګه جنګيدل اودفاع کول جائز دی پخپله ورتلل جائز نه دی بعضې رواياتو نه دَدې مسلك تائيد کيږي

③ دريم مسلك دَ جمهور صحابه او جمهور علماؤ دې هغه دادې چه کوم صف دَاهل حق دې دَهغې ملګرتياکولوسره دَ اهل باطل پـه مقابله کښې بـه جنګيدل پکاردی

**د دريم فريق دليل:** دَ قرآن کريم آيت دې ﴿ وَإِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا ۖ فَإِنْ بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَىٰ فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّىٰ تَفِيءَ إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ ۚ ﴾ [سورة الحجرات: ۹]

دا آيت دَدې حضراتو دليل دې. دَ صحابه کرامو پـه مينځ کښې جنګونو کښې عام صحابو ﷺ هم دَدې آيت پـه رڼاکښې دَحق ملګرتيا کړې وه.

**د صحابؤپه خپل مينځ کښې د جنګونو حيثيت:** دَحضرات صحابه کرامو ﷺ پـه مينځ کښې چـه کوم جنګونـه شوی دی هغـه دَمشاجرات پـه نوم سره مشهور دی دَدواړو طرفو نـه اجتهادی معامله وه نيتونه صفا وو جنګونه دَ هغوی پـه تقدير کښې وو

**د صحابؤپه مينځ کښې دوه جنګونه:** ① دَ حضرت علی ﷺ اوحضرت عائشه ﷺ پـه مينځ کښې جنګ جمل شوې وو.

② دَحضرت علی ﷺ اوحضرت معاويه ﷺ پـه مينځ کښې جنګ صفين وی شوې وو پـه کوم کښې چه پـه زرګونو انسانان وژلې شوی وو

**دمشاجرات وجه تسميه:** دَمشاجرات مطلب دادې چه شجر يو دې او ښاخونه جدا جدا کيدو سره تلی دی. جرړه ئی هم يو اسلام دې. مونږ لـه پکاردی چه کلمه الله تعالی دَ دغـه مقدس وينونه زمونږ لاسونه بچ کړی دی نوچه مونږ خپلې ژبې هم بچ کړو او پخپله جج او قاضی جوړيدو سره صحابه کرام دَ خپل عدالت پـه کچهرو کښې راوستلوسره اونـه دروو. لکه څنګه چه مودودی صاحب خلافت اوملوکيت کښې بې ځايـه دَ جج جوړيدو کوشش کړې دې او صحابه کرام ئی پـه خپل عدالت کښې پيش کړی دی نو پـه هغوی باندې ئی قلم چلولې دې.

**[۵۳۸۶] د فتنو په زمانه کښې د ځانه او سيدو فضيلت**

۵۳۸۶-(۳)[۸] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ- قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«يُوشِكُ أَنْ يَكُونَ خَيْرَ مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمٌ [۳] يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ وَمَوَاقِعَ الْقَطْرِ، [۴] يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو سعيد رضي الله عنه روايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] ډير نزدې داسې زمانه راتلونکې ده، چې د يو مسلمان د پاره د هغه بهترين مال به بزې (چيلئ) وي [۳] چې هغه اخستو سره غره ته يا د باران وريدو ځاى ته لاړ شي [۴] او د فتنونه په تښتيدو سره خپله لمن بچ کړي (بخاري)

**حل اللغات:** - ① يُوشِكُ: دَ افعال مقاربه نه دې دَ قريب او نزدې په معنى کښې دې ② شَعَفَ: دَ شعفة جمع ده دَغر څوکې ته وائي مراد ترې نه غارې ته کيدل دي. ③ الْقَطْر: باران.

**تسهيلات:**

**قوله: يُوشِكُ أَنْ يَكُونَ خَيْرَ مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمٌ يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ:**

**خير مال المسلم په نحوى ترکيب کښې اقوال:** ① دلته «خيرمال المسلم» منصوب دې. کوم چه د «يکون» خبر واقع شوې دې. او «غنم...» اسم دې. ددې وجې مرفوع دې.

② دبخارى د اصيلى په نسخه کښې ددې عکس دې. يعنى «خير» د اسم په وجه مرفوع دې. او «غنماً» منصوب دې. ځکه چه د «يکون» دپاره خبر واقع شوې دې.

③ ابن مالك فرمائى چه دلته «خير» او «غنم» دواړه مبتدا او خبر دى. او مرفوع هم ونيلى شى. په دې صورت کښې به د «يکون» ضمير، ضميرشان وى.

حافظ رحمه الله فرمائى چه دا نحوى توجيه خو کيدې شى. خوداسې روايت منقول نه دى. (١٦)

**قوله: وَمَوَاقِعَ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ:**

**د غنم د تخصيص وجه:** دچيلئ تخصيص ددې وجې شوې دې چه چيلئ يو داسې ځناور دې. چه «سهل الانقياد» وى. په دې کښې عاجزى وى. چه دې سره تعلق ساتى. په ده کښې به عاجزى پيدا کيږى. اوچيلئ په بوتلوکښې هم سپکه ده. اوانسان که دا اوچته کړى. نو غرته لاړ شى. اوخلوت نشينى اختيارولې شى. بيا په چيلئ کښې خصوصى خبره دا ده. چه

---

(١٥) اخرجه البخارى فى كتاب الإيمان/باب: من الدين الفرار من الفتن (رقم-١٩) وابوداود فى كتاب الأدب/باب فى قتل الذر (رقم-٥٢٦٧) والنسائى فى كتاب الإيمان وشرائعه/باب الفرار بالدين من الفتن (رقم-٥٠٣٦) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب العزلة (رقم-٣٩٨٠) واحمد فى المسند:٦/٢

(١٦) المصدرالسابق)_

دا «کثیرالمنفعة»ده.او «قلیل المؤنة»ده.که دې دپاره ته د دانې او ګیاه انتظام اونکړې شي.نو هم دا اخواه دیخواه ګرځي.او ګذاره کوی.بیا ددې پې د غذا او د مشروب دواړه کار ورکوی. اوددې ویخته په جامو کښې په کارراځی .ددې نه علاوه د چیلۍ نسل هم زیات وی.دغذا دپاره دیوې چیلۍ ذبح کول هم آسان دی.په خلاف د اوښ .ځکه چه په دې کښې آسانی نشته.([17])

**قوله: يَفِرُّبِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ:**

**د بدینه من الفتن ترکیب:** «بدینه» کښې «باء» سببیه ده.او «من الفتن» کښې «من» ابتدائیه دي.([18])او مطلب دا دې.چه کوم کس د دین د حفاظت دپاره اوتختی.

**د فتن څه مراد:** دا خبره یاد ساتل پکار دی.چه د «فتن» نه مراد په عرف د شریعت کښې دادې.چه د دینی امورو مخالفت عام شی.اود دین حفاظت ګران شي. اوددې اسباب او ذرائع مفقود شي.نو کمزورو ته اجازت دې.چه هغوی د دین د حفاظت دپاره اوتختی.([19])

**تنبیه:** دا خبره ضرور په ذهن کښې کینوئ.چه دلته د رهبانیت تعلیم نشی ورکولې .ځکه چه دا رهبانیت خو یو بدعت وو.کوم چه نصاراؤ پخپله ایجاد کړې وو.خو بیا ئې د هغې صحیح حق ادا نکړلو، .اوهغه ئې پوره نکړې شو.

رهبانیت په حقیقت کښې د حضرات انبیاء علیهم السلام د اسوه حسنه نه خلاف دې. پیغمبرانو علیهم السلام به په آبادوکښې ژوند تیرول.اوپه آبادوکښې به اوسیدل.اودخلقو د اصلاح کوشش به ئې کول.هغوی نه دځنګل لار اختیار کړې وه .اونه ئې د غر سوکه خپل د استوګنې ځائې جوړ کړې وو.

بیا دا رهباینیت د تخلیق عالم د حکمت سره هم منافی دې.الله تعالی چه انسان پیدا کړې دې. نودې ئې د تجرد ژوند تیرولو اود مخلوق خدا نه د جدا اوسیدو دپاره نه دې پیدا کړې. ځکه چه په دې کښې د نسل انقطاع ده.اونظام عالم درهم برهم کول دی.نو رهبانیت کوم چه نصاری د بدعت په صورت کښې ایجاد کړې وو.د اسلام په نیز خوښ نه دې.دلته چه څه ذکر کولې شی.نو دا وختی او د هنګامی صورت په مناسبت سره دی.که حالات داسې راشی.چه سړې په آبادئ کښې دخپل دین حفاظت نشی کولې.نو بیا ده ته دعذر او مجبورئ په وجه اجازت ورکړې شوې دې.چه هغه د دین د حفاظت دپاره «شعف الجبال»یا«مواقع القطر»طرف ته لاړ شی.

---

[17]) امداد الباری(۱۴/۵۲۱)_
[18]) فتح الباری(۱۱/۶۹)_
[19]) درس بخاری از شیخ الاسلام علامه عثمانی رحمه الله (۱/۱۸۱)_

**دفتنې په وخت کښې د عزلت اوجلوت دوه صورتونه:** ددې نه پس پوهه شئ.چه په حديث باب کښې په دې خبره استدلال شوې دې. چه عزلت او خلوت نشنی د جلوت او اختلاط نه غوره اوبهتره ده.

① که فتنې واقع کیږی.اويوسړې د فتنو په لرې کولو قادر نه وی.نو دده په ذمه د حالاتو په مناسبت سره د فتنو مغلوبه کول او لرې کول فرض عين يا فرض کفايه ده.

②که سړې د هغې په مغلوبه کولوباندې قادر نه وی.نودهغه دپاره تنهائی او خانلوالې اختيارول غوره او افضل دی.([20])

**دفتنې څخه بغير به عامو حالاتو کښې د عزلت اوجلوت په افضليت کښې مذاهب:**

① امام شافعی اود نورو عالمانو ﷺ دا رائې ده.

② دويمه ډله په دې ده.چه عزلت او خانلوالې غوره دې.

**داول فريق دلائل:** ① دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه مرفوعاً نقل دی.((المؤمن الذى يخالط الناس ويصبر على أذاهم أعظم أجراً من المؤمن الذى لايخالط الناس ولايصبر على آذاهم))([21]) يعنی چه په خلقو کښې اوسيدل.اودهغوی تکليف زغمل.اودهغوی اصلاح کول،دا غوره دی.ددې خبرې نه چه انسان تنهائی اختيار کړی.

② په جلوت کښې د مسلمانانو جمع ډيره وی.او د ډيرو فوائدو د حاصلولوموقع به ورته ملاؤ شی.او ډيرداسې د نيکئ کارونه دی.کوم چه په تنهائې او خانلوالی کښې ګران وی.([22])

**ددويم فريق دليل:**①چه انسان خانله والې اختيار کړی.نوددې په وجه دې د ډيرو ګناهونو نه نجات بيا مومی.د غلط نظرنه بچ شی.د غيبت، الزام ،اوغلطوخبرو کولونه ورته حفاظت ملاؤ شی.دغه شان د ګناه په مجلسونوکښې شرکت او ددې د زياتولود ګناه نه بچ کيږی.يعنی د ګناهګارانو د ډلې د زيادت سبب نه ګرځی.([23])

**معتدل قول اودې کښې د عالمانواقوال:** ① علامه نووی رحمه الله فرمائی.((والمختار تفضيل الخلطة لمن لايغلب على ظنه الوقوع فى المعاصى))([24])يعنی چه په خپل دين کښې ورته دنقصان

---

[20]) عمدة القاری(۱۶۳\۱۱)_

[21]) سنن ابن ماجه كتاب الفتن باب الصبر على البلاء رقم ۴۰۴۳ وجامع الترمذى كتاب صفة القيامة باب ۵۵ رقم ۲۵۰۷)_

[22]) المصدرالسابق)_

[23]) عمدة القاری(۱۶۳\۱۱)_

[24]) فتح البارى(۴۳\۱۳) كتاب الفتن باب التعرب فى الفتنة)_

ویره نه وی.نو اختلاط غوره او افضل دي.

② علامه کرماني رحمه الله فرمائی.«والمختار فی عهدنا تفضیل الإنعزال لندور خلو المحافل من المعاصی»[۲۵]یعنی زمونږ په زمانه کښې عزلت اوخانلوالي غوره اوافضل دي.څکه چه عام مجالس ډیر شاذ او نادر د ګناهونو او معاصی نه خالی وی.

③ علامه عینی رحمه الله فرمائی.«أنا موافق له فیما قال فإن الإختلاط مع الناس فی هذا الزمان لا یجلب إلا الشرور»[۲۶]والله أعلم وعلمه أتم وأحکم.

**قوله: مَوَاقِعَ الْقَطْرِ:**

**دمواقع القطر څخه مراد:** په غرونوباندې په عام توګه باران کیږی یعنی د بارانونو د پریوتلو ځایونه، دا تعمیم بعدتخصیص دې په دې حدیث کښې هم د فتنو نه د ځان اومال بچ کولو صورت هم دغه خودلې دې چه د عامو خلقو نه ځان غاړې ته کړې شی

**[۵۳۸۷] نبی علیه السلام ته د فتنو متشکل کیدل**

۵۳۸۷-(۷)[۹] [۱]وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ[۲]: «أَشْرَفَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَلَى أُطُمٍ مِنْ آطَامِ الْمَدِينَةِ، [۳]فَقَالَ: "هَلْ تَرَوْنَ مَا أَرَى؟" [۴]قَالُوا: لَا. [۵]قَالَ: "فَإِنِّي لَأَرَى الْفِتَنَ تَقَعُ خِلَالَ بُيُوتِكُمْ كَوَقْعِ الْمَطَرِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]و حضرت اسامه ابن زید وایي، [۲]یوه ورځ رسول الله ﷺ د مدینې په یو بلند مقام غونډې باندې وختی او بیا صحابه رضی الله عنهم مخاطب کولو سره [۳]وې فرمایل آیا تاسو هغه شی وینې کوم چې زه یې وینم [۴]صحابه ووجواب ورکړو چې نه. [۵]نو حضور ﷺ وفرمایل، حقیقت دادی چې زه هغه فتنې وینم چې ستاسو دکورونو په منځ کې داسې وریږي، څرنګه چې باران وریږي. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① أُطُم: امفرد دې دَدې جمع آطام ده اوچت غر او اوچتې قلعې ته وائی ② خِلَالَ: مینځ. یعنی کورونو کښې دننه

**تسهیلات:**

**قوله: أَشْرَفَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى أُطُمٍ مِنْ آطَامِ الْمَدِينَةِ**

**د اطام څخه مراد:** دلته دا لفظ د یوخاص عمارت د پاره وئیلې شوې دې. د عربو قبائلو دستور وو چه اوس هم د صوبه سرحد د قبائلو دستور دې چه یو اوچت کور جوړوی. په

[۲۵]) شرح کرمانی (۱۱۱/۱۱)_
[۲۶]) عمدة القاری (۱۶۳/۱۱)_
[۲۷]) اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب آطام المدینة (رقم-۱۸۷۸) ومسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب نزول الفتن کمواقع القطر (رقم-۹ - (۲۸۸۵) واحمد فی المسند:۲۰۰/۵

هغې کښې واړه واړه سوري وی. دا اوچت کور دَ مورچو په توګه استعماليږی. دَ لرې نه دښمن ښکاری نود دغه سورو نه په هغه باندې ډزې کوی. دې ته په پښتو ژبه کښې شنګرئی وائی دَدې پورتنئی حصه دَ پټکی په شان وی.

شيخ عبد الحق رحمه الله دَدې عمارت تعارف اشعة اللمعات کښې داسې کړې دې.

"قصر بلند و بر حصن که بسنگ بنا کرده باشد" يعنی اوچته مانړئی او هره هغه قلعه چه دَ کانړو نه جوړه شوې وی. دَمدينې منورې په اطرافو کښې يهوديانو داقسم کورونه جوړ کړی وو. حضورپاك يوه ورځ دَ دغه قلعه ګانو په يو چت باندې لاړو او پوره مدينه ئې اوکتله. [اشعة اللمعات]

**قوله: فَإِنِّي لَأَرَى الْفِتَنَ تَقَعُ خِلَالَ بُيُوتِكُمْ كَوَقْعِ الْمَطَرِ:**

**نبی عليه السلام ته دفتنو ښکاره کيدل:** يعنی په کورونو کښې دننه داسې فتنې وينم لکه څنګه چه تيز باران وی يعنی په کثرت سره به فتنې راځی. حضورپاك ته الله تعالی دَ معجزه په توګه دَمستقبل ټولې فتنې اوخودلې.

**[۵۲۸۸] دَقريشو دځو هلكانو په وجه دامت دهلاكيدو پيشنګوئی**

۵۲۸۸-(۲۸)[۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«هَلَكَةُ أُمَّتِي عَلَى يَدَيْ غِلْمَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وی، يوه ورځ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل [۲] ځماد امت هلاکت به د قريشو د ځو ځلميانو د لاسه وي.

**حل اللغات:** - ① غِلْمَةٍ: دَ غلام جمع ده کم عمر لونډان (هلكان).

**تسهيلات:**

**قوله: هَلَكَةُ أُمَّتِي عَلَى يَدَيْ غِلْمَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ:**

**د هلکان څخه مراد:** دې نه مراد هم هغه واقعات دی چه دَ صحابه کرامو په دورکښې شوی وې لهذا دَامتی نه مراد دَ صحابه کرامو جماعت دې. هم دَ دغه کم عقل هلكانو دَ لاسه حضرت عثمان حضرت علی او حضرت حسن و حسين رضی الله عنهم شهيدان شوی وو حالانکه هغوی چه دَدې امت په خپله زمانه کښې دَ ټولو نه غوره خلق وو. يزيد، عبيد الله بن زيادو سليمان بن عبد الملك، فاسقان او دَدې قسم نور ناتجربه کار کم عمره هلكانو دَدې امت دَ ټولو نه ښه خلق اووژل.

[۲۸] ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب علامات النبوة فی الإسلام (رقم-۳۶۰۵) واحمد فی المسند: ۲۸۸/۲

## [۵۲۸۹]د قیامت پنځه ورې نښې

۵۲۸۹-(۳)[۱۱] [۱]وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]«يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ، وَيُقْبَضُ الْعِلْمُ، وَتَظْهَرُ الْفِتَنُ، وَيُلْقَى الشُّحُّ، وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ" [۳]قَالُوا: وَمَا الْهَرْجُ؟ قَالَ: "الْقَتْلُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوهریره ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]هغه وخت راتلونکی دی کله چې زماني به يوبل ته نږدې شي، علم به پورته کړل شي، فتني به رابنکاره شي، په سينو کي به بخل واچول شي او هرج به زيات شي. [۳]صحابه ﷺ په دي اوريدو سره عرض وکړو، چې هرج څه څيز دی حضور ﷺ وفرمايل قتل (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① الشُّحُّ: بخل، شومتيا، ② الْهَرْجُ: فتنه، فساد قتلونو اوګډوډ وينې تونيدلو کښې اخته کيدو ته الهرج وائي.

**تسهيلات:**

**قوله: وَحَتَّى يُقْبَضَ الْعِلْمُ:**

**دعلم قبض کيدل:** يعنی علم دين اوعلم دَ شريعت به اوچت کړې شي دَدې صورت به داوی چه لوئی لوئی علماء به دَ مرګ په ذريعه سره اوچت کړې شی

**قوله: وَيَتَقَارَبَ الزَّمَانُ:**

**دتقارب الزمان په مفهوم کښې درې اقوال:** ① فاصلې به نيزدې شی. دَ کال پيدل سفربه په ګهينټو جهازکښې کولې شی

② يعنی زمانه به قيامت سره نيزدې شی

③ کال به دَمياشتې ځائی له راشی مياشت دَ هفتې ځائی له او هفته دَ ورځې ځائی له او ورځ به دَ يوبځری ځائی له راشی.

**قوله: وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ وَهُوَ الْقَتْلُ:**

**د مرګونوزياتيدل:** په ماضی قريب کښې هم ددې نمونه ملاويږی. تاسو ګوری په پاکستان اوپه افغانستان کښې د دهماکو کثرت وو. يوسړې به د کور څخه روغ رمټ اووتلو اوپه بم کښې به مړشو. د پاکستان د اعداد او شمار مطابق په پاکستان کښې اوويا زره کسان مړه شوی دی اوافغانستان کښې خو د امريکې د بمبارۍ اوهلته په عوامی ځايونو کښې د بمونو په خلاصيدو سره د مرګونو شمار ددې څخه هم زيات دې. اوپته نشته چې قيامت ته نزدې به بيا د مرګونو سلسله څومره زياته وی.

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب العلم/باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس (رقم-۸۵)ومسلم فی کتاب القدر/باب رفع العلم وقبضه وظهور الجهل والفتن فی آخر الزمان(رقم-۱۱ - (۱۵۷)وابوداود فی کتاب الترجل /باب ذکر الفتن ودلائلها(رقم-۴۲۵۵) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب ذهاب القرآن والعلم (رقم-۴۰۵۲) واحمد فی المسند:۴۰۲/۱

## [۵۳۹۰] قاتل او مقتول دواړه په اور کښې

۵۳۹۰ -(۳۰)[۱۳] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتَّى يَأْتِيَ عَلَى النَّاسِ يَوْمٌ لَا يَدْرِي الْقَاتِلُ فِيمَ قَتَلَ؟ وَلَا الْمَقْتُولُ فِيمَ قُتِلَ؟ " [۳] فَقِيلَ: كَيْفَ يَكُونُ ذَلِكَ؟ [۴] قَالَ: "الْهَرْجُ، الْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] قسم دی په هغه پاك ذات چې د هغه په لاس کې ځما ساه ده پوره دنيا به هغه وخت پورې نه فنا کېږي. ترڅو پورې چې خلقو باندې داسې ورځ يعنی بدامنې او انتشار او د فتنې د شدت او فساد شدت انتهاء نه رك هغه دور را نشي چې په هغه کې به نه قاتل ته دا معلومه وي. چې هغه مقتول ولې قتل کی، اونه به مقتول ته يا د هغه ورثاء او متعلقينو ته به دا معلومه وي چې هغه ولې قتل شوی دی [۳] پوښتنه وشوه چې داسې به ولې وي يعنی د دې وجه به څه وي، چې د قتل سبب نه قاتل ته معلوم او نه مقتول ته معلوم وی [۴] حضور ﷺ وفرمايل د هرج په سبب، او قاتل او مقتول دواړه به دوزخ ته ځي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْهَرْجُ: فتنه، فساد قتلونو اوګډوډ وينې توئيدلو کښې اخته کيدو ته الهرج وائی

**تسهيلات: قوله:** الْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ

**دمقتول د جنهمی کیدو وجه:** قاتل خو به دَقتل دَ وجې نه دوزخ ته لاړشی ليکن مقتول به ولې دوزخ ته ځی؟ نو دَدې وضاحت هم په احاديثو کښې دې چه دَ مقتول پخه اراده وه چه زه قاتل قتل کرم مګر قاتل په قتل کښې رومبې والې او کړو لهذا مقتول به په خپل غلط عزم او ارادې سره دوزخ ته ځی.

## [۵۳۹۱] دَ فتنو په ماحول کښې دَ عبادت فضيلت

۵۳۹۱ -(۳۱)[۱۴] [۱] وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [۲] «الْعِبَادَةُ فِي الْهَرْجِ كَهِجْرَةٍ إِلَيَّ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت معقل بن يسار رضی الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د فتنې په زمانه کې او د مسلمانانو په خپل منځ کې دجګړو او قتل وقتال په وخت کې په پوره استقامت او مداومت سره په دين باندې دقائم اوسيدلو اود عبادت او د نيکي کولو ثواب ماطرف ته دهجرت کولو د ثواب په شان دی (مسلم)

[۳۰]) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر الرجل. فيتمنى أن يكون مكان الميت من البلاء (رقم-۵۶ - (۲۹۰۸)

[۳۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب فضل العبادة فی الهرج (رقم-۱۳۰ - (۲۹۴۸) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الهرج والعبادة فيه (رقم-۲۲۰۱) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب الوقوف عند الشبهات (رقم-۳۹۸۵) واحمد فی المسند:۲۵/۵

**تسهيلات:**

**قوله: العِبَادَةُ فِي الهَرْجِ كَهِجْرَةٍ إِلَيَّ:**

**دفتنو په زمانه کښې دعبادت عظمت:** يعنې دَ فتنو په دورکښې او دَ قتلونو په زمانه کښې دَ قتل نه تختيدونکې او عبادت کښې مشغوليدونکې به دومره لوئې ثواب حاصل کړې لکه څنګه چه دَ فتح مکه نه مخکښې دَمکې نه مدينې طرف ته هجرت کولو کښې لوئې ثواب وو په دې حديث کښې دَ فتنو په زمانه کښې دَ فتنونه جدا کيدو سره خپل عبادت کښې دَمشغوليدو ترغيب ورکړې شوې دې.

**[٥٢٩٢] دهر راتلونکې دور د مخکنې دورڅخه خرابيدل**

٥٢٩٢-(٣)[١٣] [١] وَعَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ عَدِيٍّ، قَالَ[٢]: «أَتَيْنَا أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- فَشَكَوْنَا إِلَيْهِ مَا نَلْقَى مِنَ الْحَجَّاجِ،[٣] فَقَالَ: "اصْبِرُوا، فَإِنَّهُ لَا يَأْتِي عَلَيْكُمْ زَمَانٌ إِلَّا الَّذِي بَعْدَهُ أَشَرُّ مِنْهُ حَتَّى تَلْقَوْا رَبَّكُمْ".[٤] سَمِعْتُهُ مِنْ نَبِيِّكُمْ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت زبير ابن عدى تابعي وايي [٢] يوه ورځ مونږ خلق د حضرت انس رضي الله عنه په خدمت کې حاضرشو، او هغه ته مو د حجاج ابن يوسف د مظالمو او ايذا رسانيو شکايت وکې [٣] هغه وفرمايل صبر کوئ، او د ضبط او تحمل نه کار اخلئ، ځکه چې آئنده کومه زمانه راځي، هغه به د تيري زماني نه بدتره وي ،تاسو ته څه معلومه ده. چې راتلونکې زمانه کې به څرنګه حکمرانان او عمال وي، چې شايد د حجاج نه به هم زيات ظالم او جابر ثابت شي، ځکه تاسو د حجاج په مظالمو او ايذاء رسانيو باندې صبر کوي، تردې چې تاسو د آخرت په ورځ دخپل پروردګار سره ملاقات وکې، او بيا تاسو وګورئ چې ستاسو پروردګار ستاسو ظالمان په څرنګه عذاب کې مبتلا کوي، [٤] دا اخبره ماستاسو د پيغمبر صلى الله عليه وسلم نه اوريدلې ده. (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله: فَشَكَوْنَا إِلَيْهِ مَا نَلْقَى مِنَ الْحَجَّاجِ:**

**دحجاج څخه مراد:** دې څخه حجاج بن يوسف ثقفى مراددې حجاج دې دَ عبدالملك بن مروان د طرفه ګورنروو روستو بيا پخپله بادشاه جوړشو دَ بيت الله محاصره کولو سره ئې په هغې باندې په منجنيق ګانړې ورول دَ بيت الله پردې اوسوزيدې. بيائې حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه شهيد کړو. په آخره کښې ئې سعيدبن جبير رضي الله عنه اووژلو.

**دحجاج ظلمونه:** حجاج دَدې امت يودير لوئې ظالم تيرشوې دې. چاچه يو لاکه او شل زره انسانان بې ګناه ترلوسره قتل کړې دې. په جنګونو کښې وژلې شوې دَدې نه علاوه دې.

[٣٢] ) اخرجه البخاري في كتاب الفتن/باب: لا يأتي زمان إلا الذي بعده شر منه (رقم-٧٠٦٨) واحمد في المسند:١٧٩/٣

**د پيدائش په وخت د پيغ په حالي دچيلي شکل**: د پيدائش په وخت ئې د مور پيشي نه شکل شيطان د هغه مور ته وښيل په ده باندې د چيلئي وينه اوځکه مورئې هم داسې اوکړه نوهم د هغه وخت نه د وينې شوقين شو وئيل به ئې چه خوراك هغه وخت مزه نه راكوي تركومې چه د دې نه مخکښې قتل اونه کړم

**دحجاج مرګ**: بيا بيمارشو په خيټه کښې ئې چينجي اوشو خپله خيټه به ئې وهله يا به ئې اور ته نيزدې کوله دې د پاره چه د هغه د چينجو ټکونه ورکول بند شي يو سړي ئې په جمات کښې صرف په دې وجه ذبح کړو چه هغه ولې په جمات کښې اوده کيږي

**دحجاج د جنازې موقع**: د مرګ نه پس حضرت حسن بصري رحمه الله ئې د جنازې مونځ اوکړو هغه فرمائيلي چه هغه د مرګ په وخت د الله تعالى نه زبردسته معافي غوښتلې ده څه لرې ده چه معاف کړې شي. د ډيرو صحابه کرامو رضي الله عنهم قاتل دې

**قوله**: فَإِنَّهُ لَا يَأْتِي عَلَيْكُمْ زَمَانٌ إِلَّا الَّذِي بَعْدَهُ أَشَرُّ مِنْهُ:

**دراتلونکي حکمران د مخکني نه بدتر کيدل**: په دې حديث کښې حضرت انس رضي الله عنه د خلقو په شکايت باندې هم دغه فرمائي چه صبر کوئي ځکه چه هريوراتلونکي بادشاه د مخکيني نه بدتروي وئيلې شي چه ابومسلم خراساني د دې نه زيات قتلونه کړي دي مګر حجاج زيات شرير وو په حديث کښې هغه د مبير يعني د هلاکو په نوم باندې ياد کړې شوې دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۲۹۳] د هر فتنه ذکر باره کښې د نبي عليه السلام پيشنګوئي**

> (۳)[۱۵] [۱] «عَنْ حُذَيْفَةَ - رضي الله عنه - قَالَ[۲]: وَاللَّهِ مَا أَدْرِي أَنَسِيَ أَصْحَابِي أَمْ تَنَاسَوْا؟[۳] وَاللَّهِ مَا تَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ تَعَالَى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ قَائِدِ فِتْنَةٍ إِلَى أَنْ تَنْقَضِيَ الدُّنْيَا يَبْلُغُ مَنْ مَعَهُ " ثَلَاثَمِائَةٍ فَصَاعِدًا " [۴] إِلَّا قَدْ سَمَّاهُ لَنَا بِاسْمِهِ وَاسْمِ أَبِيهِ وَاسْمِ قَبِيلَتِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] حضرت حذيفه رضي الله عنه وايي، [۲] زه په الله قسم اخستو سره وايم چې ماته نه ده معلومه چې خما دا ملګري يعني صحابه کرام نه هير شوي دي، يا هير خو تري نه دي خو د خپل بعضې مصلحتونو په وجه داسې ظاهر وي لکه چې هغوئ هيرکړي دي، [۳] قسم په الله حضور صلى الله عليه وسلم هيڅ داسې يوفتنه بازد ذکر کولو نه نه وو پريښې چې ددنيا دختميدو پورې پيدا کيدونکې دي او د هغه د تابعدارو تعداد ددرې سوه پورې يادرې سوه نه زيات پورې وي، [۴] حضور صلى الله عليه وسلم د هرفتنه بازد ذکر کولوپه وخت مونږ ته د هغه او د هغه د پلار او د هغه د قبيلې پورې نوم ښودلې وو (ابوداؤد)

**حل اللغات**: - ① فَصَاعِدًا: يا ددې نه زيات.

---

[۳] ) اخرجه ابوداود في كتاب الترجل /باب ذكر الفتن ودلائلها (رقم-۴۲۴۳)

**تسهيلات:**

**توله:** وَاللهِ مَا أَدْرِي أَنَسِيَ أَصْحَابِي أَمْ تَنَاسَوْا؟:

**د مذكوره جملې مطلب:** يعنى والله زه نه شم وئيلې چه زمونږ ملګرو د دې قائدينو نومونه هير كړى دى او كه د څه مصلحت په وجه باندې خپله هيره ښكاره كوى يعنى د دې په ښكاره كولو كښې فتنه ګڼړى ځكه چې نومونه نه ښكاره كوى

**توله:** مَا تَرَكَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مِنْ قَائِدِ فِتْنَةٍ إِلَى أَنْ تَنْقَضِيَ الدُّنْيَا:

**د قيامته پورې د فتنه ګر ليډرانو ځودل:** يعنى قيامت به ترهغه وخته پورې نه راځى تركومې پورې چه لوئى لوئى فساديان او دَ فتنومشران رانښكاره شوې نه وى چنانچه حضورپاك دَ قيامته پورې راتلونكو دَ فتنو دَمشرانو ذكر كړې دې

**توله:** يَبْلُغُ مَنْ مَعَهُ "ثَلَاثَمِائَةٍ فَصَاعِدًا:

**د فتنګرو فساديانو د تابعدارو شمار:** دَ دغه فتنو خورونكو مشرانونه به هريو سره كم نه كم درې سوا كسان وى ځكه چه دَ دريو سوو تعداد كثير مقداردې. په كومو سره چه به دَ دغه فتنې دَ مشر فتنه په آسانئى سره ترقى كوى. كه دَ يوفتنه خورونكى دَ تابعدارانو شمير دَدې نه كم وى نو هغه به هم دَ فتنې مشر وى مګر په شرارت اوفسادكښې به دومره طاقتورنه وى څومره چه به دَ دريو سوو كسانو مشر وى په دې وجه په حديث كښې دَدريو سوو ذكركړې شوې دې. حضورپاك نوم په نوم خودلى وو مګر دَمصلحت دَ وجې ئې روستو راتلونكو نومونه وانخستل.

**د فتنګرو عام مصداق:** دَ ګمراهئى اوبدعتونو طرف ته رابلونكى لوئى لوئى ليډران به كم نه كم درې سوا وى. بيا دَهغوى څه خاص تعين نشته دې دا ليډران به دَعلماء سوء او عامو خلقو دواړونه وى چنانچه څومره باطل فرقې چه دې وخت كښې دى دَهغوى يوبانى او قائد تيرشوې دې لكه قاديانى، پرويزى، ذكرى، آغاخانى، بريلوى. دهريه او رافضى وغيره وغيره

**[٥٣٩٤] دامت په خپل مينځ كښې د قتل قتال شروع كيدو پيشنګوئى**

٥٣٩٤-(٢٤)[١٢] ① وَعَنْ ثَوْبَانَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «إِنَّمَا أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي الْأَئِمَّةَ الْمُضِلِّينَ، ③ وَإِذَا وُضِعَ السَّيْفُ فِي أُمَّتِي لَمْ يُرْفَعْ عَنْهُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

[24]) اخرجه ابوداود فى كتاب الترجل /باب ذكر الفتن ودلائلها(رقم-٤٢٥٢) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الأئمة المضلين (رقم-٢٢٢٩)وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب ما يكون من الفتن (رقم-٣٩٥٢) واحمد فى المسند: ٥/٢٧٨

**ترجمه:** [۱] او حضرت ثوبان ﷜ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] حقيقت دا دى چې زه د خپل امت په حق کې د کومو خلقو نه زيات ويريږم، هغه ګمراه کونکى امامان دى. [۳] يادلري هر کله چې خماپه امت کې يو وار توره چليدل شروع شي، نو بيا به تر قيامته پورې نه بنديږي (ابو داؤد)

**حل اللغات:** - ① ائمه د امام جمع ده او امام د قوم او د جماعت مشر او پيشوا او هغه سړى ته وائى چه خلق د خپل قول او فعل يا د خپلې عقيدې د اتباع طرف ته راغواړى ② اَلْمُضِلِّيْنَ: ګمراه کونکى.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّمَا أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي الْأَئِمَّةَ الْمُضِلِّينَ:

**دمضلين څخه مراد:** د مضلين څخه مراد اهل بدعت دى يا داسې ذمه دار خلق مراد دى کوم چه په فسق او فجور کښې اخته دى. ددې حديث څخه معلومه شوه چې مسلمانانو لره د اصلاح او تباهئ طرف ته بوتلونکې اصل څيز قيادت او مشرى ده.

**قوله:** وَإِذَا وُضِعَ السَّيْفُ فِي أُمَّتِي لَمْ يُرْفَعْ عَنْهُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ:

**د وضع السيف مفهوم:** چه کله په دوؤ ډلو کښې اختلاف پيدا شى او دواړه ډلې دغه اختلاف لره په خپل مينځ کښې د مصالحت په ذريعه په افهام او تفهيم سره د حل کولو په ځائ د تورې په زور سره ختمول غواړى نو په دغه جنګ کښې چه کومې فتنې راؤچتيږى هغه به د قيامته پورې يخې نه شى. او مسلمانان به چرته نا چرته يو بل سره جنګيږى په دې وجه اهل علم او مؤمنان دې په خپل مينځ کښې د اختلاف کولو په صورت کښې خيال کوى چه چرته د دې حديث مصداق خو نه جوړيږى.

**[۵۳۹۵] د خلافت راشده د مودې پيشنګوئى**

۵۳۹۵ -(۲۵)[۱۷] [۱] وَعَنْ سَفِينَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " [۲] «الْخِلَافَةُ ثَلَاثُونَ سَنَةً، ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا» ". [۳] ثُمَّ يَقُولُ سَفِينَةُ: أَمْسِكْ، خِلَافَةَ أَبِي بَكْرٍ سَنَتَيْنِ، وَخِلَافَةَ عُمَرَ عَشَرَةً، وَعُثْمَانَ اثْنَتَيْ عَشَرَةَ، وَعَلِيٍّ سِتَّةً. رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] وحضرت سفينه ﷜ چې دحضور ﷺ ازاد کرده غلام وو وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] د خلافت زمانه به ديرش کاله وي دي نه پس به خلافت بادشاهت کې بدل شي [۳] حضرت سفينه دا حديث بيانولو نه پس راوي ته يا عام خلق مخاطب کولو سره او ويل چې حساب کولو سره وګورى حضور ﷺ چې د ديرش کالو دومره زمانه بيان فرمايلي ده هغه داسې ده چې د حضرت ابوبکر ﷜ د خلافت زمانه دوه کاله د حضرت

[۲۵]) اخرجه ابوداود فى كتاب الترجل /باب ذكر الفتن ودلائلها(رقم-۴۲۴۶) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى الخلافة (رقم-۲۲۲۶) واحمد فى المسند: ۵/۲۲۰

عمر ﷺ دخلافت زمانه لس كاله دحضرت عثمان دخلافت زمانه دولس كاله اودحضرت علي ﷺ دخلافت زمانه شپږ كاله وه (احمد ترمذي ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① مُلْكًا: خلافت او بادشاهت. ② أَمْسِكْ: اوشميره او محفوظ ئې كړه

**تسهيلات:**

**قوله: الْخِلَافَةُ ثَلَاثُونَ سَنَةً، ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا:**

حضرت سفينه ﷺ دَ رسول الله ﷺ غلام دې. هغه دلته په شمير كښې دَ كالونو ذكر كړې دې اودَ مياشتوذكرئې نه دې كړې

**دخلفاء راشدين د خلافت موده:** ① دابوبكررضى الله عنه دخلافت موده دوه كاله درې مياشتې او لس ورځې وه.

② دخلافت فاروقى موده لس كاله شپږ مياشتې اته ورځې وه.

③ دخلافت عثمانى موده يوولس كاله يوولس مياشتې نهه ورځې وه

④ د خلافت حيدرى موده څلوركاله نهه مياشتې او اووه ورځې وه

بعضې حضرات د ورځو ذكر كړې دې.اوبيا ئې د لږ فرق سره ذكر كړې دې نو چې په تيرشو كالو كښې كوم كمې وو .هغه ئې د حضرت حسن په موده خلافت سره پوره كړې دې اوهغه ئې هم په خلفاء راشدينو كښې شمارلې دې.

**اشكال:** د قابل قدر شخصياتو (ارباب حل وعقد) په دې باندې اتفاق دې چې د خلفاء اربعه څخه بعضې نورحكمرانان هم په خلفاء كښې شمارلى شى.لكه په بنو اميه كښې حضرت عمر بن عبد العزيررحمه الله دغه شان بعضې په خلفاء عباسيه كښې هم په خلفاء كښې شمارلى شى

نوبيا خوموده د خلافت ددېرشو كالو څخه زياتيږى؟

**د اشكال جواب:** په حديث كښې داسې خلافت مراد دې چې په هغې كښې دحق مخالفت هډو شوې نه وى اودا صفت صرف د خلفاء اربعه په خلافت كښې دې روسته دبعضې خلفاؤ په دور كښې خلافت كښې دا صفت كله فوت شوې هم دې.ددې وجې اشكال نه وارديږى

**دخلافت د منعقد كولو څلور طريقې:** ① چې دحل اوعقد خاوندان دَ بيعت په ذريعه خليفه مقرر كړى دحضرت ابوبكر رضى الله عنه خلافت په دې طريقه منعقد شوې وو

② چې موجوده خليفه په خپل ژوند كښې راروان خليفه نامدار كړى دحضرت عمررضى الله عنه خلافت په دې طريقه منعقد شوې وو

③ چې خليفه د خلافت دپاره يوه ډله مقرر كړى اودا حكم اوكړى چې هم په دې ډله كښې

يو كس خليفه مقرر كړئ دحضرت عثمان رضى الله عنه خلافت په دې طريقه منعقد شوې وو
④ استعلاء (تغلب) يعنى داسې كس چې د خلافت ټول شرطونه په هغه كښې موجود
وى اوپه خلقو غلبه اوكړى اوحكومت قبضه كړى نو په دې سره هم خلافت منعقد
كيږى دحضرت على رضى الله عنه خلافت هم داسې منعقد شوې وو خود زياتوعالمانو
رائې دا ده چې حضرت على رضى الله عنه دهغه مهاجرينو او انصارو په بيعت سره خليفه
جوړ شوې ووكوم چې په هغه وخت كښې په مدينه كښې موجود وو يعنى په اولنى
طريقه يعنى د مشورې په ذريعه د دوى خلافت منعقد شوې وو خو دا رائې ضعيفه ده

**[۵۳۹۶]دَشرڅخه دبچ كيدو يوه طريقه**

۵۳۹۶-(۳۶)[۱۸] ①«وَعَنْ حُذَيْفَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ②: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَيَكُونُ بَعْدَ هٰذَا الْخَيْرِ شَرٌّ؟ كَمَا كَانَ قَبْلَهُ شَرٌّ؟③قَالَ: "نَعَمْ"،④قُلْتُ: فَمَا الْعِصْمَةُ؟⑤قَالَ: "السَّيْفُ"،⑥قُلْتُ: وَهَلْ بَعْدَ السَّيْفِ بَقِيَّةٌ؟ ⑦قَالَ "نَعَمْ" "تَكُونُ إِمَارَةٌ أَقْذَاءٍ، وَهُدْنَةٌ عَلَى دَخَنٍ".

**ترجمه:** ①او حضرت حذيفه ﷜ وايي، ②يوه ورځ ما عرض وكړو. يارسول الله آيا ددې
خير نه پس به شر پيدا كيږي څرنګه چې د اوس نه مخكې د شر دور دوره وه يعنى څرنګه
چې ستاسو د پيغمبرى نه مخكې د كفر او شرك او بدو برائيانو تياره خوره شوې وه. او
بيا ستاسو نور نبوت د بدى او خرابۍ تياره ختمولو سره د نيكۍ او خير ښيګړې رڼا
خوره كړله دغه شان آيا د خير ښيګړې ددې زمانې نه پس به د شر او بدى زمانه راځي
③حضور ﷺ وفرمايل هو د دې نه پس به بيا د بدى او خرابۍ زمانه راځي،④ما عرض
وكړو بيا هغه وخت د بچ كيدو به څه سبيل (لار) وي ⑤حضور ﷺ وفرمايل توره" ⑥ما
عرض وكړو بيا ددې تورې نه پس به اهل اسلام باقي وي، ⑦حضور ﷺ وفرمايل هو
امارت يعنى حكومت او سلطنت خو به قائم وي، ليكن د هغه بنياد به په فساد وي. او د
صلح بنياد به په كدورت وي.

**حل اللغات:** - ①الْعِصْمَةُ: د بچ كيدو لار. ②أَقْذَاء: قذى په سترګه كښې پريوتې ذكى ته وائى دلته د
زړه خيرى او خفګانونه مراد دى ③هُدْنَةٌ: صلح. ④دَخَنٍ: لوږې. يعنى د زړه خفګان او دشمنى.

①قُلْتُ: ثُمَّ مَاذَا؟②قَالَ: "ثُمَّ يَنْشَأُ دُعَاةُ الضَّلَالِ، فَإِنْ كَانَ لِلّٰهِ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةٌ جَلَدَ ظَهْرَكَ، وَأَخَذَ مَالَكَ، فَأَطِعْهُ، وَإِلَّا فَمُتْ وَأَنْتَ عَاضٌّ عَلَى جِذْلِ شَجَرَةٍ"،③قُلْتُ: ثُمَّ مَاذَا؟④قَالَ: "ثُمَّ يَخْرُجُ الدَّجَّالُ بَعْدَ ذٰلِكَ، مَعَهُ نَهْرٌ وَنَارٌ، ⑤فَمَنْ وَقَعَ فِي نَارِهِ، وَجَبَ أَجْرُهُ، وَحُطَّ وِزْرُهُ، ⑥وَمَنْ وَقَعَ فِي نَهْرِهِ، وَجَبَ وِزْرُهُ، وَحُطَّ أَجْرُهُ". ⑦قَالَ: قُلْتُ: ثُمَّ مَاذَا؟⑧قَالَ: ثُمَّ يُنْتَجُ الْمُهْرُ فَلَا يُرْكَبُ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ".

[۳۶]) اخرجه ابوداود فى كتاب الترجل /باب ذكر الفتن ودلائلها(رقم-۴۲۴۴) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب العزلة (رقم-۳۹۸۱) واحمد فى المسند:۴۰۳/۵

**ترجمه:** ①ما عرض وکړو بیا د دې نه پس به څه کېږي، ②حضور ﷺ وفرمایل د دې نه پس به ګمراهي طرف ته بلونکي خلق پیدا شي که هغه وخت په زمکه څوك خلیفه یعنی امیر او بادشاه وي، که هغه تا په شاء ولي نه وهي او ستا مال ولي نه اخلي یعنی هغه امیر او بادشاه اګر که په ناحقه تا تنګوي په تاظلم وستم کوي او ستا مال او اسباب په زور اخلي لیکن ته د هغه د اطاعت نه مخ مه ګرځوه ترڅوپوري چې تاته د الله او د هغه د رسول د حکم خلاف د څه کار کولو ونه وایي اودا حکم ځکه ورکول شوی دی، چې دین وملت کې انتشار او مملکت کې بد آمني او فساد پیدا نشي. او که څوك یعنی امیر او بادشاه نه وي، نو ستا مرګ په داسې حالت کې راتلل پکار دی چې ته د یوې ونې په ویخ کې پناه واخلې ③ما عرض وکړو بیا د دې نه پس به څه وي. ④حضور ﷺ وفرمایل د دې نه پس به دنیا نوري زیاتي فتنې، انتشار او خرابي طرف ته مخکې کېږي. او مسلمانان به په تدریج ددین او دنیاپه اعتبار سره مخ په زوال ځي، تردې چې د حضرت مهدي زمانه کې به دجال ښکاره شي، چې د هغه سره به د اوبو نهر وي. او د اور خندق کنده به وي ⑤نو کوم سړی چې په هغه اور کې ولویږي، د هغه اجر به ثابت او قائم وي، او د هغه ګناه چې هغه مخکې کړي وي هغه به ځنې لرې شی یعنی ورژیږي ⑥او کوم سړی چې په هغه نهر کې ولویږي د هغه ګناه به د هغه د پاره بوج جوړ شي او هغه چې کوم نیك کارونه کړي وي هغه به ختم شي ⑦حضرت حذیفه ﷺ وایي ما عرض وکړو، د دې نه پس به څه کېږي ⑧حضور ﷺ وفرمایل داسې بچی به پیدا شي چې په هغه به سواري نه شوې چې قیامت به قائم شي

**حل اللغات:** -⑤دُعَاةُ الضَّلَالِ: ګمراهئ ته رابلونکی، ⑥عَاضٌّ: په غاښونو باندې کلك نیول. ⑥ جَذْلٍ: دَ ونې جرړه او تنه. ⑧حُطَّ: لرې به شی، ⑨يُنْتَجُ: بچې به پیدا شی

> ①وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: "هُدْنَةٌ عَلَى دَخَنٍ، وَجَمَاعَةٌ عَلَى أَقْذَاءٍ"، ②قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! الْهُدْنَةُ عَلَى الدَّخَنِ مَا هِيَ؟ ③قَالَ: "لَا تَرْجِعُ قُلُوبُ أَقْوَامٍ عَلَى الَّذِي كَانَتْ عَلَيْهِ"، ④قُلْتُ: بَعْدَ هَذَا الْخَيْرِ شَرٌّ؟ ⑤قَالَ: "فِتْنَةٌ عَمْيَاءُ صَمَّاءُ، عَلَيْهَا دُعَاةٌ عَلَى أَبْوَابِ النَّارِ، فَإِنْ مُتَّ يَا حُذَيْفَةُ! وَأَنْتَ عَاضٌّ عَلَى جَذْلٍ خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ تَتْبَعَ أَحَدًا مِنْهُمْ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ①او په یوه روایت کې ددې په ځای چې امارت خوبه هم شي. لیکن د هغه بنیاد به فساد باندې وي الخ داسې دی. چې حضور ﷺ وفرمایل کدورت باندې به صلح وي، یعنی هغه وخت به خلق په ښکاره خو د صلح صفائي لار اختیار کړي لیکن د هغوئ په باطن کې به کدورت وي. او هغوئ به یوې معاهدې او فیصله باندې د زړونو ناخوښۍ او رنجش سره متفق او مجتمع وي ②ما عرض وکړو یارسول الله ؐ کدورت باندې د صلح نه څه مراد دی، ③حضور ﷺ وفرمایل د دې مطلب دادی چې د خلقو زړونه به په هغه حالت

نه وي چې په هغه مخکې وو، یعنی څرنګه چې د اسلام ابتدائي زمانه کې د خلقو زړونه د بغض او کینې نه صاف وه، چې کومه خبره به یې کوله یا کومه معاهده به یې کوله په هغه کې به صدق دین شامل وو، دغه شان پاك وصاف زړه به د هغه وخت خلقو کې نه وي چې په ژبې سره به یوڅه وایي او معاهده به یوڅه کوي او په زړه کې به یې بل څه وي یا دامراد دی چې په خلقو کې باهمي صلح صفائي کیدو باوجود د هغوئ زړونه به داسې پاك وصاف نه وي، څرنګه چې د یوبل خلاف بغض او عناد کې مبتلا کیدو او کدورت پیدا کیدو نه مخکې وو. ④ما عرض وکړو آیا دې خیر نه پس چې په خپلو کې د نفاق او کدورت باوجود مذکوره باهمي مصالحت او مفاهمت په صورت کې ښکاره شي اګر که چې د بدی دآمیزش نه پوره پوره طور سره صاف نه وي، د څه بلې بدی ظهوربه وي. ⑤حضور ﷺ وفرمایل هو د دې نه پس به بیا د بدی ظهور وي، او هغه به د یوې داسې لوی فتنې په صورت کې وي، چې ړنده او کڼه به وي، یعنی هغه فتنه به د خلقو عقل او دماغ او نیکي او بدي قوت تمیز باندې داسې نظر انداز شی چې هغوئ به حق او رښتیا ته نه ګوري او نه به اوري، ګویافتنې طرف ته د ړوندوالي او کوڼ توب نسبت مجازاً دی اصل مقصد دابنکاره کول دي، چې خلق به په هغه فتنه کې مبتلا کیدو سره د بدی او خرابی انتهائي حد ته ورسیږی، او د دې نتیجه به څرنګه چې مخکې فرمایل کیږي داوي چې هغه فتنې طرف ته بلونکي خلق به پیدا شي یعنی خلق به محض هغه فتنه کې مبتلا کیږي نه، بلکې یوداسې جماعت به هم پیدا شي، چې هغه فتنې ته به هوا ورکوي او د نورو به هغه فتنه کې د اخته کیدو باعث جوړیږي او د دې جماعت د خلقو داعمل به داسې ظاهر کړي، لکه چې هغوئ د دوزخ په دروازه ودریدو سره مخلوق هغه دوزخ ته راوبلي نو بلونکی او د هغوئ بلنه قبلونکی ټول به دوزخ ته ځي. ⑥نو اې حذیفه! هغه وخت چې ستا مرګ یوداسې حالت کې راشي چې تا د یوې ونې په ویخ کې پناه نیولې وي نو دابه د دې نه ښه وي چې ته د اهل فتنه نه دیو چاپیروي او دیو چا اتباع وکړي (ابوداؤد)

**حل اللغات:**-⑩ عَمْيَاءُ: ړنده، ⑪ صَمَّاءُ: کڼره

**تسهیلات:**

**قوله: أَيَكُونُ بَعْدَ هٰذَا الْخَيْرِ شَرٌّ**

**د زمانې د صلاح څخه روسته د شرو اتلل:** حضرت حذیفه ﷺ وایي، یوه ورځ ما عرض وکړو، یارسول الله! آیا د دې خیر نه پس به شر پیدا کیږي څرنګه چې د اوس نه مخکې د شر دور دوره وه یعنی څرنګه چې ستاسو د پیغمبری نه مخکې د کفر او شرك او بدو برائیانو تیاره خوره شوي وه، او بیا ستاسو نور نبوت د بدی او خرابي تیاره ختمولو سره

د نیکي او خیر ښیګیري رښا خوره کړله دغه شان آیا د خیر ښیګیري ددي زماني نه پس به د شر او بدی زمانه راځي حضور ﷺ وفرمایل هو د دې نه پس به بیا د بدی او خرابی زمانه راځي،

**قوله:** قَالَ: "السَّيْفُ

**دشر ختمه د بچ کیدو ذریعه:** حضرت حذیفه رضی الله عنه وایي.ما عرض وکړو بیا هغه وخت د بچ کیدو به څه سبیل (لار) وي حضور ﷺ وفرمایل توره!

**قوله:** قُلْتُ: وَهَلْ بَعْدَ السَّيْفِ بَقِيَّةٌ؟

**د جهاد په ذریعه د فساد ختمول:** حضرت حذیفه رضی الله عنه وایي، ما عرض وکړو بیا ددې توري نه پس به اهل اسلام باقي وي، یعنی هرکله چې مسلمانان دبدی او خرابی طاقتونه ختمولو سره توره پورته کړي او قتل وقتال کوي، نو ایاد هغه نه پس د هغه زماني مسلمانانو کې دومره طاقت اجتماعیت به باقي پاتې شي، چې هغوئ امانت او دیانت سره خپله سرداري او حاکمیت قائم کړي، او خلق د هغه قیادت او امارت باندې اتفاق وکړي

**قوله:** قَالَ "نَعَمْ" تَكُونُ إِمَارَةٌ أَقْذَاءٍ، وَهُدْنَةٌ عَلَى دَخَنٍ

**ناخوښه امارت:** حضور ﷺ وفرمایل هو امارت یعنی حکومت او سلطنت خو به قائم وي. لیکن د هغه بنیاد به په فساد وي، او د صلح بنیاد به په اود ژړونو په خفګان سره وي دذې نه معلومه شوه چه دَ فتنو دَختمولو دَپاره دَحق دَ جهنډې لاندې توره راخستل اووتل جائز دی. دَ جمهور صحابه کرامو هم دغه مسلك وو دَحدیث نمبر۵۳۹۵ په تسهیل کښې تفصیل لیکلې شوې دې.

**قوله:** عَلَى أَقْذَاءٍ: په ظاهری توګه به خلق تابعداری کوی مګر په زړونو کښې به ئې عداوت باقی وی. هم دا مفهوم ته "هدنة على دخن" سره اداکړې شوې دې چه صلح خو به اوشی خلافت به هم قائم شی مګر دخن یعنی لوګې اودزړه خفګانونه به باقی پاتې وی

**قوله:** ثُمَّ مَاذَا؟:

**د دجال خروج:** یعنی دَ دغه فتنونه پس به څه وی؟ حضور پاك اشاره اوفرمائیله چه بیا به دَ دجال خروج کیږی یعنی اول به دَ حضرت مهدی دور راځی دَ اووه کاله خلافت نه پس به دجال راؤځی بیا به دَ حضرت عیسی علیه السلام نزول کیږی بیابه قیامت دومره نیزدې شی چه دَ اسپې بچې به دَ سورلې قابل شوې نه وی چه قیامت به راشی.

**[۵۲۹۷] دَ خلافت راشده نه پس دَ سختو فتنو پیشنځکولی**

۵۲۹۷-(۲۷)[۱۹] [۱]«وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ[۲]: كُنْتُ رَدِيفًا خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَوْمًا، عَلَى حِمَارٍ، فَلَمَّا جَاوَزْنَا بُيُوتَ الْمَدِينَةِ، قَالَ: "كَيْفَ بِكَ يَا أَبَا ذَرٍّ! إِذَا كَانَ بِالْمَدِينَةِ جُوعٌ تَقُومُ عَنْ فِرَاشِكَ وَلَا تَبْلُغُ مَسْجِدَكَ حَتَّى يُجْهِدَكَ الْجُوعُ؟[۳]" قَالَ: قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: "تَعَفَّفْ يَا أَبَا ذَرٍّ!"،[۴] قَالَ: "كَيْفَ بِكَ يَا أَبَا ذَرٍّ! إِذَا كَانَ بِالْمَدِينَةِ مَوْتٌ يَبْلُغُ الْبَيْتُ الْعَبْدَ حَتَّى إِنَّهُ يُبَاعُ الْقَبْرُ بِالْعَبْدِ؟"

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوذر وايي [۲] يووار د يوسفر په موقع زه په خره باندې رسول الله ﷺ پسې وروسته سپور وم [يعنى حضور ﷺ ابوذر ؓ خپلې سوارلى باندې ځان پسې كينولى وو. داخبره د دې امر دليل دى، چې حضور ﷺ به خپلو صحابه ؓ او رفقاء ملګرو سره څومره د تواضع او محبت او حسن سلوك رويه اختيارولـه او د دې نه د حضرت ابوذر د هغه خصوصيت اندازه لګيدى شي، چې هغه ته د حضور ﷺ سره څومره نـزدې مقام حاصل وو او هغه به د حضور ﷺ فرمودات ډيرپه توجه او هوښياري سره اوريدل او يادبه يې ساتل] [۳] بهرحال حضرت ابوذر وفرمايل هركله چې مونږ د مدينې دكورونو يعنى دابادي نه بهر ووتلو، نو حضور ﷺ وفرمايل اې ابوذره: هغه وخت په ستاخه حال وي، هركله چې مدينه كې د لوږې دور دوره وي، [يعنى خاص طور سره تاتـه دومره د معيشت اسباب حاصل نه وي چې ته خپله خيټه ډكه كړې، ياداچې هغه وخت به مدينه كې قحط خورسي، او تاسو خلقوتـه به دخوراك د پاره هيڅ حاصل نشي.] تـردې چې تـه دخپلې بسترې نـه پاڅيدو سره خپل مسجد تـه په رسيدو كې هم مشكل محسوسوي. او د لوږې شدت تاپـه سختې پريشانى او اذيت كې مبتلا كړي يعنى د لوږې په وجه په تاباندې دومره ضعف كمزورى غالب شي چې ته د خپل كور نـه وتلو سره مونځ كولو د پاره دمسجد پورې پـه تلوكې هم سخت مشكل محسوسوي [۴] حضرت ابوذر وايي ما عرض وكړو الله او د هغه رسول بهتر پوهيږي يعنى زه نشم ښودلى، چې هغه وخت به زه څه كوم. ها تاسو هدايت وفرمايي. چې هغه وخت ما تـه څه كول پكار دى. [۵] رسول الله ﷺ وفرمايل اې ابوذر پارسائي اختيارول يعنى پـه هغه لوږه باندې صبر كول ضبط او تحمل سره د هغه سخت حالت مقابله كول خپل ځان دحرام او مشتبه مال نـه محفوظ ساتل، طمع او لالچ او د چاپـه مخكې لاس خورولو. او د مخلوق پـه مخكې ذلت او رسوائي اختيارولو نـه پرهيز كول بيا حضور ﷺ وفرمايل، اې ابوذر ! هغه وخت به ستا څه حال وي هركله چې قحط ياخه وبا خوريدو پـه وجه پـه مدينه كې د مرګ ګرم بازار وي او د مكان يعنى قبر قيمت غلام تـه اورسيږي اوځاى پيدا كول بيا

[۲۷] اخرجه ابوداود فى كتاب الترجل /باب فى النهى عن السعى فى الفتنة (رقم-۴۲۶۱) وابن ماجه فى كتاب الفتن /باب التثبت فى الفتنة (رقم-۳۹۵۸) واحمد فى المسند:۱۴۹/۵

مشکل شي او د يو قبر ځاى به د غلام د قيمت برابر ته ورسيږي، نو د مخکې جملې په ذريعه داخبره زيات وضاحت سره داسې وفرمايل چې دي پورې چې د قبر ځاى د غلام د قيمت برابر نرخ باندې خرچيږي

حل اللغات: - ① جُوعٌ: اولږه. ② تَعَفَّفْ: بچ اوسيږه.

۱ قَالَ: قُلْتُ: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، ۲ قَالَ: "تَصَبَّرْ يَا أَبَا ذَرٍّ!"، ۳ قَالَ: "كَيْفَ بِكَ يَا أَبَا ذَرٍّ! إِذَا كَانَ بِالْمَدِينَةِ قَتْلٌ تَغْمُرُ الدِّمَاءُ أَحْجَارَ الزَّيْتِ؟"، ۴ قَالَ: قُلْتُ: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، ۵ قَالَ: "تَأْتِي مَنْ أَنْتَ مِنْهُ"، ۶ قَالَ: قُلْتُ: وَأَلْبَسُ السِّلَاحَ؟ ۷ قَالَ: "شَارَكْتَ الْقَوْمَ إِذًا" ۸ قُلْتُ: فَكَيْفَ أَصْنَعُ يَا رَسُولَ اللهِ؟ ۹ قَالَ: "إِنْ خَشِيتَ أَنْ يَبْهَرَكَ شُعَاعُ السَّيْفِ فَأَلْقِ نَاحِيَةَ ثَوْبِكَ عَلَى وَجْهِكَ لِيَبُوءَ بِإِثْمِكَ وَإِثْمِهِ»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

ترجمه: ۱ حضرت ابوذر ﷜ وايي ما عرض وکړو الله او د هغه رسول ښه پوهيږي [تاسو هدايت وفرمايي چې هغه وخت ماته څه کول پکار دي.] ۲ حضور ﷺ وفرمايل اې ابوذر د صبرلمن مه پريږده، ۳ بيايي وفرمايل اې ابوذر هغه وخت به ستا څه حال وي. هرکله چې په مدينه کې قتل عام شي، او د هغهويني به احجار الزيت ته ورسيږي. ۴ حضرت ابوذر وايي ما عرض وکړو الله او د هغه رسول ښه پوهيږي تاسو وفرمايي چې ماته هغه وخت څه کول پکار دي، ۵ حضور ﷺ وفرمايل ته هغه ځاته ورشه د چاسره چې ته تعلق لري. ۶ ما عرض وکړو ايا زه هغه وخت وسله هتيار وترم او د فتنه خورونکي جماعت په خلاف جنګ وکړم، ۷ حضور ﷺ وفرمايل داسې خو به بياته هم په هغه جماعت کې ورسره شريك شي ۸ ما عرض وکړو يارسول الله بيا ماته هغه وخت څه کول پکار دي. ۹ حضور ﷺ وفرمايل که ستاسره خوف وي، چې د توري چمك پرق به په تا غالب شي. يعنې ته دا ووينې چې يو سړى ستاد وژلو د پاره خپلې توري سره په تا حمله کول غواړي نو هغه وخت د خپلې کپړې ځاك په خپل مخ واچوه چې هغه ستا په ګناه يعنې ستا د قتل په ګناه او په خپله ګناه کې اونخلي. (ابوداؤد)

حل اللغات: - ③ تَغْمُرُ: پټ به کړي. ④ أَحْجَارَ الزَّيْتِ: د يو ځاى نوم دي ⑤ يَبْهَرَكَ: غالب به شي په تا باندې

**تسهيلات:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:**

① وَلَا تَبْلُغُ مَسْجِدَكَ حَتَّى يُجْهِدَكَ الْجُوعُ: يعنې اولګه به تا دومره بدحاله اوکمزورې کړې چه ته به خپل نيزدې جمات ته دتلونه عاجزشې

② تَعَفَّفْ يَا أَبَا ذَرٍّ!: يعنې په داسې حالت کښې هم دَ سوال نه بچ شه دَحرام نه بچ شه او خپل عزت او عظمت دَ لاس نه مه پريږده مرګ يعنې وبائي مرضونه يا قحطونه يا دَ فتنود وجې نه به مرګ عام شي

③ يَبْلُغُ الْبَيْتَ الْعَبْدُ حَتَّى إِنَّهُ يُبَاعُ الْقَبْرُ بِالْعَبْدِ: يعنى دَمرى دَپاره به قبر نه ملاويږى قبربه دومره ګران شى لکه چه يوغلام ورکولي کيږى يعنى دَ قبر قيمت به دَغلام قيمت ته اورسى

**قوله**: تَغْمُرُ الدِّمَاءُ أَحْجَارَ الزَّيْتِ:

**داحجار الزيت په مصداق کښې درې اقوال:** ① بعضې علماء وائى چه مغربى طرف کښې دَ يوځائى نوم دې

② مدينه منوره کښې دَ يوې محلې نوم احجارزيت دې

③ علامه توريشتى رحمه الله فرمائى چه احجارزيت دَ علاقې حرې حصه ده

**د حره تاريخى واقعه**: او په حره کښې دَ يزيد په زمانه کښې مشهورقتلِ عام شوې وو دريو ورځوپورې په مدينه منوره کښې لوټ مار عام وو. دريو ورځو پورې په مسجدنبوى کښې اذان اونه شو په مدينه باندې تياره خوره وه. مسلم بن عقبه دَ شيطان يزيد دَ فوج مشرى کوله په زرګونو مسلمانان شهيدان کړې شول اودَ مدينې تقدس دَخپولاندې کړې شو په احجارزيت کښې دَ وينو لختى اوبهيدل. دا واقعه دَ حضرت حسين رضي الله عنه دَ شهادت نه پس پيښه شوه بيا دَ يزيد فوج دَمکې مکرمې محاصره اوکړه مګر پخپله يزيد مړشو او قبضه ختمه شوه.

**قوله**: تَأْتِي مَنْ أَنْتَ مِنْهُ"،

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې اقوال:** ① علامه طيبى فرمائيلى دى ددې مطلب دا دې په داسې حالت کښې ته دَخپل اميرطرف ته رجوع اوکړه دَچاچه ته اطاعت کوې اوته هم دَهغوى نه ئى. اودا زيات واضح دې

② دَ کوم کورنه ته راغلې هم هغې ته لاړشه کينه

**د حره د واقعه په وخت دابوذر عدم وجود**: واقعه حره په ۶۲هجرى کښې پيښه شوې وه اودَ حضرت ابوذر غفارى وفات ۳۲هجرى کښې شوې وو حضرت ابوذر رضي الله عنه دَ حضورپاك دافرمان خودَ صحابو اوتابعينو په وړاندې بيان کړې دې مګر پخپله ئى واقعه نه ده ليدلې

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:**

① شَارَكْتَ الْقَوْمَ: يعنى که وسله اچولوسره ميدان ته اووتلې نو په جنګ کونکو کښې به شريك ګڼړلې شې

② يَبْهَرَكَ: يعنى دَ تورې چمك به په تاباندې غالب راشى ته هغه وخت په مخ باندې کپړا واچوه اوهيڅ سه کوه. وژل کونکې ګناهګار به پوره پوره بوج اوچتولوسره قيامت کې راځى

## [۵۳۹۸]دَ فتنونه په ډکه ماحول کښې دَ نجات لار

۵۳۹۸-(۳۸)[۲۰] ۱وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ "«كَيْفَ بِكَ إِذَا أُبْقِيتَ فِي حُثَالَةٍ مِنَ النَّاسِ مَرَجَتْ عُهُودُهُمْ وَأَمَانَاتُهُمْ؟ ۳وَاخْتَلَفُوا فَكَانُوا هٰكَذَا؟» ۴وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ. ۵قَالَ: فَبِمَ تَأْمُرُنِي؟ ۶قَالَ: "عَلَيْكَ بِمَا تَعْرِفُ، وَدَعْ مَا تُنْكِرُ، وَعَلَيْكَ بِخَاصَّةِ نَفْسِكَ، وَإِيَّاكَ وَعَوَامَّهُمْ»".

**ترجمه:** ۱او حضرت عبد الله ابن عمرو ابن عاص رضی الله عنهما نه روایت دی چې یوه ورځ رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل ۲هغه وخت به ته څه کوي، هرکله چې ته خپل ځان د ناکاره خلقو په منځ کې پیدا کې چې د هغوئ عهدوپیمان او امانتونه به خلط ملط وي. ۳او په خپلو کې به اختلاف لري ګویا هغه خلق به داسې وي، ۴دي فرمایلو سره حضور ﷺ خپلې ګوتې مبارکې یو بل کې دننه داخلې کړې، ۵حضرت عبد الله دي اوریدو سره عرض وکړو تاسو ماته هدایت وفرمایي چې هغه وخت زه څه وکړم ۶حضور ﷺ ورته وفرمایل هغه وخت په تا لازم دی ①چې هغه شی اختیار کړي او په هغه عمل وکړي چې ته یې: دین او دیانت په رڼا کې حق وګڼې ②هغه څیز نه پرهیز وکړه چې ته یې ناحق او بد وګڼې ③او صرف خپل کار او خپل خیر سره مطلب لره، ④او ځان د عوام الناس نه لرې ساته

**حل اللغات:-** ① حُثَالَةٍ: دَ کهجورې وغیره پوستکی بهوسو او کچرې ته حثاله وائی ② مَرَجَتْ: خلط ملط او ګډ وډ وی،

۱وَفِي رِوَايَةٍ: ۲ "«الْزَمْ بَيْتَكَ، ۳وَأَمْلِكْ عَلَيْكَ لِسَانَكَ، ۴وَخُذْ مَا تَعْرِفُ، ۵وَدَعْ مَا تُنْكِرُ، ۶وَعَلَيْكَ بِأَمْرِ خَاصَّةِ نَفْسِكَ، ۷وَدَعْ أَمْرَ الْعَامَّةِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه:** ۱او په یوه روایت کې داسې منقول دی، ۲چې خپل کور کې پروت اوسه بلاضرورته بهر وتلو سره اخوا دیخوا مه ځه. ۳خپله ژبه قابو کې ساته ۴کوم څیز چې حق ګڼې هغه اختیار کړه ۵او کوم شی چې بد ګڼې هغه پریږده صرف خپل کار ۶او خپل خیر سره مطلب لره ۷او د عوام الناس معاملاتو سره څه تعلق مه ساته دا روایت ترمذي نقل کړی دی او صحیح یې ګرځولی دی

**تسهیلات:**

**قوله:** كَيْفَ بِكَ إِذَا أُبْقِيتَ فِي حُثَالَةٍ مِنَ النَّاسِ مَرَجَتْ عُهُودُهُمْ:

**دبدکاره خلقو پیدا کیدل:** رسول الله ﷺ فرمائی چه څه حال به وی ستاسو. یعنی څه به کوئ تاسو، چه کله داسې زمانه راشی چه په هغې کښې به خلق چانړ کړې شی. رذیل او

[۳۸] ) اخرجه البخاری فی صحیح رقم الحدیث ۴۳۴ وابوداود فی کتاب الترجل /باب الأمر والنهی (رقم-۴۳۴۲) وابن ماجه فی کتاب الفتن /باب التثبت فی الفتنة (رقم-۳۹۵۷) واحمد فی المسند:۲/ ۱۶۲

بیکاره خلق به په دنیا کښې پاتې شي چه د هغوی معاملات او امانتونه به مخلوط او ګډوډ وی ، او دې وخت کښې رسول الله ﷺ د خپلو ګوتو مبارکو ترمینځهٔ تشبیک اوفرمائیلو ،

**قوله**: فِبِمَ تَأْمُرُنِي؟:

**دایمان د حفاظت تپوس**: په دې باندې صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو چه بیا دغه وخت کښې مونږ له څه کول بکار دی؟

**قوله**: الْزَمْ بَيْتَكَ، وَأَمْلِكْ عَلَيْكَ لِسَانَكَ:

**په کور کښې دناستې اختیارولوحکم**: نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم معروف او نیک کارونه دی هغه اختیار کړئ او کوم چه ناجائز او منکر دی هغه ترک کړئ او بس خپل فکر کوئ عوام په خپل حال باندې پریږدئ. او د دې نه په روستو روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ د عبدالله بن عمرو په سوال باندې اوفرمائیل : ﴿الزم بیتک واملک علیک لسانک الخ﴾ چه د کور نه بهر مه راوځه او خپله ژبه په قابو کښې ساته.

**[۵۳۹۹] ایمان اوکفرته اوړیدل راوړیدل**

۵۳۹۹-(۲)[۲۱] [۱]وَعَنْ أَبِي مُوسَى -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنَّهُ قَالَ: [۲] "«إِنَّ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ فِتَنًا كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ، [۳]يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا، وَيُمْسِي مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا، [۴]الْقَاعِدُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ، وَالْمَاشِي فِيهَا خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي، [۵]فَكَسِّرُوا فِيهَا قِسِيَّكُمْ، [۶]وَقَطِّعُوا فِيهَا أَوْتَارَكُمْ، [۷]وَاضْرِبُوا سُيُوفَكُمْ بِالْحِجَارَةِ، [۸]فَإِنْ دُخِلَ عَلَى أَحَدٍ مِنْكُمْ فَلْيَكُنْ كَخَيْرِ ابْنَيْ آدَمَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱]او حضرت ابوموسی ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي حضور ﷺ وفرمایل [۲]قیامت نه مخکې به دافتنې ښکاره شي چې د توري شپې د ټکړو په شان به وي. [۳]د هغه فتنو په زمانه کې به سرې سهار کې د ایمان حالت کې پورته کیږي او ماښام کې به کافر شي. ماښام کې به مومن وي، سهار کې به د کفر حالت کې پورته کیږي [۴]د دې فتنو په وخت کې به ناست سړی د ولاړ نه ښه وي او تلونکی سړی به د ځغلیدونکي نه ښه وي. [۵]هرکله چې تاسو د دې فتنو زمانه پیدا کړه نو خپلې لیندې ماتې کړئ [۶]او د لیندو تارونه پریکی [۷]او خپلې توري په کانو بیکاره کړئ، [۸]او هرکله چې تاسو کې یو سړی ته ځوك د وژلو د پاره راشي، نو هغه ته پکار دی چې هغه د حمله آور مقابله کولو او هغه سړه د جنګ کولو په ځای د آدم ددوو ځامنو کې بهترین ځوی جوړ شي (ابوداؤد)

[۲۱]) اخرجه ابوداود فی کتاب الترجل /باب فی النهی عن السعی فی الفتنة(رقم-۴۲۵۹) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۲۰۲) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب التثبت فی الفتنة (رقم-۳۹۶۱) واحمد فی المسند: ۴/۴۱۶

**حل اللغات:** - ① قِسِيَّكُمْ: دَ قوس جمع ده كمان تـه وائي ② أَوْتَارَكُمْ: دَ وترجمع ده دَ كمان د ليندي تسمې ته وائي.

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: ذَكَرَ إِلَى قَوْلِهِ: "خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي"، [۲] ثُمَّ قَالُوا: فَمَا تَأْمُرُنَا؟ [۳] قَالَ: "كُونُوا أَحْلَاسَ بُيُوتِكُمْ". [۴] وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ: «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ فِي الْفِتْنَةِ: [۵] "كَسِّرُوا فِيهَا قِسِيَّكُمْ، [۶] وَقَطِّعُوا فِيهَا أَوْتَارَكُمْ [۷] وَالْزَمُوا فِيهَا أَجْوَافَ بُيُوتِكُمْ [۸] وَكُونُوا كَابْنِ آدَمَ» ". وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او د ابوداود په يوروايت كې دخير من الساعي يعنى تلونكى سړى به خغليدونكى نه ښه وي، الفاظ نقل كولو نه پس بياداسي نقل كړى دي، [۲] چې صحابه ﷺ دا ارشاد اوريدو سره عرض وكړو چې تاسو مونږ ته څه حكم راكوئ يعنى مونږ ته هدايت وكى چې هغه وخت مونږ څه وكړو، او هغه فتنو كې څرنګه ژوند تير كو، [۳] حضور ﷺ ورته وفرمايل تاسو خپلو كورونو كې ټاټ جوړ شي [۴] او د ترمذي روايت داسې دى چې حضور ﷺ دفتني باره كې داهدايت وفرمايي [۵] چې تاسو د فتنو په زمانه كې خپلې ليندى ماتې كئ [۶] او د هغه تارونه پريكى [۷] او كورونو كې كينا ښتل لازم ونيسي يعنى داشد ضرورت نه علاوه بهر مه وځئ او خپل ټول وخت كورونو كى د تيرولو په ذريعه خلقو نه يكسوئي اختيارولو سره اوسيږي، چې د هغه فتنو خراب اثراتو نه محفوظ شئ، [۸] او تاسو د آدم د ځوى هابيل په شان مظلوم جوړيدل برداشت كى ليكن د دفاع له خاطره هم په چاتوره مه پورته كوى، داروايت ترمذي نقل كولو سره ويلي دي. چې داحديث صحيح غريب دى.

**حل اللغات:** - ① أَحْلَاسَ: دَ حلس جمع ده ټاټ او بوجئ ته وائي ② أَجْوَافَ: دجوف جمع ده. دد ځاى ته وائي. خيټي ته هم جوف وائي، دلته ترې د كور دننه ځائې مراد دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَكُونُوا كَابْنِ آدَمَ:

**دهابيل پشان دصبر كولو تلقين:** يعنى دَ آدم عليه السلام دوو ځامنو هابيل اوقابيل كښي دَ ښه خوئي په شان جوړشه يعنى دَ هابيل په شان صبر اوكړه دا احاديث دَهغه حضراتو دلائل دى چه دَ فتنو په دوركښې بالكل جدا اوځانله اوسيږى تفصيل دَ حديث نمبر۷ لاندې تيرشوي دي

**[٥٤٠٠] د فتنو په وخت غوره كس**

٥٤٠٠-(¹)[۲۲] [۱] وَعَنْ أُمِّ مَالِكٍ الْبَهْزِيَّةِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ [۲]: «ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِتْنَةً فَقَرَّبَهَا، [۳] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! مَنْ خَيْرُ النَّاسِ فِيهَا؟ [۴] قَالَ: " رَجُلٌ فِي مَاشِيَتِهِ يُؤَدِّي حَقَّهَا، وَيَعْبُدُ رَبَّهُ،

(¹) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء كيف يكون الرجل في الفتنة (رقم-۲۱۷۷)واحمد في المسند: ۴۱۹/۶

٥ وَرَجُلٌ أَخَذَ بِرَأْسِ فَرَسِهِ ٦ يُخِيفُ الْعَدُوَّ وَيُخَوِّفُونَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ١ او بي بي ام مالك بهيزيه وايي ٢ يوه ورځ چې رسول الله ﷺ د فتنې ذکر وفرمايي، او هغه يې ډيره رانزدې کړه ٣ نو ما عرض وکړو يارسول الله د هغه فتنې په زمانه کې به د ټولو نه ښه سړی کوم وي ٤ حضور ﷺ وفرمايل په هغه زمانه کې به د ټولو نه ښه سړی هغه وي چې د خپل څاروو نگراني او د ونو داني انتظام کې مصروف وي. د هغوئ حق اداکوي يعنی دهغوئ چې کوم زکاة او شرعي صدقه وغيره واجب وي هغه اداکوي او د خپل رب بندگي کې مشغول وي، ٥ او هغه سړی به هم د ټولو نه ښه وي چې د خپل اس په شاباندې سپور د هغه واگې نيولی ولاړ وي ٦ او د دين دښمنان خوف زده کوي. او دښمن هغه بيروي (ترمذي)

**حل اللغات** ① مَاشِيَتِهِ: د دې اطلاق ابل غوا چيلئ ټول قسمونو څناورو باندې کيږي او اکثر په غنم چيلو گډو دَ پاره استعماليږي ② يؤدی حقها: دَ څناورو حقونه يعنی دَ هغوی دَ ونو داني دَ وس طاقت مطابق بوج بار کولو وغيره اودَ هغې زکوة ادا کول وغيره ټول شامل دی

**تسهيلات**:

**قوله: ذَكَرَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِتْنَةً فَقَرَّبَهَا**:

**دمذکوره جملې مفهوم**: بتشديد الراء المهملة اى فعدها قريبة الوقوع علامه اشرف فرمائيلی دَ دې مطلب دادې چه دَ دې فتنه باره کښې رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته په واضحه انداز کښې ذکر اوفرمائيلو لکه چه دَ هغې نه معلوميدله هغه واقع کيدو ته نيزدې ده

**قوله: يُخِيفُ الْعَدُوَّ**:

**دفتنې زرواقع کيدل**: رسول الله ﷺ دَ صحابه کرامو ﷺ دلې ته دَ مسلمانانو دَ يوخاص فتنې باره کښې داسې خبر ورکړو لکه چه هغه فتنه ډيره زر کيدونکې وی په دې باندې ام مالک بهزيه ﷺ تپوس اوکړو چه دَ دې فتنې په وخت کښې به بهتر څوک وی نو حضورپاک ﷺ اوفرمائيل هغه وخت به دوه کسان بهتر وی

**دفتنې په وخت کښې د دوو کسانو فضليت**: ① هغه سړې چه د فتنې نه بچ شی خپل څاروی واخلی اودَ خلقو نه ځان له شی اودَ خپلو څناورو حق اداکوی اودَ الله تعالی په عبادت کښې مشغول شی اوخلقو سره په فتنه کښې اخته نه شی

② دويم هغه سړې چه دَ مسلمانانو دَ فتنې نه بچ شی او په هغې کښې شريک نه وی بلکه کافرانو له مقابلې له لاړشی ياخو شهيدشی او ژوندې سره دَ مال غنيمت واپس شی

[۵۴۰۱] ذ عربو دپاره د يوې لوئې فتنې پيشنهكوئي

۵۴۰۱-(۱) [۲۳] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ۲ «سَتَكُونُ فِتْنَةٌ تَسْتَنْظِفُ الْعَرَبَ، ۳ قَتْلَاهَا فِي النَّارِ، ۴ اللِّسَانُ فِيهَا أَشَدُّ مِنْ وَقْعِ السَّيْفِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما وايي يوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ ډير نزدې يوه لويه فتنه ظاهريدونكي ده، چې عرب به په ځان كې راونغاړي او د هغه خراب اثرات به هرچاته ورسي ۳ په هغه فتنه كې قتليدونكي خلق به هم دوزخ ته ځي ۴ او د هغه فتنې په وخت ژبه كهولاؤول يعنى چاته بنه بدويل او عيب جوئي او نكته چيني كول به د توري چلولو نه هم زيات سخت مضر وي. (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① تَسْتَنْظِفُ: دَ يو څيزپه مكمل توګه باندې هلاك كول. يعنى په دغه فتنې سره به دَ عربو استيصال اوشي.

**تسهيلات:**

**قوله:** سَتَكُونُ فِتْنَةٌ تَسْتَنْظِفُ الْعَرَبَ، قَتْلَاهَا فِي النَّارِ:

**د دارو دلو جهنمي كيدو وجه:** يعنى دَدې مقتولين به دوزخ ته ځي ځكه چه په دغه جنګ كښې به دَهغوى مقصد نه اعلاء كلمة الله وى، نه به دَ څه حق حمايت وى اونه به دَ يوظالم ظلم دفع كول وى بلكه اختلاف، بغاوت، ملك ګيرول او مال جمع كول به ئې مقصود وى

**قوله:** اللِّسَانُ فِيهَا أَشَدُّ مِنْ وَقْعِ السَّيْفِ:

**دژبې د شركت د سختوالي وجه:** چونكه دا فتنه به په تعصب اوقوميت باندې مبنى وى په دې وجه به دَ ژبې پرې كول دَ توري دَ پرې كولو نه زيات مؤثروى.

**د مذكوره خلقو مصداق:** په دې حديث كښې چه دكومې فتنې ذكردې په هغې كښې شريك دوارو فريقودَپاره سخت وعيد دې اودَدې مقتولين ئې دوزخيان خودلى دى دَدې فتنې مصداق هغه خلق كيدې شى چه دَ يوحق په حمايت يا دَ ظلم په دفع كولو باندې نه دى جنګيږى بلكه صرف دَ دنياوى اغراضو دَپاره اودَ نفسانى خواهشاتودَپاره جنګيږى. لكه څنګه چه دَ قاضى عياض رحمه الله كلام ملاعلى قارى رحمه الله نقل كړې دې قاضى عياض رحمه الله هم دغه شان فرمائيلى دى.

**د حديث مصداق صحابه كرام نه كيدو دوه وجوهات:** دَدې حديث مصداق دَ صحابه كرامودَ دور مشاجرات ګرځول ممكن نه دى.

① ځكه چې په حديث كښې دَ چانوم هم نشته دې اونه دَ يوفريق تعين شته مطلق دَ فتنې

(۱) اخرجه ابوداود فى كتاب الحدود/باب فيمن أتى بهيمة (رقم-۴۴۶۵) واحمد فى المسند: ۵/۴۰۶

ذکردي په عرب دنیاباندې دَ اول ورځې راسې مختلفې فتنې راغلې دی نوهم هغه به ترې مراد وی

④ دَ صحابه کرامو احترام په امت باندې واجب دې. هغې جنګونو ته مشاجرات وائی په کوم کښې که یو فریق په حق باندې قائم وو نو دویم فریق دَ اجتهادی خطاء مرتکب وو په کوم کښې چه دَ سزا په ځائې ثواب ملاویږی دا مقدس جماعت الله تعالی دَ ﴿ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ﴾ په شاندار القابو سره یاد کړې دې

رسول الله ﷺ فرمائیلی دی ((اذاذکراصحابي فامسکوا،اي عن الطعن فیهم)) حضورپاك اوفرمائیل ((اذارأیتم الذین یسبون أصحابي فقولوا لعنة الله علی شرکم))

**د مشاجراتو صحابؤ باره کښې د سلفو رائې:** ① دَ حضرت عبد الله بن مبارك رحمه الله نه تپوس اوکړې شو چه حضرت معاویه رضي الله عنه افضل وو که عمر بن عبد العزیز رحمه الله؟ نوهغوی جواب ورکړو "لغبار أنف فرس معاویة حین غزا في رکاب رسول الله أفضل من کذاوکذا من عمر بن عبد العزیز"

② حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله دَ مشاجرات صحابؤ باره کښې فرمائی "تلك دماء طهر الله أیدینا منها فلا نلوث ألسنتنا بها"

③ جمهور امت په دې باندې قائم دې چه حضرت علی رضي الله عنه په حق باندې وو او حضرت معاویه رضي الله عنه په اجتهادی خطاء باندې وو په کوم کښې چه ثواب ملاویدې شی زمونږ دَپاره دَ تولو نه ښه لار داده چه مونږ په مشاجرات صحابو باره کښې بالکل خاموشی او سکوت اختیارکړو په سکوت باندې نیول نشته او په وینا کولو او تحقیق کولو کښې دَ راګیریدلو خطره شته دې

**[۵٤۰۲] په بعضې فتنو کښې د ژبې ګډوډېشان د توري**

٥٤٠٢ -(٢٣)[٢٣] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " ② «سَتَكُونُ فِتْنَةٌ صَمَّاءُ عَمْيَاءُ بَكْمَاءُ، ③ مَنْ أَشْرَفَ لَهَا اسْتَشْرَفَتْ لَهُ، ④ وَإِشْرَافُ اللِّسَانِ فِيهَا كَوُقُوعِ السَّيْفِ» ") رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② ډیر نزدې به دګونګې کنې او ړندې فتنې ظهور وي ③ کوم سړی چې هغه فتنه ووینې او هغه ته نزدې ورځې، هغه فتنه به هغه ووینې او هغه ته به نزدې راشې ④ او د هغه فتنې په وخت کې به زبان درازی د توري وهلو په شان وي (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① صَمَّاءُ: کنړه. ② عَمْيَاءُ: ړنده. ③ بَكْمَاءُ: ږرونکې. ④ أَشْرَفَ: چا چه سر وراوچت کړودا فتنه ئې اوکتله

---

[12] ) اخرجه ابوداود في كتاب الحدود/باب فيمن أتى بهيمة (رقم-٤٤٦٤)واحمد في المسند:٥/٤٠٦

**تسهيلات:**

**قوله**: سَتَكُونُ فِتْنَةٌ صَمَّاءُ عَمْيَاءُ بَكْمَاءُ:

**په فتنې د كنړې ړندې او ګونګې د اطلاق وجه**: يعنې ډير زر به د ګونګې كنړې او دَ ړندې فتنې ظهور اوشي دَ خلقو په اعتبار سره فتنې ته ګونګې كنړه ړنده وئيلې شوي ده مطلب دادې چه دَدغه فتنې په وخت به خلق په حق او باطل كښې تميز نه كوي نه خبره اوريدل به نه برداشت كوي او نه به دَ امر بالمعروف او نهي عن المنكر خبره د خلې نه اوباسي او نه به ښه كارته دَ قبوليت په نظر سره ګوري څوك چه دې فتنې ته ګوري دا فتنه به په منډه دَهغه طرف ته راځي. دَ ژبې په ذريعه سره به دا فتنه دومره او چتيږي چه د تورې نه به تيره وي دَ حديث مطلب دا شو چه دَ ړندې كنړې او ګونګې فتنې نه هروخت د بچ كيدو كوشش كوئي.

**قوله**: وَإِشْرَافُ اللِّسَانِ فِيهَا كَوُقُوعِ السَّيْفِ:

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې مختلف اقوال**: ① د لسان څخه مراد كلمه ده يعنې د فتنې په زمانه كښې حق خبره د خولې نه راويستل ډير ګران كار وي د تورو د ضرب برداشت كولو نه هم زيات څكه چه هغه اهل فتنه به په باطل باندې ولاړوي (كذا في الكوكب الدري)

② د كلمې نه مراد كلمه باطل ده، يعنې كوم فريق چه په باطل دې د هغې تائيد كول په ګناه كيدو كښې د تورې چلولو نه زيات سخت دي (كذا في هامش الكوكب الدري)

د مسلمانانو په دوه ډلو كښې چه كله فتنه او جنګ وي نو په دې صورت كښې بغير د تحقيق نه د يوې ډلې مذمت كول هم دغه شان حرام دي لكه په مسلمانانو كښې توره چلول. څكه چه هغه جنګ د مسلمانانو ترمينځه دې د چا چه غيبت حرام دې (كذا في هامش الكوكب الدري)

③ په مظاهر حق كښې دي او ژبه اوږدل په دې فتنه كښې د تورې د چلولو په شان دي يعنې په تاثير كښې بلكه زيات دي د دې نه لكه چه وئيلې شوې دي بيت '

جراحات السنان لها التيام:: ولا يلتام ما جرح اللسان

هم په دې وجه اول روايت كښې وئيلې شوي دي چه زيات سخت د تورې چلولو نه اهٔ د مظاهر حق والا معنى عام ده چه د فتنې او اختلاف په زمانه كښې ښكاره خبره كول په فريقينو كښې د يوې ډلې په حمايت كښې يا مذمت كولو كښې دا ډير زيات موثر وي خو د دې دپاره د ډير جراءت او همت ضرورت دې. والله تعالى اعلم.

## [۵٤۰۲]دَ بعضو لويو فتنو پيښن ګوياني

۵٤۰۳-(۳)[۳۵][۱]«وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ[۲]: كُنَّا قُعُودًا عِنْدَ النَّبِيِّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-فَذَكَرَ الْفِتَنَ، فَأَكْثَرَ فِي ذِكْرِهَا،[۳]حَتَّى ذَكَرَ فِتْنَةَ الْأَحْلَاسِ،[۴]فَقَالَ قَائِلٌ: وَمَا فِتْنَةُ الْأَحْلَاسِ؟[۵]قَالَ: "هِيَ هَرَبٌ، وَحَرَبٌ،[٦]ثُمَّ فِتْنَةُ السَّرَّاءِ دَخَنُهَا مِنْ تَحْتِ قَدَمَيْ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي،[۷]يَزْعُمُ أَنَّهُ مِنِّي وَلَيْسَ مِنِّي، إِنَّمَا أَوْلِيَائِي الْمُتَّقُونَ،

**ترجمه**: [۱]او حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما وايي [۲]يوه ورځ مونږ د رسول الله ﷺ په مجلس کې ناست وو، چې حضور ﷺ آخره زمانه کې د ظاهريدونکو فتنو ذکر شروع کې او ډيري زياته فتني يي بيان کړلي [۳]تردي چې د فتنه احلاس ذکر يي وفرمايه [۴]يو سړي پوښتنه وکړه چې د احلاس څه فتنه ده يعنی د دې فتني به څه نوعيت وي، او هغه به کوم صورت حال کې ښکاره کيږي، [۵]حضور ﷺ وفرمايل هغه تيښته او ناحق مال اخستل وي، [يعنی د هغه فتني به دا صورت وي، چې خلق به خپلو کې سخت بغض او عداوت ساتلو او باهمي نفرت او دښمني په وجه يوبل نه تښتي ځوك به د چا صورت ليدو او چاسره د ښه رواداري کونکی نه وي، او د يوبل مال په زبردستی اخستو او هضم کولو بازار به ګرم وي،] [٦]او بيابه د سراء فتنه وي د دې فتني تباهي به د هغه سړي د قدمونو لاندي نه وځي، يعنی د دې فتني قائد به هغه سړی وي چې ځما د اهل بيت نه به وي [۷]د هغه سړي ګمان خوبه داوي، چې هغه د فعل او کردار د اعتبار نه هم ځما د اهل بيت نه دی ليکن حقيقت به داوي چې هغه به د نسب د اعتبار نه ځما د اهل بيت نه نه وي خکه چې دفعل او کردار د اعتبارنه ځما دوستان خوهغه خلق کيدي شي کوم چې پرهيزګار وي

**حل اللغات**:- ①الْأَحْلَاس:دَ حلس جمع ده ټاټ او بوجئ ته وائی ②هَرَبٌ: دبغض اوحسد د وجې نه تختيدل. ③السَّرَّاء:عيش عشرت اوکثرت دَمالونو اوخوشحالئ ته وائی. ④دَخَنُهَا:راپورته کونکې ددې دشمنئ او عداوت.

[۱]ثُمَّ يَصْطَلِحُ النَّاسُ عَلَى رَجُلٍ كَوَرِكٍ عَلَى ضِلَعٍ،[۲]ثُمَّ فِتْنَةُ الدُّهَيْمَاءِ لَا تَدَعُ أَحَدًا مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ إِلَّا لَطَمَتْهُ لَطْمَةً،[۳]فَإِذَا قِيلَ: انْقَضَتْ تَمَادَتْ، يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا،[۴]حَتَّى يَصِيرَ النَّاسُ إِلَى فُسْطَاطَيْنِ: فُسْطَاطِ إِيمَانٍ لَا نِفَاقَ فِيهِ، وَفُسْطَاطِ نِفَاقٍ لَا إِيمَانَ فِيهِ،[۵]فَإِذَا كَانَ ذَلِكَ فَانْتَظِرُوا الدَّجَّالَ مِنْ يَوْمِهِ أَوْ مِنْ غَدِهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**:[۱]بيا د هغه فتني نه پس به خلق په يو داسي سړي باندې اتفاق وکړي چې د پښتی د پاسه د ټکرې په شان به وي [۲]بيابه دوهيماء فتنه ښکاره شي. او هغه فتنه به دې امت نه هيڅ داسي سړی نه پريږدي، چې په هغه د هغه څپيره، د څپيري په طور ونه لګيږي،

(۳) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الترجل /باب ذكر الفتن ودلائلها(رقم-۴۲۴۲) واحمد في المسند:۲/۱۳۳

يعنې هغه فتنه به دومره وسيعه او همه ګيره وي، چې د امت هرسړي ته به د هغه خراب اثرات ورسي، او هرمسلمان به د هغه په ضرر او نقصان کې اونخلي، ۩او هرکله چې اوويل شي، چې دافتنه ختمه شوي ده، نو د هغه موده به څه نوره زياته شي معنې خلق به دا ګمان کوي چې فتنه ختمه شوي ده خو په حقيقت کې به هغه د ختميدو حد ته نه وي رسيدلې، بلکې څه نوره اوږده به شي، دا جدا خبره ده، چې څه وخت د هغه اثر لږ کم شي چې خلق به د هغه د ختميدو ګمان کول شروع کړي، ليکن وروسته به بيازياته شي، هغه وخت به سړی سهار کې د ايمان په حالت کې پاځيږي، او په ماښام کې به کافرسي، يعنې د هغه فتنې داثراتو نه به د خلقو د زړه او دماغ په حالت او کيفيت کې دومره تيزي سره تبديلي پيدا کيږي چې مثلاً يو سړی په سهار کې پاځيږي نو د هغه ايمان او عقيده به صحيح وي، او د دې پخته اعتقاد حامل به وي چې د يومسلمان ورور وينه بهيول يا د هغه بې عزتي کول يا د هغه مال واسباب هضم کول او ورته نقصان رسول قطعًا حلال نه دي، خو ماښام کيدو سره به د هغه ايمان او عقيده کې تبديلي راشي، او هغه به د خپل قول او فعل نه داثابتول شروع کړي، چې ګويا د هغه په نز د يومسلمان ورور وينه بهيول، د هغه بې عزتي کول، او د هغه مال او جائيداد هضمول او ورته نقصان رسول جائز او حلال دي، دغه شان هغه چې سهار وخت کې مؤمن وي ماښام ته به هغه دعقيدې د تبديلي په وجه کافر شي، او داصورت حال به جاري وي، ۩تردې چې خلق به دووخيمو کې تقسيم شي، يوه خيمه به د ايمان وي چې په هغه کې به نفاق نه وي، او يوه خيمه به د نفاق وي، چې په هغه کې به ايمان نه وي ۩هرکله چې داخبره ظهور ته راشي، نو بيا په هغه ورځ يا د هغه ورځې نه په راتلونکې ورځ د دجال د ظاهريدو منتظر اوسئ

**حل اللغات:**-⑤وَرِكٍ: غټ هډوکې، کوناټې، ⑥ضِلَعٍ: پښتئ، ⑦الدُّهَيْمَاءُ:دُهيماء دَ دَهماء تصغيردې کوم چه دَمذمت اوتحقيردَپاره دې، ⑧لَطْمَةً: څپيړه، ⑨انْقَضَتْ: ختمه شوې ده، ⑩تَمَادَتْ: اوږده او زياته به شي، ⑪فُسْطَاط: خيمه

**تسهيلات:**

**قوله: حَتَّى ذَكَرَفِتْنَةَ الْأَحْلَاسِ:**

**احلاس سره د تشبيه وجه:** دَ دې فتنې دَحلس اوټاټ سره څکه تشبيه ورکړې شوې ده چه ټاټ په يوځائی باندې پروت وی دَ اخواکيدو نوم نه اخلی دافتنه به هم چه کله کورونوته داخل شی نو هغې سره به داسې اونخلی چه دَختميدو نوم به نه اخلی. لکه څنګه چه ټاټ انخلی يا په دې فتنه کښې دَ اخته خلقو تشبيه ټاټ سره ورکړې شوې ده چه خلق به دَ دې فتنو دَ وجې نه په کورونو کښې داسې انختلی ناست وی څنګه چه ټاټ وی او هغوی له هم دغه شان کول پکاردی.

**توله: قَالَ: "هِيَ هَرَبٌ وَحَرَبٌ":**
**د هرب او حرب مفهوم**: دَ سائل دَ سوال په جواب کښې حضورپاك دَ أحلاس دَ فتنې باره کښې وضاحت اوفرمائيلو چه په دې کښې به خلق يوبل نه دَ عداوت اوبغض او دَ حسد دَ وجې تختی دا هرب دې اوخلق به دَ يو بل نه مالونه په زور اخلی داحرب دې حرب دَ محروب په معنی کښې دې مال په زور اخستو ته وائی
**د احلاس فتنې مصداق**: حضرت شاه ولی الله رحمه الله دَ فتنۀ أحلاس مصداق دَ حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه شهادت اودَ حجاج بن يوسف فتنه گرځولې ده
**دامیر معاویه رضی الله عنه مدبرانه سوچ**: تفصيلی قصه داسې پيښه شوه چه دَ حضرت مغيره بن شعبه رضی الله عنه په مشورې سره کله حضرت معاويه رضی الله عنه يزيد خپل ولی عهد مقررکړو نودَ وصيت په توګه ئی هغه ته اووئيل چه ستا دَ حکومت به څلورکسان مخالفت کوی
① عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنه کيدې شی ده ته دَ مقابلې موقع ملاؤ نه شی
② عبدالله بن عمر رضی الله عنه دې صوفی سړې دې چرته غاړې ته به شی
③ عبدالله بن زبير رضی الله عنه دې دَ لومبړې نه زيات چالاك دې دَ ده نه هوښيار اوسيږه
④ حسين بن علی رضی الله عنه دَ ده حضورپاك سره قرابت دې دَدغه قرابت ډير زيات خيال ساته دَحضرت معاويه رضی الله عنه تجزيه په تيك توګه رښتياثابته شوه. دَحضرت عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنه انتقال اوشو اوعبدالله بن عمر رضی الله عنه کناره کش شو
**په مکه کښې دعبدالله بن زبيررضی الله عنه اعلان خلافت**: حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنه دَيزيد دَ بيعت نه اوتختيدو په مکه مکرمه کښې ئی دَ خپل خلافت اعلان اوکړو کله چه حضرت حسين رضی الله عنه په ميدان کربلاکښې شهيد کړې شو نودَ مدينې منورې خلقو دَ يزيد داطاعت نه انکاراوکړو
**په مدينه منوره حمله**: يزيد دَ شام نه يو لوئی لښکرمدينې طرف ته روان کړو شامی فوج دَ مدينې محاصره اوکړه اولوئی لوټ مارئی اوکړو دَ واقعه حره او احجارزيت په شان وينې تويونکې واقعات پيښ شو
**په مکه مکرمه حمله**: کله چه دَمدينې تقدس دَ خپو لاندې کړې شو نودَمسلم بن عقبه په مشرئی کښې يزيد هم دغه لښکردَمکې طرف ته روان کړو چه عبدالله بن زبير رضی الله عنه ته شکست ورکړی مسلم بن عقبه الله تعالی هلاك کړو دَهغه په ځائی حصين بن نمير اميرجوړکړې شو هغه دَ مکې مکرمې محاصره اوکړه اودَ عبدالله بن زبير رضی الله عنه خلاف ئی په حرم شريف کښې جنګ شروع کړو په بيت الله باندې ئی ګوله باری اوکړه اهل مکه ډير مشقت اوچت کړو چه په دې کښې غيرمتوقع توګه باندې يزيدهلاك شو په دې وجه

حصین بن نمیر دَمکې نه محاصره اوچته کړه او واپس لاړو دې نه پس دَ عبدالله بن زبیر ﷺ خلافت وسیع شو اومکه مدینه حجاز مقدس مصر اوعراق ټولو علاقوباندې دَهغه حکومت قائم شو دَ یزید خوئی دَ کوم نوم چه معاویه وو دوه میاشتې حکومت اوکړو اوبیا هغه هم مړشو دې نه پس تقریبًا په ټول عالم اسلام باندې دَ حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ حکومت قائم شو

**د مروان بن حکم اعلان خلافت:** لیکن شپږ اووه میاشتې پس مروان بن حکم په شام باندې قبضه اوکړه او په دمشق کښې ئې دَخپل خلافت اعلان اوکړو اودَ حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ په مقابله کښې راپاسیدو دَ شام نه پس عراق اومصر هم دَحضرت عبدالله بن زبیر ﷺ دَ لاس نه اووتلو

**دعبدالله بن مروان د حکومت آغاز:** کله چه دَ مروان بن حکم انتقال اوشو نودَ هغه خوئی عبدالملك بن مروان په تخت کیناستو هغه په خپل جنګی قوت اوطاقت سره دَ حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ نه ټولې علاقې آزادې کړې

**دحجاج بن یوسف په مکه حمله:** او په آخره کښې ئې حجاج بن یوسف د عبدالله بن زبیر ﷺ خلاف دَمکې مکرمې طرف ته روان کړو. حجاج بن یوسف دَمکې مکرمې محاصره اوکړه او په جبل ابوقبیس باندې ئې منجنیق لګولو سره په بیت الله باندې کاڼړی ورول شروع کړه حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ په بیت الله کښې محصور وو په آخره کښې هغه دَ جنګ میدان ته راغلو اوپه ډیره بهادرئی سره ئې دَ حجاج ظالم مقابله اوکړه مګر په آخره کښې په ۷۳هجری کښې ئې دَ حجاج دَ لاسه دَ شهادت جام نوش کړو دَهغوی دَ خلافت موده شپږ کاله وه دَ حضرت شاه ولی الله ﷫ دَ قول مطابق دَ واقعهٔ احلاس مصداق هم دغه پوره تفصیل دې کوم چه طویل دې یعنی دَ ټاټ په شان انختونکې فتنه مراد ده

**قوله:** ثُمَّ فِتْنَةُ السَّرَّاءِ:

**د سراء په وجه تسمیه کښې دوه اقوال:** ① دافتنه هم دغه شان دکثرتِ اموال اوعیش اوتنعم دَ وجې نه راغلې وه په دې وجه دَدې نوم سراء کیخودلې شو

② دا دَ سرور څخه نه ده بلکه دَ سر(بکسرالسین، پټ) نه څخه ده یعنی دا یوه سازشی فتنه وه چه په ظاهره دَ ساداتو اواهل بیتو دَحمایت په نوم سره وه مګر پټه دَ اسلام په ختمولوباندې مبنی وه چه دَ مختارثقفی په شکل کښې وه دامطلب ډیر ښه دې

**د فتنة السراء په مصداق کښې دوه اقوال:** ① بعضې علماؤ فتنة السراء مصداق دَ مکې شریف او انګریزان ګرځولی دی په کوم کښې چه انګریزانو په سازش سره دَ ترکیانو خلافت ختم کړو انګریزانو به شریف حسین مکه ته دَمیاشتې پنځه لاکهه پونډه ورکول او آل سعود عبدالعزیز ته به ئې دَمیاشتې دوه لاکهه دَبرطانیه پوندونه ورکول اودا دواړه

به ئې په جزیره عرب کښې جنګول دَ شریف مکه نه پس دَهغه یو نالائق ځوئی په تخت کیناستو چه په دې حدیث کښې دَ "کَضِلَعٍ عَلٰی وَرِكٍ" په نوم سره یاد کړې شوې دې دَ هغه نه هیڅ هم اونه شو اودَترکو خلافت دَ برطانیې حکومت ختم کړو او شازش مکمل شو
④ حضرت شاه ولی الله رحمه الله دَدې فتنې مصداق مختار بن عبید ثقفی ګرځولې دې دا سرې دَ شیعان علی څنې وو اهل کوفه چه کله حضرت امام حسین رضی الله عنه سره بې وفائی اوکړه اوهغه په کربلا کښې شهید کړې شو نودغه سړی دَ واقعهٔ کربلا نه فائدې اوچتولو په غرض سره دَ قاتلین حسین رضی الله عنه نه دَ انتقال اخستلو اعلان اوکړو مسلم بن عقیل به دَدې سړی کور ته تلو راتلو دَ هغې نه هم ده تائید حاصل کړو دغه شان دَ حضرت علی رضی الله عنه دَمشهور ځوئی محمدبن حنفیه څخه هم هغه ته تائید حاصل شو هلته په کوفه کښې دَ توابین په نوم باندې یو جماعت جوړشوې وو دکوم مقصد چه دا وو چه مونږ دَ حضرت امام حسین سره بې وفائی کړې ده اوس مونږ توبه کوو اودَ قاتلین حسین نه بدله اخلو مختار بن عبید ثقفی په ډیره چالاکئی سره دَ دغه خلقو نه هم خپل تائید حاصل کړو او پوره ډله ئې جوړه کړه مختار ثقفی ډیر دَ دروغو دعوې هم اوکړې چه په هغې باندې دکوفې ګورنر ګرفتارکړو او په جیل کښې ئې واچولو مګر دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنه په سفارش باندې دَ جیل نه خلاص کړو.

**دمختار ثقفی د تحریک عروج او خاتمه:** کله چه دا سړې دَجیل نه راغلو نودَ هغه قوت نور هم زیات شو دَتوابین جماعت سره دَ هغه رابطې وې هغوی ئې منظم کړل او خپل ځان ته ئې سید او اهل رسول وئیل شروع کړه بلکه دَ نبوت دعوی ئې هم اوکړه اوس دَعلاقې دَ ګورنردَ لاس نه دا سړې اووتلو اودَ کوفې ګورنرسره ئې جنګ اوکړو اوسرکاری فوجونه ئې ماتې ورکولوسره په کوفه باندې قبضه اوکړه دکوفې بې ګناه خلق ئې په ډیره بې دردئی سره قتل کړل ځوك هم چه په مخالفت کښې راغله هغه اووژلې شو تردې چه حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه خپل رور مصعب بن زبیر دَ بصرې ګورنرمقررکړو اودَمختار دَ بنکته کولودپاره ئې روان کړو هغه راغلو اومختار ثقفی ئې قتل کړو دغه شان دا فتنه ختمه شوه. په دې حدیث کښې دَ فتنه سراء نه هم دغه دَ مختار ثقفی فتنه مراد ده

**قوله: ثُمَّ يَصْطَلِحُ النَّاسُ عَلَى رَجُلٍ:**

**د رجل مصداق:** یعنی دَدې فتنونه پس به خلق دَ یو داسې سړی په حکومت باندې صلح اوکړی چه پخپله به ناپائیداروی لکه چه په پوښتنی باندې چه پیر پتون سورکړې شوې وی حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی دَدې کمزوری سړی نه مراد مروان بن حکم دې سره دَدې چه دَ مختار ثقفی دَ فتنې نه مخکښې مروان انتقال شوې وو لیکن دَدې سازشونو ابتداء دَ هغه وخت نه شوې وه کله چه مروان بن حکم دَ حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه په

مقابله کښې په شام کښې دَ خپل خلافت اعلان اوکړو نو په توګه دَجملې معترضې کـه دَ مروان تذکره دَدې حدیث نه لرې شان وړاندې یا لرشان روستو راغلې ده نو په دې کښې هیڅ مضائقه نشته. شاه صاحب دَدې جملې نه مروان بن الحکم مراد اخستې دې. دې سړی نه دَ رائې څه پوخوالې لرلو او نه په کښې څه تدبیر وو اونه په کښې دَ فیصلې قوت وو بلکه دَغیرمستقل مزاج کمزورې رائې مالك وو. هم دَ دغـه کمزورئې تشبیه پـه دې حدیث کښې داسې ورکړې شوې ده لکه چه مضبوط پتون په کمزورې پوښتئې باندې سورکړې شوې وی لکه چه دَ چیلئې په خپو باندې میخه اودرولې شوې وی. دَدې سړی ښې لاس اودَ ټولو فتنو جرړه عبیدالله بن زیاد وو. خلقو په هغه باندې صلح کولو سره دَ هغه بیعت اوکړو اوهغه دَ حضرت ابن زبیر رضي الله عنه خلاف محاذ کولاؤ کړو دغه شان په امت کښې دَدې خلقو دَ وجې نه لوئې فتنې پیدا شوې.

**قوله: ثُمَّ فِتْنَةُ الدُّهَيْمَاءِ لَا تَدَعُ أَحَدًا مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ إِلَّا لَطَمَتْهُ لَطْمَةً:**

**د فتنة الدهيماء مصداق:** حضرت شاه ولی الله رحمه الله دَدې متعلق فرمائی چه دا پـه بغداد باندې دَ تاتاریانودَحملې او عام وینوتویولو فتنه ده. پـه دې فتنې سره اسلامی مملکت بغداد اوهغې ښارونه تاتاریانو تباه اوبرباد کړل او په یوتور طوفان سره ئې دَمسلمانانو قتل عام اوکړو.

**مستعصم بالله خلافت:** دَدې تفصیل دادې چه ۷۰۰هجری پـه مینځ کښې دَبنوعباس آخری خلیفه مستعصم بالله دَ بغداد خلیفه جوړشو داښرې غیرمدبر هم وو او دَحکومتی امورو چلولو کښې نالائق شهزاده وو. دَده یو وزیر وو چه دَهغه نوم علقمی وو چه کټر غالی متعصب علوی شیعه وو. هغه دَ بدې عقیدې او باطن خبث دَ وجې غوښتل چه پـه بغداد باندې دَ عباسیانو دَ خلافت په ځائې دَ علویانو حکومت راشی

**تاتاریانوته په بغداد د حملې کولودعوت:** دَدغې منصوبې کامیابولودَپاره علقمی دَ ټولو نـه مخکښې تاتاریانوسره رابطه اوکړه اودَ چنګیزخان نمسې هلاکوخان تـه ئې پـه بغدادباندې دَ حملې کولو دعوت ورکړو. هلاکوخان دَ بغداد دَ خلقو بهادرئې او اسلامی خلافت نه ویریدلو مګر وزیر علقمی رافضی پـه ډیره چالاکئې سره دَبغداد نـه اسلامی فوج اخوادیخوا کارونودَپاره روان کړلو او بغداد دَ فوجی قوت نه خالی شو

**دوباره په بغداد د حملې کولو دعوت:** دَدې نه پس پوره صورت حال خودلوسره شیعه وزیر علقمی تاتاریانوته یو ځل بیا په بغدادباندې دَحملې کولو دعوت ورکړو. اخوا دَ بغداد نه په سوونو شیعه ګانو هلاکوخان تـه خطونـه اولیکل چه تـه فوری حمله اوکړه ځکـه چه زمونږ په کتابونو کښې لیکلی دی چه یوتاتاری سردار بـه پـه عراق باندې قبضه کوی زمونږ خیال دې چه هغه هم ته ئې لهذا زر حمله اوکړه.

**د رافضيانو اسلامي خلافت سره غداري:** هلته دَ هلاکوخان په حلقه کښې يو مشهور هيجرا رافضي نصيرالدين طوسي وو هغه هم هلاکوخان په بغداد باندې د حمله کولو دَپاره تيارولو دَ ده اوعلقمي خيال وو چه کله دَ بغداد نه اسلامي خلافت ختم شي نودلته به زمونږ علوي رياست قائم شي بهرحال هلاکوخان ته حوصله ملاؤ شوه او هغه په بغدادباندې دَ حملې کولو اراده اوکړه مګر هغه اول خپله فوجي دسته اوليږله اوپه بغداد باندې ئې حمله اوکړه چه هغه کامياب شو دې نه پس هلاکوخان خپل لوئي فوج په بغداد باندې وراوخيژولو محاصره هم سخته وه او مقابله هم سخته وه شيعه ګانو دَ بغداد نه يو شان هلاکوخان ته خبرونه ورکول يعني هغوى دَ داخل نه دَ جاسوسئ محاذ مستحکم ساتلې وو.

**د مستعصم بالله دبغداد غخه بهروتل:** رافضي وزير علقمي ملعون عباسي خليفه مستعصم بالله ته اووئيل چه ته هلاکوخان سره مذاکرات اوکړه اودَ بغداد ښار نه بهرلاړشه هلاکوخان سره ملاقات هم اوکړه دا ډير ضروري دى هغه خلق ستا سو انتظارکوى اوهغوى به ستا اکرام اوکړى. چنانچه دَمسلمانانو بادشاه چه کله دَ بغداد نه بهرلاړو هلاکوخان سره ملاؤشو نوهغه وئيل چه ته خو يوازې ئې دا وسيع مذاکرات دى په دې کښې دَ اوچتې پايې علماؤ اودَ قوم سردارانو اودَ فوج کمانډرانو شرکت ضروري دې ته هغه ټول راؤغواړه دغه غيرمدبر او نادان بادشاه چه کله هغه خلق راؤغوښتل نوهلاکوخان هغه ټول دَ بادشاه په مخکښې قتل کړل. اوبيائې خليفه ته اووئيل چه بغدادښارته پيغام اوليږه چه ټول خلق دې وسله اوغورزوى اوښاردې خالي کړى بهردې راشي چنانچه دغه محبوس نالائق خليفه داهم اوکړه دَهغه په پيغام باندې په لاکهونو انسانان بهر راغله اوتاتاريانوهغوى قتل کول. دَ وينودَ کثرت دَ وجې نه لختي اوبهيدل اودَ دجلې دَ درياب اوبه دَ سرې وينې په شان اوبهيدلې دې نه پس تاتاريان بغيردَ څه مزاحمت نه دَ بغدادښارته داخل شو ښځو اوبوډاګانو په سرونو باندې قرآن پاک اوچتولو سره امان اوغوښتلو مګر تاتاريانوهيڅ ته اونه کتل اونه ئې امان ورکړو بلکه ټول ئې قتل کړل چنانچه په تهه خانوکښې اوکوهيانوکښې يو څو سرى بچ شو باقي ټول مخلوق ئې قتل کړو

**هلاکوخان د بغداد په شاهي دربار کښې:** په دويمه ورځ ۹ سفر ۶۵۶هجري هلاکوخان دَ عباسي خليفه سره په بغدادښارکښې عام درباراولګولو اودَبادشاه نه ئې دَ ټولو خزانو کنجيانې واخستې اوټولې خزانې ئې لوټ کړې بيائې خليفه په توره کوټه کښې اوګې تکې اچولو سره بندکړو دې نه پس هلاکوخان ته طوسي ابليس او علقمي شيطان اووئيل چه دَمسلمانانو دَدې خليفه په ګنده وينه باندې توره مه ګنده کوه بلکه په يوه

بوجئی کښې ئې واچوه او په لتو باندې چقړی کړه هلاکوخان هغه ته اوونیل چه داکارته پخپله اوکړه تاته حواله دې چنانچه علقمی رافضی خپل محسن بادشاه مستعصم بالله بوجئی کښې واچولو اوستني پورې ئې اوتړلو او په لتوباندې وهلوسره ئې چقړی کړو اوبيائې د تاتاريانو د اسونو دخپو لاندې واچولو او اسونوهغه ريزه ريزه کړو علقمی شيطان د اليدل اوخوشحاليدلو په دې سره د خلافت عباسيه ددور خاتمه اوشوه اود بنوعباس آخرى خليفه ته گوروكفن هم نصيب نه شو

**د کتب خانو سوزول:** دې نه پس هلاکوخان اسلامی کتب خانوته مخ کړو اوعظيم علمی سرمايې ته ئې اور اولگولو اوکتابونه ئې په دجله درياب کښې اوبهيول اوس د دجلې اوبه د سرو وينو په ځائې تور طوفان جوړشو بهيدلو اود څو ورځوپورې مقدس پانړو داعلمی سرمايه د دجلې د موجونوسره بهيدلې. دې دتباهئې حادثه کښې دبغداد او د مضافاتو دمقتولينو تعداد يوکروړ شپږ لاکهه خودلې شوې دې

**د صدام په مرگ د شیعه گانو خوشحالی:** د شیعه په شرارت چه کله امريکه صدر صدام حسين ته پهانسی ورکړه نوشيعه گانو د خوشحالئی نه بهرپه سړکونو ډانسونه کول اومټهايانې ئې تقسيمولې. هائې افسوس چه دنيا ته د شيعه رافضيانو د خباثتونو اندازه اوشی چه دا بدباطن څنگه چه د پرون فساديان وو دغه شان د نن هم فساديان دی

**شیعه گانو د فتنو جوړه:** چنانچه علماؤ ليکلی دی چه د مسلمانو د اکثرخلافتونو سقوط د روافضو په لاس شوې دې. شاه انورشاه کشميری رحمه الله فيض البارى کښې ليکلی دی "وأكثر تخريب الخلافة الإسلامية على أيدى هؤلاء الروافض" بهرحال علقمی ملعون چه د کوم مقصد دپاره لويه غدارى کړې وه هغه مقصد علوى رياست قائمول وو مگر هغه په دې کښې کامياب نه شو هغه د هلاکوخان ته ډير منت زارى اوکړه ليکن هغه هيڅ هم وانوريده اوپه بغدادباندې ئې خپل سړی مقرر کولوسره علقمی او طوسی کورې کړل علقمی رافضی به د غلامانو په شان د تاتاريانو خپلئی سيدا کولې او بيا هم په دغه غم کښې مردارشو دادواقعه دهيماء تفصيل دې چه په دې حديث کښې ورته اشاره کړې شوې ده

**[۵٤٠٤] د عربو د پوې فتنې پيش کونې**

۵٤٠٤-(")[۲٦] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ، [۳] أَفْلَحَ مَنْ كَفَّ يَدَهُ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

(") ) اخرجه البخارى فى كتاب الفتن /باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: «ويل للعرب من شر قد اقترب» (رقم -۷۰۵۹) ومسلم فى كتاب الفتن وأشراط الساعة /باب اقتراب الفتن وفتح ردم يأجوج ومأجوج (رقم -۲ - (۲۸۸۰) وابوداود فى كتاب الترجل /باب ذكر الفتن ودلائلها(رقم -۴۲۴۹) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى خروج يأجوج ومأجوج (رقم -۲۱۸۷) وابن ماجه فى كتاب الفتن /باب ما يكون من الفتن (رقم -۳۹۵۳) واحمد فى المسند: ۴۴۱/۲

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابو هریره ﷛ نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] فسوس او بدنصیبي ده د عربو د هغه شر یعنی فتنې نه چې نزدې راغله [۳] او فتنه کې به هغه سړی نجات یافته او کامیاب وي، چې هغه خپل لاس نیولی وساتی. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① وَيْلٌ: تباهي ده، بد نصيبي ده.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ.

**د عربو په تخصیص کښې دوه وجوهات:** ① دَ اهل عرب تخصیص ددې وجې وشو چه هغوی راس القوم المسلم دی یعنی دوی معظم المسلمین دی نوچې د دوی دَ پاره ویل دې نودَ نورو دَ پاره خو به په طریقه اولی وی.

② د عربو تخصیص په هغوی باندې د شفقت په وجه وشو.

**د شر په مصداق کښې دوه اقوال:** ① ددې شرځخه مراد دَ حضرت عثمان ﷛ قتل دې چه دَ هغې نه پس دومره فتنې واقع شوې چه عرب دَ خلقو په مینځ کښې داسې شو لکه څنګه چه دَ خوراک والا دَ پاره پلیټ وی کما وقع فی الحدیث الاخر یوشك ان تداعی علیکم الامم کما تداعی الا کلة علی قصعتها.

② قرطبی ﷫ فرمائی دا احتمال هم کیدیشی چه دَ شر نه مراد هغه فتنې وی دَ کومو ذکر چه دَ ام سلمه ﷝ په روایت کښې دې فرمائی ماذا انزل اللیلة من الفتن وماذا انزل من الخزائن دې سره اشاره هغه فتوحاتوطرف ته ده کوم چه دَ رسول الله ﷺ نه پس شوی چه خلقو ته ډیر مالونه حاصل شو نو خلقو کښې تنافس پیدا شو بیا فتنې رابنکاره شوې دغه شان دَ امارة باره کښې هم اختلافات پیدا شو تردې چه په حضرت عثمان ﷛ باندې دَ خپلوانو خیال ساتلو الزام هم اولګولې شو کوم چه په دَ هغوی په قتل باندې ختم شو او بیا په مسلمانانو کښې هم دغه جنګ راروان وو.

**[۵۴۰۵] د فتنو نه د حفاظت خوش بختی**

۵۴۰۵-(٤٥)[۲۷] [۱] وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: [۲] «إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنَ، إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنَ، إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنَ، [۳] وَلَمَنِ ابْتُلِيَ فَصَبَرَ فَوَاهًا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت مقداد ابن اسود ﷛ وايي، ماد رسول الله ﷺ نه واوریدل، [۲] یقینا ① نیك بخت سړی هغه دی چې د فتنو نه محفوظ کړل شو ، ② یقینًا نیك بخت سړی هغه

[۴۵] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی النهی عن السعی فی الفتنة (رقم-۴۲۶۳)

دی چې د فتنو نه محفوظ کړل شو ، ③يقينًا نيك بخت سړی هغه دی چې د فتنو نه محفوظ کړل شو ، ④او يقينًا نيك بخت هغه سړی هم دی چې په فتنه کې مبتلا شو ليکن هغه د صبر او ضبط لمن نيولي وساتله .(ابوداؤد)

او قابل افسوس هغه سړی دی چې نه د فتنو نه محفوظ شو او نه هغه صبر او ضبط اختيار کی

**حل اللغات:** - ①السَّعِيدَ: نيک بخت، ②جُنِّبَ: محفوظ اوساتلې شو، ③وَاهًا: واه، واه، يعنی مزې دی ده لره

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنَ:

**دسعادت حاصليدو دوه صورتونه:** سعيد هغه دې چه د فتنو نه محفوظ وی يعنی هغه دفتنوزمانه نه وی موندلې ددې وجې بعضې صحابؤ به خپلو دعاګانو کښې دا دعا کړې ده چې يا الله ما د فتنې زمانې ته مه پاتې کوه بلکه دهغې څخه وړاندې ما د دنيآ څخه وفات کړه

② يعنی د فتنې زمانه خوئې موندلې وی خو د هغې نه لرې وی دا خبره رسول الله ﷺ درې کرته اوفرمائيله.

**قوله:** وَلَمَنِ ابْتُلِيَ فَصَبَرَ فَوَاهًا:

**د فواه په مفهوم کښې دوه احتمالات:** ① ددې معنی دَ افسوس هم کيدې شی په دې صورت کښې به معنی دا شی چه "فواهًا" لفظ دَ ماقبل جملې "لمن ابتلی فصبر" نه جدا ده اودَ محذوف جملې سره ئې ارتباط دې. نو ترجمه به داسې شی چه دَافسوس قابل هغه سړې دې چه دَفتنونه محفوظ نه وی ساتلې شوې وی اوهغه صبراو ضبط نه وی اختيار کړې

② دَفواه معنی خوشحالئی هم کيدې شی په دې صورت کښې به ترجمه داسې شی چه دَ فتنو نه محفوظ پاتې کيدل او صبراو ضبط اختيارول ډيره ښه اودَ خوشحالئی خبره ده

**[٥٤٠٦] دقيامت څخه مخکې يو څو پيشنګوياني**

٥٤٠٦-(٣)[٢٨] ①وَعَنْ ثَوْبَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِذَا وُضِعَ السَّيْفُ فِي أُمَّتِي لَمْ يُرْفَعْ عَنْهَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، ③وَلَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَلْحَقَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي بِالْمُشْرِكِينَ، ④وَحَتَّى تَعْبُدَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي الْأَوْثَانَ، ⑤وَإِنَّهُ سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي كَذَّابُونَ ثَلَاثُونَ، كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيُّ اللَّهِ، وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ، وَلَا نَبِيَّ بَعْدِي،

[١٤] ) اخرجه ابوداود فی کتاب الترجل /باب ذکر الفتن ودلائلها(رقم-٤٢٥٢)والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب(رقم-٢٢٠٢) وابن ماجه فی کتاب الفتن /باب مايکون من الفتن (رقم-٣٩٥٢)واحمد فی المسند: ٢٧٨/٥

**ترجمه:** [۱] او حضرت ثوبان ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] هرکله چې ځما په امت کې خپلو کي توره وچليږي نو بيابه ترقيامته پورې د امت د خلق د قتل وقتال نه منع نشي [۳] او ترهغه وخته پورې به قيامت نه قائميږي ترڅوپورې چې ځما د امت بعضې قبائل مشرکينو سره يوځاى نشي [۴] او هغه وخته پورې به قيامت نه قائميږي څوپورې چې زما دامت بعضې قبائل دبتانو عبادت کول شروع نکړي [۵] وحقيقت دادى چې زما په امت کې به ديرش دروغ جن يعني دنبوت دعوى کونکي ظاهر شي په هغوى کې به هريو داګمان کوي چې هغه دالله نبي دى حال دا چې واقعه داده چې زه خاتم النبيين يم زمانه پس به هيڅوك نبي نه وي

**حل اللغات:** - ① الْأَوْثَانَ: بتان.

[۱] وَلَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ، [۲] لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] اوزما امت کې به هميشه يوجماعت په حق باندې ثابت قدم وي يعني په علمي طور سره هم او په عملي طور سره هم د دين په صحيح لاربه تلونکي وي او د دين په دښمنانو باندې به غالب وي [۲] د دې جماعت هيڅوك مخالف اوبدخواه به هغه ته څه نقصان نشي رسولى ځکه چې ددي جماعت خلق به دين باندې ثابت قدم اوبرحق کيدو په وجه دالله دمدد اونصرت سايي کې وي تردي چې دالله حکم راشي.

**حل اللغات:** -② ظَاهِرِينَ: غالب به وى، ③ أَمْرُ اللهِ: دالله حکم يعنى قيامت.

**تسهيلات:**

**نوټ** دحديث د «وضع السيف» وضاحت د حديث نمبر(۵۳۴) په تسهيل کښې شوې دې هغې ته رجوع اوکړئ

**قوله:** حَتَّى تَلْحَقَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي بِالْمُشْرِكِينَ

**د قبيلود ارتداد په مصداق کښې دوه احتمالات:** ① په دې کښې اشاره ده د هغوى ارتداد ته کومه چه په خلافت صديقى کښې بيا موندلې شوه

② په دې کښې اشاره ده د اندلس (سپين) د ارتداد واقعاتو ته .لږ وضاحت ئې دا دى اندلس کښې د مسلمانانو تقريبا تر د اتو سوو کلونو پورې حکومت وو خو خپل مينځ کښې د اختلاف په وجه باندې دا ورځ هم اوليدې شوه په مزه مزه ټول مسلمانان جلا وطن کړې شو. چرته چه لوئې لوئې ائمه ابن حزم، ابن عبدالبر، ابو الوليد الباجى، قاضى عياض وغيره پيدا شول او د علومو مناره ئې روښانه کړه، او لوئې لوئې ښهرونه قرطبه، اشبيليه، سبته، مليله وغيرها ئې په علوم او فنون سره آباد کړل هغه ټول د

مسلمانانو د لاس نه اوتل، اوكله چې هلته د نصاراو غلبه مكمل شوه نو ډيرو مسلمانانو د هغه ځائې نه هجرت اوكړو او ډير كوم چه هلته پاتې شو د هغوى نه جبرا نصارى جوړ كړې شو،

**قوله:** وَحَتّٰى تَعْبُدَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي الْأَوْثَانَ،

**دبتانوپه عبادت كښې احتمالات:** ① د بتانو د عبادت نه قبرپرستئ طرف ته اشاره ده كوم چه مبتدعين كوى

② د دې نه حقيقى بت پرستى مراد ده كومه چه به په آخر زمانه كښې واقع كيږى چه د هغې طرف ته په يو بل حديث كښې رسول الله ﷺ اشاره فرمائيلې ده ﴿لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَضْطَرِبَ أَلَيَاتُ نِسَاءِ دَوْسٍ عَلٰى ذِي الْخَلَصَةِ﴾ رواه البخارى ومسلم، يعنى قيامت به نه قائميږى ترڅو چه د قبيله دوس د زنانو كوناتې حركت اونه كړى په ذوالخلصه باندې، ذوالخلصه د يو مشهور بت كدې نوم دې، او د اضطراب سرين نه مراد د هغه زنانو د دې بت نه ګيرچاپيره تاويدل دى او طواف كول مراد دى، يعنى ترڅو چه دوباره بت پرستى شروع نه شى (بذل،بتصرف)

**قوله:** وَإِنَّهُ سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي كَذَّابُونَ ثَلَاثُونَ،

**دپيښورپه عدالت كښې د مدعى نبوت قتل:** د دې نه مراد مدعيان د نبوت دې كوم چې به مختلفو زمانو كښې تيرشوى دى اوكيدې شى روسته هم راشى. يومياشت دوه وړاندې زمونږ د پيښورپه عدالت كښې فيصل خالد نوم يونوجوان هلک يومدعى د نبوت قتل كړلو كوم چې د كال ۲۰۱۸ ځځه په جيل كښې وو اومقدمه پرې چليده الله تعالى ورته د خالدبن وليد پشان اود علم الدين شهيد پشان بل خالد راپيدا كړل اودا دروغژن مدعى د نبوت ئې هلاک كړل فى الحال په جيل كښې دې دعا كوئ چې الله تعالى ئې د جيل ځځه راآزاد كړى اود مورپلار سترګې پرې يخې شى

**د ثلاثون په عدد باندې اشكال:** په مسند احمد كښې دَ حذيفه ﷺ په روايت كښې دى سيكون فى امتى كذابون دجالون سبعة وعشرون منهم اربع نسوة وانى خاتم النبيين لانبى بعدى په روايت كښې سبعون واقع دې اوپه حديث الباب كښې ديرش دې دا تعارض دې

**داشكال درې جوابونه:** ① په حديث كښې د عدد ځځه مقصود د ثلاثين تحديد نه دې كثرت بيانول دى

② دَ سبعون والا روايت ضعيف دې دَ نبوت دعوى كونكى ديرش يا ديرشو ته نيزدې دى او باقى مطلقًا كذابون دى

③ بعض حضرات فرمائى دې نه مراد مدعيين نبوت نه دى ځكه چه مدعيين نبوت خو

ډیر تیر شوی دی په دې کښې بعض هغه هم دی چا چه دَ لیونتوب په وجه دَ نبوت دعوی کړې ده بلکه مراد ترې نه داسې مدعیین نبوت دی چاته چه په دنیاکښې څه قدرې عزت حاصل شوې دې

**قوله: كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيُّ اللهِ، وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ، وَلَا نَبِيَّ بَعْدِي،**

**دغلام احمد قادیانی ظهور:** په بذل المجهود شرح سنن ابی داؤد کښې دی تر دې زمانې پورې ډیر په هغوی کښې ښکاره شوې هم دی، لکه چه په موجوده زمانه کښې د غلام احمد قادیانی ظهور شوې دې د پنجاب په ارخونو کښې په قادیان ښهر کښې کوم چه د امرتسر په مضافاتو کښې دې **(فادعی انه مهدی، وانه المسیح وانکر نزول المسیح، وادعی ان عیسی بن مریم علیهما السلام توفی وقبره فی کشمیر)** وراندې حضرت فرمائی چه کیدې شی بعض د دې دیرشو نه باقی وی، او که په دیرشو باندې د دې عدد زائد هم شی نو د دې حدیث خلاف به نه وی **( لان مفهوم العدد لا یعتبر وفی هامش الترمذی عن اللمعات والدجال الاکبر خارج عن هذا العدد لانه یدعی الالوهیة وبه فارق الدجالین ١ هـ)**

**په تاریخ کښې مدعیان نبوت:** بعض علماء کرام فرمائی که مدعیان نبوت والوهیت او مهدویت اودې نه علاوه کذابین شمیر کړې شی نو هغه دیرشو ته نیزدې کیږی

① اسود عنسی صاحب صنعاء قتله فیروز
② مسیلمه کذاب قتله وحشی بن حرب رضي الله عنه
③ ابن صیاد
④ طلیحه
⑤ سجاح بنت سوید ، کانت تحت مسیلمة واعطت النبوة لزوجها دې ښځې خپل خاوند ته نبوت وربخشش کړې وو اودَ خپل امت نه ئی دَ مازیگر مونځ معاف کړې وو
⑥ مختار ثقفی فی زمن ابن الزبیر
⑦ متنبی شاعر ثم تاب
⑧ بهبود فی زمن معتمد بالله
⑨ یحیی رکرویه القرمطی فی زمن مکتفی بالله
⑩ دَ یحی رکرویه رور حسین
⑪ دَ یحی رکرویه دَ تره خوئ عیسی بن مهرویه
⑫ ابوطاهر القرمطی ده حجر اسود دَ بیت الله نه راویستې وو
⑬ محمد بن علی الشلمعانی
⑭ شاب یزعم انه اله دَ ده گمان ووچه دَ حضرت علی رضي الله عنه روح په ده کښې راغلې دې اودَ

فاطمه بی بی ﷞ روح دَ ده په ښځه کښې راغلې دې

⑮ په مقام نهاوند کښې ډیرو خلقو دَ نبوت دعوی کړې وه

⑯ یوسړی کوم چه خپل نوم لا ایخودې وو او وئیل ئی چه دَ حضورپاک ﷺ دَ فرمان لانبی بعدی نه هم زه مراد یم

⑰ ازاری ساحر

⑱ یوه ښځه وه چه دَ نبوت دعوی ئی کوله وئیل ئی چه دَحضور پاک ﷺ فرمان لانبی بعدی دَ سړو په حق کښې دې که دَ ښځو نه نفی کول مقصود وو نو لانبیة به ئی هم فرمائیل

⑲ بیت المقدس کښې یو یهودی ووهغه دَ خپل مسیح کیدو دعوی کړې وه بیا مسلمان شو

⑳ یوبل سړې هم تیرشوې دې چه هغه دَمهدی کیدو دعوی کړې وه.

㉑ اکبربادشاه چاچه دین الهی په هندوستان کښې جاری کړې وو.

㉒ رتن هندی په شپږمه هجرئی کښې دَ صحابی کیدو دعوئی کړې وه کوم چه دَ کاذبینو نه وو.

㉓ اسحاق اخرس تَبِعَه خلق کثیر من الیمن والبصرة

㉔ فارس ابن یحیی ساباطی

㉕ یوګډبه کوم چه دَ موسیٰ ﷤ همسا په لاس کښې اخستې وه او په تصرف سره به ئی دَ هغې نه مار جوړولو.

㉖ عبدالله بن میمون دَ مامون په زمانه کښې

غلام احمد قادیانی په پنجابی هندوستان کښې تیرشوې دې هغه هم دَ نبوت دعوی کړې وه دَ چا رد چه دَ دیوبند علماؤ کړې وو.

## [۵٤۰۷]د یو څو واقعاتو پیشنګویانې

۵٤۰۷ -(٤٢)[۲۹] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②«تَدُورُ رَحَى الْإِسْلَامِ لِخَمْسٍ وَثَلَاثِينَ أَوْ سِتٍّ وَثَلَاثِينَ أَوْ سَبْعٍ وَثَلَاثِينَ، ③فَإِنْ يَهْلِكُوا فَسَبِيلُ مَنْ هَلَكَ، ④وَإِنْ يَقُمْ لَهُمْ دِينُهُمْ يَقُمْ لَهُمْ سَبْعِينَ عَامًا". ⑤قُلْتُ: أَمِمَّا بَقِيَ أَوْمِمَّا مَضَى؟ ⑥قَالَ: "مِمَّا مَضَى»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبدالله ابن مسعود ﷜ د رسول الله ﷺ نه روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ② د اسلام ژرنده (چکي) به پنځه دیرش (۳۵) کاله یاشپږ دیرش (۳۶) کاله یااوه دیرش (۳۷) کاله پورې ګرځي ③ بیا که څه خلق هلاك شي نوپه هغه لار دتلو په وجه به هلاك شي چې په هغه مخکني خلق په تلو سره هلاك شوي وي ④ وکه دهغوی د

[42] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ذکر الفتن ودلائلها (رقم-٤٢٥٤)واحمد فی المسند:۱/ ۳۹۰

دین نظام کامل او برقرار پاتې شو نو د هغه د دیني نظام د تکمیل او برقراری سلسله به د اویا کاله پورې وی [۵]حضرت ابن مسعود ﷺ وایي ما په دې اوریدو سره پوښتنه وکړه چې اویا کاله به بقیه نه وي یا هغه مودې سره به وي کومه چې تیره شوه [یعنی حضور ﷺ د دین د نظام تکمیل او برقراری دپاره چې د کوم اویا کاله موده ذکر فرمایلې ده ایا د هغه نه هغه اویاکاله موده مراد ده چې دهغه ابتداء به ۳۵ یا ۳۶ یاد ۳۷کاله مذکوره زماني تیریدونه پس وي یاهغه مذکوره مالونه به هم په هغه اویا کاله موده کې شامل وي او د هغه په ابتداء کې داسلام ابتدایي زمانه یا د هجرت د وخت نه مراد اخستل شوی ده. [۶]حضور ﷺ وفرمایل دامذکوره کالونه هم په هغه اویا کلونو کې شامل دي او داویاکاله موده هغه مودې سره ده کومه چې د اسلام په ابتدایي زمانه یا د هجرت د وخت نه تر اوسه پورې تیره شوي ده (ابوداؤد)

**حل اللغات** - ① رَحَی: میچن.

**تسهیلات**:

**قوله** تَدُورُ رَحَی الْإِسْلَامِ لِخَمْسٍ وَثَلَاثِینَ أَوْسِتٍّ وَثَلَاثِینَ أَوْسَبْعٍ وَثَلَاثِینَ

**د اسلام دترقۍ ۳۷ کاله**: یعنی دَ اسلام میچن ۳۵بلکه ۳۶بلکه ۳۷هجری پورې په صحیح توګه تاویږی حضرت شاه ولی الله ﷫ په دې حدیث داسې پوهه کول فرمائی چه حضورپاك فرمائیلی دی چه دَ هجرت دَ زمانې نه پس په اسلام کښې چه کومه مضبوطیا او استحکام راغلې دې هغه به دَ ۳۵، ۳۶ او ۳۷کالوپورې روان وی بیا به دَاسلام په دائره کښې لږ شان اضطراب شروع شی

**د زمانې په اعتبار سره د اسلام د کمزورۍ مراحل**: په دې حدیث کښې دَ دریو لویو حادثو طرف ته اشاره کړې شوې ده په دې کښې رومبنی حادثه دَحضرت عثمان بن عفان ﷛ دَ شهادت ده

**اوله حادثه شهادت عثمان رضی الله عنه**: دَ ورانی اوخرابئی شروع په ۳۵هجری کښې اوشوه کوم وخت چه دَ حضرت عثمان ﷛ دَ شهادت واقعه پیښه شوه

**دعثمان رضی الله عنه دخلافت اولنی شپږ کلونه**: دَحضرت عثمان ﷛ خلافت دَ شروع شپږو کالو پورې ډیر ښکلې طریقه باندې روان وو مګر دَهغوی په طبیعت کښې نرمی وه هغوی خپل بعضې رشته دارانو ته سرکاری عهدې ورکړې کوم چه دَ شریعت په رڼاکښې جائز وې ځکه چه یوه تقویٰ ده او یوه فتویٰ ده شیخینو په تقویٰ باندې عمل اوکړو او هیڅ یو خپلوان ته ئی عهده ورنه کړه عثمان اوعلی ﷠ په فتویٰ باندې عمل اوکړو اوقابل رشته دارانو ته ئی عهدې ورکړې په دې باندې څه خلقو شور جوړ کړو او آخری شپږ کالو کښې څه انتشار شروع شو

**د عثمان رضی الله عنه خلاف یهودی سازش**: دَدې بنیادی وجه دا شوه چه دَ صنعاء یمن یو اوسیدونکي عبدالله بن سبا یهودی وو هغه اوکتل چه اسلام په ټوله دنیا باندې غلبه حاصلولو سره روان دې نودَ فساد اونفاق دَپاره دا سړې مسلمان شو اومدینې ته راغلو دلته ئی دَ حضرت عثمان ﷺ اودَ هغه دَ ګورنرانو خلاف بکواس کولو مګر په مدینه کښې هغه ته څه حوصله ملاؤ نه شوه نوهغه بصره ته لاړو هلته نه دَ بصرې ګورنر دې اوشړلو نودې کوفې ته راغلو خپل ځان ئی دَ اهل بیت خیرخواه ثابت کړو څه خلق ده سره شو مګر هلته هم ناکام شو دَ هغه ځائی نه دا سړې دمشق ته لاړو هلته هم ناکام شو بیا دَ هغه ځائی نه مصرته لاړو

**په مصر کښې د ابن سبا دتحریک کامیابی**: دَمصرخلقو دَ ده خبره واوریده اوکافی خلق دَ ده نه چاپیره راجمع شو نوده دَ خلیفه عثمان ﷺ اودَ هغه دَ اسلامی خلافت خلاف سازش شروع کړو دَ حضرت عثمان ﷺ دَ ګورنرانو خلاف به ئی فرضی شکایتونه جمع کول او په عامو خلقو کښې به ئی خورول خلاصه دا چه ده خلق دَ حضرت عثمان ﷺ نه بدګمانه کړل اوهم دَ هغه ځائی نه ده دَحضرت عثمان ﷺ دَ قتل دَپاره یو ټولګې تیار کړو مدینې ته ئی روان کړو دابغاوت کونکی خلق مدینې ته راغله او بدتمیزی ئی شروع کړه دَحضرت علی ﷺ نه ئی دَ حضرت عثمان ﷺ خلاف امداد هم طلب کړو مګر هغوی انکاراوکړو.

**دباغیانو مطالبه**: دَدې بغاوت کونکو یوه مطالبه دا وه چه دَمصر ګورنراخوا کړنی اومحمدبن ابی بکر دې ګورنر جوړکړی. حضرت عثمان ﷺ دَ هغه دَپاره پروانه اولیکله داخلق لاړل اومعامله رفع دفع شوه.

**د مروان بن حکم غداری**: مګر مروان بن حکم فوری دَمصر دګورنر په نوم یو خط اولیکلو چه څنګه هم محمدبن ابی بکر دراورسی هغه قتل کړئی په خط باندې دَ حضرت عثمان ﷺ دَ ګوتې مهر وو آس هم دَ حضرت عثمان ﷺ وو غلام هم دَ حضرت عثمان ﷺ وو داسړې دَمصر طرف ته په منډه روان وو محمد بن ابی بکر ته شك پیدا شو اودغه غلام ئی اونیولو اوتالاشی ئی ورله واخستله نو خط برآمدشو محمدبن ابی بکر وئیل چه یو طرف ته مونږ حضرت عثمان ﷺ ګورنر جوړه وی اوبل طرف ته دَ قتل کولو حکم ورکوی

**د محمدبن ابی بکر عثمان رضی الله عنه سره مکالمه**: لهذا غلام او خط ئی واخستلو او بغاوت کونکی بیا مدینې ته راغله دَ حضرت عثمان ﷺ نه ئی تپوس اوکړو

① داغلام دَ چا دې هغوی وئیل زما دې وئیل دا اس دَ چا دې؟ وئی فرمائیل زما دې وئیل ② دا مهردَ چا دې وئی فرمائیل زما دې وئیل دا خط دَ چادې وئی فرمائیل په

خدائی قسم داخط زما نه دې دَ خط نمونې اوکتلې شوې نو معلومه شوه چه خط مروان بن حکم لیکلې دې

**د مروان د حواله کولو مطالبه:** اوس دې بغاوت کونکو اووئیل چه مروان مونږ ته حواله کړه هغوی اوفرمائیل زه داسې نه شم کولې بلوه کونکو دَ حضرت عثمان ﷺ دَ کور محاصره اوکړه دَ مدینې والا دَ مروان خلاف څه لیدل غوښتل مګر دَ حضرت عثمان ﷺ دَ قتل خوك قائل نه وو.

**دعثمان رضی الله عنه شهادت:** اسلامی فوج په سرحداتو باندې وو عام خلق حج له تلی وو مدینه دَ بغاوت کونکو په قبضه کښې وه. څلویښت ورځې محاصره وه اوبیا حضرت عثمان ﷺ شهید کړې شو. درې ورځو پورې نعش دفن نه کړې شو دې نه پس تدفین اوشو بلوه کونکو حضرت علی ﷺ په بیعت باندې مجبورکړو اوهغهٔ ئی خلیفه جوړکړو اودَ هغه په پناه کښې کیناستل. دا واقعه په ۳۵هجری کښې پیښه شوه

**دویمه حادثه جنګ جمل:** ② بیا په ۳۶هجری کښې نور ورانې پیدا شو چه دَ حضرت عائشه ﷺ او حضرت علی ﷺ په مینځ کښې جنګ اوشو کوم ته چه جنګ جمل وئیلی شی

**دعلی رضی الله عنه په بیعت د بعضې صحابؤ خفګان:** دَ حضرت علی ﷺ په بیعت باندې حضرت زبیر ﷺ اوحضرت طلحه ﷺ خفه شو اودَ مدینې نه مکې ته لاړل. هلته حضرت عائشه ﷺ حج له تلې وه. هغې چه کله اوکتل چه په مدینه کښې ګړبړ دی نوهغې مدینې دَ راتلو په ځائی بصرې ته دَ تلو فیصله اوکړه. حضرت زبیر ﷺ اوحضرت طلحه ﷺ هم بصرې ته لاړل او په غیرارادی توګه باندې هلته دَمسلمانانو لویه مجمع رایوځائی شوه

**دفریقینو په مینځ کښې د صلحې کوشش:** حضرت علی ﷺ دَخلافت مرکزکوفه جوړه کړه اودَ خلقو نه ئی دَ بیعت مطالبه اوکړه. خلقو دَعثمان ﷺ دَ قاتلینونه دَ قصاص مطالبه اوکړه. حضرت علی ﷺ اوفرمائیل چه تاسو اول بیعت اوکړئی زما لاسونه مضبوط کړئی چه زه په دغه بغاوت کونکوباندې لاس واچوم. دغه شان دَ حضرت عائشه ﷺ اوحضرت علی ﷺ فوجونه مخامخ شو حضرت قعقاع ﷺ مینځ ته راغلو او افهام اوتفهیم سره ئی دواړه په صلح باندې راضی کړل اوفیصله اوشوه چه صباله به دَ دواړو طرفونه په صلح دستخط کیږی

**دجنګ جمل شروع:** منافقینو مفسدینو او بغاوت کونکو چه کله دَ صلح آثار اولیدل نودَ شپې په وخت ئی دَ حضرت عائشه ﷺ په فوج باندې حمله اوکړه. دَ هغه طرف نه جوابی کاروائی اوشوه اودَ جنګ جمل په نوم باندې ډیر خونړې جنګ اوشو په کوم کښې چه دَ دواړو طرفونه دیارلس زره کسان مړه شو. په دوی کښې دَ عشره مبشره دوه صحابیان هم

وو دَ حضرت علی ﷺ فوج غالب شو اودَ حضرت عائشه ﷺ فوج ماتې اوخوړلو دا واقعه په ۳۶هجری کښې پېښه شوه

**د جنگ جمل وجه تسمیه**: حضرت عائشه ﷺ به په خپل اوښ باندې سوره وه په دې وجه دا جنګ، دَ جنګ جمل په نوم سره مشهور شو په دې جنګ باندې حضرت علی ﷺ اوحضرت عائشه ﷺ تول عمر ژړل

**دریمه حادثه جنګ صفین**: ③ بیا دَدې نه پس دَ اسلام په استحکام کښې نوره خرابی راغله چه بالکل بې قابو شوه اوکوم چه اسلام ته ډیرزیات نقصان اورسولو په ۳۷هجری کښې دَ حضرت علی ﷺ اوحضرت معاویه ﷺ په مینځ کښې دَ جنګ صفین حادثه وه

**دعلی رضی الله ع نه دمعاویه رضی الله عنه څخه د بیعت مطالبه**: دَ جنګ جمل څخه چه کله حضرت علی ﷺ فارغ شو نو حضرت معاویه ﷺ ته ئې پیغام اولیږلو چه زما په لاس باندې بیعت اوکړه اودَ اسلامی خلافت لاندې راشه. حضرت معاویه ﷺ دَ شام ګورنر وو هغه دَ بیعت دَ پاره دا شرط کیخودو چه دَ قاتلینِ عثمان ﷺ نه قصاص واخله مونږ دَ هغه وارثان یو قصاص زمونږ حق دې. حضرت علی ﷺ وئیل اول ته بیعت اوکړه بیا دَ قصاص خبره کوه او ګورنری هم پریږده.

**دمعاویه رضی الله عنه د بیعت کولو څخه انکار**: حضرت معاویه ﷺ دَ دواړو خبرو نه انکاراوکړو حضرت علی ﷺ دَ کوفې نه دَ شام طرف ته فوجونه روان کړل. یوې میاشتې پورې معمولی جنګ کیدلو مګر بیا جنګ بند شودَمصالحت کوشش اوکړې شو مګر ناکام شو بیا یکم صفر ۳۷هجری کښې دَ فرات دریاب په غاړه مقام صفین کښې باقاعده جنګ شروع شو. دَمصالحت په غرض دَتحکیم واقعه هم پېښه شوه مګر جنګ بندنه شو اویا زره کسان مړه شو اودَ علاقې اکثر حصې دَ حضرت علی ﷺ دَ لاس نه وتلوسره دَحضرت معاویه ﷺ په لاس ورغلې. په دې حدیث کښې هم دغه دریو لویو واقعاتو ته اشاره کړې شوې ده.

**قوله**: فَإِنْ يَهْلِكُوا فَسَبِيلُ مَنْ هَلَكَ،

**د امت هلاکت**: بیا حضورپاك اوفرمائیل چه که دَ دغه ورانی نه پس خلق منع نه شو اوهم دغه شان دَ هلاکت په لار روان وو. خلافت مغلوب پاتې شو او بغاوت غالب نوداخلق به هم دَنورو هلاك شوو قومونو په شان هلاك شی لیکن که دَخلقو خلافت قائم شو اوباغیانو ته دَ بغاوت موقع ملاؤ نه شوه نودَ مسلمانانو ملی نظام به دَ راتلونکو زمانو پورې ډیر په ښه شان سره قائم پاتې شی چه دَ اویاؤ کالو پورې به جاری وی

**قوله**: قُلْتُ: أَمِمَّا بَقِيَ أَوْمِمَّا مَضَى؟قَالَ: "مِمَّا مَضَى:

**د اسلام نشاط ثانیه**: حضرت ابن مسعود ﷺ تپوس چه دَنوی سر نه به اویا کاله شمیرلې

شي يا د پخوانی ۳۷ کالو سره به اوياكاله مرادوی؟ حضورپاك اوفرمائيل د ۳۷سره اوياكاله مراد دی

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵٤۰۸] دپخوانوقوموتوپه لاره دچليدوپيشين ګوئي

۵۴۰۸-(۴۸)[۳۰] ۱ عَنْ أَبِي وَاقِدٍ اللَّيْثِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- ۲ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَمَّا خَرَجَ إِلَى غَزْوَةِ حُنَيْنٍ مَرَّ بِشَجَرَةٍ لِلْمُشْرِكِينَ كَانُوا يُعَلِّقُونَ عَلَيْهَا أَسْلِحَتَهُمْ، يُقَالُ لَهَا: ذَاتُ أَنْوَاطٍ، ۳ فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! اجْعَلْ لَنَا ذَاتَ أَنْوَاطٍ كَمَا لَهُمْ ذَاتُ أَنْوَاطٍ

**ترجمه**: ۱ د حضرت ابو واقد ليثي ﷜ نه روايت دی ۲ چې رسول الله ﷺ د فتح مکي نه پس چې غزوه حنين د پاره روان شو نو په (شپه کي) د حضور ﷺ تيريدل د مشرکانو په يوه ونه اوشو، چې په هغه مشرکانو خپلي اسلحي ځوړنده کړي او د پوجا (عبادت) په طور به يي د هغه طواف کوی او تعظيما به هغه وني طرف ته مخ کړی کينا ستل. د هغه وني نوم ذات انواط وو، ۳ د حضور ﷺ په ملګروکي [د داسې مسلمانانو هم تعداد شامل وو چې نوی په اسلام کې داخل شوی وه، اود اسلامي احکامو او شرائعو او ديني تعليماتو سره زيات واقفيت نه لری په دي وجه د شرك نه بيزاری او په توحيد کې کامله مرتبه يي نه لرله، په هغه مسلمانانو کې] بعضې خلقو هغه ونه ليدو سره حضور ﷺ ته عرض وکړو يارسول الله ، زمونږ د پاره هم يوه داسې ونه مقرره کړئ چې په هغه مونږ خپله اسلحه زړه وو، او هغه ته ذات انواط وايو لکه څرنګه چې مشرکانو هغه ونه ځان د پاره ذات انواط جوړه کړي ده، او په هغه خپل هتيار زړوي،

۱ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "سُبْحَانَ اللهِ هَذَا كَمَا قَالَ قَوْمُ مُوسَى: ﴿اجْعَلْ لَنَا إِلَهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ﴾ [الأعراف: ۱۳۸] ۲ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتَرْكَبُنَّ سُنَنَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ۱ رسول الله ﷺ د هغه خلقو په دي عجيبه خواهش اوريدو سره د حيرت او تعجب د مخي وفرمايل سبحان الله دا تاسو څه وايئ داخبره خو تاسو داسې کوئ څرنګه چې د موسی ﷤ قوم يهوديانو خپل نبي حضرت موسی ﷤ ته ويلي وه چې زمونږ د پاره هم يو داسي معبود يعنی بت جوړکړه لکه څرنګه چې د کافرانو معبود دی. او څرنګه چې هغه کافران د خپلو بتانو عبادت کوي دغه شان به مونږ هم د هغه بت عبادت کوو، ۲ بيا حضور ﷺ بطور تنبيه وفرمايل. قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کې ځما ساه ده،

[۴۸] ) اخرجه البخاري في كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة /باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: ولتتبعن سنن من كان قبلكم» (رقم-۷۳۱۹)والترمذي في كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء لتركبن سنن من كان قبلكم (رقم-۲۱۸۰)وابن ماجه في كتاب الفتن/باب افتراق الأمم (رقم-۳۹۹٤) واحمد في المسند:۵/۲٤۰

تاسو به هم د هغه خلقو په لار تلل شروع کې کوم چې ستاسو نه مخکې تیر شوی دي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① يَعْلَقُونَ: زوړندولې به ئې. ② ذَاتُ أَنْوَاطٍ: د نوط جمع ده. د ناط ینوط نه. ای ما عُلِّق به، داسې ونه چه خلق ورته توري وغیره رازوړندوی. ③ سُنَنَ: جمع د سنة ده لار. طریقه

**تسهيلات:**

**قوله: يُقَالُ لَهَا: ذَاتُ أَنْوَاطٍ:**

**دذات انواط نه مراد:** دا یوښاخ وو کوم چه دَ مشرکانودَ پاره مخصوص وو او په دې باندې به هغوی خپلې وسلې زوړندولې اودې سره به ئې اعتکاف کولو اودې نه به ئې برکت حاصلولو.

**قوله: سُبْحَانَ اللهِ هَذَا كَمَا قَالَ قَوْمُ مُوسَى:**

**صحابه کرامو ته تنبیه:** دَ روایت حاصل دادې چه صحابه کرامو ﷺ مشرکان دَ یو ښاخ دومره احترام کولو سره اولیدل نو درخواست ئې اوکړو چه زمونږ دَ پاره هم دغه شان یو تخصیص کول پکاردی نو حضوراکرم ﷺ اوفرمائیل دا خو دَ یهودیانو طریقه ده هغوی هم دَ حضرت موسی علیه السلام نه سوال کړې وو. اجْعَل لَّنَا إِلَهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ او بیائې اوفرمائیل چه تاسو به هم دَ وړاندینو خلقو په طریقو باندې ضرور تگ کوئی.

**دمذکوره مضمون نورروایات:** ① لتتبعن سنن من قبلکم شبراً شبراً وذراعًا ذراعًا حتی لودخلوا جحر ضب تبعتموهم قلنا یارسول الله الیهود والنصاری قال فمن (رواه البخاری)

② ورواه الحاکم عن ابن عباس رضی الله عنهما وفی آخره حتی لوان احدهم جامع امرأته فی الطریق لفعلتموه وقال المناوي اسناده صحيح

**قوله: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتَرْكَبُنَّ سُنَنَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ:**

**دمشابهت وجه:** امام نووی فرمائیلی دی دنبی علیه السلام مراد دپخوانوامتونو سره په گناهونو کښې دې په کفرکښې نه دې یعنی تاسوبه د پخوانو امتونوپشان گناهونه کوئ دا مراد نه دې چې د هغوی پشان به په کفرکښې اخته کیږئ

**[۵٤۰۹] د دې فتنو واقع کیدو په وخت د صحابه کرامو قلت**

۵٤۰۱-(۱۹)[۳۱] ۱ وَعَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ ۲: وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ الْأُولَى - يَعْنِي مَقْتَلَ عُثْمَانَ - فَلَمْ يَبْقَ مِنْ أَصْحَابِ بَدْرٍ أَحَدٌ، ۳ ثُمَّ وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ الثَّانِيَةُ - يَعْنِي الْحَرَّةَ - فَلَمْ يَبْقَ مِنْ أَصْحَابِ الْحُدَيْبِيَةِ أَحَدٌ، ۴ ثُمَّ وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ الثَّالِثَةُ فَلَمْ تَرْتَفِعْ وَبِالنَّاسِ طَبَاخٌ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[19] اخرجه البخاری فی کتاب المغازی /باب شهود الملائکة بدراً (رقم-٤٠٢٤)

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن مسيب رحمه الله نه (چي د جليل القدر تابعينو نه وو، او هغوئ د خلورو خلفائي راشدينو په زمانه كښې وه) روايت دى [۲] چې هركله (مخكنى فتنه چې د هغه نه مخكې په اسلام كې څه فتنه نه وه ښكاره شوي) واقع شوه، يعنى د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت سانحه پيښه شوه نو په غزوه بدر كې شريك صحابه وونه څوك باقي پاتې نشو، [۳] بيا چې دويمه فتنه واقع شوه (يعني د حره واقعه پيښه شوه) نو هغه صحابه وو كې څوك باقي نه وو پاتې شوى كوم چې په صلح حديبيه يعنى بيعت الرضوان كې شريك شوى وه، [۴] او بيا چې دريمه واقعه پيښه شوه نو هغي دصحابهٔ كرامو نه هيڅوك نه پريښودي او د هغه خاتمه په داسې حالت كې و شوه چې د خلقو قوت باقي پاتې نشو. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① الحَرَّة: كاڼرى جنه زمكه، مراد هغه فتنه ده چه په حرّه مقام كښې واقع شوې وه، ② طَبَاخٌ: قوت، طاقت، عقل اومضبوطيا ته طباخ وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ وَقَعَتِ الفِتْنَةُ الثَّالِثَةُ فَلَمْ تَرْتَفِعْ وَبِالنَّاسِ طَبَاخٌ:

**د درې فتنو سپيره والې ذكر:** دلته دَ طباخ څخه قوت اوعقل مراد دې. يعنى دَ دې دريمې فتنې نه پس په دنيا كښې يو صحابى باقى پاتې نه شو.

① چه اول فتنه دَ حضرت عثمان رضي الله عنه دَ شهادت راغلـه نو پـه جنګ بدركښې دَ شريك صحابه كرامو نه څوك هم پاتې نه شو

② چه كله دَ يزيد په وخت كښې واقعه حره اوشوه نو دَ بيعت رضوان دَمبارك صحابه نه څوك هم پاتې نه شو.

③ چه دريمه فتنه دَحجاج بن يوسف اوحضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه راغلـه نو پـه دنيا كښې څوك صحابى پاتې نه شو. دَنالائق حكمرانانو دَ وجې اسلام ته ډير لوئى نقصان رسيدلې دې.

# [۱] بَابُ الْمَلَاحِمِ

## دَ سختو جنګونو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه ستة وعشرون حديثاً مشتملة على ثلاث مسائل:**

① المحاربات الجزئية المتعينة: ۱، ۲، ۳، ۴، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۲۱، ۲۲، ۲۳.

② الفتن الجزئية: ۵، ۶، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۳، ۲۵.

③ الفتوح الشخصية: ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۳، ۱۸، ۲۶.

**د ملحمة لغوي معنی:** ملاحم دَملحمة جمع ده ① او ملحمه لاس په لاس جنګ او سخت جنګ ته وائی په کوم کښې چه دَ دواړو فریقو دکسانو دَ بدنونو غوښې یوبل سره ګډې ودې شی.

② لحمه دَ کپړو دَ تانابانا ګډوډوالی ته هم وائی. چونکه په دغه لاس په لاس جنګ کښې خلقو یوبل سره انختی وی په دې وجه سخت جنګ او عظیم حادثې ته ملحمه وائی.

**د کتاب الفتن او کتاب الملاحم جدا جدا ذکر کولو وجه:** دَحضورپاك دَ مبارکو نومونو نه یو نوم نبی الملاحم هم دې. یعنی دَ لاس په لاس جنګ کونکو نبی، دکتاب الفتن نه باب الملاحم جدا ذکرکړې شوې دې. دَدې وجه داده چه کتاب الفتن کښې دَ فتنو بیان په توګه دَ اجمال او ابهام وو دَ چا تعین نه وو لیکن په ملاحم کښې باقاعده تعین دې دَ قبائلو نوم ذکر دې دَ خائی ذکر دې لهذا دا دَ فتن نه جدا کولو سره ذکرکړې شوې دې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۴۱۰]دَ قیامت نه مخکښې راتلونکی دولس واقعات**

۵۴۱۰-(*)[۱] [۱]عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَقْتَتِلَ فِئَتَانِ عَظِيمَتَانِ، تَكُونُ بَيْنَهُمَا مَقْتَلَةٌ عَظِيمَةٌ، دَعْوَاهُمَا وَاحِدَةٌ، [۳]وَحَتَّى يُبْعَثَ دَجَّالُونَ كَذَّابُونَ، قَرِيبًا مِنْ ثَلَاثِينَ، كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ رَسُولُ اللَّهِ، [۴]وَحَتَّى يُقْبَضَ الْعِلْمُ، وَتَكْثُرَ الزَّلَازِلُ، وَيَتَقَارَبَ الزَّمَانُ، وَتَظْهَرَ الْفِتَنُ، وَيَكْثُرَ الْهَرْجُ وَهُوَ الْقَتْلُ،

**ترجمه:** [۱]د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی چی رسول الله ﷺ وفرمایل [۲]قیامت به ترهغه وخت پورې نه قائمیږي ترڅو پورې چې دوه لوی ډلې په خپلو کې جنګ ونه کړي

(*) اخرجه البخاری فی کتاب الفتن/باب خروج النار (رقم-۷۱۲۱) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب بيان الزمن الذی لا يقبل فيه الإيمان (رقم-۲۴۸ - (۱۵۷)) واحمد فی المسند: ۲/۳۱۳

چې دهغوئ په مينځ کې به لوي جنګ اونښلي ، اود هغه دوارو دلودعوي به هم يوه وي ۲ اوترڅوپوري چې زبردست مکار، دهوکه باز او فسادي خلق پيدا نشي چې الله او رسول باندې دروغ تړي، او د هغوئ تعداد به د ديرش نه نزدې وي او په هغوئ کې به هريو دا دعوى کوي چې هغه د الله رسول دى ۳ او قيامت به ترهغه وخته پورې نه قائميږي ترڅوپورې چې ۱ علم پورته نشي ۲ او د زلزلو کثرت نشي. ۳ زمانه سره نزدې نشي. ۴ د فتنو ظهور شروع نشي ۵ او هرج يعنى قتل وقتال او د غلا په واقعاتو کې اضافه ونشي،

**حل اللغات:-** ۱ مَقْتَلَةٌ: جنګ، ۲ دَجَّالُونَ: دجال دَ مبالغې صيغه ده ډيرزيات دهوکه باز اوفرادى. ۳ الْهَرْجُ: قتل.

۱ وَحَتَّى يَكْثُرَ فِيكُمُ الْمَالُ فَيَفِيضَ، حَتَّى يُهِمَّ رَبَّ الْمَالِ مَنْ يَقْبَلُ صَدَقَتَهُ، وَحَتَّى يَعْرِضَهُ فَيَقُولُ الَّذِي يُعْرَضُ عَلَيْهِ: لَا أَرَبَ لِي بِهِ، ۲ وَحَتَّى يَتَطَاوَلَ النَّاسُ فِي الْبُنْيَانِ، ۳ وَحَتَّى يَمُرَّ الرَّجُلُ بِقَبْرِ الرَّجُلِ فَيَقُولُ: يَا لَيْتَنِي مَكَانَهُ، ۴ وَحَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا، فَإِذَا طَلَعَتْ وَرَآهَا النَّاسُ آمَنُوا أَجْمَعُونَ، ۵ فَذَلِكَ حِينَ ﴿لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا﴾ [الأنعام: ۱۵۸]،

**ترجمه:** ۱ قيامت به ترهغه وخته پورې نه قائميږي ترڅوپورې چې ستاسو سره د مال ودولت دومره کثرت نشي چې مالدار سړى به د خيرات اخيستونکي په سبب په پريشاني کې مبتلا وي، ترڅو چې هغه مالدار چې کوم سړى صدقه اخيستونکى ګڼلو سره د هغه مخکې د صدقه او خيرات مال پيش کړو هغه به د غنائي قلبي په سبب ياخپله د مالدار کيدو په وجه اووائي ماته ستا د صدقي او خيرات د مال ضرورت او حاجت نشته. ۲ او قيامت به ترهغه وخته نه قائميږي ترڅوپورې چې خلق وسيع اوږدو پلنو عمارتونو جوړولو باندې فخر شروع کړي ۳ او يو سړى په يوقبر باندې تيريدلو سره دا وئيل شروع کړي. چې کاش ارمان زه د ده په ځاى وى، ۴ او قيامت به ترهغه وخته پورې نه قائميږي ترڅوپورې چې نمر د مغرب دطرف نه را ونه خيژي او خلق هغه ووينې، نو ټول به ايمان راوړي. اوداخرت امر به ظاهرسي ۵ نو دابه هغه وخت وي چې سړى ته ايمان راوړل نفع نه ورکوي چاچي دهغه نه مخکې ايمان قبول کړى نه وي اونه به يو سړى ته هغه وخت د خپل ايمان په حالت کې ښه نيک کار کول څه فائده ورکړي که هغه د هغه نه مخکې نه وي کړي.

**حل اللغات:-** ۴ يَفِيضَ: د فاض يفيض نه. بهيدل يعنى ډير والې ۵ يُهِمَّ: دَ باب افعال نه دي دَ سوچ فکر او پريشانئ په معنى کښې دي. ۶ أَرَبٌ: حاجت. ضرورت.

۱ وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدْ نَشَرَ الرَّجُلَانِ ثَوْبَهُمَا بَيْنَهُمَا، فَلَا يَتَبَايَعَانِهِ وَلَا يَطْوِيَانِهِ، ۲ وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدِ انْصَرَفَ الرَّجُلُ بِلَبَنِ لِقْحَتِهِ فَلَا يَطْعَمُهُ، ۳ وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَهُوَ يُلِيطُ حَوْضَهُ فَلَا يَسْقِي فِيهِ، ۴ وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدْ رَفَعَ

أَكَلْتَهُ إِلَى فِيهِ فَلَا يَطْعَمُهَا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⑪ او پـه دي کې شـک نـشته چې قيامت بـه داسې قـائميږي اولنی شپيلی چې دقيامت بـه ابتـداء وي داسې بـه ناڅاپـه وپوکـل شي چې دوو سړوبه خپلـه کپړه خريدو فروخت دپاره غوړولي وي اوهغوی به د هغه خريدو فروخت نه وي کړی اونه به يې اينبي وي چې پـه دي حالـت کې بـه قيامت راشي ⑫ اوبلا شبه قيامت بـه داسې قـائميږي چې يوسړی به دخپلي اوښې د شيدو په اخيستو سره به خپل کورتـه راغلی وي اوهغـه شـوده بـه يې لاڅکلي نه وي چې قيامت بـه راشي، ⑬ وبلا شبه قيامت بـه داسې قـائميږي چې يوسړی به خپل حوض ته ګل ور کوي خپلو څناوروتـه اوبه ورکولو دپاره بـه ډوغـل وغيـره جوړوي ياهغه به درست کوي اوهغه به خپل څناور د هغه حوض نه لانه وي اوبـه کړي چې قيامت به راشي، ⑭ اوبلا شبه قيامت بـه داسې قـائميږي چې يوسړی بـه خولي تـه نـوړی اوچته کړي نه وي اوهغه به يې خوړلي نه وي چې قيامت به راشي (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** -⑦ لَا يَتَبَايَعَانِهِ: بيعه به ئې لانه وی کړې، ⑧ لِقْحَتِهِ: د پيئو والا اوښـه. ⑨ يُلِيطُ: لَاطَ يَلِيطُ، ليو او پلستركولو ته وائی، ⑩ فِيهِ: خُله.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَقْتَتِلَ فِئَتَانِ عَظِيمَتَانِ:

**د فئتان څخه مراد:** يعنی دَ مسلمانانو دوه لوئی ډلې به جنګيږی. دې نه دَحضرت علی رضي الله عنه اوحضرت معاويـه رضي الله عنه پـه مينځ کښې جنګ مراددې کوم چه دَ صفين پـه مقام باندې جنګيدلې دې چه دَ څو مياشتو پورې جاری وو. پـه کوم کښې چه دَ طرفينو اويا زره يـا ۹۰ زره سړی مړه شوی وو. کتاب الفتن حديث نمبر ۵۴۰۷ پوره تفصيل ليکلې شوی دې

**قوله:** تَكُونُ بَيْنَهُمَا مَقْتَلَةٌ عَظِيمَةٌ، دَعْوَاهُمَا وَاحِدَةٌ:

**د حق دعويداری:** يعنی دواړه به دَ اسلام دعويدار وی ياداچه دواړه بـه خپـل ځان پـه حق باندې ګڼړی او په حق دکيدو دعویٰ به کوی.

**قوله:** وَحَتَّى يُبْعَثَ دَجَّالُونَ كَذَّابُونَ، قَرِيبًا مِنْ ثَلَاثِينَ،

**تعارض:** پـه نورو روايتونو کښې دَ ديرش عدد ذکردې نوپـه دې کښې ښکاره تعارض شو او دَحضرت ابن عمر رضي الله عنه په يوروايت کښې دَ اويا ذکر دې.

**دتعارض درې جوابونه:** ① دَاولنې وحی په ذريعه سره يو عدد اوخودلې شوبياهم دَ وحی په ذريعه پـه دې کښې اضافه اوکړې شوه لکه څنګه چه وحی اوخودل حضورپاك هـم هغـه ئان بيان کړو.

② ډير دجالان خو به هغه لوئی مشران وی چه دَنبوت به باقاعده دعویٰ کوی دې نه علاوه

به واره واره وی هغوی به دَ نبوت دعوی نه کوی

② دا په کثرت باندې حمل کولې شی هیڅ تعیین نشته بلکه دَتکثیر طرف ته اشاره ده.

**نوټ:** د ① وَحَتَّى يُقْبَضَ الْعِلْمُ ② وَيَتَقَارَبَ الزَّمَانُ ③ وَيَكْثُرَ الْهَرْجُ وَهُوَ الْقَتْلُ تشریح وراندې د حدیث نمبر (۵۳۸۹) په شرح کښې تیره شوې ده

**قوله: حَتَّى يُهِمَّ رَبَّ الْمَالِ مَنْ يَقْبَلُ صَدَقَتَهُ:**

**د مذکوره زمانې مصداق:** مطلب دا چه صاحب مال به دَصدقه کولو کوشش کوی مګر څوک به قبلونکې نه وی. په ظاهره دا دَ خوشحالئی زمانه دَحضرت مهدی اوحضرت عیسیٰ علیہ السلام زمانه ده

**د مال نه قبلولو دوه وجوهات:**

① دَعدمِ حرص او مال دَ بې رغبتئی دَ وجې به مال نه قبلوی.

② مالونودکثرت او دَ برکت دَ وجې به مال نه قبلوی.

**قوله: وَحَتَّى يَتَطَاوَلَ النَّاسُ فِي الْبُنْيَانِ:**

**د آبادو په اوچتولو کښې مقابله کول:** یعنی خلق به بې دَ ضرورته محلونو او اوچتو بلډنګونو کښې په یوبل باندې فخر مباهات او تکبر کوی. خاص کر هغه طبقه چه دَچیلو څرونکې وه په هغوی کښې به دغه مقابله وی چه دَچا محل څومره اوچت دې.نن صبا په یوربی ملکونو کښې ددې وجود په کثرت سره کتلی شی.دغه شان په عربو ملکونو کښې هم لکه په دوبی کښې برج الخلیفه او په مکه کښې ،،مکه ټاور،،ته اوګوره.

**قوله: وَحَتَّى يَمُرَّ الرَّجُلُ بِقَبْرِ الرَّجُلِ فَيَقُولُ: يَالَيْتَنِي مَكَانَهُ:**

**د دنیاوی پریشانو په وجه د مرګ تمنا کول:** یعنی ژوندې سړې به دا تمنا کوی چه افسوس په دغه قبر کښې دَدې مری په ځائی زه وې دا به دَدین دَ پریشانئی دَ وجې نه نه وی بلکه دَ دنیا پریشانی به وی اودَ ظاهری آفتونو نه به تنګ راتلو سره داآرزو کوی.

**قوله: وَحَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا:**

**د مغرب د طرف نه د نمر راختل:** ،،قیامت به ترهغې نه قائمیږی ترڅو چه دَمغرب له اړخه دَنمرختو واقعه نه وی راپیښه شوی ټول خلق به دَدے نښانې په لیدلو ایمان راوړی،داهغه وخت دې چه دَقرآنِ کریم دَارشاد مطابق به هیچاته دَهغه ایمان راوړل فائده نه ورکوی-(۵۱)

۵۱) صحیح البخاري، کتاب التفسیر، باب لا ینفع نفساً ایمانها: ج ۲، ص ۶۶۷

**[٥٤١١] دَقيامت نه مخکې ترکيانوسره د جنګ کولو پيشنګوئي**

٥٤١١-(٣)[٢] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعْرُ، ③ وَحَتَّى تُقَاتِلُوا التُّرْكَ صِغَارَ الْأَعْيُنِ، حُمْرَ الْوُجُوهِ، ذُلْفَ الْأُنُوفِ ④ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② قيامت به ترهغه وخته پورې نه راځي ترڅوپورې چې تاسو د هغه قوم سره جنګ ونه کړی چې د هغوی چپلان به د غير دباغت والا دڅرمو وي ③ وتر څوپورې چې تاسو د ترکمنو سره جنګ ونه کړی چې دهغوی سترګې به کشنې مخونه سره (سُرخ) اوچيتې پزووالاوي ④ ګويا دهغوی مخونه به دڅرمې د ته برته سپر (ډهال) په شان وي (البخاري مسلم).

**حل اللغات:-** ① صِغَارَ الْأَعْيُنِ: ورو سترګو والا، دترکو سترګې ورې وی او مخونه ئې سره وی ② حُمْرَ الْوُجُوهِ: سره مخونو والا، ③ ذُلْفَ الْأُنُوفِ: چيتو پوزو والا، ④ الْمَجَانُّ: ډهال. ⑤ الْمُطْرَقَةُ: طراق دَ ډهال قطونو ته وائی چه بنکته پورته وی او يوبل سره انختی وی اودَ څرمن وی.

**تسهيلات:**

**قوله:** حَتَّى تُقَاتِلُوا قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعْرُ:

**د ويښتو څپلو څخه په مراد کښې درې اقوال:** ① يعنی دهغوی څپلې به د غيرمصبوغ څرمنې څخه جوړې شوې وی.

② يعنی دهغوی څپلې به د ويښتو څخه جوړې شوې وی

③ يا د هغوی د ويښتو اوږدوالې مقصود دې چې دهغوی ويښته به دومره اوږده وی چې څپلو پورې به رسيدلې وی.

**قوله:** وَحَتَّى تُقَاتِلُوا التُّرْكَ صِغَارَ الْأَعْيُنِ،

**د ترک په مصداق کښې درې اقوال:** ① دَ ياجوج ماجوج کومه حصه چې د سد ذوالقرنين څخه بهرپريخودې شوې دی هغې ته ترک اوئيلې شو مراد هم هغه منګوليان او تاتاريان دی

② علامه خطابی رحمه الله فرمائی چې ترک د قنطورا په اولاد کښې دی کوم چې د حضرت ابراهيم ﷺ په اولاد کښې شمارلې شی.

③ قتاده فرمائی چې د ياجوج ماجوج دويشت قبيلې وې يوويشت د ديوال څخه اخوا

[٥٢] ) اخرجه البخاري فی کتاب الجهاد والسير/باب قتال الترک (رقم-٢٩٢٨) ومسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر الرجل. فيتمنى أن يكون مكان الميت من البلاء (رقم-٦٤ - (٢٩١٢) وابوداود فی کتاب الترجل /باب فی قتال الترک (رقم-٤٣٠٤) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی قتال الترک (رقم-٢٢١٥) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب غزوة الترک والحبشة (رقم-٣١٧٧) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب الترک (رقم-٤٠٩٦) واحمد فی المسند: ٢/٢٣٩

بندي کړي شوی دی اویوه قبیله د دیوال څخه بهر پاتې شوې وه هم دغه یوې حصې ته ترک وائی څکه چې ترک د پریخودو په معنی ده اودوی هم د سد ذوالقرنین څخه پریخودې شوې وو

**قوله ذُلْفَ الْأُنُوفِ:**

**یوه خدشه**: یعنی دهغوی پوزې به چیتې وی ناستې به وی یانړئی پوزې چه ناستې اوپلنې وی زما (شاه فیصل) په زړه کښې داسې راځی چې ددې څخه به موجوده چینیان مراد وی اګرچې فی الحال دوی شرپسند نه دی اومسلمانانو سره ئې ښه تعلقات هم دی خصوصاً پاکستان سره خو کیدې شی په راروان وخت کښې دوی کښې داسې حاکمان پیدا شی چې هغوی د مسلمانانو دشمنان شی موجوده وخت کښې د سی پیک معاهده چې د چین او پاکستان ترمینځه شوې ده.اوکار پرې شروع دې هسې نه په مستقبل کښې هم دا د ګوادر بندرګاه د چینیانو اوپاکستانیانو په مینځ کښې د اختلاف سبب اوګرځی اونبی ﷺ چې د غزوه هند کومه پیشنګوئی کړې ده دهغې مصداق جوړ شی اوپه دې چینیانو څه اعتماد هم نه دې پکار څکه چې کوم خلق دالله تعالی د وجود څخه منکر وی دهغوی څخه د خیر څه طمع کیدې شی.دا زما د زړه یو آواز وو په ظاهره ددې څخه آثار نه ښکاری خو ما کاغذ ته حواله کړل فیصله به راروان وخت کوی.

**قوله: كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ:**

**ډهال سره د تشبیه وجه**: دمجن جمع ده میم لاندې زیر دې جیم باندې شد دې ډهال ته وائی یعنی د ډهال سره دهغوی د مخونو تشبیه د دې وجې ورکړې شوې ده چې دهغوی مخونه به ګول اود غوښې څخه ډک وی لکه چې د هغوی د مخونود ګولوالی اوډک والی ئې د ډهال سره تشبیه ورکړې ده کوم ډهال چې د څپلی د څرمنې څخه جوړشوې وی

**دحافظ ابن حجر تحقیق**: حافظ بن حجررحمه الله فرمائی نبی ﷺ چې په دې حدیث کښې نبی ﷺ د کومو دوو قومونوذکرکړې دې نو دحدیث ظاهردا وائی چې ددې څخه دوه جدا جدا

**قومونه مراد دی. دهغې تفصیل دا دې.** ① د اول قوم څخه ترک مراد دی

② د دویم قوم څخه د بابک ملګری مراد دی دا د مرتدیانوهغه ډله ده چا چې ډیر حرام څیزونه جائز کړی وو د مامون الرشید په زمانه کښې د دوی ډیره دبدبه او شان شوکت وو د عجمو په زیاتو ښارونو طبرستان او رئ وغیره کښې د دوی تسلط او غلبه وه بیا د معصتم بالله په زمانه کښې بابک قتل کړې شو ددې فتنې شروع په کال ۲۰۱ هجری کښې شوې وه اود ۲۲۲ هجری کښې د بابک په مرګ سره دا فتنه ختمه شوه.

[٥٤١٢] بعضې عجميا نوسره د جنګ کولو پیشنګولي

۵۳-(۳) [۳] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا خُوزًا وَكَرْمَانَ مِنَ الْأَعَاجِمِ، [۳] حُمْرَ الْوُجُوهِ، فُطْسَ الْأُنُوفِ، صِغَارَ الْأَعْيُنِ، وُجُوهُهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ، نِعَالُهُمُ الشَّعْرُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی [۲] چې قیامت به ترهغه وخته پورې نه راخي . تر څو پورې چې تاسې دخوز او کرمان دخلقو سره (چې داهل عجم نه دی) جنګ ونه کړی . [۳] ددې خلقو ① مخونه به سره (سرخ) ② پوزې چیتي ③ او سترګې ورې وي . ④ او مخونه به یې داسې وی لکه تـه برتـه دچمړې سپر (ډهال) چې وی . ⑤ د هغوی چپلي (پیزارونه) به د ویښتانود چمړې وی. (بخاری)

**حل اللغات:** - ① خُوزًا: دې نه دَ خوزستان خلق مراد دی ② كِرْمَانَ: دَ ایران دَ مشهور ښارنوم کرمان دې دلته دکرمان خلق مراد دی ③ فُطْسَ الْأُنُوفِ: دَ چیتو پوزو والا

۵۴-(۳) [۱] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ عَنْ عَمْرِو بْنِ تَغْلِبَ [۲] "عِرَاضَ الْوُجُوهِ".

**ترجمه:** [۱] او دبخاری په یوبل روایت کی دي چې عمرو ابن تغلب نه منقول دی . [۲] چې د هغوی مخونه به سره (سرخ) وی، په ځای دا الفاظ دی چې دهغوی مخونه پلن چکی وی

**تسهیلات: قوله:** كِرْمَانَ:

**دکرمان مصداق:** قاضی عیاض رحمه الله لیکلی دی چه دې عجمیانونه ترک خلق مراد دی سره دَدې چه دامشهوره نه وی. وجه داده چه دا هم هغه صفات دی کوم چه په ترکوکښې موندلې شی. دوی سره یا جنګ شوې دې یا به راتلونکی وخت کښې کیږی

[٥٤١٤] دَ عیسی علیه السلام دَ نزول په وخت یهودیا نوسره د جنګ پیشن ګونی

۵۵-(۳) [۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يُقَاتِلَ الْمُسْلِمُونَ الْيَهُودَ، فَيَقْتُلُهُمُ الْمُسْلِمُونَ، [۳] حَتَّى يَخْتَبِئَ الْيَهُودُ مِنْ وَرَاءِ الْحَجَرِ وَالشَّجَرِ، فَيَقُولُ الْحَجَرُ وَالشَّجَرُ: يَا مُسْلِمُ! يَا عَبْدَ اللّٰهِ! هٰذَا يَهُودِيٌّ خَلْفِي، فَتَعَالَ فَاقْتُلْهُ، [۴] إِلَّا الْغَرْقَدَ فَإِنَّهُ مِنْ شَجَرِ الْيَهُودِ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[۵۳] ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب علامات النبوة فی الإسلام (رقم-۳۵۹۰) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب الترک (رقم-۴۰۹۸) واحمد فی المسند: ۳۱۹/۲

[۵۴] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب قتال الترک (رقم-۲۹۲۷)

[۵۵] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب قتال الیهود (رقم-۲۹۲۶) ومسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر الرجل، فيتمنى أن يكون مكان الميت من البلاء (رقم-۸۲ - (۲۹۲۲) واحمد فی المسند: ۴۱۷/۲

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] قیامت به تر هغه پورې نه قائمیږي تر څو پورې چې مسلمانان د یهودیانو سره جنګ ونه کړي نو په هغه جنګ کې به مسلمانان یهودیان ډیر ووهي په هغوی به غالب راشي [۳] تردې چې یهودیان به د کاڼو او ونو لاندې پټیږي او کاڼي وني به داوایي چې اې مسلمانه اې د الله بنده دیخواته راسه زما شاته یهودي پټ ناست دی هغه مړکړه [۴] خو غرقد ونه به داسې نه وایي ځکه چې هغه د یهودیانو ونه ده (مسلم).

**حل اللغات:** - ① يَخْتَبِئَ: پټیږي به، ② الْغَرْقَدَ: یوه اوږده ونه ده لکه د لاچي ونه.

**تسهیلات:**

**قوله: هَذَا يَهُودِيٌّ خَلْفِي، فَتَعَالَ فَاقْتُلْهُ:**

**د مسلمانانو د پاره د کاڼو او ونو مخبري کول:** یعنی حجر او شجر به شکایت کوی چه زماشاته یهودی پټ شوې دې دا قتل کړئی. دَ یهودیانو دَ دنیا نه داختمول به دَ حضرت عیسی ﷺ په وخت کښې کیږی ځکه چه هغه وخت به یو کافر ذمی ساتل ختم شی جزئیه به ختمه شی یابه اسلام وی یا به مرګ وی. په یهودیانو او نصاری باندې واضح کیدل پکاردی چه زمونږ نبی رحمة للعلمین دې ګورئی دَهغه په دورکښې کافربرداشت کولې شی دَذمیت او جزیه دَ اداکولو نه پس ژوندې ساتلې شی. کله چه کافران دا رحمت شدت اوګڼری نو په دوی به داسې وخت هم راشی چه دوی به منت کوی مونږ ذمی اوساتئی جزیه واخلئی ژوندی مو پریږدئی مګر دَ الله تعالی حکم به وی چه اوس به یو کافر او یهودی ژوندې نه شی برداشت کولې.

**دیهودیانو مبغوضیت:** الله تعالی ته په ځناورو کښې خنزیر ډیر مبغوض دې او په انسانانو کښې ورته یهودیان ډیر مبغوض دی. یهودیانو په یوه یوه ورځ کښې ډیر انبیاء کرام شهیدان کړی دی. دلته دَدې حدیث په بیان کښې اوګورئی چه یهودیانو حضرت عیسی ﷺ پریخودو حضرت مهدی ئې پریخودو او دَهغوی په مقابله کښې ئې دَ دجال ملګرتیا اوکړه چا چه دَ الوهیت دعویٰ هم اوکړه او فساد ئې هم اوکړو لهذا کوم حشر چه دَ یهودو اوشو ډیر ښه اوشو دا به دَ یهودیانو یو بل هولوکاسټ وی

**قوله: إِلَّا الْغَرْقَدَ فَإِنَّهُ مِنْ شَجَرِ الْيَهُودِ:**

**د غرقد ونې پیژندګلو:** دا د یهودیانو مقدسه ونه ده ددې ونې څو نومونه دی یهودیان دې ته د محافظې ونې نوم هم ورکوی. دا یوه جاری داره ونه ده. د جنت البقیع اولنې نوم الغرقد وو ځکه چې دا په کومه علاقه وه هلته د غرقد وونو جارې وې. اسرائیلو ددې حدیث څخه ښه فائده اخستې دې او دا وونه په ډیر کثرت سره کری او اوس خو هغوی ددې نقش او تصویرونه په خپلو جاموباندې هم چاپ کوی.

**[٥٤١٥] دَ یو قحطانی سری باره کښې پیشنګوئي**

٥٤١٥-(٣)[٥] [١] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَخْرُجَ رَجُلٌ مِنْ قَحْطَانَ [٣] يَسُوقُ النَّاسَ بِعَصَاهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] قيامت به تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو پورې چې د قحطان نه يو سړی پيدا نشي، [٣] چې خلق به په خپلې همسا سره شړي، (يعنی خلق به د هغه اطاعت کوی او دی به يې مشری کوی) (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① قَحْطَانَ: د عربو يوه زړه قبيله ده، ② يَسُوقُ: شړی به، ③ عَصَا: همسا

**تسهيلات:**

**قوله: يَخْرُجَ رَجُلٌ مِنْ قَحْطَانَ يَسُوقُ النَّاسَ بِعَصَاهُ:**

**د رجل مصداق:** دا قحطاني سړې به يو عادل مسلمان بادشاه وی دده نوم به جهجاه وی دې. دې به په اصل کښې غلام وی روستو به دَ پوره دنيا بادشاه جوړشي.

**دَتولې دنيا څلور بادشاهان:** چه څلور بادشاهان دَ تولې دينا حکمرانان تير شوی دی
① سکندر ② حضرت سليمان ﷺ ③ بخت نصر ④ نمرود.

**دعربو دوه قبيلې:** دَعربو دوه پخوانئي لوئی قبيلې دی
① يوه قحطان ده ② دويمه قبيله عدنان ده.

د نبی کريم صلی الله عليه وسلم دَ مور اوپلار طرف نه عدناني قحطاني ده دا قبيله پخواني مشرانو نيکانو طرف ته منسوب دی. دهغه نوم قحطان وو او دَ بل نوم عدنان وو

**قوله: يَسُوقُ النَّاسَ بِعَصَاهُ:**

**دمذکوره جملې مطلب:** يعنی دَ هغه اقتدار به مضبوط او مستحکم وی. خلق به دَ هغه دَ فرمان تابع وی دا سړې به دَ حضرت عيسیٰ ﷺ نه پس دَمسلمانانو خليفه جوړيږی

**[٥٤١٦] د جهجاه نومې سړی باره کښې پیشنګوئي**

٥٤١٦-(٤)[٦] [١] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «لَا تَذْهَبُ الْأَيَّامُ وَاللَّيَالِي حَتَّى يَمْلِكَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ: الْجَهْجَاهُ» [٣] وَفِي رِوَايَةٍ: «حَتَّى يَمْلِكَ رَجُلٌ مِنَ الْمَوَالِي يُقَالُ لَهُ الْجَهْجَاهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] ورځ او شپه به

---

[٥] ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب ذکر قحطان ومسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتی یمر الرجل بقبر الرجل. فیتمنی أن یکون مکان المیت من البلاء (رقم-٦٠ - (٢٩١٠) واحمد فی المسند: ٤١٧/٢

[٦] ) اخر جه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتی یمر الرجل بقبر الرجل. فیتمنی أن یکون مکان المیت من البلاء (رقم-٦١ - (٢٩١١) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٢٢٨)واحمد فی المسند:٣٢٩/٢

ترهغه وخته پورې نه تولیږي یعنې (تر هغه وخته پورې به د زماني اختتام نه کیږي او قیامت به نه راځي) ترڅو پورې چې هغه سړی مالك نشي یعنې په خلقو اقتدار او تسلط پیدانه کې چې هغه ته به جهجاه ونیل کیږي [۳] او په یوه روایت کې داسې دي چې ترڅو پورې د موالي نه یو سړی مالك نشي، یعنې په خلقو باندې اقتدار او تسلط پیدانه کړي چې هغه ته به جهجاه ونیل کیږي. (مسلم)

**حل اللغات** اَلْمَوَالِي دمولی جمع ده معنی ئې غلامان ده.

**تسهیلات:**

**قوله** حَتّٰى يَمْلِكَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ: الْجَهْجَاهُ":

**دنسخو اختلاف:** اَلْجَهْجَاهُ بعضې نسخوکښې خو په دوؤ هاء سره "جهجهاه" دې او بعضې نسخو کښې جهجاه په یو هاء سره نقل دې. دارنګ واضحه دې وی

**نوټ:** د جهجاه باره کښې لږ وضاحت وړاندې د حدیث نمبر(۵۴۱۵) په تسهیل کښې شوې دې

**[۵۴۱۷]دکسری د ما نړی فتح کیدو خوشخبری**

۵۴۱۷-(۳)[۷] [۱] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ [۲]: "«لَتَفْتَحَنَّ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ كَنْزَ آلِ كِسْرَى الَّذِي فِي الْأَبْيَضِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر بن سمره ﷛ وایي چې ما د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل [۲] چې بلاشبه د مسلمانانو یو جماعت به دآلِ کسرٰی خزانه فتح کړي، چې په سپین محل کښې به وي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① عِصَابَةٌ: ډله. جماعت، ② كَنْز: خزانه، ③ الْأَبْيَض: سپین محل

**تسهیلات:**

**قوله** لَتَفْتَحَنَّ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ:

**دآل کسری څخه مراد:** د فارس د بادشاهانو لقب کسری دې، د روم د بادشاهانولقب قیصر. دلته لفظ د آل زائد دې په قلعه ابیض کښ اوسیدونکی د کسری اهل کار مراد دی

**قوله:** كَنْزَ آلِ كِسْرَى الَّذِي فِي الْأَبْيَضِ:

**د قصرابیض څخه مراد:** قاضی وغیره وائی چه د ابیض نه د ایران هغه مضبوطه قلعه مراد ده کومه چه په دار السلطنت مدائن کښ وه، اهل فارس به هغې ته د سفید کوشك نوم ورکولو. اوس د هغې په ځائې مسجد المدائن تیار کړې شوې دې

**دقصرابیض د فتح مقدمه:** دهغې په خزانې باندې مسلمانانو د عمر ﷛ په خلافت کښ

---

[۵۸]) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتی یمر الرجل بقبر الرجل. فیتمنی أن یکون مکان المیت من البلاء (رقم-۷۸ - (۲۹۱۹) واحمد فی المسند: ۱۰۰/۵

قبضه کړې وه، مختصر واقعه دا ده چه په ۱۴هجری محرم کښې د اسلام سپه سالار سیدنا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د مسلمانانو تقریبا دیرش زره لښکر د تقریبا دوه لاکهه ایرانی لښکر او د هغوی د سپه سالار رستم سره درې ورځو پورې جنګ اوکړو اخر د دریمې ورځ تیریدلو نه پس د شپې په وخت په فیصله کن جنګ کښې سیدنا قعقاع رضی الله عنه آواز اوکړو چه د ایرانی لښکر په مینځ حمله اوکړئ او رستم ګرفتار کړئ.

**د رستم قتل**: بیا اسلامی فوج هغه مقام ته اورسیدو، چرته چه رستم په زرین فوج باندې ناست فوج جنګولو، رستم د تخت نه راکوزیدو سره په جنګ شو بیا زخمی کیدو سره به تیخته شو هلال بن علقمه رضی الله عنه په رستم باندې د نیزې ګزار اوکړو چه په هغې سره ئې ملا ماته شوه او هغه نهر ته اوغورځیدو، هلال ورښکته شو او د رستم خپې ئې اونیولې او قتل کولو سره ئې د هغه په تخت باندې اودریدو سره په اوچت آواز باندې اونیل قسم په الله ما رستم قتل کړو،

**د ایرانی فوج ماتې**: په دې آواز اوریدلو سره ایرانی فوج په تیخته شو. په ایرانی فوج کښې صرف دیرش کسان په تیخته کښې کامیاب شو او باقی ټول په میدان جنګ کښې قتل شو دا خو د قادسیه د جنګ واقعات دی د دې نه پس د بابل او کوتی فتح اوشوه. بیا بهر شیر کومه چه د ایران پوجی چهاونړئ وه، هغه ئې فتح کړه،

**د مدائن فتح**: اوس سپه سالار اسلام سیدنا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه ته د ایران په دار الخلافة مدائن باندې د قبضې کولو خیال پیدا شو خو د دجله نهر طوفانی او تیارهٔ چپې په مینځ کښې حائل وې، ایرانیانو ټول پلونه غورځولو سره کشتئ سیزلې وې. په بله غاړه باندې ایرانی فوج هم متعین وو، کوم چه د نهر د عبور کولو نه مانع وو د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه په حکم سره عاصم بن عمر رضی الله عنه د شپږو سوو غشو ویشتونکو د یو جماعت سره د دجله په غاړه په یو لوړ ځائې باندې کیناستلو د دې نه پس سیدنا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه ﴿نستعين بالله ونتوكل عليه حسبنا الله ونعم الوكيل لا حول ولا قوة الا بالله العلي العظيم﴾ وئیلو سره خپل اس په اوبو باندې ور واچولو، د هغوی په تابعدارئ کښې نورو هم خپل اسونه په اوبو ور واچول. د دواړو طرفونو نه د غشو باران شروع شو. اخر ایرانی فوج مقتول او زخمی کیدو سره په تیخته شو،

**د قصر ابیض فتح**: دهغه وخت ایرانی بادشاه یزدجر د مسلمانانو د رسیدو نه مخکښې خپل اهل وعیال او خزانې د مدائن نه اولیږلې خو شاهی محل قصر ابیض او او دار السلطنت کښې د کروړونو روپو سامان پاتې شوې وو، د اسلامی لښکر د دریاب عبور کولو نه پس یزدجر هم په تیخته شو سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه په قصر ابیض کښې داخلیدو سره دا آیت کریمه اولوستلو ﴿كَمْ تَرَكُوا مِنْ جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ وَنَعْمَةٍ كَانُوا فِيهَا فَاكِهِينَ

كَذٰلِكَ وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ﴾دا د جمعې ورځ وه، په قصر ابيض كښې د كسرى د لاندې خانې ممبر كېخودلې شو او هلته ئې د جمعې مونځ ادا كړو،

**د قصر ابيض مال غنيمت**،په مال غنيمت راټولولو باندې ئې عمرو بن مقرن ﷛ مامور كړو، په مال غنيمت كښې پوره شاهي خزانه، سپين زر، سرۀ زر او د جواهرات نه جوړ بتان او د كسرى شاهي جامې او د هغه د سرو زرو تاج او د عجائب خانې نه د خاقان، چين، قيصر روم، داهر شاه هند، بهرگور، كسرى هرمز فيرو خنجرونه وغيره ملاؤ شو هم په هغه نادر زر نګار كښې د كسرى عجيب او غريب فرش هم وو. كوم چه نوى ګزه اوږد او يو دپاسه سل ګزه پلن وو، چه په هغې كښې ګلونه وغيره د سرو او سپينو زرو او جواهراتو نه جوړ كړې شوې وو. په مدينه منوره كښې ئې هغه ټكرې ټكرې كولو سره تقسيم كړو، د على ﷛ په حصه كښې چه كومه ټكره راغله هغه په مقدار كښې وړه وه خو هغه په ديرش زره ديناره باندې خرڅه كړې شوه. (تاريخ الاسلام از ۳۱۵ تا ۳۷٤)

**[۵٤۱۸]د روم او فارس د فتح كولو پيشنګوئي**

> ۵۴۱۸-(۳)[۸] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«هَلَكَ كِسْرَى فَلَا يَكُونُ كِسْرَى بَعْدَهُ ۳ وَقَيْصَرُ لَيَهْلِكَنَّ ثُمَّ لَا يَكُونُ قَيْصَرُ بَعْدَهُ ۴ وَلَتُقْسَمَنَّ كُنُوزُهُمَا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ۵" وَسَمَّى "الْحَرْبُ خُدْعَةٌ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ كسرى هلاك شوى دى د كسرى نه پس به بل كسرى نه وي، ۳ او يقينًا قيصر د روم بادشاه هم هلاك شو د هغه نه پس به بل قيصر نه وي ۴ او د دې بادشاهانو خزانې به د الله ﷻ په لار كې تقسيم شي، ۵ او حضور ﷺ د جنګ نوم فريب او دهوكه كېخو دلو. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:**- ① الْحَرْبُ: جنګ، ② خُدْعَةٌ: حيله، تدبير.

**تسهيلات:**

**قوله: هَلَكَ كِسْرَى فَلَا يَكُونُ كِسْرَى بَعْدَهُ:**

**د كسرى مصداق:** كِسْرَى په كسره دَ كاف ويجوز الفتح، دَ فارس دَ بادشاه به دا لقب وو ابن الاعرابى وائى چه كسره افصح دې خو زجاج نحوى دَ كسره نه انكار كړې دې.

**قوله: وَقَيْصَرُ لَيَهْلِكَنَّ ثُمَّ لَا يَكُونُ قَيْصَرُ بَعْدَهُ:**

**د قيصر مصداق:** دَ روم دَملک دَ بادشاه لقب قيصر وو.

---

[۵۹] ) اخرجه البخارى فى كتاب الجهاد والسير/باب: الحرب خدعة (رقم-۳۰۲۷) ومسلم فى كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر الرجل، فيتمنى أن يكون مكان الميت من البلاء (رقم-۷۶ - ۲۹۱۸)والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا ذهب كسرى فلا كسرى بعده (رقم-۲۲۱۶)واحمد فى المسند: ۳۱۳/۲

**دحدیث پس منظر:** رسول الله ﷺ په کال ۷هجری کښې دَ مختلف بادشاهانو په نومونو خطونه جاری کړی وو نودَ کسریٰ او قیصر په نوم ئی هم خطونه اولیکل په کوم کښې چه هغوی ته دَ اسلام دعوت ورکړې وو. دَ کسریٰ په نوم خط حضرت عبدالله بن حذافه سهمی رضی الله عنه اوړلې وو کسریٰ چه دَ رسول الله ﷺ خط اولوستلو نو دَ غصې نه تک سور شو په ډیر خفګان او غصه کښې ئی خط ټکړې ټکړې کړو اووئیل نی دا سړې مونږ ته دَ ایمان راوړلو دَ پاره خط لیکی حالانکه دا سړې زما غلام دې

**د نبی علیه السلام د ګوفتارۍ حکم:** عبدالله بن حذافه رضی الله عنه دا واقعه حضورپاک ﷺ ته بیان کړه نو حضورپاک ﷺ اوفرمائیل دَ کسریٰ ملک ټکړې ټکړې شو کسریٰ دَ یمن ګورنر باذان ته خط اولیکلو چه دوه طاقتور سړی اولیګه چه حضوراکرم ﷺ راګیرکړی دلته ئی راولی. هغه دواړه چه کله دَ حضور ﷺ مخې ته اورسیدل نودَ الله تعالی دَ طرف نه دَ ورکړې شوی عظمت په وجه په لړچیدو شو.

**دکسری د هلاکت خبر ورکول:** رسول الله ﷺ دې دواړو ته دَ اسلام دعوت ورکړو وئی فرمائیل چه صباله راشئی کله چه دا دواړه حاضر شو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل په نن شپه فلانکی وخت کښې دَ کسریٰ خوئ په هغه باندې مسلط کړې شو نو هم په دغه شپه دَ کسریٰ خوئ شیرویه هغه قتل کړو دا دَ نهې شپه وه لسم دَ جمای الاولی کال ۷ هجری وو اودې دواړو ته ئی اوفرمائیل چه تاسو باذان ته داحال بیان کړئی او باذان ته اووایئی زما حکومت به تردغه ځائ رسی. باذان اووئیل داخبره دَ بادشاهانو په شان نه ده که دَ کسریٰ دَ قتل خبر صحیح دې نوهغه بې شکه نبی دې. دَ دې خبر په تصدیق کیدو باندې باذان سره دَ خپل خاندان او ملګرو مسلمان شو (سیرة المصطفی ۳۷۴/۲ کوم کسریٰ چه خط شلولې وودَ هغه نوم ابرویزبن هرمز بن نوشیروان وو) دَ هغه نه شپږ میاشتې پس دَ هغه خوئ هم مړشو

**دعمرفاروق په زمانه کښې دفارس فتح کیدل:** بیا دَ حضور پاک ﷺ دَ بددعا دا اثر شوچه دَ عمر فاروق رضی الله عنه په زمانه کښې دَ فارس ملک ټکړې ټکړې شو اودَ سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه په ذریعه فتح شو دغه وخت دَ فارس بادشاه یزد جرد بن شهریار بن شیرویه وو

**اشکال:** دَ دې مذکوره روایت نه معلومیږی چه دَ کسریٰ او قیصرنه پس به یوقیصر او کسریٰ نه وی حالانکه دَ دې زمانې قیصر او کسریٰ نه پس هم دَ هغوی مملکتونه باقی پاتې دی؟

**داشکال جواب:** دَ حدیث شریف نه مراد دادې چه فلا کسریٰ بالعراق وقیصر بالشام قاله الشافعی. چونکه صحابه کرام حضرات تاجران وو او دوی به دَ تجارت دَ پاره شام او عراق ته تلل نودَ اسلام راوړلو نه پس هغوی به دَ هغه ځائ دَ بادشاهانو نه ویریدل نو

حضورپاک ﷺ د زیری او د هغوی د زړه د تسلئی د پاره اوفرمائیل چه هیڅ قیصر اوکسری به پاتې نه شی دا هم یاد ساتئی چه فارس ټکړې ټکړې شو فنا شو ځکه چه هغوی د رسول الله ﷺ خط مبارک ټکړې کړې وو او د روم ملک باقی پاتې شوځکه چه قیصردغه خط ښکل کړې وو او په سر ئې ایخودې وو د حضور پاک ﷺ دا اشاره بالکل صادق شوه چه بیا د هغه ځائ د بادشاهانو دغه القابات بالکل ختم شوې وو

**قوله:** الْحَرْبُ خُدْعَةٌ:

**په جنګ کښې د دهوکې جواز:** یعنی حضورپاک د جنګ او جهاد نوم چالبازی حیله اوتدبیرکیخودو ځکه چه په جهادکښې دَدې اجازت شته . هم دغه وجه وه چې نبی کریم صلی الله علیه به کله د جهاد اراده لرله نو اصلی ځائې به ئې نه خودلو بلکه توریه وغیره به ئې کوله دغه شان په غزوه خندق،قتل کعب بن اشرف وغیره معرکوکښې حقیقت حال پټ کړې شوې دې

**د موجوده جملې سابقه سره ربط:** دَدې جملې د سابقه جمله سره ربط دې چه کله دفتوحاتو او د غنائمو د تقسیم تذکره اوشوه نو د جهاد دَمیدان تصور مخې ته راغلونو حضورپاک د جهاد د ضروریاتو او د آدابو نه د یوضرورت او آدب ذکر اوفرمائیلو .

**[۵۴۱۹] د ښلورقسمه فتوحاتو پیشنګوئی**

> ۵۴۱۹-(۲)[۹] [۱]وَعَنْ نَافِعِ بْنِ عُتْبَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «تَغْزُونَ جَزِيرَةَ الْعَرَبِ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ، [۳]ثُمَّ فَارِسَ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ، [۴]ثُمَّ تَغْزُونَ الرُّومَ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ، [۵]ثُمَّ تَغْزُونَ الدَّجَّالَ فَيَفْتَحُهُ اللّٰهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱]حضرت نافع ابن عتبه ﷺ روایت کوي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲]تاسو خلق به خما نه پس د جزيرة العرب غزه کوئ، او الله ﷻ به تاسو ته فتحه درکړي، [۳]بیا به تاسو د فارس ملك سره جنګ کوئ او الله ﷻ به دجهاد په ذريعه هغه ستاسو په لاس بیا فتح کړي، [۴]بیابه تاسو د روم مملکت سره جنګ کوئ، او الله ﷻ به هغه ستاسو په لاس فتح کړي [۵]او بیابه په آخري زمانه کې تاسو د دجال سره جنګ کوئ او الله ﷻ به په هغه تاسو ته فتح درکړي (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** تَغْزُونَ جَزِيرَةَ الْعَرَبِ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ:

**دجزیرة العرب څخه مراد:** د جغرافیه دانو د قول مطابق نجد ،حجاز، یمامه، یمن او غروض په دې لویو پنځو مقاماتو باندې دَحزیرة العرب اطلاق کیږی. په حجاز کښې

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ما یکون من فتوحات المسلمین قبل الدجال (رقم-۳۸ - (۲۹۰۰) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب الملاحم (رقم-۴۰۹۱) واحمد فی المسند: ۳۳۸/۴

مكه اومدينه هم داخل دی. دَ جزيرة العرب په جنوب كښې بحرعرب واقع دې او په شمال كښې دَ فرات درياب دې مشرق كښې خليج عرب اوخليج عمان واقع دې او مغرب كښې بحر احمرواقع دې بهرحال داحديث ښائی چه هم دَجهاد مقدس په ذريعه په مسلمانانو باندې دَ فتوحاتو دروازې كولاؤ شوی دی او بيابه هم كولاويږی

**قوله** ثُمَّ فَارِسَ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ:

**نوټ**: د فارس اوروم د فتحې تفصيل د حديث نمبر(۵۴۱۷) په تسهيل كښې تيرشوي دي او د دجال تفصيلی بحث به د مشكاة د حديث نمبر(۵۴۷۰) په تسهيل كښې راشی انشاء الله

**[۵۴۲۰] دَ قيامت څخه وړاندې د شپږو واقعاتو پيشګوئی**

۵۴۲۰-(٣)[١٠] ١«وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ٢: أَتَيْتُ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ٣ فَقَالَ "اعْدُدْ سِتًّا بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ٤ مَوْتِي٥ ثُمَّ فَتْحُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ٦ ثُمَّ مُوتَانٌ يَأْخُذُ فِيكُمْ كَقُعَاصِ الْغَنَمِ٧ ثُمَّ اسْتِفَاضَةُ الْمَالِ حَتَّى يُعْطَى الرَّجُلُ مِائَةَ دِينَارٍ فَيَظَلُّ سَاخِطًا

**ترجمه**: ١ او حضرت عوف ابن مالك وايي ٢ چې د غزوه تبوك په دوران كې يوه ورځ زه دحضور ﷺ په خدمت كې حاضر شوم هغه وخت حضور ﷺ دچرمي په خيمي كې تشريف فرماوو ٣ حضور ﷺ وفرمايل تاسو دقيامت راتلونه مخكې شپږ ۶ څيزونه شمار كړی هغه شپږ ۶ څيزونه د قيامت د علاماتو نه وګڼی چې د قيامت نه مخكې به هغه څيزونه ضرور واقع كيږي ۴ يوخو به زما مرګ چې ترڅو پورې زه ستاسو مخكې يم قيامت به نه راځي ۵ دويم دبيت المقدس فتح كيدل تر څوپورې چې بيت المقدس د مسلمانانو په لاس فتحه نشي قيامت به نه راځي ٦ دريم يوه به عامه وبا خوره شی كومه چې د چيلوبيماری ده ٧ څلورم د خلقو سره مال ودولت دومره زياتيدل كه يوسړی ته سل ديناره هم وركړه شي نوهغه به بياهم غصه وي څكه چې دچا په نظر كې به لوی نه لوی رقم هم څه اهميت نه لري، انو د حضور ﷺ داپيش ګويي دحضرت عثمان ؓ په دور حكومت كي پوره شوه هركله چې په مسلمانانوكي مال ودولت ډير زيات شوی وو ۰!

**حل اللغات**:- ① قُبَّةٍ: خيمه. ② أَدَمٍ: څرمن. ③ مُوتَانٌ: په ميم باندې ضمه ده يو قسم عام وبائی مرض مراد دي. ④ قُعَاصِ: يو وبائی مرض چه په چيلو كښې پيدا كيږی او وژنی ئې. ⑤ اسْتِفَاضَةُ: زياتيدل. ⑥ سَاخِطًا: خفه. غصه.

١ ثُمَّ فِتْنَةٌ لَا يَبْقَى بَيْتٌ مِنَ الْعَرَبِ إِلَّا دَخَلَتْهُ ٢ ثُمَّ هُدْنَةٌ تَكُونُ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ بَنِي الْأَصْفَرِ ٣ فَيَغْدِرُونَ فَيَأْتُونَكُمْ تَحْتَ ثَمَانِينَ غَايَةً تَحْتَ كُلِّ غَايَةٍ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب الجزية /باب ما يحذر من الغدر (رقم-٣١٧٦) ومسلم في كتاب الصلاة /باب سترة المصلى (رقم-٢٤٩ - (٥٠٣) وابن ماجه في كتاب الفتن /باب أشراط الساعة (رقم-٤٠٤٢)

**ترجمه:** [۱]پنځمه فتنه په خپلو کې مخاصمت او مخالفت چې د عربو هيڅ کور به باقي پاتي نشي چې هغه ته به د دې فتنې خراب اثرات ونه رسيږي علماوو ليکلي دي چې د دې پيش ګوئي مصداق د حضرت عثمان ﷺ سانحه شهادت دی، يا د فتنې نه مراد هغه فتنه او خرابي ده چې د هغه ظهور د حضور ﷺ نه پس وشو، [۲]او شپږمه هغه صلح ده چې ستاسو او د روميانو په منځ کې به وي، [۳]بيابه روميان عهد شکنې وکړي، ستاسو په مقابله کې به د اتياؤ جنډيو تحت راشي چې په هغه کې به د هرې جنډې تحت دولس زره سري وي. (بخاري)

**حل اللغات:**-⑥هُدْنَةٌ: دَ صلح او مصالحت په معنى کښې دې. ⑧لَيَغْدِرُونَ: عهد شکنى به اوکړى، دهوکه به اوکړى، ⑨غَايَةٌ: جهندا.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَتْحُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ: دَ حضرت عمر فاروق ﷺ په زمانه کښې فتح شوې وو.

**قوله:** مُوتَانٌ:

**د موتان پيژندګلو:** دا وبائى مرض اکثر په چيلو کښې راځى چه تولې چيلئى مرې کوى. دې مرض ته "قعص" وائى يعنى دَچيلو دَ دغه خاص مرض په شان به په تاسو باندې هم يو وباء راځى. دادَ طاعون عمواس طرف ته اشاره ده چه دَحضرت عمر ﷺ په دورخلافت کښې ۱۸هجرى کښې راغلې وو.

عمواس بيت المقدس سره نيزدې دَ يوځائى نوم دې هغه وخت داځائى فوجى چهاؤنى وه. دې طاعون سره په دريو ورځو کښې دننه دننه اويا زره کسان مړه شوى وو.

**قوله:** اسْتِفَاضَةُ الْمَالِ:

**دمال زياتيدل:** دا څلورمه علامه ده چې مال به دومره زيات شى چې يو کس ته به سل (۱۰۰) دينار ورکړې شى خوهغه به دغه سل دينار کم ګنړى اوخوشحاليږى به پرې نه.

**د حديث په محمل کښې دوه اقوال:**① په دې کښې کثرت فتوحات ته اشاره ده کومه چې د حضرت عثمان رضى الله عنه په ابتدائى پنځو کالو کښې حاصل شوى وو

②کيدې شى چې دا قيامت ته نزدې يوې زمانې ته اشاره ده په کومه کښې چې په مال زيات شى لکه چې يو حديث کښې راغلى دى قيامت ته نزدې به زمکې خپلې خزانې رابهر کړى.

**قوله:** ثُمَّ فِتْنَةٌ:

**دفتنې په مصداق کښې دوه اقوال:**① په دې کښې دَحضرت عثمان بن عفان ﷺ دَ شهادت طرف ته اشاره ده

② دحضرت علی رضي الله عنه او حضرت معاویه رضي الله عنه په مینځ کښې د جنګونو طرف ته اشاره ده.

③ کیدې شي ددې څخه سقوط بغداد طرف ته اشاره وي په کومه کښې چې هلاکو خان په بغداد حمله کړې وه اود یو روایت مطابق شل لاکهه مسلمانان ئې قتل کړي وو. اود بیت الحکمة عظیم الشانه کتب خانه ئې سوزولې وه. یا ئې د هغې کتابونو دریاب ته اچولي وو.

**قوله: ثُمَّ هُدْنَةٌ تَكُونُ بَيْنَكُمْ:**

**د هدنة مصداق:** ددې څخه مراد د مسلمانانو او رومیانو په مینځ کښې صلح ته اشاره ده یعنې یو صلح او معاهده به کیږي ممکن ده چه هغه معاهده وي چه د مسلمانانو او عیسایانو د یوې دلې په مینځ کښې به کیږي اود عیسایانو دویمې دلې سره به جنګ کیږي. بیا چه کله فتح حاصله شي نو مسلمانان به وائي چه اسلام غالب شو او عیسایان به وائي چه صلیب غالب شو. بیا به دهغوی په خپل مینځ کښې جنګ کیږي تول عیسایان به دمسلمانانو خلاف شي او په جنګ کولو سره به دمسلمانانو بادشاه شهید کړې شي. په داسې وخت کښې به د امام مهدی ظهور اوشي او فوراً به جنګی تیارئی شروع شي. په مقابله کښې به رومیان اتیا جهنډې اخستو سره راشي دهغوی پوره شمیر به نهه لاکهه او شپیته زره وي.

**قوله: وَبَيْنَ بَنِي الْأَصْفَرِ:**

**د بنو الاصفر په وجه تسمیه کښې دوه اقوال:** ① د دوی څخه رومیان مراد دي او دوی ته بنو الاصفر ددې وجې وائي چې د جد اعلی نوم روم بن عیصور بن یعقوب وو. دهغه رنګ سپین وو چې زیړوالی ته مائله وو. نود جد اعلی په اعتبار سره ورته رومیان وائي او د رنګ په اعتبار ورته بنو الاصفر وائي.

② د رومیانو جد اعلی روم د حبشو د یو جینۍ سره واده کړې وو. اودهغې څخه چې کوم اولاد پیدا شوې وو. نو هغوی د توراو سپین په مینځ کښې د زیړ رنګ والا وو. څکه ورته بنو الاصفر وائي.

**قوله: تَحْتَ كُلِّ غَايَةٍ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا:**

**دغایة معنی او دهې سره د تشبیه وجه:** دغایة معنی نښه یا جنډه ده، په بعضې روایاتو کښې د غایة په ځائې غابة منقول دی. د هغې معنی ځنګل اود ونو بند دې. په دې صورت کښې به دا وئیلی شي چې د نښې او د جنډو د زیات والی د وجې د هغوی تشبیه د وونو بند سره ورکړې ده اود لښکرد شمار کثرت ترې مراد دې

## [۵٤۲۱] روميانو سره د جنګ پېښېدل

سو-(۳)[۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] "«لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَنْزِلَ الرُّومُ بِالْأَعْمَاقِ أَوْ بِدَابِقَ [۳] فَيَخْرُجُ إِلَيْهِمْ جَيْشٌ مِنَ الْمَدِينَةِ مِنْ خِيَارِ أَهْلِ الْأَرْضِ يَوْمَئِذٍ [۴] فَإِذَا تَصَافُّوا قَالَتِ الرُّومُ خَلُّوا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الَّذِينَ سَبَوْا مِنَّا نُقَاتِلْهُمْ. [۵] فَيَقُولُ الْمُسْلِمُونَ: لَا وَاللهِ لَا نُخَلِّي بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ إِخْوَانِنَا.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] قيامت به تر هغه وخت پورې نه قائمېږي ترڅو پورې چې رومي، اعماق او وابق کې حملې رانشي. [۳] او بيا به د مديني والاوو يو لښکر د هغوئ مقابلې ته راووځي چې په هغه کې به د هغه ورځ او هغه وخت په مخ د زمکې د ټولو نه ښه خلق شامل وي، [۴] هرکله چې د جنګ د پاره صف بندي وشي نو رومي به دا وايي، چې مونږ او هغه خلق سره پرېږدئ چې زمونږ خلق يې قيدولو سره راوستلي دي چې مونږ د هغوئ سره جنګ وکړو [يعني چې کومو مسلمانانو چې د دې نه مخکې زمونږ خلاف جهاد کړيدي، او زمونږ څه سړي يې په قيد راوستلي دي. هغه مسلمانان زمونږ په مقابله کې راولي ځکه مونږ تاسو ټولو سره جنګ کول نه غواړو. بلکې بدله اخستو د پاره صرف هغه مسلمانانو سره جنګ کول غواړو. ګويا رومي به داخبره ځکه کوي چې مسلمانان د هغوئ په خبروکې راتلو سره خپل اجتماعت ضائع کړي او د باهمي تفريق ښکار شي،] [۵] ليکن مسلمانان به هغوئ ته جواب ورکړي. چې داسې هيڅ کله نشي کيدی مونږ ستاسو او د خپلو هغه مسلمانانو په منځ کې ځای نه شو خالي کولی. [داسې څرنګه کيدي شي چې مونږ هغه مسلمان ورونه ستاسو په مقابله کې جنګ ته رامخکې کو، او خپله يوطرف ته شو، که جنګ کوو نو مونږ ټول به جنګ کوو. او يوځای به جنګ کوو]

**حل اللغات** - ① الْأَعْمَاقِ .دَابِقَ: دا دواړه د انطاکيه او حلب په مينځ کښې د دوو ځايونو نومونه دي ② تَصَافُّوا: صف بندی اوشی. ③ سَبَوْا: قيد کړی ئې دی.

[۱] فَيُقَاتِلُونَهُمْ فَيَنْهَزِمُ ثُلُثٌ لَا يَتُوبُ اللهُ عَلَيْهِمْ أَبَدًا [۲] وَيُقْتَلُ ثُلُثُهُمْ أَفْضَلُ الشُّهَدَاءِ عِنْدَ اللهِ [۳] وَيَفْتَتِحُ الثُّلُثُ لَا يُفْتَنُونَ أَبَدًا فَيَفْتَتِحُونَ قُسْطُنْطِينِيَّةَ". [۴] فَبَيْنَمَا هُمْ يَقْتَسِمُونَ الْغَنَائِمَ قَدْ عَلَّقُوا سُيُوفَهُمْ بِالزَّيْتُونِ [۵] إِذْ صَاحَ فِيهِمُ الشَّيْطَانُ إِنَّ الْمَسِيحَ قَدْ خَلَفَكُمْ فِي أَهْلِيكُمْ.

**ترجمه:** [۱] نو ټول مسلمانان به روميانو سره جنګ شروع کړي. او سخت جنګ به وشي، نو په هغه مسلمانانو کې به دريمه حصه (۳/۱)، مسلمانان په شا ګرځولو سره وتښتي،

[۶۲]) اخرجه مسلم في كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب في فتح قسطنطينية، وخروج الدجال ونزول عيسى ابن مريم (رقم-٣٤ - (٢٨٩٠٧)

چې الله ﷻ به يې هيڅ کله معاف نه کړي، ۲ او يو حصه مسلمانان به جام د شهادت نوش کړي، چې يقيناً به د الله ﷻ په نزد به شهيدان وګرځول شي، ۳ او باقي يوه حصه مسلمانان به فتحياب شي، يعنی الله ﷻ به د خپل مدد او نصرت په ذريعه د روميانو په مقابله کې هغوئ ته فتحه يابي عطا کړي، او د هغوئ په لاس به د روميانو ښارونه فتح کړي، هغه مسلمانان به الله ﷻ هيڅ کله په فتنه کې وانه چوي، بيابه مسلمانان قسطنطينيه فتح کړي هغه ښار به د کافرو د قبضې نه واخلي ۴ او د هغه نه پس به هغه وخت کله چې هغه مسلمانان دمال غنيمت په تقسيمولو کې مصروف شي او خپلې توري به د زيتون په ونو باندې ځوړنده کړي وي، ۵ چې ناځاپه شيطان به د هغوئ په منځ کې داخبره اعلان کې چې مسلمانانو تاسو دلته مصروف يې ، حال دا چې مسيح دجال ستاسو کورونو ته رسيدلی دي

**حل اللغات:-**④ فَيَنْهَزِمُ: په شا به اوتختي،شکست به اوخوری، ⑤ عَلَّقُوا: زوړندې کړې به ئې وی.

۱ فَيَخْرُجُونَ وَذٰلِكَ بَاطِلٌ، ۲ فَإِذَا جَاءُوا الشَّامَ خَرَجَ فَبَيْنَمَا هُمْ يُعِدُّونَ لِلْقِتَالِ يُسَوُّونَ الصُّفُوفَ إِذْ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ ۳ فَيَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ فَأَمَّهُمْ ۴ فَإِذَا رَآهُ عَدُوُّ اللهِ ذَابَ كَمَا يَذُوبُ الْمِلْحُ فِي الْمَاءِ ۵ فَلَوْ تَرَكَهُ لَانْذَابَ حَتَّى يَهْلِكَ وَلٰكِنْ يَقْتُلُهُ اللهُ بِيَدِهِ ۶ فَيُرِيهِمْ دَمَهُ فِي حَرْبَتِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ د اسلامي لښکر خلق به په دې اوريدو سره د قسطنطنيه نه ووځي، ليکن د شيطان داخبره به سراسر دروغ ثابت شي، ۲ البته مسلمانان چې شام ته ورسي، نو بيا به دجال ښکاره شي، مسلمانان به د هغه سره د جنګيدو تياري کوي، او په صف بندي کې به مشغول شي، چې د مونځ وخت شي او موذن به تکبير کولو د پاره ودرېږي ۳ په دې کې به حضرت عيسىٰ ابن مريم د آسمان نه د دمشق د جامع مسجد په مناره را خکته شي، بيابه بيت المقدس ته راشي، او د مسلمانانو امامت به وکړي، ۴ بيابه الله ﷻ هغه دښمن يعنی دجال چې هغه وخت به يې مسلمانان ګير کړي وي کله چې حضرت عيسىٰ عليه السلام ويني، نو داسې به ويلې کيدل شروع شي لکه څرنګه چې مالګه په اوبو کې ويلې کيږي، ۵ که حضرت عيسىٰ عليه السلام هغه په هغه حالت کې پرېږدي، اوقتل يې نکړي نو هغه به تول ويلې شي، مړبه شي ليکن دالله مرضي به داوي، چې هغه به د حضرت عيسىٰ عليه السلام په لاس قتل شي ۶ بيابه حضرت عيسىٰ عليه السلام مسلمانانو ته يا کافروته ياټولو ته به د دجال وينه د خپلې نيزې په ذريعه ونبايي، يعنی حضرت عيسىٰ عليه السلام چې د نيزې په ذريعه دجال قتل کړي، نو د هغه د ويني نه به آلوده وي، هغه به خلقو ته ونبايي، چې ګوری ما د هغه د الله د دښمن کار ټول کړی دی. (مسلم)

**حل اللغات:-**⑥ يُعِدُّونَ: د اعداد نه دې يعنی تياری به شروع کړی، ⑥ ذَابَ: ويلی کيدل.

**تسهيلات:**

**قوله:** **لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَنْزِلَ الرُّومُ بِالْأَعْمَاقِ:**

**د اعماق څخه مراد:** په دې حديث کښې دَمديني نه مراد دَ حلب ښاردې کوم چه په شام کښې واقع دې په مدينه منوره باندې دا پيشنګوئي صادق نه راځي اونه ترې مدينه منوره مراد ده دَ مسلمانانو دَدې لښکرنه مراد دَ حضرت مهدي لښکردې چه دَ شام عيسايانو سره به جنګيږي

**قوله:** **قَالَتِ الرُّومُ خَلُّوا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الَّذِينَ سَبَوْا مِنَّا نُقَاتِلْهُمْ:**

**د کافرانو د مسلمانانو څخه مطالبه:** يعني کافران به وائي چه دَمسلمانانو کومې ډلې زمونږ خلق قيدکړی دی هغه ډله جدا کړئ دې دَپاره چه مونږ دَهغوی نه بدله واخلو مونږ تاسو سره نه جنګيږو مسلمانان به دَدې ډلې بازئي نه انکارکوی او جنګيدل به شروع کوی مګر يوه ډله به اوتختي او يوه ډله به دَ خودکش حملې دَپاره تياره شي. درې ورځې به ښه لاس په لاس جنګ اوشي اومسلمانان به لږ شان پاتې شي. په څلورمه ورځ به ورته الله تعالی فتحه نصيب کړی نو مسلمانان به نيغ لاړشي او په قسطنطنيه کښې به داخل شي لکه څنګه چه تفصيلي روايت کښې دې.

**د قسطنطنيه لنډه پيژندګلو:** د قسطنطنيه پخوانې نوم بازنطين وو.خو په ۳۳۰ عيسوی کښې يو رومن بادشاه دا خپل نوم ته منسوب کړه اوددې نوم ئې قسطنطنيه کيخود د بازنطيني سلطنت په تاريخ کښې قسطنطنيه کم ازکم ۲۴ ځله محاصره شوې وه په دې محاصرو کښې دوه ځله قسطنطنيه د بيروني فوځونو لاسه فتح شوې وه.يوځل په ۱۲۰۴ کښې دڅلورمې صدۍ د جنګ په دوران کښې د يورپ عيسايانو دا بيخي تباه کړه او دويم ځل په ۱۴۵۳ کښې د سلطان محمد فاتح په قيادت کښې عثماني فوځونو دا فتح کړه

**د مسلمانانو محاصرې:** مسلمانانو ددې ښار اولنۍ محاصره ۶۷۴ کښې د اموی خليفه حضرت معاويه بن ابی سفيان رضی الله عنه په زمانه کښې کړې وه او دويمه محاصره داموی خليفه سليمان بن عبدالملک په دور ۷۱۷ کښې کړې شوې وه ددې قيادت دخليفه ورور مسلمه بن عبدالملک کړې وو دا ناکامه محاصره عيسايان د بلاط الشهدا په شان ګڼړی په دې کښې د ناکامۍ په وجه راروان اووه سوه کاله په يورپ کښې د مسلمانانو وړاندې کيدل اودريدلی وو.اود بنو اميه فتوحاتو ته هم ډير نقصان رسيدلې وو.د محاصره په دوران کښې سليمان بن عبدالملک وفات شوې وو.اوعمربن عبدالعزيزخليفه شو او دهغوی په حکم باندې د ښار محاصره ختمه کړې شوه.په دې محاصره کښې د مسلمانانو ډيره جاني نقصان شوې وو.

**دعثمانيانو محاصري:** عثمانيانو ددې ښار درې محاصرې کړې وې په هغې کښې اولنۍ محاصره په ۱۳۹۶ عيسوی کښې شوې وه کومه چې د سلطان بايزيد يلدرنګ په قيادت کښې شوې وه خو تيموری حکمران اميرتيموربيګ ګورکانی، صاحب قرن دسلطنت عثمانيه په مشرقی حصوباندې دحملو کولوپه وجه بايزيد ددې محاصرې په ختمولو مجبوره شو.د تيمور اوبايزيد جنګ د انقره سره نزدې شوې وو په دې کښې بايزيد ماتې خوړلې وو.

دويمه محاصره په ۱۴۲۲ عيسوی کښې عثمانی سلطان مراد ثانی کړې وه خوبازنطينيانو د ښارپه حفاظت کښې کامياب شوی وو.

**دسلطان محمدفاتح په لاس د قسطنطنيه فتح:** په ۱۴۵۳ عيسوی کښې د ښار آخری محاصره سلطان محمد فاتح کړې وه په دې کښې مسلمانانوهغه کارنامې کړې وې چې عقل ورته حيرانيږی اوښار ئې فتح کړې وو.

سلطان محمد فاتح ددې نوم اسلام بول کيخودل اودا ئې خپله دارالخلافه مقرر کړه روسته دا نوم په استنبول بدل شواواوس په موجوده وخت کښې دا د ترکو دارالخلافه ده.اوموجوده وخت ۲۰۲۰ عيسوی کښې د دوی صدر طيب اردګان دې.

**قوله: فَإِذَا جَاءُوا الشَّامَ:**

**دشام نه مراد:** دې نه دبيت المقدس ښارمراددې. "**فَأَمَّهُمْ**" يعنی حضرت عيسیٰ عليه السلام به دمسلمانانو امامت کوی.

**قوله: إِذْ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَيَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ فَأَمَّهُمْ:**

**اشکال:** په نورو رواياتوکښې په واضحه توګه راغلی دی چه حضرت عيسیٰ عليه السلام به مونځ نه ورکوی بلکه حضرت مهدی ته به فرمائی چه امام اوخليفه هم تاسو يئی خودلته دحضرت عيسیٰ عليه السلام د امامت خبره ده؟

**د اشکال دوه جوابونه:** ① دا د امهم حکم مجازاً دې يعنی حضرت عيسیٰ عليه السلام هغه ته د امامت حکم ورکړو نوهغوی امامت اوکړو ای امره بالامامة

② "امهم" د عامو مونځونوباره کښې دې اونفی صرف دهغه مونځ ده په کوم کښې چه دتولو نه اول عيسیٰ عليه السلام د آسمان نه راکوزيدلو. د جمعې د ورځې د مازيګر مونځ وو دکوم نه چه حضرت عيسیٰ عليه السلام انکاراوکړو چه په خلقو باندې واضحه شی چه دهغوی خليفه مهدی دې.

**[۵۴۲۲] په کافرانو باندې د خود کش حملو جواز**

۵۴۲۲-(۳)[۱۳] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ ۲ : «إِنَّ السَّاعَةَ لَا تَقُوْمُ حَتّٰى لَا يُقْسَمَ مِيْرَاثٌ وَلَا يُفْرَحَ بِغَنِيْمَةٍ، ۳ ثُمَّ قَالَ: عَدُوٌّ يَجْمَعُوْنَ لِأَهْلِ الشَّامِ وَيَجْمَعُ لَهُمْ أَهْلُ الْإِسْلَامِ، يَعْنِي الرُّوْمَ، ۴ فَيَتَشَرَّطُ الْمُسْلِمُوْنَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ لَا تَرْجِعُ إِلَّا غَالِبَةً، فَيَقْتَتِلُوْنَ، ۵ حَتّٰى يَحْجُزَ بَيْنَهُمُ اللَّيْلُ، فَيَفِيْءُ هٰؤُلَاءِ وَهٰؤُلَاءِ، كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ، ۶ وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ، ۷ ثُمَّ يَتَشَرَّطُ الْمُسْلِمُوْنَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ لَا تَرْجِعُ إِلَّا غَالِبَةً،

**ترجمه:** ۱ او د حضرت عبد الله ابن مسعود نه روایت دی، ۲ چې یقینا قیامت به تر هغه وخته پورې نه قائمیږي، ترڅو پورې چې ① د میراث تقسیمیدل موقوف نه شي، (یعنی یاخوبه د کفارو په مقابل کې د مسلمانانو کثرت سره د وژلو په وجه د میراث تقسیم بند شي، ځکه چې هغه وخت به ډیر کم مسلمانان پاتې شي، هغوئ ته به دومره هوش چیرته وي چې هغوئ د خپل مړکیدونکو مورثانو د ترکې تقسیم طرف ته توجه وکړي، یاشرعي احکامو او نیکیو کې دخرچ کولو نه پس به دومره نه پاتې کیږي، چې د هغه د تقسیم نوبت راشي) ، ② او ترڅو پورې چې په مال غنیمت باندې ناخوښي ونشي (یعني دقیامت قائمیدو نه مخکې یوه خبره خوبه داوي چې د میراث تقسیم به ونشي او دویمه خبره به داوي چې مسلمانان د غنیمت د مال نه خوشحاله نشي او دانه خوشحالیدل خو به یا د دې اعتبار نه وي چې مال غنیمت حاصلیدل به بند شي او هرکله چې مال حاصلیږي نه نو څوك به خوشحاله چیرته نه شي، او یا د نه خوشحالیدو نه مراد دادی چې کوم خلق د مال غنیمت د تقسیم حفاظت ذمه وار وي هغوئ به د خیانت او بد دیانتي ارتکاب کوي چې د هغه په وجه به مال غنیمت د ایماندار او بادیانت خلقو د پاره د څه خوښي باعث نه وي.) ۳ بیا حضرت ابن مسعود ﷺ د دې دواړو خبرو حقیقت واضح کولو او صورت واقعه ښکاره کولو د پاره بیان وکی، چې دښمن (یعني کافر به اهل شام سره جنګ کولو د پاره فوج او طاقت جمع کړي) اخوا مسلمانان به هم د هغه کافرو سره مقابلې د پاره لښکر او طاقت جمع کړي. (د دښمن نه مراد دوئ دي) ۴ نو مسلمانان به خپل لښکر نه څه فوج منتخب کولو سره مخکې ولیږي چې هغوئ جنګ وکړي او مړه شي او که واپس راځي نو فتحیاب او غالب به راځي، نو د دواړو فوځونو لښکرو به د یوبل خلاف مقابله شي او جنګ به شروع شي ۵ ترڅو چې د دواړو لښکرو په منځ کې به شپه حائله شي او جنګ به بند کړي او دواړه فریقه به خپلو خپلو ځایو ته واپس راشي او په هغوئ کې به نه څوك غالب او فتحیاب شي او نه به څوك مغلوب او مفتوح شي ۶ البته د دواړو د فوځونو د طرف نه چې کوم جنګ کړي او منتخب دستې جنګ د پاره راغلی وي) هغه به د فناء په ګور

---

(۱۳) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب إقبال الروم فی کثرة القتل عند خروج الدجال (رقم-۳۷ - (۲۸۹۹)

ورخکته شي ايعنی د دواړو طرفو لښکرو چې کوم خپل چڼ کړي فوځيان د جنګ د پاره مخکې ليږلی وي هغوئ به په هغه جنګ کې قتل شي او پاتې ټول فوځيان به خپلو خپلو ځايو ته واپس راشي، دغه شان د هغې ورځې جنګ به د دواړو فريقو سره برابر شي، نه به څوك غالب شي نه به څوك مغلوب شي، [٧]بيا په دويمه ورځ مسلمانان به يودويم لښکر منتخب کولو سره مخکې وليږي چې هغوئ جنګ وکړي او مړه شي اوکه واپس راشي نو فتحياب به شي،

**حل اللغات:-** ① شُرْطَةٌ: جماعت، ډله، فوج،

| |
|---|
| [١]فَيَقْتَتِلُونَ، حَتَّى يَحْجِزَ بَيْنَهُمُ اللَّيْلُ، [٢]فَيَفِيءُ هَؤُلَاءِ وَهَؤُلَاءِ، كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ، [٣]وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ، [٤]ثُمَّ يَتَشَرَّطُ الْمُسْلِمُونَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ لَا تَرْجِعُ إِلَّا غَالِبَةً، [٥]فَيَقْتَتِلُونَ حَتَّى يُمْسُوا فَيَفِيءُ هَؤُلَاءِ وَهَؤُلَاءِ، كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ [٦]فَإِذَا كَانَ يَوْمُ الرَّابِعِ نَهَدَ إِلَيْهِمْ أَهْلُ الْإِسْلَامِ، فَيَجْعَلُ اللَّهُ الدَّبْرَةَ عَلَيْهِمْ، فَيَقْتَتِلُونَ مَقْتَلَةً لَمْ يُرَ مِثْلُهَا، [٧]حَتَّى إِنَّ الطَّائِرَ لَيَمُرُّ بِجَنَبَاتِهِمْ فَلَا يُخَلِّفُهُمْ حَتَّى يَخِرَّ مَيِّتًا، [٨]فَيَتَعَادُّ بَنُو الْأَبِ كَانُوا مِائَةً [٩]فَلَا يَجِدُونَهُ بَقِيَ مِنْهُمْ إِلَّا الرَّجُلُ الْوَاحِدُ، |

**ترجمه:** [١]نو دا دواړه طرفه لښکر به د يوبل خلاف مقابله شي، تردې چې د دواړو لښکرو به منځ کې به شپه حائله شي [٢]او دواړه طرف ته فوځونه به خپلو خپلو ټيکاونو ته واپس راشي په هغوئ کې به هيڅوك غالب نه شي او نه څوك مغلوب، [٣]البته دواړو طرف نه به هغه چڼ کړي دستې چې جنګ د پاره مخکې راغلی وي، مړه به شي شی [٤]او بيا په دريمه ورځ مسلمانان به يودويم لښکر منتخب کولو سره مخکې وليږي چې هغوئ جنګ وکړي او مړه شي اوکه واپس راشي نو فتحياب به شي، [٥]نو دا دواړه طرفه لښکر به د يوبل خلاف مقابله شي، تردې چې ماښام به شي او دواړه طرف ته فوځونه به خپلو خپلو ټيکاونو ته واپس راشي په هغوئ کې به هيڅوك غالب نه وي او نه څوك مغلوب، البته دواړو طرف څخه به هغه چڼ کړي دستې چې جنګ د پاره مخکې راغلی وي، مړه به شي [٦]او هرکله چې څلورمه ورځ شي، نو د مسلمانانو باقي مانده فوځ به کفارو سره جنګ کولو د پاره راووځي، او الله ﷻ به د هغوئ د لاسه کفارو ته شکست ورکړي، بهرحال په دې ورځ به سخت او خوفناك جنګ اوسي او مسلمانان به داسې سخت جنګ وکړي چې داسې جنګ به چيرته ليدل شوی نه وي، [٧]تردې که يوه مارغه د لښکر والاوو د پاسه تيريدل غواړي، نو هغوئ به پائ ته نه ورسيږي چې مړکيدو سره به په زمکه راو لويږي مطلب داچې په جنګ کې به دومره کثرت سره خلق مړه شي چې پوره ميدان به د مړو نه ډك شي او که يوه مارغه په هغه لاشونو تيريدل وغواړي، نو مخکې به لاړ نشي بلکې د لاشونو د ناقابل برداشت بدبويي په وجه به مړه کيدو سره را ولويږي يا داچې ميدان جنګ به دومره وسيع او طويل به وي که يوه مارغه د هغه يوه سره نه الوتو سره دويم سر

ته تلل وغواړي نو تلی به نشي بلکي آلوتو الوتو کې به ستړي کيدو سره او مړه کيدو سره راولويږي، [۸] بيا هرکله چې يو پلار ځامن [يعنی د يو خاندان يا د يوي سلسلې خلق] چې د هغوئ تعداد به سل وو، (خپل کسان شمارل شروع کړي) [۹] تو د هغوئ نه به صرف يو پيدا کي، [يعنی د جنګ ختميدو نه پس باقي مانده لښکر حق به د ځاني تلفاتو جائزه اخستل شروع کړي او هرسړی چې خپل اقارب او متعلقين شمير کړي نو هغه ته به معلومه شي که د هغه اقارب او متعلقين سل تعداد په جنګ کې شريك شوي وه نو هغه په سلو کې به صرف يو سړی ژوندی پاتې شوی وی باقي ټول به مړه شوي وی، حاصل داچي په دي جنګ کې به ځاني تلفات دومره کثرت سره وي چې د ژوندي پاتې کيدونکو تناسب به په سلو کې يو وي، نو په داسې صورت کې (هرکله چې د مړکيدونکو تعداد دومره زيات وي)

**حل اللغات:** -② فَيَفِيءُ: واپس به شی، ③ يَحْجِزَ: حائل او پرده به شی، ④ نَهَدَ: أي قام يعنی او به درېږی ⑤ الدَّبْرَةَ: دبَار نه دې ماتی او شکست ته وائی. ⑥ بِجَنَبَاتِهِمْ: اطراف او غاړو ته وائی. ⑦ يَخِرُّ: او به غورزيږی.

[۱] فَبِأَيِّ غَنِيمَةٍ يُفْرَحُ أَوْ أَيُّ مِيرَاثٍ يُقَسَّمُ؟ [۲] فَبَيْنَمَا هُمْ كَذٰلِكَ إِذْ سَمِعُوا بِبَأْسٍ هُوَ أَكْبَرُ مِنْ ذٰلِكَ، فَجَاءَهُمُ الصَّرِيخُ: [۳] أَنَّ الدَّجَّالَ قَدْ خَلَفَهُمْ فِي ذَرَارِيِّهِمْ، فَيَرْفُضُونَ مَا فِي أَيْدِيهِمْ، وَيُقْبِلُونَ [۴] فَيَبْعَثُونَ عَشْرَ فَوَارِسَ طَلِيعَةً، [۵] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي لَأَعْرِفُ أَسْمَاءَهُمْ وَأَسْمَاءَ آبَائِهِمْ، وَأَلْوَانَ خُيُولِهِمْ، [۶] هُمْ خَيْرُ فَوَارِسَ، أَوْ مِنْ خَيْرِ فَوَارِسَ، عَلَى ظَهْرِ الْأَرْضِ يَوْمَئِذٍ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] کوم مال غنيمت به د خوشحالی باعث وي او کوم مال به تقسيم کړل شي، [۲] بهرحال مسلمانان به په داسې حالت کې وي چې ناڅاپي به هغوئ يو سخت خبر واوري، چې د مخکې جنګ نه به هم ډير زيات سخت او خوفناك وي، [۳] اودوي ته به دا آواز راشي چې د هغوئ غير موجودګی کې د هغوئ د اهل وعيال په مينځ کې دجال رسيدلی دی، په داخبر اوريدو سره هغه مسلمانان به د خپل لاس ځيزونه [يعنی د غنيمت اشياء] چې هغوئ ته حاصل شوي وي غورځولو سره ددجال طرف ته متوجه شي [۴] او مخکې به هغوئ خپل لس سپاره وليږي، چې د دښمن باره کې معلومات حاصل کي، [۵] رسول الله ﷺ وفرمايل . چې مسلمانان کوم سپاره مخکې ليږي يقينًا زه د هغوئ او د هغوئ د پلارانو نومونه هم پيژنم. او داهم پيژنم چې د هغوئ اسونه به د کوم رنګ وي، [۶] او هغوئ به بهترين سپاره وي، يا دايي وفرمايل چې هغوئ به د هغه زماني په مخ د زمکې ښه شهسوار وي (مسلم)

**حل اللغات:** -⑧ ذَرَارِيّ: اهل وعيال، ⑨ يَرْفُضُونَ: اوبه غورزوی، ⑩ طَلِيعَةً: دلښکر اولنۍ حصه کومه چه د لښکرنه مخکښې دجنګی انتظاماتو دپاره اوليږلې شی.

**تسهيلات:**

**قوله: حَتَّى لَا يُقْسَمَ مِيرَاثٌ:**

**دميراث نه تقسيمېدو وجه**: يعنې دَهغوي ميراث به نه شي تقسيمولې. دَدې وجه به دا وي چه دَميراث اخستونکې به څوک باقي پاتې نه وي نو بيا به ميراث په چا تقسيمېږي؟

**قوله: وَلَا يُفْرَحَ بِغَنِيمَةٍ:**

**د نه خوشحالي کيدو وجه**: يعنې په دغه فتح کښې چه کوم مال دَغنيمت په لاس راشي په هغې به څوک هم خوشحال نه وي ځکه چه ټولې کورنئ به په دغه جنګ کښې شهيدان شوي وي نو بيابه څوک خوشحال وي؟

**قوله: ثُمَّ يَتَشَرَّطُ الْمُسْلِمُونَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ:**

د مقابلې دپاره د يوې ډلې تيارول: مطلب دا چه مسلمانان به دکافرانو په مقابله کښې يودَ جنګ ډله تياره کړي اوهغه ډله به په مرګ باندې عهدوپيمان اوکړي چه يا به غالب راځو اويا به مره کيږو.

دَدې حديث مجموعي مفهوم نه دا خبره واضح کيږي چه دکافرانو په جماعت باندې ناڅاپي حمله کول اوهغوی تباه کول اوپه دې کښې خپل ځان قربانول منع نه دی بلکه دَدې حديث نه ثابتيږي چه کله يو مجاهد په مرګ باندې عهدوپيمان کولو سره وړاندې کيږي اوپه خندا باندې مرګ له غاړه ورکوي نودې ته تاسو چه څه هم اووايئ په حقيقت کښې هم دغه خودکش حمله ده چه په حقيقت کښې نوروله قتلونکې حمله ده اودَ فيقتلون ويقتلون موافق ده.

**د شرطة للموت مصداق**: يعنې دَ بمبار او خودکش دستې نوم دې. پورته چه ملاعلي قاري ؒ کوم عربي عبارت دَدې حديث په تشريح کښې پيش کړې دې دغه هم په غور سره لوستل پکار دی. امام محمد ؒ په سيرکبير کښې دَ خودکش حملې دَ جواز فتوی ورکړې ده.

**قوله: فَلَا يُخَلِّفُهُمْ:**

**د مذکوره جملې مفهوم**: دَباب تفعيل نه دې شاته دَ پريخودو په معنی کښې دې يعنې هغه مرغئ به دَ مقتولينو نعشونه خپل شاته نه پريږدی بلکه اول به مره شي ځکه چه نعشونه به دير وي اوسخاشوی به وي دَ دغه بدبوئ نه به مرغئ مره شي. مطلب دا چه دَنعشونو ميدان به دومره وسيع وي چه مرغئ به په الوتو سره مره شي او په نعشونو باندې به تيره نه شي.

**قوله**: فَيَتَقَاذَبُوا الْأَبَ:

**د مذکوره جملې مفهوم**: یعنی د یوپلار اولاد بلکه چه پوره خاندان او شمیرلې شی نود خاندان د سلوکسانونه به یو بچ شوې وی نوځه غنیمت به تقسیمیږی؟ او په دې به څوك خوشحال وی او څه به میراث وی او څه به ئې تقسیم وی؟[المرقات: ۳۱۲/۹]

**[۵۴۲۲] بغیر جنګه د یو ښار د فتح کیدو پیشنګوئی**

۵۴۲۲-(۳)[۱۳] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «هَلْ سَمِعْتُمْ بِمَدِينَةٍ، جَانِبٌ مِنْهَا فِي الْبَرِّ، وَجَانِبٌ مِنْهَا فِي الْبَحْرِ؟» [۳]قَالُوا: "نَعَمْ يَا رَسُولَ اللهِ! [۴]قَالَ: "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَغْزُوَهَا سَبْعُونَ أَلْفًا مِنْ بَنِي إِسْحَاقَ، [۵]فَإِذَا جَاءُوهَا نَزَلُوا، فَلَمْ يُقَاتِلُوا بِسِلَاحٍ، وَلَمْ يَرْمُوا بِسَهْمٍ، [۶]قَالُوا: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، وَاللهُ أَكْبَرُ، فَيَسْقُطُ أَحَدُ جَانِبَيْهَا"،

**ترجمه**: [۱]حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې یوه ورځ رسول الله ﷺ د صحابه ﷺ نه پوښتنه وکړه [۲]چې ایا تاسو د یوداسي ښار باره کې اوریدلی دی چې د هغه یوطرف په سمندرکي دي او یوطرف یي په وچه کې دي، [۳]صحابه ﷺ اوویل هو. یارسول الله ﷺ مونږ د دې ښار ذکر اوریدلی دی [۴]حضور ﷺ وفرمایل. قیامت به تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو چې د حضرت اسحاق د اولاد نه اویا زره سړي د هغه ښار خلقو سره جنګ ونکړي. [۵]نو د حضرت اسحاق ﷺ د اولاد نه هغه خلق چې کله د جنګ په ارادې سره هغه ښار ته راځي نو هغوئ به د هغه ښار نواحي علاقه کې پړاو واچوي او د ټول ښار محاصره به وکړي [۶]لیکن هغه خلق به دښار والاوو سره په اسلحه سره جنګ نه کوي او نه به د هغوئ طرف ته تیرونه ولي، بلکې د «لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ» نعره به بلنده کړي، او د ښار دواړو طرف ته دیوالونونه د یوطرف دیوال به ولویږي

[۱]قَالَ ثَوْرُ بْنُ زَيْدٍ الرَّاوِي: لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا قَالَ: الَّذِي فِي الْبَحْرِ، [۲]ثُمَّ يَقُولُونَ الثَّانِيَةَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ، فَيَسْقُطُ جَانِبُهَا الْآخَرُ، [۳]ثُمَّ يَقُولُونَ الثَّالِثَةَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، وَاللهُ أَكْبَرُ، فَيُفَرَّجُ لَهُمْ فَيَدْخُلُونَهَا فَيَغْنَمُونَ، [۴]فَبَيْنَمَا هُمْ يَقْتَسِمُونَ الْمَغَانِمَ إِذْ جَاءَهُمُ الصَّرِيخُ، [۵]فَقَالَ: إِنَّ الدَّجَّالَ قَدْ خَرَجَ، فَيَتْرُكُونَ كُلَّ شَيْءٍ وَيَرْجِعُونَ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱]د حدیث راوي ثورابن یزید اوویل ځما خیال دی چې حضرت ابوهریره ﷺ دلته د سمندر جانب والا دیوال ویلی وو یعنی زه په یقین سره خونشم ویلی البته ماته یادیږي چې حضرت ابوهریره ﷺ دلته داروایت کړی وو. چې په هغه سره به سمند طرف ته دیوال ولویږي. [۲]بهرحال د دې نه پس حضور ﷺ دا ارشاد وفرمایه چې بیابه هغه خلق

[۴۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر الرجل. فيتمنى ان يكون مكان الميت من البلاء (رقم (۲۹۲۰)

په دويم ځل د «لَاإِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ» نعره بلنده کړي، نو د ښار دويم جانب يعنی جنګل طرف ته ديوال به هم لويږي، [۳] د دې نه پس به هغه خلق په دريم ځل د «لا اله الا الله والله اکبر» نعره بلنده کړي نو د هغوئ د پاره به په ښار کې د داخليدو لار خلاصه شي او هغوئ به په ښار کې داخل شي، [۴] بيا به هغوئ مال غنيمت جمع کړي يعنی په ښار کې چې څه وي هغه به په خپله قبضه کې واخلي او هغه مال غنيمت به خپلو کې تقسيموي چې ناڅاپي د هغوئ غوږونو ته به دا آواز راشي [۵] څوك به وايي چې دجال راوتلې دې په دا آواز اوريدو سره به هغه خلق هغه هرڅه يعنی مال غنيمت وغيره پريږدي او د دجال سره به د جنګ د پاره واپس راشي.

**حل اللغات:** - ① فَيُفْرَجُ: خلاصه به شی، ② الصَّرِيخُ: تيز آواز، چغه

**تسهيلات:**

**قوله:** هَلْ سَمِعْتُمْ بِمَدِينَةٍ:

**د مدينة په مصداق کښې دوه اقوال:**

① بعضې شارحينو دې څخه قسطنطنيه مراد اخستې ده

① بعضې نورو شارحينو وئيلی دی چه دا چرته بل ښاردې څکه چه دلته دَ جنګ ذکرنشته دې خودَ قسطنطنيه په فتح کښې جنګ کيدل لازمی دی

**په قولينو کښې تطبيق:** حقيقت دادې چه دا ښار هم قسطنطنيه دې البته صحيح صورت حال دادې چه دَدې ښار نه چاپيره به هغه وخت ديوال وی. کله چه په ښار کښې دَداخليدو دَپاره لار نه ملاويږی نو مجاهدين به يو زوردار نعرهٔ تکبير اوچت کړی په کوم سره چه به دَ ښار ديوال مات شی. دَدې حده پورې خو به جنګ نه وی البته دې نه پس چه کله مجاهدين ښار ته داخل شی نو هلته به سخت جنګ وی او ډير زيات مال غنيمت به لاس ته راشی

**قوله:** حَتَّى يَغْزُوَهَا سَبْعُونَ أَلْفًا مِنْ بَنِي إِسْحَاقَ:

**د نبو اسحاق مصداق:** د بنو اسحاق دَ اويا زره سرو دَ سمندر په غاړه باندې دَ اسلام په لښکرکښې شامليدل هم دَدې خبرې دليل دې چه دا ښار هم قسطنطنيه دې او هم دغه علامت دَ قيامت دَ علاماتو نه يو لوئی علامت دې اودَملحمة الکبری نه پس هم دغه تفصيل دې بنو اسحاق دَ بنو اسماعيل په مقابله کښې اهل کتاب ته وئيلی شوی دی دا به دَ شام مسلمانان وی چه دَاهل کتاب نه به وی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٥٤٢٤] دَ قيامت د بعضې مسلسل حوادثو پيشنګوئي

٥٤٢٤ -(٣)[١٣] ١عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ٢«عُمْرَانُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ خَرَابُ يَثْرِبَ، ٣وَخَرَابُ يَثْرِبَ خُرُوجُ الْمَلْحَمَةِ، ٤وَخُرُوجُ الْمَلْحَمَةِ فَتْحُ قُسْطَنْطِينِيَّةَ، ٥وَفَتْحُ قُسْطَنْطِينِيَّةَ خُرُوجُ الدَّجَّالِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١حضرت معاذ ابن جبل ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢د بيت المقدس پوره طور سره ابادېدل به د مدينې منورې د خرابی باعث وي ٣او د مدينې منورې خرابې به د فتنو او ټولو نه د لوی جنګ واقع کېدو سبب وي ٤او د دې ټولو نه لوی جنګ واقع کېدل به د قسطنطينيه د فتح باعث وي ٥او قسطنطينيه فتح کېدل به د دجال د ښکاره کېدو سبب او د هغه علامه به وي.

**حل اللغات:** - ①عُمْرَانُ : پوره آباديدل، ②يَثْرِبَ: د مدينې منورې زوړ نوم دې. ③الْمَلْحَمَةِ: لوئې جنګ. جنګ عظيم

**تسهيلات:**

**قوله:** عُمْرَانُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ خَرَابُ يَثْرِبَ:

**په شام دعيسايانو غلبه د مدينې د خرابۍ سبب:** يعنې چه کله بيت المقدس پـه آخرى زمانه کښې دَ خرابئ اوبربادئ نه پس پـه پوره شان سره آباد شي نودا بـه دَدې خبرې نشاني وی چه په دې باندې به دَ عيسايانوغلبه وی او په شام باندې دَ عيسايانو غلبه به دَمدينې منورې دَپاره دَخرابئ سبب جوړيږی ځکه چه دَمدينې نه خلق دَمقابلې دَپاره ځی نومدينه به خالی پاتې شي اوکمزورې به شي. هم دغه خرابی ده. پـه دې علاماتوکښې دَهرسابق دپاره هر لاحق علامت دې. عمران بيت المقدس خرابی دَيثرب علامت دې که متصل وی اوکه په فاصلې سره وی او خرابی دَ مدينې ملحمة الکبریٰ دَپاره علامت دې اګرچه فاصلې سره وی اوملحمة الکبریٰ دَ قسطنطنيه دَفتح علامت اوهغه دَ خروج دجال علامت دې کـه فاصلې سره وی اوکـه متصل وی پـه مينځ کښې بـه دَدجال دَ خروج دَ دروغو اعلان هم وی ملحمة الکبریٰ دَمسلمانانو اوعيسايانو پـه مينځ کښې دَ لوئی جنګ نوم دې کافران به نهه لاکهه او شپيته زره وی مګر پـه آخره کښې بـه ماتې خوری.

[٥٥] ) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأيمان والنذور/باب من رأى عليه كفارةً إذا كان فی معصية (رقم-٣٢٩٤)وابن ماجه فی كتاب الفتن/باب الملاحم (رقم-٤٠٩٢) واحمد فی المسند: ٢٣٢/٥

**[۵۴۲۵] د جنګ عظيم، فتح قسطنطنيه او د دجال راتلو پيشنګوئي**

۵۴۲۵ -(۳)[۱۵] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«الْمَلْحَمَةُ الْعُظْمَى وَفَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ وَخُرُوجُ الدَّجَّالِ فِي سَبْعَةِ أَشْهُرٍ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د جنګ عظيم واقع کيدل د قسطنطينيه فتح کيدل او د دجال راوتل دا ټول به په اوو مياشتو کې دننه وي (ترمذي، ابوداود)

**حل اللغات:** - ① اَلْمَلْحَمَةُ: لوئي جنګ.

**تسهيلات: قوله:** اَلْمَلْحَمَةُ الْعُظْمَى:

**دملحمة العظمى مصداق:** د دې نه مراد هغه جنګ دې په کوم کښې چه به خلق د خپل جانی نقصان جائزه اخلی نومعلومه به شی چه په سلو کښې يو کس ژوندې دې باقی ټول مره شوی دی يا د دې جنګ نه مراد د هغه ښار فتح ده چه د نعرهٔ تکبير په برکت سره به فتح کيږی هلته د جنګ ضرورت به پيښ نشی.

**قوله:** وَفَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ:

**نوټ:** د قسطنطنيه د فتح تفصيل د حديث نمبر (۵۴۲۱) په تسهيل کښې اوګورئ.

**قوله:** وَخُرُوجُ الدَّجَّالِ فِي سَبْعَةِ أَشْهُرٍ:

**اشکال:** په زيربحث حديث کښې ملحمة الکبرىٰ فتح قسطنطنيه او خروج دجال په اووه مياشتو کښې دننه خودلې شوې دې او په راروان حديث نمبر (۵۴۲۶) کښې ملحمة الکبرىٰ او فتح قسطنطنيه په مينځ کښې د شپږو کالو موده خودلې شوې ده او په اووم کال ئې د دجال خروج خودلې دې. په دوارو احاديثو کښې دا واضح تعارض دې

**داشکال جواب:** راروان حديث نمبر (۵۴۲۶) صحيح دې او هم دغه راجح دې او په زيربحث حديث نمبر (۵۴۲۵) باندې اصحاب الجرح کلام کړې دې کيدې شی دلته د راوی نه دا غلطی شوې ده چه د اووه کالو په ځائې ئې اووه مياشتې وئيلی دی.

**[۵۴۲۶] د قسطنطنيه دفتح څخه روسته د دجال د راوتلو موده**

۵۴۲۶ -(۴)[۱۶] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُسْرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «بَيْنَ الْمَلْحَمَةِ وَفَتْحِ الْمَدِينَةِ سِتُّ سِنِينَ، [۳] وَيَخْرُجُ الدَّجَّالُ فِي السَّابِعَةِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ: هَذَا أَصَحُّ.

---

[۵۴۲۵] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی تواتر الملاحم (رقم-۴۲۹۵) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی علامات خروج الدجال (رقم-۲۲۳۸) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب الملاحم (رقم-۴۰۹۲) واحمد فی المسند: ۲۳۴/۵

[۵۴۲۶] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی تواتر الملاحم (رقم-۴۲۹۶) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ما یرجی من رحمة الله یوم القیامة (رقم-۴۲۹۶) واحمد فی المسند: ۱۸۹/۴

**ترجمه:** [۱] د حضرت عبد الله ابن بسر رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. جنګ عظيم او مذکوره ښار يعنی د قسطنطينيه فتح کيدو درمياني موده به شپږ کاله وي [۲] او په اووم کال به دجال راځي، دا روايت ابوداود نقل کړی دی او ويلې يې دی چې دا حديث زيات صحيح دی [اخرجه ابوداؤد، ۱۰۸/۳]

**تسهيلات:**

**قوله:** بَيْنَ الْمَلْحَمَةِ وَفَتْحِ الْمَدِينَةِ سِتُّ سِنِينَ:

**نوټ:** ددې جملې وضاحت وړاندې د حديث نمبر(۵۴۲۵) په تسهيل کښې تيرشوې دې

**[۵۴۲۷] په مدينه منوره کښې د مسلمانانو محاصره**

۵۴۲۷-(۳)[۱۷] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ [۲]: «يُوشِكُ الْمُسْلِمُونَ أَنْ يُحَاصَرُوا إِلَى الْمَدِينَةِ، [۳] حَتَّى يَكُونَ أَبْعَدَ مَسَالِحِهِمْ سَلَاحٌ وَسَلَاحٌ: قَرِيبٌ مِنْ خَيْبَرَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې هغه وخت راتلونکی دی، [۲] کله چې به مسلمانان مدينه کې محاصره شي، [۳] تردې چې د هغوئ لرې مورچې به په سلاح کښې وي (او سلاح خيبر ته نزدې د يو مقام نوم دی). (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① مَسَالِحِهِمْ: دَمسلح جمع ده او مسلح هغه مورچې ته وائی په کوم کښې چه وسلې سره پهره وی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يُحَاصَرُوا إِلَى الْمَدِينَةِ، حَتَّى يَكُونَ أَبْعَدَ مَسَالِحِهِمْ سَلَاحٌ:

**دمدينه څخه مراد:** دلته دَمدينه نه مدينه منوره مراد ده چه دښمن به دَدې محاصره کوی. دا به دَعيسائيت دَ خوريدو په زمانه کښې وی او هم دغه وخت کښې به دَ حضرت مهدی ظهور کيږی دَمدينې په حفاظت کښې به مسلمانان مسلح مورچې جوړه وی نوچه کومه مورچه دَ ټولونه لرې وی هغه به دَ سلاح په مقام باندې وی. سلاح دَ خيبر سره نيزدې دَ يوځائی نوم دې

**[۵۴۲۸] دَامام مهدی د ظهور نه مخکښې د يو عظيم جنګ پيشنګولی**

۵۴۲۸-(۴)[۱۸] [۱] وَعَنْ ذِي مِخْبَرٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: " [۲] «سَتُصَالِحُونَ الرُّومَ صُلْحًا آمِنًا [۳] فَتَغْزُونَ أَنْتُمْ وَهُمْ عَدُوًّا مِنْ وَرَائِكُمْ فَتُنْصَرُونَ وَتَغْنَمُونَ وَتَسْلَمُونَ [۴] ثُمَّ تَرْجِعُونَ حَتَّى تَنْزِلُوا بِمَرْجٍ ذِي تُلُولٍ، [۵] فَيَرْفَعُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ النَّصْرَانِيَّةِ الصَّلِيبَ فَيَقُولُ: غَلَبَ الصَّلِيبُ،

[۶۸]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی المعقل من الملاحم (رقم-۴۲۹۹) واحمد فی المسند:۴۰۲/۲
[۶۹]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما يذکر من ملاحم الروم (رقم-۴۲۹۲) وابن ماجه فی کتاب الفتن /باب الملاحم (رقم-۴۰۸۹) واحمد فی المسند: ۹۱/۴

**ترجمه:** [۱] حضرت ذي مخبر ﷺ چې د حضور ﷺ خادم او د نجاشي بادشاه حبشه وراره وو وايي ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل. [۲] اې مسلمانانو! هغه وخت راتلونکی دی کله چې تاسو به روميانو يعنى عيسانوسره يوداسي مصالحت وکړي، چې با امن صلح به وي، يعنى په طرفينو کې به د هيچا د طرف نه د مصالحت شکني او د بدعهدي خوف نه وي [۳] او بيا د هغه مصالحت او معاهدي په بنياد تاسو او روميان به خپلو کې يوځاى کيدو سره د يوبل دښمن خلاف جنګ به وکړي نو د الله د طرف نه د هغه دښمن خلاف ستاسو به مدد او نصرت وکړل شي، تاسو به مال غنيمت حاصل کی. او تاسو به سلامت يي يعنى ستاسو ځاني او مالي نقصان به نه کيږي، [۴] د دې نه پس چې هرکله تاسو هغه دښمن ته شکست ورکړی او واپس راشي نو تاسو او روميان به په يوداسي ځاى کې واروی چې سرسبز او شين به وي، (چيرته چې غونډي وي) [۵] هلته به عيسايانو يعنى به روميانو کې يوسړی صليب پورته کولو سره وايي چې صليب غالب شو. يعنى هغه عيسائي به دا دعوىٰ وکړي چې په دې کې مونږ د صليب له برکته فتحياب شوی يو.

**حل اللغات:**- ① مَرْج: سرسبز، د شنو وښو والا ② ذِي تُلُول: غونډی (د زمکې څخه لږه پورته حصه ③ الصَّلِيبُ: دعيسايانو خاص مذهبى نښه،

[۱] فَيَغْضَبُ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَيَدُقُّهُ [۲] فَعِنْدَ ذَلِكَ تَغْدِرُ الرُّومُ وَتَجْمَعُ لِلْمَلْحَمَةِ". [۳] "وَزَادَ بَعْضُهُمْ: ("فَيَثُورُ الْمُسْلِمُونَ إِلَى أَسْلِحَتِهِمْ، [۴] فَيَقْتَتِلُونَ فَيُكْرِمُ اللَّهُ تِلْكَ الْعِصَابَةَ بِالشَّهَادَةِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] د هغه په دې خبره به په مسلمانانو کې يوسړی سخت غضبناك شي ځکه چې هغه به داخبره د مسلمانانو د ايمان او عقيدي خلاف وګڼي چې هغه فتحه او غلبه دې د الله او د هغه د دين په ځاى څه بل شي طرف ته نسبت شي، [۲] نو هغه مسلمان به هغه صليب مات کړي او هغه وخت به روميان صرف دا نه چې عهد مات کړي بلکې دا مصلحت به ختم کړي، (د مسلمانانو خلاف جنګ د پاره به خلق جمع کړي) [۳] بعضې راويانو دا الفاظ نور نقل کړي دي چې د دې نه پس به مسلمانان هم خپلو وسلو طرف ته ورمخکي شي يعنى د هغه روميانو مقابلې د پاره به تيار شي [۴] او د هغوىٰ سره به جنګ وکړي نو الله ﷻ به د مسلمانانو هغه جماعت ته د شهادت فضيلت او عظمت ورکړي.(ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ④ فَيَدُقُّهُ: نو مات به کړی هغه (صليب)، ⑤ تَغْدِرُ: عهد شکنی به اوکړی. غداری به اوکړی، ⑥ يَثُورُ: ورمخکښې به شی،

**تسهيلات:**

**قوله:** سَتُصَالِحُونَ الرُّومَ صُلْحًا آمِنًا:

**د مسلمانانو او د روميانو په مينځ کښې صلح:** حضرت مهدی عليه الرضوان په دورکښې

کیږی او دا صلح به هم دَ حضرت مهدی علیه الرضوان سره رومی بادشاه کوی کوم چه به عیسائی وی او دَ عیسایانو هم دغه هغه طبقه ده چه دَ مسلمانانو سره به معاهده او کړی

**قوله: فَتَغْزُونَ أَنْتُمْ وَهُمْ عَدُوًّا مِنْ وَرَائِكُمْ:**

**د دشمن په مصداق کښې دوه اقوال:** ① بیا به عیسایان او مسلمانان یوځائی خپل دښمن سره جنګیږی ① ظاهره دَ حدیث الباب نه هم دغه معلومیږی چه هغه مشترك دښمن به مشرك وی

② بعضې وئیلی دی چه مشترکه دښمن به یهودی وی. مسلمانان او عیسایان به په یو ځائی یهودیانو سره جهاد کوی. دا احتمال لږ شان کمزورې دې ځکه چه یهود (امریکه) دَ ټولو دښمنان اسلام اتحادی جوړ شوې دې.

**قوله: فَيَرْفَعُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ النَّصْرَانِيَّةِ الصَّلِيبَ فَيَقُولُ: غَلَبَ الصَّلِيبُ:**

**دفتح نسبت صلیب ته په کولو اختلاف پیدا کیدل:** دصلیب به وجه د فتح دَدې مطلب دا دې چه کله مسلمانان او عیسایان یوځائی شی او مشترکه دښمن سره جهاد کوی نو الله پاك به هغوی ته فتح ورکوی او هغوی ته به دَغنیمت مال هم حاصل شی. چنانچه مسلمانان او عیسایان به دَ غنیمت دَمال دَتقسیم دَپاره په یو اوچت ځائی باندې په تسلئی سره کینی په دې کښې به یو عیسائی اووائی چه دَمشترکه دښمن نه دَ فتح حاصلولو سبب زمونږ دې دَ صلیب په برکت باندې مونږ ته فتح ملاؤ شوه خو یو مسلمان به صلیب مات کړی او اوبه وائی چه فتح زمونږ دَ کلمې په برکت سره شوې ده ستاسو دَ صلیب هیڅ حقیقت نشته دې

**قوله: فَعِنْدَ ذَلِكَ تَغْدِرُ الرُّومُ وَتَجْمَعُ لِلْمَلْحَمَةِ:**

آخر به دَ مسلمانانو او رومیانو په مینځ کښې جنګ شروع شی دَ رومیانو دَ وعده خلافئی دَ وجې نه به په دې جنګ کښې دیر مسلمانان شهیدان شی

**[۵٤۲۹] یو حبشی سړې به د خانه کعبې خزانه راوباسی**

۵٤۲۹ -(۷۰)[۱۹] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «اتْرُكُوا الْحَبَشَةَ مَا تَرَكُوكُمْ [۳] فَإِنَّهُ لَا يَسْتَخْرِجُ كَنْزَ الْكَعْبَةِ إِلَّا ذُو السُّوَيْقَتَيْنِ مِنَ الْحَبَشَةِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عبد الله ابن عمرو ﷠ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] تاسو حبشیان هغوئ په خپل حال پریږدئ او هغوئ ته هیڅ تعرض مه کوئ ترڅو پورې چې هغوئ تاسو ته څه ونه وایي، او تاسو ته تعرض ونه کړي، [۳] او په دې کې شك نشته چې د

[۷۰] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب النهی عن تهییج الحبشة (رقم-۴۳۰۹) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب غزوة الترک والحبشة (رقم-۳۱۷۷) واحمد فی المسند:۳۷۱/۵

کعبې خزانه به یو حبشي را اوباسي، چې د هغه دواړي پنډۍ به کوچنی کوچنی وي(ابوداؤد)
**حل اللغات:** - ① ذُوالسُّوَيْقَتَيْنِ: ورو ورو پنډو (پتونانو) والا.

**تسهیلات:**

**قوله:** اتْرُكُوا الْحَبَشَةَ

**حبشیانوته دعدم تعرض کولوحکم:** یعنی په حبشیانو کښې دَ شر او فساد دا بخرې پراته دی په دې وجه ترکومې پورې چه هغوی حمله نه وی کړې تاسو دَهغوی دَ راؤچتولو او چیړلو کوشش مه کوئی ځکه چه هم دَهغوی فساد سره به دَ بیت الله بې حرمتی کیږی خزانه به لوټ کولې شی او بیت الله به راغورزولې شی.

**قوله:** فَإِنَّهُ لَا يَسْتَخْرِجُ كَنْزَ الْكَعْبَةِ:

**د کنزپه مصداق کښې دوه اقوال:** ① دکنزڅخه هغه مالونه دی کوم چې به د نذرانې په طور خلقو منجورایانو ته ورکولو اوهغوی به دکعبې لاندې جمع کولو.
② ددې څخه هغه خزانه مراد ده کومه چې د خانه کعبې لاندې په کوهی کښې پرته ده
**اشکال:** په زیربحث حدیث کښې د خانه کعبې د نوړلوذکر دې او الله تعالی حرم مکی ته د امن ځائې وئیلې دې.دا ښکاره تعارض دې.
**داشکال جواب:** دا به قیامت ته نزدې وی هغه وخت چې هیڅوک الله الله ویونکې پاتې نه شی نود قرآن په رڼړا کښې مکې د امن ځائې دې خو د محدود وخته پورې
② دغالبو احوالوپه اعتبار سره مکې ته د امن ځائې وئیلې شوې دې دعبدالله بن زبیر رضی الله عنه په وخت کښې د حجاج بن یوسف په مکه باندې حمله کول اوخانه کعبې ته نقصان رسول په دې باندې قرینه ده.چې دغالب احوالو په اعتبار سره ورته د امن ځائې وئیلې دې.
③ دامن ورکولوڅخه مراد دا نه دې چې الله تعالی د حرم مکی د امن ذمه واری اخستې ده بلکه مطلب دا دې چې الله تعالی خپلوبندګانو ته دحکم کولوپه ځائې خبر ورکوی چې مادادامن ځائې ګرځولې دې نوتاسوهم زما دامن ورکولواحترام اوکړئ چاته نقصان مه رسوئ.

**قوله:** السُّوَيْقَتَيْنِ:

**دسویقتین معنی:** دا دَ ساق تصغیردې په دې کښې دَ هغه سری تذلیل دې. دَعام اهل حبش دَ خپو دا حالت وی دَدغه سری صفت افحج هم راځی.

## [۵۴۳۰] حبشو او ترکوته د عدم تعرض حکم

۵۴۳۰-(۳)[۲۰] [۱] وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«دَعُوا الْحَبَشَةَ مَا وَدَعُوكُمْ، [۳] وَاتْرُكُوا التُّرْكَ مَا تَرَكُوكُمْ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: [۱] د رسول الله ﷺ د صحابه ﷺ نه د یو سړي روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] تاسو حبشیان هغوئ په خپل حال پریږدی [۳] او ترك هم په خپل حال پریږدی، ترڅو پوري چې هغوئ تاسو (پهخپل حال پریږدي). (ابوداؤد)

**حل اللغات**:- ① دَعُوا: پریږدئ (په خپل حال).

**تسهیلات**:

**قوله**: وَاتْرُكُوا التُّرْكَ مَا تَرَكُوكُمْ: یعنی ترکیان او حبش دَهغه وخته پورې مه چیړئی ترکومې پورې چه هغوی تاسو اونه چیړی.

**اشکال**: په قرآن کریم کښې (قَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً) [سورت توبه، ۳۶] واضح اعلان موجود دې چه ټولو کافرانو سره جنګیږئی اودلته په حدیث کښې دَ ترکو اوحبشو سره دَ نه جنګیدوحکم دې.

**داشکال جواب**: دغه قومونوسره دَ نه جنګیدو حکم په هغه وخت باندې محمول دې کوم وخت چه جهاد دَ فرض کفایه په درجه کښې وی که چرې جهاد فرض عین شی نو هغه وخت به دغه قومونوسره جنګیدل فرض وی. چونکه عرب جندالاسلام وو اوصحابه جندالله جندالاسلام وو دَهغوی شمیردومره زیات هم نه وو. بل طرف ته دَ حبشې علاقه دَهغوی نه لرې هم وه اوسخته هم وه. دغه شان دَترکو خلق ډیر جټ جاهل او جنګیالی وو ډیر لرې هم وو دَهغوی علاقه ډیره زیاته یخه هم وه سختې لارې هم وې اوجهاد فرض کفایه هم وو نوهغه وخت دَ دغه قومونو سره دَ نه جنګیدوحکم اوشو دې دَپاره چه جندالاسلام نورو اطرافو کښې کاراوکړی. لیکن که ضرورت شو نوبیا به هغوی سره هم جنګیدل وی. چنانچه ترکوسره جنګ شوې دې اوبیا به هم کیږی کوم وخت چه هغوی په کفرباندې وی

## [۵۴۳۱] د ترکیانو د شکست پیشګوئي

۵۴۳۱-(۴)[۲۱] [۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي حَدِيثٍ: [۲] "«يُقَاتِلُكُمْ قَوْمٌ صِغَارُ الْأَعْيُنِ". يَعْنِي التُّرْكَ [۳] قَالَ " تَسُوقُونَهُمْ ثَلَاثَ مِرَارٍ حَتَّى تُلْحِقُوهُمْ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ، [۴] فَأَمَّا فِي

[۷۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی النهی عن تهییج الترک والحبشة (رقم-۴۳۰۲) والنسائی فی کتاب الجهاد /باب غزوة الترک والحبشة (رقم-۳۱۷۷)

[۷۲] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی قتال الترک (رقم-۴۳۰۵) واحمد فی المسند:۲۴۸/۵

السِّيَاقَةِ الْأُولَى فَيَنْجُو مَنْ هَرَبَ مِنْهُمْ، ۵ وَأَمَّا فِي الثَّانِيَةِ فَيَنْجُو بَعْضٌ وَيَهْلِكُ بَعْضٌ، ٦ وَأَمَّا فِي الثَّالِثَةِ فَيُصْطَلَمُونَ»". أَوْكَمَا قَالَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ حضرت بریده اسلمي ﷺ نه روایت دی هغه د رسول الله ﷺ نه د دې حدیث په سلسله کې چې د هغه شروع داده ۲ چې په تاسو کې یو وړوکو سترګو والا قوم یعني ترک قوم به ستاسو سره جنګ کوي، ۳ داهم روایت شوی دی چې حضور ﷺ وفرمایل تاسو به هغه خلقو ته دري ځلي دیکه ورکی (یعني تاسو به په هغوئ غالب راسئ) او هغوئ به شکست خوړلو سره په تیښته به مجبوره کی تردي چې تاسو به هغوئ دجزیره عرب د سرحد نه آخوا واړوئ، ۴ هرکله چې تاسو هغوئ ته په مخکې ځل شکست ورکولو سره دوئ وتښتوی نو تښتیدونکي خلق به خلاص شي ۵ څه وخت چې په دویم ځل شکست ورکولو سره وتښتوی، نو په هغوئ کې به څه د ځان په ساتلو سره ووځی. او څه به د مرګ په ګودرور خکته شي، ٦ مخکې په دریم ځل شکست خوړلو سره چې وتښتي نو هغه به ټول ختم شي، (یعني دادریم شکست به د هغوئ بالکل خاتمه وکړي) یا د دې په مثل یې وفرمایل (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① صِغَارُ الْأَعْيُنِ: وړو سترګو والا یعنی ترکیان، ② تَسُوقُونَهُمْ: تاسو به هغوی جزیرة العرب ته وردیکه کړئی. ③ السِّيَاقَةِ: تختیدل، ④ هَرَبَ: تیښته، ⑤ فَيُصْطَلَمُونَ: بیخ کنی به ئې اوشی، ټول به هلاک شي.

**تسهیلات:**

**قوله: فَأَمَّا فِي السِّيَاقَةِ الْأُولَى فَيَنْجُو مَنْ هَرَبَ مِنْهُمْ:**

**ترکوته دماتې ورکولو دري مراحل:** داد هغوی دتختیدو تفصیل دې چه په اول ځل کله اوتختی نو بچ به شي دوباره به څه لږ شان بچ شي او دریم ځل باندې به ټول هلاک شي.

**[۵۴۳۲] بصرې ښار باره کښې پیشنګوئی**

۵۴۳۲-(۳)[۲۲] ۱ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ ۲: «يَنْزِلُ أُنَاسٌ مِنْ أُمَّتِي بِغَائِطٍ، يُسَمُّونَهُ الْبَصْرَةَ، ۳ عِنْدَ نَهْرٍ يُقَالُ لَهُ: دِجْلَةُ، يَكُونُ عَلَيْهِ جِسْرٌ، ۴ يَكْثُرُ أَهْلُهَا، وَيَكُونُ مِنْ أَمْصَارِ الْمُسْلِمِينَ، ۵ وَإِذَا كَانَ فِي آخِرِ الزَّمَانِ جَاءَ بَنُو قَنْطُورَاءَ عِرَاضُ الْوُجُوهِ، صِغَارُ الْأَعْيُنِ، ٦ حَتَّى يَنْزِلُوا عَلَى شَطِّ النَّهْرِ، فَيَتَفَرَّقُ أَهْلُهَا ثَلَاثَ فِرَقٍ،

**ترجمه:** ۱ د حضرت ابوبکره ﷺ نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ۲ ځما د امت خلق به یو پستي زمکي ته په رسیدو سره قیام وکی او د هغه ځای به بصره سره مسمي

(۳) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی ذکر البصرة (رقم-۴۳۰۶)واحمد فی المسند: ۴۵/۵

کوي، [۳] هغه خاى به يونهر ته نزدې وي، چې هغه ته دجله وئيل کېږي، په هغې به يو پل وى، [۴] په بصره کې د اوسيدونکو آبادي به ډيره زياته شي او د هغه شمير به د مسلمانانو په لوى ښارونو کې کېږي [۵] او کله چې آخري زمانه شي نويوقوم بنو قنطوراءچې د هغوئ مخونه به پلن چکلي او سترګي ورې ورې وي به راشي [۶] وهغه به د نهر په غاړه خپل پراو واچوي او د هغوئ په ليدو سره د ښار خلق به په دريو حصو کې تقسيم شي،

**حل اللغات:-** ① غَايِطٍ: لاندې اوښکته زمکه، ② دِجْلَةُ: يو درياب چه بغداد سره تير شوې دې. ③ جِسْرٌ: پُل، ④ أَمْصَار: دمصر جمع ده، ښار، ⑤ قَنْطُورَاءَ: دَ ترکيانو دَ مشر نيکه نوم دې. ⑨ عِرَاضُ الْوُجُوهِ: پلنو مخونو والا، ⑥ شَطٍّ: غاړه،

| [۱] فِرْقَةٌ يَأْخُذُونَ فِي أَذْنَابِ الْبَقَرِ وَالْبَرِيَّةِ وَهَلَكُوا، [۲] وَفِرْقَةٌ يَأْخُذُونَ لِأَنْفُسِهِمْ وَهَلَكُوا، [۳] وَفِرْقَةٌ يَجْعَلُونَ ذَرَارِيَّهُمْ خَلْفَ ظُهُورِهِمْ وَيُقَاتِلُونَهُمْ وَهُمُ الشُّهَدَاءُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] يوه حصه خو به د غويانو لکئ ونيسي او په جنګل کې به پناه حاصله کړي. [يعنى دابه هغه خلق وي، چې د حمله ورو د مقابلې نه به په ويرېدو سره کر اوزمينداره اونورو کارونو کې به مشغول شي او د غواګانووغيره په ساتلوخکلو اخوا ديخواته به لاړ شي، چې د دښمن د حملې نه خپل ځان وساتي (يا داچې هغه خلق به هم عيال او مال واسباب جمع کولو سره جنګل ته لاړ شي) چې دحملې او د دښمن د نقصان رساني نه محفوظ شي] ، حالانکې هغه خلق به د مرګ په کودرور خکته کېږي، (يعني هغوئ د خپلې دې حيله سازي په وجه د دښمن د حملې نه محفوظ کيدى نشي) ځکه چې حمله آور مشرك د فتنه او فساد کوم اورليدلى وى هغه په داسې حيلو او بهانو سره يخيدې او کميدې نشي، [۲] او دويمه حصه به د خپلو ځانونو د پاره امان طلب کوي، خو هغه خلق به هم د مرګ په کودر خکته کېږي او دريمه حصه به هغه وي چې اولاد او خپلې ښځې پريخودلو سره يعنى خپل اهل وعيال نه بې پرواکيدو سره [۳] او د هغوئ د محبت نه خپله لمن کهولاؤولو سره د حمله ورو مقابله به په کلکه وکړى، ياداچې هغه خلق به خپل بال بچ ځان پسې اخستو سره سنګر ته به لاړ شي او هلته به دښمن سره جنګيږي او په هغوئ کې به اکثره ووژلې شي. چې د شهادت مرتبې ته به ورسي (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ⑧ أَذْنَاب: د ذنب جمع ده، لکئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** يُسَمُّونَهُ الْبَصْرَةَ، عِنْدَ نَهْرٍ يُقَالُ لَهُ: دِجْلَةُ،

**د بصرې په مصداق کښې دوه اقوال:** ① بعضې شارحينو په دې حديث کښې دَ بصرې نه مشهوره بصره مراد نه ده اخستې کومه چه نن صبا مشهوره ده بلکه په بغداد کښې دننه دَ

یو ځائي نوم بصره وو کوم ته چه به ئي باب البصره وئیلو او هغه دغه وخت هم په دې نوم سره مشهوره هم وه

۲ بعضې دلته دَ بصرې نه مراد بغداد دې. ځکه چه دجله بغداد سره تیریږي بصره سره نه تیریږي. چونکه په هغه زمانه کښې آبادي خوره شوې نه وه او دَ بصرې په مضافاتو کښې تولې علاقې واقع وې لکه چه دَ بغداد نوم روستو مشهور شوې دې. اول دا ټولې علاقې بصره او دَ هغې په مضافاتو کښې شمیرلې کیدې

**د دویم قول د ترجیح وجوهات:** ۱ په دې حدیث کښې دي چه هغه ښار به دَ مسلمانانو لوئی ښار جوړیږي دا صفت هم دَ بغداد دې.

۲ دلته په حدیث کښې دَ دجله دَ ذکرنه هم معلومیږي چه مراد بغداد دې

۳ ترکو په بغداد باندې حمله هم کړې وه. په بصره باندې کله هم حمله نه وه کړې

۴ دَ مستعصم بالله په دور حکومت کښې دَ تاتاریانو هلاکوخان په بغداد باندې حمله کړې وه.

**قوله: فِرْقَةٌ يَأْخُذُونَ فِي أَذْنَابِ الْبَقَرِ وَالْبَرِّيَّةِ وَهَلَكُوا:**

**د مسلمانانو درې ډلې:** ۱ یعنی یوه ډله خو به دنیا پسې اولګی دَ غوایانو په لکو پسې به اونخلي او پټی به اړوی. جهاد به پریږدی نو تباه به شی.

۲ دویمه ډله به دَ بنو قنطورا نه امان طلب کړل دا به هم تباه شی

۳ دریمه ډله به ښه جهاد کوی هغه به کامیاب شی.

**هلاکوخان او د بغداد سقوط:** چنانچه دَ هلاکوخان نه څه خلقو امان طلب کړو نو هغه ټول قتل کړل دَ بغداد په تباهئی کښې هلاکوخان یو کروړ او شپږ لاکهه انسانان قتل کړی وو بیا هم دَ هغه دَ نسل نه نورالدین زنګی نه الله تعالی دَ دین خدمت واخستلو دَ چا دَ باقیاتو او صالحاتو نه چه صلاح الدین ایوبی وو چا چه دَ هغوی مشن پوره کړو تفصیل تیر شوې دې.

**[۵۴۲۳] په بصره کښې د خسف او قذف واقع کیدو پیشنګوئی**

٥٤٢٣-(٣)[٢٣] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ " «يَا أَنَسُ! إِنَّ النَّاسَ يُمَصِّرُونَ أَمْصَارًا، ٣ وَإِنَّ مِصْرًا مِنْهَا يُقَالُ لَهُ: الْبَصْرَةُ، ٤ فَإِنْ أَنْتَ مَرَرْتَ بِهَا أَوْ دَخَلْتَهَا، فَإِيَّاكَ وَسِبَاخَهَا ٥ وَكَلَأَهَا وَسُوقَهَا وَبَابَ أُمَرَائِهَا، ٦ وَعَلَيْكَ بِضَوَاحِيهَا، فَإِنَّهُ يَكُونُ بِهَا خَسْفٌ وَقَذْفٌ وَرَجْفٌ ٧ وَقَوْمٌ يَبِيتُونَ يُصْبِحُونَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ» ". ٨ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ عَنْ طَرِيقٍ لَمْ يَجْزِمْ بِهَا الرَّاوِي بَلْ قَالَ: لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا ذَكَرَهُ عَنْ مُوسَى بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ.

[٧١] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی ذکر البصرة (رقم-٤٥٠٧)

**ترجمه:** [۱] د حضرت انس ﷺ نه روایت دی ، چې رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل: [۲] اې انس ﷺ خلق به نوي ښارونه آباد کړي [۳] او په هغه ښارونو کې به د یوښار نوم بصره وي، [۴] که ته په هغه ښار تیرسي نو د هغه، هغه علاقي ته مه ورځه (چیرته چې ښره ناکه مالګینه زمکه ده [۵] او دارنګه هغه ځایونو ته مه ورځه چې هغه ته کلاء، ونیل کېږي) دغه شان د هغه ځای دخرماباغونو بازارونو بادشاهانو او د سردارانو د دروازو نه هم لرې اوسه، [٦] صرف د هغه ښار د غاړې په حصه کې او اطرافو کې پروت اوسه ځکه چې د کومو ځایونو نه زه تا منع کوم هلته په زمکه کې د غرقیدو، د کاڼو وریدو او د سختو زلزلو عذاب به نازلیږي، [۷] او په هغه علاقه کې به یوداسي قوم وي چې د هغه افراد به یوه ورځ په شپه کې د عیش وراحت په خوب اوده شي، لیکن سهار چې را کیني نو د هغوئ شکلونه به د شادوګانو او خنزیرانو په شان وي. [۸] امام ابوداؤد د دې روایت په یو داسې سند سره نقل کړې دې چې په هغې کښې راوی په یقین سره خبره نه ده کړې بلکه دا ئې ونیلی دی چې زه پرې نه پوهیږم خود موسی بن انس عن انس بن مالک څخه ئې نقل کړې دې

**حل اللغات:** - ① يُمَصِّرُونَ: خلق به نوی نوی ښارونه آباده وی. ② وَسِبَاخَهَا: سبخة شاړې بنجر زمکې ته وائی. ③ كَلَّاءَهَا: شنه ګیا والا ځائې چرته چه ځاروی څرولې شی، «دا دواړه د مصر ځایونه دی» ④ بِضَوَاحِيهَا: دَ ضاحية جمع ده دَ ښار غاړې ته وائی، په بصره کښې د یو کلی نوم دې ⑤ خَسْفٌ: زمکه کښې ښخیدل، ⑥ قَذْفٌ: کاڼړی وریدل، ⑦ رَجْفٌ: سختې زلزلې، ⑧ يُبَيِّتُونَ: د شپې به اوده شی

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ النَّاسَ يُمَصِّرُونَ أَمْصَارًا،

**د بصرې آبادول:** په دې حدیث کښې د مغروفې بصرې ذکر دې چه مسلمانان به دې لره جوړوی او آبادوی به ئې. بصر ښهر چه کوم ځائې کښې آباد دې هغه حضرت عتبه به غزوان په خلافت فاروقی کښې فتح کولو سره ښهر جوړ کړې وو د هغې د فتح کولو ذکر د شمائل ترمذی په یو روایت کښې ضمنا راغلې دې [۷۵] په دې حدیث کښې د خسف او مسخ ذکر دې چونکه د نورو احادیثو نه معلومیږی چه خسف او مسخ به په قدریه کښې وی چه د هغې نه ګنړلې شی چه دلته به په بصره کښې هغه وخت قدریه وی.

**قوله:** فَإِنْ أَنْتَ مَرَرْتَ بِهَا

**په بصره کښې د قیام څخه ممانعت:** حضور پاك حضرت انس ﷺ ته دَ بصرې په اطرافو او کلو کښې دَ اوسیدو حکم ورکړو او دَ ښار دننه اوسیدو نه ئې منع کړو ځکه چه هغه ته

[۷۵]) په آخر د شمائل کښې باب ما جاء فی عیش النبی ﷺ کښې په روایت د خالد بن عمیر وشویس ابو الرقاد د دې روایة مضمون په خصائل نبوی کښې کتلې شی(

خودلې شوی وو چه بصره کښې به دننه قدریو، جبریو، معتزلو او خوارجو زور شی او په هغه خلقو کښې به ډیر خباثتونه وی

**قوله: فَإِنَّهُ يَكُونُ بِهَا خَسْفٌ وَقَذْفٌ وَرَجْفٌ**

**دمذکوره عذابونو وجه:** په مظاهر حق کښې دی چه په دې ځایونو کښې به خسف وغیره کیدې شی چه وی، په سبب د خباثت د هغوی او په بازارونو کښې به وی په سبب د غفلت یا د وجې د کثرت لغو نه یا فساد د عقود او د بادشاهانو وغیره په دروازو باندې په سبب د کثرت ظلم.

## [٥٤٢٤] د بصرې په یو جمات د مونځ کولو فضیلت

٥٤٢٢-(٣)[٣٣] ١ وَعَنْ صَالِحِ بْنِ دِرْهَمٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- يَقُولُ ٢: انْطَلَقْنَا حَاجِّينَ فَإِذَا رَجُلٌ فَقَالَ لَنَا: إِلَى جَنْبِكُمْ قَرْيَةٌ يُقَالُ لَهَا: الْأُبُلَّةُ؟ ٣ قُلْنَا: نَعَمْ، ٤ قَالَ: مَنْ يَضْمَنُ لِي مِنْكُمْ أَنْ يُصَلِّيَ لِي فِي مَسْجِدِ الْعَشَّارِ رَكْعَتَيْنِ أَوْ أَرْبَعًا، ٥ وَيَقُولُ: هَذِهِ لِأَبِي هُرَيْرَةَ؟ ٦ سَمِعْتُ خَلِيلِي أَبَا الْقَاسِمِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "٧ «إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يَبْعَثُ مِنْ مَسْجِدِ الْعَشَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُهَدَاءَ لَا يَقُومُ مَعَ شُهَدَاءِ بَدْرٍ غَيْرُهُمْ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ،

**ترجمه:** ١ حضرت صالح ابن درهم تابعي وايي، ٢ مونږ د حج د پاره د بصرې نه مکې ته لاړو. نو هلته یو خای یو سړی یعنی حضرت ابوهریره ﷺ مو ولاړ ولیدی. هغوئ ز مونږ نه پوښتنه وکړه ستاسو د ښار په اړخ کې یو کلي دي چې هغه ته (اُبُلّه) وایي. ٣ مونږ ورته اوویل هو شته، ٤ هغوئ اوویل په تاسو کې کوم سړی د دې خبرې ذمه اخلي، چې هغه به ځماد طرف نه مسجد عشار کې دوه رکعاته یا څلور رکعاته مونځ وکړي ٥ او دا اووائي چې د دې مونځ ثواب دی ابوهریره ﷺ ته ورسیږي، ٦ ما دخپل دوست صادق ابوالقاسم محمد ﷺ نه اوریدلي دي ٧ چې یقینًا الله ﷻ به د مسجد عشار نه د قیامت په ورځ شهداء پورته کوي او د بدر شهداوو سره به د دې شهداء نه علاوه بل څوك نه وي. د قیامت په ورځ به د بدر شهداء وو سره چې کوم شهداء د خپل خپل قبر نه پاڅیږي هغه به د دې مسجد شهداء وي، یا داچې د قیامت په ورځ به د مرتبې د اعتبار نه د شهداء بدر د شهداء نه علاوه بل داسې شهید نه وي. داروایت ابوداود نقل کړی دی

**حل اللغات:-** ① الْأُبُلَّةُ: د بصرې د یو کلی نوم دې ② مَسْجِدِ الْعَشَّارِ: د بصرې په اوبله کلی کښې د یو جماعت نوم دې.

١ وَقَالَ: هَذَا الْمَسْجِدُ مِمَّا يَلِي النَّهْرَ. ٢ وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أَبِي الدَّرْدَاءِ "إِنَّ فُسْطَاطَ الْمُسْلِمِينَ"، فِي بَابِ: ذِكْرِ الْيَمَنِ وَالشَّامِ"، إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** ١ او ویلې یې دی چې دامسجد د بصرې د هغه کنارې په حصه کې دی چې

[٣] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی ذکر البصرة (رقم-٤٣٠٨)

دريائي فرات طرف ته ده ۲او د حضرت ابودرداء رضي الله عنه حديث (ان فسطاط المسلمين الخ)
به مونږ انشاء الله د يمن او شام د ذکر په بيان کې نقل کړو

**حل اللغات:** -۳فُسْطَاط: خيمه

**تسهيلات: قوله:** مَسْجِدِ الْعَشَّارِ:

**ه مسجد عشار محل وقوع:** داد يو مسجد نوم دې کوم چه په ابله کښې واقع دې خلق د برکت دپاره دې جمات کښې مونځ کولو له راځي. په مقدس مقاماتو کښې دمونځ فضيلت دچانه پټ نه دې.

مولانا فضل محمد صاحب دامت برکاتهم په توضيحات کښې ددې حديث په شرح کښې ليکلي دی ,, زما يو شاګرد ,,شيخ موسی ،، چه په دې وخت کراچۍ کښې دې هغه د بصرر اوسيدونکې وو هغه اووئيل چه مسجد عشار زمونږ په محله کښې دې خلق دزيارت دپاره راځي.،،

**قوله:** مَنْ يَضْمَنُ لِي مِنْكُمْ أَنْ يُصَلِّيَ لِي فِي مَسْجِدِ الْعَشَّارِ رَكْعَتَيْنِ:

**ژوندوته د ثواب پخلو جواز:** دويم انسان ته دا وصيت کول چه زما دپاره د ثواب په نيت دا عبادت اوکړه او ايصال ثواب اوکړه دا جائز دی. دغه شان د چادپاره د نفلي عبادت ثواب ايصال کول هم جائز دی.

**قوله:** يَبْعَثُ مِنْ مَسْجِدِ الْعَشَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُهَدَاءَ لَا يَقُومُ مَعَ شُهَدَاءِ بَدْرٍ غَيْرُهُمْ:

**دشهداؤ په مصداق کښې دوه اقوال:** ۱ په ظاهره خوداسې معلوميږي چه جمات خو پخوانې او تاريخي جمات دې البته شهداء به ددې امت وي د کومو درجه چه د بدر او احد د شهداؤبرابر ده.

۲ دا احتمال هم شته چې ددې ځخه د پخوانی امتونوشهداء مراد وي.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۴۲۵]دعمر رضی الله عنه څخه روسته د فتنود دروازې خلاصيدو پيشنګوئی**

۵۴۲۵-(۷۷)[۲۵] ۱عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ ۲: كُنَّا عِنْدَ عُمَرَ فَقَالَ: أَيُّكُمْ يَحْفَظُ حَدِيثَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْفِتْنَةِ؟ ۳فَقُلْتُ: أَنَا أَحْفَظُ كَمَا قَالَ، ۴قَالَ: هَاتِ، إِنَّكَ لَجَرِيءٌ، وَكَيْفَ قَالَ؟ ۵قُلْتُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ۶ «فِتْنَةُ الرَّجُلِ فِي أَهْلِهِ وَمَالِهِ وَنَفْسِهِ وَوَلَدِهِ وَجَارِهِ، ۷يُكَفِّرُهَا الصِّيَامُ وَالصَّلَاةُ وَالصَّدَقَةُ وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ»"،

---

[۷۷] ) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب فی الفتنة التی تموج کموج البحر (رقم-۲۶ - (۱۴۴) اخرجه البخاری فی کتاب الفتن/باب الفتنة التی تموج کموج البحر (رقم-۷۰۹۶)والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۲۵۸)وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب ما یکون من الفتن (رقم-۳۹۵۵) واحمد فی المسند: ۳۸۶/۵

**ترجمه:** [۱] حضرت شقیق تابعي رحمه الله د حضرت حذیفه رضي الله عنه نه روایت کوي، هغوئ وفرمایل، [۲] مونږ یوه ورځ د حضرت عمر رضي الله عنه په خدمت کې حاضر وو. هغوئ ز مونږ نه پوښتنه وکړه په تاسو کې چاته د رسول الله ﷺ هغه حدیث یاد دی چې حضور ﷺ د فتني په سلسله کې فرمایلی وو. [۳] ما اوویل ماته یاد دی. او بالکل داسې راته یاد دی. څرنګه چې حضور ﷺ ارشاد فرمایلی دی یعنی ځما په حافظه کې هغه حدیث د څه کم بیخیز نه بغیر حرف به حرف یاد دی، [۴] په دې اوریدو سره حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل. ښه هغه حدیث بیان که (ولې چې ته د حدیث په روایت کې ډیر زړور یې) څه چې حضور ﷺ فرمایلي دي هغه نقل کړه، او د هغه کیفیت بیان کړه، [۵] حضرت حذیفه رضي الله عنه وایي ما بیان کې، چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي [۶] چې د سړي فتنه یعنی د هغه ازمائش او ابتلاء د هغه په ① اهل او په عیال کې ده ② د هغه په مال کې ده ③ د هغه په نفس کې ده ④ د هغه په اولاد کې ده ⑤ او د هغه په ګاونډي کې ده، [۷] د هغه. هغه فتنه او د هغه فتني په سبب چې کومه ګناه کوي د هغه روژه، مونځ، صدقه امر بالمعروف او نهي عن المنکر لري کوي،

**حل اللغات:** – ① جَرِيءٌ: زړه ور،

[۱] قَالَ عُمَرُ لَيْسَ هٰذَا أُرِيدُ، إِنَّمَا أُرِيدُ الَّتِي تَمُوجُ كَمَوْجِ الْبَحْرِ. [۲] قَالَ: قُلْتُ: مَا لَكَ وَلَهَا يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ؟ إِنَّ بَيْنَكَ وَبَيْنَهَا بَابًا مُغْلَقًا. [۳] قَالَ: فَيُكْسَرُ الْبَابُ أَوْ يُفْتَحُ؟ [۴] قَالَ: قُلْتُ: لَا، بَلْ يُكْسَرُ. [۵] قَالَ: ذَاكَ أَحْرَى أَنْ لَا يُغْلَقَ أَبَدًا. [۶] قَالَ: فَقُلْنَا لِحُذَيْفَةَ: هَلْ كَانَ عُمَرُ يَعْلَمُ مَنِ الْبَابُ؟ [۷] قَالَ: نَعَمْ كَمَا يَعْلَمُ أَنَّ دُونَ غَدٍ لَيْلَةً، [۸] إِنِّي حَدَّثْتُهُ حَدِيثًا لَيْسَ بِالْأَغَالِيطِ، [۹] قَالَ: فَهِبْنَا أَنْ نَسْأَلَ حُذَيْفَةَ مَنِ الْبَابُ؟ [۱۰] فَقُلْنَا لِمَسْرُوقٍ: سَلْهُ. فَسَأَلَهُ فَقَالَ: عُمَرُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عمر رضي الله عنه د دې حدیث په اوریدو سره وفرمایل، ځما پوښتنه ددې فتني نه نه ده، ما خو د هغه فتني باره کې اوریدل غوښتل چې د سمندر د موجونو په شان به جوش وهي، [۲] حضرت حذیفه رضي الله عنه وایي، ما عرض وکړو اې امیر المؤمنین ستاسو د هغه فتني سره څه تعلق دی؟ ستاسو او د هغه فتني په منځ کې خو یوبند (دروازه) حائله ده یعنی د هغه فتني تاسو ته ولې فکر دی د هغه خراب اثرات خو در تاسو پورې نه رسېږي ځکه چې د هغه فتني ظهور به ستاسو د ژوند نه پس وي، [۳] حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل ښه دا وښایه، چې هغه دروازه چې د هغه نه فتنه وځي هغه به ماته شي، (یعني هغه به داسې ماته شي یا خلاصه شي شي) [۴] حضرت حذیفه رضي الله عنه وایي ما جواب ورکړو هغه به خلاصه نشي، بلکې ماته به شي [۵] نو حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل چې بیا خو هغه ددې لائقه ده چې هیڅکله بیا بنده نشي، [۶] د حدیث راوي حضرت شقیق رحمه الله وایي، ما د حضرت حذیفه رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه، چې آیا حضرت عمر رضي الله عنه د دې نه خبر وو چې د

دروازي نه مراد څوك دى، ⑦حضرت حذيفه رضي الله عنه وفرمايل هو حضرت عمر رضي الله عنه د هغه نه خبر وو. لكه څرنګه چې هغه د دې خبري نه خبر وو چې د صبا ورځې نه مخكې به شپه راځي. يعنى څرنګه چې هرسړى په يقيني طور سره پوهيږي چې د صبا ورځې د راتلو نه مخكې د شپې راتلل ضروري دى، دغه شان حضرت عمر رضي الله عنه د دې يقيني علم لرى. چې د دروازي نه مراد څوك دى او په دې كې شك نشته، ⑧چې ما حضرت عمر رضي الله عنه ته هغه حديث بيان كى چې په هغه كې څه غلطي نشته، حضرت شقيق رحمه الله وايي. د دې نه پس مونږ ته د حضرت حذيفه رضي الله عنه نه د دې پوښتني همت ونه شو، چې د دروازي نه مراد څوك دى ⑨البته مونږ حضرت مسروق رحمه الله ته عرض وكړو چې هلته موجود وو، چې تاسو د حضرت حذيفه رضي الله عنه نه پوښتنه وكړئ، هغه د حضرت حذيفه رضي الله عنه نه پوښتنه وكړه، ⑩نو حضرت حذيفه رضي الله عنه ورته وفرمايل د دروازي نه مراد خپله حضرت عمر رضي الله عنه دى. يعنى د حضرت عمر رضي الله عنه ذات د يوداسي دروازي په شان دى چې دي په امت او اسلامي مملكت كې د فتنه وفساد راتګ يي منع كړى دى، د دې نه پس به د فتنو دروازه خلاصه شي

**حل اللغات:-**①يُكْسَرُ: ماتولې به شى، ②أَحْرَي: ډير لائق دى. ③دُونَ: دا په معنى د قبلُ دې. يعنى مخكښې. ⑤الْأَغَالِيطِ:جمع د اغلوطة. داسې خبره چه خلق په مغالطه كښې اچوى

**تسهيلات:**

**قوله:قَالَ: هَاتِ، إِنَّكَ لَجَرِيءٌ، وَكَيْفَ قَالَ:**

**دعمررضى الله عنه د حديث په قبلولوكښې احتياط:**حضرت عمرفاروق رضي الله عنه ته به د ګواه نه بغيرچاحديث نه شو بيانولې. دَدې دَپاره حضرت حذيفه رضي الله عنه ته ئى اوفرمائيل ته ډير زړه ور ئى څه بيان كړه. حضرت حذيفه دَ دوو قسمه فتنو نه يوقسم بيان كړو. يادلرئى فتنه په دوه قسمه ده يوه فتنه خو اهل وعيال اومال اومتاع سره متعلق وى. دويمه فتنه هغه ده دَ كوم تعلق چه قتل اوقتال، افتراق انتشار او بدامنئى سره وى حضرت حذيفه رضي الله عنه اوګڼړل چه حضرت عمر رضي الله عنه دَ اول قسم فتنې سره متعلق سوال كوى نوهغه ئى بيانول شروع كړه په دې باندې حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چه هغه دويم قسم فتنه بيان كړه چه دَسمندر دَموجونو په شان موج اوچپې وهونكې راځى حضرت حذيفه رضي الله عنه اوفرمائيل چه ستاسو هغې سره څه كار دې؟ تاسوخودَهغې نه ډير لرې يئى ستاسو اودَ هغه فتنې په مينځ كښې خو يوه بنده دروازه ده. حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چه هغه دروازه به كولاوولې شى كه ماتولې به شي؟ حضرت حذيفه رضي الله عنه اوفرمائيل ماتولې به شى حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل نو بياخو به هغه بنده نه شى دلته دَدروازي تشبيه دَحضرت عمر رضي الله عنه ذات سره وركړې شوه. دَ دروازې كولاوول دَ طبعي مرګ راتلو طرف ته اشاره وه اوماتول دَهغه دَشهيد كولو طرف ته اشاره وه چنانچه كله عمر رضي الله عنه لره ابولؤلؤ مجوسي

شهيد کړونود ادروازه ماته شوه اوس به بنده نه شي حضرت عمر ﷺ ته دَدي بيان نه بنه معلومه شوې وه چه دَ فتنو په مخکښې بنده دروازه دَهغوی خپل ذات دې کله چه هغوی شهيد کړې شو نودَ فتنو دروازې کولاؤ شوې او حضرت عثمان ﷺ شهيد کړې شو

**[٥٤٣٦] فتح قسطنطنيه به قيامت سره ډير نزدې وى**

٥٤٣٦ -(١)[٢٦] ①وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ②: فَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ مَعَ قِيَامِ السَّاعَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ①دَ حضرت انس ﷺ نه روايت دى، هغوئ وفرمايل ②دَ قسطنطنيه فتح کيدل به قيامت ته نزدې وي، دا روايت ترمذي نقل کړى دى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى

**تسهيلات:** نوټ: د قسطنطنيه د فتح تفصيل وړاندې د حديث نمبر «٥٤٢١» په تسهيل کښې تېر شوې دې

# [٢]بَابُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ

## دَ قيامت دَ علاماتو بيان

**خلاصة الباب**

**فيه سبعة وعشرون حديثاً مشتملة على ثلاث مسائل:**

① عدد أشراط الساعة بحذف التكرارسة وأربعون:
١، ٢، ٣، ۴، ۵، ۶، ٧، ٩، ١١، ١٢، ١۵، ١۶، ١٧، ١٨، ١٩، ٢٠، ٢١، ٢٢، ٢٣، ٢۴، ٢۵، ٢۶، ٢٨، ٢٩، ٣٠-

② خروج الإمام المهدي وصفاته: ۵، ١۶، ١٧، ١٨، ١٩، ٢٠، ٢١، ٢۵، ٢۶-

③ وقت إبتداء الأشراط: ٢۴-

**د شرط لغوى معنى:** اشراط جمع ده دَدې مفرد شرط دې چه دَ نښې او علامت په معنى کښې دې. په دې باب کښې به هغه علامات بيانيږى چه دَ قيامت قرب او دَدې واقع کيدل ښکاره کوى.

**په مذکوره باب کښې د اشراط څخه مراد:** دساعة اطلاق په غير معلوم مختصر وخت باندې کيږى او دلته هم دغه مراد دې ځکه چه دقيامت دَ وقوع وخت غير معلوم هم دې او مختصر هم دې.

**د قيامت دوه قسمه علامات:**

① علامات صغرى. دَ قيامت نه مخکښې يو څو علامات داسې دى چه واړه دى چنانچه

[١]) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى علامات خروج الدجال (رقم-٢٢٣٩) واحمد فى المسند: ۵/٨۶

دَحضرت مهدی پورې چه کوم علامات دی هغه واړه دی

② دَ ظهورمهدی نه واخله تر وقوع دَ قیامت پورې لوئی علامات دی

**اشکال:** که چرې دَ اشراط الساعة تعلق علامات صغری سره دې نو بیا په دې باب کښې د حضرت مهدی ذکر بار بار ولې راغلې دې ظهورمهدی خود علامات کبری نه دې؟

**داشکال جواب:** دَ ظهورمهدی ذکر په راروان باب کښې کیدل پکاروو ځکه چه ظهور مهدی د علامات کبری څخه دې هغه باب وړاندې راروان دې اودلته د علامات صغری بیان کیږی خو چونکه په علامات صغری کښې دَ څه داسې جنګونوذکر وودکوم تعلق چه صرف مهدی سره ووپه دې وجه دَمهدی تذکره هم دلته په علامات صغری کښې اوشو ګنی ظهورِمهدی دَعلاماتِ کبریٰ څخه دې.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۴۳۷] دَقیامت دشپږو علاماتو پیشنګونی

> ۵۴۳۷-()[۱] ۱ عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ۲ "«إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ، ۳ وَيَكْثُرَ الْجَهْلُ. ۴ وَيَكْثُرَ الزِّنَا، ۵ وَيَكْثُرَ شُرْبُ الْخَمْرِ، ۶ وَيَقِلَّ الرِّجَالُ، ۷ وَيَكْثُرَ النِّسَاءُ، ۸ حَتَّى يَكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَأَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ" ". ۹ وَفِي رِوَايَةٍ: "يَقِلُّ الْعِلْمُ وَيَظْهَرُ الْجَهْلُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضرت انس رضی الله عنه وايي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوريدل ۲ بيشکه د قيامت د علاماتو نه يوه علامه داده چې علم به پورته کړل شي (يعني حقيقي علم به ددې دنيا نه پورته شي يا داچې د علماوو قدرومنزلت به ختم شي) ۳ جهالت به زيات شي (يعني هرطرف ته به جاهل او نادان په نظر راځي که څه هم د علم ودانش دعوی به کوي خو په حقيقت کې به د علم ودانش نه په ميلونو لرې وي) ۴ زنا به په کثرت سره کيږي (ځکه چې به په خلقوکي به شرم وحياء او غيرت کم شي) ۵ شراب به ډير څکل کيږي (او بيا د شراب نوشي زياتوالي به آباديو او په خلقوکي د فتنې او فساد دخوريدو باعث شي) ۶ د سړو تعداد به کم شي (چې د هغوئ په وجه د عالم نظام قائم او مستحکم وي) ۷ د ښځو تعداد به زيات شي (چې د هغوئ په ذريعه ضروري او مهم امورو سرته رسيدل څه چې د هغوئ په وجه به تفکرات . پريشانيو او د مال ودولت حاصلولو غم ضرور برداشت کول راځي . ۸ ددې پورې چې د پنځوس ښځو خبر ګيري د پاره به يو سړی وي (دې نه دامراد نه دی

---

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب العلم/باب رفع العلم وظهور الجهل (رقم-۸۰) ومسلم فی کتاب القدر/باب رفع العلم وقبضه وظهور الجهل والفتن فی آخر الزمان(رقم-۹ - (۲۶۷۱) وابوداود فی والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أشراط الساعة (رقم-۲۲۰۵) والنسائی فی کتاب البیوع/باب التجارة (رقم-۴۴۵۶)وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب أشراط الساعة (رقم-۴۰۴۵) واحمد فی المسند: ۱۷۶/۳

چې د يو يو سړي به پنځوس پنځوس ښځې وی ، بلکه دا مراد دی ، چې يو يو سړی باندي به د پنځوس ښځو د کفالت او خبر ګيري بوج وي ، چې په هغوئ کې به مورګاني ، خاله ګاني دایاني ، خوندي او پوپياني وغيره وي ، ‹‹خاله ، د مور خور ، امه د پلار خور››

[۹] او په يوه روايت کې دي ‹‹يَقِلُّ العلم ويَظهر الجهل›› چې علم به کم شي او جهالت به خور شي بخاري ، مسلم

**حل اللغات** - ① يَقِلّ: کمې به شی، ② القَيِّمُ: نګران،

**تسهيلات: قوله:** إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ:

**دعلم پورته کيدو دوه صورتونه:** ① دعلم دپورته کيدوصورت دعبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما په حديث کښې وارد شوې دې ‹‹قال سمعت رسول الله ﷺ يقول إن الله لايقبض العلم إنتزاعاً ينتزعه من العباد، ولكن يقبض العلم بقبض العلماء حتى إذا لم يبق عالماً إتخذ الناس رؤساً جهالاً فسئلوا فأفتوا بغير علم فضلوا وأضلوا››[1]

ددې نه معلومه شوه چه دعلم پورته کيدوصورت به دا وی چه عالمان به وفات کيږی. او دهغوی په ځاې به دهغوی د علم حاملين نه وی نودعلماؤ دوفات سره به علم هم ختميږی.

② دبعضې رواياتونه معلوميږی چه علم به براه راست د سينونه پورته شی قران پاك به د سينونه اوخی.

ابن ابی شيبه رحمه الله په ‹‹مصنف›› کښې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه اثرنقل کړې دې ‹‹أول ما تفقدون من دينكم الأمانة وآخرها تفقدون منه الصلاة وسيصلي قوم ولا دين لهم، وإن هذا القرآن الذي بين أظهركم كأنه قد نزع منكم قال قلت: يا أبا عبد الله كيف وقد أثبته الله في قلوبنا؟ قال يسرى عليه في ليلة فترفع المصاحف وينزع ما في القلوب ثم تلا ﴿ وَلَئِنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِيٓ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ ﴾ إلى آخر الآية››[2]

**په رواياتوکښې دترجيح:** په دې دواړه قسمه رواياتوکښې که دترجيح لار اختيارکړې شی نوداسې به ونيلی شی چه دصحيحينوروايت ته ترجيح حاصله ده.

---

[1] الحديث أخرجه البخاري في صحيحه (۱\۲۰) كتاب العلم باب كيف يقبض العلم رقم ۱۰۰) وفي (۱۲\۱۰۸۶) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة باب ما يذكرمن ذم الرأي وتكلف القياس رقم ۷۳۰۷) وأخرجه مسلم في صحيحه في كتاب العلم باب رفع العلم وقبضه وظهورالجهل والفتن في آخرالزمان رقم ۶۷۹۶و ۶۷۹۹) وأخرجه النسائي في السنن الكبرى (۳\۴۵۶) كتب العلم باب كيف يرفع العلم رقم (۵۹۰۷و ۵۹۰۸) وأخرجه الترمذي في جامعه في كتاب العلم باب ما جاء في ذهاب العلم رقم ۲۶۵۲ ) وأخرجه ابن ماجه في كتاب السنة (المقدمة) باب إجتناب الرأي والقياس رقم (۵۲)_

[2] المصنف لابن أبي شيبة (۷\۵۰۵) كتاب الفتن باب ما ذكر في فتنة الدجال رقم ۳۷۵۷۴)_

**په روایاتوکښې تطبیق:** یاکه دواړه قسمه روایاتوکښې تطبیق اوکړې شي.نودواړه صورتونه به راپیښیږي.چه اول به عالمان وفات شي.اودهغوی د علومو حاملین به پاتې نشي.نودهغوی علم به ختم شي.اوبیا به په آخرکښې د اجواف رجال او اوراقو نه هم پورته کړې شي.((والعلم عندالله تعالی)) دتطبیق دا صورت راجح دې.په دې کښې دځه قسم حدیث ترک ته ضرورت نه پیښیږي.

**قوله.** وَيَكْثُرَ الْجَهْلُ:

**دجهل د کثرت په سبب کښې دوه اقوال:** ① د ثبوت جهل نه خو یا مراد دا دی.چه عالمان به ختم شي.اودهغوی نائبین اودهغوی دعلومو حاملین به پاتې نشي.نوجهل به خور شي ② دښځو پیدائش به زیات شي.ځکه چه په ښځو کښې جهل زیات وی.

**قوله.** وَيَكْثُرَ الزِّنَا،وَيَكْثُرَ شُرْبُ الْخَمْرِ:

**اشکال:** د شرابو څکل د قیامت دعلاماتونه ځنګه شمارلې شي.حالانکه نفس شرب خو په هره زمانه کښې موجود دې.په خپله نبی ﷺ په بعضې کسانوباندې په دې کښې حدجاری کړې وو.

**داشکال دوه جوابونه:** ① دقیامت په علاماتوکښې مطلق شرب مراد نه دې.بلکه د شرب عموم او کثرت مراد دې.[1]

② دلته صرف شرب خمرد قیامت نښه نه ده ګرځولې شوې.بلکه شرب خمراوشیوع زنا وغیره مجموعه د قیامت نښه ګرځولې شوې ده.[2]

**قوله.** وَيَقِلُّ الرِّجَالُ وَيَكْثُرَ النِّسَاءُ:

**د سړوپه کموالی اوښځوپه کثرت کښې درې اقوال:** ① دَ جنګونو په وجه به سړی ختم شي اوښځې به پاتې شي زمونږ وراندې د افغانستان جنګ دې څومره سړی شهیدان شو اوڅومره زنانه کونړې شوې.

② دَ جینکو پیدائش زیات شي اودَ هلکانوکم. په دې وجه به دَ یو سړی په پالنه کښې پنځوس پنځوس ښځې وی.

③ ابوعبدالملک فرمائی چه دا اشاره ده دَ کثرت فتوح طرف ته چه مسلمانانو ته به ښه فتوحات حاصل شي ښځې به قیدکولې او راوړلې شي یویوکس سره به ډیر موطوات جمع کیږی خو حافظ رحمه الله داقول رد کړې دې بلکه مراد دا دې چه په آخره زمانه کښې به سړی کم پیدا کیږی او ښځې به ډیر پیدا کیږی.

[1] شرح کرمانی(۶۰/۱۲)_
[2] المصدر السابق)_

**قوله:** حَتَّى يَكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَأَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ:

**د پنځوسو ښځو لپاره د يو كفيل په كېدو دوه اقوال:** ① دا په حقيقت باندې محمول دی ② د خمسين څخه صرف كثرت بيانول مقصود دی لكه د ترمذی په بل روايت كښې د څلويښتو ښځو ذكر راغلې دی

**[٥٤٣٨] قيامت ته نږدې د دروغژنو خلقو د زيادت پيشنګوئي**

٥٤٣٨-()[٢] ①وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ②" «إِنَّ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ كَذَّابِينَ، ③فَاحْذَرُوهُمْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت جابر رضي الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ②چې د قيامت دراتلو نه مخكې د دروغجنو پيدائش به زيات شي ، ③تو دهغوئ نه ځان وساتئ

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ كَذَّابِينَ، فَاحْذَرُوهُمْ:

**د كذابين په مصداق كښې دوه اقوال:** ① د كذابين څخه مراد مدعيان د نبوت دی چې په دروغه به ځان ته د نبوت نسبت كوی چې په مونږ باندې وحی كيږی

② دروغژنو خلقو څخه اهل هواء او د باطلو نظرياتو خلق مراد دی چه دځپلو غلطو نظرياتو دپاره دځان نه حديثونه جوړه وی

**[٥٤٣٩] نا اهله ته د منصب وركول او د قيامت نښه**

٥٤٣٩-()[٣] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ②: «بَيْنَمَا كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُحَدِّثُ إِذْ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ: مَتَى السَّاعَةُ؟ ③قَالَ: " إِذَا ضُيِّعَتِ الْأَمَانَةُ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ ". ④قَالَ: كَيْفَ إِضَاعَتُهَا؟ قَالَ: " إِذَا وُسِّدَ الْأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي ②چې يوه ورځ رسول الله ﷺ د صحابه رضي الله عنهم سره (په څه سلسله كې) خبري كولي ، اچانك يو باندچي (كليوال)(مجلس نبوي ﷺ ته راغې هغه اوويل قيامت به كله راځي ③حضور ﷺ ورته وفرمايل هركله چې امانت تلف شي نو د قيامت انتظار كوه ، ④باندچي (كليوال) پوښتنه وكړه امانت به ولې تلف شي او دانوبت به كله راځي ⑤حضور ﷺ وفرمايل هركله چې د حكومت او سلطنت كار نا اهل خلقوته وسپارل شي نو پوهه شه چې دا د امانت تلف كيدل دي او هغه وخت د قيامت انتظار كوه (بخاري)

**حل اللغات:**- ① إِضَاعَتُهَا: ضائع كيدل دهغې، ② وُسِّدَ: اوسپارلې شی

[1] ) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب الناس تبع لقريش. والخلافة فى قريش (رقم-١٠ - (١٨٢٢) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب ما يكون من الفتن (رقم-٣٩٥٢) واحمد فى المسند:٨٥/٥

[2] ) اخرجه البخارى فى كتاب العلم/باب من سئل علمًا وهو مشتغل فى حديثه. فأتم الحديث ثم أجاب السائل (رقم-٥٩)

**تسهيلات: قوله: إِذَا ضُيِّعَتِ الْأَمَانَةُ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ:**

**على اسلوب الحكيم جواب وركول:** د نبي كريم ﷺ دا جواب ,,جواب على اسلوب الحكيم,, دې مطلب دا دې چه ده سوال كړې وو چه قيامت به كله راځي؟ نبي كريم ﷺ جواب وركړو چه ددې د تپوس كولو ضرورت نشته.خكه چه ددې علم خو ماته هم نشته.البته كه د قيامت د علاماتو په باره كښې ته سوال كوې.نو دا زياته مناسب ده.خكه چه دا ماته معلومه ده.بيا دوى ﷺ علامات بيان كړل.د قيامت راتلو وخت ئې مقرر نكړو.

**په قرآن كريم كښې ددې نظائر:** دا داسې ده.لكه څنگه چه د ﴿يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْأَهِلَّةِ﴾ په جواب كښې ﴿قُلْ هِيَ مَوَاقِيْتُ لِلنَّاسِ﴾([1]) فرمائيلى شوى دى.دلته سوال دا وو چه سپوږمئ وړوكې كيږى او غټيږى ولې؟ ددې د كميدو او غټيدو علت څه دې؟ په جواب كښې دعلت بيانولو په ځائې حكمت بيان كړې شو.چه ددې نه د وختونو تعين كيږى.

**قوله: إِذَا ضُيِّعَتِ الْأَمَانَةُ:**

**دامانت څخه مراد:** ,,إذا ضيعت الأمانة,,كښې د ,,امانت,,نه څه مراد دې؟ حاصل دا دې چه په ,,إذاضيعت الأمانة,, كښې امانت نه مراد د خيانت ضد نه دې.بلكه ددې نه مراد هغه امانت دې.دكوم ذكر چه په آيت كريمه ﴿اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَالْجِبَالِ فَاَبَيْنَ اَنْ يَّحْمِلْنَهَا وَاَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْاِنْسَانُ ۗ اِنَّهٗ كَانَ ظَلُوْمًا جَهُوْلًا﴾([2]) كښې دې. دغه شان دلته كښې هغه امانت مراد دې.دكوم ذكر چه د رسول كريم ﷺ په حديث كښې دې.((إنّ الأمانة نزلت في جذر قلوب الرجال.....))([3]) ددې امانت اداكول مونږ قيوميت سره تعبير كولې شو.چه هرڅيز د هغې په مقام باندې كيخودې شى.او صحيح انتظام اوكړې شى.او دهر څيز حق ادا كړې شى.

**دنااهل څخه مراد:** د نا اهل نه مراد بې دينه دې. ښكاره ده.چه كله نا اهل ته اوسپارلې شى.نو د قيامت انتظار به كولې شى.څكه چه نا اهل سړې به د خپلې لاعلمئ په وجه كښې نه ايږدى. نتيجه به دا وى. چه دينى بدنظمى به خوريږى.او آخر به داسې اوشى.چه بې دينى به عام شى.او په بې دينئ باندې به قيامت قائميږى.ددې نه معلومه شوه.چه اهليت په عالمانو كښې وى.په جاهلانو (بې علمو) كښې حقيقى اهليت نه وى.

[1] البقرة:۱۸۹)_
[2] الأحزاب:۷۲)_
[3] صحيح البخارى(۱۲\۹۶) كتاب الرقاق باب رفع الأمانة رقم ۶۴۹۷) وصحيح مسلم كتاب الإيمان باب رفع الأمانة والإيمان من بعض القلوب رقم ۱۴۳)_

**د پاکستان په سرکاري ادارو کښې سياسي مداخت:** ددې حديث مصداق زمونږ د پاکستان سرکاري ادارې هم دي اگرچې په اهليت باندې هم سرکاري نوکرې ملاو يږي خوچې کله سياسي او جمهوري حکومت وي نو هر وزير او منسټر په خپله ماتحته اداره کښې بې ځايه او ناجائزه مداخلت کوي او د خپلې پارټۍ او دلې خلق په کښې مقرر کوي ځکه چې د انتخاباتو په وخت کښې ورله په جلسې جلوسونو کښې زنده باد او مرده باد وئيلې وي زه خپله هم د پاکستان په يو کالج کښې پروفيسر يم په يوه موقع د پيش امام د تقررۍ دپاره انټروي (تپوسونه) وو. زه په هغه انتخابي کميټۍ کښې يو ممبر ووم ما به نور تپوسونه هم کول او په عربۍ کښې مې خپل غيرمعرب تاليف ,, احکام العبادات في فقه الاحناف،، مخې کيخودې وو. دهغې لږ غوندې عبارت به مې په انټروۍ کښې حصه اخستونکې فاضل ته وروړاندې کړل او ورته به مې وئيل دا عربي عبارت ووايه هغه چې به عبارت غلط ووئيل نو د هغې څخه به دهغه علمي استعداد معلوم شو په دوی کښې يو مفتي صاحب هم د امامتۍ اميدوار وو. د هغوی د قابليت او استعداد څخه زه ډير متاثره شوم. او ډيرې نمبرې مې ورته وکړلې خوچې کله د انتخاب وخت راغلو نو بل ملگرې چې د دغه مفتي صاحب په مقابله کښې ډير کمزورې وو. د هغه تقرري اوشوه روسته معلومه شوه چې د يو ايم پي اې په مداخلت سره دهغه سلکشن (تقرري) شوې وه دا خو درته ما هغه واقعه اوليکله چې زما په کښې علم وه. معلومه نه ده چې څومره داسې خلق به وي چې د يو پوسټ (ذمه وارۍ) اهل به نوي او دهغې تقررياني به شوې وي

**[۵۴۴۰] د مال دولت د زياتيدو پيشنگوئي**

٥٤٤٠-()[٣] [١] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَكْثُرَ الْمَالُ وَيَفِيضَ، [٣] حَتَّى يُخْرِجَ الرَّجُلُ زَكَاةَ مَالِهِ، فَلَا يَجِدُ أَحَدًا يَقْبَلُهَا مِنْهُ، [٤] وَحَتَّى تَعُودَ أَرْضُ الْعَرَبِ مُرُوجًا وَأَنْهَارًا". رَوَاهُ مُسْلِمٌ، [٥] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: قَالَ: "تَبْلُغُ الْمَسَاكِنُ إِهَابَ أَوْ يَهَابَ»".

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] قيامت ترهغه وقته پورې نه راځي د څوپورې چې د مال ودولت فراخي اونشي [٣] او فراخي به هم داسې اوشي چې يو سړی به د خپل مال زکوٰة وکاږي ليکن هغه به داسې سړی پيدا نه کړي چې د هغه د زکوٰة مال واخلي ځکه چې د مال ودولت فراخي به هيڅ سړی محتاج او ضرورتمند پرې نه ږدي او هيڅ سړی به داسې مال آخستلو له تيار نه وي [٤] او قيامت به دهغې پورې نه راځي د څوپورې چې د عربو سر زمين باغ وبهار او نهر والا (يعني بې حسابه مال ودولت فراهم کونکی) جوړه نشي (مسلم) [٥] اودمسلم په يوروايت کې داهم دي چې

---

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب الفتن/باب خروج النار (رقم-٧١٢٠) ومسلم في كتاب الزكاة/باب الترغيب في الصدقة قبل أن لا يوجد من يقبلها (رقم-٦٠ - (١٥٧)

رسول الله ﷺ وفرمایل قیامت ترهغه وخته پورې نه راځي ترڅوپورې چې کورونه اوآباداني اهاب یا دیهاب پورې ورسیږي.

**حل اللغات:-** ① تَعُودَ: راوبه ګرځي، واپس به شي، ② مُرُوجًا: دځرن ځائې شینکې او نهر والا ③ إِهَابَ أَوْيِهَابَ: مدینې سره نیزدې د یوځائې نوم دې

**تسهیلات:**

**قوله: وَحَتَّى تَعُودَ أَرْضُ الْعَرَبِ مُرُوجًا وَأَنْهَارًا:**

**دعرب زمکه زرغیزه ګرځیدل:** یعنی دعربستان زمکه به دځرن ځائې شینکې او نهر والا شي چنانچه نن صبا دا عمل شروع شوې دې. د جده نه دمکې پورې زمکه شینکې والا شوې دې په مکه مکره کښې چې په قرآن کښې ورته((غیرذی زرع))ونیلې شوې ده خوچې په سرکونو باندې تیریږې نو شنه شنه پوټې به درته په نظر راځي ځکه چې د نورو ځایونو څخه ورته خاورې راوړې اوپته نشته چې د زراعت د کومو نوې تحقیقاتو په نتیجه کښې د کرکرونديې عمل شروع دې.دا هم د زیربحث حدیث مصداق دې.

**قوله: تَبْلُغُ الْمَسَاكِنُ إِهَابَ أَوْيِهَابَ:**

**په کلمه د ‹‹او›› کښې دوه احتمالات:** ① دلته راوی ته شک دې چې نبی ﷺ اهاب فرمائیلې وو اوکه یهاب، په دې صورت کښې لفظ او د شك دپاره دې
② کلمه د او د تنویع دپاره دې یعنی دا د دوو ځایونو نومونه دی.

**[۵٤٤۱] دَیو خلیفه په زمانه کښې د مال د زیادت پیشنګوئی**

۵٤٤۱-()[۵] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«يَكُونُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ خَلِيفَةٌ يَقْسِمُ الْمَالَ وَلَا يَعُدُّهُ". [۳] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: "يَكُونُ فِي آخِرِ أُمَّتِي خَلِيفَةٌ يَحْثِي الْمَالَ حَثْيًا، وَلَا يَعُدُّهُ عَدًّا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ؓ وایي رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په آخره زمانه کې به یوخلیفه (یعني سلطان برحق) پیدا شي چې ضرورتمندو مستحقینو باندې به مال نه تقسیموي او هغه به نه شمیري یعنی په په خلقوکي به بي حسابه مال ودولت تقسیموي [۳] او په یوه روایت کې داسې دي چې څما د امت په آخري زمانه کې به یوخلیفه پیدا شي چې خلقوته به موټی یالپه ډکه (یعني ډیر زیات) مال ودولت ورکوي او هغه به نه شماري څرنګه چې شمیر کولی شي (مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَا يَعُدُّهُ: شماری به ئې نه. ② خَلِيفَةٌ: خلیفه، (امام مهدی) ③ حَثْيًا: موټی، لپه.

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتی یمر الرجل بقبر الرجل. فیتمنی أن یکون مکان المیت من البلاء (رقم-۶۹ - (۲۹۱٤)

**تسهیلات:**

**قوله: يَكُونُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ خَلِيفَةٌ**

**د خلیفه څخه مراد:** دې څخه مراد حضرت مهدي دې دَ ده ظهور بـه دَ مقام ابراهيم او حجراسود پـه مينـځ كـښې كيـږي. دَ دغـه ظهور نـه مخكښې بـه دَتيرشوی کال پـه رمضان كـښې نمـر تنـدر نيـولی وی. دَ بيعـت اوظهـور پـه وخـت بـه دَ آسـمان نـه دا آواز راځی "هذاخليفـة اللـه المهـدی فاسـتمعوالـه واطيعـوه" دې نـه مخكښې بـه دې دَ مـدينې نـه تختيدوسره مكې ته راغلې وی دې دَپاره چه هغه څوك اونه پيژنی دَ شام اولياء الله بـه هغه اوپيژنی اوبيعت به ورسره اوكړی. دَ حضرت مهدی دَ ظهور نـه مخكښې به دروغژن مهدی هم راځی. امام مهدی به سيد وی او پـه ژبـه كـښې بـه ئـی تتـوالې وی كله چه غـصه شی نو پـه خپل پتون به لاس وهی. دَحضورپاك پـه شان نوم بـه ئی وی دَ هغوی دَ پلار نـوم بـه عبدالله وی اودَمور نوم به ئی آمنه وی په عادتونو كښې به بالكل دَ حضوراكرم ﷺ پـه شان وی مگر په شكل اوصورت كښې به جدا وی.

**قوله: يَحْثِي الْمَالَ حَثْيًا،**

**د مال زیادت:** یعنی دكې دكې لپې بـه وركوی. نهـه كالـه بـه خلافت كـوی. اووه كالـه بـه خالص جهـاد كـښې تيـره وی پـه اتـم كـال بـه دَ دجال مقابله كوی او پـه نهـم كـال كـښې بـه حضرت عيسٰی عليه السلام سره دَ حكومت انتظام كوی اوبيابه وفات شی. حضرت عيسٰی عليه السلام به دَ هغه جنازه كوی.

**[۵۴۴۲] دَ فرات دریاب څخه د خزانې راوتلو پیشنګوئی**

٥٤٤٢-()[٢] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«يُوشِكُ الْفُرَاتُ أَنْ يَحْسِرَ عَنْ كَنْزٍ مِنْ ذَهَبٍ، [٣] فَمَنْ حَضَرَ فَلَا يَأْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمـه:** [١] او حـضرت ابـوهريره رضي الله عنه وایـي رسـول الله ﷺ وفرمايـل [٢] او هغـه زمانـه راتلونكې ده هركله چې دريائي فرات بـه د سوني (سرو زرو) خزانـه وغورځوي (يعنـي د هغه اوبه وچي شي او د هغه لاندي نه به د سوني خزانه برآمد شي) [٣] نو كوم سړی چې هغـه وخت هلتـه موجـود وي هغـه تـه پكـار دی چې دهغـه خزانـي نـه هـيځ وانـه خلي (بخاری ومسلم)

**حل اللغات:** - ① الْفُرَاتُ: دريائي فرات، ② يَحْسِرَ: رابنكاره به شی

[1]) اخرجه البخاری فی كتاب الفتن/باب خروج النار(رقم-٧١١٩) ومسلم فی كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتی يحسر الفرات عن جبل من ذهب (رقم-٣٠ - (٢٨٩٤) وابوداود فی كتاب الترجل /باب فی حسر الفرات عن كنز (رقم-٤٣١٣) والترمذی فی كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٥٦٩)وابن ماجه فی كتاب الفتن/باب أشراط الساعة (رقم-٤٠٤٦)

**تسهيلات:**

**قوله: يُوشِكُ الْفُرَاتُ أَنْ يَحْسِرَ عَنْ كَنْزٍ مِنْ ذَهَبٍ:**

**د فرات دریاب څخه د خزانې راښکاره کیدل:** یعنی دَ فرات دریاب به اوچ شی او د لاندې نه به دَ سرو زرو خزانې راوځی او په بل روایت کښې دی (ان یحسر عن جبل من ذهب) او د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه فرات به اوچوی د سرو زرو د خزانو نه. یعنی د فرات اوبه به اوچې شی او د هغې د لاندې نه به د سرو زرو خزانې راوځی دا مطلب نه دې چې د سرو زرو غربه راښکاره شی بلکه مراد دا دې چې لکه غر هومره ډیر سر زربه راښکاره شی.

**قوله فَمَنْ حَضَرَ فَلَا يَأْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا:**

**د خزانې څخه د نه اخستلودرې وجوهات:** ① د نه اخستلو وجه دا ده چې د هغې باعث تنازع او تقاتل دې لکه چې د مشکاة په حدیث نمبر (۵۴۴۳) کښې دی چې په هغې باندې به خلق جګړې شروع کړی هرسړې به دا وائی کیدې شی زه دا خزانه حاصله کړم په کښې به په هر سلو کسانو کښې یو کم سل قتل کړې شی اویو کس به پاتې شی.

② د دې خزانې څخه چې څوک واخلی نود دې په سبب به آفات او مصیبتونه راځی. او هغه به د الله پاک د قدرت د نخښنو نه یوه نخښنه وی ،

③ دا مال د قارون د مال پشان مغضوب او مکروه دې ددې وجې به د دې څخه انتفاع حرامه وی (مظاهر حق)

**[۵۴٤۲] د فرات دریاب په خزانې د قتل وقتال کیدو پیشنګوئی**

۵۴۴۲-( )[٤] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَحْسِرَ الْفُرَاتُ عَنْ جَبَلٍ مِنْ ذَهَبٍ، ③ يَقْتَتِلُ النَّاسُ عَلَيْهِ، فَيُقْتَلُ مِنْ كُلِّ مِائَةٍ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ، ④ وَيَقُولُ كُلُّ رَجُلٍ مِنْهُمْ: لَعَلِّي أَكُونُ أَنَا الَّذِي أَنْجُو». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② قیامت به د هغی پورې نه راځي د څوپورې چې دریائي فرات نه د سرو زرو (سوني) غر راونوځي . ③ خلق به د دې په وجه (یعني د دې دولت حاصلولو او په خپله قبضه کې اخستو د پاره) جنګ او قتل وقتال کوي نو دې په خلقو کې به یوکم سل (۹۹) فیصده ووژل شي ④ او هرسړی به داوایي چې شاید زه (ژوندی پاتې شم او) په مقصد کې به کامیاب شم یعنی هرسړی به په دې توقع جنګیږي ، چې شاید زه کامیابي حاصله کړم او په دې دولت قبضه وکړم نو ۹۹

) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة /باب لا تقوم الساعة حتی یحسر الفرات عن جبل من ذهب (رقم-۲۹ - ۲۸۹٤) واحمد فی المسند:۵/ ۱٤۰

فيصده خلق به په دي توقع کې ځان بائيلي

**حل اللغات:-** ① يَحْسِرَ: رابنکاره به شي

**تسهيلات: نوټ:** د زيربحث حديث وضاحت د مشكاة حديث نمبر(٥٣٤٣) كښې تيرشو هغې ته رجوع وکړئ

**[٥٤٤٤] د زمکې خپلې خزانې رابهر کولو پيشنګوئي**

٥٤٤٤-()[٨] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«تَقِيءُ الْأَرْضُ أَفْلَاذَ كَبِدِهَا أَمْثَالَ الْأُسْطُوَانَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، ③ فَيَجِيءُ الْقَاتِلُ، فَيَقُولُ: فِي هَذَا قَتَلْتُ، ④ وَيَجِيءُ الْقَاطِعُ فَيَقُولُ: فِي هَذَا قَطَعْتُ رَحِمِي ⑤ وَيَجِيءُ السَّارِقُ فَيَقُولُ: فِي هَذَا قُطِعَتْ يَدِي ⑥ ثُمَّ يَدَعُونَهُ فَلَا يَأْخُذُونَ مِنْهُ شَيْئًا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د قيامت يوه غټه نښه داهم ده چې) زمکه به د خپل ځيګر ټکړې بهر راوباسي چې د سونا چاندي د ستنو په شان به وي ③ نو يو سړی چې هغه محض مال حاصلولو د پاره قتل کړی وي رابه شي او وايي به چې د دې د پاره ماخلق قتل کړي دي ④ او يو سړی چې هغه خپلوي قطع کړي وي (يعني هغه خپلو عزيزانو او رشته دارو سره احسان او نيك سلوك نه وي کړی) رابه شي او وايي به چې مادي مال د پاره خپلو عزيزانو سره عزيز ولي قطع کړي وه ⑤ او بيابه غل راشي او وايي به چې ددي مال د پاره ځما لاس کټ شوي دی (يعني د دوئ ټولو د ويلو مطلب به داوي چې مال او دولت داسې شی دی ، چې د هغه په محبت کې او د هغه دحاصلولو د پاره مونږ داسې داسي ګناه وکړه [او داسې داسي پريشانيو سره مخ شو ليکن اوس چې دامال ودولت زمونږ مخې ته او زمونږ په اختيار کې دی د دې هيڅ اهميت نه دی پاتې شوی او مونږ ته د دې هيڅ حاجت او ضرورت نه محسوسيږي] ⑥ نو هغه ټول خلق به هغه مال ودولت دغه شان پريږدي چې هيڅوك به د هغه نه هيڅ هم وانخلي

**حل اللغات:-** ① تَقِيءُ: اُلټئ به کړی. يعنی راؤبه باسی. ② أَفْلَاذَ: دَ فلذة جمع ده دَ ځيګردَ ټکړو دپاره ونيلې شوې دې دَ زمکې دننه معدنيات مراد دی ③ كَبِدِ: ځيګر. ④ الْأُسْطُوَانَةِ: ددې جمع اساطين ده. ستنې ته وائی

**تسهيلات: قوله: أَفْلَاذَ كَبِدِهَا:**

**د په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دلته دَ زمکې دَ ځيګر نه مراد دَ زمکې لاندې پټې شوې خزانې دی او معدنيات دَ ځيګر ټکړو سره ځکه تعبيرکړې شوی دی چه دَ زمکې جوهر او خلاصه هم دغه ده

[1] اخرجه مسلم فی كتاب الزكاة/باب الترغيب فی الصدقة قبل أن لا يوجد من يقبلها (رقم-٦٢ - (١٠١٣) والترمذی فی كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-٢٢٠٨)

یعنی په آخره زمانه کښې به دَ زمکې سینه ډیر په فراخئې سره په خپل ځان کښې پټې کړې شوې خزانې بهر راوباسي او انساني نسل به دَ مال اودولت په زياتوالي کښې ورغرق شي

۲ دې خزانې څخه مراد دَ موجوده عراق تیل وی او هم دغه تیل دَ دریاب دَ لاندې نه راخوټکیږی لکه څنگه چه نن صبا کفریه طاقتونه یوځائی شوی دي او دَعراق تیل لوټ کوی.

**قوله**: فَيَجِيءُ الْقَاتِلُ

**د مال په وجه د گناهونو په کولو پښيمانتيا**: مطلب دا چه مال به دومره زيات شي چه دَ خلقو به دَدې نه رغبت ختم شي بيا به مجرمان افسوس کوی چه دَ دې حقير مال په وجه مونږ دَ جرمونو ارتکاب نه کولې.

## [۵٤٤۵] دهرسړی د پریشانی پیشنهکونی

۵٤٤۵ -()[۹] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتَّى يَمُرَّ الرَّجُلُ عَلَى الْقَبْرِ فَيَتَمَرَّغُ عَلَيْهِ، ۳ وَيَقُولُ: يَا لَيْتَنِي كُنْتُ مَكَانَ صَاحِبِ هَذَا الْقَبْرِ، ۴ وَلَيْسَ بِهِ الدِّينُ إِلَّا الْبَلَاءُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کې ځما ساه ده دا دنيا به ترهغه وقته پوري نه ختميږي د خوپوري چې يوه داسې زمانه را نشي چې سړی به په قبر تيريږي او بيا به هغه قبر ته واپس راتلوسره راشي او حسرت سره به وايي ۳ چې آرمان زه د دې قبر والا په ځاي وی ۴ او دابه د هغه دين نه وي بلکه بلا به وي. (مسلم) يعنی دا به د پرهيزگاری او دتقوی په وجه نه بلکه دمصيبت اوپريشانی په وجه به وی.

**حل اللغات**: - ۱ يَتَمَرَّغُ: واپس به راشی. ۲ الْبَلَاءُ: مصيبت، پريشانی.

**تسهیلات**:

**قوله**: وَلَيْسَ بِهِ الدِّينُ إِلَّا الْبَلَاءُ.

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې درې اقوال**: ۱ دَ يو دَمرگ تمنا کول به په داسې وخت کښې وی کله چه دَ څه فتنې او مصيبت دَ وجې نه دَ هغه دين په ختميدو شی. هغه وخت به ده سره دَ دغه فتنې اومصيبت دَ مضراثراتو نه سوا نور هيڅ نه وی اودا به داسې زمانه

[1] اخرجه مسلم فی كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر الرجل، فيتمنى ان يكون مكان الميت من البلاء (رقم-٥٤ - (١٥٧) وابن ماجه فی كتاب الفتن/باب شدة الزمان (رقم-٤٠٣٧)

وی چه هغه وخت به زمکه دَ دین او دین والو نه خالی شی

② دَ یو کس دا ذکرشوې خواهش کول دین اودَ دې ضروری معاملاتو ته نقصان رسولو یا تباه کولو په وجه به نه وی بلکه دَ دغه مصیبت او تکلیف دَ راګیرېدو په وجه به وی کوم چه دَهغوی دنیا ته نقصان رسولې وی

③ په دنیاکښې به آفتونه دومره زیات وی چه خلق به په ژوند باندې مرګ له ترجیح ورکوی او قبرونوته په کتو به تمنا اوخواهش کوی چه افسوس مونږ په دې قبرونو کښې ښخ شوی وې

**[٥٤٤٦] د حجازپه زمکه کښې د اور لګیدو پیشنګوئی**

> ٥٤٤٦-()[١٠] ١ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ " «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَخْرُجَ نَارٌ مِنْ أَرْضِ الْحِجَازِ ٣ تُضِيءُ أَعْنَاقَ الْإِبِلِ بِبُصْرَى» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چی رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ قیامت به ترهغه وقته پورې نه راځي د څوپوري چې حجاز نه یو اور پرك ونه وهي ٣ چې د بصري د اوښانو ګردنونه (څتونه) به روښانه کړي (بخاري ، و مسلم)

**حل اللغات:**- ① تُضِيءُ: روښانه به کړی. ② بُصْرَىٰ: په شام کښې یو ښار دې.

**تسهيلات:**

**قوله: مِنْ أَرْضِ الْحِجَازِ"**

**دحجاز پیژندګلو:** حجاز دَ جزیرة العرب هغه علاقې ته وئیلی شی په کوم کښې چه مکه اومدینه داخل دی او بُصریٰ دَ شام په زمکه باندې دَ یو ښار نوم دې چه دَ دمشق نه دَ دریو ورځو په فاصله باندې دې.

**دې پیشنګوئی واقع کیدل:** علماؤ لیکلی دی چه په دې حدیث کښې دَ کوم اور بیان راغلې دې دا اور په ۶۵۰هجری کښې ښکاره شوې دې دا اور دَ حجاز دَمینځ نه دَ طوفان او سمندر دَ موجونو په شان اوچتیدو او غرونه صحراګان او ځنګلونه ئې سوزولو سره ایره کول. په هغې کښې دَ تندر دَ ګرز په شان آواز هم وو او په هغې کښې مختلف رنګونه هم وو. دغه اور هم په دغه طوفانی حیثیت سره مدینې منورې پورې راؤ رسیدو مګر دَ مدینې په حدودو کښې یخ شو یعنی دَ مدینې یو څیزئې هم نه سوزولو

**داور څخه د مدینې حفاظت:** دَدغه اور نه دَمدینې منورې خلق ویریدل هغوی په ژړا سره دعاګانې غوښتلې اوصدقات ئې ورکول. په دغه اور باندې پنځوس ورځې مدینه روښانه

---

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الفتن/باب خروج النار (رقم-٧١١٨) ومسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتى تخرج نار من أرض الحجاز (رقم-٤٢ - (٢٩٠٢)

وه دَمدينې خلقو به دَ شپې دَ دې دَ وجې نه کارکولو دَمکې مکرمې خلقو گواهي ورکړه چه دَدې اور دَ رڼا دَ وجې نه مونږ دَ بصرىٰ او شام علاقې روښانه ليدلې وې دا اور دَ نمر نه زيات رڼا ورکونکې وو دَ ورځې به پته نه لگيده چه نمر شته که نه دې اور به کاڼي سوزول مگر ونې ئې نه سوزولې دغه شان په مدينه کښې دننه د حرم په حدودو کښې ئې اثر نه کولو چنانچه که دَ يو کاڼي نيمه حصه به دَمدينې په حرم کښې وه او نيمه به بهر وه نو دې اور به دَ بهر والا حصه سوزوله او دننه والا حصه به ئې پريخودله دَ رسول الله ﷺ روضه مبارکې سره خلقو ژړل چه الله تعالى مهرباني اوکړه اودَ دغه اور مخ دَ آسمان طرف ته تاؤ کړو او خلق محفوظ شو

**قوله أَعْنَاقَ الْإِبِلِ بِبُصْرَىٰ:**

**داعناق الابل څخه مراد:** دَ أعناق الإبل نه مراد دَ بصرىٰ دَ علاقې غرونه دى دَدغه اور دَ ختميدو نه پس په بغداد باندې دَ تاتاريانو حمله اوشوه په کوم سره چه بغداد تباه او برباد شو دا اور ۳ جمادى الثانى ۶۵۰هجرى کښې راښکاره شوې وو او ۲۷ رجب ۶۵۰هجرى پورې ۳۵ ورځې مسلسل جارى وو

**[۵۴۴۷] دقيامت رومبنئ علامت**

۵۴۴۷-()[۱۱] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ نَارٌ تَحْشُرُ النَّاسَ مِنَ الْمَشْرِقِ إِلَى الْمَغْرِبِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] دَ قيامت د علاماتو نه اولنى علامه به هغه اور وي چې خلق به دمشرق نه مغرب طرف ته شړلو سره بوځي

**حل اللغات:** - ① تَحْشُرُ: راجمع کوى به.

**تسهيلات:**

**قوله أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ نَارٌ تَحْشُرُ النَّاسَ مِنَ الْمَشْرِقِ إِلَى الْمَغْرِبِ:**

**ميدان حشرته د جمع کولو دپاره د اور محرکنديدل:** دَ حديث الباب حاصل دا دې چه قيامت ته نيزدې به يو اور راؤځي چه خلق به دَمشرق طرف دَ کورونو نه راؤباسي او دَ مغرب طرف ته به ئې شړي بوځي به ئې دا به واقع کيږي کنى ښکاره خبره ده چه دا اور دَ قيامت دَ غټو علامتونو څخه دَ ټولو نه مخکښې علامت څنگه گرځولې کيدې شى لهذا په حديث الباب کښې دَ تير شوى حديث والا اور مراد نه دې څکه چه حديث الباب کښې دَ کورونو نه راويستونکې اور ذکر دې او دَ دې نه مخکښې حديث کښې دَ کورونو نه راويستونکې اور نه وو

[۱]) اخرجه البخاري تعليقا في کتاب الفتن/باب خروج النار واحمد في المسند:۳/۱۰۸

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵٤٤٨] قیامت ته نزدې د بې برکتی ښکاره کیدل

۵۴۴۸-()[۱۲] عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَتَقَارَبَ الزَّمَانُ فَتَكُونُ السَّنَةُ كَالشَّهْرِ، وَيَكُونُ الشَّهْرُ كَالْجُمُعَةِ، وَتَكُونُ الْجُمُعَةُ كَالْيَوْمِ، وَيَكُونُ الْيَوْمُ كَالسَّاعَةِ، وَتَكُونُ السَّاعَةُ كَالضَّرْمَةِ بِالنَّارِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

حضرت انس ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل قیامت به تر هغه وقته پورې نه راځي د څوپورې چې زمانه نږدې نشي (یعنې د زماني ګردش تیز نشي او ورځ او شپه زر تیریدل شروع نشي او د زماني تیز رفتاري به دې کیفیت او حالت سره وي) چې کال به د میاشتې برابر میاشت به د هفتې برابر هغه به د ورځې برابر ورځ به د یو ساعت برابر شي او یو ساعت به دومره مختصر شي لکه د اور شعله (چې په بوټو او خشاکو) بله شي (یعنې سمدستي بلیدو سره مړه شي)

**حل اللغات:-** ① يَتَقَارَبَ الزَّمَانُ: نزدې به شي زمانه. د زمانې ګردش به تیز شي ② الضَّرْمَةِ: د وښو او خشاکو ګیډۍ چې اور ورته پورې کړې شي او زرترې هیره جوړه شي

**تسهیلات:**

**قوله: لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَتَقَارَبَ الزَّمَانُ:**

**د تقارب الزمان په مفهوم څلور کښې اقوال:** ① یعنی د خلقو عمرونه به کم شي خلق به زر مري او داوږد ژوند خاوندان به نه وي.

② په عمر کښې به بې برکتي پیدا شي هغه کار چې په پخوانۍ زمانه کښې په لږ وخت کښې کیدلو په آخره زمانه کښې به پرې وخت زیات لګی یعنی عوارض او مشکلات به په کښې پیښیږي

③ زه د خپلې تجربې څخه دا وایم چې د تقارب الزمان مطلب دا دې چې هر سړې به په دنیاوی کارونو او فضولیاتو کښې داسې مشغوله وي چې ګوری نو هفته به تیره وی چې ګوری نو میاشت به تیره وی. لکه نن صبا د دې مشاهده ده

④ ورځې شپې به لنډې شی لکه څنګه چې په یو روایت کښې راځی چې کال به د میاشتې په شان شی او میاشت به د هفتې پشان شی او هفته به د ورځې پشان شی او ورځ به د یو ګهړۍ پشان شی اویوه ګړی به د سرې لمبې (د خرمنې بیماری د چې ډیره زر انسان ته لږی) پشان وی

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی تقارب الزمان وقصر الأمل (رقم-۲۳۳۲)

## [۵٤٤۹] د مديني څخه د دار الخلافې منتقل کيدلو پيشنګوئي

۵۴۴۹ - () [۱۳] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَوَالَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ [۲]: بَعَثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِنَغْنَمَ عَلَى أَقْدَامِنَا، [۳] فَرَجَعْنَا فَلَمْ نَغْنَمْ شَيْئًا، وَعَرَفَ الْجَهْدَ فِي وُجُوهِنَا، [۴] فَقَامَ إِلَيْنَا فَقَالَ: "«اللّٰهُمَّ لَا تَكِلْهُمْ إِلَيَّ فَأَضْعُفَ عَنْهُمْ، [۵] وَلَا تَكِلْهُمْ إِلَى أَنْفُسِهِمْ فَيَعْجِزُوا عَنْهَا، [٦] وَلَا تَكِلْهُمْ إِلَى النَّاسِ فَيَسْتَأْثِرُوا عَلَيْهِمْ، [۷] ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ عَلَى رَأْسِي،

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن حواله ﷺ وايي [۲] يو وخت رسول الله ﷺ مونږ دجهد د پاره وليږلو چې مونږ مال غنيمت حاصل کړو (او د هغه په ذريعه خپل ضروريات پوره کړو) زمونږ هغه سفر پياده وو (يعني زمونږ سره د سورلی څه انتظام نه وو څکه مونږ ته دجهاد د پاره پياده روانيدل راتلل) [۳] او هرکله چې مونږ دهغه جهاد نه واپس راغلو نو مونږ سره هيڅ مال غنيمت نه وو (چې د هغه په وجه زمونږ سره غم او افسوس وو) [۴] نو حضور ﷺ زمونږ په مخونو نا اميدي ليدو سره مونږ ته تسلي راکولو او زمونږ په حق کې ددعا کولو د پاره زمونږ په منځ کې اودريدلو (او بطور دعا) يې وفرمايل اې پروردګاره! داخلق ماته مه حواله کوئ داسې نه چې زه د دوئ د خبر ګيری طاقت نه لرم [۵] مه دوئ خپله دوئ ته حواله کړئ څکه چې دوئ به د خپل امورو سرته رسولو نه عاجزه شي [٦] او مه دوئ نورو خلقوته حواله کوئ او د نورو خلقو محتاج يې جوړ نه کړئ څکه چې خلق به د دوئ حاجتونو او ضرورتونو باندې خپل حاجتونه او ضرورتونه مقدم کوي [۷] حضرت عبد الله ابن حواله ﷺ وايي چې دي نه وروسته حضور ﷺ خپل لاس مبارك څما په سر کيخودی

**حل اللغات:** - ① لِنَغْنَمَ: چه مونږ مال غنيمت حاصل کړو. ② لَاتَكِلْهُمْ: مه سپاره دوی. ③ فَأَضْعُفَ: زه به عاجز راشم. ④ فَيَسْتَأْثِرُوا: خلق به ترجيح شروع کړی په دوی باندې،

[۱] ثُمَّ قَالَ: "يَا ابْنَ حَوَالَةَ! إِذَا رَأَيْتَ الْخِلَافَةَ قَدْ نَزَلَتِ الْأَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ، [۲] فَقَدْ دَنَتِ الزَّلَازِلُ وَالْبَلَابِلُ وَالْأُمُورُ الْعِظَامُ، [۳] وَالسَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنَ النَّاسِ مِنْ يَدِي هَذِهِ إِلَى رَأْسِكَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او وي فرمايل اې ابن حواله ﷺ هرکله چې ته وويني چې خلافت ارض مقدس ته رسيدلی دی يعنی د مسلمانانو دار الخلافه مديني نه منتقل کيدو سره ملك شام ته رسيدلي ده [۲] نو پوهه شه چې زلزلي بلبلي او هغه لوی لوی حادثي (چې د هغه تعلق د قيامت سره دی) نزدې رسيدلی دی [۳] او په هغه ورځ به قيامت خلقو ته دومره نزدې وي څرنګه چې څما لاس ستا سرته نزدې دی.

**حل اللغات:** - ⑤ دَنَتْ: رانزدې شوی دی. ⑥ الْبَلَابِلُ: دَ بلبلة جمع ده آفت اومصيبت ته وائی.

[۱]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی الرجل يغزو يلتمس الأجر والغنيمة (رقم-۲۵۳۵)

**تسهيلات:**

**قوله إِذَا رَأَيْتَ الْخِلَافَةَ قَدْ نَزَلَتِ الْأَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ:**

**شام ته د خلافت منتقل کیدل**: يعني کله چه خلافت د مديني نه شام طرف ته منقل شي نوبيا به زلزلې اومصيبتونه راځي اود د بنواميه په دور کښې اوشو ځکه چې حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه د ټول اسلامي مملکت دبل ځا د شراکت څخه بغيراميرجوړ شو اودهغوی مرکز شام وو

طرف ته منتقل شي او خور شي نوبيابه زلزلې شروع شي اوآفات به نازليږی

**[۵٤٥٠] پنځلس ګناهونو په عام کيدو سره دعذابونو راتلل**

٥٤٥٠-(١)[١٣] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «إِذَا اتُّخِذَ الْفَيْءُ دِوَلًا، وَالْأَمَانَةُ مَغْنَمًا، وَالزَّكَاةُ مَغْرَمًا، ③ وَتُعُلِّمَ لِغَيْرِ الدِّينِ، وَأَطَاعَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ، وَعَقَّ أُمَّهُ، وَأَدْنَى صَدِيقَهُ، وَأَقْصَى أَبَاهُ، ④ وَظَهَرَتِ الْأَصْوَاتُ فِي الْمَسَاجِدِ، ⑤ وَسَادَ الْقَبِيلَةَ فَاسِقُهُمْ، وَكَانَ زَعِيمُ الْقَوْمِ أَرْذَلَهُمْ، وَأُكْرِمَ الرَّجُلُ مَخَافَةَ شَرِّهِ،

**ترجمه**: ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل ② هرکله [دا پنځلس [۱۵] نښې اوينئ] چې مال غنيمت دولت وګرځول شئ او د امانت مال مال غنيمت وشميرل شي او زکوة تاوان وګنل شي ③ او علم د دين نه علامه دخه بل غرض د پاره (زده کولي او) خو دلی شي او سړی د ښځې اطاعت شروع کړي او د مور نافرماني کول شروع شي او دوستان نزدې او پلار لرې کول شروع شي ④ او مسجد کښ شور کول شروع شي ⑤ او د قوم او جماعت سرداري د هغه قوم او جماعت د فاسق سړي په لاس شي او د قوم او جماعت سربراه د هغه قوم او جماعت کمينه او رذيل سړی شي او د سړي تعظيم د هغه د شر او فتنې د ويرې نه شروع شي

**حل اللغات**:- ① الْفَيْءُ: بغيرجنګ نه حاصل شوې مال. ② دِوَلًا: دولت. ③ مَغْنَمًا: مال غنيمت. ④ مَغْرَمًا: تاوان. ⑤ عَقَّ: نافرماني کوی. ⑥ أَقْصَى: لرې کړی. ⑦ وَسَادَ: سربراه. مشر. ⑧ زَعِيمُ: مشر. سردار.

① وَظَهَرَتِ الْقَيْنَاتُ وَالْمَعَازِفُ، وَشُرِبَتِ الْخُمُورُ، ② وَلَعَنَ آخِرُ هَذِهِ الْأُمَّةِ أَوَّلَهَا، ③ فَارْتَقِبُوا عِنْدَ ذَلِكَ رِيحًا حَمْرَاءَ وَزَلْزَلَةً وَخَسْفًا وَمَسْخًا وَقَذْفًا ④ وَآيَاتٍ تَتَابَعُ كَنِظَامٍ قُطِعَ سِلْكُهُ فَتَتَابَعَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ① او ډډهول و باجو دور دوره شي او دشرابو څکل شروع شي ② او د دې امت وروستني خلق په مخکينو خلقو باندې بدرد وئيل شروع کړي او په هغوئ لعنت وئيل شروع کړي ③ نو هغه وخت تاسو د دې څيزونو د زر ظاهريدو انتظار کوي د تيزو تند او

---

(١) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی علامة حلول المسخ والخسف (رقم-٢٢١١)

شدیدترین طوفاني سیلی د زلزلي او په زمکه کې د غرق کیدو د شکلونو د مسخ کیدو او د کانو دوریدو ⓭ او د دي څیزونو نه علاوه د قیامت د نورو نښو او علامو انتظار کوي چې دغه شان به پرله پسي واقع کېږي لکه مثلاً د ملغلرو د لړی تار چې وشلیږي او د هغه داني پرله پسي لویږي (ترمذي)

**حل اللغات:**-⑨ الْقَيْنَاتُ: دا د الْقَيْنَة جمع ده، سندرغاړې ته وائي. ⑩ الْمَعَازِفُ: دا جمع د المعزف ده. باجې. ⑪ خَسْفًا: زمکه کښې ښخیدل، ⑫ مَسْخًا: شکلونه ورانیدل، ⑬ قَذْفًا: کانړی وریدل. ⑭ نِظَامٍ: د ملغلرو لړۍ (امیل)، ⑮ سِلْكُهُ: تار دهغې (لړۍ).

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا اتُّخِذَ الْفَيْءُ دُوَلًا:

**مال غنیمت ذاتی مال ګرځول:** دې نه مراد د کافرانو نه حاصلیدونکې مال غنیمت دې کوم چه دَ غازیانو او مجاهدینو حق وی. دارنګ دَ مال غنیمت حقدار دی چه په کوم حالت کښې هم وی په هر حالت شرعی طریقه دَ غنیمت مال تقسیمول واجب دی لهذا دَ حدیث الباب مطلب دا شو چه کله مالدار او منصب دار خپل ځان له دَ فقیرانو په حقوق باندې ترجیح ورکړی او مال غنیمت دَ ذاتی دولت په شان استعمال کړی او فقیران دَ مال غنیمت نه محروم کړی.

**دقومي املاکو حکم:** په مال غنیمت کښې خیانت کول لویه ګناه ده وجه دا ده چې په دې کښې د ټولو مجاهدینو حصه وی. نوچې چا په مال غنیمت کښې خیانت اوکړو نو په ده د ټولو مجاهدینو حقوق د هغوی څخه غصب کړل. او د هغوی په حقوقو کښې ئې په ناجائزه قبضه وکړه عالمانو لیکلی دی چې په سرکاری او قومی املاکو کښې تصرف کول هم په مال غنیمت کښې د خیانت په حکم کښې دی. ځکه چې په سرکاری ملاکو کښې هم د ټول قوم حصه وی. نو چا چې په یوه سرکاری اداره کښې خیانت وکړو نو ده د ټول قوم سره خیانت وکړو. د قیامت په ورځ به دې د کوم کوم کس حق ادا کوی

**قوله:** وَالْأَمَانَةُ مَغْنَمًا:

**امانت غنیمت ګرځول:** یعنی چه کومو خلقو سره امانتونه محفوظ کړې شی هغوی به دغه امانتونو کښې داسې تصرف کوی او په خپله فائده ئې راولی لکه ته به وائې چې دا مال ده ته په غنیمت کښې ملاؤ شوې دې

**دامانت د مفهوم وسعت:** امانت صرف دې ته نه وائی چې محسوس څیزچا سره امانت کیخودې شی او هغه په کښې خیانت وکړی بلکه هره ذمه واری چې یو کس ته حواله کړې شی نو دهغې پوره کول ده فرض جوړیږی ددې وجې کوم کس چې د دولس ګهنټو په مزدوزی باندې په یوه اداره یا محکمه کښې کار کوی نو که په دغه وخت کښې دې خپله

دیوټی اوکار نه پوره کوی نودا هم په امانت کښې خیانت دې دغه شان کوم خلق چې په یوه اداره کښې کار کوی اوحاضری وکړی اودې خپل کار په ایمانداری سره نه کوی نو هم دې دا ګڼړی چې ما وخت ورکړې دې اوحاضری مې کړې ده نو بس ما خپله ذمه واری پوره کړې ده نوداسې خلق هم ددې حدیث مصداق دی

**قوله وَالزَّكَاةُ مَغْرَمًا**

**زکاة تاوان ګڼړل:** اود زکوة مال د تاوان مال ګڼړل شروع کړی ددې مطلب دادی چه زکوة خو ادا کوی مګر عبادت ګڼړلو سره نه بلکه بغیرد زړه نه ټیکس ګڼړلو سره ئی اداکړی لکه چه یو سړې د تاوان او جرمانې دکولو په وخت کښې ډیر بوج ګڼړی

**قوله وَتُعُلِّمَ لِغَيْرِ الدِّينِ**

**دغیر الله دپاره د دین زده کول:** او علم دین به حاصلولې شی د دین خورولو د غرض نه علاوه دپاره یعنی د علم حاصلولو سره د دین خورولو نیت به ئی نه وی بلکه د دنیا ګټلو یا په دنیاوالو باندې فخر کولو دپاره به علم حاصلولې شی چه زمونږ علم یا وعظ مشهور شی

**د امام غزالی د اخلاص واقعه:**

وئیلی شی چې د بغداد په یوه لویه مدرسه کښې ډیر په ګڼړ طالبانو علم حاصلولو پخوا به زمانه کښې د عالمانو ډیر لوئې قدر وو عالمان به په ښه ښه عهدې اومنصبونو باندې مقرر کوو په هغه وخت کښې چې کوم بادشاه وو یوه ورځ ئې خپل هیئت اوشکل شباهت بدل کړلو اود عامو کسانو په جامه کښې مدرسې ته ورغلو، د مختلفو طالبانو ځخه ئې پوښتنه کوله چې ته د څه دپاره علم کوې چا به ورته وئیل زما پلار خطیب دې دې دپاره علم کوم چې د خپل پلار په منصب باندې کینم چا ورته وئیل زما پلار قاضی دې دې دپاره علم کوم چې صبا ته قاضی شم وغیره وغیره غرض دا چې هریو کس چې ورته د خپل علم کوم مقصد بیان کړل نو هغه ټول دنیاوی مقاصد وو د بادشاه اراده پیدا شوه چې دا مدرسه په نوم مدرسه ده نوپه دې د الله تعالی رضا مقصود نه ده ددې بندول پکار دی خو په آخر کښې یو ځوان ته راغلو او تپوس ئې ترې وکړو چې ځوانه د څخه دپاره علم حاصلوې هغه ورته جواب ورکړو علم دې دپاره حاصلولم چې د الله تعالی اود بندګانو حقوق اوپیژنم او الله تعالی او دهغه خوږ پیغمبر راځخه راضی شی په دې اوریدو سره د بادشاه اراده بدله شوه او دا ئې اووئیل چې یو کس هم د الله تعالی د رضا دپاره علم حاصلوی دا هم کافی دې تاسوته پته دا دا ځوان څوک وو دا د نبوی ګلشن د باغ مالیار حضرت امام محمد غزالی رحمه الله وو چې الله تعالې ترې په مستقبل کښې د دین لوئې کار واخستلو

**قوله**: وَأَطَاعَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ:

**د ښځې تابعداري**: دَ سړی دَ ښځې دَ اطاعت کولو مطلب دادې چه خاوند به دَ ښځې غلام جوړ شی دَ ښځې هر خواهش به پوره کوی. دَ دین پرواه به نه کوی اګرچه دَ ښځې په تابعدارئی کښې دَ الله تعالی دَ حکم صریح خلاف ورزی ولې نه وی.

**قوله**: وَعَقَّ أُمَّهُ:

**دمور نافرمانی**: یعنی چه مور ئی دَ کوم څیز حکم ورکوی دَ هغې نافرمانی به کوی اودَ مور زړه به خفه کوی. په حدیث کښې دَ مور ذکر ځکه کړې دې چه دَ اولاد دَپاره چونکه زیات محبت او شفقت لرونکې هم مور وی په دې وجه ئی دَ مور ذکر اوکړو یا دَ دې وجې نه ئی دَ مور ذکر اوکړو چه که چرې دَ پلار خلاف ورزی کوی نووهل به خوری خو مور ئی وهی نه په دې وجه هغې ته زیات خفګان کیږی یا دَ مور ذکر ئی ځکه اوکړو چه هغه صنف نازك ده او صنف نازك ته زیات تکلیف کیږی په دې وجه ئی دَ مور ذکراوکړو

**قوله**: وَأَدْنَى صَدِيقَهُ، وَأَقْصَى أَبَاهُ:

**د دوست عزت د پلار اهانت**: دوستان رانیزدې کولو او دَ پلار لرې کولو مطلب دادې چه یو کس دَ نیك پلار نه نفرت اوکړی او فاسق او عیاش دوستانو سره نیزدیکت اوساتی

**قوله**: وَظَهَرَتِ الْأَصْوَاتُ فِي الْمَسَاجِدِ:

**په جماتونو کښې دنیوی خبرې کول**: چه په جماتونو کښې په زوره زوره دنیاوی خبرې اوکړې شی چه په چغو سورو سره جمات کښې راؤتنبیږی اودَ هغې ادب او احترام پریخودې شی یا په جماتونو کښې جنګ جګړې شروع شی.نن صبا په کلو کښې په اکثروجماتونو کښې خاص کر بوداګان جمات ته په وخت باندې راځی اود جمات څخه ئې حجره جوړه کړې وی حالانکه په جماتونوکښې دنیاوی خبرې کولو څخه نبی ﷺ په سختئ سره منع کړې ده او دا ئې فرمائیلې دی چې تاسو هغه خلقو سره مه کینئ څوک چې په جماتونو کښې خبرې کوی.حضرت عمر رضی الله عنه په خپل دور خلافت کښې د مسجد نبوی څخه بهر یو دوکانچه (اوچت ځائې) جوړه کړې وه کوم صحابو چې به څه خبرې اترې کولې نو په هغه دوکانچه به کیناستل اوخبرې به ئې کولې دننه په مسجد نبوی کښې به ئې خبرې نه کوی.

**قوله**: وَكَانَ زَعِيمُ الْقَوْمِ أَرْذَلَهُمْ

**بدمعاشان اودقوم مشری**: یعنی دَ قوم مشری او واك به داسې سړی ته حواله کړې شی چه بدمعاش لوچر او بې ایمان ذلیل انسان به وی.پخواه به خلقو خپلې فیصلې او جرګې په عالمانو باندې کولې ځکه چې په خلقو کښې د عالمانو قدر وو.اودهغوی د بدعائې

ښځه به ویریدل اونن صبا د جرګو مشران د کلي او علاقې بدمعاشان او خانان وی ځکه چې د عالمانود سترګو ښځه څوک نه شرمیږي اودهغوی د فیصلې ماتولوځه پرواه نه ساتي اوبدمعاشان چې کومه فیصله اوکړي نو جانبین د هغې د ماتولوځخه ویریږي او اکثر داسې کیږي چې د جرګې مشران خرڅیږي چې څوک ورته لالچ ورکړي دهغه په حق کښې فیصله کوی الا ما شاء الله په دې حدیث کښې دې ته اشاره ده

**قوله وَأُكْرِمَ الرَّجُلُ مَخَافَةَ شَرِّهِ**

**د چا د شر څخه د حفاظت دپاره دهغه عزت کول**: د کس عزت به د هغه د فتنې او شر نه د بچ کیدو د وجې نه کیږي خلق به د یو سردار یا طاقتور سړي د ویرې او شر نه د بچ کیدو د وجې د هغه عزت کوی د هغه په مخکښې به د حق خبرې کولو نه ویریږی که نن صب تاسو اوګورئ نو هم هغه وخت دې چې کله بدمعاشان یا بدکرداره سرکاری عهده داران یا د ادارې متکبره افسران راشي نو خلق دهغوی عزت د زړه څخه نه کوی بلکه ددې وجې کوی چې نقصان راته اونه رسوی بالخصوص که ستاسو د سرکاری افسرانو سره واسطه راغلی وی دهغوی ماتحته عمله په ظاهره د هغوی د منصب د وجې عزت کوی ویریږي چې هسې نه نقصان راته اورسوی اوچې پناه شی نو بیا ورپسې ردې بدې وائی

**قوله: وَظَهَرَتِ الْقَيْنَاتُ**:

**د ډمانو زیاتیدل**: ګډیدونکې کنجرې ښځې به راښکاره شی دې نه مراد د هرقسم سندرې ویونکې ښځې دی. دغه شان د باجو والا نه مراد هرقسم سازونه او باجې دی کوم ته چه مزامیر وئیلې شی. نن صبا په هرکور کښې ډم خانه ده ځکه چې د موبائیل دور دې بلکه د هرسړي په جیب کښې سنما ده د نټ په ذریعه چې کوم فلم غواړی کومه ډمه غواړی د هغې ګډا د هغې تصویر ورته ښودلې اوښکاره کولې شی او په معاشره کښې د ډمانو زیات قدر دې په نسبت د نیکانو اوصالحانو .تاسو به کتلی وی چې کله یو ډم یومجلس ته یا څه پروګرام ته لاړ شی نو خلق ورسره تصویرونه اوباسی اوپه دې باندې فخر کوی چې فلانئ ډمې سره ما تصویر ویستې دې اوهغه په خپل بیټک یا حجره کښې لګوی بله عجیبه خبره دا ده چې دغه خلق ځانته ډمان نه وائی بلکه فنکاران وائی بلکه په خپل ډمتوب باندې فخر کوی الله تعالی دې ورته هدایت وکړی

**قوله: وَلَعَنَ آخِرُ هَذِهِ الْأُمَّةِ أَوَّلَهَا**

**دامت اکابرینوته بدرد وئیل**: کله چه ددې امت خلق مخکینو خلقو ته بدې ردې وئیل شروع کړی په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره کول مقصود دی چه دابدی د دې امت خاصیت دې په تیر شوو امتونو کښې ددې بدئ رواج نه وو چنانچه په دې بدئ کښې

روافض، خوارج وغيره شامل دی خوك چه په صحابو باندې طعن او تشنيع كوی حالانكه د صحابه كرامو باره كښې الله تعالى داسې ارشاد فرمائيلي دې ﴿وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ﴾ او په بل آيت كښې دا ارشاد دې ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾

**د شيعه ګانو ګمراهی**: په دې محرم كښې په اول ځل په كراچۍ كښې د شيعه ګانو مردار په ښكاره په حضرت ابو سفيان او حضرت امير معاويه رضی الله عنهما باندې لعنت اووئيل اګرچې زمونږ د ملک عالمانو دې خبيثانو خلاف جلسې اوجلسونه اويستل خوبيا هم د نبی ﷺ د مذكوره پيشنګوئی ښكاره شوه.

**[۵٤٥۱] پنځلس جرمونو راتلو نه پس به مصيبتونه راځی**

بو۵-()[۱۵] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ: رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِذَا فَعَلَتْ أُمَّتِي خَمْسَ عَشْرَةَ خَصْلَةً حَلَّ بِهَا الْبَلَاءُ، [۳] وَعَدَّ هٰذِهِ الْخِصَالَ [۴] وَلَمْ يَذْكُرْ: "تُعُلِّمَ لِغَيْرِ الدِّيْنِ"، [۵] قَالَ: "وَبَرَّ صَدِيْقَهُ وَجَفَا أَبَاهُ"، [۶] وَقَالَ: "وَشُرِبَ الْخَمْرُ، وَلُبِسَ الْحَرِيْرُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] حضرت علي رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هركله چې ځما امت دې پنځلسو خبرو كې (چې د هغه ذكر پورته حديث كې وشو) مبتلا شي نو په هغوئ به (هغه) آفتونه او بلاګاني نازلي شي (كومي چې پورته حديث كې ذكر شوي دي) [۳] بيا حضور ﷺ هغه پنځلس خبري وشميرلي (يعني د هغه خبرو تفصيل يي بيان وفرمايی څرنګه چې پورته حديث كې تير شو) [۴] ليكن حضرت علي رضی الله عنه دې روايت كې دا خبره نه ده نقل كړي چې هركله علم د دين نه علاوه د څه بل غرض د پاره وښودل شي [۵] د دې دواړو حديثونو په الفاظو كې يو فرق دا هم دی چې) حضرت علي رضی الله عنه (دې جملي أدنی صديقه هركله چې سړی خپل دوست ځان ته نزدې كول شروع كړي الخ په ځاي) دا نقل كړی دی چې هركله سړی خپل دوست سره احسان او مروت او خپل پلار سره جور وجفا شروع كی [۶] او هغوئ د (هركله چې شرابو نه څكل شروع شي په ځاي) هركله چې شراب څكل شروع شي (يعني شراب يي د جمع صيغي په ځاي د واحد صيغي سره نقل كړی دی داسې (هركله چې علم د دين نه علاوه يو دويم غرض سره ښودل شروع شي) په ځاي هركله چې وريښمي كپړه اغوستل شروع شي نقل كړی دي. (ترمذی)

**حل اللغات**: - ① حَلَّ: نازلې به شی. ② بَرَّ: احسان او سلوک كول. ③ جَفَا: ظلم، بد سلوكی.

**تسهيلات**:

**نوټ**: د مذكوره جملو وضاحت د پورته حديث نمبر (۵۴۵۰) په تسهيل كښې تيرشوي دي.

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی علامة حلول المسخ والخسف (رقم-۲۲۱۰)

**[۵۴۵۲] دَ امام مهدی د ښکاره کيدو پيشن ګوئي**

۵۴۵۲ - ()[۱۶] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ۲ «لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتَّى يَمْلِكَ الْعَرَبَ ۳ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يُوَاطِئُ اسْمُهُ اسْمِي ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. ۴ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: قَالَ: " لَوْ لَمْ يَبْقَ مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا يَوْمٌ ۵ لَطَوَّلَ اللهُ ذَلِكَ الْيَوْمَ حَتَّى يَبْعَثَ فِيهِ رَجُلًا مِنِّي - أَوْ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يُوَاطِئُ اسْمُهُ اسْمِي وَاسْمُ أَبِيهِ اسْمَ أَبِي ۶ يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا، كَمَا مُلِئَتْ ظُلْمًا وَجَوْرًا» ".

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ دنيا به ترهغه وقته پورې نه ختميږي د څوپورې چې په عربو باندې يو سړی قبضه ونه کړي ۳ چې څما د خاندان نه وي او د هغه نوم به څما په نوم وي (ترمذي ابوداود) ۴ او د ابوداود په يوه روايت کې داسې دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل که دنيا ختميدو کې صرف يوه ورځ هم باقي پاتې شي ۵ نو الله ﷻ به هغه ورځ اوږده کړي ددې پورې چې پروردګار به څما د نسل نه يا دايي وفرمايل څما د اهل بيت نه يو داسې سړی راوليږي چې د هغه نوم به څما په نوم او د هغه د پلار نوم به څما د پلار په نوم وي ۶ او هغه به په مخ د زمکې د عربو زمکه د عدل او انصاف نه ډکه کړي څرنګه چې ددې وخت نه مخکې ستاسو زمکه د ظلم زور نه ډکه وه.

**حل اللغات:** - ① يُوَاطِئُ: يو شان به وی، ② قِسْطًا: انصاف، ③ جَوْرًا: ظلم.

**تسهيلات: قوله: لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا:**

**دعربو په ذکر کولو څلور توجيهات:** ① دَ اهل عربو دَ اشرف او اصل کيدو په وجه ئې د هغوی ذکر کړې شوی دی ګنی اهل عجم هم مراد دی څکه چه کله هغوی دَ عربو بادشاه وی او په کلمه واحده کښې متفق وی او قبضه ئی هم يوه وی نو په اهل عجم باندې به هم دَ هغوی حکومت وی. دَ ام سلمة ﷺ په روايت سره دَ دې تائيد کيږی لفظه ويعمل في الناس بسنة نبيهم ويلقي الاسلام بجرانه في الارض فيلبث سبع سنين ثم يتوفى ويصلي عليه المسلمون (مشکوة)

② ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه ممکن ده دَعربو ذکر دَهغوی دَ غلبې په وجه کړې شوې وی

③ دا دَ باب الاکتفا دَ قبيلې نه دې کقوله سرابيل تقيکم الحر ای الحر والبرد.

④ واضحه قول په دې باره کښې دا دې چه دَ اهل عربو په خاص توګه ذکر په دې وجه سره اوکړې شو چه هغوی ټول به دَ مهدی عليه السلام تابعداری کوی البته اهل عجم به تابعدار نه وی بلکه اختلاف به کوی.

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب المهدي (رقم-٤٢٨٢) والترمذي في كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في المهدي (رقم-٢٢٣٠)وابن ماجه في كتاب الجهاد/باب ذكر الديلم، وفضل قزوين (رقم-٢٧٧٩)واحمد في المسند:١/٣٧٦

**قوله** رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي:

**داهل بيت په مصداق کښې درې اقوال:** ① دَ هغه به په نسب کښې د حضرت امام حسن ﷺ د اولاد څنې وی

② دَ هغه به په نسب کښې دَ حضرت امام حسين ﷺ دَ اولاد څنې وی

③ ممکن دی چه دَ دواړو نسبتونو حامل وی خو دَ پلار دَ طرفه به دَ حضرت حسن ﷺ په اولاد کښې وی او دَ مور دَ طرف نه به دَ حضرت امام حسين ﷺ د اولاد څنې وی

**د دريم قول ترجيحی وجه:** لکه څنګه چه دَ حضرت ابراهيم ﷺ په اولاد ټول انبياء عليهم السلام دَ حضرت اسحاق ﷺ په اولاد کښې دی خو رسول کريم ﷺ دَ حضرت اسمعيل ﷺ په اولاد کښې شو او خاتم انبياء شو دغه شان دَ حضرت امام حسين ﷺ دَ اولاد نه ټول اولياء او صلحاء تيرشوی دی نومناسب ده چه دَ حضرت حسن ﷺ دَ اولاد نه هم يو داسې ولي کيدل پکار دی چه خاتم الاولياء شی (مرقاة)

**قوله** لَطَوَّلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ الْيَوْمَ حَتّٰى يَلِيَ:

**دامام مهدی د ښکاره کيدو يقين:** دې نه مقصد دَ مهدی ﷺ ولايت يقيني کيدل بيانول دی يعنی مهدی ﷺ به خامخا راځی سره دَ دې که الله تعالی هغه يوه ورځ اوږده ولې نه کړی

**قوله** يُوَاطِئُ اسْمُهُ اسْمِي:

**په شيعه ګانو باندې رد:** "واسم أبيه اسم أبي" سره دَ شيعه ګانودَ قول ترديد اوشو هغوی وائی چه مهدی موعود منتظر دَ حسن عسکری ځوئی محمد دې خو په حديث الباب کښې دی چه دَ مهدی نوم محمد اودَ هغه دَ پلار نوم به عبدالله وی

**قوله** يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطًا:

**د قسط اوعدل په ترادف اوتباين کښې اقوال:** څنګه قسط اوعدل دواړه په معنی کښې نيزدې نيزدې دی

② دواړه الفاظ دَ جدا جدا معنې دَ پاره استعمالولې شی دَ قسط نه مراد انصاف اودَ عدل نه مراد په حقوق کښې مساوات او برابری ساتل

**دظلم اوجورپه ترادف اوتباين کښې اقوال:** ① ظلم اوجور دواړه يو شان الفاظ دی

② دَ ظلم نه مراد انصاف غوښتونکو ته دَانصاف نه ملاويدل اودَ جور نه مراد په حقوق کښې دَ مساوات نه ملاويدل دی.

**په دنيا کښې عدالت قائمول:** هغه به دَ خپل تسلط لاندې علاقو کښې اوسيدونکو خلقولره دَ عدل اوانصاف نه ډک کړی او يو سړی سره به بې انصافی او دَعدل خلاف نه کيږی. خودَ حضرت مهدی عليه الرضوان دَ راتګ نه مخکښې به زمکه دَ ظلم نه ډکه شوې وی

### [٥٤٥٣] د امام مهدي نسبي تعلق

٥٤٥٣-(¹)[١٧] [١] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٢] "«الْمَهْدِيُّ مِنْ عِتْرَتِي مِنْ أَوْلَادِ فَاطِمَةَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] بي بي ام سلمه رضي الله عنها وايي ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل [٢] چې مهدي به خما دعترت يعنی د فاطمي رضي الله عنها د اولاد نه وي . (ابو داؤد)

**حل اللغات:-** ① عِتْرَتِ: اولاد

**تسهيلات:**

**قوله:** الْمَهْدِيُّ مِنْ عِتْرَتِي :

**دعترت په مراد کښې اقوال:** ① مشهور قول دادې چه دَعترت نه مراد هغه خلق دی دَ چا دَپاره چه دَ زکوة مال اخستل حرام دی يعنی دَ هاشم اولاد

② دَعترت نه نسل، جماعت او خپلوان مراد دی کمافی الصراح

③ په نهايه کښې ليکلی دی چه عترت عزيز او خپلوانو ته وائی.

④ دَ حضورپاك دَ عترت نه مراد دَ پيغمبر عليه السلام دَ نيکه عبد المطلب اولاد دې راجح دادی چه دَعترت اطلاق دَ حضورپاك په اهل بيت او ازواج مطهراتو باندې کيږی.

بهرحال دَ حديث حاصل دادې چه دَ حضرت مهدی عليه الرضوان نسلی تعلق به دَ حضورپاك سره وی چه دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها دَ اولاد نه به وی او سيد به وی.

### [٥٤٥٤] د امام صورت او سيرت

٥٤٥٤-(²)[١٨] [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«الْمَهْدِيُّ مِنِّي، أَجْلَى الْجَبْهَةِ، أَقْنَى الْأَنْفِ، [٣] يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا، كَمَا مُلِئَتْ ظُلْمًا وَجَوْرًا، [٤] يَمْلِكُ سَبْعَ سِنِينَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] مهدي عليه السلام به خما د اولاد نه وي روښانه او کشاده مخ او دنگي پوزي والا [٣] چې مخ د زمکې به د عدل او انصاف نه ډك کړي څرنگه چې هغه (يعني زمکه) د ظلم وستم نه ډکه وه [٤] هغه مهدي به اووه کاله پورې د زمکي په مخ برسر اقتدار وي . (ابو داؤد)

**حل اللغات:-** ① أَجْلَى: روښانه. ښائسته. ② الْجَبْهَةِ: مخ. ③ أَقْنَى: دنگه. لوړه. ④ جَوْرًا: ظلم

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب المهدی (رقم-٤٢٨٤) وابن ماجه فی کتاب الفتن /باب خروج المهدی (رقم-٤٠٨٦)
²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب المهدی (رقم-٤٢٨٥) واحمد فی المسند:١٧/٣

**تسهيلات:**

**قوله:** الْمَهْدِيُّ مِنِّي.

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① ددې څخه نزديکت مراد دی يعنی امام مهدی ما سره ډير نيزديکت لرونکې دې.

② يعنی امام مهدی زما دَ امت او زما دَ اولاد څخه دې.

**قوله:** أَجْلَى الْجَبْهَةِ أَقْنَى الْأَنْفِ:

روښانه او کولاؤ تندی والا به وی. دَدې نه معلومه شوه چه حضرت مهدی عليه الرضوان به دَ رسول کريم ﷺ په شکل مبارك کښې هم وی.

**قوله:** يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا، كَمَا مُلِئَتْ ظُلْمًا وَجَوْرًا:

**نوټ:** ددې جملې وضاحت وړاندې د مشكاة حديث نمبر(۵۴۵۲) په تسهيل کښې تيرشوې دې

**قوله:** يَمْلِكُ سَبْعَ سِنِينَ:

**په رواياتو کښې تعارض:** په زيربحث حديث کښې دی چې حضرت مهدی عليه الرضوان به دَ اووه کالو پورې په مخ دَ زمکې حکومت کوی بعضې رواياتو کښې اته کاله او بعضې رواياتو کښې دَ نهو کالو ذکر هم دې. دا ښکاره تعارض دې.

**دتعارض جواب:** په نورو رواياتو کښې اګر چې ی راوی څخه د شك الفا منقول وو چونکه "أقل سبع سنين" يقينی وو په دې وجه ئی دا ذکر کړو اودَ شك والا الفاظ منقول دی خو په روايت کښې چې بلاشکه سبع سنين ذکر کړې دې نوهم دا روايت راجح دې.

**[۵٤۵۵] د حضرت مهدي عليه السلام سخاوت**

۵۴۵۵-(¹)[۱۹] ① وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي قِصَّةِ الْمَهْدِيِّ قَالَ: ② "«فَيَجِيءُ إِلَيْهِ رَجُلٌ فَيَقُولُ: يَا مَهْدِيُّ! أَعْطِنِي أَعْطِنِي". ③ قَالَ: "فَيَحْثِي لَهُ فِي ثَوْبِهِ مَا اسْتَطَاعَ أَنْ يَحْمِلَهُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه د حضرت امام مهدي عليه السلام د واقعي په سلسله کې دا هم نقل کوي ② چې حضور ﷺ (د هغه د عدل وانصاف ذکر کولو نه وروسته) دا وفرمايل چې د مهدي د جود وسخاوت به داحالت وي چې هغه ته به يو سړی راشي ورته به وايي چې ماته څه راکړه ماته څه راکړه ③ نو مهدي عليه السلام به هغه ته خپلو دوارو لاسونو د کولو سره دومره ورکړي څومره چې هغه خپله کپړه د کولو سره اوچتولی او وړلی شي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① فَيَحْثِي: لپه او موټی د کولو سره به ئې ورکوی،

¹) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في نزول عيسى ابن مريم عليه السلام (رقم-۲۲۳۳) وابن ماجه في كتاب الفتن/باب خروج المهدي (رقم-۴۰۸۳) واحمد في المسند:۲۱/۳

**تسهيلات: قوله فَيَحْثِي لَهُ فِي ثَوْبِهِ مَا اسْتَطَاعَ أَنْ يَحْمِلَهُ:**

**د امام مهدی سخاوت:** حضرت مهدی علیه الرضوان به سوال کونکی ته د شمیر کولو څخه بغیر ډیر مال ورکوی کوم چه به هغه اوچتولې نه شی او زیات به څکه ورکوی چه ده ته بیا د چا په وړاندې د لاس خورولو ضرورت پیښ نه شی

**د امام مهدی نبی علیه السلام سره په سیرت کښې مشابهت:** ددې حدیث نه معلومه شوه چه حضرت مهدی علیه الرضوان لکه څنګه چه به په شکل او صورت کښې د نبی کریم ﷺ په شان وی هم دغه شان په اخلاق حمیده او اوصاف عالیه کښې به هم د رسول کریم ﷺ په شان وی یو ځل حضورپاك حضرت عباس رضي الله عنه ته هم دومره ورکړه چه هغه پنډ اوچت نه کړې شو

**[٥٤٥٦] د حضرت امام مهدی ظهور او د شام د ابدالو بیعت**

٥٤٥٦-() [٢٠] ١ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ٢ «يَكُونُ اخْتِلَافٌ عِنْدَ مَوْتِ خَلِيفَةٍ، ٣ فَيَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ هَارِبًا إِلَى مَكَّةَ، فَيَأْتِيهِ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ ٤ فَيُخْرِجُونَهُ وَهُوَ كَارِهٌ، فَيُبَايِعُونَهُ بَيْنَ الرُّكْنِ وَالْمَقَامِ، ٥ وَيُبْعَثُ إِلَيْهِ بَعْثٌ مِنَ الشَّامِ، فَيُخْسَفُ بِهِمْ بِالْبَيْدَاءِ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ،

**ترجمه:** ١ او بی بی ام سلمه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ نه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ په آخره زمانه کې) هرکله چې خلیفه (یعني د هغه وخت د حکومت سربراه) وفات شي نو (د دویم سربراه د منتخب کیدو پرسوال باندې به د اصحاب الرائي خلقو په منځ کې) اختلاف او نزاع پیدا شي ٣ په دې دوران کې د اهل مدینه نه به یو سړی (مدینې نه) وتلو سره مکې طرف ته وتښتي ٤ د مکې خلق (چې د هغه سړي مرتبه او حیثیت وپیژني نو) هغه ته به راشي او هغه به د کور نه بهر راوباسي (چې هغه خپل سربراه او حاکم جوړ کړي) هغه سړی که څه هم د فتنې د خوف نه دا منصب قبلول نه خوښوي خو خلق به (منت کولو سره هغه دې ته تیار کړي او) د هغه په لاس به بیعت وکړي دا بیعت به (خانه کعبه کې) د حجر اسود او مقام ابراهیم په منځ کې عمل کی راشي ٥ دې نه وروسته به د هغه په مقابله کې د شام (د بادشاه) د طرف نه یو لښکر را ولیږل شي لیکن هغه لښکر به د مکې او مدینې په منځ کې واقع مقام بیداء کې په زمکه کې غرق شي

**حل اللغات:** - ① هَارِبًا: په تیښته، تختیدل. ② کَارِهٌ: نه به خوښوی. بد به ګڼړی.

١ فَإِذَا رَأَى النَّاسُ ذَلِكَ ٢ أَتَاهُ أَبْدَالُ الشَّامِ، وَعَصَائِبُ أَهْلِ الْعِرَاقِ، فَيُبَايِعُونَهُ، ٣ ثُمَّ يَنْشَأُ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ أَخْوَالُهُ كَلْبٌ، فَيَبْعَثُ إِلَيْهِمْ بَعْثًا فَيَظْهَرُونَ عَلَيْهِمْ، وَذَلِكَ بَعْثُ كَلْبٍ، ٤ وَيَعْمَلُ فِي النَّاسِ بِسُنَّةِ نَبِيِّهِمْ، ٥ وَيُلْقِي الْإِسْلَامُ بِجِرَانِهِ فِي الْأَرْضِ، فَيَلْبَثُ سَبْعَ سِنِينَ، ٦ ثُمَّ يُتَوَفَّى، وَيُصَلِّي عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب المهدی (رقم-٤٢٨٦) واحمد فی المسند: ٦/٣١٦

**ترجمه:** ①او بيا چې خلقوته دا معلومه شي چې د شام لښکر مکې ته رسيدو نه مخکې زمکه کې غرق شوي دي ②نو د ملك شام ابدال او د عراق عصائب به د هغه سړي په خدمت کې ورشي او د هغه په لاس به بيعت وکړي ③بيابه د قريشو نه يو سړى را پاڅي چې د هغه ننهيال (مورګنى) به د قبيله کلب نه وي او هغه به هم د هغه سړي او د هغه د تابعدارو خلاف يولښکر وليږلو (او د خپل ننهيال يعنى قبيله کلب مدد به حاصل کړي) ليکن د دې سړي لښکر به د هغه قريشي په لښکر باندې به غالب راشي ④بيا به هغه سړى د خلقو په منځ کې د هغوئ د پيغمبر (محمد ﷺ) د سنت او د هغوئ د طريقې مطابق (د ملك وملت) نظم ونسق چلوي ⑤او د مسلمانانو دين ته به خپله غاړه کيږدي هغه سړى به اووه کاله پورې قائم او برقرار وي ⑥بيابه په حق ورسيږي (يعني وفات به شي) او مسلمانان به د هغه جنازه وکړي. ابوداود.

**حل اللغات:** -③أَبْدَالُ: دَ بدل جمع ده دَ اولياء الله يو ډلې ته أبدال وائي، ④عَصَائِبُ: نبه اوخوښ کړې شوې مختار او منتخب کړې شوې خلقو ته عصائب وائي. ⑤بَعْثًا: راپورته به شي. اوچت به شي، ⑥أَخْوَالُهُ: د مور دطرفه رشته، مورګنئ رشته، ⑦كَلْبٌ: بنو كلب يوه قبيله ده. ⑧جِرَانِهِ: دَ اوښ دَ ستې وړاندې حصې ته جران وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَكُونُ اخْتِلَافٌ عِنْدَ مَوْتِ خَلِيفَةٍ،

**د خليفه په انتخاب کښې اختلاف:** يعنى دَ يوخليفه دَ انتقال نه پس به دَ بل خليفه په انتخاب کښې اختلاف پيداشي

**قوله:** فَيَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ هَارِبًا إِلَى مَكَّةَ:

**د امام مهدى مکې ته تلل:** نوحضرت مهدى به دَ مدينې نه دَمکې طرف ته دَدې ويرې تختى چه خلق هغه خليفه جوړنه کړى. مګر مکې ته په رسيدو به خلق هغه اوپيژنى اودَ طواف دوران کښې دَ حجر اسود او مقام ابراهيم په مينځ کښې به دَهغوى په لاس باندې دَ خلافت بيعت اوکړى.

**قوله:** وَيُبْعَثُ إِلَيْهِ بَعْثٌ مِنَ الشَّامِ، فَيُخْسَفُ بِهِمْ بِالْبَيْدَاءِ:

**د سفيانى لښکر خسف کيدل:** بيابه دَهغه په مقابله کښې دَ سفيانى لښکردَ شام نه مکې طرف ته راروان شى مګر مقام بيداء، چه مکې سره نيزدې دا ټول به هلاك شى. بيا به دَ شام ابدال اودَ عراق عابدان دَ بيعت دَ پاره راځى

**قوله:** أَتَاهُ أَبْدَالُ الشَّامِ، وَعَصَائِبُ أَهْلِ الْعِرَاقِ،

**د ابدالو جماعتونه:** دا به په شام کښې وى لکه څنګه چه عصائب عراق کښې او نجباء په مصرکښې وى په دنياکښې ابدال په هروخت او هره زمانه کښې وى

① په دوی کښې یو جماعت ۳۱۳ کسانو باندې مشتمل وی
② یو جماعت په ۴۰ کسانو باندې مشتمل وی
③ یو جماعت په اووه کسانو باندې مشتمل وی
④ یو جماعت په دریو کسانو باندې مشتمل وی.

**د ابدالو روحانی ترقی:** ①کله چه د دریو کسانو د جماعت نه څوك مړشی نو د اووه کسانو والا جماعت کښې مشر ترقی کولو سره د دریو جماعت ته راځی
② دغه شان چه څوك د اووه جماعت نه مړکیږی نو د ۴۰ والا د جماعت نه یو سړې دیخوا راشی
③ کله چه د ۴۰ والا نه سړې مړکیږی نو د ۳۱۳ د جماعت نه یو سړې دیخوا راشی
④ او که د ۳۱۳ نه څوك مړشی نو په معاشره کښې چه کوم سړې صالح او د ټولو نه زیات نیك وی هغه په ۳۱۳ کښې شاملولې شی دې د پاره چه په تعداد کښې کمې رانه شی

**د ابدالو شمار:** په دې کښې د څلویښتو ابدال مرکزی مقام شام دې باقی کسان د دنیا په مختلفو لویو ښارونو کښې یو یو تعینات دې چه د هغه ښار خدمت او کړی د دې خلقو یو پټ نظام دې د سترګو نه غائب دې په کال کښې یو ځل په حجاز مقدس کښې د هغوی یو اجتماع وی. بهرحال دا څه چه لیکلې شوی دی دا ترتیب څه منصوصی یا څه لازمی نه دې. د صوفیاء کرامو په نیز د ابدالو هم دغه شان یو پټ نظام قائم دې ابدال د رجال الغیب نه دی کوم حضرات چه د دوی د وجود اقرار کوی په هغې کښې هیڅ مضائقه نشته دې مګر د هغوی باره کښې داسې عقیده لرل جائز نه ده کومه چه توحید سره متصادم وی داکوم څه چه دلته لیکلې شوی دی د دې نه ډیرزیات ملاعلی قاری رحمه الله مرقات ج۹ص ۳۵۴ باندې لیکلی دی.

**دابدالو درجې ته د رسیدو دعا:** امام غزالی رحمه الله احیاء العلوم کښې لیکلی دی چه کوم سړې هره ورځ درې ځل دا دعا وائی هغه به د ابدالو درجې ته رسیږی دعا دا ده «اللهم اغفر لأمة محمد اللهم ارحم أمة محمد اللهم تجاوز عن أمة محمد ﷺ».

**توله:** ثُمَّ يَنْشَأُ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ أَخْوَالُهُ كَلْبٌ،

**د رجل څخه مراد:** دې نه مراد د بنو کلب خوریئی دې دا سړې به د سفیانی نه مخکښې خپل لښکر د مهدی په مقابله کښې روان کړی مګر هغوی به ماتې خوری.

**توله:** وَيُلْقِي الْإِسْلَامُ بِجِرَانِهِ فِي الْأَرْضِ،:

**د مذکوره جملې وضاحت:** اوښ چه کله ستړې شی نو هم دغه حصه په زمکه باندې خوروی په کوم سره چه هغه ته ډیر آرام ملاویږی دلته د اسلام د استقرار او اطمینان او استحکام او ثبات طرف ته اشاره کړې شوې ده.

**[٥٤٥٧] د امام مهدي عدالت او انصاف**

٥٤٥٧-()[٢١] ⑴وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ذَكَرَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ⑵«بَلَاءً يُصِيبُ هَذِهِ الْأُمَّةَ، ⑶حَتَّى لَا يَجِدَ الرَّجُلُ مَلْجَأً يَلْجَأُ إِلَيْهِ مِنَ الظُّلْمِ، ⑷فَيَبْعَثُ اللهُ رَجُلًا مِنْ عِتْرَتِي وَأَهْلِ بَيْتِي، ⑸فَيَمْلَأُ بِهِ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا كَمَا مُلِئَتْ ظُلْمًا وَجَوْرًا، ⑹يَرْضَى عَنْهُ سَاكِنُ السَّمَاءِ وَسَاكِنُ الْأَرْضِ،

**ترجمه:** ⑴او حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه وايي ⑵يوه ورځ رسول الله ﷺ (د انسان يو سخت مصيبت او پريشانيو کې مبتلا کونکی) د يوي بلا او آفت ذکر وکی چې دا امت به راګير کړي ⑶ددي پورې چې هيڅ سړي ته به داسې پناه ګاه نه حاصليږي چې چيرته هغه (د هغه آفت او بلا په صورت کې ښکاره کيدونکي) ظلم او ستم نه پناه حاصله شي ⑷بيا (هرکله چې د ظلم وستم او نا انصافۍ هغه (دور خپل حد پار کړي نو) الله ﷻ به خپل اولاد او خپل اهلبيت نه يو سړی (په عدل وانصاف علم او ناداني کې به يکتاوي او د مهدي لقب سره به ملقب وي امامت او د هدايت منصب سره مشرف کولو سره دي دنيا ته به يي راوليږي ⑸هغه سړی به زمکه د عدل او انصاف نه داسې ډکه کړي څرنګه چې هغه د ظلم او ستم نه ډکه وه ⑹هغه نه به آسمان والا هم خوشحاله وي (يعني فرشتې او د انبياوو روحونه) او د ټولي زمکې اوسيدونکي هم راضي او مطمئن وي که هغوئ هرجنس او نوم سره تعلق لري

**حل اللغات:-** ⑴مَلْجَأً: ځائ دپناه، لار دخلاصی، ⑵عِتْرَتِي: اهل وعيال زما. ⑶قِسْطًا: انصاف.

⑴لَا تَدَعُ السَّمَاءُ مِنْ قَطْرِهَا شَيْئًا إِلَّا صَبَّتْهُ مِدْرَارًا، ⑵وَلَا تَدَعُ الْأَرْضُ مِنْ نَبَاتِهَا شَيْئًا إِلَّا أَخْرَجَتْهُ حَتَّى يَتَمَنَّى الْأَحْيَاءُ الْأَمْوَاتَ، ⑶يَعِيشُ فِي ذَلِكَ سَبْعَ سِنِينَ أَوْ ثَمَانِيَ سِنِينَ أَوْ تِسْعَ سِنِينَ» ". رَوَاهُ الْحَاكِمُ فِي مُسْتَدْرَكِهِ وَقَالَ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ⑴ددي پورې چې د جنګل حيوان او د اوبو ماهيان به هم آسمان به د خپل باران د قطرو نه څه باقي پريښودلو بغير اوبه اوري ⑵او زمکه به خپلي زرغوني نه څه باقي پريښودلو بغير هرڅه زرغونه کړي ددي پورې چې ژوندي خلق به د مُرده ګانو ارزو کوي ⑶هغه سړی (يعني مهدي) به هغه خوشحالۍ او کامرانۍ سره اووه کاله يا اته يا نه کاله ژوندی وي

**حل اللغات:-** ⑷قَطْر: باران. ⑸صَبَّتْهُ: راتوي به کړي. يعنی اوبه وربږي ⑹مِدْرَارًا: په شيبو شيبو. يعني ډير

**تسهيلات: نوټ:** د حديث د باقي جملو وضاحت وړاندې احاديثو کښې شوې دې خو څه نوې جملې دي د هغې تشريح لاندې ذکرکولی شي.

[1]) اخرجه احمد في المسند: ۳۷/۳

**قوله. يَرْضَى عَنْهُ سَاكِنُ السَّمَاءِ وَسَاكِنُ الْأَرْضِ**

**د امام مهدي څخه د ځمکې اوآسماني مخلوق خوشحاله کيدل**: د امام مهدي عليه الرضوان نه به د دنيا خلق هم خوشحال وی او د آسمان فرښتې هم ځکه چه هغه به سلطان عادل وی او ولی کامل هم د سلطان عادل نه د ځمکې والا خوشحال وی او د ولی کامل نه د آسمان والا خوشحال وی

**قوله لَا تَدَعُ السَّمَاءُ مِنْ قَطْرِهَا شَيْئًا إِلَّا صَبَّتْهُ مِدْرَارًا،**

**دامام مهدي په زمانه کښې د ځمکې اوآسمان برکتونه**: د حضرت مهدي عليه الرضوان په زمانه کښې به د خير او برکت داحال وی چه باران به د وخت د ضرورت مطابق کيږي زميندارې پيداوار او د ځمکې نه حاصليدونکې څيزونه به ډير زيات وی او دغه شان به هرطرف د آرام سکون او راحت وی.

**قوله: حَتَّى يَتَمَنَّى الْأَحْيَاءُ الْأَمْوَاتَ**

**په مذکوره جمله کښې دوه ترکيبونه اودهريومفهوم**: ① علامه توريشتي رحمه الله فرمائيلى دى چې «الأحياء» د فاعليت په وجه مرفوع دې او په کلام کښې حذف دې اصل عبارت داسې دې «يتمنون حياة الأموات» يعنې دوی به د مړو د ژوند تمنا کوی چې کاش هغوی هم ژوندي وې اودا د خير اوبرکت زمانه ئې ليدلې وې

② بعضې عالمانو فرمائيلى دى چې «الأحياء» منصوب دې د باب افعال څخه دې او د «يتمنى» فاعل اموات دى په دې صورت کښې به مطلب دا شی که مړو ته دامام مهدي د خير اوبرکت د زمانې خبراوشی نو مړی به تمنا وکړی چې کاش مونږ هم د امام مهدي په زمانه کښې ژوندي وې اوددې څخه وراندې مړه شوې نه وې چې دا د خيراوبرکت زمانه مو په خپلو سترګو ليدلې وې

**[۵۴۵۸] د منصور د ظهور او دهغه د راتلو هدايت**

٥٤٥٨-( )[۳۳] ① وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «يَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ وَرَاءِ النَّهْرِ يُقَالُ لَهُ: الْحَارِثُ، حَرَّاثٌ، ③ عَلَى مُقَدِّمَتِهِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ: مَنْصُورٌ، ④ يُوَطِّنُ أَوْ يُمَكِّنُ لِآلِ مُحَمَّدٍ كَمَا مَكَّنَتْ قُرَيْشٌ لِرَسُولِ اللَّهِ، ⑤ وَجَبَ عَلَى كُلِّ مُؤْمِنٍ نَصْرُهُ - أَوْ قَالَ: إِجَابَتُهُ» - ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ① او حضرت علي کرم الله وجهه وايي چې حضور ﷺ وفرمايل ② د ماوراء النهر په يو نهر کې به يو پاك بازو صالح سړی ښکاره شي چې د هغه نوم به حارث حراث وي ③ د هغه د لښکر مخکنی حصه باندې به يو سړی وي چې د هغه نوم به منصور وي ④ هغه حارث به د محمد د اولاد ځاي يا ټيکاونه ورکړي څرنګه چې د الله ﷻ رسول الله ﷺ

) اخرجه ابوداود في السنن كتاب المهدي (رقم-۴۲۹۰)

قريش خلقو ته تيكاونه وركړي وه ⑤نو هرمسلمان باندې به واجب وي چې د هغه سړي مدد او تائيد وكړي يا دايي وفرمايل چې هرمسلمان باندې به واجب وي چې هغه سړی قبول كړي.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنْ وَرَاءِ النَّهْرِ:

**د وراء النهر څخه مراد:** وَرَاءِ النَّهْرِ"دَ آمو درياب ته نهر وئيلې شوې دې اودې نه شاته چه كومې علاقې دی هغې ته وراء النهر وئيلې شوې دې. داعلاقې بخارا اوسمرقند وغيره باندې مشتمل دی.

**قوله:** يُقَالُ لَهُ: الْحَارِثُ، حَرَّاثٌ،

**دامام مهدی مددگاران:** هم دَدې علاقونه به يو سړې راؤځی دکوم نوم چه به حارث حراث وی. دَهغه دَ لښكرمخې ته به يو كمانډر مقرر وی دكوم نوم چه به منصور وی داسړې به امام مهدی ته تول وسائل وركوی اوهرقسم حمايت به ئې كوی لكه څنگه چه دَ قريشو بعضې اهم كسانو دَحضورپاك تائيد اوحمايت كړې وو. بهرحال حارث اومنصور دواړه به دَ حضرت مهدی پوره حمايت كوی اوجنگی صلاحيتونه به په كار راولی. دا سړی به دَ خراسان نه لښكر اخلی راځی به. دَ خراسان اطلاق په افغانستان باندې هم كيږی.

**[٥٤٥٩] درندگان به دسړو سره خبرې كوی**

٥٤٥٩-()[٢٣] ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②" «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُكَلِّمَ السِّبَاعُ الْإِنْسَ، ③وَحَتَّى تُكَلِّمَ الرَّجُلَ عَذَبَةُ سَوْطِهِ، وَشِرَاكُ نَعْلِهِ، ④وَتُخْبِرَهُ فَخِذُهُ بِمَا أَحْدَثَ أَهْلُهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوسعيد خدري ﷺ وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل ②په هغه ذات قسم چې د هغه په لاس كې ځما ساه ده قيامت به دهغی پورې نه راځي د څوپوري چې درندگان دسړو سره كلام ونه كړي ③او د څوپوري چې د سړی د كوړي (چابك) څونډی او د هغه د پڼي تسمه د هغه سره خبري شروع نه كړي ④او دانه بلكه د انسان (پتون) ورونه هغه ته دا ونبايي چې د هغه اهل وعيال د هغه غير موجودگی كې كوم نوی كار او كومه نوي خبره كړي ده . (ترمذي)

**حل اللغات:**- ①عَذَبَةُ: څونډې، ②سَوْطِهِ: چابک، ③شِرَاكُ: تسمه، وندنې.

---

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كلام السباع (رقم-٢١٨١) واحمد فی المسند:٨٤/٣

**تسهيلات:**

**قوله:** حَتّٰى تُكَلِّمَ السِّبَاعُ

**د ځناورو په خبرو کولو کښې دوه اقوال:** ① د اروايت په حقيقت باندې محمول دې کوم چه دَ دې زمانې دَ ترقئى په دور کښې ناممکن نه دى چه داسې قسم آلات به پيدا شى او ځناور به هم خبرې کولې شى.

② دې څخه مراد دادى چه ځناور به هم خبرې کوى او که سړې په هرځائ کښې وى دَ خپلو بچو خير خبر به معلومولې شى لکه زمونږ په دې زمانه کښې ريډيو، ټيلى فون وائرليس اوموبائل اودې نه علاوه نور آلات ايجاد شوى دى ټول عالم په يو لوښى کښې کيخودې شوې معلوميږى نودا علامت د قيامت متحقق کيدونکى ښکارى.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۵٤٦۰] دَ دويمې هجرى صدى څخه دقيامت د علاماتو شروع کيدل

۵٤٦۰-()[۲۳] ① عَنْ أَبِى قَتَادَةَ -رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«الْآيَاتُ بَعْدَ الْمِائَتَيْنِ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوقتاده ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② نښې به دوه سوه (۲۰۰) کاله وروسته ښکاره کېږي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① الْآيَاتُ: نښې، علامات (دقيامت).

**تسهيلات:**

**قوله:** بَعْدَ الْمِائَتَيْنِ"

**د دوو سوو کلونو څخه روسته دقيامت علامات شروع کيدل:** يعنى دَ قيامت علامات به دوه سوا کاله پس شروع کيږى. په دې حديث کښې اول خبره دَ پوهيدلو داده چه دا دوه سوه کاله به کله نه شميرلې کيږى؟

**د دوو سوو کلونو شروع کيدو کښې درې اقوال:** ① دَ حضورپاك دَ هجرت دَ وخت نه به شميرلې کيږى.

② دَحضورپاك دَ وفات نه به دا کال شميرلې کيږى.

③ د کوم وخت اسلام ښه روښانه شوې وو دَهغه وخت نه به دا کالونه شميرلې کيږى.

**د قيامت دنښو ښکاره کيدو په مفهوم کښې اقوال:** ① په حديث کښې المأتين کښې الف لام دَ عهد دَپاره دې مراد هغه دوه صدئى دى چه دَ زرو کالونه پس دى. لکه چه په دې حديث

[1] ) اخر جه ابن ماجه فى السنن كتاب الفتن /باب الآيات (رقم-۴۰۵۷)

کښې خودلې کیږي چه دولس سوا کالو پورې به دَقیامت واړه علامات مکمل شي دې نه پس به لوئی علامات ښکاره کیږي چنانچه نن صبا واړه علامات مکمل شوی دی اوس د لویو علاماتو انتظاردې

② دَ قیامت واړ نخښونه په لویه پیمانه باندې به دوه سوو کالونه پس شروع کیږي لکه چه په دې حدیث کښې دَمسلسل او یو بل پسې دَعلاماتوښکاره کیدو خبره ده سره دَدې چه واړه علامات دَ حضورپاك دَ وخت نه څه لږ ډیر شروع شوی وو.

**[٥٤٦١]دَمهدی دلښکر د جنډې(بیرغ) رنګ**

| ۳-() [٢٥] ① وَعَنْ ثَوْبَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «إِذَا رَأَيْتُمُ الرَّايَاتِ السُّودَ قَدْ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ خُرَاسَانَ فَأْتُوهَا ; ③ فَإِنَّ فِيهَا خَلِيفَةَ اللَّهِ الْمَهْدِيَّ» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ). |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت ثوبان رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هرکله چې تاسو د خراسان جانب نه توري جنډې راتلونکې ووینی نو هغه طرف ته متوجه شئ ③ ځکه چې په هغه کې به د الله خلیفه (مهدي) وي دا روایت امام احمد او دلائل النبوة کې بیهقي رحمه الله نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ① الرَّايَاتِ: جهنډې، ② السُّودَ: تورې،

**تسهیلات:**

**قوله: الرَّايَاتِ السُّودَ"**

دَتورو جهنډونه دَحارث اومنصور لښکرې مراد دی دَهغوی جهنډې به تورې وی.

**په سوات کښې د اسلامی انقلاب تحریک:** زمونږ د سوات په علاقه کښې د مولانا صوفی محمد په قیادت کښې د اسلامی قانون د نفاذ دپاره یوتحریک شروع شوې وو.دوی په جهاد افغانستان کښې هم حصه اخستې وه کوم وخت چې امریکې د افغانستان د طالبانوڅخه د اسامه بن لادن حواله کولو مطالبه کړې وه خو طالبانوانکار کړې وو د هغې په نتیجه کښې امریکې په افغانستان حمله کړې وه. د حملې کولو څخه وړاندې دې صوفی محمد صاحب څه مجاهدین افغانستان ته لیږلی وو. په هغوی کښې زیات هلته شهیدان شول.ددې واقعې ذکر کولوڅخه مې مقصد دا وو چې د دې تحریک دوه جنډې وې یوه توره وه اوبله سپینه وه.دوی هم په دې غرض باندې د خپلې جنډې رنګ تور کرځولې وو. چې په حدیث کښې دخراسان څخه د توررنګ جنډو پیشنګوئی شوې ده.

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم باب (رقم-۲۲۶۹) وابن ماجه فی کتاب الفتن /باب خروج المهدی (رقم-٤٠٨٤) واحمد فی المسند: ۵۱۶/۶

**قوله:** فَإِنَّ فِيهَا خَلِيفَةَ اللهِ الْمَهْدِيَّ:

**اشکال:** دَ حضرت مهدي ظهور خو به په حرمينو شريفينو کښې کيږي په خراسان کښې دَهغې څه کار دې؟

**دَاشکال جوابونه:** ① دَدې لښکر حرم مکه ته دَ رسيدو په وخت به حضرت مهدي دَهغوي دَ استقبال دَپاره بهر راوتلې وي نو په واپسئ کښې به هغه په دې لښکر کښې وي.

② دلته به مجاز اخستې شوې دې يعنې په دې لښکر کې به دَمهدي نصرت او امداد وي.

③ دَمهدي اطلاق دَ يو هدايت موندونکي مسلمان ليډر باندې شوې دې په لغوي توګه هر هدايت يافته مؤمن مهدي دې نو لکه چه منصور ته مهدي ونيلې شوې دې مهدي مشهور مرادنه دې.

**[٥٤٦٢] دامام مهدي نسبي تعلق**

٥٤٦٢-()[٣٦] ① وَعَنْ أَبِي إِسْحَاقَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ عَلِيٌّ، وَنَظَرَ إِلَى ابْنِهِ الْحَسَنِ، قَالَ ②: إِنَّ ابْنِي هَذَا سَيِّدٌ كَمَا سَمَّاهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ وَسَيَخْرُجُ مِنْ صُلْبِهِ رَجُلٌ يُسَمَّى بِاسْمِ نَبِيِّكُمْ، ④ يُشْبِهُهُ فِي الْخُلُقِ، وَلَا يُشْبِهُهُ فِي الْخَلْقِ، - ⑤ ثُمَّ ذَكَرَ قِصَّةً - يَمْلَأُ الْأَرْضَ عَدْلًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَلَمْ يَذْكُرِ الْقِصَّةَ.[1]

**ترجمه:** ① او ابو اسحاق وايي چې يوه ورځ حضرت علي کرم الله وجهه خپل زوی امام حسن رضي الله عنه طرف ته کتلو سره اوويل ② څما دا زوی سردار دي څرنګه چې رسول الله ﷺ د ده په باره کې وفرمايل چې دي سردار دی ③ دير نزدې د ده د پشت (ملا) نه به يو سړی پيدا کيږي چې د هغه نوم به ستاسو د نبي په نوم وي ④ او خوی ، اخلاق به يې د نبي ﷺ په شان وی لکه سيرت به يې د نبي ﷺ په څير وی ولی صورت او شکل به يې د نبي ﷺ په صورت نه وي ⑤ بيا يې دزمکی د عدل نه دډکولو قصه يې ياده کړه .

**تسهيلات:**

**قوله:** وَسَيَخْرُجُ مِنْ صُلْبِهِ رَجُلٌ يُسَمَّى بِاسْمِ نَبِيِّكُمْ:

**دامام مهدي حسني کيدل:** يعنې حضرت مهدي به حسني وي حسيني به نه وي که چرته حسيني نسبت دې نو هغه دَ فاطمه رضي الله عنها دَ وجې نه دې ګنې هغوی به دَ حضرت حسن رضي الله عنه دَ اولاد نه وي لکه څنګه چه په دې روايت کښې دی.

**دشيعه ګانو ترديد:** دَ شيعه ګانو هغه عقيده غلطه ګرځي په کوم کښې چه هغوی وائي مهدي، محمد بن حسن عسکري دې چه دې وخت کښې په غار کښې موجود دې او په خپل وخت باندې به ښکاره کيږي.

---

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب المهدی (رقم-٤٢٩٠)

## [٥٤٦٢] قيامت ته نږدې د ملخانو ختميدل

٥٤٦٢-(١) [٢٧] [١] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ [٢]: فُقِدَ الْجَرَادُ فِي سَنَةٍ مِنْ سِنِي عُمَرَ الَّتِي تُوُفِّيَ فِيهَا [٣] فَاهْتَمَّ بِذَلِكَ هَمًّا شَدِيدًا، [٤] فَبَعَثَ إِلَى الْيَمَنِ رَاكِبًا، وَرَاكِبًا إِلَى الْعِرَاقِ، وَرَاكِبًا إِلَى الشَّامِ، [٥] يَسْأَلُ عَنِ الْجَرَادِ، هَلْ أُرِيَ مِنْهُ شَيْئًا، فَأَتَاهُ الرَّاكِبُ الَّذِي مِنْ قِبَلِ الْيَمَنِ بِقَبْضَةٍ [٦] فَنَثَرَهَا بَيْنَ يَدَيْهِ، [٧] فَلَمَّا رَآهَا عُمَرُ كَبَّرَ،

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر ابن عبد الله ﷺ وايي [٢] په کوم کال چې حضرت عمر فاروق ﷺ وفات شوي دي د هغه کال ذکر دی ، چې ملخان کم شوه (يعني د خلافت عمر په آخري کال مدينه او د هغه په شاوخوا کې ملخان پيدا نه شوه) [٣] حضرت عمر ﷺ دا په خاص طور سره محسوس کړه او د ملخانو نه راتلو سره سخت غمجن او متفکر شو (چې چيرته د ملخانو مکمله خاتمه خو نه ده شوی) [٤] بيا هغوئ يو سواري يمن طرف ته او يو سواري عراق طرف ته او يو سواري شام طرف ته وليږی [٥] چې د خلقو نه پوښتنه وکړي چې آيا يو سړی چيرته څه ملخان ليدلي دي يا نه؟ نو کوم سوار چې يمن طرف ته ليږل شوی وو هغه يو موټ ملخانو سره حضرت عمر ﷺ ته راغې [٦] او د هغوئ مخکې يې کيښودله [٧] حضرت عمر ﷺ چې ملخان وليدل نو د خوشحالي نه يې د الله اکبر نعره يې بلنده کړه

**حل اللغات:**- ① فُقِدَ: ورک شو، ختم شو، ② الْجَرَادُ: ملخان، ③ هَمًّا: غمجن، فکرمند، ④ قَبْضَة: موټې، لپه، ⑤ نَثَرَهَا: اوئې شيندل، پريخودل،

[١] وَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ [٢]: "«إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ خَلَقَ أَلْفَ أُمَّةٍ، سِتُّمِائَةٍ مِنْهَا فِي الْبَحْرِ، وَأَرْبَعُمِائَةٍ فِي الْبَرِّ [٣] فَإِنَّ أَوَّلَ هَلَاكِ هَذِهِ الْأُمَّةِ الْجَرَادُ، فَإِذَا هَلَكَ الْجَرَادُ [٤] تَتَابَعَتِ الْأُمَمُ كَنِظَامِ السِّلْكِ»". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [١] بيا يې وفرمايل زه د ملخانو د مکمل خاتمې د خوف نه ځکه متفکر او پريشانه شوی وم چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي [٢] الله عز وجل د حيواناتو هزار (١٠٠٠) قسمه پيدا کړی دی په هغه کې شپږ سوه په درياب کې دي (يعني بحري حيوانات) او څلور سوه په وچه کې دي [٣] او هرکله چې قيامت په راتلوکي شي نو په هغوئ کې به د ټولو نه مخکې ملخان هلاك شي او هرکله چې ملخان هلاك شي نو بيا د حيواناتو نور قسمونه به همدغه شان يو بل پسې هلاکيدل شروع شي [٤] څرنګه چې د هميل د تار په شليدو لو ټول پيول شوی ملغلری يو بل پسی په زمکه ولويږي د اروايت بيهقي ﷺ په شعب الايمان کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:**- ⑥ نِظَامِ: د ملغلرو لړئ (اميل)، ⑦ السِّلْكِ: تار (د لړئ)،

**تسهيلات:** **نوټ:** د ترجمې او اضافي قيوداتو څخه د حديث مفهوم ښکاره دي.

[1]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ١١٣٢

# [۳] بَابُ الْعَلَامَاتِ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ وَذِكْرِ الدَّجَّالِ]

## دَ قيامت نه مخکې دقيامت د نښواوذَ خروج دجال بيان

**خلاصة الباب**

**فيه ثلاثون حديثاً مشتملة على ثلث مسائل:**

① عدد العلامات ثلاث عشربين يدى الساعة ۱، ۲ ، ۴، ۵.

② ذكر الدجال وعلاماته: ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰ ،۱۱، ۱۲، ۱۳ ، ۱۴ ، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰ ،۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۳۰.

③ ذكرعيسى عليه السلام وصفته: ۱۲، ۲۰.

**د علامات کبری ذکر:** دې باب کښې دَعلاماتو نه دَ قيامت هغه علامات مراد دی کوم چه نونی علامات دی په دې کښې خروج دَ دجال هم داخل دې دَدې جدا ذکرکولوضرورت نه وو مگر دَدې دَ شهرت دَ وجې نه تخصيص بعدالتعميم په توګه اهتمام سره جدا ذکرکړې شوې دې.

وس دَدې غټوعلامتونو دَ واقع کيدلو ترتيب داشان دې. ① ظهورمهدی ② خروج دجال ③ نزول عيسى عليه السلام ④ خروج ياجوج ماجوج ⑤ خروج دابة الارض ⑥ طلوع شمس من المغرب بعضې رواياتوکښې داعلامات په ترتيب سره ذکردی مگر بعضو کښې ترتيب سره ذکر نه دی.

**د دجال لغوی معنی:** دجال" دَ دجل څخه دې دَمبالغې صيغه ده چه دَ دهوکه باز او فرادی په معنی کښې دې.

**دجال سره د مسيح لګولووجه:** دجال سره لفظ مسيح لګيدلې دې څکه چې دې به ممسوح لعين وی يا پوره دنيا به مسح کوی

**دعيسى عليه السلام سره د مسيح لګولووجه:** دَ حضرت عيسى عليه السلام نوم سره هم دَمسيح لفظ لګيدلې دې څکه حضرت عيسى عليه السلام به په بيمارانوباندې لاس راښکلو نوبيمار به نيک کيدو په دې وجد هغه ته مسيح اووئيلې شو

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٥٤٦٤] دَ قيامت نه مخکښې دَ قيامت لس علامات**

۵۴۶۴-(۱)[۱] ① عَنْ حُذَيْفَةَ بْنِ أَسِيدٍ الْغِفَارِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ ②: «اطَّلَعَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب فى الآيات التى تكون قبل الساعة (رقم-۳۹ - (۲۹۰۱) وابوداود فى كتاب الترجل /باب أمارات الساعة (رقم-۴۳۱۱) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الخسف (رقم-۲۱۸۳)

عَلَيْنَا وَنَحْنُ نَتَذَاكَرُ. [۳] فَقَالَ: "مَا تَذَاكَرُونَ؟". [۴] قَالُوا: نَذْكُرُ السَّاعَةَ. قَالَ: "إِنَّهَا لَنْ تَقُومَ حَتَّى تَرَوْا قَبْلَهَا عَشْرَ آيَاتٍ، [۵] فَذَكَرَ الدُّخَانَ، وَالدَّجَّالَ، وَالدَّابَّةَ، وَطُلُوعَ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا، وَنُزُولَ عِيسَى بْنِ مَرْيَمَ، وَيَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ،

**ترجمه:** [۱] حضرت حذیفه ابن اسید غفاري ﷛ وايي [۲] یوه ورځ مونږ په خپل منځ کې د قیامت ذکر کوی چې رسول الله ﷺ زمونږ طرف ته راووتلو [۳] پوښتنه یي وکړه تاسو خلق د څه شي ذکر کوئ؟ [۴] صحابه ؤ ﷢ عرض وکړو مونږ د قیامت ذکر کوو بیا حضور ﷺ وفرمایل یقینًا قیامت به هغه وخت پورې نه راځي د څوپوري چې د هغه نه مخکې لس نښي ونه وینې [۵] بیا حضور ﷺ د لس نښو دي ترتیب سره ذکر وکی ۱ دود ۲ دجال ۳ دابة الارض ۴ د نمر د مغرب د طرف نه راختل ۵ د حضرت عیسٰی ﷤ ابن مریم نازلیدل ۶ د یاجوج وماجوج ښکاره کیدل

[۱] وَثَلَاثَةَ خُسُوفٍ: خَسْفٌ بِالْمَشْرِقِ، وَخَسْفٌ بِالْمَغْرِبِ، وَخَسْفٌ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ، [۲] وَآخِرُ ذَلِكَ نَارٌ تَخْرُجُ مِنَ الْيَمَنِ تَطْرُدُ النَّاسَ إِلَى مَحْشَرِهِمْ، [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: "نَارٌ تَخْرُجُ مِنْ قَعْرِ عَدَنَ تَسُوقُ النَّاسَ إِلَى الْمَحْشَرِ". [۴] وَفِي رِوَايَةٍ فِي الْعَاشِرَةِ: "«وَرِيحٌ تُلْقِي النَّاسَ فِي الْبَحْرِ»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او د اوومي او اتمي او نهمي نښي په طور د ري خسوف یعنی دري مقاماتو باندې د زمکي غرق کیدو ذکر یي وفرمایه یو خو د مشرق په علاقه کې دویم د مغرب په علاقه کې او دریم د جزیره عرب په علاقه کې [۲] او لسمه نښه چې د ټولو نه په آخر کې به ښکاره کیږي هغه اور دی چې د یمن د طرف نه به ښکاره کیږي او د خلقو په ګیره کې راوستو سره د حشر زمکي طرف ته به یي بوځي [۳] او په یوه حدیث کې داسې دي چې هغه به یوداسي اور وي چې د یمن مشهور عدن ښار آخري غاړي ته به ښکاره شي او خلق به شړلو سره د حشر زمکي ته بوځي [۴] او په یوه روایت کې د لسمي نښي په طور یمن طرف ته یا د عدن د آخري غاړي نه د اور د ښکاره کیدو په ځاي یوه داسې هوا ذکر شویده چې خلق به په سمندرکي وغورځوي . (مسلم)

**حل اللغات:-** ① خَسْفٌ: زمکه کښې ښخیدل، ② تَطْرُدُ: شړی به، ③ قَعْر: ژوره کنده. لرې حصه، ④ عَدَنَ: یمن کښې د یو لوئی ښارنوم دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَذَكَرَ الدُّخَانَ،

**د دخان په تفسیر کښې دوه اقوال:** ① حذیفه ﷛ فرمائیلی دی دا هغه لوګې دې چه په آخره زمانه کښې به راوځی او مشرق اومغرب کښې به خوریږی او ترڅلویښتو ورځو پورې به وی په کوم سره چه به مسلمانان دَ زکام والا په شان شی اوکافران به دَ نشې والا

په شان شي او آیت مبارک ﴿ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ ۝ يَغْشَى النَّاسَ ﴾ هم دغه مصداق دي

② ابن مسعود رضی الله عنه وغیره فرمائی دي څخه مراد دادي چه د مکي د قحط په وجه د مکی په کفرانو باندي اولږه داسي شروع شوه چه د آسمان او زمکی په مینځ کښی به ورته هم لوګی په نظر راتلل اودا قول د رسول الله ﷺ د بددعا په وجه اوشو د کوم تفصیل چه په احدیثو کښي موجود دي

**قوله وَالدَّجَّالَ،**

**نوټ:** د دجال تفصیل روسته راروان دي

**قوله وَالدَّابَّةَ،**

**په قرآن کښي د دابه ذکر:** د دي ذکر ﴿ وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً مِنَ الْأَرْضِ ﴾ کښي مذکور دي دا به د صفا اومروه د مینځ نه راوځي

**دري ځله د دابه خروج:** ابن الملک وائی دابة الارض به دري ځل راوځي

① دامام مهدی په زمانه کښي به راوځي

② د ایام عیسی علیه السلام په زمانه کښي به راوځي

③ د طلوع الشمس من المغرب په وخت کښي به راځي

**د دابه شکل وشباهت:** اهل علم فرمائی دا دابه به شپیته ګزه اوږده وی او مختلف الخلقت به وی د ډیرو ځناورو په شان به وی غر به اوشلوی راؤبه ځی دي سره به د حضرت موسی علیه السلام همسا او د سلیمان علیه السلام ننبه وی دا به څوک په منډه نه شی رانیولي او څوک به تري تختیدي هم نه شی

**په مؤمن او کافر کښي فرق راوستونکی:** مؤمن به په همسا باندي وهی د هغه په تندی به مؤمن لیکلي شی او په کافر به په خاتم باندي مهر لګوی نو د ده په تندی به د کافر لفظ لیکلي کیږی بعض حضراتو فرمائیلی دی چه د دي ستي به اوږد شان وی په مشرق اومغرب کښي اوسیدونکی به دا وینی مخ به ئی د انسان په شان وی او د مرغئی په شان به ئی څلور وزري وی

**په دابة الارض کښي د عمرو بن العاص روایت:** عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه فرمائی دا جساسه ده د کومي ذکر چه په احادیثو کښي دي خو حضرت علی رضی الله عنه فرمائیلی داسي نه ده د جساسه بیان خو د دي تردید کوی چه خلق به دي ته وائی دا دابة الارض دي کوم چه د قیامت د علامونه شمیرکړي شوي ده نو هغه به وائی چه د دابة الارض خو وینبته دی زما کوم دی. د هغي خو د ځناورو په شان وزري دی زما داسي چرته دی

**قوله: وَثَلَاثَةُ خُسُوفٍ: خَسْفٌ بِالْمَشْرِقِ، وَخَسْفٌ بِالْمَغْرِبِ، وَخَسْفٌ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ،**

**د خسوفاتو په وقوع کښې دوه اقوال:** ① مولانا شاه رفیع الدین صاحب رحمه الله خپله رساله کښې فرمائیلی دی چه دا دریواړه خسوف به دَ حضرت عیسی علیه السلام دَ نازلیدو نه پس واقع کیږی ② بعض حضرات فرمائی دا دریواړه خسوف واقع شوی دی اودَ دې تفصیل ئی هم بیان کړې دې په مغرب کښې ۳۰۸هجری کښې دَ دیارلسوکلو خسف شوې وو دویم خسف په غرناطه کښې بې شمیره مکانونه خسف کړې شو او دریم خسف په مقام ری کښې تقریبًا دَ ۱۵۰ کلو خسف اوشو په کال ۳٤۲هجری کښې دې نه علاوه نور خسوف هم بیان کړې شوی دی دَ نورو ذکر شوو علاماتو بیان په وړاندې بابونو کښې راروان دې

**قوله وَآخِرُ ذَلِكَ نَارٌ تَخْرُجُ مِنَ الْيَمَنِ**

**اشکال:** په بعضې روایاتو کښې وارد دی چه أور به دَ حجاز دَ زمکې نه راوځی

**دااشکال جواب:** قاضی عیاض رحمه الله فرمائی کیدیشی دوه أوره وی یو دَ حجاز دَ زمکې نه او بل قعرعدن نه بعض فرمائی شروع به دَ یمن نه کیږی او ظهور دَ حجاز نه ذکرةالقرطبی

**قوله: تَطْرُدُ النَّاسَ إِلَى مَحْشَرِهِمْ،**

**دمحشر څخه مراد:** دَ مسلم په روایت کښې تسوق الناس الی المحشر دې بعض حضراتو فرمائیلی دی دَ محشر نه مراد دَ شام زمکه ده ځکه چه په بعض روایاتو کښې دی چه دَ حشر زمکه به شام کښې وی.

**[٥٤٦٥] دقیامت د نښو ښکاره کیدو څخه وړاندې د نیکو اعمالو ترغیب**

٥٤٦٥-(۱)[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «بَادِرُوا بِالْأَعْمَالِ سِتًّا [۳] الدُّخَانَ، وَالدَّجَّالَ، وَدَابَّةَ الْأَرْضِ، وَطُلُوعَ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا، [٤] وَأَمْرَ الْعَامَّةِ، وَخُوَيْصَّةَ أَحَدِكُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] د شپږو څیزونو په بناء تاسو اعمال صالحه طرف ته مخکښې والی کوئ [۳] او هغه شپږ څیزونه دادي ① دود ② دجال ③ دابة الارض ④ مغرب نه د نمر راختل [٤] ⑤ امرعامه یعنی هغه عامه فتنه چې تول خلق به خپل گیره (لپیټ) کې واخلي ⑥ او خاصه فتنه چې په تاسو کې د چاسره به مخصوص وي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① بَادِرُوا: مخکښې والې کوئ. ② الدُّخَانَ: لوگې. ③ وَأَمْرَ الْعَامَّةِ: عامه فتنه چه تول خلق به گیر کړی. ④ خُوَيْصَّةَ: ذاتی او انفرادی فتنه، پریشانی

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب فی بقیة من أحادیث الدجال (رقم-۱۲۹ - (۲۹٤۷) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب الآیات (رقم-٤۰٥٦) واحمد فی المسند:۲/۳۲٤

**تسهیلات:**

**قوله.** بَادِرُوا بِالْأَعْمَالِ:

**د نیکو اعمال ترغیب:** یعنی په حدیث کښې د ذکر شوو شپږو علاماتو دَ ظهور څخه مخکښې په نیك اعمالو کښې تادی کوئی ځکه چه روستوبه دَاعمالو موقع نه ملاویږی یا اعمال به نه قبلیږی

**قوله:** وَأَمْرَ الْعَامَّةِ، وَخُوَيْصَّةَ أَحَدِكُمْ:

**د مذکوره جملو په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دامر العامة څخه عامه فتنه مراد ده چې ټول خلق به خپل ګیره (لپیټ) کې واخلي اود خویصة څخه هغه فتنه مراد ده چه په ذاتی توګه باندې چاسره خاص وی دَهرسړی ذاتی او انفرادی فتنه اوپریشانی وی دکوم تعلق چه دَهغه مال اولاد اودَ چم ګاوند معاملاتوسره وی. دَدې حدیث یوبل مطلب داهم کیدې شی ② دَعامې فتنې نه دَقیامت راتلل مراددی اودَخاصې فتنې نه دَ هرسړی خپل مرګ مراد دې

**[٥٤٦٦] دَقیامت رومبۍ علامت**

٥٤٦٦-( )[۳] ① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② "«إِنَّ أَوَّلَ الْآيَاتِ خُرُوجًا طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا، ③ وَخُرُوجُ الدَّابَّةِ عَلَى النَّاسِ ضُحًى، ④ وَأَيُّهُمَا مَا كَانَتْ قَبْلَ صَاحِبَتِهَا؛ فَالْأُخْرَى عَلَى أَثَرِهَا قَرِيبًا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ وایي ما د رسول الله ﷺ نه واوریده ② د ظاهریدو د اعتبار نه د قیامت د نښو د ټولو نه مخکښې نښه د نمر د مغرب د طرف نه راختل ③ او د چاشت په وخت دابة الارض راوتل او د هغه هغوئ سره خبري کول ④ دې ددې دواړو مذکوره نښو نه چې کومه نښه مخکې ښکاره شي ترهغه نه وروسته زر به دويمه نښه ښکاره شي.

**حل اللغات:-** ① ضُحًى: دڅاښت وخت، ② أَثَرِهَا: ورپسې، فوراً پس.

**تسهیلات:**

**قوله.** إِنَّ أَوَّلَ الْآيَاتِ خُرُوجًا طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا:

**دحدیث پس منظر:** په ابوداؤد کښې د دې حدیث پس منظر داسې بیان شوې دې چې ابوزرعه فرمائی چه څه خلق مدینې طیبې ته د مروان خوا له راغلل نو هغوی د هغه نه واوریدل چه هغه د علامات قیامت په باره کښې بیانول چه په هغه علاماتو کښې اول

[1] اخرجه مسلم في كتاب الفتن وأشراط الساعة /باب في خروج الدجال ومكثه في الأرض، ونزول عيسى وقتله إياه، وذهاب أهل الخير والإيمان، وبقاء شرار الناس وعبادتهم الأوثان، والنفخ في الصور، وبعث من في القبور (رقم-١١٨ - (٢٩٤١) وابوداود في كتاب الترجل /باب أمارات الساعة (رقم-٤٣١٠)وابن ماجه في كتاب الفتن/باب الآيات (رقم-٤٠٥٥)

علامت خروج الدجال دې، ابوزرعه فرمائي چه د دې نه روستو زه عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما ته لاړم ما هغوی ته د دې ذکر اوکړو نو هغوی اوفرمائيل چه مروان چه څۀ اووې هغه هيڅ هم نه دی، يعنی غير معتبر دی، ځکه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی چه اولنئ علامه راختل د نمر دی د مغرب نه يا خروج الدابة چه د چاشت په وخت باندې به وی او په دواړو کښې چه کوم يو علامت هم اول اومونډلې شی دويم به د هغې نه روستو وی.

سيدنا عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما خپله رائې بيانوی چه زما دا ګمان دې چه اول به طلوع الشمس من المغرب وی د دې نه پس به خروج الدابه وی. ﴿وكان يقراء الكتب﴾ دا جمله معترضه ده چه د هغې قائل ابوزرعه دې هغوی دا بيانوی چه چونکه عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما به مخکښې کتابونه تورات اوانجيل وغيره لوستل نو کيدې شی چه دهغوی دا رائې دهغې مطابق وی

حاصل د حديث دا شو مروان اول الايات خروج الدجال ته اووې، او عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما د دې په ځائې طلوع الشمس من مغربها ته اووې، او علماء کرامو فرمائيلې دی چه دواړه خبرې په خپل ځائې باندې صحيح دی.

**په رواياتو کښې تطبيق**: په اصل کښې علامات قيامت په دوه قسمه دی، يو آيات قرب الساعة. او دويم آيات وقوع الساعة، د مروان مراد اول قسم د علامت نه دې او هغه صحيح دې او د صحابی سيدنا عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما مراد دويم قسم دې او هغه واقعی طلوع الشمس من مغربها دې، د دې نور وضاحت په بذل کښې ذکر دې هغه دې اوکتلې شی [الکاشف: ۱۱۰/۱۰]

**[۵٤٦۷] دَ دريو علاماتو دَ ظهور څخه روسته د ايمان راوړو عدم اعتبار**

٥٤٦٧-(١)[٣] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] «ثَلَاثٌ إِذَا خَرَجْنَ ﴿لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا﴾ [الأنعام: ١٥٨]: [٣] طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا، وَالدَّجَّالُ، وَدَابَّةُ الْأَرْضِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [١] و حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هرکله چې دري خبري ښکاره شي نو بيا د يوداسي سړي ايمان راوړل او کفر نه توبه ؤبښکل چې دي نه مخکې بي ايمان نه وو قبول کړی هيڅ فائده نه ورکوي او نه به د هغه سړي د خپل ايمان په حالت کې نيك عمل کول فائده مند وي که هغه د هغه نه مخکې څه نيك عمل نه وي کړی (يعني هغه وخت ګناهونو نه توبه ؤبښکل به هم معتبر نه وي) [٣] او هغه دري خبري دادي ① نمر د مغرب نه راختل ② د دجال راوتل ③ او دابة الارض راوتل . (مسلم)

[١] ) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب بيان الزمن الذی لا يقبل فيه الإيمان (رقم-٢٤٩ - (١٥٨) وابوداود فی کتاب الترجل /باب أمارات الساعة (رقم-٤٣١٢)

**تسهيلات:**

**قوله: طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا:**

**مغرب طرف څخه د نمرپه راختو د توبې دروازه بنديدل:** دتوبې دروازه بنديدو دپاره اول څيز طلوع شمس من المغرب دې د عالم آخرت څه څيز ليدونه پس په دې دنياکښې نه د ايمان اعتبارشته اونه دنيك عمل اعتبار هم دغه وجه ده چه د زنكدن په حالت كښې كله د آخرت څيزونه په مشاهده كښې راشي نوبيا توبه غير مقبول گرځي

**[٥٤٦٨] نمر د مغرب د طرفه د راختلو پيشنګوئي**

٥٤٦٨-( )[٥] [١]وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ[٢]: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-حِينَ غَرَبَتِ الشَّمْسُ: [٣]"أَتَدْرِي أَيْنَ تَذْهَبُ هَذِهِ؟". قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [٤]قَالَ: "فَإِنَّهَا تَذْهَبُ حَتَّى تَسْجُدَ تَحْتَ الْعَرْشِ، فَتَسْتَأْذِنَ فَيُؤْذَنُ لَهَا، [٥]وَيُوشِكُ أَنْ تَسْجُدَ، وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا، [٦]وَتَسْتَأْذِنُ فَلَا يُؤْذَنُ لَهَا، وَيُقَالُ لَهَا: ارْجِعِي مِنْ حَيْثُ جِئْتِ،

**ترجمه:** [١]او حضرت ابوذر ﷜ وايي [٢]يوه ورځ كله چې نمر لويدى رسول الله ﷺ ماته وفرمايل [٣]پوهيږې چې دا نمر چيرته ځي ماعرض وكړو الله او د هغه رسول ښه پوهيږي [٤]حضور ﷺ وفرمايل دا نمر ځي ددې پورې چې د عرش لاندې رسيدو سره سجده كوي بيا د رب العزت په حضور كې د حاضري اجازت غواړي ده ته اجازت عطا كيږي او حكم وركول كيږي چې مشرق طرف ته دې لاړ شي او د هغه ځاى نه دې راوخيږي [٥]او (ياد لره) هغه وخت زر راتلونكى دى كله چې به نمر د خپل معمول مطابق سجده كوي ليكن د هغه سجده به نه قبليږي [٦]او اجازت به غواړي ليكن هغه ته به اجازت نه وركړې كيږي او دا حكم به وركول كيږي چې دكوم طرف نه راغلى يې هغه طرف ته (مغرب طرف ته) واپس لاړ شه

[١]فَتَطْلُعُ مِنْ مَغْرِبِهَا، فَذَلِكَ قَوْلُهُ: ﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَهَا﴾ [يس: ٣٨]، [٢]قَالَ: "مُسْتَقَرُّهَا تَحْتَ الْعَرْشِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١]نو هغه به دمغرب دطرف نه را وخيژي او دا مراد دى د الله ﷻ د دې قول نه چې وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا يعنى نمر خپل مستقر طرف ته ځي [٢]او حضور ﷺ د نمر د مستقر په وضاحت كې فرمايلى دى چې د نمر مستقر يعنى د هغه د حصاريدو ځاي د عرش لاندې دى. (بخاري)

**حل اللغات:**- ① مُسْتَقَرٌّ: دايساريدو ځاى.

[١] اخرجه البخارى فى كتاب بدء الخلق/باب صفة الشمس والقمر بحسبان (رقم-٣١٩٩) ومسلم فى كتاب الإيمان/باب بيان الزمن الذى لا يقبل فيه الإيمان (رقم-٢٥١ - (١٥٩) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى طلوع الشمس من مغربها (رقم-٢١٨٦)

**تسهيلات: قوله فَإِنَّهَا تَذْهَبُ حَتَّى تَسْجُدَ تَحْتَ الْعَرْشِ:**

**د نمر په سجده کولو باندې اول اشکال:** په دې حديث کښې "سجود شمس تذکره شويدے، دَ جديد فلکياتو تحقيقات او مشاهدات په رو سره په دې باندې يو څو اشکالات کيږي

**په حديث الباب اول اشکال:** نمر په يوځائ ډوبيږي نو هم هغه وخت په بل ځائ کښې راخيژي. دَ نمر ډوبيدل او راختل هروخت روان وي، خو دَ حديث نه دا مفهوم په پوهه کښې راځي چه په پوره دنياکښې نمر په يووخت ډوبيږي او دَ اجازت ملاويدونه پس بياخپل سفر شروع کوي او راخيژي حالانکه دا دَ مشاهدې نه خلاف ده.

**د اول اشکال درې جوابونه:** ① دلته دَ نمر دَ ډوبيدونه دَ ټولې دنيا ډوبيدل مراد نه دي بلکه دَ دنيا دَ لوئ حصې ډوبيدل مراد دي. يعنی هغه مقام چرته چه په ډوبيدو باندې دَ دنيا په اکثر آبادئی کښې ډوبيږي

② دَ دې نه دَ خط استواء ډوبيدل مراد دي

③دَ افق مدينې ډوبيدل مراد دي او مطلب دا دې چه نمردا سجده اودَ ډوبيدو اجازت معظم معموره، يادَ خط استواء ډوبيدل او يا دَ افق مدينه دَ ډوبيدلووخت طلب کوي.(1)

**په حديث الباب دويم اشکال:** دَ عرش رحمن کوم تفصيل دَ قرآن او حديث نه معلوميږي دَ هغې په رو سره عرش ټول آسمانونه او کائنات سماويه باندې محيط دې په دې لحاظ نمرخو هميشه په هر حال او هروخت کښې دَ عرش لاندې دې او دَ حديث نه معلوميږي چه صرف دَ ډوبيدو په وخت کښې دَ عرش لاندې ځي.

**د دويم اشکال جواب:** دَ ډوبيدو په وخت کښې دَ عرش لاندې راتلل ده له مستلزم نه دي چه باقي وخت کښې هغه دَ عرش دَ لاندې نه وي، دا قيد احترازی نه دې قيد واقعي دې. نو حضرت حکيم الامت تهانوی رحمه الله ليکی: "دَ دې جواب دا دې چه ممکنه ده چه دا قيد واقعي وي او اصلي مقصود اخبار عن السجده وي اودَ دې تعبيرنه دا فائده وي چه دَ دې نه تحت الامرالالهي کيدلو تصريح اوشوه څکه چه دَ استواء علی العرش کنايه کيدل دَ نفاذ احکام او تصرفات نه په آيات عديده کښې ذکر دي" (2)

**په حديث دريم اشکال:** دَ دې حديث دَ ظاهر نه معلوميږي چه نمر خپل مستقر باندې رسيدلو سره سجده کوي، بيا اجازت غواړي، دغه شان هغه وقفه کوي حالانکه دَ نمر وقفه علم فلکيات اودَ مشاهدې په رو سره صحيح نه ده، دَ ده حرکت دائمی او مسلسل دې.

**ددريم اشکال جواب:** دَ هرڅيز سجده دَ هغه دَ حال مناسب وي لکه چه قرآن پخپله

---

(1) ))بيان القران-۱۱۱/۹:

(2) ))بيان القران-۱۱۱/۹:

تصریح فرمائیلې ده "کل قد علم صلاته وتسبیحه" دَ دې دَ پاره دَ نمر دَ سجدې دا معنی ګنړل چه هغه دَ انسان په شان سجده کوی صحیح نه ده.
حضرت تهانوی رحمه الله لیکی: " سجده بالمعنی مذکوره دَ پاره اول خو انقطاع حرکت ضروری نه دې، بل ممکن دی چه دا سکون آنی وی او حرکت زمانی وی، دَ دې دَ پاره حساب رصدی مختل کیږی نه، او نه هغه منضبط او مدرك کیږی"(۱)
**دمذکوره حدیث تشریح د علامه شبیر احمد عثمانی په نظر کښې:** علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله په دې باره کښې یوه مستقله مقاله لیکلې ده او مولانامفتی محمد شفیع صاحب رحمه الله "معارف القرآن" کښې دَ دې خلاصه نقل کړیده. هغوی په یو بل انداز سره دَ حدیث مفهوم بیان کړیدې دَ کوم حاصل چه دا دې.
په حدیث کښې چه دا خودلې شوی دی چه نمر دَ ډوبیدونه پس دَ عرش لاندې الله تعالی ته سجده کوی او بیا دَ بل دور شروع کولو اجازت غواړی او دَ اجازت ملاویدو نه پس وړاندې تګ کوی او سحر دَ مشرق طرف نه راخیژی، دَ دې مقصد دَ دې نه زیات نه دې چه نمر دَ راختو او ډوبیدو په وخت کښې دَ دنیا په عالم کښې یو نوې انقلاب راځی دَ کوم مدار چه په نمر باندې دې. رسول الله ﷺ دا انقلابی وخت دَ انسان دَ خبرداری دَ پاره موزون ګنړلو سره دا تلقین اوفرمائیلو چه دا نمر په خپله مرضئی سره په خپل قدرت سره ګرځیدونکې مه ګنړئی دا صرف دَ الله تعالی په رضا او اجازت سره روان دې، دَ ده هر خل راختل او ډوبیدل دَ الله تعالی په اجازت سره کیږی. دا دَ هغه دَ اجازت تابع دې، دَ ده حکم منونکې حرکت کول هم دَ ده سجده ګرځولې شویده. خلاصه دا چه دَ نمردَ ډوبیدو تخصیص او دې نه پس دَ عرش لاندې تلل اوهلته سجده کول او دَ وړاندې تلو اجازت غوښتلو کوم واقعات په دې روایت کښې خودلې شوی دی هغه دَ پیغمبرانه موثر تعلیم مناسب بالکل دَ عام خلقو دَ نظر په اعتبار سره یو تمثیل دې. نه دینه دا لازمیږی چه هغه دَ انسان په شان په زمکه سجده کوی، اونه دَ سجدې کولو په وخت کښې دَ نمر په حرکت کښې څه وقفه کیدل لازم راځی. او نه دا مراد دی چه هغه په شپه ورځ کښې یوه سجده په یوخاص ځائ کښې کوی، اونه دا چه صرف دَ ډوبیدو په وخت کښې دَ عرش دَ لاندې ځی، مګر په دې انقلابی وخت کښې کله چه ټول خلق داوینی چه نمر زمونږ نه غائب شو هغه وخت دَ تمثیل په توګه هغوی په دې حقیقت باندې خبر کړیشو چه دا څه کیږی په حقیقت کښې نمر دَ عرش لاندې دَ فرمان تابع تلوراتلوسره کیږی، نمر پخپله څه قدرت او طاقت نه لری، نو څنګه چه دې وخت کښې دَ مدینې خلق په خپل ځائ کښې دا محسوس کوی چه اوس به نمر سجده کوی او دَ بلې دورې دَ پاره به

---

(۱) بیان القران-۹/۱۱۱:

اجازت غواړي، نو دغه شان چرته چرته چه دې ډوبيږي دَ تولودپاره دَ سبق حاصلولو تلقين اوشو اودَ معاملې حقيقت دا راوښتلو چه نمر په خپل مدار کښې دَ حرکت په مينځ کښې په هره لمحه الله تعالى ته سجده هم کوي او دَ وړاندې تلو اجازت هم غواړي اودَ دې سجدې کولو او اجازت غوښتلو دَ پاره هغه ته دَ سکون او وقفې ضرورت هم نه وی.(۱) په دې تقرير سره په ذکر شوی حديث کښې نه دَ مشاهداتو په رو سره څه شبه کيږي او نه قواعد هئيت او رياضي په اعتبار سره څه شبه او اشکال باقي پاتې کيږي.

دَهرڅيز سجده دَهغه دَ خپل حال مطابق ده نودَ نمر به په روانه روانه سجده وی دا هيڅ مشکل نه دی دَ نباتاتو او جماداتو سجده به دَانسان په شان خو نه وی نو هغه به په دې باندې نه شي قياس کولې نمر اګرچه هروخت په حرکت کښې وی مګر دَدې حرکت باوجود سجده کول څه مستبعد نه دی. بل دا دَ غيب يو معامله ده مونږ تردومره پورې مکلف يو چه مونږ دا اومنو چه نمر سجده کوی وړاندې دَتفصيلاتو معلومولو مونږ مکلف نه يو اونه دَ دې په تحقيق کښې پريوتل زمونږ څه ذمه واری ده

**قوله: لِمُسْتَقَرِّهَا:**

**د مستقرپه تفسير کښې دوه اقوال:** ① دلته مستقر مکاني مراد دې اودَ مستقر مکاني مطلب دادې چه په کومه ورځ الله تعالى نمر پيدا کړې وو اودَ کوم ځائى نه چه ئى نمر روان کړې وو هم دَهغه مقام پورې به نمر روان وى هم دغه دَ ده مستقردې حديث الباب څخه د مستقر مکاني تائيد کيږي چه نمر دعرش لاندې لاړشي سجده کوی

② دې نه مستقر زماني مراددې. د مستقرزماني مراد اخستو مطلب چه دادې چه دکومې زمانې نه نمر په خپل کارکښې لګياشوې دې دې به هم په هغه کارکښې لګيا وی تردې چه قيامت راشي نودَ قيامته پورې به نمر دَ خپل مستقر طرف ته جاری اوساری وی هيڅ کله به اودريږي نه دَ قرآن آيت (إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى) ذدې رائې تائيد کوی

**په دواړو قولونو کښې تطبيق:** اضي بيضاوی رحمه الله (۲)دويم تفسير ليکلې دې نوشيخ عبدالحق محدث دهلوی دلته ډير خفه دې اوهغه دا وائي چه دا ټول د فلسفې نه د متاثر کيدو اثر دې واقعه داده چه آيت مبارك دخپل اطلاق په اعتبارسره د دواړو تفسيرونو محتمل دې په دې کښې هيڅ استعجاب نشته چه حديث مخې ته کولوسره مستقر مکاني مراد واخستې شي او آيت مخې ته کيخودوسره مستقر زماني مراد واخستې شي.(۳)

---

(۱))رساله سجود شمس، ومعارف الران-۲۹۲/۷:

(۲) تفسير البيضاوی مع حاشية الشهاب: ۲۲/۸،يس: ۳۸.

(۳) واليه أشار الشهاب الخفاجي رحمه الله في حاشيته على البيضاوی: ۲۳/۸وفيض الباری: ۳۰۶/۴ولمعات التنقيح شرح مشكوة المصابيح: ۶۸۵/۸كتاب الفتن باب لعلامات بين يدى الساعة.... الفصل الاول رقم:۵۴۶۸

**[۵٤٦۹] دَ ټولو نه لويه فتنه دجال دې**

۵۴۶۹-()[۶] ⓵وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ⓶ "«مَا بَيْنَ خَلْقِ آدَمَ إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ أَمْرٌ أَكْبَرُ مِنَ الدَّجَّالِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⓵ او حضرت عمران ابن حصين رضي الله عنهما وايي ما د حضور ﷺ نه واوريدل ⓶ چې د آدم علیه السلام د پيدائش نه واخله د قيامت د ورځي پورې (يعني د کائنات انساني په پوره زمانه کې د ابتلاء اختلال او استدراج د اعتبار نه) د دجال د فتني نه لويه فتنه نشته

**تسهیلات:**

**قوله:** أَكْبَرُ مِنَ الدَّجَّالِ

**ددجال د فتني عظمت:** مطلب دادې چه دَ انسان دَ پيدائش نه واخله دَ قيامته پورې دَ دجال نه بله لويه فتنه نشته. دجال ډير لوئی آفت دې خلق چه دَ دجال کارنامې اوګوری نو هغه به خدائی اومنی. هم په دې وجه دَ حضرت نوح علیه السلام نه واخله تر دَ رسول کريم ﷺ پورې ټولو انبياء کرامو خپل خپل امت دَ دجال دَ فتنې نه خبردار کړې دې

**[۵٤٧۰] د دجال د يوې سترګې کا نړيوالي**

۵۴۷۰-()[۷] ⓵وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⓶ "«إِنَّ اللَّهَ لَا يَخْفَى عَلَيْكُمْ، إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى لَيْسَ بِأَعْوَرَ ⓷ وَإِنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ أَعْوَرُ عَيْنِ الْيُمْنَى، ⓸ كَأَنَّ عَيْنَهُ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⓵ او حضرت عبد الله رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⓶ يقيناً الله جل جلاله په تاسو مخفي نه دی بلاشبه الله جل جلاله ړوند نه دی ⓷ حال دا چې مسيح دجال په ښي سترګه کور دی ⓸ او د هغه هغه سترګه به داسې وي څرنګه چې هغه د انګور يوه پړسيدلي دانه وي

**حل اللغات:-** ⓵ أَعْوَرَ: کاڼړا، چغوت، ⓶ عِنَبَةٌ: دانګورو دانه. ⓷ طَافِيَةٌ: بهر راوتلې، پړسيدلې

**تسهیلات:**

**قوله:** وَإِنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ أَعْوَرُ عَيْنِ الْيُمْنَى:

**ددجال په نښو ښودلو کښې حکمت:** دَ دجال فتنه به چونکه په کائناتو کښې دَ ټولو نه لويه فتنه وی ځکه چه دجال به دَ خدائی دعویٰ هم کوی او هغه سره به دَ استدراج دَ وجې نه دَ دهوکه کولو دَپاره ډير لوئی سامان هم وی په دې وجه حضورپاك دَ دجال نښې نښانې په

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب فی بقية من أحاديث الدجال (رقم-۱۲۶ - (۲۹۴۶)

[2] احرجه البخاری فی کتاب الفتن/باب ذکر الدجال (رقم-۷۱۲۳) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب ذکر المسيح ابن مريم، والمسيح الدجال (رقم-۲۷۳ - (۱۶۹) وابوداود فی کتاب الترجل /باب خروج الدجال (رقم-۴۳۱۶) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب فتنة الدجال، وخروج عيسى ابن مريم، وخروج يأجوج، ومأجوج (رقم-۴۰۷۱) واحمد فی المسند:۳۳/۲

کولاۇ الفاظو کښې بیان کړی دی دې دَپاره چه چاته دَ دجال باره کښې اشتباه او شك پاتې نه شی چنانچه دلته دا خودلې شوی دی چه دَ :جال ښې سترګه به کانړئی وی.

**قوله: كَأَنَّ عَيْنَهُ عِنَبَةٌ طَافِئَةٌ:**

**د دجال د سترګې کانړې والې**: یعنی دَ انګور دَ دانې په شان شنه راوتلې به وی چه ډیر زیات بدرنګوالې دې نویوه سترګه خوبه ئی بالکل ممسوحه، مطموسه او هواره وی اودویمه به ئی په ډیر زیات خراب اندازکښې دَ انګور دَ دانې په شان راوتلې وی

**اشکال**: دمشکاة په حدیث نمبر (۵۴۷۰) کښې دی چه د دجال ښې سترګه به کانړئی وی خو دمشکاة په حدیث نمبر (۵۴۷۵) کښې دی چه دَ دجال به ګسه سترګ کانړئی وی دا واضح تعارض دې دَدې څه جواب دې؟

**د اشکال څلور جوابونه**: مجموعی احادیثولره دکتلو نه معلومیږی چه دَدجال به دواړه سترګې عیبژنې وی او په عیبژنه سترګه باندې دَ اعور اطلاق کیږی نو دجال به په ښې سترګه باندې هم أعور وی اوګسې سترګې سره به هم اعور اوعیبژن وی په دې کښې هیڅ تعارض نشته دې چا چه کوم ذکرکړې دې صحیح دې که اصل حقیقت ته اوکتلې شی نودا حقیقت په واضحه توګه مخې ته راځی چه دَ دجال ګسه سترګه بالکل صفا اوخالی میدان دې نه ئی سترګه شته اونه دَسترګې قوتې نه ئی راوتلې سترګه ده اونه څه بل رنګ هواره او صفا ده هم دا حقیقت د مشکاة په حدیث نمبر (۵۴۷۳) او حدیث نمبر (۵۴۷۵) کښې په واضح توګه بیان کړې شوې دې په کوم کښې چه "اعورالعین الیسری" الفاظ هم دی اودَ "مطموس العین لیست بناتیة ولا حجراء" الفاظ هم راغلی دی دادَ دجال دَ ګسې سترګې تفصیل دې دلته زیر بحث حدیث نمبر ((۵۴۷۴)) کښې دَ دجال دَ ښې سترګې باره کښې داتفصیل دې چه دَانګورو ددانې په شان راوتلې به وی لکه چه داسترګه چه په کومه کښې به څه نا څه ساه وی څه ښه به وی مګر بدصورت قبیح شکل کښې به وی عیب داره به وی په کوم چه دکانړئی سترګې اطلاق دَعیب دَ وجې نه به کیدې شی لکه څنګه چه په دې حدیث کښې دَاعور اطلاق شوې دې

② دَ هغه یوه سترګه به خړه شوې وی او دویمه به عیبژنه وی.

③ بعضې خلق به دَ هغه دَ ښې سترګې عیب ګوری او نور به دَ ګسې سترګې عیب

④ د راویانونه په دې کښې سهوشوې ده.

**[۵۴۷۱] د هر نبي خپل امت لره د دجال څخه ويرول**

۵۴۷۱-(۱)[۸] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «مَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا أَنْذَرَ أُمَّتَهُ الْأَعْوَرَ الْكَذَّابَ، ۳ أَلَا إِنَّهُ أَعْوَرُ، وَإِنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِأَعْوَرَ، مَكْتُوبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ: ك ف ر» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ داسې هيڅ نبي نه دی تير شوی چې هغه خپل امت د دروغجن كور يعنی دجال نه نه وي ييرولی ۳ خبر دار شئ دجال به كور وي او ستاسو پروردگار روند نه دی ۴ او د دجال د دوارو ستركو په منځ كې به (ك ف ر) يعنی د كفر لفظ ليكلی وي. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:-** ۱ أَنْذَرَ: ويرولې ئې دي، ۲ الْأَعْوَرَ: كانړا ، چغوت

**تسهيلات: قوله:** مَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا أَنْذَرَ أُمَّتَهُ الْأَعْوَرَ الْكَذَّابَ:

**د هر نبي خپل امت د دجال څخه د ويرولو وجه:** دَ دجال ظهور الله تعالی په چاباندې هم نه دی ښكاره كړی. صرف دومره معلومه ده چه هغه به دَ قيامت نه مخكښې ښكاره كيږی په دې وجه هريو نبی دَ دجال دَ راښكاره كيدو نه خپل امت ويرولې دي.

**قوله:** مَكْتُوبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ: ك ف ر.

**د كفر په تقطيع سره ليكل:** چنانچه دَ مصابيح او مشكوة په نسخو كښې دا الفاظ جدا جدا ليكلې شوی دی لكه چه دَ دجال په مخ باندې به ك ف ر (كفر) داسې ليكلې شوې وی

**د دجال باره كښې دامت محمدی راهنمائی:** دَ هغه په مخ باندې كفر ليكلې كيدل په حقيقت كښې دَ الله تعالی دَ طرف نه دَدې امت په حق كښې يو لوئ نعمت دې چه دَ دجال دَ دوارو ستركو په مينځ كښې به دَ كفر لفظ ښكاره وی. كوم چه به هر صاحب ايمان په آسانئ سره لوستلې او پوهيدلې شی (كه ليكونكې لوستونكې وی اوكه نه وی)، او هغه صاحب ايمان ته به دَ دجال دَ مكر او فريب نه په بچ كيدو كښې آسانی وی خو ليكونكې لوستونكې كافر به دغه نه شي لوستلې او نه به پرې پوهيدلې شی

**[۵۴۷۲] د دجال مصنوعی جنت او دوزخ**

۵۴۷۲-(۲)[۹] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " «أَلَا

[۱] اخرجه البخاری فی كتاب التوحيد/باب قول الله تعالى: {تعرج الملائكة والروح إليه} [المعارج: ٤] ..... (رقم-٧٤٣١) ومسلم فی كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذكر الدجال وصفته وما معه (رقم-١٠١ - (٢٩٣٣) وابوداود فی كتاب الترجل/باب خروج الدجال (رقم-٤٣١٦) والترمذی فی كتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی قتل عيسى ابن مريم الدجال (رقم-٢٢٤٥)

[۲] اخرجه البخاری فی كتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله تعالى: {إنا أرسلنا نوحًا إلى قومه أن أنذر قومك من قبل أن يأتيهم عذاب أليم} [نوح: ١]...... (رقم-٣٣٣٨) ومسلم فی كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذكر الدجال وصفته وما معه (رقم-١٠٩ - (٢٩٣٦)

أُحَدِّثُكُمْ حَدِيثًا عَنِ الدَّجَّالِ مَا حَدَّثَ بِهِ نَبِيٌّ قَوْمَهُ؟[۳]: إِنَّهُ أَعْوَرُ يَجِيءُ وَمَعَهُ بِمِثْلِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ،[۴] فَالَّتِي يَقُولُ: إِنَّهَا الْجَنَّةُ هِيَ النَّارُ،[۵] وَإِنِّي أُنْذِرُكُمْ كَمَا أَنْذَرَ بِهِ نُوحٌ قَوْمَهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي يوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] آيا شئ! زه تاسو ته د دجال په باره کې داسې خبره ښايم چې بل هيڅ نبي خپل قوم ته نه ده خو دلي [۳] او هغه خبره دا ده چې دجال به يوسترگي وي او هغه به د ځان سره د جنت او دوزخ په شان دوه څيزونه راوړي [۴] نو کوم شي ته چې هغه جنت وايي په حقيقت کې به هغه دوزخ وي [۵] نو زه تاسو د هغه دجال نه بيروم څرنگه چې نوح عليه السلام خپل قوم د هغه نه بيرولی وو (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَلَا أُحَدِّثُكُمْ حَدِيثًا عَنِ الدَّجَّالِ مَا حَدَّثَ بِهِ نَبِيٌّ قَوْمَهُ:

**د دجال کانړې خودل د نبی عليه السلام خصوصيت:** په حديث الباب کښې دی چه پخوانو انبياء کرامو دَ دجال دَ نورو عيبونونه خپل امتونه خبردار کړی دی مگر دَ هغه کانړې کيدل زه بيانوم.

**قوله:** مَعَهُ بِمِثْلِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ:

**د دجال د جنت اواور حقيقت:** مطلب دادې چه دجال سره به ښکلې ښکاره کيدونکې باغ هم وی او ويرونکې اور هم. په حقيقت کښې هغه سره چه کوم باغ وی هغه به دَ دوزخ تلو لار وی او هغه سره چه کوم اور وی هغه به په حقيقت کښې جنت وی يعنی کوم سړې چه دَ هغه تابعداری نه کوی اودَ هغه په مخکښې دَ تيتيدونه انکارکوی نو دجال به هغه په خپل اور کښې اچوی حالانکه هغه به جنت ته دَ تلو لار وی
لکه څنگه چه د نمرود اور په ظاهره اور وو مگردَ حضرت خليل الله عليه السلام دَپاره جنت ووکما فی القرآن (قُلْنَا يٰنَارُ كُونِي بَرْدًا وَّسَلٰمًا عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ۝) وعلى هذا القياس

**[۵۴۷۳] د دجال په اورکښې د پريوتو تعليم**

۵۴۷۳ - ()[۱۰][۱] وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] قَالَ: «إِنَّ الدَّجَّالَ يَخْرُجُ، وَإِنَّ مَعَهُ مَاءً وَنَارًا،[۳] فَأَمَّا الَّذِي يَرَاهُ النَّاسُ مَاءً فَنَارٌ تُحْرِقُ،[۴] وَأَمَّا الَّذِي يَرَاهُ النَّاسُ نَارًا فَمَاءٌ بَارِدٌ عَذْبٌ،[۵] فَمَنْ أَدْرَكَ ذَلِكَ مِنْكُمْ فَلْيَقَعْ فِي الَّذِي يَرَاهُ نَارًا؛[۶] فَإِنَّهُ مَاءٌ عَذْبٌ طَيِّبٌ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت حذيفه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت کوي [۲] حضور ﷺ وفرمايل دجال به په دي حالت کې ښکاره کيږي چې هغه سره به اوبه وي او اور وي [۳] نو خلق چې

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب أحاديث الأنبياء/باب ما ذکر عن بنی إسرائيل (رقم-۳۴۵۰) ومسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذکر الدجال وصفته وما معه (رقم-۱۰۵ - (۲۹۳٤)

کوم شی اوبه ګني هغه به په حقیقت کې سوزونکي وي ۴ او کوم چې خلق اور ګني هغه به په حقیقت کې يخې او شيريني خوږې اوبه وي ۵ نو په تاسو کې چې کوم سړی دجال يا د هغه د دهو کومذکوره څيزونه بيا مومي نو هغه ته پکار دی چې په هغه شي کې غورځيدل خوښ کړي چې هغه يې د اور په صورت کې ويني [يعنی دجال به د هغه تکذيب نه ناراضه کيدو سره هغه خپل اور کې وغورځوي] ۶ نو په حقيقت کې هغه به اور نه وي بلکه ډيري شيريني او خوښ اوبه به وي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① تُحْرِقُ: سوزونکي، ② عَذْبٌ: خوږې،

| ۱ وَزَادَ مُسْلِمٌ: " «وَإِنَّ الدَّجَّالَ مَمْسُوحُ الْعَيْنِ، ۲ عَلَيْهِ ظَفَرَةٌ غَلِيظَةٌ، ۳ مَكْتُوبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ كَافِرٌ، يَقْرَأُهُ كُلُّ مُؤْمِنٍ كَاتِبٍ وَغَيْرِ كَاتِبٍ» ". |
|---|

**ترجمه:** ۱ او مسلم په خپل روايت کې دا الفاظ مزيد نقل کړي دي چې دجال به ممسوح العين وي [يعنی د هغه د يوې سترګي په ځاي د تندي په شان بالکل اوار وي هلته به د سترګي هيڅ نښه هم نه وي] ۲ او په هغه دويمه سترګه به درنه ناخنه وي [ګويا د هغه يوه سترګه به بالکل غائبه وي او دويمي سترګي باندې به د غوښې يا چرمې يوه غټه ټکره وي يا دا معنی ده چې هغه غائبه سترګي باندې به ناخنه وي] ۳ او د هغه د دواړو سترګو په منځ کې به کافر لفظ ليکلی وي او دالفظ به هر مؤمن وايي که هغه ليکل وئيل پيژني يا يي نه پيژني.

**حل اللغات:** - ③ مَمْسُوحُ: مسح شوي، ورانه شوې، ④ ظَفَرَةٌ: نوک. دلته ترې د څرمن هغه ټکره مراد ده چه د پوزې دطرف نه راپورته شوې وی او سترګه ئې پټه کړې وی. ⑤ غَلِيظَةٌ: سخته.

**تسهيلات:**

**قوله: عَلَيْهِ ظَفَرَةٌ غَلِيظَةٌ:**

**د مذکوره جملې مفهوم:** يعنی مضبوطه غوښه چه دَ پوزې دَ طرف نه به په سترګه باندې راختلې وی لکه چه دَ نوك تراشه وی. دا صفت دَ دجال دَ ګسې سترګې دې چه صفا چيته خالی ميدان دې دې سره حديث کښې دَ ګسې سترګې تصريح موجود ده دَ ښې سترګې تفصيل تير شوی حديث نمبر (۵۴۷۰) کښې تيرشوې دې

**[۵۴۷۴] دجال ګسې (چپې) سترګې کا نړې والي**

| ۵۴۷۴ - (١) [١١] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ " الدَّجَّالُ أَعْوَرُ الْعَيْنِ الْيُسْرَى، ۳ جُفَالُ الشَّعَرِ، ۴ مَعَهُ جَنَّتُهُ وَنَارُهُ، ۵ فَنَارُهُ جَنَّةٌ، وَجَنَّتُهُ نَارٌ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
|---|

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذکر الدجال وصفته وما معه (رقم-۱۰۴ - (۲۹۳۴) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب فتنة الدجال، وخروج عيسى ابن مريم، وخروج يأجوج، ومأجوج (رقم-۴۰۷۱) واحمد فی المسند: ۱۱۵/۳

**ترجمه:** [۱]او حضرت حذيفه رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]د دجال چپه سترګه به کوره وي [۳]د هغه به ډير کثرت سره ويښته وي [۴]او د هغه سره به اور وي [۵]ليکن د هغه اور به په حقيقت کې جنت وي او د هغه جنت به په حقيقت کې اور وي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① جُفَالُ الشَّعَرِ: أي كثير الشعر، ډير زيات ويښتو والا. لکه چه يو ځنګلی ځناور وی

**تسهيلات:**

**قوله:** الدَّجَّالُ أَعْوَرُ الْعَيْنِ الْيُسْرَى:

**نوټ:** د دجال د ښې او ګسې سترګې په کاڼړی والی کښې چې کوم تعارض دې د هغې ځلور جوابونه ددې ځخه وړاندې دحديث نمبر (۵۴۷۰) په تسهيل کښې شوې دې.

**[۵٤۷۵] د دجال د حفاظت دباره امت الله تعالى ته سپارل**

۵۴۷۵-()[۱۳][۱](وَعَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ[۲]: ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الدَّجَّالَ [۳]فَقَالَ: " إِنْ يَخْرُجْ وَأَنَا فِيكُمْ فَأَنَا حَجِيجُهُ دُونَكُمْ، [۴]وَإِنْ يَخْرُجْ وَلَسْتُ فِيكُمْ فَامْرُؤٌ حَجِيجُ نَفْسِهِ، [۵]وَاللَّهُ خَلِيفَتِي عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ،

**ترجمه:** [۱]وحضرت نواس ابن سمعان رضی الله عنه وايي [۲]يوه ورځ رسول الله ﷺ د دجال (د راوتلو) [د هغه د مکاريو او د هغه په فتنه کې د خلقو د مبتلا کيدو] ذکر وکی [۳]نو حضور ﷺ وفرمايل که دجال راووځي او (بالفرض) زه ستاسو په مينځ کې موجود يم نوزه به هغه سره ستاسو مخکې [ددنګړو او د دليل په ذريعه] په هغه غالب راشم [۴]او که دجال هغه وخت را اووتلو هرکله چې زه نه يم نو بيا په تاسو کې هرسړی به د خپل ذات د طرف نه هغه سره جګړه کونکی وي [۵]او ځما وکيل او خليفه هرمسلمان د پاره الله تعالى دی

**حل اللغات:** - ① حَجِيجٌ: حجت او دليل سره دفع کونکې، دفاع کونکې.

[۱]إِنَّهُ شَابٌّ قَطَطٌ، [۲]عَيْنُهُ طَافِيَةٌ، [۳]كَأَنِّي أُشَبِّهُهُ بِعَبْدِ الْعُزَّى بْنِ قَطَنٍ، [۴]فَمَنْ أَدْرَكَهُ مِنْكُمْ فَلْيَقْرَأْ عَلَيْهِ فَوَاتِحَ سُورَةِ الْكَهْفِ، وَفِي رِوَايَةٍ: "فَلْيَقْرَأْ عَلَيْهِ بِفَوَاتِحِ سُورَةِ الْكَهْفِ، [۵]فَإِنَّهَا جِوَارُكُمْ مِنْ فِتْنَتِهِ، [۶]إِنَّهُ خَارِجٌ خَلَّةً بَيْنَ الشَّامِ وَالْعِرَاقِ، [۷]فَعَاثَ يَمِينًا، وَعَاثَ شِمَالًا، [۸]يَا عِبَادَ اللَّهِ فَاثْبُتُوا.

**ترجمه:** [۱]د جال به ځوان (ځلمی) وي د هغه ويښته به ولول وي [۲]او د هغه سترګه به پرسيدلي وي [۳]ګويا زه هغه ته د قطن ځوی عبد العزي سره تشبيه ورکولی شم [۴]نو په تاسو کې چې کوم سړی هغه بيا مومي هغه ته پکار دی چې هغه د هغه مخکې د سورة

---

) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذکر الدجال وصفته وما معه (رقم-۱۱۰ - (۲۹۳٤) وابوداود فی کتاب الترجل /باب خروج الدجال (رقم-٤۳۲۱) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فتنة الدجال (رقم-۲۲٤۰)وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب فتنة الدجال، وخروج عیسی ابن مریم، وخروج یاجوج، وماجوج (رقم-٤۰۷۵)

کهف ابتدائي آيتونه اووائي او د مسلم په يوه روايت کې دا الفاظ دي چې هغه ته پکار دی چې هغه د هغه مخکې د سورة کهف ابتدائي آيتونه اووائي [۵] ځکه چې دا آيتونه به تاسو د دجال د فتنې نه مامون او محفوظ ساتي [۶] پوهه شئ دجال به هغه لار ښکاره کېږي کوم چې د شام او عراق په منځ کې واقع ده [۷] او ښي چپ طرفته به فساد پيدا کېږي [۸] نو اې د الله بنده ګانو! (هغه وخت چې دجال راوځي) تاسو خپل دين باندې ثابت قدم وسيږي

**حل اللغات:** - ② قَطَطٌ: ګورګوچي ويښتو والا. ③ طَافِيَةٌ: بهر راوتلې، پړسيدلې. لکه د انګورو دانه. ④ فَوَاتِح: جمع د فاتحة ده، مراد ترې د شروع حصه ده. ⑤ جِوَارُكُمْ: حفاظت کونکې ستاسو. ⑥ خَلَّةٌ: لار. ⑦ عَاثَ: فساد کولو سره به ګرځي.

> [۱] قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ! وَمَا لَبْثُهُ فِي الْأَرْضِ؟ [۲] قَالَ: "أَرْبَعُونَ يَوْمًا، يَوْمٌ كَسَنَةٍ، وَيَوْمٌ كَشَهْرٍ، وَيَوْمٌ كَجُمُعَةٍ، وَسَائِرُ أَيَّامِهِ كَأَيَّامِكُمْ. [۳] قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ! فَذٰلِكَ الْيَوْمُ الَّذِي كَسَنَةٍ أَتَكْفِينَا فِيهِ صَلَاةُ يَوْمٍ؟ [۴] قَالَ: لَا، اقْدُرُوا لَهُ قَدْرَهُ.

**ترجمه:** [۱] راوي وايي چې مونږ په دې اوريدو سره عرض وکړو يارسول الله! هغه به څومره ورځې په زمکه کې وي [۲] حضور ﷺ وفرمايل څلويښت ورځې او د زماني د طوالت د اعتبار نه (په هغه کې به يوه ورځ) د يو کال برابر وي او يوه ورځ به د يوې مياشتې برابروي او يوه ورځ به د يوې هفتې برابر وي او باقي ورځې به د ټولو ورځو مطابق [يعنی د عامو ورځو په شان وي] [۳] مونږ عرض وکړو يا رسول الله! په هغه ورځو کې چې يوه ورځ به د يو کال برابر وي په هغه ورځوکې به زمونږ د يوې ورځې مونځ کافي وي [۴] حضور ﷺ وفرمايل نه بلکه مونځ کولو د پاره به د يوې ورځې حساب لګول وي

> [۱] وَمَا إِسْرَاعُهُ فِي الْأَرْضِ؟ [۲] قَالَ: كَالْغَيْثِ اسْتَدْبَرَتْهُ الرِّيحُ، [۳] فَيَأْتِي عَلَى الْقَوْمِ فَيَدْعُوهُمْ فَيُؤْمِنُونَ بِهِ، [۴] فَيَأْمُرُ السَّمَاءَ فَتُمْطِرُ، وَالْأَرْضَ فَتُنْبِتُ، [۵] فَتَرُوحُ عَلَيْهِمْ [۶] سَارِحَتُهُمْ أَطْوَلَ مَا كَانَتْ ذُرًى، [۷] وَأَسْبَغَهُ ضُرُوعًا، [۸] وَأَمَدَّهُ خَوَاصِرَ،

**ترجمه:** [۱] مونږ عرض وکړو يارسول الله! هغه به په زمکه څومره تيز چليږي [يعنی د هغه د تيزرفتارۍ به څه کيفيت وي] [۲] حضور ﷺ وفرمايل هغه به د هغه وريځ په شان تيز رفتاروي چې د هغه وروسته هوا وي [۳] هغه به يو قوم ته ورسيږي او هغوئ ته به خپل دعوت ورکړي (يعني خپل اتباع طرف ته به يې راوبلي او د بدۍ په لار به يې لګوي) خلق به په هغه ايمان راوړي (يعني د هغه فريب کې راتلو سره د هغه پيروي کول به شروع کړي) [۴] بيا به هغه د خپل تابعدارنوا زلو د پاره وريځې ته د وريدلو حکم وکی نو وريځې به باران او روي او زمکې ته به د سبزه (شينکې) زرغونولو حکم وکړي نو زمکه به سبزه

زغورنه كړي [۵] بيا چې مابنام ته د هغه قوم هغه څاروي راشي (چې څرند د پاره دسهار په وخت كې جنگل او صحرا ته تلي وو) [٦] نو د هغوئ بو كونه (قبونه) به لوی لوی شوی وي [۷] د هغوئ غولانځي به د پيئو د زياتي په وجه غټي شوي وي [۸] او د هغوئ تشي به د ښه خوراك څكاك په وجه راختلي وي

**حل اللغات:-** ⑧ الْقَحْطُ: وريخ، ⑨ سَارِحَتُهُمْ: څريدونكى څاروى ، ⑩ ذُرًى: داجمع ده او ذَدې مفرد ذروة دې د قب اوچتې حصې ته وائي. ⑪ أَسْبَغَهُ: كامل ، مكمل به وی، ⑫ ضُرُوعًا: د ضرع جمع ده غولانځي ته وائي ⑬ خَوَاصِرَ: د خاصرة جمع ده تشي ته وائي،

[۱] ثُمَّ يَأْتِي الْقَوْمَ فَيَدْعُوهُمْ، [۲] فَيَرُدُّونَ عَلَيْهِ قَوْلَهُ، [۳] فَيَنْصَرِفُ عَنْهُمْ، [۴] فَيُصْبِحُونَ مُمْحِلِينَ لَيْسَ بِأَيْدِيهِمْ شَيْءٌ مِنْ أَمْوَالِهِمْ، [۵] وَيَمُرُّ بِالْخَرِبَةِ فَيَقُولُ لَهَا: أَخْرِجِي كُنُوزَكِ، [٦] فَتَتْبَعُهُ كُنُوزُهَا كَيَعَاسِيبِ النَّحْلِ، [۷] ثُمَّ يَدْعُو رَجُلًا مُمْتَلِئًا شَبَابًا، [۸] فَيَضْرِبُهُ بِالسَّيْفِ فَيَقْطَعُهُ جَزْلَتَيْنِ رَمْيَةَ الْغَرَضِ، [۹] ثُمَّ يَدْعُوهُ ; فَيُقْبِلُ وَيَتَهَلَّلُ وَجْهُهُ يَضْحَكُ،

**ترجمه:** [۱] بيا دې نه وروسته به دجال يو بل قوم ته ورشي او هغوئ ته به خپل دعوت ورکړي (يعنی خپلې خدايي طرف ته به يې راوبلي او ورته به وايي چې ما خپل پروردگار تسليم كړئ) [۲] ليكن د هغه قوم خلق به د هغه دعوت رد كړي د هغه خبره به قبوله نه كړي او په هغه باندې به دايمان راوړلو نه انكار وكړي [۳] نو هغوئ نه به لاړ شي (يعنی الله ﷻ به هغه د هغه قوم د طرف نه وگرځوي) [۴] بيا به د هغه قوم خلق د قحط اووچ كالی ښكار شي ددې پورې چې هغوئ به د مال واسباب نه بالكل خالي لاس پاتې شي [۵] دې نه وروسته به دجال يو ويرانه باندې تير شي او هغه ته به حكم وكړي چې خپلې خزانې راوباسي [٦] نو هغه ويرانه به د دجال د حكم مطابق خپلې خزانې راوباسي او هغه خزانې به داسې هغه پسې پسې وي څرنگه چې دعسلو (شهد) د مچو سردار وي [۷] بيا به دجال يو سړی چې د ځلميتوب په عمر كې به وي (يعنی ډير قوي او توانا به وي) ځان طرف ته راوبلي [۸] او په دې خبره غصه كيدو سره (چې هغه د هغه د الوهيت (خدايي) نه انكار وكړي يا محض خپل طاقت او قدرت ښكاره كولو او د خپل غير معمولي كارنامو ښودلو د پاره) په هغه به د توري داسې گذار وكړي چې هغه به دوه ټكړې شي څرنگه چې تير په نښه ويشتل كيږي (يعنی د هغه د جسم هغه دواړي ټكړې به د يو بل نه دومره فاصله باندې وغورځيږي څومره فاصله چې د تير چلونكي او د هغه د نښي په منځ كې وي او بعضې حضراتو دا معنٰی بيان كړې ده چې د هغه د توري گذار به د هغه جسم ته داسې ورسي څرنگه چې تير خپلې نښي ته رسيږي) [۹] دې نه وروسته به دجال د هغه ځلمي د جسم هغه ټكړې راوبلي نو هغه به ژوندې كيدو سره دجال طرف ته متوجه شي او هغه وخت به د هغه مخ ډير خوشحاله او روښانه او خلاص به وي.

**حل اللغات:** - ⑬الْخَرِبَةِ: شاړه او خراب ځائ. ⑭يَعَاسِيبَ: دَ يعسوب جمع ده دَ شاتودَ مچو بادشاه ته يعسوب وائي ⑮جَزْلَتَيْنِ: دَ جزلة تثنيه ده دوه ټکړې مراد دی ⑯رَمْيَةَ الْغَرَضِ: ويشتل د نښې، لرې والي ته اشاره ده.

① فَبَيْنَمَا هُوَ كَذٰلِكَ إِذْ بَعَثَ اللّٰهُ الْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ ② فَيَنْزِلُ عِنْدَ الْمَنَارَةِ الْبَيْضَاءِ، شَرْقِيَّ دِمَشْقَ بَيْنَ مَهْرُودَتَيْنِ، وَاضِعًا كَفَّيْهِ عَلَى أَجْنِحَةِ مَلَكَيْنِ، ③ إِذَا طَأْطَأَ رَأْسَهُ قَطَرَ، وَإِذَا رَفَعَهُ تَحَدَّرَ مِنْهُ مِثْلُ جُمَانٍ كَاللُّؤْلُؤِ. ④ فَلَا يَحِلُّ لِكَافِرٍ أَنْ يَجِدَ مِنْ رِيحِ نَفَسِهِ إِلَّا مَاتَ، ⑤ وَنَفَسُهُ يَنْتَهِي حَيْثُ يَنْتَهِي طَرْفُهُ، ⑥ فَيَطْلُبُهُ حَتَّى يُدْرِكَهُ بِبَابِ لُدٍّ فَيَقْتُلُهُ، ⑦ ثُمَّ يَأْتِي عِيسَى قَوْمٌ قَدْ عَصَمَهُمُ اللّٰهُ مِنْهُ، ⑧ فَيَمْسَحُ عَنْ وُجُوهِهِمْ ⑨ وَيُحَدِّثُهُمْ بِدَرَجَاتِهِمْ فِي الْجَنَّةِ،

**ترجمه:** ① غرض دا چې دجال به دا قسم مکاريو او ګمراه کن کارونو کې مشغول وي. چې اچانك به الله ﷻ مسيح ابن مريم نازل کړي ② چې د دمشق د شرقي جانب سپيني مناري باندې به راکوزشي هغه وخت به حضرت عيسىٰ عليه السلام د زيړ رنګ دوه کپړې اغوستي وي او خپل دواړه لاسونه د دوو فرشتو په وزرو اېښودلو سره دآسمان نه به نازل شي ③ هغه چې کوم وخت خپل سرخکته کړي نو خوله به ترې نه څڅيږي او هرکله چې سر پورته کړي نو د هغه د سر نه به د چاندي د دانو په شان قطرې څڅيږي چې د ملغلرو په شان به وي ④ دا به ناممکن وي چې يو کافر ته د حضرت عيسىٰ عليه السلام د ساه هوا ورشي او هغه مړنشي (يعنې کوم کافر ته چې د هغه د ساه هوا ورشي هغه به مړ شي) ⑤ او د هغه د ساه هوا به دنظرترحده پورې رسيږي ⑥ بيا به حضرت عيسىٰ عليه السلام دجال تلاش کوي ددې پورې چې هغه به باب لُد باندې بيا مومي او قتل به يې کړي ⑦ دې نه وروسته به حضرت عيسىٰ عليه السلام ته هغه خلق راشي کوم چې الله ﷻ به د دجال د مکر وفريب او فتنې نه محفوظ ساتلي وي ⑧ نو حضرت عيسىٰ عليه السلام به د هغوئ د مخونو نه دوړه صفا کړي ⑨ او هغوئ ته به د هغوئ د درجاتو او مراتبو بشارت خوشخبري ورکړي چې هغوئ به يې په جنت کې

**حل اللغات:** - ⑰مَهْرُودَتَيْنِ: زيړ او زعفراني رنګ دوه کپړې. ⑱طَأْطَأَ: سرښکته کړي. ⑲قَطَرَ: راوبه څاسي. ⑳تَحَدَّرَ: څڅيږي به. ㉑جُمَانٍ: دانې (دملغلرو).

① فَبَيْنَمَا هُوَ كَذٰلِكَ إِذْ أَوْحَى اللّٰهُ إِلَى عِيسَى أَنِّي قَدْ أَخْرَجْتُ عِبَادًا لِي لَا يَدَانِ لِأَحَدٍ بِقِتَالِهِمْ، ② فَحَرِّزْ عِبَادِي إِلَى الطُّورِ، ③ وَيَبْعَثُ اللّٰهُ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ ﴿وَهُمْ مِنْ كُلِّ حَدَبٍ يَنْسِلُونَ﴾ [الأنبياء: ۹۶] ④ فَيَمُرُّ أَوَائِلُهُمْ عَلَى بُحَيْرَةِ طَبَرِيَّةَ، ⑤ فَيَشْرَبُونَ مَا فِيهَا، ⑥ وَيَمُرُّ آخِرُهُمْ فَيَقُولُ: لَقَدْ كَانَ بِهٰذِهِ مَرَّةً مَاءٌ، ⑦ ثُمَّ يَسِيرُونَ حَتَّى يَنْتَهُوا إِلَى جَبَلِ الْخَمَرِ، وَهُوَ جَبَلُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ، ⑧ فَيَقُولُونَ لَقَدْ قَتَلْنَا مَنْ فِي الْأَرْضِ، هَلُمَّ فَلْنَقْتُلْ مَنْ فِي السَّمَاءِ، ⑨ فَيَرْمُونَ بِنُشَّابِهِمْ إِلَى السَّمَاءِ، فَيَرُدُّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ نُشَّابَهُمْ مَخْضُوبَةً دَمًا،

**ترجمه:** ① بيا مومي حضرت عيسىٰ عليه السلام به په دې حالت کې وي چې اچانك د الله ﷻ د طرف نه به هغه ته دا وحي راشي چې ماخپل ديربندګان داسې پيدا کړي دي چې هغوئ سره د جنګ کولو قدرت او طاقت هيڅوك نه لري ② نو ته ځما بندګان جمع کولو سره کوه

طور طرف ته بوځه او د هغوئ حفاظت کوي ٣ بیا به الله ﷻ یاجوج وماجوج پیدا کړي چې هره اوچته زمکه باندې ټوپ وهلو سره به راکوزیږي او منډې به وهي ٤ [د هغوئ تعداد به دومره زیات وي] چې د هغوئ مخکنۍ جماعت بُحَیره طبریه باندې تیریږي نو د هغه ټولي اوبه به اوڅکي ٥ بیا چې هغه جماعت نه وروسته راتلونکی جماعت هلته تیریږي نو بحیره طبریه خالي لیدو سره به وایي چې په دې کې خو یو وخت اوبه وي ٦ دې نه وروسته به یاجوج رامخکې شي ددې پورې چې جبل خمرته به ورسیږي چې د بیت المقدس یو غر دې ٧ [او ظلم وقتل او غارت به کوي اذیت رساني او خلق نیولو او قتلولو کې به مشغول شي] او بیابه وایي چې مونږ زمکې والا ختم کړه درځي چې د آسمان والا هم خاتمه وکړي ٨ نو هغوئ به آسمان طرف ته خپلې نیزې ولي ٩ او الله ﷻ به دهغوئ نیزې په وینو ککړې واپس را ایله کړي [چې هغوئ دې ګمان کې پراته اوسي چې زمونږ نیزې واقعتًا د آسمان والا کار تولولو سره واپس راغلي دې ګویا د الله ﷻ د طرف نه به هغوئ ته ډیر (مهلت) ورکول شي او داهم احتمال دی چې هغه نیزې په فضاء کې مارغانوته ولګیږي او د هغوئ د ویني نه ککړ کیدو سره واپس را ارتاؤ شي نو په دې کې دې طرف ته اشاره ده چې د یاجوج ماجوج فتنه به دزمکې پورې محدود نه وي بلکه د زمکې نه پورته به هم خوریږي]

**حل اللغات:-** ⑫ بُحَیْرَة: په شام کښې دَ یونهر بلکه دریاب نوم دې. ⑬ طَبَرِيَّة: په شام کښې دَ یوځانی نوم دې ⑭ نَقَبِه: ساه، ⑮ لَایَدَانِ: طاقت به نه لري، یعنی دَدوی مقابله هیڅوك نه شي کولې، ⑯ حَرِّز: بوځه، ⑰ حَدَب: غونډئ، اوچت ځائ، ⑱ نُشَّاب: غشی. ⑲ مَخْضُوبَة: لړلي شوي، (ککړ په وینو)،

١ وَيُحْصَرُ نَبِيُّ اللّٰهِ وَأَصْحَابُهُ ٢ حَتّٰى يَكُونَ رَأْسُ الثَّوْرِ لِأَحَدِهِمْ خَيْرًا مِنْ مِائَةِ دِينَارٍ لِأَحَدِكُمُ الْيَوْمَ، ٣ فَيَرْغَبُ نَبِيُّ اللّٰهِ عِيسٰى وَأَصْحَابُهُ، ٤ فَيُرْسِلُ اللّٰهُ عَلَيْهِمُ النَّغَفَ فِي رِقَابِهِمْ، ٥ فَيُصْبِحُونَ فَرْسٰى كَمَوْتِ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ،

**ترجمه:** ١ په دې موده کې به د الله نبي او د هغه ملګری [یعنی حضرت عیسی علیه السلام او د هغه وخت مومنان کوه طور باندې انتظاربا شی او په هغوئ به داسباب معیشت تنګي او قلت دې درجې ته ورسیږي] ٢ چې هغوئ د پاره به د غوایي سر ستاسو د نن دسلو دینارو نه ښه وي ٣ [هرکله چې داحالت شي نو] د الله ﷻ نبي حضرت عیسی علیه السلام او د هغه ملګري به [د یاجوج وماجوج هلاکت د پاره] دعا او زاری کوي ٤ نو الله ﷻ به د هغوئ ځټونو کې د چنجي پیداکیدو ناجوړي راواستوي ٥ چې په هغه سره به ټول په یووار مره شي څرنګه چې یوسړی مر کیږي [یعنی د چنجي د ناجوړی په صورت کې په هغوئ به د الله قهر داسې نازل شي چې ټول به په یوه وخت هلاك شي]

**حل اللغات:-** ⑳ الثَّوْر: غوئې، ㉑ النَّغَف: داسې دانه چه چینجی به پکښې اوشی، ㉒ فَرْسٰی: دَ فریسة جمع ده دَ ازمری ښکارته وائی دلته مقتولین مراد دی چه په یوځل به مره شی،

⑥ثُمَّ يَهْبِطُ نَبِيُّ اللهِ عِيسَى وَأَصْحَابُهُ إِلَى الْأَرْضِ، فَلَا يَجِدُونَ فِي الْأَرْضِ مَوْضِعَ شِبْرٍ إِلَّا مَلَأَهُ زَهَمُهُمْ وَنَتْنُهُمْ، ⑦فَيَرْغَبُ نَبِيُّ اللهِ عِيسَى وَأَصْحَابُهُ إِلَى اللهِ ; ⑧فَيُرْسِلُ اللهُ طَيْرًا كَأَعْنَاقِ الْبُخْتِ، فَتَحْمِلُهُمْ فَتَطْرَحُهُمْ حَيْثُ شَاءَ اللهُ».

**ترجمه:** ⑥ د الله نبي حضرت عيسى عليه السلام او د هغه ملګري دي خبري نه اګاه كيدو سره دغره نه به زمكي ته راكوزشي او هغوئ به د زمكي يوه لويشت ځاي هم داسې پيدا نه كړي چې د ياجوج وماجوج د وازګو او بدبويي نه خالي وي ⑦ د دې مصيبت دفع كولو د پاره حضرت عيسى او د هغه ملګري به د الله ﷻ نه دعا وغواړي ⑧ بيا به الله ﷻ د بختي اوښانو د څټ په شان اوږده اوږده څټونو والا داسې مارغان راوليږي چې د ياجوج ماجوج مړي اوچتولو سره بي چيرته چې د الله امر وي هلته يي غورځوي

**حل اللغات:-** ⑬ يَهْبِطُ: راكوز به شي، ⑭ زَهَمُ: وازګې. غوړوالې، ⑮ نَتْنُ: بد بوئي. ګندګي ⑯ يَرْغَبُ: خوښوي به، ⑰ أَعْنَاقِ الْبُخْتِ: څټونه د بختي اوښانو. ⑱ تَطْرَحُهُمْ: غورځوي به هغوي

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِنْ يَخْرُجْ وَلَسْتُ فِيكُمْ فَامْرُؤٌ حَجِيجُ نَفْسِهِ:

**په هر امتي د دجال څخه د خپل ځان د حفاظت ذمه واري:** يعنى كه زه موجودنه ووم نوهر سړې دې دخپل ايمان طرف نه پخپله دفاع كوي. ددې حفاظت يوه طريقه نبي عليه السلام د جمعې په ورځ د سورة كهف اولنى لسو آياتونو لوستل خودلى دى اودويمه طريقه ئې په خپلو دعاګانو كښې د دجال د فتنې څخه د حفاظت دعا شامله كړې ده.

**قوله:** إِنَّهُ خَارِجٌ خَلَّةً بَيْنَ الشَّامِ وَالْعِرَاقِ:

**د خلة مصداق:** دجال به دشام اوعراق په مينځ كښې يوه جزيره كښې بند دې كوم ته چه جزيره برمودا وئيلې كيدې شى د هغه ځائى نه وتلو سره به هغه لار كښې ښكاره شي.

**قوله:** فَيَضْرِبُهُ بِالسَّيْفِ فَيَقْطَعُهُ جَزْلَتَيْنِ رَمْيَةَ الْغَرَضِ

**د مذكوره جملې مفهوم:** يعنى دا سړې به دوه ټكړې شي اودواړه ټكړې به ئى دومره لرې پريوځى څومره چه دغشى نښه لرې وى. په دې كښې د دواړو ټكړو فاصله خودلې شوې ده كيدې شى چه دا سړې حضرت خضر عليه السلام وى.

**قوله:** فَيَطْلُبُهُ حَتَّى يُدْرِكَهُ بِبَابِ لُدٍّ فَيَقْتُلُهُ:

**په باب لد مقام كښې د دجال راګيريدل:** د حضرت عيسى عليه السلام نظر چه چرته پريوځى د هغه ځائى پورې به دهغه ساه رسى اوتركومې پورې چه ئى ساه ځى كافران به پخپله مره كيږي. مګر الله تعالى به دجال ذليله كوى نود حضرت عيسى عليه السلام په لاس به ذليل كيدو سره به د چاړې په وار سره مردارشي. دجال به دتختيدو پوره كوشش كوى مګر باب لد

مقام کښې به ذليله شي او د حضرت عيسى عليه السلام په لاس کښې راشي.

**د مقام لد محل وقوع:** نن صبا چه چرته اسرائيل واقع دى هغه علاقه د فلسطين ده اسرائيل کښې تل ابيب يو مقام دې چه د اسرائيلي حکومت صدر مقام دې. تل ابيب سره نيزدې باب لد يو ځائې دې چرته چه اسرائيل يو مضبوط ائيرپورټ جوړ کړې دې د عوامو د استعمال د پاره دغه ائيرپورټ نه دې بلکه صرف د دجال محفوظ ځائې ته د رسولو د پاره جوړ کړې شوې دې. په دغه ائيرپورټ باندې يو جهاز ولاړ دې چه صرف د دجال د سوريدو د پاره ساتلې شوې دې.

په دې حديث کښې پيشنګوئي ده چه باب لد مقام کښې به دجال وژلې شي په دې وجه اسرائيلي حکومت په باب لد کښې د دجال د بچ کيدو د پاره سامان جوړ کړې دې چه خپل خدائي د دغه مشکل نه راؤباسي مګر داسې به نه کيږي بلکه دجال به هم په باب لد کښې قتل کيږي او بيا به په يهوديانو باندې د هولوکاسټ دور راځي. (کذا في توضيحات شرح مشکاة)

**قوله:** طَبَرِيَّةَ:

**د بحيره طبريه تعارف:** چرته چه دا اوبه جمع دى. د لسوميلو پورې د دې وړوکی سمندر اوږدوالي دې ياجوج ماجوج به دا اوڅکی اوچ به ئې کړي بيا به وائي چه اوريدلي مو دي چه دلته هم کله اوبه وې.

[١] وَفِي رِوَايَةٍ: «تَطْرَحُهُمْ بِالنَّهْبَلِ، [٢] وَيَسْتَوْقِدُ الْمُسْلِمُونَ مِنْ قِسِيِّهِمْ وَنُشَّابِهِمْ وَجِعَابِهِمْ سَبْعَ سِنِينَ، [٣] ثُمَّ يُرْسِلُ اللّٰهُ مَطَرًا لَا يَكُنُّ مِنْهُ بَيْتُ مَدَرٍ وَلَا وَبَرٍ، فَيَغْسِلُ الْأَرْضَ حَتّٰى يَتْرُكَهَا كَالزَّلَفَةِ، [٤] ثُمَّ يُقَالُ لِلْأَرْضِ: أَنْبِتِي ثَمَرَتَكِ وَرُدِّي بَرَكَتَكِ، [٥] فَيَوْمَئِذٍ تَأْكُلُ الْعِصَابَةُ مِنَ الرُّمَّانَةِ وَيَسْتَظِلُّونَ بِقِحْفِهَا وَيُبَارَكُ فِي الرِّسْلِ، [٦] حَتّٰى إِنَّ اللِّقْحَةَ مِنَ الْإِبِلِ لَتَكْفِي الْفِئَامَ مِنَ النَّاسِ، [٧] وَاللِّقْحَةَ مِنَ الْبَقَرِ لَتَكْفِي الْقَبِيلَةَ مِنَ النَّاسِ، [٨] وَاللِّقْحَةَ مِنَ الْغَنَمِ لَتَكْفِي الْفَخِذَ مِنَ النَّاسِ، [٩] فَبَيْنَمَا هُمْ كَذٰلِكَ إِذْ بَعَثَ اللّٰهُ رِيحًا طَيِّبَةً فَتَأْخُذُهُمْ تَحْتَ آبَاطِهِمْ، [١٠] فَتَقْبِضُ رُوحَ كُلِّ مُؤْمِنٍ وَمُسْلِمٍ، وَيَبْقٰى شِرَارُ النَّاسِ يَتَهَارَجُونَ فِيهَا تَهَارُجَ الْحُمُرِ، [١١] فَعَلَيْهِمْ تَقُومُ السَّاعَةُ». [١٢] رَوَاهُ مُسْلِمٌ إِلَّا الرِّوَايَةَ الثَّانِيَةَ وَهِيَ قَوْلُهُ: "تَطْرَحُهُمْ بِالنَّهْبَلِ" إِلٰى قَوْلِهِ: "سَبْعَ سِنِينَ". رَوَاهَا التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او په يوه روايت کښې دادي چې هغه مارغان به د هغوئ د مړو جسدونه د غرونو په سرونو خويدونکي خايونو کې وغورځوي [٢] او مسلمانان به د ياجوج وماجوج په ليندو نيزو او ترکشونو اووه کاله پورې اوربلوي [٣] بيا به الله تعالى يو زور ور باران وکړي چې هغه نه به هيڅ مکان که هغه د خاورې وي او که د کاڼو او که د وړې وي بچ نه کړي او هغه باران به زمکه وينځلو سره د شيشې په شان صفا کړي [٤] بيا به زمکې ته حکم وشي چې خپلې ميوې يعنې خپل پيداوار را اوباسه او خپل برکت واپس پيدا کړه [٥] نو هغه وخت به د زمکې پيداوار دومره بابرکته او دومره ډير شي چې د لس نه واخله

ځلوېښت سرو پورې پوره جماعت به په يو آنار مړيږي او د هغه انار د پوستکي نه به خلق سايه (سوري) حاصلوي او په پينو کې به برکت واچول شي [يعنى د اوښو او بزو په غولانځو کې به پئي ډيري زياتي شي] [٦]دي پورې چې پئي ورکونکي يوه اوښه به پولوی جماعت د پاره کافي وي [٧]پئي ورکونکي يوه غوابه د خلقو د يوي قبيلې د پاره کافي وي [٨]او پئي ورکونکي يوه بزه (چيلئ) به د سړو يو وړوکی جماعت د پاره کافي وي [٩]بهرحال خلق به داسې خوشحاله او د آمن او ارام ژوند تيروي چې الله ﷻ به يوه خوشبوداره هوا راوليږي چې د هغوئ دترخ لاندي حصه به راونيسي [يعنى د هغه هوا په وجه به د] هغوئ ترخونو کې يودرد پيدا شي [١٠]او بيا هغه هوابه د هرمؤمن او هرمسلمان روح قبض کړي او صرف بدکار او شرير خلق به په دنيا کې پاتې شي چې په خپل منځ کې به د خرو په شان ګډوډ شي [١١]او په هغوئ به قيامت قائم شي. [١٢]دا پوره روايت مسلم نقل کړی دی علاوه د دويم روايت د دي الفاظو نه چی تطرحهم بالنهبل تاسبع سنين پوری چې دا ترمذي نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ①تَطْرَحُهُمْ: اوبه غورځوي، ②النَّهْبَل: ديوخائي نوم دې ③يَسْتَوْقِدُ: اور به بلوی. ④ تِيِّ: ليندې، ⑤نُشَّابٍ: غشی، ⑥جِعَابٍ: دَ جعب جمع ده دَ غشو دَ کيخودو خائی. تير کش. ⑦يَكُنُّ: دَ کن نه دي اکنان دَ دې جمع ده، يعنی نه به بچ کيږی، نه به پاتې کيږی. ⑧مَدَر: د لوټو کچه کوروه، ⑨وَبَر: وړئ ، خيمه، ⑩الزَّلَفَة: تالاب، حوض، ⑪أَنْبِتِي: رازرغون کړه، ⑫رُدِّي: راواپس کړه، ⑬العِصَابَة: جماعت، ډله، ⑭الرُّمَّانَة: انار، ⑮قِحْفِهَا: پوستکې د انار، ⑯الرِّسْل: پئ، ⑰اللِّقْحَة: پئ ورکونکې اوښه، ⑱الفِئَام: لوئې جماعت، ⑲الفَخِذ: وړوکې جماعت، ⑳آبَاط: د ابط جمع ده ترخ ته وائی، ㉑يَتَهَارَجُونَ: ګډه وډه بدفعلی کول، د خرو په شان ښکاره زنا کول.

**تسهيلات:**

**قوله: سَهْمَ سِنِينَ:**

**دجديد دور څخه قديم دورته منتقل کيدل:** دَ اووه کالو پورې به په مال غنيمت کښې دَحاصل شوې وسلې لرګی دَ سوزولو په کارراځی. دَدي لفظ نه معلوميږی چه راتلونکی وخت کښې يو داسې دور هم راتلې شی په کوم کښې چه به جديد ټيکنالوجی ختمه شی اودَ جنګونو نقشه به يو ځل بيا دَ جديد نه دَ قديم دور طرف ته راؤګرځی

**[٥٤٧٦]د دجال سره د يو مؤمن مقابله**

٥٤٧٦-()[١٣][١]وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: [٢]«قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَخْرُجُ الدَّجَّالُ، [٣]فَيَتَوَجَّهُ قِبَلَهُ رَجُلٌ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ، فَيَلْقَاهُ الْمَسَالِحُ مَسَالِحُ الدَّجَّالِ [٤]فَيَقُولُونَ لَهُ: أَيْنَ

[1] ) اخرجه مسلم في كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب في صفة الدجال، وتحريم المدينة عليه وقتله المؤمن وإحيائه (رقم-١١٣ - (٢٩٣٨)

تَعْمِدُ؟ فَيَقُولُ: أَعْمِدُ إِلَى هَذَا الَّذِي خَرَجَ، [۵] قَالَ: فَيَقُولُونَ لَهُ: أَوَمَا تُؤْمِنُ بِرَبِّنَا؟ [۶] فَيَقُولُ: مَا بِرَبِّنَا خَفَاءٌ. [۷] فَيَقُولُونَ: اقْتُلُوهُ. فَيَقُولُ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ: أَلَيْسَ قَدْ نَهَاكُمْ رَبُّكُمْ أَنْ تَقْتُلُوا أَحَدًا دُونَهُ". [۸] قَالَ: فَيَنْطَلِقُونَ بِهِ إِلَى الدَّجَّالِ، فَإِذَا رَآهُ الْمُؤْمِنُ

**ترجمه:** [۱] او ابو سعيد خدري رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل هركله چې دجال راووځي [۳] نو په مسلمانانو كې به يو سړى د دجال دشر دفع كولو د پاره هغه طرف ته روان شي (په لار كې به) دهغه سړي سره څه مسلح خلق يوځاي شي چې د دجال محافظين به وي [۴] دا خلق به دهغه مسلمان نه پوښتنه كوي چې چيرته ځې هغه به ورته وايي زه دهغه سړي طرف ته ځم چې فتنه او فساد خورولو د پاره راوتلى دى [يعنې دجال].
[۵] حضور ﷺ وفرمايل په دي اوريدو سره به د دجال محافظين هغه سړي ته وايي ته زمونږ په رب (دجال) باندې ايمان ولې نه راوړې، [۶] هغه سړى به جواب وركړي. زمونږ د پروردګار صفات د هيڅا نه پټ نه دي [۷] د دجال سړى به په دي اوريدو سره په خپلو كې وايي چې داسړى قتل كړي، (چې زمونږ رب باندې ايمان راوړلو ته تيار نه دى) ليكن بعضې به په خپلو كې بيا دا وايي چې آيا زمونږ رب دجال مونږ ددې نه منع كړي نه يو چې مونږ څوك د هغه د حكم نه بغير دى نه وژنو، [۸] آخر هغه خلق به هغه مسلمان سړى دجال ته بوځي او هغه به د علاماتو په ذريعه هغه وپيژني

[۱] قَالَ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ! هَذَا الدَّجَّالُ الَّذِي ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] قَالَ: "فَيَأْمُرُ الدَّجَّالُ بِهِ فَيُشَبَّحُ [۳] فَيَقُولُ: خُذُوهُ وَشُجُّوهُ، فَيُوسَعُ ظَهْرُهُ وَبَطْنُهُ ضَرْبًا" [۴] قَالَ: فَيَقُولُ: "أَمَا تُؤْمِنُ بِي؟" [۵] قَالَ: "فَيَقُولُ: أَنْتَ الْمَسِيحُ الْكَذَّابُ". [۶] قَالَ: "فَيُؤْمَرُ بِهِ فَيُؤْشَرُ بِالْمِئْشَارِ مِنْ مَفْرِقِهِ حَتَّى يُفَرَّقَ بَيْنَ رِجْلَيْهِ". [۷] قَالَ: ثُمَّ يَمْشِي الدَّجَّالُ بَيْنَ الْقِطْعَتَيْنِ، [۸] ثُمَّ يَقُولُ لَهُ: قُمْ، فَيَسْتَوِي قَائِمًا، ثُمَّ يَقُولُ لَهُ: أَتُؤْمِنُ بِي؟

**ترجمه:** [۱] نو وايي به چې خلقو! پوهه شئ داهغه دجال دى چې د هغه ذكر رسول الله ﷺ د خپلو احاديثو په ذريعه فرمايلى وو چې فلانى فلانى علامو سره به په آخره زمانه كې راوځي حضور ﷺ وفرمايل [۲] دجال به د هغه سړي خبري اوريدو سره سخت غصه شي او هغه ته به د پريوتلو حكم وكى او بعضې حضراتو داترجمه كړي ده چې په زمكه به پرمخې پروتې حكم وركړي (څرنګه چې مجرم سزا وركولو د پاره پرمخې اچول كيږي) نو هغه سړى به سم څملول كيږي [۳] بيابه دجال د تاكيد او تشديد دمخه وايي چې دى ونيسي او اوشلوئ نو هغه سړى به په خيټه دومره ګذارونه ووهل شي چې د هغه شا او خيټه به پلنه شي او خوره شي [۴] حضور ﷺ وفرمايل دي نه وروسته به دجال ورته وايي آيا ته اوس هم په ما ايمان نه راوړې [۵] هغه سړى به ورته وايي چې هيڅ كله نه ته دروغجن مسيح يې [۶] بيابه د دجال د طرف نه د هغه سړي د څيرولو او ټكړې ټكړې كولو حكم وشي او د هغه د حكم مطابق به په هغه آره سره د سر د طرف نه اوشلول شي [۷] د دي پورې

چې د هغه د دوارو پښو ترمنځه به هغه دوه ټکړې شي حضور ﷺ وفرمايل دجال به خپله کارنامه باندې فخر کولو سره د هغه د دوارو ټوټو په منځ کې به ګرځي راګرځي ⑧بیابه ورته وايي ودریږه نو هغه مسلمان سړی به ژوندي کیدو سره بالکل سیده اودریږي بیابه ورته دجال وايي ته اوس په ما ایمان راوړه

①يَقُولُ: مَا ازْدَدْتُ إِلَّا بَصِيرَةً". ②قَالَ: "ثُمَّ يَقُولُ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ! إِنَّهُ لَا يَفْعَلُ بَعْدِي بِأَحَدٍ مِنَ النَّاسِ". ③قَالَ: فَيَأْخُذُهُ الدَّجَّالُ لِيَذْبَحَهُ، فَيُجْعَلُ مَا بَيْنَ رَقَبَتِهِ إِلَى تَرْقُوَتِهِ نُحَاسًا، فَلَا يَسْتَطِيعُ إِلَيْهِ سَبِيلًا". ④قَالَ: "فَيَأْخُذُ بِيَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ فَيَقْذِفُ بِهِ، فَيَحْسِبُ النَّاسُ أَنَّمَا قَذَفَهُ إِلَى النَّارِ، وَإِنَّمَا أُلْقِيَ فِي الْجَنَّةِ". ⑤فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "هَذَا أَعْظَمُ النَّاسِ شَهَادَةً عِنْدَ رَبِّ الْعَالَمِينَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①هغه سړی به جواب ورکړي هيڅ کله نه اوس خو خما يقين او بصيرت نورهم زيات او پوخ شو يعنی تاچي مخکې څرنګه زه قتل کړم او بيا دي دوباره ژوندی کړم په دي ماته کامل يقين وشو چې ته دروغجن دجال يې ②حضور ﷺ وفرمايل دي نه وروسته به هغه مسلمان سړي هلته موجود خلق مخاطب کولو سره ورته وايي اې خلقو! نبه پوهه شئ دی دجال چې څه ما سره کړی دی يعنی مخکې يې زه قتل کړم بيايې دوباره راژوندی کړم اوس به ديوبل سړي سره داسې نشي کولی ③بيابه دجال هغه سړی نيولو سره ذبح کول وغواړي خود اوږی هډوکي پورې د هغه غاړه به د تانبي جوړ شي (يعنی د هغه پوره غاړه به د تانبي په شان سخت او کوتلی (ټهوس) شی نو توره وغيره به باندې اثر نشي کولی شرح السنه کې د معمر رحمه الله داقول دی ماته چې کوم روايت رارسيدلی دی بعضې کې دادی چې د هغه سړي غاړې باندې به د تانبي خښته کيښودل شي ا چې د هغه په وجه به هغه قتل نشي ④دي نه وروسته به د هغه سړي دواړه لاسونه دواړي پښې نيولو سره هغه به پورته کړي او په خپل اور کې به يې واچوي نو خلق به دا خيال کوي چې هغه په اور کې غورځول شوي دي ليکن په حقيقت کې هغه به جنت کې غورځول شوی وي ⑤دي بيانولو نه وروسته حضور ﷺ وفرمايل داسړی به د الله رب العالمين په نز د شهادت د اعتبار نه د ډيرې لويې درجي حامل وي

**حل اللغات:** - ①مَسَالِحُ: دَدې مفرد مسلحة دې محافظ ګارډ او څوکيدارته وائی ②أَيْنَ تَعْمِدُ؟: دکوم ځائ قصد دې کړی دې، يعنی چرته روان ئې؟، ③خَفَاءٌ: پټ. ④فَيُشَبَّحُ: پرمخې به ئې راغورزوی. شا لګولې سملولوته هم وائی. ⑤شُجُّوهُ: دَ هغه سر نبه زخمی کړئ ⑥فَيُؤْشَرُ: اوبه شلولې شی، پرې به کړې شی. ⑦الْمِنْشَارُ: آره. ⑧مَفْرِقِهِ: د سر منځ چرته چې په ويښتو کښې لاره ويستلې شی، ⑨الْقِطْعَتَيْنِ: دوه ټکړې، ⑩تَرْقُوَتِهِ: دَ مرئی لاندې هډوکې ، ترترو ⑪نُحَاسًا: تانبه، اوسپنه.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَيَتَوَجَّهُ قِبَلَهُ رَجُلٌ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ:

**د رجل په مصداق کښې دوه اقوال:** ① عام شارحين وائی چه دا رجل به حضرت خضر عليه السلام وی. دې نه معلومه شوه چه هغه تر اوسه پورې ژوندې دې دَعام امت هم دغه خيال دې.
② بعضې شارحين فرمائی چې ددې څخه د حضرت خضر عليه السلام څخه علاوه بل يو كامل مؤمن مراد دې

**قوله:** إِنَّهُ لَا يَفْعَلُ بَعْدِي بِأَحَدٍ مِنَ النَّاسِ:

**ددجال رجل مؤمن لره د دوباره قتلولو څخه عاجزه کيدل:** يعنى دجال ته به دَ استدراج په توګه چه کوم مهلت ورکړې شوې وو اوس هغه ختم شو. اوس به هغه په کرشمې سره دې نه خوك قتلولې شی اونه به ئی ژوندې کولې شی

**[٥٤٧٧] د دجال د فتنې نه به خلق غرونو ته وتښتي**

٥٤٧٧-()[۱۳] ۱ وَعَنْ أُمِّ شَرِيكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ۲ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«لَيَفِرَّنَّ النَّاسُ مِنَ الدَّجَّالِ حَتَّى يَلْحَقُوا بِالْجِبَالِ". ۳ قَالَتْ أُمُّ شَرِيكٍ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! فَأَيْنَ الْعَرَبُ يَوْمَئِذٍ؟ ۴ قَالَ: "هُمْ قَلِيلٌ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي ام شريك رضي الله عنها وايي ۲ چې رسول الله ﷺ وفرمايل خلق به د دجال د مكر وفريب او فتنه وفساد د خوف نه تښتيدو سره غرونو كې پټ شي ۳ ام شريك رضي الله عنها وايي په دي اوريدو سره ماعرض وكړو يارسول الله په هغه ورځو كې به عرب كوم ځاي وي ۴ حضور ﷺ وفرمايل په هغه ورځو كې به عرب ډير كم وي او دجال سره د جهاد او مقابلي كولو طاقت او قدرت به نه لري.

**تسهيلات:**

**قوله:** قَالَتْ أُمُّ شَرِيكٍ: قُلْتُ: يَارَسُولَ اللَّهِ! فَأَيْنَ الْعَرَبُ يَوْمَئِذٍ:

**دام شريک پيژندګلو:** ام شريك دا سوال اوكړو چه دَعربو خلق دَچا كار چه صرف جهاد دې آيا هغوى به هغه وخت نه وى؟ "فأين" كښې فا دَ شرط محذوف جزا ده مطلب به دا شى چه كله دا حال وى نوعرب به چرته وى؟ ام شريك انصارى ده دَهغې تعلق دَ لدى بن غالب سره دې نو رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چه هغه وخت به عرب دومره لږ شان وى چه دَ جهاد قدرت به نه لرى دَدې نه معلومه شوه چه دَ جهاد دَپاره قدرت شرط دې.

**قوله:** لَيَفِرَّنَّ النَّاسُ مِنَ الدَّجَّالِ حَتَّى يَلْحَقُوا بِالْجِبَالِ

**د حديث مفهوم:** چه كله دجال راوځى نو نيكان خلق به غرونو ته لاړ شى او د خپل ايمان حفاظت به كوى چه هسې نه مونږ هم د دجال فتنه كښې راشو او دام شريک دا سوال كول

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب فى بقية من أحاديث الدجال (رقم-١٢٥ - (٢٩٤٥) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى فضل العرب (رقم-٣٩٣٠)

چه عرب به چرته وی ؟ ددې مطلب دادې چه عربو کښې الله ﷻ دنورو نه زيات دينی غيرت او ايمانی جذبه اېښودې ده دوی دهرې فتنې مقابله کوی حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دير لږ به وی او دوی کښې به د مقابلې طاقت نه وی

**[٥٤٧٨] يهوديان او د دجال تابعداری**

٥٤٧٨-()[١٥] ① وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② "«يَتْبَعُ الدَّجَّالَ مِنْ يَهُودِ أَصْفَهَانَ سَبْعُونَ أَلْفًا، ③ عَلَيْهِمُ الطَّيَالِسَةُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس د رسول الله ﷺ نه روايت كوي ② حضور ﷺ وفرمايل داصفهان اويا زره يهوديان به د دجال اطاعت او پيروي كوي ③ چې د هغوئ په سرونو به طيلسان كيږي وي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَصْفَهَانَ: دَ ايران يو لوئی ښاردې دلته به دجال دخدائۍ دعوی کوی ② الطَّيَالِسَةُ: دَ طليسان جمع ده شين څادر ته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله: عَلَيْهِمُ الطَّيَالِسَةُ:**

**د طيلسان معنی:** دا په اصل كښې تاليسان وو عربو طيلسان جوړوكړو دا دكپړې نوم دې او دا د څادر په شان وی. ددې څادر استعمال كښې هيڅ قباحت نشته دې ځينې روايتونو كښې راځی چه حضرت انس ؓ دا لباس نه خوښولو. اوددې وجه دا وه چه دا د زير رنګ وو. (۴)

**[٥٤٧٩] مدينې ته د دجال نه داخليدل**

٥٤٧٩-()[١٦] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " ② «يَأْتِي الدَّجَّالُ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْهِ أَنْ يَدْخُلَ نِقَابَ الْمَدِينَةِ ③ فَيَنْزِلُ بَعْضَ السِّبَاخِ الَّتِي تَلِي الْمَدِينَةَ ④ فَيَخْرُجُ إِلَيْهِ رَجُلٌ وَهُوَ خَيْرُ النَّاسِ، أَوْ مِنْ خِيَارِ النَّاسِ، ⑤ فَيَقُولُ: أَشْهَدُ أَنَّكَ الدَّجَّالُ الَّذِي حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حَدِيثَهُ،

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسعيد وايي رسول الله ﷺ وفرمايل ② دجال چې دنيا ته راشي [يعنی ښکاره شي] نو مدينې منورې طرف ته به هم رخ كړي چې په دې مقدس ښار كې داخل شي او فتنه وفساد وخوروي ليكن د مدينې په لار كې به د هغه داخليدل ممنوع شي [يعني الله ﷻ به د هغه ښار حفاظت وفرمايي او دجال به په هغه كې داخليدو باندې

[1] ) اخرجه مسلم فی كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب فی بقية من أحاديث الدجال (رقم-١٢٤ - (٢٩٤٤) وابن ماجه فی كتاب الفتن/باب فتنة الدجال، وخروج عيسى ابن مريم، وخروج يأجوج، ومأجوج (رقم-٤٠٧٧)

[2] ) اخرجه البخاری فی كتاب الفتن/باب: لا يدخل الدجال المدينة (رقم-٧١٣٢) والترمذی فی كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الدجال لا يدخل المدينة (رقم-٢٢٤٢) واحمد فی المسند: ٣٢/٥

قادر نه شي، [۳]آخر هغه به د مديني ترخې زمکه کې حصار شي [۴]بيابه هغه ته يو سړی راشي چې د هغه زماني په بهترينو په خلقوکي به وي يا دايي وفرمايل چې د بهترينو خلقو د جملې نه به وي [۵]هغه سړی به دجال ته وايي چې زه شاهدی کوم چې ته هغه دجال يي چې دهغه خبر مونږ ته رسول الله ﷺ د هغه احوال او نښاني بيانولو په ذريعه راکړی دی

**حل اللغات:-** ①نِقَابُ: دروازه ②السِّبَاخِ: دَ احددَ غرنه شاته يو شاړه او بنجر زمکې ته وائي

[۱]فَيَقُولُ الدَّجَّالُ: أَرَأَيْتُمْ إِنْ قَتَلْتُ هَذَا ثُمَّ أَحْيَيْتُهُ، [۲]هَلْ تَشُكُّونَ فِي الْأَمْرِ؟ فَيَقُولُونَ: لَا، [۳]فَيَقْتُلُهُ ثُمَّ يُحْيِيهِ، [۴]فَيَقُولُ: وَاللَّهِ مَا كُنْتُ فِيكَ أَشَدَّ بَصِيرَةً مِنِّي الْيَوْمَ، [۵]فَيُرِيدُ الدَّجَّالُ أَنْ يَقْتُلَهُ، فَلَا يُسَلَّطُ عَلَيْهِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]دجال په دي اوريدو سره خپل طرفدارو خلقوته به وايي وښايي که زه دا سړی قتل کړم او بيا دوباره يي راژوندی کړم [۲]نو آيا بيابه هم تاسو څما دخدايي په باره کې شك شبهه کوئ هغه خلق به جواب ورکړي بيا به مونږ ته هيڅ شك شبهه نه وي [۳]نو دجال به هغه سړی قتل کړي او بيابه يي راژوندی کړي او هغه سوال به کوي کوم چې په تير حديث کې تير شو [۴]بيابه هغه سړی وايي قسم په الله ستا په باره کې څما بصيرت او يقين د مخکې نه هم زيات پخته شو (يعنی مخکې خو صرف د علم وخبر په بنياد ستا د دجال کيدو راته يقين وو خو اوس دي تجربې چې تازه قتل کړم او بيادي راژوندی کړم څما يقين نور زيات شو چې ته دروغجن دجال يي او ستا د خدايي دعوی سراسر باطله ده) [۵]دجال په دي اوريدو سره به غواړي چې هغه سړی بيا قتل کړي خو په هغه به قادر نشي. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْهِ أَنْ يَدْخُلَ نِقَابَ الْمَدِينَةِ:

**ددجال مديني ته نه داخليدل:** ددې روايت نه معلومه شوه چه مديني منورې ته به دجال نشی داخليدلې. دَ محجن بن ادرع روايت مسنداحمد او حاكم ذكر كړې دې په هغې كښې دی چه دجال كله هم مديني ته داخليدل غواړی نو په هره لاره به فرښته توره پلاس ولاړه ښكاری چه دې به دَ داخليدلونه منع كوی. دغه شان حاكم په طريق ابی عبدالله القراظ سعدبن مالک ؓ اودَ ابوهريره ؓ نه نقل كړی دی چه رسول الله ﷺ فرمائی اللهم بارك لاهل المدينة (الحديث) وفيه الا ان الملائكة مشتبكة بالملائكة على كل نقب من انقابها ملكان يحرسانها لايدخلها الطاعون ولا الدجال.

**قوله:** فَيَنْزِلُ بَعْضَ السِّبَاخِ الَّتِي تَلِي الْمَدِينَةَ:

**د سباخ محل وقوع:** په كال ۲۰۱۸ كښې د عمرې دپاره حرمينو شريفينو ته تلې ووم هلته زمونږ يو ملګرې مولانا فضل الرحمن هاشمی صاحب خوک چې د مديني منورې په

جامعه کښې ایم فل کوی هغوی راپسې ګارې راوستلو او د مدینې منورې چې تقریباً ځومره تاریخی مقامات وو. د هغې زیارت ئې راباندې وکړل په دغه مقاماتو کښې ئې راته هغه ځائې هم اوښودل چرته چې به دجال راځی خو مدینې منورې ته به نشی داخلیدې دغه ځائې کښې د مدینې منورې د ښار دپاره یوه حد بندی شوې ده او ورسره شاړه زمکه هم وه بلکه عجیبه دا وه چې هلته یو وړوکې غوندې غر وو چې د سعودی په بادشاهانو کښې غالباً عبدالله یا شاه فهد جوړ کړې دې د کوم ځخه چې مدینه منوره په ډاګه ښکاری دهغوی وینا ده چې کله دا محل تیار شو نو بیا عالمانو ته دا سوچ راغلو چې دلته خو به دجال راځی او مدینې منورې ته به نشی داخلیدې بهر صورت داسې معلومیږی چې د دجال د راتلو ځخه وړاندې دهغه دپاره محل هم تیار شوې دې دا بیله خبره ده چې هغه به مدینې ته نشی داخلیدې.

**تاپاک خلق د مدینې ځخه بهر راوتل:** مدینه منوره کښې دَحدودحرم نه بهر دَ احددَ غرنه شاته دَیوشارې او بنجر زمکې نوم سباخ دې. دجال به راتلوسره هم هلته حصاریږی مدینه کښې به درې ځل زلزله راشی کوم چه منافق خلق وی هغوی به دَ مدینې منورې نه بهر اوتختی اودجال سره به ملاؤ شی. هم په دې مقام باندې به دَ یومؤمن دجال سره مناظره وی.علماء وائی چه دا به حضرت خضر وی بیا به فرښتې دجال دَ شام طرف ته اوشړی.

**[۵۴۸۰] دفرشتو د دجال مخ شام طرف ته کول**

۵۴۸۰-([1])[۱۷] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] قَالَ: " «يَأْتِي الْمَسِيحُ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ هِمَّتُهُ الْمَدِينَةُ، [۳] حَتَّى يَنْزِلَ دُبُرَ أُحُدٍ، [۴] ثُمَّ تَصْرِفُ الْمَلَائِكَةُ وَجْهَهُ قِبَلَ الشَّامِ، وَهُنَالِكَ يَهْلِكُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ د رسول الله ﷺ نه روایت کوي [۲] چې حضور ﷺ وفرمایل مسیح دجال به مدینې منورې ته د داخلیدو په اراده مشرق طرف ته راشي [۳] دې پورې چې هغه به د جبلِ اُحد شاته (چې مدینې منورې نه درې میله فاصله باندې دی) راتلو سره حصار شي [۴] بیا (د ذکرشوي سرې د واقعې نه وروسته) فرښتې به د هغه مخ شام علاقې طرف ته وګرځوي (چې د کم ځای نه راغلی دی هلته به واپس لاړ شي) او هغه دجال به هلته یعنی په شام کې ځرنګه چې مخکې تیر شو چې حضرت عیسیٰ علیه السلام به دجال د شام یو کلي باب لد کې قتل کړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - (۱) هِمَّتُهُ: قصد او اراده، (۲) دُبُرَ: شاته، روسته طرف،

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب صیانة المدینة من دخول الطاعون، والدجال إلیها (رقم-۴۸۶ - (۱۳۸۰))والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی الدجال لا یدخل المدینة (رقم-۲۲۴۳)

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ تَصْرِفُ الْمَلَائِكَةُ وَجْهَهُ قِبَلَ الشَّامِ:

**د فرشتو دجال لوره شام طرف ته شړل:** لکه څنګه چې الله تعالی د خپل خليل ابراهيم عليه السلام دعا قبوله کړې ده او دجال به مکې مکرمې ته ننښې داخليدې دغه به دجال مدينې منورې ته هم ننښې داخليدې دا خبره په مختلفو رواياتو کښې راغلې چې په هغه وخت کښې به د مدينې اووه درازې وی اوبه هغه دروازه به دوه فرشتې ولاړې وی او دجال به مدينې منورې ته نه پريږدی

**[۵٤۸۱] مدينې والا به د دجال نه محفوظ وی**

۵۴۸۱-( )[۱۸] ۱ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ " «لَا يَدْخُلُ الْمَدِينَةَ رُعْبُ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، ۳ لَهَا يَوْمَئِذٍ سَبْعَةُ أَبْوَابٍ، عَلَى كُلِّ بَابٍ مَلَكَانِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1]

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روايت کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل ۲ اهل مدينه به د دجال د رعب او خوف نه محفوظ وي ۳ په کومه ورځ چې دجال په مدينه منوره کې د داخليدو ارادې سره راشي نو د مدينې به اووه لاري وي او هره دروازه باندې دوه فرښتي مامور وي چې دجال به مدينې ته داخليدو نه منع کوي (بخاری)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَهَا يَوْمَئِذٍ سَبْعَةُ أَبْوَابٍ، عَلَى كُلِّ بَابٍ مَلَكَانِ:

**د نبی عليه السلام د وفات څخه روسته د جبريل عليه السلام دنيا ته راتلل:** امام سيوطی رحمه الله فرمائی چه په خلقو کښې عام مشهوره خبره ده چه د حضورپاك د وصال نه پس د حضرت جبرائيل امين په مخ د زمکې باندې راتلل موقوف شوی دی نودا بالکل بې اصل خبره ده د دې غلط خيال د ترديد دپاره هغه روايت کافی دې کوم چه طبرانی نقل کړې دې چه حضرت جبرائيل عليه السلام د هر هغه مؤمن سړی د مرګ په وخت تشريف راوړی څوك چه د طهارت او پاكوالی په حالت کښې مړکيږی په يو بل روايت کښې دی چه دجال کله مدينې منورې سره نيزدې تيريږی نو د هغه مخامخ کيدل به هغه وخت يو داسې ګنړې او جماعت سره کيږی چه دجال به تپوس کوی ته څوك يئ؟ هغه هستی به جواب ورکړی زه جبرائيل يم زه الله تعالی راليږلې يم دې دپاره چه زه تا د رسول صلی الله علیه وسلم د حرم نه لرې کړم

**اشکال:** حضرت جبرائيل عليه السلام دومره طاقتور دې نو هغه دجال قتل کوی ولې نه يا د هغه نه دجال څنګه بچ شو؟

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب: لا يدخل الدجال المدينة (رقم-۱۸۷۹)

**اشکال جواب:** حضرت جبرائيل عليه السلام به د دجال د قتل کولو دپاره نه راخي ګني دجال د جبرائيل عليه السلام د يوې وزرې د وهلو هم نه دې حضرت جبرائيل عليه السلام خو به دجال د مدينې منورې نه دمنع کولو دپاره راځي دا اعزاز به صرف د حضرت عيسى عليه السلام د پاره وي چه هغه به دجال قتل کړې شي بل څوك مؤمن به هغه نه شي قتل کولې والله اعلم

**[٥٤٨٢] د دجال تفصيلي ذکر**

٥٤٨٢ - () [١٩] ١ «وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - ٢ قَالَتْ: سَمِعْتُ مُنَادِيَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُنَادِي: الصَّلَاةَ جَامِعَةً، فَخَرَجْتُ إِلَى الْمَسْجِدِ ٣ فَصَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَضْحَكُ، ٤ فَقَالَ: "لِيَلْزَمْ كُلُّ إِنْسَانٍ مُصَلَّاهُ. ٥ ثُمَّ قَالَ: هَلْ تَدْرُونَ لِمَ جَمَعْتُكُمْ؟". قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: ٦ "إِنِّي وَاللَّهِ مَا جَمَعْتُكُمْ لِرَغْبَةٍ وَلَا لِرَهْبَةٍ، ٧ وَلَكِنْ جَمَعْتُكُمْ لِأَنَّ تَمِيمًا الدَّارِيَّ كَانَ رَجُلًا نَصْرَانِيًّا، فَجَاءَ فَبَايَعَ وَأَسْلَمَ،

**ترجمه:** ١ او بي بي فاطمه بنت قيس رضي الله عنها وايي يوه ٢ ورځ ما د رسول الله ﷺ د موذن دا اواز الصلوٰة جامعة (مونځ جمع کونکی دی) اوريدو سره مسجد ته ورسيدم ٣ او بيا مې د رسول الله ﷺ سره مونځ وکړ حضور ﷺ دما نځه دفارغيدو نه وروسته منبر باندې تشريف فرما شو هغه وخت (حسب عادت) د حضور ﷺ په شونډو مبارکو مسکاوه. ٤ حضور ﷺ وفرمايل چاچې کوم ځاې مونځ کړی دی هلته دې ناست وي يعني څوك دې د مسجد نه بهر نه وځي تول خلق دې په خپل ځاې ناست وي ٥ بيايې وفرمايل آيا تاسو ته معلومه ده چې ما تاسو ولې راجمع کړئ صحابه و رضي الله عنهم عرض وکړو الله او د هغه رسول ښه پوهيږي ٦ حضور ﷺ وفرمايل قسم په الله ما تاسو نه خو څه مرغوب څيز د پاره جمع کړي يې او نه څه دهشت ناك څيز د پاره [يعنې ستاسو دلته د حصارولو مقصد نه خو تاسو ته څه شي درکول دي او نه د يودښمن وغيره نه يير ول دي] ٧ بلکه ما تاسو د دې دپاره جمع کړي يې چې تميم داري چې يونصراني (عيسائي) سړی وو راغې او مسلمان شو

١ وَحَدَّثَنِي حَدِيثًا وَافَقَ الَّذِي كُنْتُ أُحَدِّثُكُمْ بِهِ عَنِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، ٢ حَدَّثَنِي أَنَّهُ رَكِبَ فِي سَفِينَةٍ بَحْرِيَّةٍ مَعَ ثَلَاثِينَ رَجُلًا مِنْ لَخْمٍ وَجُذَامٍ، ٣ فَلَعِبَ بِهِمُ الْمَوْجُ شَهْرًا فِي الْبَحْرِ، فَأَرْفَئُوا إِلَى جَزِيرَةٍ حِينَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ، فَجَلَسُوا فِي أَقْرُبِ السَّفِينَةِ فَدَخَلُوا الْجَزِيرَةَ، ٤ فَلَقِيَتْهُمْ دَابَّةٌ أَهْلَبُ كَثِيرُ الشَّعَرِ، لَا يَدْرُونَ مَا قُبُلُهُ مِنْ دُبُرِهِ مِنْ كَثْرَةِ الشَّعَرِ، ٥ قَالُوا: وَيْلَكِ مَا أَنْتِ؟ قَالَتْ: أَنَا الْجَسَّاسَةُ، قَالُوا: وَمَا الْجَسَّاسَةُ؟ ٦ قَالَتْ: أَيُّهَا الْقَوْمُ انْطَلِقُوا إِلَى هَذَا الرَّجُلِ فِي الدَّيْرِ، فَإِنَّهُ إِلَى خَبَرِكُمْ بِالْأَشْوَاقِ، ٧ قَالَ: لَمَّا سَمَّتْ لَنَا رَجُلًا فَرِقْنَا مِنْهَا أَنْ تَكُونَ شَيْطَانَةً ٨ قَالَ فَانْطَلَقْنَا سِرَاعًا حَتَّى دَخَلْنَا الدَّيْرَ، فَإِذَا فِيهِ أَعْظَمُ إِنْسَانٍ رَأَيْنَاهُ قَطُّ خَلْقًا، وَأَشَدُّهُ وِثَاقًا، مَجْمُوعَةٌ يَدَاهُ إِلَى عُنُقِهِ، مَا بَيْنَ رُكْبَتَيْهِ إِلَى كَعْبَيْهِ بِالْحَدِيدِ. ٩ قُلْنَا: وَيْلَكَ مَا أَنْتَ؟ قَالَ: قَدْ قَدَرْتُمْ عَلَى خَبَرِي ; فَأَخْبِرُونِي مَا أَنْتُمْ؟ ١٠ قَالُوا:

[1] ) اخرجه مسلم في كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب قصة الجساسة (رقم-١١٩ - (٢٩٤٢) وابوداود في كتاب الترجل/باب في خبر الجساسة (رقم-٤٣٢٦) والترمذي في كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٢٥٣)

نَحْنُ أُنَاسٌ مِنَ الْعَرَبِ، رَكِبْنَا فِي سَفِينَةٍ بَحْرِيَّةٍ، فَلَعِبَ بِنَا الْبَحْرُ شَهْرًا، فَدَخَلْنَا الْجَزِيرَةَ، فَلَقِيَتْنَا دَابَّةٌ أَهْلَبُ، ⑪فَقَالَتْ: أَنَا الْجَسَّاسَةُ اعْمِدُوا إِلَى هَذَا فِي الدَّيْرِ، فَأَقْبَلْنَا إِلَيْكَ سِرَاعًا وَفَزِعْنَا مِنْهَا، وَلَمْ نَأْمَنْ أَنْ تَكُونَ شَيْطَانَةً

**ترجمه:** ①او هغه ماته يو داسي واقعه بيان کړه چې د مسيح دجال په باره کې د هغه خبرو مطابق ده چې زه يې تاسو ته ښايم [نو ما مناسب وګڼل چې د تميم داري هغه واقعه تاسو ته هم بيان کړم چې د دجال په باره کې ستاسو يقين نور زيات پوخ شي او څما خو دلي خبري د مشاهدې نزدې شي] ②نو واورئ ماته تميم داري بيان وکړي چې هغه يوه ورځ د قبيله جذام ديرش سړو سره يوه بحري کيشتئ کې سوريدو سره روان شو، ③نو د اوبو چپو يوه مياشت پورې د کيشتئ سواره لوبول [يعنی کيشتئ د سمند يوداسې چپو کې راګيره شوه چې مسلسل يوه مياشت پورې اخواديخوا يې ګرځوله او سواره يې منزل مقصود رسيدو ته نه پريښودل ددې پورې چې هغه چپو يوه ورځ د نمر د لويدو په وخت يو جزيرې ته نزدې ورسوله او ټول شواره هغه وړ و وړ و کشتئ کې چې لوی کشتئ کې وی په کينا ستو سره هغه جزيرې ته ورسيدو] ④هلته هغوئ سره يوداسې حيوان يوخاي شو چې ډير ويښتانو والا وو او د ويښتانو د کثرت په وجه خلقو [د هغه وروسته مخکې نه شو معلومولی د هغه حيوان په جسم دومره زيات ويښته وه چې پوره جسم يې ور پټ کړی وو او خلقو نه شو پيژندی چې د هغه وروستنی حصه کومه يوه ده او مخکنی کومه يوه] ⑤خلقو د هغه ليدوسره په حيرت سره ورته اوويل په تا افسوس ته څوك يې او څه يې [يعنی آخر ستا اصل او ماهيت څه دی ته څه جن يې يا انسان يې] هغه حيوان جواب ورکړو چې زه جساسه او خبر رسان يم ⑥تاسو خلق هغه سړي ته ورشئ چې ډير قلعه کې دی خکه چې هغه ته ستاسو د خبرونو اوريدو ډير شوق دی ⑦تميم داري بيان وکړو هرکله چې هغه حيوان مونږ ته د هغه سړي ذکر وکی او مونږ ته يې هغه ته د تلو اوويل نومونږ ډير وويرېدو چې داد انسان په شکل وصورت کې شيطان نه وي ⑧بهرحال مونږ تيزی سره ور روان شو او کوم وخت چې درمسال بت خانه کې داخل شو نو چې ګورو هلته يولوی جسم والا او ډير خوفناك سړي موجود وو دغه شان شکل وصورت والا سړي مونږ دي نه مخکې هيڅ کله نه وو ليدلي هغه ډير مضبوط داسې تړل شوي وو چې د هغه لاسونه دځټ سره او د ګونډو د منځ نه ترپښو پورې د اوسپنې زنجيرونو سره تړلي وو ⑨د هغه په ليدو سره مونږ ډير حيرت سره ورته اوويل په تا افسوس دی ته څوك يې او څه يې هغه په جواب کې اوويل هرکله چې تاسو زه پيداکړم او معلوم مو کړم او دلته په را رسيدو کې کامياب شوئ نو اوس زه تاسو ته په خپل باره کې هيڅ نه پټوم او هرڅه درته ښايم ليکن مخکې ماته په خپل باره کې او ښائي او څه چې ستاسو نه پوښتنه کوم د هغه جواب راکړئ چې تاسو څوك يئ او کوم ځاي نه راغلي يې ⑩مونږ خلقو هغه ته

اوویل چې مونږ د عربو خلق یو بحري کیشتئ کې سواره وو او خپل منزل مقصود طرف ته تلو چې سمندري طوفان مونږ یوه میاشت پورې راګیر کړو او زمونږ کیشتئ یې دلته پرېښودله مونږ دې جزیرې ته راکوزشو دلته زمونږ سره یو ویښتانو والا حیوان یوځای شو [۱۱] او هغه اوویل زه جاسوس یم تاسو خلق هغه سړي ته ورشئ چې دَیر یعنې یولوی بت خانه یا محل کې موجود دی نو مونږ ډېرې تیزۍ سره تاته راغلو

[۱] فَقَالَ: فَلَقِيَتْهُمْ دَابَّةٌ أَهْلَبُ كَثِيرُ الشَّعَرِ قُلْنَا: عَنْ أَيِّ شَأْنِهَا تَسْتَخْبِرُ؟ قَالَ: أَسْأَلُكُمْ عَنْ نَخْلِهَا هَلْ تُثْمِرُ، فَأَرْفَئُوا إِلَى جَزِيرَةٍ حِينَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ؟ قُلْنَا: نَعَمْ. قَالَ: أَمَا إِنَّهَا يُوشِكُ أَنْ لَا تُثْمِرَ. [۲] قَالَ: أَخْبِرُونِي عَنْ بُحَيْرَةِ الطَّبَرِيَّةِ، قُلْنَا: عَنْ أَيِّ شَأْنِهَا تَسْتَخْبِرُ؟ قَالَ: هَلْ فِيهَا مَاءٌ؟ قُلْنَا: هِيَ كَثِيرَةُ الْمَاءِ، قَالَ: أَمَا إِنَّ مَاءَهَا يُوشِكُ أَنْ يَذْهَبَ. [۳] قَالَ: أَخْبِرُونِي عَنْ عَيْنِ زُغَرَ. قَالُوا: وَعَنْ أَيِّ شَأْنِهَا تَسْتَخْبِرُ؟ قَالَ: هَلْ فِي الْعَيْنِ مَاءٌ؟ وَهَلْ يَزْرَعُ أَهْلُهَا بِمَاءِ الْعَيْنِ؟ قُلْنَا لَهُ: نَعَمْ، هِيَ كَثِيرَةُ الْمَاءِ، وَأَهْلُهَا يَزْرَعُونَ مِنْ مَائِهَا. [۴] قَالَ: أَخْبِرُونِي عَنْ نَبِيِّ الْأُمِّيِّينَ مَا فَعَلَ؟ قُلْنَا: قَدْ خَرَجَ مِنْ مَكَّةَ وَنَزَلَ يَثْرِبَ. قَالَ: أَقَاتَلَهُ الْعَرَبُ؟ قُلْنَا: نَعَمْ. [۵] قَالَ: كَيْفَ صَنَعَ بِهِمْ؟ فَأَخْبَرْنَاهُ أَنَّهُ قَدْ ظَهَرَ عَلَى مَنْ يَلِيهِ مِنَ الْعَرَبِ وَأَطَاعُوهُ، قَالَ أَمَا إِنَّ ذٰلِكَ خَيْرٌ لَهُمْ أَنْ يُطِيعُوهُ [۶] وَإِنِّي مُخْبِرُكُمْ عَنِّي: إِنِّي أَنَا الْمَسِيحُ الدَّجَّالُ وَإِنِّي يُوشِكُ أَنْ يُؤْذَنَ لِي فِي الْخُرُوجِ فَأَخْرُجَ، فَأَسِيرَ فِي الْأَرْضِ، فَلَا أَدَعَ قَرْيَةً إِلَّا هَبَطْتُهَا فِي أَرْبَعِينَ لَيْلَةً [۷] غَيْرَ مَكَّةَ وَطَيْبَةَ، هُمَا مُحَرَّمَتَانِ عَلَيَّ كِلْتَاهُمَا، كُلَّمَا أَرَدْتُ أَنْ أَدْخُلَ وَاحِدَةً أَوْ وَاحِدًا مِنْهُمَا اسْتَقْبَلَنِي مَلَكٌ بِيَدِهٖ سَيْفٌ صَلْتًا يَصُدُّنِي عَنْهَا [۸] وَإِنَّ عَلَى كُلِّ نَقْبٍ مِنْهَا مَلَائِكَةً يَحْرُسُونَهَا".

ترجمه: [۱] هغه اوویل ښه دی ماته دا او ښائي چې بیسان کې د کجورو کومې ونې دي په هغه کې میوه راغلي ده مونږ ورته اوویل هو میوه باندې راغلي ده هغه اوویل پوهه شئ هغه زمانه زر راتلونکې ده چې د بیسان د خورماوو په و نو کې به میوه نه راځي ګویا هغه دې طرف ته اشاره وکړه چې قیامت زر راتلونکی دی [۲] هغه اوویل اوس ماته د بحیره طبریه په باره کې اووایئ چې آیا په هغه کې اوبه شته یانه؟ مونږ ورته اوویل چې په هغه کې خو ډېرې اوبه دي هغه اوویل یقینًا ډېر نزدې د دې اوبه به ختمې شي [۳] بیا هغه پوښتنه وکړه ماته دا او ښائي چې د زُغر چینه کې اوبه شته یانه او د هغه ځای خلق د هغه چشمې په ذریعه کاشت کوي یانه مونږ ورته اوویل هو په هغه چینه کې اوبه ډېرې دي او هغه خلق هغه اوبو سره کاشت کوي [۴] دې نه وروسته هغه اوویل اوس ماته د امیانو یعنې د اهل عرب د نبي ﷺ په باره کې او ښائي هغه څه وکړه مونږ ورته اوویل هغه مکه پرېښودله او اوس یثرب مدینې ته په هجرت راغلی دی [۵] هغه پوښتنه وکړه آیا عرب خلقو د هغه سره جنګ کړی دی مونږ ورته اوویل هو بیا هغه پوښتنه وکړه چې هغه د اهل عرب سره څه معامله وکړه مونږ هغه ته وښودل چې هغه نبي ﷺ په عربو غالب راغلی دی ځکه چې د هغه نزدې دی هغوئ یې اطاعت اختیار کړی دی هغه اوویل تاسو ته معلومیدل پکار دي چې هغه خلقو ته د هغه اطاعت کول ښه دي [۶] او اوس زه تاسو ته

خپل په باره کې ښایم چې زه درحقیقت مسیح یعنی دجال یم هغه زمانه زر راتلونکې ده چې ماته به د وتلو اجازت حاصل شي هغه وخت به زه وځم او څلویښت ورځو پورې به په زمکه گرځم ددې پورې چې داسې هیڅ آبادي به پرې نه ږدم چې په هغه کې داخل نشم ۷ماسوا د مکې او طیبې یعنی مدینې نه دا دواړه ښارونه په ما حرام گرځول شوي دي یعنی دې دواړو ښارونو کې به څما داخله منع وي او د دې ممانعت صورت به داوي چې کله زه په دې دواړو ښارونو کې داخلیدل وغواړم نو څما مخې ته به یوه فرښته راځي چې په لاس کې به یې بربنډه (بغیر تیکی) توره وي هغه فرښته به ما د هغه ښار د داخلیدو نه منع کوي ۸حقیقت دادی چې په هغه ښار کې تولو لارو باندې به فرښتي ماموري وي چې د هغه ښار حفاظت به کوي

۱قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَطَعَنَ بِمِخْصَرَتِهِ فِي الْمِنْبَرِ: " وَهَذِهِ طَيْبَةُ، هَذِهِ طَيْبَةُ، هَذِهِ طَيْبَةُ " يَعْنِي الْمَدِينَةَ، " ۲أَلَا هَلْ كُنْتُ حَدَّثْتُكُمْ؟ " فَقَالَ النَّاسُ: نَعَمْ، ۳فَإِنَّهُ أَعْجَبَنِي حَدِيثُ تَمِيمٍ أَنَّهُ وَافَقَ الَّذِي كُنْتُ أُحَدِّثُكُمْ عَنْهُ وَعَنِ الْمَدِينَةِ وَمَكَّةَ، ۴أَلَا إِنَّهُ فِي بَحْرِ الشَّامِ أَوِ الْيَمَنِ، لَا بَلْ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ ۵مَا هُوَ، مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ مَا هُوَ، مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ مَا هُوَ " ۶وَأَوْمَأَ بِيَدِهِ إِلَى الْمَشْرِقِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱راوي وایي رسول الله ﷺ د تمیم داري پوره واقعه بیانولو نه وروسته صحابه ﷺ باندې د خپلې دې خوشحالۍ ښکاره کولو د پاره چې گوري د دجال په باره کې چې څه ما تاسو ته ښودل د هغه پوره پوره تصدیق او تائید دې واقعي نه کېږي بیا حضور ﷺ تولو ښارونو باندې د مدینې فضیلت او لویي ښکاره کولو د پاره جوش کې خپله عصاء مبارکه منبر باندې وهلو سره (درې خله) دا وفرمایل چې داده طیبه داده طیبه داده طیبه یعنی مدینه ۲بیا یې وفرمایل یادلرئ آیا مابه تاسو ته داخبره نه ښودله (لکه چې د دجال په باره کې ددې واقعي نه ښکاره کېږي) ۳صحابه ﷺ اوویل هو تاسو به مونږ ته دغه شان خبره کوله ۴دې نه وروسته حضور ﷺ وفرمایل پوهه شئ دجال د شام سمندر کې دی ۵نه دیمن په سمندر کې بلکه هغه به مشرقي جانب نه راځي ۶دې فرمایلو سره حضور ﷺ په لاس سره مشرق جانب ته اشاره وکړه (مسلم)

**حل اللغات:-** ①رَغْبَةٌ: خوښ، ②رَهْبَةٌ: ناخوښه، د ویرې، ③لَخْمٌ وَجُذَامٌ: دا دوه قبیلې دی ④أَقْرُبٌ: دَ قارب جمع ده وړې کشتنۍ ته وائی ⑤دَابَّةٌ: ځناور. ⑥أَهْلَبُ: گڼرو ویښتو والا. ⑦الْجَسَّاسَةُ: جاسوسی کوونکې، خبر رسونکې. ⑧الدَّيْرُ: کور، (د راهبانو ځائې). ⑨الْأَشْوَاقُ: ډیر شوق لرونکې. ⑩وِثَاقًا: مضبوط. ⑪اعْمِدُوا: قصد اوکړئ. روان شئ. ⑫فَزِعْنَا: اوبریدو مونږ. ⑬نَخْلُ بَيْسَانَ: په جزیرهٔ عرب کښې د کجورو باغ دې. ⑭بُحَيْرَةٌ: په شام کښې دَ یونهر بلکه درياب نوم دې ⑮طَبَرِيَّةُ: په شام کښې دَ یوځائې نوم دې ⑯عَيْنُ زُغَرَ: په شام کښې دَ یوې چینې نوم دې. ⑰هَبَطْتُهَا: ورځم به هغې ته. ⑱صَلْتًا: بربنده، ښکاره (توره) ⑲نَقْبٌ: دَدې جمع انقاب ده. لارې ته وائی ⑳مِخْصَرَتِهِ: کونتئ. همسا

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَرْفَئُوا إِلَى جَزِيرَةٍ حِينَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ

**د واقعې په محل وقوع کښې دوه احتمالات:** ① که دې خلقو په بحيره روم کښې سفر کولو نو بيا به دا واقعه د بحر اوقيانوس په شمال مغربی افريقه کښې د يورپ جنوبی مغربی طرف ته اود سپين اومراکش مغرب طرف ته واقع شوې وی

② که د دوی سفر په بحرقلزم (بحراحمر) کښې وو نوبيا هم دا دا د بحراوقيانوس جنوبی طرف ته پيښه شوې وی کوم چ ځکه چې بحراوقيانوس د مشرق اومغرب طرف ته دومره لوئې نه دې بلکه دا يو خليج دې.

**قوله:** فَلَقِيَتْهُمْ دَابَّةٌ أَهْلَبُ كَثِيرُ الشَّعَرِ

**د دابة ځخه مراد:** دابة ځناورته وائی اوکثير الشعر يعنی زياتو ويښتو والا دې کسانو سره ملاؤ شوه

**اشکال:** په حديث الباب کښې جساسه په دابة سره تعبيرکړې ده او په ابوداؤد کښې د امراة لفظ واقع دې؟

**د اشکال ځلور جوابونه:** ①: ممکن دی چه هغه جساسه وی يوه په صورت دَ امراة او بله په صورت دَ دابة

② دا جساسه شيطانه وه چه کله به دَ دابة په شکل کښې ښکاريده او کله به دَ امراة په شکل ښکاريده او شيطان ته په شکل بدلولو باندې قدرت حاصل دې

③: اصل جسّاسه ښځه ده او دابة سره په اعتبار دَ لغت تعبيرکړې شوې ده کماقال تعالی (وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللهِ رِزْقُهَا)

④: جساسه هم ښځه ده خو په کثرت دَ ويښتو ئې دابة سره تعبيرکړې ده قاله کنکوهی رحمه الله.

**قوله:** أَيُّهَا الْقَوْمُ انْطَلِقُوا إِلَى هَذَا الرَّجُلِ فِي الدَّيْرِ

**د دير درې مصداقات:** دير په مختلفو معانيو کښې استعماليږی.

① دَ اور دعبادت بـرنکو عبادتخانه

② دَ نصاریٰ عبادت خانه اومدرسه.

③ شراب خانه

**دحديث دبعضې جملووضاحت:**

① أَخْبِرُونِي عَنْ نَخْلِ بَيْسَانَ: په فتح دَ باء او سکون دَ ياء دَ يوکلی نوم دې چه دَ شام په ملک کښې اردن سره نيزدې واقع دې.

② أَخْبِرُونِي عَنْ عَيْنِ زُغَرَ: په ضمه دَ زاء اوفتح دَ عين سره دَ شام په ملک کښې دَ يو ځائ نوم دې هلته دَ اوبه دغه چينه ده. دجال دا سوال په دې وجه اوکړو چه قرب قيامت کښې به عين زغر کښې اوبه وى نو صحابه کرامو بيان اوکړو چه دواړه ډکې دى او اوبه په کښې غرمبيږى دَمسلم په روايت کښې دى قلنا نعم هى كثيرة الماء واهلها يزرعون من مائها.

③ الْجَسَّاسَةُ: دَ دې نه دَدجال دَپاره خبرې راجمع کونکې ښځه مراد ده. جساسه ځپل نور تعارف نه دې کړې بلکه اصل خبره کومه چه دَ دجال سره متعلق وه هغه ئې شروع کړه

④ قَدَرْتُمْ: يعنى تاسو دَدې ځائى پورې هم راؤ رسيدې او زما په احوال باندې قادر شوئې؟ تيك ده زه به تاسو ځپل احوال اوښايم مګر اول تاسو اوښايئى.

⑤ مَا أَنْتُمْ؟: تاسو څه څيزئى؟دا جواب ترکى بزبان ترکى دې لکه څنګه چه دوى دَ دجال نه يو شئ جوړکړو اوسوال ئى اوکړو دجال هم هغه شان اوکړه دواړو يو بل په تعجب او حقارت سره ياد کړه.

⑥ لَا بَلْ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ: حضورپاك داکلام دَ شك اوتردد په اندازکښې ځکه اوفرمائيلو چه دجال دَ قيامت دَ لويو علامتونونه دې نوچه څنګه قيامت پټ ساتلې شوې دې دغه شان دَدې لوئى علامت هم دَ يوحده پورې پټ ساتلې شوې دې.

⑦ مَا هُوَ: کښې کلمه دَما زائده ده دَنفى دَپاره نه ده يا لفظ موصوله دې دَ الذى په معنى کښې دې "اي الذي هو فيه".

**[٥٤٨٣] د دجال شکل او صورت**

| ٥٤٨٣-()[٢٠] ① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- ② أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "رَأَيْتُنِي اللَّيْلَةَ عِنْدَ الْكَعْبَةِ، ③ فَرَأَيْتُ رَجُلًا آدَمَ كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ مِنْ أُدْمِ الرِّجَالِ، ④ لَهُ لِمَّةٌ كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ مِنَ اللِّمَمِ ⑤ قَدْ رَجَّلَهَا، فَهِيَ تَقْطُرُ مَاءً، مُتَّكِئًا عَلَى عَوَاتِقِ رَجُلَيْنِ، يَطُوفُ بِالْبَيْتِ، ⑥ فَسَأَلْتُ: مَنْ هَذَا؟ فَقَالُوا: هَذَا الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ" |
| --- |

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دى ② چې يوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل مانن شپه خپل ځان (په خوب کې يا د کشف په حالت کې) کعبې سره اوليدلو ③ هلته ماته يوداسې غنم رنګه سرى په نظر راغې چې د يوداسې سړي په شان وو چې دهغه تاسو د غنم رنګي په سبب د ټولو نه بهتر اوښه صورت وينى ④ د هغه په سر ډير وينښته وه تر اوږو پورې زوړند وه او د وينښتانو د اعتبار نه هم هغه ديو داسې سړي سره

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب من عرف اللقطة ولم يدفعها إلى السلطان (رقم-٢٤٤٠) ومسلم في كتاب الإيمان/باب ذكر المسيح ابن مريم، والمسيح الدجال (رقم-٢٧٣ - (١٦٩) كتاب صفة النبى صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صفة عيسى ابن مريم عليه السلام، والدجال (رقم-٢)واحمد في المسند:١٥٤/٢

مشابه وو چې هغه تاسو دي قسم ويښتانو لرونکو کې د ټولو نه خوبصورته ويني ⑤د هغه ويښته منګز شوي وه او د ويښتانو نه يې د اوبو قطري څڅيدلې هغه سړي د دوو سړو په اوږو لاس ايښودلو سره د خانه کعبې طواف کوی ⑥ما د هغه په ليدو سره د طواف کونکو نه پوښتنه وکړه چې دا څوك دی هغوئ جواب راکړو چې دا مسيح ابن مريم ﷺ دی

**حل اللغات:**- ①آدَمَ: غنم رنګې، ②لِمَّةُ: د اوږو او غوږونو ترمينځه پورې ويښته، ③رَجُلَهَا: ګومنز کړی ئې وو، ④عَوَاتِقِ: د عاتق جمع ده، د اوږې مينځ ته وائی (ما بين المنكب والعنق).

①قَالَ: "ثُمَّ إِذَا أَنَا بِرَجُلٍ جَعْدٍ قَطَطٍ أَعْوَرِ الْعَيْنِ الْيُمْنَى ②كَأَنَّ عَيْنَهُ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ، كَأَشْبَهِ مَنْ رَأَيْتُ مِنَ النَّاسِ بِابْنِ قَطَنٍ ③وَاضِعًا يَدَيْهِ عَلَى مَنْكِبَيْ رَجُلَيْنِ، يَطُوفُ بِالْبَيْتِ، ④فَسَأَلْتُ مَنْ هٰذَا؟ فَقَالُوا: هٰذَا الْمَسِيحُ الدَّجَّالُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ⑤وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ فِي الدَّجَّالِ: " «رَجُلٌ أَحْمَرُ جَسِيمٌ، جَعْدُ الرَّأْسِ، أَعْوَرُ عَيْنِ الْيُمْنَى، ⑥أَقْرَبُ النَّاسِ بِهِ شَبَهًا ابْنُ قَطَنٍ».

**ترجمه:** ①دي نه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل بيا اچانك ځما نظر په يو سړي باندې ولګيدلو چې د هغه ويښته وَل وَل اونيغ ولاړ وه هغه په ښي سترګه کور وو ②لکه چې د هغه سترګه د انګورو په شان پړسيدلې دانه ده يابې نوره وه کوم خلق چې ماليدلي دي په هغوئ کې هغه د ابن قطن ډير مشابه وو ③هغه سړی د دوو سړو په اوږو لاس ايښی د خانه کعبې طواف يې کولو ④ما د هغه په باره کې هم پوښتنه وکړه چې دا څوك دی نو خلقو جواب راکړو چې دا مسيح دجال دی. (بخاري مسلم) ⑤په يو بل روايت کې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ د دجال په باره کې وفرمايل هغه يو داسې سړی دی چې هغه سور رنګې دي دجسامت په لحاظ سره غټ دې. د سر ويښته يې وَل وَل دي ښي سترګه يې کوره (کاڼړې) ده ⑥د مشابهت په اعتبار سره په خلقو کې ابن قطن هغه ته ډير نزدې دی.

**حل اللغات:**-⑤جَعْدٍ: ګول ګچې ويښته، ⑥قَطَطٍ: ول ول نيغ ولاړ (ګلګتې) ⑦أَعْوَرَ: کاڼړې، چقوړ، ⑧عِنَبَةٌ: دانګورو دانه، ⑨طَافِيَةٌ: راوچته شوې، راوتلې، ⑩جَسِيمٌ: څرب، غټ بدن والا

①وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ: " «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا» فِي (بَابِ الْمَلَاحِمِ) ②وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ ابْنِ عُمَرَ: قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ فِي (بَابِ قِصَّةِ ابْنِ صَيَّادٍ). إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى

**ترجمه:** ①او د حضرت ابو هريره ﷺ دا حديث: لاتقوم الساعة حتى تطلع الشمس من مغربها الخ باب الملاحم کې نقل شوي دي ②او د حضرت ابن عمر ﷺ دا روايت قام رسول الله في الناس.... الخ به انشاء الله مونږ د ابن صياد د قصې په باب کې نقل کړو.

**تسهيلات:** قوله: فَقَالُوا: هٰذَا الْمَسِيحُ الدَّجَّالُ:

**اشکال:** يعني په خوب کښې چې کوم دويم کس طواف کولو هغه دجال وو. اشکال دا دې چه دَ دجال دَ بيت الله نه چاپيره طواف کولو څه مطلب دي؟

**۵اشکال درې جوابونه:**
① دا طواف دَ اسلام دَ غلبې نه مخکښې کفر دَ غلبې په زمانه کښې وو.
② دَ حضرت عیسٰی علیه السلام دَ ذکر دَمناسبت سره دَ دجال تذکره راغلې چه دواړه دَ یوبل مقابل دی.
③ دَ البیت نه دین مراد دې نو عیسٰی علیه السلام په ښه صورت کښې دَخپل دین نه چاپیره تاویدلو او دجال دَ خپل باطل دین نه چاپیره چکرې لګولې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٥٤٨٤] په يوه جزيره كښې د دجال وجود**

۵۴۸۴-()[۲۱] ①عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - فِي حَدِيثِ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ: قَالَتْ ②قَالَ: "«فَإِذَا أَنَا بِامْرَأَةٍ تَجُرُّ شَعَرَهَا ③قَالَ: مَا أَنْتِ؟ قَالَتْ: أَنَا الْجَسَّاسَةُ، اذْهَبْ إِلَى ذٰلِكَ الْقَصْرِ، ④فَأَتَيْتُهُ، فَإِذَا رَجُلٌ يَجُرُّ شَعَرَهُ مُسَلْسَلٌ فِي الْأَغْلَالِ، يَنْزُو فِيمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، ⑤فَقُلْتُ: مَنْ أَنْتَ؟ قَالَ: أَنَا الدَّجَّالُ»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.[1]

**ترجمه:** ①بي بي فاطمه بنت قيس دتميم داري رضي الله عنه د حديث په سلسله كې بيان كوي ②چې تميم داري اوويل كوم وخت چې زه په جزيره كې داخل شوم نو اچانك څما تيريدل په يوه ښځه وشو چې خپل ويښته يې څان پسې راخكل يعنى د هغه ويښته ډير اوږده اوږده وه چې په زمكه وريسي كسيدله ③تميم اوويل ما د هغه ښځي نه پوښتنه وكړه ته څوك يې هغه جواب راكړو زه جاسوسي كونكې يم (او د دجال خبرونه رسوم) ته هغه محل طرف ته لاړ شه ④د تميم رضي الله عنه بيان دی زه هغه محل ته راغلم نو هلته ګورم چې يو سړی دی چې خپل ويښتان را خكي په زنجيرونه كې ترل شوي دي او په طوق كې پروت دی او د آسمان او زمكې په منځ كې توپونه وهي ⑤ما پوښتنه ورنه وكړه ته څوك يې هغه جواب راكړی زه دجال يم. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ①تَجُرُّ: رانښكل ئې، ②الْجَسَّاسَةُ: جاسوسی كونكې، ③الْقَصْرِ: محل، ④مُسَلْسَلٌ: ترلې شوې. ⑤الْأَغْلَالِ: زنځيرونه، ⑥يَنْزُو: توپونه ئې وهل.

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِذَا أَنَا بِامْرَأَةٍ تَجُرُّ شَعَرَهَا:**

**اشكال:** دَمشكاة په حديث نمبر(۵۴۸۲) كښې دَ جساسه سره ملاويدلو ذكر دَ يوكس نه دې بلكه دَ پوره جماعت دې. په حديث الباب كښې چه دَ يو كس دَ حضرت تميم داری رضي الله عنه ذكر دې چه هغه يوازې سوال اوجواب اوكړل؟

[1] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الترجل /باب فى خبر الجساسة (رقم-۴۳۲۵)

**د اشکال جواب:** سوال کونکي او مخاطب خو پوره جماعت وو لیکن دَ دغه جماعت دَ طرف نه حضرت تمیم داری ﷺ مشر جوړ شوې وی په دې وجه دلته دَ پوره جماعت طرف ته نسبت اوکړې شو لکه څنګه چه امام جمع ورکوی نو یو سړې دا نه وائی چه په فلانکی امام پسې مو مونځ اوکړو بلکه هغه دا وائی چه جمع سره مونځ اوکړو دغه شان دلته هم دی.

**قوله** قَالَتْ: أَنَا الْجَسَّاسَةُ:

**اشکال:** دپه دې زیربحث حدیث کښې جساسه ذکر دې اود دې ښځه وړاندې په حدیث نمبر (۵۴۸۲) د دابة ذکر دې نو په دواړو کښې تضاد دې لکه په یو روایت کښې دَ دابه ذکر دې او په بل روایت کښې دَ ښځې ذکر دې؟

**داشکال څلور جوابونه:** ملاعلی قاری او نورو شارحینو په دواړو روایتونوکښې مختلف طرق جمع کړی دی

① ممکن دی چه هغه جساسه دوه وي يوه په صورت دَ امراة او بله په صورت دَ دابة

② دا جساسه شیطانه وه چه کله به دَ دابة په شکل کښې ښکاریده او کله به دَ امراة په شکل ښکاریده او شیطان ته په شکل بدلولو باندې قدرت حاصل دې

③ اصل جسّاسه ښځه وه او دابة سره په اعتبار دَ لغت تعبیرکړې شوې ده کماقال تعالی (وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللهِ رِزْقُهَا)

④ جساسه هم ښځه وه خو په کثرت دَ ویښتو ئی دابة سره تعبیرکړې ده قاله کنکوهی رحمه الله

**اشکال:** دمشکاة په حدیث نمبر(۵۴۸۲) کښې دَ دجال باره کښې "أعظم أنسانًا" الفاظ دی چه هغه به ډیر لوئی سړې وی خو په دې حدیث کښې دی چه هغه به لنډې وی په روایاتوکښې تعارض کیږی؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① ممکن ده چه هغه دَتمیم داری ﷺ دَ کتلو په وخت لنډې وی او دَ راوتلو په وخت هغه عظیم الخلقت شو

② کیدې شی چه هغه دَ قد په اعتبار سره لنډې هم وی او چاق هم وی اودَ کثیرالفتنه کیدو په لحاظ سره هغه غټ معلومیږی

**[٥٤٨٥] د دجال به چیټ قد والا او چیټ پوزې وی**

٥٤٨٥-()[٢٢] ①وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ②قَالَ: «إِنِّي حَدَّثْتُكُمْ عَنِ الدَّجَّالِ حَتَّى خَشِيتُ أَنْ لَا تَعْقِلُوا، ③إِنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ قَصِيرٌ أَفْحَجُ جَعْدٌ أَعْوَرُ مَطْمُوسُ الْعَيْنِ، لَيْسَتْ بِنَاتِئَةٍ وَلَا جَحْرَاءَ، ④فَإِنْ أُلْبِسَ عَلَيْكُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِأَعْوَرَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الترجل /باب خروج الدجال (رقم-٤٣٢٠) واحمد في المسند:٥/٣٢٤

**ترجمه:** [۱] او حضرت عباده ابن صامت د رسول الله ﷺ نه روایت کوي [۲] چې حضور ﷺ وفرمایل یقینا ما تاسو خلقوته د دجال حال (باربار) بیان کړی تردی چې ماته دا ویره پیدا شوه چې ستاسو پوهي ته را نشي چې دجال څه بلا ده [۳] نو په ښه شان پوهه شئ، چې دجال مندري قدوالا دی چیت پیت دی د هغه ویښته وَل وَل دي په یوه سترګه کور دی او دویمه سترګه یي بالکل هموار ده د هغه سترګه نه پورته ده او نه دننه ده [۴] دي نه وروسته هم که تاسو شبهه کې شي (یعني ما د دجال کومه حلیه چې بیان کړي ده هغه د هیریدو په سبب او د هغه د مافوق الفطرت کارنامو په وجه د هغه دعوی دالوهیت که تاسو په څه درجه د شبهه کې مبتلا کړئ نو دومره خبره یاد ساتئ چې ستاسو پروردګار کور نه دی.

**حل اللغات:**- ① لَاتَعْقِلُوا: تاسو به پوهه نه شئ، ② قَصِيرٌ: لنډي، چیت قد والا، ③ أَفْحَجُ: دَ چا دَخپو پنجې چه نیزدې نیزدې وی اوګیتنی ئی لرې وی هغه أفحج وی کوم ته چه کجې وائی ④ جَعْدٌ: ګول ګچی ویښته، ⑤ أَعْوَرُ: کانړا، ⑥ مَطْمُوسٌ: ړنده، ⑦ نَاتِئَةٌ: راپورته، راوتلې، ⑧ جَحْرَاءُ: دننه. ⑨ أُلْبِسَ: ګډوډی پیداشی، شک شبهه راشی.

**تسهیلات:**

**نوټ:** دې خخه وراندې د حدیث نمبر (۵۳۷۰) په تسهیل کښې د دې حدیث د مضامینو تفصیل تیرشوې دې.

**[۵۴۸۶] مضبوط ایمان والو ته به د دجال نه هیڅ ویره نه وي**

۵۴۸۲-()[۲۳] [۱] وَعَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ الْجَرَّاحِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "«إِنَّهُ لَمْ يَكُنْ نَبِيٌّ بَعْدَ نُوحٍ إِلَّا قَدْ أَنْذَرَ الدَّجَّالَ قَوْمَهُ، وَإِنِّي أُنْذِرُكُمُوهُ". [۳] فَوَصَفَهُ لَنَا قَالَ: "لَعَلَّهُ سَيُدْرِكُهُ بَعْضُ مَنْ رَآنِي أَوْ سَمِعَ كَلَامِي". [۴] قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! فَكَيْفَ قُلُوبُنَا يَوْمَئِذٍ؟ [۵] قَالَ: "مِثْلُهَا يَعْنِي الْيَوْمَ أَوْ خَيْرٌ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوعبیده بن الجراح وایي [۲] ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل حقیقت دادی د نوح علیه السلام نه وروسته داسې هیڅ نبي نه دی تیر شوی چې هغه خپل قوم د دجال نه بیر ولی نه وي او زه هم (بار بار مختلف مواقعو باندې د دجال احوال او دهغه مکر او تلبیس او دهغه حقیقت او حیثیت بیانولو سره) تاسو د هغه نه بیروم [۳] دې نه وروسته حضور ﷺ زمونږ مخکې د دجال څه احوال بیان کړه بیایې وفرمایل شاید دهغه خلقو نه چا چې زه لیدلی یم یا څما کلام یې اوریدلی دی یوسرې د هغه زمانه بیا مومي

---

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب السنة/باب فی الدجال (رقم-۴۷۵۶) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الدجال (رقم-۲۲۳۴)واحمد فی المسند: ۱۷۸/۲

[۴]صحابه په دي اوريدو سره عرض وکړو يا رسول الله! هغه وخت به زمونږ د زړونو يعنی د اهل ايمان د زړونو څه حالت وي [۵]وي فرمايل بالکل داسې څرنګه چې نن دی يا دي نه هم ښه (ترمذي ابوداود)

**تسهيلات: قوله:** سَيُدْرِكُهُ بَعْضُ مَنْ رَآنِي

**دبعض من په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دَدې جملې بعضې حضراتو مشاراليه حضرت خضر عليه السلام ګرځولې دې

② دَبعضو په نيز په دې کښې هر هغه ايمان والا داخل دې چا ته چه دَ رسول الله ﷺ دَ دجال باره کښې احاديث رسيدلې وی. لکه چه دَ دجال ښکاره کيدل يقينی دی.

**[۵۴۸۷]دجال به د خراسان نه راوځي**

۵۴۸۶-()[۲۴] [۱]وَعَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «الدَّجَّالُ يَخْرُجُ مِنْ أَرْضٍ بِالْمَشْرِقِ [۳]يُقَالُ لَهَا: خُرَاسَانُ [۴]يَتْبَعُهُ أَقْوَامٌ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱]و حضرت عمرو ابن حريث د سيدنا ابوبکر صديق رضي الله عنه نه روايت کوي هغوئ بيان وکړو رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]دجال به د زمکې ديو داسې حصې نه راوځي چې په مشرق کې واقع ده [۳]او خراسان ورته وئيل کيږي [۴]هغه سره به د خلقو ډيري ډلې وي او د هغوئ مخونه به دچمړې ورکړل شوي پرسيدلی ډهال په شان وي . (ترمذي)

**حل لغات:** - ① خُرَاسَانُ :دَايران دَ غټو ښارونونه دَ يوښارنوم دې. ② الْمَجَانُّ : ډهال. ③ الْمُطْرَقَةُ: پرسيدلې،

**تسهيلات:**

**نوټ:** ددې حديث وضاحت د حديث نمبر(۵۴۲۱) په تسهيل کښې اوګورئ.

**[۵۴۸۸]دجال نه د لرې اوسيدو تاکيد**

۵۴۸۸-()[۲۵] [۱]وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ سَمِعَ بِالدَّجَّالِ فَلْيَنْأَ مِنْهُ، [۳]فَوَاللَّهِ إِنَّ الرَّجُلَ لَيَأْتِيهِ وَهُوَ يَحْسَبُ أَنَّهُ مُؤْمِنٌ، [۴]فَيَتَّبِعُهُ مِمَّا يَبْعَثُ بِهِ مِنَ الشُّبُهَاتِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱]وحضرت عمران ابن حصين رضي الله عنه وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]کوم سړی چې د دجال د راوتلو خبر واوري هغه ته پکار دی چې د هغه نه لري وسيږي [۳]قسم په الله

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء من اين يخرج الدجال (رقم-۲۲۳۷) وابن ماجه فی کتاب التجارات/ باب ما يرجی من البرکة فی البکور (رقم-۲۲۳۷) واحمد فی المسند: ۴/۱

[۲] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب خروج الدجال (رقم-۴۳۱۹) واحمد فی المسند:۴۳۱/۴

سړی به دجال ته راشي او د هغه ګمان خوبه داوي چې زه مؤمن يم [۴] ليکن هغه به د هغه څيزونو په وجه شبهاتو کې راتلو سره کوم چې دجال ته ورکول شوي دي (لکه سحر جادو کول او د مړو ژوندي کولو قدرت وغيره) د هغه اطاعت به قبول کړي او په هغه به ايمان راوړي (ابوداود)

**حل اللغات:** - ① فَلْيَنْأَ: نو لرې دې اوسيږي.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَيَتَّبِعُهُ مِمَّا يَبْعَثُ بِهِ مِنَ الشُّبُهَاتِ:

**د شبهاتو څخه مراد:** دَ دې نه مراد هغه امور دی کوم چه انسان په شك کښې اخته کوی مثلاً جادو کول، مړی ژوندی کول وغيره. مطلب دادې چه خپل ځان مؤمن ګڼړونکې به دَ دجال دَ جادوګرئی نه متاثر شی او په شك کښې به پريوځی چه کيدې شی دجال خدائی دې. دغه شان به هغه دَ دجال دَ معتقد کيدودَ وجې دَ ايمان څخه لاس اووينځی.

**[۵۴۸۹] دجال به په زمکه څلويښت کاله پورې وی**

۵۴۸۹ - () [۲۶] [۱] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ بْنِ السَّكَنِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «يَمْكُثُ الدَّجَّالُ فِي الْأَرْضِ أَرْبَعِينَ سَنَةً، [۳] السَّنَةُ كَالشَّهْرِ، وَالشَّهْرُ كَالْجُمُعَةِ، وَالْجُمُعَةُ كَالْيَوْمِ، [۴] وَالْيَوْمُ كَاضْطِرَامِ السَّعَفَةِ فِي النَّارِ». رَوَاهُ (فِي شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** [۱] او بی بی اسماء بنت يزيد بن سکن وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د زمکي په مخ به دجال څلويښت کاله پورې وي [۳] (هغه وخت به) کال د مياشتي برابر وي مياشت به د هفتي برابر هفته به د يوي ورځي برابرسي [۴] او يوه ورځ به د دومره وخت وي په خومره وخت کې چې د کجورو وچه څانګه په اورکي وسوزي دا روايت بغوي شرح السنه کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① يَمْكُثُ: وخت به تيروی، ② اضْطِرَام: سوزيدل، ③ السَّعَفَة: د کجورو اوچه سانګه.

**تسهیلات: قوله:** أَرْبَعِينَ سَنَةً

**اشکال:** د مشکاة په حديث نمبر (۵۴۷۵) کښې دَ څلويښتو ورځوذکروو اودلته څلويښت کاله دې چه واضح تعارض دې.

**داشکال دوه جوابونه:** ① دحديث نمبر (۵۴۷۵) روايت راجح دې دا مرجوح دې

② څلويښت ورځې به په دنيا کښې چکرې وی. پوره حکومت ئی دَ څلويښتو کالودې مګر دا راجح نه دی.

---

[۱] ) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۴۲۶۴ واحمد فی المسند: ۴۳۱/۴

**[۵٤۹۰] اویا زره کسان به د دجال اطاعت کوی**

۵٤۹۰-()[۲۷] ۞ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۞ "«يَتْبَعُ الدَّجَّالَ مِنْ أُمَّتِي سَبْعُونَ أَلْفًا ۞ عَلَيْهِمُ السِّيجَانُ»". رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** ۞ او حضرت ابو سعید خدري ﷛ وایي چی رسول الله ﷺ وفرمایل ۞ خما په امت کې به اویا زره افراد ۞ چې د هغوئ په سرونو به سیجان (شنه پټکي یا تاجونه) پراته وي د دجال اطاعت به اختیار کړي دا روایت بغوي په شرح السنه کې نقل کړی دی

**حل اللغات:** - ① السِّيجَانُ: په وزن دتیجان دې داهم هغه طیلسان دې شنه او تور څادرونه مراد دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** السِّيجَانُ " تفصیل وراندې د حدیث نمبر (۵۴۲۸) په تشریح کښې تیرشوې دې

**[۵٤۹۱] د دجال په راتلو د قحط سالئ او نور حالاتو ذکر**

۵٤۹۱-()[۲۸] ۞ وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ ۞: «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي بَيْتِي، فَذَكَرَ الدَّجَّالَ، فَقَالَ: ۞ " إِنَّ بَيْنَ يَدَيْهِ ثَلَاثَ سِنِينَ: ۞ سَنَةٌ تُمْسِكُ السَّمَاءُ فِيهَا ثُلُثَ قَطْرِهَا، وَالْأَرْضُ ثُلُثَ نَبَاتِهَا، ۞ وَالثَّانِيَةُ تُمْسِكُ السَّمَاءُ ثُلُثَيْ قَطْرِهَا، وَالْأَرْضُ ثُلُثَيْ نَبَاتِهَا، ۞ وَالثَّالِثَةُ تُمْسِكُ السَّمَاءُ قَطْرَهَا كُلَّهُ، وَالْأَرْضُ نَبَاتَهَا كُلَّهُ، ۞ فَلَا يَبْقَى ذَاتُ ظِلْفٍ وَلَا ذَاتُ ضِرْسٍ مِنَ الْبَهَائِمِ إِلَّا هَلَكَ، ۞ وَإِنَّ مِنْ أَشَدِّ فِتْنَتِهِ أَنَّهُ يَأْتِي الْأَعْرَابِيَّ

**ترجمه:** ۞ او بي بي اسماء ﷛ بنت یزید ابن سکن وایي ۞ یوه ورځ رسول الله ﷺ زمونږ په کور کې تشریف فرماوو چې د دجال ذکر یې وکړو او وي فرمایل ۞ د دجال د ښکاره کیدو نه مخکې دري کاله به داسې وي چې هغه کې به برکت لاړ شي او د خلقو معاشي حالاتو کې ابتري پیدا کونکی مختلف حالات به ښکاره شي ۞ نو مخکنی کال به آسمان یوه دریمه ۱-۲ باران او زمکه به یوه دریمه پیداوار بند کړي یعنی د نورو کلونو د معمول خلاف په هغه کال به باران یوه دریمه کم شي دغه شان د زمکي پیداوار به هم یوه دریمه کم شي که څه هم د باران د اوبو نه علاوه په نورو طریقو سره به هم د زمکي اوبه خور (آبپاشي) کېږي ۞ بیا په دویم کال به آسمان دوه دریمي باران او زمکه دوه دریمي پیداوار بند کړي ۞ او بیا په دریم کال به آسمان ټول باران او زمکه خپل ټول پیداوار بند کی ددي پورې چې کوم وخت د جال ښکاره شي نو په مخ د زمکې باندې به قحط خورشوی وي او نه صرف انسان به سخت ترین معاشي او غذائي بحران کې به مبتلا وي

[۱]) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ٤٢٦٥

[۲]) اخرجه ابن ماجه فی السنن كتاب الفتن/باب فتنة الدجال، وخروج عيسى ابن مريم، وخروج يأجوج، ومأجوج (رقم-٤٠٧٧) واحمد فی المسند:٦/٤٥٥

بلکه ځاروي او حيواناتو کې به هم قحط خورشوی وي [۷] نو نه به څه نوك والا حيوان باقي پاتې شي او نه به وحشي حيواناتو کې غابښونو والا بلکه ټول به هلاك شي او د دې برعکس هغه وخت به خزانې او د فيني د دجال په تسلط کې وي او د غذائي ضروریاتو تکميل او د آسائش او خوشحالی نوري ذريعې به هم د هغه سره وي دغه شان په په خلقوکي د خپلي خدايي سکه پورته کولو د پاره او د ګمراهي سخت ترينه فتنه خورولو د پاره هغه به دا ځيزونه استعمالوي [۸] نو د هغه سخت ترينه فتنه به داوي چې هغه به علم او دانائي نه رِوند يو باندچي (کليوال) ته راشي

**حل اللغات:** - ① قَطْر: باران، ② نَبات: ونې بوټی، ③ ظِلف: نوکانو والا ④ ضِرْس: غابښونو والا.

[۱] فَيَقُولُ: أَرَأَيتَ إِنْ أَحْيَيْتُ لَكَ إِبِلَكَ! أَلَسْتَ تَعْلَمُ أَنِّي رَبُّكَ؟ [۲] فَيَقُولُ: بَلَى، فَيَمْثُلُ لَهُ الشَّيْطَانُ نَحْوَ إِبِلِهِ كَأَحْسَنِ مَا يَكُونُ ضُرُوعًا، وَأَعْظَمِهِ أَسْنِمَةً ". [۳] قَالَ: وَيَأْتِي الرَّجُلَ قَدْ مَاتَ أَخُوهُ، وَمَاتَ أَبُوهُ فَيَقُولُ: أَرَأَيتَ إِنْ أَحْيَيْتُ لَكَ أَبَاكَ وَأَخَاكَ أَلَسْتَ تَعْلَمُ أَنِّي رَبُّكَ؟ [۴] فَيَقُولُ: بَلَى، فَيَمْثُلُ لَهُ الشَّيَاطِينُ نَحْوَ أَبِيهِ وَنَحْوَ أَخِيهِ ". [۵] قَالَتْ: ثُمَّ خَرَجَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ تَعَالَى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِحَاجَتِهِ، ثُمَّ رَجَعَ وَالْقَوْمُ فِي اهْتِمَامٍ وَغَمٍّ مِمَّا حَدَّثَهُمْ،

**ترجمه:** [۱] او هغه ته به وايي ماته وښايه که زه ستا دا اوښان ژوندي کړم (چې د قحط په وجه مړه شوي دي) نو آيا ته به دا تسليم کړي چې زه ستا پروردګار يم [۲] باندچي (کليوال) به جواب ورکړي چې هو زه به تا خپل پروردګار ومنم بيابه دجال شيطانان د هغه باندچي (کليوال) داوښانو په شان شکل وصورت جوړولو سره راولي يعنی خپل تابعدار جنات او شياطينو ته به حکم وکړي چې د هغه اوښانو شکل وصورت کې د هغه باندچي (کليوال) مخې ته راشئ نو جنات او شياطين به اوښان جوړيدو سره د هغه مخې ته راشي او هغه اوښان به د غولانځو تيونو دډکوالي او د بوکونو د بلندی د اعتبار نه د هغه د اوښانو نه ښه معلوميږي [۳] حضور ﷺ وفرمايل د دجال دغه شان يوه سخت ترينه فتنه به داوي چې بيابه هغه يوسړي ته راشي چې د هغه پلار او ورورمړه شوي وي هغه ته به وايي چې زه ستاپلار ورور ژوندی کړم نو آيا ته به تسليم کړي ومنې چې زه ستا پروردګار يم [۴] هغه سړی به جواب ورکړي هو زه به تا خپل پروردګار ومنم بيابه دجال شياطين د هغه سړي د پلار او ورور شکل وصورت کې پيش کړي [۵] بي بي اسماء ﷞ وايي حضور ﷺ دې فرمايلو سره څه ضرورت د پاره بهر تشريف يو وړی او بيا لږ ساعت وروسته يې مجلس ته تشريف راوړی هغه وخت حاضرين مجلس د دجال دې حالت اوريدو سره د فکر وغم په حالت کې ناست وه

**حل اللغات:** - ⑤ أَسْنِمَةً: قوبونه.

[۱] قَالَتْ: فَأَخَذَ بِلَحْمَتَيِ الْبَابِ فَقَالَ: "مَهْيَمْ أَسْمَاءُ" [۲] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! لَقَدْ خَلَعْتَ أَفْئِدَتَنَا بِذِكْرِ الدَّجَّالِ. [۳] قَالَ: "إِنْ يَخْرُجْ وَأَنَا حَيٌّ، فَأَنَا حَجِيجُهُ، وَإِلَّا فَإِنَّ رَبِّي خَلِيفَتِي، عَلَى كُلِّ مُؤْمِنٍ". [۴] فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ! وَاللهِ إِنَّا لَنَعْجِنُ عَجِينَنَا فَمَا نَخْبِزُهُ حَتَّى نَجُوعَ فَكَيْفَ بِالْمُؤْمِنِينَ يَوْمَئِذٍ؟ [۵] قَالَ: "يُجْزِئُهُمْ مَا يُجْزِئُ أَهْلَ السَّمَاءِ مِنَ التَّسْبِيحِ وَالتَّقْدِيسِ». [۶] رَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ عَنْهَا. وَرَوَاهُ مُحْيِي السُّنَّةِ فِي مَعَالِمِ التَّنْزِيلِ.

**ترجمه:** [۱] بي بي اسماء ﷺ وايي رسول الله ﷺ د دروازې دواړې پلې ونيولي او وفرمايل اسماء ستاڅه حال دي؟ [۲] ماعرض وکړو يا رسول الله! تاسو دد جال داسې ذکر کولو سره زمونږ زړونه وايستل يعنې د هغه دي حال اوريدو سره زمونږ زړونه سخت ويرېدلي دی [۳] رسول الله ﷺ وفرمايل که دجال راوځي او فرض کړه زه ژوندی يم نو په دلائلو او حجت سره به هغه دفع کړم او که داسې وخت راووتلو کله چې زه په دنيا کې موجود نه يم نو يقيناً خما پروردګار به هرمؤمن د پاره خما وکيل او خليفه وي (يعني هغه به الله ﷻ د هرصاحب ايمان حامي او مددګار وي او د هغه د فتنې او فسادڅخه به يې محفوظ ساتي) [۴] بيا ماعرض وکړو يارسول الله! د لوږې په وخت خو د انسان د بې صبرۍ داعالم وي چې مونږ وړه اغږو او د هغه روټۍ پخولو نه لافارغه شوی هم نه يو چې د لوږې نه بې آرامه شو نو په داسې صورت کې هرکله چې قحط سالي راشي غذائي اشياء د دجال په تسلط کې وي او د خوراك څکاك څيزونه صرف هغه سړی حاصلولی شي کوم چې د دجال پيروي کوي نوآخر به د مؤمنانو څه حال وي يعنې هغوئ به خپلې لوږې باندې څرنګه قابو حاصلوي او هغوئ ته به صبر وقرار څرنګه حاصلېږي [۵] حضور ﷺ وفرمايل هغوئ د پاره به هغه شی کافي وي کوم چې دآسمان والا يعنې فرښتو د پاره کافي کېږي يعنې د حق تعالی تسبيح او تقديس [۶] دا روايت امام احمد په مسند کې اوطيالسي په ابوداود کې کړيدی.

**حل اللغات:** -[۶] لَحْمَتَي: دواړه بازوګان (چوکاټونه د دروازې). [۷] مَهْيَمْ: دا کلمه د استفهام ده. يعنې ستا څه حال دي. [۸] خَلَعْتَ: اوويستل تا. [۹] حَجِيجُ: حجت او دليل سره دفع کول. [۱۰] لَنَعْجِنُ: مونږ چه اوړه واغږو. [۱۱] نَخْبِزُهُ: روټۍ ترې پخوو

**تسهيلات:**

**قوله:** فَيُمَثِّلُ لَهُ الشَّيَاطِينَ نَحْوَ أَبِيهِ وَنَحْوَ أَخِيهِ:

**د دجال په تصرفاتو کښې د شيطان لاس:** معلومه شوه چه دجال کومې شعبده بازئی ښائی ددې شاته به لوړ لاس دَ ابليس وی ابليس به دَ سړو په شکل کښې راځی نو دجال به وائی چه ګوره که ما ستا پلار يا رور راژوندې کړو نو بيا ما خپل رب اومنه ګوره ما ستادَپاره اوښان راژوندی کړل ما خپل رب جوړ کړه

**قوله:** وَاللّٰهِ إِنَّا لَنَعْجِنُ عَجِينَنَا فَمَا نَخْبِزُهُ حَتَّى نَجُوعَ فَكَيْفَ بِالْمُؤْمِنِينَ يَوْمَئِذٍ:

**دمذکوره جملې مطلب:** یعنی زمونږ نه دومره صبرچرته کیږی چه په میاشتو دَ دجال په فتنه کښې بغیرِدَ خوراك څښاك نـه وخت تیرکړو مونږ خودَ اوړو اغږلو او روټئی پخولوپورې انتظار کولو کښې پریشانه کیږو نودومره موده به څنګه صبرکوو؟ مونږ خو به په فتنه کښې پریوځو حضورپاك اوفرمائیل دَ الله تعالی په ذکر او تسبیحاتو سره به وخت صحیح تیریږی

**قوله:** رَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ قَتَادَةَ:

**نوټ:** دَمشکوة په اصل نسخوکښې دلته بیاض دې ځائې خالی دې روستو بیا چا رواه احمد لیکلې دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵۴۹۲] دجال به د الله په نزد ډیر ذلیل وی

۵۴۹۲-()[۲۹] [۱] عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ [۲]: «مَا سَأَلَ أَحَدٌ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الدَّجَّالِ بِأَكْثَرَ مِمَّا سَأَلْتُهُ، [۳] وَإِنَّهُ قَالَ لِي: "مَا يَضُرُّكَ؟" [۴] قُلْتُ: إِنَّهُمْ يَقُولُونَ: إِنَّ مَعَهُ جَبَلَ خُبْزٍ وَنَهَرَ مَاءٍ. [۵] قَالَ: "هُوَ أَهْوَنُ عَلَى اللّٰهِ مِنْ ذَلِكَ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه وایي [۲] د دجال په باره کې څومره چې ما د رسول الله ﷺ نه پوښتنه کړي ده هغومره بل هیچا پوښتنه نه ده کړي [۳] نو یوه ورځ حضور ﷺ ماته وفرمایل چې دجال تاته هیڅ ضرر نشي رسولی یعنی تاباندې به د الله جل جلاله د عنایت او حمایت سوری وي ځکه دجال به تا ګمراه نه کړی [۴] ما عرض وکړو خلق دا وایي چې هغه سره به د روټۍ غر یعنی د غره په قدر د غذائي ضروریاتو ذخیره وي او د اوبو نهر به ورسره وي هغه وخت چې په خلقو د قحط سالی ښکار شي او یو سرې به د لوږي تندي نه د پریشانی حالت ته ورسیږي نو هغه به څه کوي [۵] حضور ﷺ وفرمایل دجال د الله جل جلاله په نزد ددي نه زیات ذلیل دی . (بخاری ومسلم)

**تسهیلات: قوله:** هُوَ أَهْوَنُ عَلَى اللّٰهِ مِنْ ذَلِكَ:

**د مذکوره جملې مطلب:** یعنی دجال دَ دې نه زیات حقیر او ذلیل دې چه دَهغه په ذریعه څوك یوځ مسلمان ګمراه شی. په دې وجه ایمان مضبوط ساتل پکار دی. دَ دجال نه دَ ویریدو هیڅ ضرورت نشته دې هغه خو فریب کار او دهوکه باز دې او په جادوګرئی سره خلق ویره وی په حقیقی توګه هغه سره هیڅ هم نشته دې

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الفتن/باب ذکر الدجال (رقم-۷۱۲۲) ومسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب فی الدجال وهو أهون علی الله عز وجل (رقم-۱۱۵ - (۲۹۳۹) واحمد فی المسند: ۴۳۴/۵

**[۵۴۹۲]د دجال به په يوغټ خر باندې سوروي**

۵۴۹۲ -()[۳۰] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②" «يَخْرُجُ الدَّجَّالُ عَلَى حِمَارٍ أَقْمَرَ، ③مَا بَيْنَ أُذُنَيْهِ سَبْعُونَ بَاعًا» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ (فِي كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ).

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهريره رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت کوي حضور ﷺ وفرمايل ②دجال به يوسپين خر باندې سوريدو سره راوځي ③او د هغه خره د دواړو غوږونو په منځ کې به اويا بازو پلنه فاصله وي دا روايت بيهقي په کتاب البعث والنشور کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ① حِمَارٍ أَقْمَرَ: سپين خرته حمار أقمر وائی. ② بَاعًا: دواړه لاسونه اومتې چه کله مکمل خورې شي نوهغه ډ يوباع مقدار کيږي. ډحضرت ابن مسعود رضی الله عنه په يوروايت کښې دی چه ډدجال ډ خرډغوږونو په مينځ کښې به څلويښت ګزه فاصله وی اوډ هغه يو قدم به ډ دريو ورځو ډمسافت برابروی چه تقريبا ۸۲کلوميټر فی سيکنډ به وی دا رفتار ۲۹۵۲۰۰کلوميټر فی ګهنټه حساب سره به وی. لکه چه ډ هوا نه تيزدې ډ هوائی جهاز نه هم تيزدې بعضې رواياتو کښې ډ خراکوزيدل يعنی نزول تذکره هم شته ډ کوم نه چه اندازه کيږی دا څه الوتونکې خر دې

**تسهيلات:**

**قوله:** يَخْرُجُ الدَّجَّالُ عَلَى حِمَارٍ أَقْمَرَ،

دحمارپه مصداق کښې دوه اقوال:

① دخرڅخه مراد عام خردې کوم چې ته حمار وئيلی شي.

② بعضې علماء وائی ډ سپين خرنه مراد جهازدې. داخبره زياته بعيدهم نه ده.

يومصری عالم کمال هشام عبدالحميد ډ "اقترب خروج المسيح الدجال" په نوم باندې يومفصل کتاب هم ليکلې دې. په دې کتاب کښې هغه ډ دجال مختلف سورلئی هم خودلی دی په دې کښې څه سورلۍ دکشتئی په شان دی څه سورلۍ ډ چهترئی په شان دی څه ډ طشتری (رکيبئی) په شان ده. څه سورلۍ بالکل ډ جهازپه شان ده داسې معلوميږی چه ډ دجال سورلئی به په مختلف ځايونوکښې بدليږی رابدليږی. لهذا کله به خر وی اوکله به خره وی کله به جهاز وی نوکله به کشتئی وی. په حديث کښې ډ يو نوم اخستې شوې دې ډ باقی نفی نشته دې

**ددجال باره کښې د يهوديانو معلومات:** ډ يهوديانو په کتابونوکښې ډ دجال باره کښې ډير څه ليکلې شوی دی. چنانچه ډ يهوديانو يو کتاب ايزاخيل کښې ډ دجال باره کښې ليکلی دی چه يهوديان وائی اې ډ صهيون لور په خوشحالئی سره چغه کړه اې ډ يروشلم

---

[1] ) لم اجده

لور خوشحالئی نه چغه کړه ګوره ستاسو بادشاه (دجال) راروان دې هغه عادل دې او په خرياندې سور دې دَ قچر يا خرې په بچی باندې زه دَ يوفريم نه ګادې او يروشلم نه به اس جدا کړم (په حواله تيسری جنگ عظيم)

**قوله:** مَا بَيْنَ أُذُنَيْهِ سَبْعُونَ بَاعًا:

**دخر دغوږونو په مينځ کښې فاصله**:يعنیَ دا خر به دومره لوئی وی چه دَ دواړو غوږونو په مينځ کښې فاصله به ئی اويا باع وی. اوباع چې دواړه لاسه خواره کړې شی د دې په مينځ کښې چې کومه فاصله ده هغې ته وائی.

ددجال د خروج په مقام کښې اقوال

① اوس دلته دَ دجال دَ خروج باره کښې بحث دې چه هغه به دَ کوم ځائی نه راوځی؟ هشام کمال عبدالحميد خپل کتاب کښې دَ دجال مرکزی مقام جزيرۀ برمودا ګرځولې دې دَ برمودا تکون امريکه سره نيزدې واقع دې. يوطرف ته شمالی امريکه ده بل طرف ته جنوبی امريکه ده دَدې په مينځ کښې بحر اټلانټك واقع دې. هم په دې مقام کښې مثلث برمودا دې چه دَ يوتکون په شکل کښې دې.

**دبرمودا تکون تعارف**: جزيرۀ برمودا يا مثلث برمودا يا برمودا تکون يوعجيبه او پراسرار مقام دې په دې مقام باندې دَ جناتو عالمی مرکزهم دې اوهم په دې مقام باندې دَ ابليس تخت هم دې اوهم په دې مقام باندې دَ دجال قيدخانه هم ده. لکه چه دَ دجال او ابليس اودَ جناتو په خپل مينځ کښې نيزدې تعلقات دی. هلته په امريکه کښې دَ ابليس عبادت کونکی ډير زيات دی. دَ دجال پيغامات دَ يهودو او نصاریٰ ته په واسطه دَ ابليس رسيږی

**دبرموده تکون عجائبات**:دَ برمودا تکون عجيب او پراسرار حالات دی

① په سمندرکښې چه تراوسه پورې کوم بحری جهاز تلې دې هغه ترننه پورې داسې غيب شوې دې چه دَهغې هيڅ خبر هم نه دې راغلې.

② که چرې هوائی جهاز دَ دغه جزيرې دَ پاسه پرواز کړې دې نوهغه داسې غيب شوې دې چه ترننه پورې څه پته نه ده لګيدلې. په دې علاقه باندې دَ شپې رنړاګانې ځی راځی ښکاری دا ټول ابليسی پهره ده چه دجال نه چاپيره لګيدلې ده

③ په کال ۱۸۷۴ء کښې په دې علاقه کښې يو جهاز ورك شوې وو دَ هغې درې سوا سورلئی سره دَ کپتان ترننه پورې غائب دی. فضاء ته چه کله هم هوائی جهاز تلې دې دې دَپاره چه پته معلومه کړی نوهغه هم غائب شوې دې

④ برمودا تکون يو عجيبه علاقه ده دکوم په سمندرکښې چه اور دننه ورځی هم او بهرهم راوځی کوم چه زرګونو خلقو ليدلې دې.

# [۴]بَابُ قِصَّةِ ابْنِ صَيَّادٍ

## دَابن صیاد دَ قصې بیان

**خلاصة الباب**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① قصة ابن صياد مفصلاً: ۱، ۲، ۱۰.

② سوالات النبي ﷺ منه: ۲، ۳.

③ فقد ابن الصياد: ۹.

④ كون ابن صياد دجالاً: ۷، ۸.

⑤ آثار الدجال في ابن صياد: ۲، ۴، ۵، ۶، ۱۰، ۱۱.

**دنسخو اختلاف:** ① بعضو نسخوکښې الف لام سره الصياد دي.

② بعضو دا ابن صیادلیکلي دي

③ اکثرنسخوکښې صیاد دَ الف لام نه بغیر ذکردي

**دابن صیاد مختصر تعارف:** دَهغه اصل نوم صاف وو. بعضو عبدالله خودلي دي دَهغه مور به هغه دَ صاف په نوم باندې رابللو. ابن صیاد پخپله دَ یویهودي خوئې ووکوم چه دَمدینې اوسیدونکې وو. ابن صیادَ جادو اوکهانت زبردست ماهر وو هم په دې وجه دَهغه شخصیت یوه عجیبه معمه جوړه شوې وه.

**دابن صیاد مختصر تعارف:** ابن صیاد یا ابن صائد دَ چامتعلق چه دَ دجال کیدو گمان کولي شو دَ هغه نوم صاف یا عبدالله دې هغه دَ مدینې دَ یهودیانونه وو یا دَ هغوی په مینځ کښې دخیل وو په کهانت او سحر سره مشهور وو دَ هغه اجمالي حالت دا وو چه هغه دَ مسلمانانو دَپاره یوه فتنه امتحان او ازمیښت وو دَ هغه حالت مختلف فیها وو

**دابن صیاد په دجال کیدوکښې مذاهب:**

① په صحابه کرامو ﷺ کښې اختلاف وو حضرت جابر ﷺ او حضرت عمر ﷺ خو به قسم خوړلو سره وئیل ابن صیاد هم هغه مشهور اومعروف دجال دې چه پخپله به گمراه وي او نور به گمراه کونکې وي

② دَ اکثرو صحابه کرامو ﷺ خیال داوو چه ابن صیاد په آخره زمانه کښې راتلونکې دجال نه دې

③ دَ بعض حضراتو خیال دې چه دَ دجال معهود نه به وړاندې دَ تمهید په توګه څه دجاجله راځي چه دَ معهود دجال دَ پاره به میدان هواره وي په احادیثوکښې دَ دجالون او

کذابون لفظ واقع دی دَحضرت عمر ﷺ په قسم خوړلو باندې هم په دې وجه رسول الله ﷺ نکیر اونه فرمائیلو

④ بعضې حضرات وائی په اصل کښې به دَ دجال دَ پاره ظاهرًا او باطنًا مختلف بدنونه وی نو دَ ظاهری حسی بدن په اعتبار سره مختلف احوال راتللوسره کله به دَ ابن صیاد په شکل کښې ښکاره کیږی په دې وجه حضورپاک ﷺ نکیرهم اونه فرمائیلو اوعالم مثال کښې دَ هغه باطنی بدن مقید بالسلاسل والاغلال دې کوم چه دَ تمیم داری په حدیث کښې ثابت دی

⑤ بعض شارحین فرمائی په متعلقه بالقیامة کښې قاعده اوکلیه داده لکه څنګه چه دَ قیامت کال ورځ تاریخ او موده تعین نه ده بلکه مبهم ده صرف دومره معلوم دی چه قیامت به راځی دغه شان دَ دجال دَ راتلو باره کښې په حدیث کښې خبر راغلې دې خود دې مصداق پخپله په حضورپاک ﷺ باندې هم مبهم پاتې دې هم په دې وجه ددې دَ مصداق متعلق رسول الله ﷺ هیڅ فیصله نه ده فرمائیلې بل قال علیه السلام لعمر ان یکون هو لاتسلط فلا خیر فی قتله

⑥ حافظ ابن حجر ﷫ فرمائی اصلی دجال خو په یقینی توګه باندې هم هغه دې کوم چه دَ تمیم داری په روایت کښې ذکر کړې شوې دې اوهغه مسلسل بالاغلال والسلاسل دې او ابن صیاد چه دَحضور ﷺ په زمانه کښې په مدینه کښې وو هغه شیطان وو چه دَ دجال په شکل کښې ښکاره شو اوآخر هغه اصفهان ته لاړو پټ شو بیا به دَ اصلی دجال دَ خروج په موده کښې راځی

**نوټ:** دلته اصل اختلاف په دې کښې دې چې ابن صیاد دجال وو که نه ددې وجې مونږ صرف د دې دوو مذاهبو دلائل ذکر کوو

**داول فریق دلیل:** فی حدیث محمد بن المنکدر قال رایت جابر یحلف بالله ان ابن صیاد هو الدجال قال جابر رضی الله سمعت عمر یحلف علی ذلك عند النبی صلی الله علیه وسلم فلم ینکره النبی صلی الله علیه وسلم

**ترجمه:** منکدر فرمائی چې ما جابررضی الله عنه لیدلې وو هغوی به قسم خوړلو چې ابن صیاد هم دجال دې اوجابررضی الله عنه به فرمائیل ما د عمر رضی الله عنه څخه اوریدلی ووچې د نبی ﷺ په مخکې په ئې دا قسم خوړلو چې ابن صیاد دجال دې خونبی ﷺ په هغه باندې انکار نه دې کړې عدم انکر د دې برې دلیل دې چې ابن صیاد دجال دې

**د اول فریق د اول دلیل څخه جواب:** مذکره روایت د هغه روایاتو او دلائلو مقابله نشی کولې د کوم ذکر چې د دویم فریق په دلائلو کښې راروان دې

**د دويم فريق دلائل:** ① د تميم داري په روايت کښې دی چه هغه خو به چرته په جزيره عرب کښې مسلسل بالاغلال دې کله چه د هغه نه تپوس اوکړې شو نوهغه اووئيل انا الدجال (رواه ابوداؤد والترمذی)

② ابن صياد په شروع کښې ساحر اوکاهن وو خو روستوهغه مسلمان شوې دې دجال خو به کافر وی كما في رواية مكتوب بين عينيه ک، ف، ر،

③ د ابن صياد خو بچې وو اودجال به بې بچو وی

④ ابن صياد خو په مکه او مدينه کښې اوسيدلو اود دجال باره کښې تير شو چه مدينې ته به نشی داخليدلې. بهر حال ابن صياد ته معروف دجال وئيل گران دی.

**اشكال:** وړاندې په رواياتو کښې وارد دی چه هغه خپل ځان ته د رسول الله ﷺ په وړاندې نبی اووئيل نو بيا رسول الله ﷺ ولې د قتل کولو حکم اونه کړو؟

**داشكال دوې جوابونه:** ①په اصل کښې داد هغه زمانې خبره ده کله چه يهوديانوسره صلح اوشوه چه يهوديان به په خپل مذهب باندې وی او هيڅ چيږ چاړ به نه کوی اومونږ به په خپل مذهب باندې يو او ابن صياد يهودی وو يا په هغوی کښې شامل وو په دې وجه رسول الله ﷺ د هغه د قتل کولو حکم ورنه کړو دې د پاره چه د مصالحت خلاف اونه شی.

① امام بيهقی رحمه الله وغيره فرمائی په اصل کښې هغه خپل ځان ته نبی اووئيل خو په دې دعوی ئی اصرار او غلو اونه کړه په دې وجه حضورپاک ﷺ پريخودو.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۵۴۹۴] د نبی عليه السلام د ابن صياد سره مکالمه

۵۴۹۴-(١)[١] ①عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - ②«أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - انْطَلَقَ مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي رَهْطٍ مِنْ أَصْحَابِهِ قِبَلَ ابْنِ صَيَّادٍ، ③حَتَّى وَجَدُوهُ يَلْعَبُ مَعَ الصِّبْيَانِ فِي أُطُمِ بَنِي مَغَالَةَ، وَقَدْ قَارَبَ ابْنُ صَيَّادٍ يَوْمَئِذٍ الْحُلُمَ، ④فَلَمْ يَشْعُرْ حَتَّى ضَرَبَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ظَهْرَهُ بِيَدِهِ، ⑤ثُمَّ قَالَ: "أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللهِ؟" ⑥فَنَظَرَ إِلَيْهِ فَقَالَ: أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ الْأُمِّيِّينَ،

**ترجمه:** ①حضرت عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دی ②چې يوه ورځ حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د صحابه کرامو رضی الله عنهم په يو جماعت کې د شريکيدو سره رسول الله ﷺ سره ابن صياد ته ورغلل ③او هغوئ هغه د يهوديانو د يوي قبيلي بنو مغاله په محل کې بچوسره په

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسير /باب: كيف يعرض الإسلام على الصبی (رقم-۳۰۵۵) ومسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذکر ابن صياد (رقم-۹۵ - (۲۹۳۰) وابوداود فی کتاب الترجل /باب فی خبر ابن صائد (رقم-۴۳۲۹)والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی ذکر ابن صياد (رقم-۲۲۴۹) واحمد فی المسند:۱۴۸/۲

لوبې کولو ولیدلو هغه هغه وخت سره بلوغ ته نزدې شوی وو [۴]ابن صیاد د هغوئ نه ناخبره خپلو لوبو کې مصروف وو ددې پورې چې رسول الله ﷺ د هغه په شا لاس تیر کړو او کوم وخت چې هغه متوجه شو [۵]نو رسول الله ﷺ د هغه نه پوښتنه وکړه آیا ته د دې امر ګواهي کوې چې زه د الله رسول یم [۶]ابن صیاد په دې اوریدو سره ډیر ژور نظر سره حضور ﷺ ته وکتل او هغه اوویل زه ګواهي کوم چې تاسو د امیانو یعنې د ناخوانده خلقو رسول یئ

**حل اللغات:** - ①رَهْطٍ: جماعت، ډله. ②أُطُم: د آطام جمع ده اوچت د منارې په شان عمارت ته وائي ③بَنِي مَغَالَةَ: د یو قبیلې نوم دی. ④الْحُلُمَ: بلوغ.

[۱]ثُمَّ قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ: أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ؟ [۲]فَرَصَّهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ثُمَّ قَالَ: آمَنْتُ بِاللَّهِ وَبِرُسُلِهِ". [۳]ثُمَّ قَالَ لِابْنِ الصَّيَّادِ: مَاذَا تَرَى؟ [۴]قَالَ: يَأْتِينِي صَادِقٌ وَكَاذِبٌ. [۵]قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خُلِطَ عَلَيْكَ الْأَمْرُ". [۶]قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي خَبَأْتُ لَكَ خَبِيئًا" وَخَبَأَ لَهُ: ﴿يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ﴾ [الدخان: ۱۰] [۷]فَقَالَ: هُوَ الدُّخُّ. [۸]فَقَالَ: "اخْسَأْ فَلَنْ تَعْدُوَ قَدْرَكَ"

**ترجمه:** [۱]او بیا هغه د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه آیا تاسو دا ګواهي کوئ چې زه د الله رسول یم [۲]نو حضور ﷺ هغه ښه زور سره اونیولو او وې فرمایل ما په الله او د هغه په رسولانو ایمان راوړی دې دې نه وروسته [۳]حضور ﷺ د هغه نه پوښتنه وکړه ښه دا راته اووئیلو چې څه وینې یعنې د غیب د څیزونو نه په تا څه منکشف کیږي [۴]هغه جواب ورکړو کله خو ماته رښتنې خبر راځي اویا کله ماته رښتنې فرشته راځي او کله دروغجن شیطان . [۵]رسول الله ﷺ د هغه په دې جواب اوریدو سره وفرمایل په تا معامله ټوله ګډه وډه شوې ده [۶]بیا رسول الله ﷺ وفرمایل ماستا د پاره په خپل زړه کې یو خبره پټه کړې ده او کومه خبره چې حضور ﷺ ابن صیاد د پاره پټه کړې وه هغه دا آیت يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ وو [۷]هغه جواب ورکړو چې هغه پټه خبره کومه چې ستاسو په زړه کې ده دُخ دی [۸]حضور ﷺ په دې اوریدو سره وفرمایل کورې چخې شه ته د خپل حد نه هیڅ کله مخکې کیدې نشې

**حل اللغات:** - ⑤رَصَّهُ: زور سره نې اونیولو . ⑥خُلِطَ: ګډه وډه شوې ده. ⑦خَبَأْتُ: ما په زړه کښې یو خبره پټه کړې ده. ⑧اخْسَأْ: چخې شه. کُړې شه. دا لفظ د سپې د شړلو دپاره استعمالیږي، ⑨ تَعْدُوَ قَدْرَكَ: ته به خپلې دې دائرې د کهانت نه وراندې تلې نه شې.

[۱]قَالَ عُمَرُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَتَأْذَنُ لِي فِيهِ أَنْ أَضْرِبَ عُنُقَهُ؟ [۲]قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ يَكُنْ هُوَ لَا تُسَلَّطْ عَلَيْهِ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ هُوَ فَلَا خَيْرَ لَكَ مِنْ قَتْلِهِ". [۳]قَالَ ابْنُ عُمَرَ: انْطَلَقَ بَعْدَ ذَلِكَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ الْأَنْصَارِيُّ يَؤُمَّانِ النَّخْلَ الَّتِي فِيهَا ابْنُ صَيَّادٍ، [۴]فَطَفِقَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ، ⑤ وَهُوَ يَخْتِلُ أَنْ يَسْمَعَ مِنِ ابْنِ الصَّيَّادِ شَيْئًا قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ،

**ترجمه:** ① حضرت عمر رضي الله عنه (په دي صورت حال ليدو سره) عرض وکړو يارسول الله که ماته اجازت راکړي نو زه به يي څټ ووهم ② رسول الله ﷺ وفرمايل که ابن صياد هغه دجال دی (چي د هغه په آخره زمانه کښ د راوتلو اطلاع شوی ده) نو بياته په هغه مسلط کيدي نشي يعنی د هغه په قتل قادر کيدي نشي ځکه چې د هغه قتلول خو صرف حضرت عيسى عليه السلام د پاره مقدر دي اوکه دی هغه نه وي نو بيا د ده په قتلولو کښ ستاهيڅ خير نشته ③ حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي دي نه وروسته په يوه بله ورځ رسول الله ﷺ د کجورو هغه و نو طرف ته تشريف يوووړلو کوم ځاي چې ابن صياد وو هغه وخت حضور ﷺ سره حضرت ابي ابن کعب انصاري رضي الله عنه هم وو ④ رسول الله ﷺ هلته په رسيدو سره د کجورو د ځانګو شاته پټ شو چې ابن صياد خپل نزدې د حضور ﷺ د موجودګی نه ناخبره وي ⑤ او حضور ﷺ د هغه د ليدو نه مخکښ د هغه څه خبري واوري [او دغه شان پټيدو سره د ابن صياد د خبرو اوريدو نه د حضور ﷺ مقصد داوو چې خپله حضور ﷺ او صحابه رضي الله عنهم هم پوهه شي چې آخر هغه څه دی آياکاهن دی يا جادوګر يا څه بل څه. دي نه معلومه شوه چې کوم سړي نه د فتنه خوريدو خوف وي د هغه حقيقت ښکاره کول او په خلقو باندي د هغه احوال منکشف کول جائزدي]

**حل اللغات:**- ⑩ يَؤُمَّانِ: دتثنيه صيغه ده، قصد او اراده ئې اوکړه ⑪ طَفِقَ: شروع شو. ⑫ يَتَّقِي: ځان ئي پټولو. ⑬ جُذُوعِ: تنې د کهجورو. ⑭ يَخْتِلُ: په تدبير او حيلې سره ئې حال معلومولو

① وَابْنُ صَيَّادٍ مُضْطَجِعٌ عَلَى فِرَاشِهِ فِي قَطِيفَةٍ ② لَهُ فِيهَا زَمْزَمَةٌ، فَرَأَتْ أُمُّ ابْنِ صَيَّادٍ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ. ③ فَقَالَتْ: أَيْ صَافِ - وَهُوَ اسْمُهُ - هَذَا مُحَمَّدٌ. فَتَنَاهَى ابْنُ صَيَّادٍ. ④ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ". ⑤ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ: قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ، فَأَثْنَى عَلَى اللَّهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ،

**ترجمه:** ① هغه وخت ابن صياد يوڅادر اغوستي پروت وو ② او د هغه څادر دننه نه د بنهاري اواز راتلو چې د هغه څه مفهوم په پوهه کښ نه راتلو په دي کښ د ابن صياد مور رسول الله ﷺ د کجورو ځانګو کښ پټ وليدلو ③ او هغه اوويل اي صاف دا د ابن صياد نوم وو ګوره دا محمد ﷺ ولاړ دی ابن صياد په دي اوريدو سره بنهاري بند کړي يعنی هغه بالکل خاموش شو او کوم غلی غلی اواز چې يي راتلو هغه هم بند شو ④ په دي ليدو سره رسول الله ﷺ صحابه ؤ رضي الله عنهم ته وفرمايل که د ابن صياد مور هغه نه وي رټلي او ځما د موجودګی نه خبر شوی نه وی نو هغه به خپل حقيقت ظاهر کړی وو يعنی د هغه د خبرو نه به دا معلومه شوي وه چې هغه څوك دی او څه دی ⑤ حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه وايي دي نه وروسته چې رسول الله ﷺ خطبي د پاره د خلقو مخکښ اودريدلو نو اول يي

د الله ﷻ حمد وثناء بيان كړه كوم چې هغه ته لائق ده

**حل اللغات:** -⑭ قَطِيفَةٍ: څادر، ⑪ زَمْزَمَةٌ: د بنګ بنګ آواز، ګونړ ګونړ كول.

۱ ثُمَّ ذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ: "إِنِّي أُنْذِرُكُمُوهُ، وَمَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا وَقَدْ أَنْذَرَ قَوْمَهُ، لَقَدْ أَنْذَرَ نُوحٌ قَوْمَهُ، ۲ وَلَكِنِّي سَأَقُولُ لَكُمْ فِيهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ، ۳ تَعْلَمُونَ أَنَّهُ أَعْوَرُ، وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ بيا د دجال ذكر يې وكړو په دې احتمال سره چې شايد ابن صياد دجال وي يا حضور ﷺ د هغه د فتنې خوريدو او د دې حقيقت پيش نظر چې په هغه كې د دجال بعضې خصلتونه پيدا كوی شی د دجال ذكر كول او د هغه د احوالو نه آګاه كول مناسب وګڼل او وي فرمايل زه تاسو د دجال نه بيروم او نوح ﷺ نه وروسته هيڅ نبي داسې نه دی تير شوی چې هغه خپل قوم د دجال نه نه وي بيير ولی او د هغه انبياء نه مخكې نوح ﷺ هم خپل قوم د هغه نه بيير ولی دی ۲ ليكن زه تاسو ته د دجال په باره كې يوه داسې خبره او يو داسې علامه ښايم چې بل هيڅ نبي خپل قوم ته نه دی خو دلی ۳ تو تاسو پوهه شی چې دجال به كور وي او يقيناً الله ﷻ كور نه دی نعوذ بالله. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** -⑮ أَعْوَرُ: كاڼړا، چغوت،

**تسهيلات:** **قوله:** فَقَالَ: أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ الْأُمِّيِّينَ:

**د ابن صياد چالاكی:** ابن صياد دَ اميين نه عرب مراد اخستې دی ځكه چه يهودو او نصاری به عرب هم په دغه نوم سره يادول. په دې جواب كښې دَ ابن صياد عياری اومكاری پټه ده هغه دا وئيل غواړی چه حضورپاك صرف دَعربو دَپاره نبی دې دَعام انسانانو دَپاره نه دې

**قوله:** فَرَصَّهُ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**ابن صياد لره په زور سره نيول:** په صاد باندې شد دې حضورپاك هغه اونيولو اوداسې زور ئې وركړو چه هغه ئې راغونډ كړو دا لفظ "فرفضه" هم دې چه دَترك په معنی كښې دې يعنی حضورپاك دَ ابن صياد حجتونه او سوال اوجواب پريخودل.

**قوله:** صَادِقٌ وَكَاذِبٌ

**د رښتيا او دروغو خبر وركول:** يعنی كله رښتيا راځی اوكله دروغ راځی مطلب دادې چه كله رښتونې خبر راځی اوكله دَ دروغو خبر راځی اوهم دغه دكاهنانو اوجوګيانو علامت دې چه شيطانانَ دَ فرښتو نه يو رښتونې خبره اوريدوسره سل دروغ ملاؤ كړی كاهنانو ته ئې رسوې په راتلونكی روايت نمبر۲كښې داسې دی چه كله دوه دروغ او يو رښتيا راځی اوكله دوه رښتيا يو دروغ راځی لكه چه په ابن صيادباندې خپله معامله پخپله مشتبه وه.

**قوله: إِنِّي خَبَأْتُ لَكَ خَبِيئًا:**

**په زړه کښې خبره پټول:** یعنی ما په زړه کښې یوه خبره پټه کړې ده ته اووایه څه څیز دې؟ حضورپاك دَ قرآن پاك آیت ﴿يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ﴾ دَ آیت تصور په خپل زړه کښې پټ ساتلې وو ابن صیاد اووئیل تاسو دَ دخ تصور پټ ساتلې دې په دې کښې ابن صیاد پوره خبرې پورې رسائی حاصله نه کړې شوه بلکه دکاهنانو په شان یوې نیمې خبرې طرف ته ئې اشاره اوکړه

**قوله: فَلَنْ تَعْدُوَقَدْرَكَ"**

**د مذکوره جملې مطلب:** چه شیطانانو اوجناتو درته څومره اوخودل هم هغه هومره تا اووئیل ستا حیثیت خو په پټو امورو کښې دَ یوناقصې جملې نه وړاندې نه شی تلې بیا ته دَ نبوت دعوی څنګه کوې؟

**[۵٤۹۵] ابن صیاد کاهن وو**

٥٤٩٥-()[۲] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «لَقِيَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - يَعْنِي ابْنَ صَيَّادٍ - فِي بَعْضِ طُرُقِ الْمَدِينَةِ، [۳] فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ؟" [۴] فَقَالَ هُوَ: أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ؟ [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "آمَنْتُ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ،

**ترجمه:** [۱] و حضرت ابوسعید خدري ﷺ وايي [۲] یوه ورځ د رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر ﷺ فاروق ﷺ د دې ټولو ملاقات د مدینې په یوې لارې کې ابن صیاد سره وشو [۳] رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل آیا ته داګواهي کوې چې زه د الله رسول یم [۴] ابن صیاد په جواب کې اوویل آیا تاسو داګواهي کوی چې زه د الله رسول یم [۵] په دې اورید وسره حضور ﷺ وفرمایل ما په الله باندې د هغه په فرښتو باندې او د هغه په کتابونو باندې او د هغه په رسولانو باندې ایمان راوړی

[۱] مَاذَا تَرَى؟ [۲] قَالَ: أَرَى عَرْشًا عَلَى الْمَاءِ. [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَرَى عَرْشَ إِبْلِيسَ عَلَى الْبَحْرِ [۴] وَمَا تَرَى؟ [۵] قَالَ: أَرَى صَادِقَيْنِ وَكَاذِبًا، أَوْ كَاذِبَيْنِ وَصَادِقًا، [۶] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لُبِسَ عَلَيْهِ، فَدَعُوهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] دې نه پس څنې حضور ﷺ داپوښتنه وکړه ښه داراته وښایه چې ته څه شی وینې [۲] هغه اوویل زه یو تخت په اوبو باندې وینم [۳] حضور ﷺ ورته فرمایل ته د ابلیس تخت په سمندر وینې [۴] بیا یې ورته وفرمایل دې نه علاوه نور څه وینې [۵] ابن صیاد اوویل دوه

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذکر ابن صیاد (رقم-۹۳ - (۲۹۲۸))والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی ذکر ابن صیاد (رقم-۲۲٤۷)

ربښتني وينم چې ربښتني خبرونه راوړي او يو دروغجن وينم چې د دروغو خبرونه راوړي يا دوه دروغجن وينم او يو ربښتني ⑥ دي نه وروسته حضور ﷺ صحابه ﷺ ته مخاطب کيدو سره وفرمايل دده دپاره صورت حال يعني کهانت ګډوډ شوي دي دی پريږدئ يعني دی خو د ټيك ټيك خبري کولو هم قابل نه دی چې د هغه څه جواب ورکول کيږي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① عَرْشًا: تخت.

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ هُوَ: أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُوْلُ اللّٰهِ:**

**د ابن صياد نبي عليه السلام ته دوه قسمه جواب:** په دې روايت کښې ابن صياد نبي ﷺ ته د هغوی د سوال جواب نه دې ورکړې چې ته پيغمبرئې او که نه؟ خود ترمذی په روايت کښې جواب مذکور دې چې ابن صياد نبي ﷺ ته اووئيل ((أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ الْأُمِّيِّيْنَ)) ابن صياد دې يعني زه ګواهي کوم چې ته د اميانو پيغمبرئې.

**د اميانو د پيغمبر د تخصيص وجه:** خپلې وينا کولو سره دَ حضورپاک ﷺ دَنبوت دعوت دَعربو سره خاص ګرځولې دې ځکه چه اکثريت دَاهل عربو وو اودَ هغه دا قول سره دَ دې چه منطوقًا صحيح دې رسول الله ﷺ اول دَ اميين طرف ته مبعوث شو مګر دا تخصيص کول چه هغوی صرف دَ اميين رسول دې غلط دې. بلکه رسول الله ﷺ خودَ عربو اوعجمو دَ پاره مبعوث شوې دې. دَ بعض يهوديانو داګمان ووچه هغوی صرف دَ اميانو رسول دې او ابن صياد يهودی وو په دې وجه هغه دا غلطه خبره اوکړه. فقال النبي صلى الله عليه وسلم آمنت بالله ورسله

**اشکال:** رسول الله ﷺ دَ ابن صياد قول ولې ردنه کړوسره دَ دې چه هغه دَ حبيب پاک ﷺ په وړاندې دَ رسول کيدو شهادت طلب کړو؟

**داشکال جوابونه:**

① ملاعلی قاری فرمائی لکه څنګه چه ابن صيادد رسول الله ﷺ دَ رسالت نفي په طريقه دَ مفهوم اوکړه نوهم هغه شان په طريقه دَ منطوق دَ هغه دَ قول په مفهوم کښې حضورپاک ﷺ رد اوکړو چه زه خوپه الله تعالی اودَ هغه په رسولانو باندې ايمان راوړم که ته دَ رسولانونه وې نوته به مې هم منلې او په تا به مې ايمان راوړلې ووخوته رسول نه يئې

② رسول الله ﷺ ضمنًا په دې رد اوفرمائيلو چه ارشاد ئې اوفرمائيلو آمنت بالله ورسله او ښکاره خبره ده چه هغه دَ رسولانونه نه دې. حاصل دا چه زه ستا دَ رسول کيدو څنګه ګواهي ورکولې شم زه خوَ الله اودَ هغه رسولان منم اوته دَ الله تعالی رسول نه يئې. بله دا چه حضوراکرم ﷺ مقصددَ هغه دَ حال تحقيق وو که چرته هغوی صراحتًا دَ هغه قول

ردکړې وې نو دا غرض به فوت شوې وو

④ علامه طیبی رحمه الله وائی چه دَ رسول الله ﷺ دا ارشاد په توګه دَ ارخاء العنان وو دَ کوم مطلب چه دا دې آمنت بالله ورسله فتفکر اهل انت منهم؟

**قوله: يَأْتِينِي صَادِقٌ وَكَاذِبٌ:**

**د مذکوره جملې مطلب:** دَ رسول الله ﷺ دَ سوال مطلب دادې چه تاله څه راځی هغه تاله څه خبردرکوی دَ هغه دَ جواب حاصل دادې چه ماله کوم خبر راوړی کله هغه رښتیا وی او کله هغه دروغ وی

**[۵٤۹٦] د جنت په باره کې د حضور ﷺ نه د ابن صیاد یوسوال**

[۱] ۵٤۹٦-(¹)[۳] وَعَنْهُ: [۲] «أَنَّ ابْنَ صَيَّادٍ سَأَلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ تُرْبَةِ الْجَنَّةِ [۳] فَقَالَ: "دَرْمَكَةٌ بَيْضَاءُ مِسْكٌ خَالِصٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه نه روایت دی [۲] چې ابن صیاد د حضور ﷺ نه پوښتنه وکړه د جنت خاوره څرنګه ده [۳] حضور ﷺ ورته وفرمایل هغه د سپینو اوړو په شان سپینه او د خالصو مشکو په شان خوشبوداره ده (مسلم)

**حل اللغات:** - ① دَرْمَكَةٌ: دَ سپینې میدې په شان خاوره، ② بَيْضَاءُ: ډیره سپینه.

**تسهیلات:**

**قوله: دَرْمَكَةٌ بَيْضَاءُ مِسْكٌ خَالِصٌ:**

**د درمکة څخه مراد:** دَجعفر په وزن باندې دې یعنی دَ سپینې میدې په شان خاوره ده لکه څنګه چه دَ سپینې میدې اوړه وی او

**[۵٤۹۷] ابن صیاد څخه دَیو غصې په نتیجه کښې دجال جوړیدل**

۵٤۹۷-(²)[۳] [۱] وَعَنْ نَافِعٍ، قَالَ: «لَقِيَ ابْنُ عُمَرَ ابْنَ صَيَّادٍ فِي بَعْضِ طُرُقِ الْمَدِينَةِ، [۲] فَقَالَ لَهُ قَوْلًا أَغْضَبَهُ، فَانْتَفَخَ حَتَّى مَلَأَ السِّكَّةَ، [۳] فَدَخَلَ ابْنُ عُمَرَ عَلَى حَفْصَةَ وَقَدْ بَلَغَهَا، [۴] فَقَالَتْ لَهُ: رَحِمَكَ اللَّهُ مَا أَرَدْتَ مِنِ ابْنِ صَيَّادٍ؟ [۵] أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "إِنَّمَا يَخْرُجُ مِنْ غَضْبَةٍ يَغْضَبُهَا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت نافع رحمه الله وایي یوه ورځ د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ملاقات د مدینې په یو لار کې د ابن صیاد سره وشو [۲] نو هغوئ ابن صیاد ته یوه داسې خبره وکړه چې د هغه سره هغه غضبناك شو او دجوش وغضب په وجه هغه وپړسیدې تردې پورې چې هغه ټوله کوڅه ګلي یې دخپل غټوالي په وجه ډکه کړه، [۳] دې نه وروسته چې ابن عمر رضي الله عنهما خپلې

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذکر ابن صیاد (رقم-۹۳ - (۲۹۲۸) واحمد فی المسند:۴/۳
²) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذکر ابن صیاد (رقم-۹۸ - (۲۹۳۲) واحمد فی المسند:۲۸۳/۶

خور ام المؤمنين بي بي حفصي رضي الله عنها ته راغې اود ابن صياد خبر نې ورته اورسولو [۴] نو هغې ورته وفرمايل اې ابن عمر رضي الله عنهما الله دې په تا خپل رحمت نازل کړي ته دابن صياد نه څه غواړې چې هغه دې دومره غضب ناک کړې [۵] آيا تاته معلومه نه ده چې رسول الله ﷺ فرمايلي وه چې دجال به په څه خبره باندې غضب ناک کيدو سره راوځي

**حل اللغات:** - ① انْتَفَخَ: اوپړسيدو. ② السِّكَّةُ: کوڅه، لاره.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّمَا يَخْرُجُ مِنْ غَضْبَةٍ يَغْضَبُهَا**

**ددجال د خروج يو سبب:** ددې روايت نه اندازه کيږي چه حضرت حفصه رضي الله عنها به ابن صياد د مستقبل دجال ګنړلو چه د څه غصې د وجې به د دجال په شکل کښې ښکاره کيږي چنانچه هم دغه ابن صياد په واقعه حره کښې غصه شواو ورك شوې دې او ترننه پورې ورك دې ممکن دی چه هم دغه ورك شوې ابن صياد روستو د دجال په شکل کښې ښکاره شي

**[۵۴۹۸] ابن صياد خپله دجال جوړيدل بد ګنړل**

۵۴۹۸-()[۵] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «صَحِبْتُ ابْنَ صَيَّادٍ إِلَى مَكَّةَ، [۲] فَقَالَ لِي: مَا لَقِيتُ مِنَ النَّاسِ؟ [۳] يَزْعُمُونَ أَنِّي الدَّجَّالُ، أَلَسْتَ سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "إِنَّهُ لَا يُولَدُ لَهُ" ؟ وَقَدْ وُلِدَ لِي، [۴] أَلَيْسَ قَدْ قَالَ: "هُوَ كَافِرٌ" ؟ وَأَنَا مُسْلِمٌ، [۵] أَوَلَيْسَ قَدْ قَالَ: "لَا يَدْخُلُ الْمَدِينَةَ وَلَا مَكَّةَ" ؟ وَقَدْ أَقْبَلْتُ مِنَ الْمَدِينَةِ وَأَنَا أُرِيدُ مَكَّةَ،

**ترجمه:** [۱] و حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي يو خل زه او ابن صياد د مکې په سفر کې ملګري شو [۲] هغه ماته هغه خپل تکليف بيان کړ چې دخلقو نه هغه ته رسيدلی وو [۳] هغه اوويل خلق مادجال ګڼي ‹او تاته معلومه ده چې داخبره خلاف حقيقت ده› اې ابوسعيده رضي الله عنه آيا تا د رسول الله ﷺ نه دانه دي اوريدلي چې د دجال به اولادونه وي اوحال دادې چې زما اولاد شته [۴] آيا حضور ﷺ دانه دي فرمايلي چې دجال به کافر وي اوحال دا چې زه مسلمان يم [۵] آيا دا د حضور ﷺ ارشاد نه دی چې دجال په مدينه او مکه کې نشي داخليدی اوحال دا چې زه د مدينې نه راروان يم او مکې ته ځم

[۱] ثُمَّ قَالَ لِي فِي آخِرِ قَوْلِهِ: أَمَا وَاللَّهِ إِنِّي لَأَعْلَمُ مَوْلِدَهُ وَمَكَانَهُ وَأَيْنَ هُوَ، وَأَعْرِفُ أَبَاهُ وَأُمَّهُ، [۲] قَالَ: فَلَبَسَنِي، [۳] قَالَ: قُلْتُ لَهُ: تَبًّا لَكَ سَائِرَ الْيَوْمِ، [۴] قَالَ: وَقِيلَ لَهُ: أَيَسُرُّكَ أَنَّكَ ذَاكَ الرَّجُلُ؟ [۵] قَالَ: فَقَالَ: لَوْ عُرِضَ عَلَيَّ مَا كَرِهْتُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوسعيد رضي الله عنه وايي ابن صياد آخري خبره ماته دا وکړه ياد ساته! قسم په الله زه

[۱] اخرجه مسلم في كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذكر ابن صياد (رقم-۸۹ - (۲۹۲۷) واحمد في المسند: ۳/۲۶

د دجال د پيدائش وخت پيژنم او د هغه مکان پيژنم چې هغه به کوم ځاي کې پيدا کيږي او داهم پيژنم چې داوقت هغه کوم ځاي دی او د هغه مور پلار هم پيژنم [۲] ابو سعيد ﷺ وايي ابن صياد په دي خبرو سره زه ګډوډ کړم [۳] ماورته اوويل ته هميشه د پاره هلاك شي [۴] ابو سعيد ﷺ وايي هغه وخت موجود په خلقو کې چا ابن صياد ته اوويل آيا ته به داخوښوي چې ته په خپله دجال يي [۵] ابو سعيد ﷺ وايي په دي اوريدو سره جواب ورکړی هو که د خلقو ګمراه کولو فريب کې اچولو او د کودو منتر وغيره هغه ټول څيزونه ماته راکول شي کوم چې دجال کښي دي نو زه يي بد نه ګنم (مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَلَبَسَنِي: ګډ وډ ئې کړم زه، ② تَبًّالَكَ: تباه شې.

**تسهيلات: قوله:** قَالَ فَلَبَسَنِي:

**دابوسعيدرضی الله عنه د شك وجه:** نو ابن صياد زه په شك کښې واچولم ابو سعيد لکه چه داسې بيان اوکړو چه اول خو ما يقين لرلو چه هم ابن صياد دجال دې ليکن اوس چه هغه دَخپل ځان دَ دجال کيدو انکاراوکړو نو زه په شك شبه کښې پريوتلم چه دې دجال ګنړلې شی که نه؟ ځکه چه اول خو هغه په دلا ئلو سره داخبره ثابته کړه چه زه دجال نه يم ليکن دَ دجال پيدا کيدل وغيره پيژنم. کيدې شی چه چرته هغه دا خبره په توګه دَتعرض کړې وی اودَ آخری الفاظو نه مراد پخپله دَ هغه ذات وی. ليکن په آخره کښې هغه اووئيل که داسې داسې خبرې ماته راکړې شوې نو زه به دَهغې په قبلولو باندې راضی شم دادَ هغه دَ کفر دليل دې دَ کوم په وجه چه ابو سعيد ﷺ په شك کښې پريوتلو.

**[۵۴۹۹] دابن صياد د سترګې ذکر**

٥٤٩٩-()[۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: لَقِيتُهُ وَقَدْ نَفَرَتْ عَيْنُهُ [۲] فَقُلْتُ: مَتَى فَعَلَتْ عَيْنُكَ مَا أَرَى؟ [۳] قَالَ: لَا أَدْرِي، قُلْتُ: لَا تَدْرِي وَهِيَ فِي رَأْسِكَ؟ [۴] قَالَ: إِنْ شَاءَ اللهُ خَلَقَهَا فِي عَصَاكَ، [۵] قَالَ: فَنَخَرَ كَأَشَدِّ نَخِيرِ حِمَارٍ سَمِعْتُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر ﷺ وايي (يوه ورځ) په لار کې ځما ملاقات د ابن صياد سره وشو هغه وخت د هغه سترګه پرسيدلې وه [۲] ما پوښتنه ترينه وکړه ستادي سترګه کې چې زه څه وينم (يعني پارسوب) دا د کله نه دي [۳] جواب يي ورکړو ماته نه ده معلومه چې د کله نه دی ماورته اوويل تاته معلومه نه ده حالانکه ستاپه سرکې ده [۴] هغه اوويل که الله وغواړي نو دا سترګه به ستا په همسا کې پيدا کړي [۵] ابن عمر ﷺ وايي دي نه وروسته ابن صياد د خپلې پوزې نه د خره دسخت اواز په شان چې ما اوريدلی دی يو اواز يي اوښکلو . (مسلم)

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذکر ابن صياد (رقم-۹۹ - (۲۹۳۲)

**حل اللغات:** - ①نَفَرَتْ: پرسيدلې وه، ②عَصَاكَ: په همسا ستا كښې، ③فَنَخَرَ: د پوزې نه ئې د خره د آواز په شان آواز اوويستلو

**تسهيلات:**

**قوله: فَقُلْتُ: مَتَى فَعَلَتْ عَيْنُكَ مَا أَرَى؟:**

**دابن عمر اوابن صياد مكالمه:** ابن عمر رضي الله عنه فرمائي چه ما اول د ابن صياد سترگه ښه په صحيح حالت كښې ليدلې وه بيا چه كله ما د هغه سترگه پرسيدلې اوليدله نو د هغه نه مې د دې سبب تپوس اوكړو نو ابن صياد اووئيل چه بغيرد سبب اوبغيرد څه وجې دا سترگه پخپله داسې شوې ده ماته د څه قسم درد اوتكليف نه دې شوې نو ابن عمر رضي الله عنه اووئيل چه ستا په سر كښې سترگه ده اوتاته د دې هډو پته اونه لگيدله نو ابن صياد اووئيل چه اې ابن عمر كه الله پاك بغيرد سبب ستا په همسا كښې سترگه پيدا كړي نو سره د دې چه همسا هم تاسره وي خو تاته به پته هم اونه لگي ځكه چه دا كار به ناڅاپي كيږي هم دغه شان زما دا معامله ده. د دې نه معلوميږي چه ابن صياد الله پاك پيژندلو او د الله پاك په قادر مطلق كيدو باندې ئې ايمان هم لرلو.

**[۵۵۰۰] د ابن صياد په دجال كيدو باندې دحضرت جابر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه قسم خوړل**

| -(۱)[۷] ①وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ②: «رَأَيْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- يَحْلِفُ بِاللهِ أَنَّ ابْنَ الصَّيَّادِ الدَّجَّالُ، ③قُلْتُ: تَحْلِفُ بِاللهِ؟ ④قَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ عُمَرَ يَحْلِفُ عَلَى ذَلِكَ عِنْدَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ⑤فَلَمْ يُنْكِرْهُ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

**ترجمه:** ①او حضرت محمد ابن منكدر تابعي رحمه الله وايي ②چې ما حضرت جابر ابن عبد الله رضي الله عنه اوليدلو هغه په قسم اخستو سره اوويل چې ابن صياد دجال دی ③ما هغه ته عرض وكړو چې تاسو د الله قسم خورئ، (حالانكه دابن صياد دجال كيدل صرف ظنی دی نه چې يقيني) ④هغه وفرمايل ما د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه نه واوريدل چې هغه په دې خبره د رسول الله صلى الله عليه وسلم مخكې قسم اخستی چې ابن صياد دجال دی ⑤او رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې نه انكار ونه فرمايلې (بخاری ومسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: يَحْلِفُ بِاللهِ أَنَّ ابْنَ الصَّيَّادِ الدَّجَّالُ:**

**د ابن صياد د دجال په كيدو قسم خوړل:** د حضرت جابر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه قسم خوړل

---

(۱) اخرجه البخاری فی كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة /باب من رأى ترك النكير من النبی صلى الله عليه وسلم حجة. لا من غير الرسول (رقم-۷۳۵۵) ومسلم فی كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ذكر ابن صياد (رقم-۹۴ - (۲۹۲۹) وابوداود فی كتاب الترجل /باب فی خبر ابن صائد (رقم-۴۳۳۱)

دَدې وجې نه دی لکه څنګه چه امت محمدیه کښې به دَ دروغو مدعیان دَنبوت راځی هم دغه شان هم دَدوی نه یو ابن صیاد هم دې لکه چه دَدې دوارو دَ قسمونونه دا نه معلومیږی چه ابن صیاد واقعتًا دجال دې ځکه چه حضورپاك دَ ابن صیاد معامله مبهم اوساتله لکه چه دَدې خبرې تردید ئی اوکړو چه هغه په یقینی توګه باندې دجال دې لیکن دَ روایت دَمطلق الفاظو نه دا معلومیږی چه دَدې دوارو حضراتو په نیز هم دجال معهود مراد دې په دې صورت کښې به دَدې دوارو قسم دَ غالب ګمان په وخت دَ قسم خوړلو په جواز باندې محمول کولې شی. باقی وړاندې په دویم فصل کښې چه کوم روایت راځی چه په هغې کښې ئی په صراحت سره بیان کړې دې چه ابن صیاد دجال معهود دې. کیدې شی چه دَ ابن عمر رضی الله عنه مسلك هم دغه وی. بهر حال په شروع کښې دَ ترجمة الباب لاندې دا ذکرشوې دې چه دَ ابن صیاد متعلق صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې اختلاف واقع شوې دې. په دې وجه دَ حتمی رائې قائمولو په ځائې خاموشی اوتوقف بنه دې

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۵۵۰۱] دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنه په نیز هم ابن صیاد دجال وو

۵۵۰۱-()[۸] [۱] عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: كَانَ ابْنُ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-يَقُولُ[۲]: وَاللَّهِ مَا أَشُكُّ أَنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ ابْنُ الصَّيَّادِ. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ).

**ترجمه:** [۱] حضرت نافع رحمه الله وایي حضرت ابن عمر رضی الله عنه به وئیل [۲] قسم په الله ماته په دې کې هیڅ شك نشته چې مسیح دجال ابن صیاد دی دا روایت ابوداود او بیهقي کتاب البعث والنشور کې نقل کړی دی.

**تسهیلات:**

**نوټ:** ددې حدیث تشریح د مشکاة په وړاندې حدیث نمبر ۵۵۰۰ په تسهیل کښې تیره شوې ده

### [۵۵۰۲] واقعه حره کښې د ابن صیاد ورکیدل

۵۵۰۲-()[۹] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ[۲]: فَقَدْنَا ابْنَ صَيَّادٍ يَوْمَ الْحَرَّةِ. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وایي [۲] مونږ د واقعه حره په ورځ ابن صیاد غائب پیدا کړی وو. یعنی دحرّې په ورځ ورك شویدی (ابوداود)

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی خبر ابن صائد (رقم-۴۳۳۰)

[۲] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی خبر ابن صائد (رقم-۴۳۳۲)

**تسهیلات:**

**قوله:** قَدْ فَقَدْنَا ابْنَ صَيَّادٍ يَوْمَ الْحَرَّةِ:

**دیوم حره واقعه:** واقعه کربلاکښې دَ امام حسین ﷛ دَ شهادت نه پس یزید شامی فوجونو ته حکم ورکړو چه په مدینه منوره باندې حمله اوکړئی ځکه چه هغه خلق زما دَ بیعت منکردی شامی فوجونو سخته حمله اوکړه مدینې والو زبردسته مقابله اوکړه مګر شامی فوجونه غالب راغله اوهغوی درې ورځې مدینه لوټ کړه اودَ ښځو بې عزتی ئی اوکړه درې ورځو پورې مسجد نبوی کښې اذان اونه شو. په مدینه باندې تیاره خوره وه لس زره انسانان اووژلې شو. یوم حره هم دغه ده هم په دې کښې ابن صیاد غصه شواو ورك شو

**اشکال:** په یو روایت کښې راځی چه دَ هغه انتقال په مدینه کښې اوشو اودَ هغه دَ جنازې مونځ اوشو نو په دواړو روایتونو کښې په ظاهره تعارض دې؟

**داشکال جواب:** په روایت کښې دَ غائب کیدو نه مراد عام مفهوم دې په کوم کښې چه مرګ هم شامل دې یعنی دَ واقعه حرة په ورځ په مدینه کښې وفات شوې وو.

**[۵۵۰۲]دَدجال بعضې اوصاف په ابن صیاد کښې وو**

حـد-()[۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «يَمْكُثُ أَبَوَا الدَّجَّالِ ثَلَاثِينَ عَامًا، لَا يُولَدُ لَهُمَا وَلَدٌ، [۳] ثُمَّ يُولَدُ لَهُمَا غُلَامٌ أَعْوَرُ أَضْرَسُ، [۴] وَأَقَلُّهُ مَنْفَعَةً، تَنَامُ عَيْنَاهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ". [۵] ثُمَّ نَعَتَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَبَوَيْهِ، فَقَالَ [۶]: " أَبُوهُ طِوَالٌ ضَرْبُ اللَّحْمِ، كَأَنَّ أَنْفَهُ مِنْقَارٌ، [۷] وَأُمُّهُ امْرَأَةٌ فِرْضَاخِيَّةٌ طَوِيلَةُ الْيَدَيْنِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوبکره ﷛ وایې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د دجال والدین به دیرش کاله په دې حالت کې تیر کړي چې د هغوئ به هیڅ څوی نه وي [۳] بیا د هغوئ به یو څوی پیدا شي چې اعوریوسترګي به وي لوی غاښونو یعنی لوی داړو والا به وي بعضې حضراتو ویلي دې چې اضرس نه مراد دادی چې هغه به غاښونو سره پیدا شي [۴] هغه به ډیرکم فائدې والاوي یعنی څنګه چې نور هلکان د کور کار روزګار کې فائده رسوي هغه به هیڅ فائده نه رسوي د هغه دواړي سترګي به اوده کیږي ، لیکن د هغه زړه به نه اوده کیږي [۵] دې نه وروسته رسول الله ﷺ زمونږ مخکې د هغه د مور پلار حال بیان کړو او وې فرمایل [۶] د هغه پلار به ډیر اوږد او کم غوښې والا یعنی نری به وي د هغه پوزه به د چرګ د مښوکي په شان اوږده او نری وي [۷] او د هغه مور به غټه پیرړه اوږدو لاسونو والا وي

[۱]) اخرجه الرترمذی فی السنن کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی ذکر ابن صیاد (رقم-۲۲۴۸)واحمد فی المسند:۵/۴۰

**حل اللغات:** - ①أَعْوَرُ: كانړا، ②أَضْرَسُ: لوئى داړو والا چه غابنونه ئې غټ وى، ③طُوَالٌ: دَ طويل مبالغه ده، ډير اوږد، ④ضَرْبُ اللَّحْمِ: كمزورې غوښې والا يعنى نرې مانده به وى، ⑤مِنْقَارٌ: مخوكه، ⑥فِرْضَاخِيَّةٌ: دَ كومې ښځې بدن چه ډير چاق وى اوسينې ئې غټې او سستې وى هغې ته "امرأة فرضاخية" وائى.

[۱] فَقَالَ أَبُو بَكْرَةَ: فَسَمِعْنَا بِمَوْلُودٍ فِي الْيَهُودِ بِالْمَدِينَةِ، [۲] فَذَهَبْتُ أَنَا وَالزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ، حَتَّى دَخَلْنَا عَلَى أَبَوَيْهِ، [۳] فَإِذَا نَعْتُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِيهِمَا، [۴] فَقُلْنَا: هَلْ لَكُمَا وَلَدٌ؟ [۵] فَقَالَا: مَكَثْنَا ثَلَاثِينَ عَامًا، لَا يُولَدُ لَنَا وَلَدٌ، ثُمَّ وُلِدَ لَنَا غُلَامٌ أَعْوَرُ أَضْرَسُ، وَأَقَلُّهُ مَنْفَعَةً، تَنَامُ عَيْنَاهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ.

**ترجمه:** [۱] ابوبكره ﷺ وايي مونږ د مديني يهوديانو كې د يو عجيب وغريب هلك د موجودګئ په باره كې واوريدل [۲] نو زه او زبير بن عوام ﷺ دهغه ليدوته ورغلو كوم وخت چې مونږ د هغه هلك والدينو ته ورسيدو [۳] نو ګورو چې هغه بالكل داسې دي څرنګه چې رسول الله ﷺ مونږ ته د هغه د والدينو په باره كې بيان كړى وو [۴] مونږ دهغه دواړو نه پوښتنه وكړه چې آيا ستاسو څوك هلك شته [۵] هغوئ وښودل مونږ ديرش كاله په دې حالت كې تير كړه چې زمونږ يو څوى نه وو بيا زمونږ يو په سترګه كور څوى پيدا شو چې لوى غاښونو والا او ډير كم فائدې رسونكى دى د هغه سترګې اودې وي ليكن د هغه زړه نه اوده كيږي

[۱] قَالَ: فَخَرَجْنَا مِنْ عِنْدِهِمَا، [۲] فَإِذَا هُوَ مُنْجَدِلٌ فِي الشَّمْسِ فِي قَطِيفَةٍ، وَلَهُ هَمْهَمَةٌ، [۳] فَكَشَفَ عَنْ رَأْسِهِ فَقَالَ: مَا قُلْتُمَا؟ [۴] قَالَ: هَلْ سَمِعْتَ مَا قُلْنَا؟ [۵] قَالَ: نَعَمْ، تَنَامُ عَيْنَايَ وَلَا يَنَامُ قَلْبِي». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابوبكره ﷺ وايي مونږ دواړه د هغوئ دې خبرې اوريدو سره د هغه ځاى نه روان شو [۲] او بيا اچانك زمونږ نظر په هغه هلك يعنى ابن صياد باندې ولګيدې چې په نمر (دهوپ) كې څادر اغوستى وو او د هغه د څادر نه د ګنګنړ داسې اواز راتلو چې څوك نه په پوهيدې مونږ دهغه په اوريدو سره د هغه متعلق مو څه خبره وكړه يابل څه به مو ويلي وه [۳] چې هغه د سر نه څادر لرې كولو سره زمونږ نه پوښتنه وكړه تاسو څه ويلي دي [۴] مونږ ورته حيرت سره اوويل مونږ خو دا ګنله چې ته اوده يې تاخو زمونږ خبره اوريدلي ده [۵] هغه اوويل هو څما سترګي اوده كيږي خو څما زړه نه اوده كيږي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ⑦مُنْجَدِلٌ: ځان ئې راټول كړې وو، ⑧قَطِيفَةٌ: څادر، ⑨هَمْهَمَةٌ: د بنګ بنګ آواز، ګونړ ګونړ كول،

**تسهيلات:** قوله: وَأَقَلُّهُ مَنْفَعَةً،

**داقل منفعت مفهوم:** دې نه مراد دا چه يوداسې ماشوم به وى كوم چه دَ عزت او قدر په اعتبار سره به ډير عيب دار وى او په عام توګه به خلق هغه ډير خراب ګڼرى خو دَ اولاد دَ

نشت والی په صورت کښې به د هغه پيدا کيدل څه قدرې د فائدې خبره وی

**قوله: تَنَامُ عَيْنَاهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ":**

**دزړه د نه اوده کيدو وجه:** د فاسد فکرونو په وجه به باطل وسوسې او ګډوډ خيالونه دومره زيات وی چه زړه به د هغې نه فارغ نه وی خو طبعًا به په سترګو کښې خوب راشی لکه څنګه چه انبياء کرام عليهم السلام ته د صحيح فکرونو او نيک سوچ په وجه دا صلاحيت ورکولې شی چه د هغوی زړه بيدار وی او سترګې ئې پټې وی.

**دبعضې جملووضاحت:**

① **أَبُوهُ طِوَالٌ**: په ضمه د طاء او تخفيف د واؤ صيغه مبالغه ده او په تشديد د واؤ سره خو به پکښې ډيره مبالغه وی. خو هم په تخفيف سره دې.

② **ضَرْبُ اللَّحْمِ**: خفيف الحم المستدق يعنی کمزورې بدن والا

③ **كَأَنَّ أَنْفَهُ مِنْقَارٌ**: كان بتشديد النون مراد داچه د هغه پوزه به د اوږدې مخوکې په شان وی

④ **فِرْضَاخِيَّةٌ**: په کسره د فاء او تشديد د ياء ای ضخمة عظيمة بې فائدې غټ، د ياء اضافه مبالغة ده. لکه احمری کذافی القاموس. وئيلی شی رجل فرضاخ په معنی د ضخيم، عريض يعنی پلن. اوږد اود مؤنث د پاره فرضاخة، فرضاخية په معنی عظيمة الثديين د چا ثديين چه چاق چاق وی.

⑤ **مُنْجَدِلٌ**: يعنی په زمکه باندې په نمر کښې پروت وو

⑥ **هَمْهَمَةٌ**: ای زمزمة داسې خبرې لکه چه د مچو د بنګاری په شان وی او په پوهه کې رانشی

**[٥٥٠٤] حضورپاک ته خطره وه چه چرته ابن صياد دجال نه وی**

٥٥٠٥-()[۱] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ امْرَأَةً مِنَ الْيَهُودِ بِالْمَدِينَةِ وَلَدَتْ غُلَامًا مَمْسُوحَةً عَيْنُهُ، طَالِعَةً نَابُهُ، [۳] فَأَشْفَقَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَكُونَ الدَّجَّالَ، [۴] فَوَجَدَهُ تَحْتَ قَطِيفَةٍ يُهَمْهِمُ، [۵] فَآذَنَتْهُ أُمُّهُ فَقَالَتْ: يَا عَبْدَ اللَّهِ! هَذَا أَبُو الْقَاسِمِ، [۶] فَخَرَجَ مِنَ الْقَطِيفَةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "مَا لَهَا قَاتَلَهَا اللَّهُ؟ لَوْ تَرَكَتْهُ لَبَيَّنَ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ نه روايت دی [۲] د مدينې د يوې يهودې ښځې يو خوی پيدا شو چې د هغه سترګه يعنی ښې سترګه او بعضو ويلې دي چې چپه سترګه آواره وه او د هغه داړې بهر راوتلی وې رسول الله ﷺ ته چې د داسې هلك په باره کې معلومه شوه [۳] نو حضور ﷺ سره ييره پيدا شوه چې دا دجال نه وي او د امت خلق فتنه او فساد کې مبتلا نه کړي [۴] نو يوه ورځ حضور ﷺ د هغه په ليدو او د هغه حقيقت معلومولو د پاره

[۱] ) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ٤٢٧٤ واحمد فی المسند:۳۶۸/۳

تشريف يوړلو نو هغه يې په يو څادر کې لاندې پروت اوليدلو هغه وخت هغه قلار قلار څه وئيل چې د هغه مفهوم پوهه کې نه راتلو ۞د هغه مور اوويل اې عبد الله يعنى ابن صياد (ګوره) دا ابو القاسم (محمد ﷺ) ولاړ دى هوښيار شه او د ده سره خبره وکړه ۞هغه په دې اوريدو سره د څادر نه اووتلو رسول الله ﷺ وفرمايل دې ښځې ته څه وشو الله دې هلاکه کړي (چې هغه هلك ځما د راتلو نه خبردار او هوښيار کې که هغې دغه شان هغه په خپل حال پرېښې وې او ځما د راتلو څخه يې خبردار کړې نه وى نو يقينًا هغه به خپل حال ظاهر کړې واى

حل اللغات:- ①مَمْسُوخَةٌ: مسخ شوې، ورانه شوې. ②طَالِعَةٌ: راوتلې وې، ښکاره وې. ③نَابَهُ: غابونه دهغه، داړې. ④أَشْفَقَ: ويره پيدا شوه. ⑤قَطِيفَةٍ: څادر. ⑥يُهَمْهِمُ: د ښنګ ښنګ آواز. ګونګ ګونګ کول.

۞فَذَكَرَ مِثْلَ مَعْنَى حَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ، ۞فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: ائْذَنْ لِي يَا رَسُولَ اللهِ! فَأَقْتُلَهُ، ۞فَقَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ يَكُنْ هُوَ فَلَسْتَ صَاحِبَهُ، إِنَّمَا صَاحِبُهُ عِيسَى بْنُ مَرْيَمَ، وَإِلَّا يَكُنْ هُوَ فَلَيْسَ لَكَ أَنْ تَقْتُلَ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْعَهْدِ" ۞فَلَمْ يَزَلْ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-مُشْفِقًا أَنَّهُ هُوَ الدَّجَّالُ». رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

ترجمه: ۞دې نه وروسته حضرت جابر ﷺ يا راوي د حضرت عمر ﷺ د هغه حديث مطابق بيان وکړو کوم چې د باب په شروع کې نقل شوې دې) ۞نو حضرت عمر ابن خطاب ﷺ عرض وکړو يارسول الله که تاسو اجازت راکوئ نو زه دې قتلوم ۞حضور ﷺ ورته وفرمايل که دى (يعني ابن صياد) هغه دجال دى نوته يې قاتل نشې جوړيدى بلکه د ده قاتل به عيسىٰ ابن مريم ﷺ وي (څکه چې د حضرت عيسىٰ ﷺ نه علاوه بل سړي ته د ده د قتل طاقت او قدرت نه دى ورکول شوى) که دى هغه دجال نه دى نو تاته د يو داسې سړي د قتلولو څه حق نشته کوم چې اهل ذمه کې دې يعنى هغه غيرد مسلمو نه دى چې د هغوئ د ځان ومال حفاظت زمونږ په ذمه شوې دې او هغوئ ته ذمي وئيل شوې دې ۞دې نه وروسته رسول الله ﷺ د خپل امت متعلق په حقله برابر دا خوف لرلو چې ابن صياد چيرته دجال نه وي دا روايت بغوي ﷫ په شرح السنه کې نقل کړى دى

حل اللغات:-④مُشْفِقًا: ويريدونکې.

تسهيلات:

قوله: إِنْ يَكُنْ هُوَ فَلَسْتَ صَاحِبَهُ، إِنَّمَا صَاحِبُهُ عِيسَى بْنُ مَرْيَمَ:

نوټ: ددې حديث څخه معلومه شوه چې دا ب صياد باره کښې نبى ﷺ ته شک وو چې دا دجال دې او که نه دې باقى ددې خبرې تفصيل وراندې د دې باب په اول کښې تيرشوې دې چې ابن صياد دجال وو که نه خوراجح خبره دا ده چې ابن صياد دجال نه وو.

# [۵] بَابُ نُزُولِ عِيسَى عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ

## دحضرت عیسی علیه السلام د نازلیدو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه اربعة احاديث مشتملة على مسئلتين:**

① ثبوت نزول عيسى عليه السلام: ۱، ۲، ۳، ۴.

② حاله ومكثه في الأرض بعد نزوله من السماء: ۱، ۴.

**دعیسی علیه السلام د قتل منصوبه:** په یوه موقع یهودیانو هغه قتل کول غوښتل هغه په یومکان کښې پټ شو عیسایانو دهغوی دفاع اونه کړه بلکه یوخو عیسایانو د دیرشو روپو په عوض د هغه جاسوسی اوکړه اویهودو ته ئی دهغه مکان پته اوخودله یهودیانو دهغه مکان نه گیره واچوله او یوبدبخت ئی دننه وراولیږلو چه عیسی علیه السلام شهید کړی حضرت جبرائیل علیه السلام د الله تعالی په حکم سره حضرت عیسی علیه السلام دمکان د چت نه اوویستلو اوپورته آسمانونوته ئی بوتلو په مکان کښې د حضرت عیسی علیه السلام شکل هغه سړی باندې واچولې شو کوم چه دننه داخل شوې وو نوکله چې هغه بهر راؤوتلو نویهودیانو هغه عیسی علیه السلام گنړلوسره قتل کړو. اوس هغوی په شک کښې شو که چرې دا مقتول عیسی علیه السلام دې نوهغه زمونږ سړې چرته لاړو اوکه چرې دا زمونږ هغه سړې دې نو عیسی علیه السلام چرته لاړو. یهودیان اوعیسایان ترننه پورې دحضرت عیسی علیه السلام په قتل کښې د تذبذب ښکاردی اوڅه فیصله نه شی کولې

**د عیسی علیه السلام باره کښې اسلامی عقیده:** داهل اسلام اجماعی عقیده ده چه حضرت عیسی علیه السلام الله تعالی آسمانونوته بوتلې دی اوهلته په هغه باندې د فرښتو صفات واچولې شو لهذا هغه د بشریت د صفاتو نه پاك شو نه خوراك څښاك اونه متیازې نه گرمی نه یخنی بلکه هغه په دویم آسمان باندې فرښتو سره اوسیږی اود قیامت په نیزدې کیدو سره به د آسمان نه لاندې نازلیږی د دمشق د جامع مسجد دمنارې په مشرقی غاړه به راکوزیږی اوس د لاندې راکوزیدو دپاره الله تعالی اسباب راپیدا کړی دی دنیا خو دارالاسباب دې په دې وجه به حضرت عیسی علیه السلام پاؤړئی راغواړی اوپاؤړئی لګولو سره به ښکته راځی

دجمعې ورځ به وی دمازیګر مونځ به تیاروی حضرت مهدی به په انتظارکښې وی هغوی ته به دمونځ ورکولودپاره وائی هغوی به جواب ورکړی چه نه ته مونځ پخپله ورکړه ځکه چه ددې امت امام ته ئی زه یر خاص کار یعنی د دجال د قتلولودپاره راغلې یم بهرحال نزول عیسی علیه السلام د اسلام اساسی عقیده ده ددې نه انکارکونکې گمراه کیږی بعضې کافران یعنی قادیانان اوبعضې نور روشن خیال د نزول عیسی علیه السلام نه انکارکوی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۵۵۰۵] دعيسى علیه السلام زمكې ته راكوزيدل

۵۵۰۵-()[۱] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَيُوشِكَنَّ أَنْ يَنْزِلَ فِيكُمُ ابْنُ مَرْيَمَ، ③حَكَمًا عَدْلًا، فَيَكْسِرُ الصَّلِيبَ، وَيَقْتُلُ الْخِنْزِيرَ، وَيَضَعُ الْجِزْيَةَ، ④وَيَفِيضُ الْمَالُ حَتَّى لَا يَقْبَلَهُ أَحَدٌ، ⑤حَتَّى تَكُونَ السَّجْدَةُ الْوَاحِدَةُ خَيْرًا مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا". ⑥ثُمَّ يَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ: ﴿وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ﴾ [النساء: ۱۵۹] الْآيَةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ②قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کې څما ساه ده يقيناً عيسیٰ ابن مريم به د آسمان نه ستاسو په منځ کې راکوزيږي ③چې يو عادل حاکم به وي هغه به صليب مات کړي خنزير به ووژني يعنی د هغه پالل او خوړل به مطلق حرام او ممنوع کړي او د هغه وژل به مباح کړي جزيه به پورته کړي ④په هغه زمانه کې به د دولت فراخي وي ددي پورې چې هيڅوک به د دي خواهشمند نه وي ⑤او هغه وخت به يوه سجده ددنيا او د دنياد ټولو څيزونو نه ښه وي ⑥دي حديث بيانولو نه وروسته به حضرت ابوهريره رضي الله عنه وئيل که تاسو دي خبره کې څه شك شبهه لرئ او دليل حاصلول غواړئ نو دا آيت اووايئ وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ يعنی هيڅ اهل کتاب که يهودي وي يا عيسائي به داسې باقي پاتې نشي چې عيسیٰ علیه السلام باندې به د هغوئ د وفات نه مخکې ايمان رانه وړي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ①لَيُوشِكَنَّ: دَ افعال مقاربه نه دې دَ قريب او نزدې په معنى کښې دې ②الصَّلِيبَ: دعيسايانو خاص مذهبی نښه، ③يَفِيضُ: فراخه به وی،

تسهيلات: قوله: أَنْ يَنْزِلَ فِيكُمُ ابْنُ مَرْيَمَ، حَكَمًا عَدْلًا،

**دعيسى عليه السلام دحاکمانه حيثيت:** يعنی حضرت عيسیٰ علیه السلام به حاکم (دَخلقو په مينځ کښې فيصله کونکې) کيدو په حيثيت سره راکوزيږی او دَ خلقو په مينځ کښې به په شريعت محمديه علي صاحبها ألف ألف تحية وسلام مطابق فيصلې کوی ځکه چه دَ باقی شريعتنو په شان به شريعت محمديه نه منسوخ کيږی. ([2])

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه حضرت عيسیٰ علیه السلام ته دَهغه وخت دَحکام نه يو حاکم

---

[1] ) اخرجه البخاري فی كتاب أحاديث الأنبياء/باب نزول عيسى ابن مريم عليهما السلام (رقم-۳۴۴۸) ومسلم فی كتاب الإيمان/باب نزول عيسى ابن مريم حاكمًا بشريعة نبينا محمد صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۴۲ - (۱۵۵) والترمذی فی كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی نزول عيسى ابن مريم عليه السلام (رقم-۲۲۳۳) وابن ماجه فی كتاب الفتن/باب فتنة الدجال، وخروج عيسى ابن مريم، وخروج يأجوج، ومأجوج (رقم-۴۰۷۸)

[2] ) فتح الباري: ۴۹۱/۶ عمدة القاري: ۵۴/۱۶ إرشادالساري: ۴۰۶/۷.

وی [1] د صحیح مسلم په روایت کښې ((حکما)) سره ((مقسطا)) معنی انصاف کونکې دې [2] امام طبرانی رحمه الله د عبدالله بن مغفل رضی الله عنه د حدیث تخریج کړې دې چه عیسی علیه السلام به د نزول نه پس د امت محمدیه تصدیق او د هغوی پیروی کوی [3]

**قوله فَيَكْسِرُ الصَّلِيبَ:**

**د صلیب ماتولو دوه مطلبونه:** د حاکم په حیثیت سره د نازلیدونه پس به حضرت عیسی علیه السلام صلیب ماتوی

① که چرې کسر صلیب په حقیقت باندې محمول کړې نو معنی به شی د نصاری د شان او شوکت ختمولو په غرض به صلیب ماتوی او غورزوی به

② که چرې د صلیب ذکر تمثیلاً دې نو مراد به شی چه نصاری د کومو څیزونو تعظیم کوی هغه به مات کړی او به غورزوی

**قوله وَيَقْتُلُ الْخِنْزِيرَ،**

**د خنزیر قتلول:** خنزیر به قتل کوی. د حدیث د دې تکړې نه حضرات فقهاء کرام د خنزیر ساتل او هغه خوړلو حرمت او د هغې په نجس العین کیدو باندې استدلال کړې دې وجه د استدلال داده چه شریعت مطهره د قابل انتفاع څیزونو ضائع کولو او هلاك کولو حکم نه کوی خو په حدیث الباب کښې د خنزیر د قتل کولو ذکر دې د دې نه معلومه شوه چه خنزیر قابل انتفاع نه دې. [4]

**قوله وَيَضَعُ الْجِزْيَةَ،**

**د جزیه ختمولو درې وجوهات:** ① جزیه به ختمه کړی. د حدیث د دې جز نه مراد دادې چه د نزول عیسی علیه السلام نه پس به صرف هم یو دین وی حضرت عیسی علیه السلام به د اهل کتابو د طرف نه صرف اسلام راوړل قبلوی

② د جزیه ختمولو یوه وجه به دا هم وی چه د نزول عیسی علیه السلام نه پس به چونکه هرطرف ته د اسلام چرچه وی ظلم به ختم کړې شی او انصاف به عام وی په خلقو کښې به مینه او محبت وی دکوم په سبب چه به زمکه هم خپل برکتونه راښکاره کړی

③ په خلقو کښې د مالونو کثرت وی او دومره کثرت به وی چه څوك صدقه قبلونکې به نه وی اوس ښکاره خبره ده چه داسې حالت وی نو د جزیه افادیت به باقی پاتې نه شی په

---

[1]) فتح الباری: ۴۹۱/۶.
[2]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب نزول عیسیٰ ابن مریم.... الخ رقم الحدیث: ۳۹۰-۳۸۹.
[3]) المعجم الأوسط: ۲۷/۵رقم الحدیث: ۴۵۸۰دارالحرمین، فتح الباری: ۴۹۱/۶.
[4]) فتح الباری:۴۹۱/۶إرشادالساری: ۴۰۶/۷.

دي وجه به دَ جزيه حكم ساقط كړي شي (۱)

**يو اشكال:** حضرت عيسى عليه السلام خوبه د يو امتي په حيثيت حكومت او فيصلې كوي نو بيا د جذيه ختمولو نسبت دوى ته ولې شوي دي؟

**داشكال جواب:** دَدې نسخ خبرخو نبي كريم ﷺ پخپله خپلو احاديثو كښې وركړي دي نو په حقيقت كښې دَدې نسبت به هم نبي عليه الصلاة والسلام دي خبره صرف دومره ده چه دَ اسقاط جزيه حكم به د نزول مسيح عليه السلام سره مقيد دي. (۲)

**يو روايت او ددهغې مفهوم:** بعض رواياتو كښې ((يضع الجزية)) په ځائې ((يضع الحرب)) الفاظ راغلي دى په دې صورت كښې به مفهوم داشي چه حضرت عيسى عليه السلام به جنگ ختم كړي ځكه چه هغه وخت به صرف هم يو دين دين اسلام په ټوله دنيا باندې رائج وى ټول خلق به په عقائدو كښې متفق وى دَ كوم په وجه چه به دَ جنگ نوبت نه راځي. (۳)

**قوله:** حَتَّى تَكُونَ السَّجْدَةُ الْوَاحِدَةُ خَيْرًا مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا".

**ديوې سجدې دعظمت وجه:** اول ((حتى، دَ يفيض المال)) سره متعلق دي او دويم ((حتى)) دَ پورته ذكرشوو ټولو امورودپاره غايت دي. اودَدې معنى داده چه دَدغه پورته كارونو دَ پوره كولونه پس به چونكه په زمكه كښې امن اوامان فضا خوريږي. دَمال اومنال به دومره زياتوالې وى چه څوك به دَ صدقه اوزكوة مستحق نه ملاويږي. په داسې حال كښې دَالله تعالى قرب حاصلول سوا دَ عبادت به بل هيڅ ذريعه نه وى. په دې وجه دَ خلقودپاره دَ الله تعالى په درباركښې يوه سجده دَ دنيا اومافيها نه بهتر وى. (۴)

**اشكال:** دَ الله تعالى په درباركښې سجده كول خو په هره زمانه كښې دَ دنيا اومافيها نه بهتره ځكه چه دَدې تعلق خالص دَ آخرت سره دي بيا دا ولې اوفرمائيلې شو چه هغه وخت به (دَ عيسى عليه السلام دَ نازليدلونه پس) دَ خلقو دَپاره يوه سجده دَ دنيا اومافيها نه ولې بهتروى؟

**داشكال جواب:** هغه وخت به دَ خلقو دَپاره (سوا دَ عبادت نه) دَ مال اومنال صدقه كول او الله تعالى ته دَ نيزديكت بل څه لار نه وى په دې وجه دَ خلقو دَپاره دَ الله تعالى په درباركښې يوه يوه سجده دَ دنيا اومافيها نه بهتر اوافضل وى (۵)

(۱) فتح الباري: ۴۹۱/۶عمدة القاري: ۵۴/۱۶إرشادالساري: ۴۰۶/۷.
(۲) فتح الباري: ۴۹۱/۶عمدة القاري: ۵۴/۱۶إرشادالساري: ۴۰۶/۷.
(۳) فتح الباري: ۴۹۱/۶عمدة القاري: ۵۴/۱۶
(۴) فتح الباري: ۴۹۱/۶عمدة القاري: ۵۴/۱۶ إرشادالساري: ۴۰۶/۷ إكمال المعلم بفوائد مسلم: ۴۷۱/۱دارالوفاء.
(۵) فتح الباري: ۴۹۱/۶عمدة القاري: ۵۴/۱۶إرشادالساري: ۴۰۶/۷.

**قوله: ثُمَّ يَقُولُ أَبُوهُرَيْرَةَ: فَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ:**

**د آیت پیش کولو دوه مقاصد:**

① ابوهریره رضی الله عنه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام په آخری زمانه کښې په نازلیدلو باندې استدلال کولو د پاره د آیت حواله ورکړه.

② ابوهریره رضی الله عنه دَ مذکوره حدیث د تائید او تصدیق په غرض دا آیت حواله ورکړه. [1]

**قوله: وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ:**

**د موته د ضمير په مرجع کښې درې تفسيرونه:** ① ابن جریر رحمه الله دَ سعید بن جبیر عن ابن عباس رضی الله عنهما په طریق صحیح سند سره دَ دواړو ضمیرونو مرجع حضرت عیسیٰ علیه السلام ګرځولې دې. په دې صورت کښې به دَ آیت مقصد دا بیانول وی چه دَ عیسیٰ علیه السلام دَ نازلیدلو په وخت چه څومره اهل کتاب وی ټول به په عیسیٰ علیه السلام باندې دَهغه دَ وفات نه مخکښې ایمان راوړی. ابن جریر رحمه الله هم دا تفسیر راجح ګرځولې دې. [2]

② دویم تفسیر دا دې چه دَ «موته» ضمیر اهل کتاب طرف ته راجع دې. چنانچه ابن جریر رحمه الله دَ عکرمه عن ابن عباس په طریق سره روایت کړې دې: «لايموت يهودي حتى يؤمن بعيسى ابن مريم» یعنی یو یهودی له ترهغه وخته پورې مرګ نه شی راتلې ترکومې چه په حضرت عیسیٰ علیه السلام باندې ایمان رانوړی. بعض روایاتو کښې دی چه دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه تپوس اوکړې شو که یو یهودی څه ناڅاپی آفت راګیرکړو اوهغه فوری توګه باندې مړ شونو؟ ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائیل «يلجلج بهالسانه» بیابه هم هغه له مرګ نه راځی ترکومې چه دَهغه ژبه په عیسیٰ علیه السلام باندې دَ ایمان راوړو کلمه اونه وائی

کوم حضرات چه دَ «موته» ضمیر مرجع اهل کتاب ګرځوی هغوی دې توجیه ته دَ حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه دَ قراءت په بنیاد باندې ترجیح ورکړې ده ځکه چه دَهغوی قراءت ضمیر جمع یعنی «موتهم» سره دې او ښکاره خبره ده چه په داسې صورت کښې به مرجع اهل کتاب وی. [3]

③ دَدې آیت تفسیر دا دې چه دَ «به» ضمیر نبی کریم صلی الله علیه وسلم طرف ته راجع دې او دَ «موته»

[1] إرشادالساري: ۷/۴۰۶، منحة الباري: ۶/۵۴۱، مكتبة الرشد.

[2] تفسير الطبري: ۴/۶۶۴ – ۶۷۲، سورة النساء رقم الآية: ۱۵۹، دارهجر. فتح الباري: ۶/۴۹۲، عمدة القاري: ۵۴-۵۵/۱۶، دارالكتب العلمية.

[3] تفسير الطبري: ۴/۶۶۴ – ۶۷۲، سورة النساء رقم الآية: ۱۵۹، دارهجر. فتح الباري: ۶/۴۹۲، عمدة القاري: ۵۴-۵۵/۱۶، دارالكتب العلمية.

ضمير كتابي طرف ته راجع دې. په دې صورت كښې به معنى داشي چه هيڅ يو كتابي كه هغه نصراني وي او كه يهودي هغه وخته پورې ورته مرګ نه شي راتلې تركومې چه هغه په نبي كريم ﷺ باندې ايمان رانوړي. دا تفسير دَحضرت عكرمه رحمه الله نه نقل دې. هغه فرمائي: ((لايموت النصراني واليهودي حتى يؤمن بمحمد صلى الله عليه وسلم، يعني في قوله: ﴿وَإِنْ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ﴾))

**د عيسى عليه السلام په نزول كښې درې حكمتونه:** دَ انبياء كرامو عليهم السلام نه په خاص توګه دَحضرت عيسىٰ عليه السلام نزول به په دې وجه كيږي د نزول مسيح عليه السلام په وجه دَ يهوديانو هغه باطل ګمان باندې رد كول دي چه هغوى العياذ بالله حضرت عيسىٰ عليه السلام قتل كړې دې. نو په نزول عيسىٰ عليه السلام سره به دې ګمان ترديد اوشي اودا به هم ښكاره شي چه يهوديانو دَعيسىٰ عليه السلام قتل نه دې كړې بلكه عيسىٰ عليه السلام به هغوى قتل كوي.

② انسان چونكه دَخاورې نه جوړدې او اصول دادې چه دَ خاورې نه جوړشوې به هم په خاورو كښې خښيږي په دې وجه په وخت دَ اجل موعود به دَحضرت عيسىٰ عليه السلام نزول كيږي دې دَپاره چه دَتجديد اسلام نه پس هم په زمكه كښې مدفون شي. هم دغه شان بعض حضراتو دا وجه هم بيان كړې ده چه حضرت عيسىٰ عليه السلام دَ نبي كريم اودَهغوى دَامت صفات كتلو سره دَ الله تعالى نه دعا كړې وه چه هغه دې هم الله تعالى په امت محمديه كښې شامل كړي. الله تعالى ئې دعا قبوله كړه اوهغوى ئې تراوسه پورې ژوندى اوساتل تردې چه كله په آخرى زمانه كښې دَ فتنو عروج وي په دنيا كښې دجال هرطرف ته فتنې خورې كړې وي. نو هغه وخت به دَحضرت عيسىٰ عليه السلام نزول كيږي اوهغه به دغه فتنې ختموي. دجال به قتل كوي اودَ اسلام تجديد به كوي.[1]

③ علامه عيني رحمه الله فرمائي چونكه دَ عيسىٰ عليه السلام زمانه اودَ نبي كريم ﷺ زمانه په نسبت دَ نورو انبياء كرامو نيزدې ده په دې وجه (دَ اسلام دَتجديد دَپاره) به دَحضرت عيسىٰ عليه السلام نزول كيږي.[2]

## [۵۵۰۶] دَ حضرت عيسى عليه السلام دَ زمانې د بركتونو ذكر

۵۵۰۶-([3])[۲] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«وَاللهِ لَيَنْزِلَنَّ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا عَادِلًا، فَلَيَكْسِرَنَّ الصَّلِيبَ، وَلَيَقْتُلَنَّ الْخِنْزِيرَ، ③ وَلَيَضَعَنَّ الْجِزْيَةَ، وَلَيَتْرُكَنَّ الْقِلَاصَ، فَلَا يُسْعَى عَلَيْهَا، ④ وَلَتَذْهَبَنَّ

[1] فتح الباري: ۴۹۳/۶ دارالمعرفة منحة الباري للشيخ زكريا الأنصاري: ۵۴۱/۶ مكتبة الرشد.
[2] عمدة القاري: ۵۵/۱۶ دارالكتب العلمية.
[3] اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب نزول عيسى ابن مريم عليهما السلام (رقم-۳۴۴۹) ومسلم في كتاب الإيمان/باب نزول عيسى ابن مريم حاكمًا بشريعة نبينا محمد صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۴۲ - (۱۵۵)) واحمد في المسند: ۴۹۴/۲

الشَّحْنَاءُ وَالتَّبَاغُضُ وَالتَّحَاسُدُ، [۵] وَلَيَدْعُوَنَّ إِلَى الْمَالِ فَلَا يَقْبَلُهُ أَحَدٌ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ، [۶] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا قَالَ: " «كَيْفَ أَنْتُمْ إِذَا نَزَلَ ابْنُ مَرْيَمَ فِيكُمْ، وَإِمَامُكُمْ مِنْكُمْ؟» ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په الله قسم چې حضرت عيسیٰ ابن مريم به په داسې حالت کې نازل شي چې هغه به يو عادل حاکم وي صليب به مات کړي خنزير به قتل کړي [۳] د ذميانو نه به جزيه پورته کړي او ځواني اوښې به پرينبودل شي د هغوئ نه د سورلي او بارداری کار نشي اخستی [۴] او يقيناً د خلقو د زړونو نه به کينه بغض او حسد لاړ شي ځکه چې داتولي خرابی د دنيا محبت او لالچ نه پيدا کېږي هرکله چې دنيا او د دنيا د څيزونو طرف ته څه رغبت پاتې نشي نو دا خرابي به د کوم ځاي نه پيدا کېږي [۵] او يقيناً حضرت عيسیٰ ﷺ به خلق مال ودولت سره نوازلو د پاره رابلي ليکن د استغناء او بي نيازي په وجه به هيڅوک مال ودولت اخستونکي نه وي (مسلم) او د بخاري [۶] او مسلم په يو روايت کې دادی چې حضور ﷺ وفرمايل هغه وخت به ستاسو څه حال وي (يعني تاسو به څومره سکون او آرام محسوسوي) هرکله چې عيسیٰ ﷺ ابن مريم ستاسو په منځ کې راکوز شي او ستاسو امام ستاسو نه يعنی د اهل قريشو نه يا ستاسو د ملت نه څوک فرد وي.

**حل اللغات:** - ① الْقِلَاصَ: ځواني اوښې، دا دعربو محبوب مال دې. ② الشَّحْنَاءُ: بغض ، حسد او کينه.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَاللَّهِ لَيَنْزِلَنَّ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا عَادِلًا،

**دعيسی عليه السلام په شريعت محمدی فيصلې کول:** ځکه چه هم دا شريعت به باقی وی منسوخ به نه وی او عيسیٰ ﷺ به هم دَ دې شريعت احکام جاری کوی اوهغه وخت به حکم کيږی إِمَّا الاسلام وإِمَّا السيف لهذا جزيه به ختمه کړی حافظ ﷫ فرمائی دَ دې دا مطلب دې چه څوک به ذمی پاتې نه شی بلکه ټول به مسلمانان وی

**قوله:** فَلَيَكْسِرَنَّ الصَّلِيبَ،

**دصليب تعريف:** اصطلاحًا مثلث لرګې کوم چه دَ نصاری سره وی دَ هغوی ګمان دې چه په داسې لرګی سره ئی هغه په سولئی کړې وو دَ حضرت مسيح ﷺ تصوير هم هغوی جوړوی او ځان سره ئې ساتی

**قوله:** وَلَيَضَعَنَّ الْجِزْيَةَ،

**ديضع مفهوم:** حافظ ﷫ فرمائی چه مراد دادې چه هم يو دين به وی څوک به ذمی يا مستامن نه وی بلکه ټول به مسلمانان وی حکم به کيږی په هغه وخت کښې به يا اسلام وی اويا به په تلوار باندې کافرانوسره جنګ کولې شی.

**قوله: وَلَيُتْرَكَنَّ الْقِلَاصُ، فَلَا يُسْعَى عَلَيْهَا،**

**په ځوانې اوښې سورلی نه کول**:يعنی دغه ځوانې اوښې به پريخودې شي په هغې باندې سورلی اوبوج بارکول به هيرکړې شي خلق به داسې دَ مال نه مستغنی شی چه دغه محبوب ترين مال ته به هم نه ګوری.

**قوله: وَلَتَذْهَبَنَّ الشَّحْنَاءُ وَالتَّبَاغُضُ وَالتَّحَاسُدُ،**

**دبغض کينې ختميدل**:يعنی دَ دنيا محبت به ختم شی نودَدې نه پيدا شوې بيمارئی مثلاً کينه اوبغض حسد او عداوت به هم ختم شی.

**قوله: وَلَيَدْعُوَنَّ إِلَى الْمَالِ فَلَا يَقْبَلُهُ أَحَدٌ**

**د عدم قبول مال په مفهوم کښې دوه اقوال**: ① دادې چه مال به دومره زيات وی چه دَ خلقو نه به دَ جزيې اخستلو ضرورت نه وی.

② علامه نووی رحمه الله فرمائی چه اصل معنی داده چه حضرت عيسی عليه السلام به د اسلام نه علاوه به دَ چا مال وغيره نه قبلوی اودَ دې معنی تائيد په ډيرو روايتونو سره کيږی ځکه چه دَ جزيې جوازُ مقيد دې دَ نزول مسيح سره دا حکم هم زمونږ دَ شريعت دې

**[۵۵۰۷] جهاد به جاری وی تردې چې د عيسی عليه السلام نزول به اوشی**

۵۵۰۷-()[۳] ①وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②"«لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ" ③قَالَ: " فَيَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ، فَيَقُولُ أَمِيرُهُمْ: تَعَالَ صَلِّ لَنَا ④فَيَقُولُ: لَا إِنَّ بَعْضَكُمْ عَلَى بَعْضٍ أُمَرَاءُ، تَكْرِمَةَ اللّٰهِ هٰذِهِ الْأُمَّةَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ①او حضرت جابر رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل ②ځما په امت کې به هميشه يو جماعت حق د پاره جنګيږي او په خپلو دښمنانو به غالب راځي د قيامت نزدې پورې به داسلسله جاري وي ③بيا حضور صلی الله عليه وسلم وفرمايل هرکله چې حضرت عيسیٰ بن مريم د آسمان نه راکوزشي او هغه وخت مسلمانان د ما نځه په حالت کې وي نو د امت امير يعنی امام مهدي به عيسیٰ ته وايي چې راځه مونږ ته مونځ راکړه ځکه چې د امامت حق د هغه سري وي کوم چې افضل وي او ښکاره ده چې تاسو د کامل رسول او نبي په حيثيت سره دوخت د ټولو نه افضل يي ④ليکن عيسیٰ عليه السلام به هغه ته جواب ورکړي چې زه امامت نه کوم (ځکه چې ځما د امامت په وجه دا ګمان کيدی شي چې ستاسو دين منسوخ شوي دي) بلا شبه په تاسو کې بعضې خلق بعضو باندې امام او امير دي په دي

---

[۱] ) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب نزول عيسی ابن مريم حاکمًا بشريعة نبينا محمد صلی الله عليه وسلم (رقم-۲۴۷ - (۱۵۶) وابوداود فی کتاب الجهاد/باب فی دوام الجهاد (رقم - ۲۴۸۴) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الأئمة المضلين (رقم-۲۲۲۹) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب فتنة الدجال، وخروج عيسی ابن مريم، وخروج يأجوج، ومأجوج (رقم-۴۰۷۵) واحمد فی المسند:۵/۲۷۹

سبب چې الله ﷻ دا امت محمديه بزرګ او برتر ګرځولی دی (مسلم) او په دي باب کې دويم فصل نشته

**حل اللغات** - ① ظَاهِرِينَ: غالب به راځی، ② تَكْرِمَةً: عزت مند ، بزرګ او برتر

**تسهيلات:**

**قوله** لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ:

دقيامت د ورځې پورې په حق باندې قائمه ډله نبی عليه السلام فرمائی چې ترقياته پورې به په هره زمانه کښې يوه ډله په حق باندې ولاړه وی اودباطل سره به جهاد کوی او په تعليماتو به عمل کوی

**قوله:** ظَاهِرِينَ:

**د ظاهرين معنی:** غالبين على الباطل حجة علامه طيبی رحمه الله فرمائی ظاهرين دَ لا تزال دويم خبردې يا دَ ثابتين دَ ضمير څخه حال دې ای ثابتين على الحق فى حالة كونهم غالبين على العدو

**قوله:** حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ:

**دامر په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دې نه مراد قيامت دې

② دې نه مراد هغه هوا ده چه دَ کومې دَ چليدو سره به دَ هر مؤمن سړی او مؤمنې ښځې روح قبض کولې شی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

### [۵۵۰۸] حضرت عيسی به دَ حضور پاک په روضه کښې دفن کيږی

٥٥٠٨ -(١)[٣] ① عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ②«يَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ إِلَى الْأَرْضِ، فَيَتَزَوَّجُ، وَيُولَدُ لَهُ، ③وَيَمْكُثُ خَمْسًا وَأَرْبَعِينَ سَنَةً، ثُمَّ يَمُوتُ، فَيُدْفَنُ مَعِي فِي قَبْرِي، ④فَأَقُومُ أَنَا وَعِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ فِي قَبْرٍ وَاحِدٍ بَيْنَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ» ". رَوَاهُ ابْنُ الْجَوْزِيِّ فِي (كِتَابِ الْوَفَاءِ).

**ترجمه:** ① حضرت عبد الله ابن عمرو رضی الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② حضرت عيسیٰ ابن مريم به په زمکه راکوزشي نو هغه به نکاح کوي او د هغه به اولاد وي ③ په دنيا کې د هغه د قيام موده به پنځه څلويښت کاله وي بيا به هغه وفات شي او هغه به څما د قبر (يعني څما په مقبره کې) ما سره دفن شی ④ نو د قيامت په ورځ زه او عيسیٰ دواړه به يوي مقبري نه د ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه په منځ کې راپاځو دا روايت ابن جوزي رحمه الله په کتاب الوفاء کی نقل کړی دی . [رواه ابن جوزی فی کتاب الوفاء]

[١] ) رواه الجوزی فی كتاب الوفاء

**تسهیلات:**

**قوله: وَيَمْكُثُ خَمْسًا وَأَرْبَعِينَ سَنَةً:**

**اشکال:** دا روایت هغه روایت سره معارض او مخالف دې په کوم کښې چه ذکر دی چه حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ ۳۳ کالو په عمر کښې آسمان ته اوچت کړې شوې وو او دَنزول نه پس به اووه کاله په زمکه باندې حکومت کوی. دې سره دَهغوی پوره عمر ۴۰ کاله معلومیږی خو په زیر بحث روایت کښې دَهغوی پوره عمر ۴۵ کاله خودلې شوې دې؟

**داشکال جواب:** چه چرته دَ څلویښتو کالو ذکر راغلې دې هلته دَپنځو کالو کسر پریخودې شوې دې اصل عمر هم ۴۵ کاله دې. عرب اکثر اوبیشتر کسر نه ذکر کوی او دهایانې بیانوی.

**قوله: ثُمَّ يَمُوتُ، فَيُدْفَنُ مَعِي فِي قَبْرِي:**

**دعیسیٰ علیه السلام د نبی علیه السلام سره په خوا کښې تدفین:** یعنی ما سره به زما په مقبره کښې خښیږی. دَدې ځائی نه مراد دَحضرت عائشې رضی الله عنها هغه مکان دې چرته چه حضورپاك او صدیق و فاروق دفن دی. حضرت عائشې رضی الله عنها تواضعًا وصیت اوفرمائیلو چه ما په عام قبرستان کښې دفن کړئی داځائی پریږدئی. بیا حضرت حسن رضی الله عنه په دغه ځائی کښې دَ خښیدو کوشش اوکړو مګر په دغه ځائی کښې خښیدو کښې کامیاب نه شو. لهذا دَقبر داځائی خالی دې او په حضرت عیسیٰ علیه السلام باندې به ډك شی.

# [۶] بَابُ قُرْبِ السَّاعَةِ وَأَنَّ مَنْ مَاتَ فَقَدْ قَامَتْ قِيَامَتُهُ

**دَ قرب قیامت بیان او څوک چې مړشو نوپه هغه قیامت قائم شو**

**خلاصة الباب:**

**فيه سبعة احاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① مقدار قرب الساعة: ۱، ۴، ۵، ۶، ۷.

② عدم علم النبي ﷺ بالساعة: ۲.

③ تمثيل قرب الساعة: ۲، ۳، ۴.

**د قیامت درې قسمونه:** ① قیامت صغری. چه دَهرسړی کله مرګ واقع شی نو دهغه قیامت به قائم شی. دا ذاتی اوشخصی قیامت دې. لکه چه په حدیث کښې دی ((من مات فقد قامت قيامته))

② چه په زمکه باندې دَاوسیدونکو موجوده انسانانو مخصوص دور به ختم شی لکه چه دَ صحابه کرامو دور ختم شو نودَ برکتونو دور ختم شو. دادَ یوقسم قیامت وو کوم چه دَ وسطیٰ مودې دَپاره وو.

③ قیامت کبریٰ دې هغه دَدې عالم کائنات مرګ دې چه زمکه آسمان فرښتې جنات انسانان اوحیوانات ټول به مړه شی. ﴿وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ﴾ [سورت رحمن:۲۷]

په مذکوره باب کښې به دَ قیامت صغریٰ او قیامت کبریٰ دواړو بیان کیږی بلکه دَ مشکاة په حدیث نمبر ۵۵۵۵ کښې دَ قیامت وسطیٰ هم بیان دې لهذا په دې باب کښې به دَ دریواړو قسمونو قیامت بیان وی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۵۵۰۹] قیامت ډیر نیزدې دې**

۵۵۰۹-()[۱] ① عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ» ". ③ قَالَ شُعْبَةُ: وَسَمِعْتُ قَتَادَةَ يَقُولُ فِي قَصَصِهِ: كَفَضْلِ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى»، ④ فَلَا أَدْرِي أَذَكَرَهُ عَنْ أَنَسٍ أَوْ قَالَهُ قَتَادَةُ؟. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت شعبه رحمه الله د حضرت قتاده رحمه الله نه او هغه د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② زه او قیامت د دې دواړو ګوتو (یعني د شهادت ګوته

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «بعثت أنا والساعة كهاتين» (رقم-۶۵۰۴) ومسلم في كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب قرب الساعة (رقم-۱۳۲ - (۲۹۵۱) وابن ماجه في كتاب الفتن/باب أشراط الساعة (رقم-۴۰۴۰) واحمد في المسند: ۳۰۹/۴

او د منځ ګوته) په شان راليږل شوي يو ③حضرت شعبه رحمه الله وايي ما د حضرت قتاده رحمه الله نه واوريدل هغه د حضور ﷺ د بعثت قيام قيامت سره ددوو ګوتو سره د تشبيه ورکولو مراد بيانولو سره په خپل وعظ کې اوويل چې څرنګه په دې دواړو ګوتو کې يوه ګوته د دويمې ګوتې نه مخکې ده يعنې مذکوره مشابهت نه د حضور ﷺ مراد دا وو چې څرنګه د منځ ګوته د شهادت د ګوتې نه څه مخکې ده دغه شان څما د بعثت (پيغمبرۍ) زمانه د قيامت د وخت نه څه مخکې ده چې زه د قيامت نه مخکې راغلی يم او قيامت په ماپسې را روان دی ④بهرحال شعبه رحمه الله وايي ماته معلومه نه ده چې دا مراد حضرت قتاده رحمه الله په خپله بيان کی يا هغه د حضرت انس رضي الله عنه نه اوريدلی وو او که دا متعين شي چې قتاده رحمه الله دا مراد خپله نه وو بيان کړی بلکه هغه يې د حضرت انس رضي الله عنه نه اوريدلی وو نو بيا دا احتمال پاتې کيږي چې دا مراد خپله حضرت انس رضي الله عنه بيان کړی وو يا حضور ﷺ خپله دا مراد بيان کړی وو چې حضرت انس رضي الله عنه د حضور ﷺ نه نقل کړی وو دغه شان د حضرت مستورد ابن شداد رضي الله عنه يو روايت راځي هغه نه دا معلوميږي چې دا مراد په خپله حضور ﷺ بيان فرمايلی وو. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةَ كَهَاتَيْنِ:**

**دقيامت اودنبی عليه السلام د بعثت نژدېوالي:** يعنی دَ شهادت ګوته او دَ مينځ ګوته چه ئي کله ملاؤ کړې نودواړه برابر سرابر دی صرف دَمينځ ګوته لږه شان اوږده ده لکه داسې زه لږ شان وړاندې راغلې يم او ماسره متصل قيامت راتلونکې دې

**اشکال:** پخوانو پيغمبرانو هم قيامت ډير نيزدې خودلې دې مګر په دې باندې زرګونه کالونه تيرشو تراوسه پورې قيامت رانغلو. په آخره کښې حضورپاك هم قيامت ډير نيزدې اوخودلو مګر يونيم زر کاله کيدونکی دی چه قيامت رانغلو آخر داڅنګه نيزدې دې؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① داد بادشاهانو اطلاق دې هغوی چه کوم ځيزته نيزدې اووائی په هغې باندې هم څو کاله لګيدې شی.

② دَعلماؤ اوعقلاؤ متفقه فيصله ده چه "کل ما هو آت فهو قريب" يعنی کوم يو ځيز هم چه راتلونکې وی داسې ګڼره چه هغه نيزدې دې څکه چه يوه ورځ به داسې هم راشی چه هغه ځيز به راغلې وی. بس قيامت هم دغه شان يو ځيز دې.

## [۵۵۱۰] دقيامت علم صرف الله تعالى سره دي

۵۵۱۰ -( )[۴] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ [۲]: «سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ قَبْلَ أَنْ يَمُوتَ بِشَهْرٍ: [۳] "تَسْأَلُونِي عَنِ السَّاعَةِ؟ وَإِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللَّهِ، [۴] وَأُقْسِمُ بِاللَّهِ مَا عَلَى الْأَرْضِ مِنْ نَفْسٍ مَنْفُوسَةٍ يَأْتِي عَلَيْهَا مِائَةُ سَنَةٍ وَهِيَ حَيَّةٌ يَوْمَئِذٍ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷛ وايي [۲] ما د نبي كريم ﷺ دوفات نه يوه مياشت مخكې خني دا اوريدلي وه [۳] چې تاسو زما نه د قيامت د وخت پوښتنه کوئ چې مخکنی شپيلی به کله پو کيږي او دويمه به کله نو حقيقت دادی چې د هغه مقرر وخت صرف د الله ﷻ په علم کې دی [۴] او زه د الله ﷻ قسم اخستو سره وايم چې دا وخت په مخ د زمکې باندې داسې هيڅ سړی موجود نه دی چې په هغه سل کاله تير شي او هغه د هغه نه وروسته هم ژوندی پاتې شي . (مسلم)

**حل اللغات:-** ① مَنْفُوسَةٍ: ساه اخستونکې، ② حَيَّةٌ: ژوندی،

**تسهيلات: قوله:** مَا عَلَى الْأَرْضِ مِنْ نَفْسٍ مَنْفُوسَةٍ يَأْتِي عَلَيْهَا مِائَةُ سَنَةٍ وَهِيَ حَيَّةٌ يَوْمَئِذٍ:

**دنفس په مصداق كښې دوه احتمالات:** يعنی څوك ساه اخستونكې به دَ نن نه واخله سل كاله پوره كيدونه پس باقی پاتې نه شی.

① دا ارشاد دَ صحابه كرامو دَدور دَختميدو طرف ته اشاره ده اوهم داسې شوی دی چې سل كاله پس په صحابه كرامورضی الله عنهم كښې يو صحابی هم ژوندې باقې پاتې نه وو بلكه ټول د دنيا څخه رخصت شوی وو .په دې صورت كښې اودادَ قيامت وسطیٰ دَ قائم كيدو دور وو

② د دې څخه دَدنيا عام انسانان مراددی.په دې صورت كښې داكلام به دَ مغيباتو دَ قبيل نه وی چه په دنياكښې به څوك ساه اخستونكې دَ نن نه پس سل كالو پورې ژوندې نه وی او يقينی خبره ده چه داسې به شوې وی.

**دڅلورو پيغمبرانو حيات:** ملاعلی قاری ﷫ ليكلی دی چه څلور نبيان دې وخت كښې ژوندی دی دوه په زمكه باندې دی يعنی حضرت الياس ﷤ اوحضرت خضر ﷤ اودوه په آسمان دی يعنی حضرت عيسیٰ ﷤ اوحضرت ادريس ﷤

### دخضر عليه السلام په وفات اوحيات كښې دوه مذاهب:

① دصوفياء كراماوبعضې نورو عالمانوپه نيزحضرت خضر ﷤ اوس هم حيات اوژوندې دې.

[۱] ) اخرجه مسلم فی كتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم /باب قوله صلی الله عليه وسلم: «لا تأتی مائة سنة، وعلی الأرض نفس منفوسة اليوم» (رقم-۲۱۸ - (۲۵۳۸) واحمد فی المسند:۳/۳۲۲

④ دبلي دلې رائې دا ده چې خضر علیه السلام وفات شوې دې.

**داول فريق دليل:** زيربحث حديث د اول فريق مستدل دې څکه چې په دې کښې نبی علیه السلام دا فرمائيلی دی چې سل کاله پس به يوکس هم په مخ د زمکې ژوندې پاتې نشي.نوخضر علیه السلام هم په دې کښې راغلل.

**داول فريق د دليل جوابونه:** ① حضرت خضر علیه السلام هغه وخت په زمکه کښې نه وو بلکه په هوا يا اوبوباندې وو او رسول الله ﷺ علی الارض فرمائيلی دی.

② دَ رسول الله ﷺ دا ارشاد دَ امت باره کښې دې نه چه دَ انبياء کرامو عليهم السلام باره کښې او حضرت خصر علیه السلام خو نبی دې.

③ دَ روايت الفاظ عام خص عنه البعض دی څکه چه ډير صحابه کرام رضی الله عنهم هم دَ سلو کالونه پس ژوندی پاتې دی لکه انس رضی الله عنه او حضرت سلمان رضی الله عنه.

④ دَ دې نه مراد دَ سلوکالو تعيين نه دې بلکه دَ زمانې ختميدل مراد دی کما قاله ابن عمر رضی الله عنه. دغه شان حضرت عيسی علیه السلام او نور انبياء کرام عليهم السلام دَ دې مقوله په وخت کښې په آسمان باندې وو نه چه په زمکه نوهغوی هم خارج دی.

⑤ دَ ابن قتيبه رحمه الله رائې ده دې نه مراد هغه مخصوص خلق دی چه په هغه وخت کښې دَ حضور ﷺ په محفل کښې موجود وو او ولفظ منکم دَ روايت نه ساقط شوې دې

**[۵۵۱۱] صحابو ته د حضور ﷺ يوه پيش ګوئي**

٥٥٥-()[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-عَنِ النَّبِيِّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ [۲]: "«لَا يَأْتِي مِائَةُ سَنَةٍ وَعَلَى الْأَرْضِ نَفْسٌ مَنْفُوسَةٌ الْيَوْمَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] داوقت چې کوم خلق (يعني صحابه رضی الله عنهم) ژوندي دي په دوئ کې به هيڅ سړی سل کاله نه وروسته د زمکي په مخ موجود نه وي .

**تسهيلات:** نوټ: د دې حديث تشريح وړاندې د مشکاة د حديث نمبر (٥٥٥) په تسهيل کښې تيره شوې ده.

[1] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب قوله صلی الله عليه وسلم: «لا تأتی مائة سنة، وعلی الأرض نفس منفوسة اليوم» (رقم-۲۱۹ - (۲۵۳۹) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۲۵۰)واحمد فی المسند:۳۷۹/۳

## [۵۵۱۲] د قيامت په باره کې يو سوال او د هغه جواب

۵۵۱۲-()[۳] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ [۲]: «كَانَ رِجَالٌ مِنَ الْأَعْرَابِ يَأْتُونَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَيَسْأَلُونَهُ عَنِ السَّاعَةِ، [۳] فَكَانَ يَنْظُرُ إِلَى أَصْغَرِهِمْ [۴] فَيَقُولُ: "إِنْ يَعِشْ هَذَا لَا يُدْرِكْهُ الْهَرَمُ حَتَّى تَقُومَ عَلَيْكُمْ سَاعَتُكُمْ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي [۲] ځني باندچي (کليوال) خلق به د حضور ﷺ په خدمت کې راتلل او دا پوښتنه به يې کوله چې قيامت به کله راځي [۳] حضور ﷺ په دې اوريدو سره هغه بچي طرف ته کتل چې هغه پوښتنه کونکو سره به وو [۴] او بيا به يې فرمايل که دا بچي ژوندې پاتې شو نو دې به د بوډاتوب عمر ته نه وي رسيدلی چې په تاسو باندې به قيامت راشي (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** - ① الْهَرَمُ: بوډا توب.

**تسهيلات: قوله:** إِنْ يَعِشْ هَذَا لَا يُدْرِكْهُ الْهَرَمُ حَتَّى تَقُومَ عَلَيْكُمْ سَاعَتُكُمْ:

**د قيامت په مصداق کښې دوه احتمالات:** يعنی ستاسو قيامت به قائم شی

① دې ځخه قيامت صغرىٰ مراد دې ځکه د هرسړی خپل ذاتی مرګ طرف ته اشاره ده

② دې ځخه قيامت وسطیٰ مراد دې يعنی قرنِ صحابه يا د موجوده خلقو قرن مراد دې چه د دې خلقو دور به ختم شی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۵۱۳] د قرب قيامت ذکر

۵۵۱۳-()[۵] [۱] عَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ [۲]: «بُعِثْتُ فِي نَفَسِ السَّاعَةِ، [۳] فَسَبَقْتُهَا كَمَا سَبَقَتْ هَذِهِ هَذِهِ" [۴] وَأَشَارَ بِأُصْبُعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت مستورد ابن شداد د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] زه د قيامت په ابتداء کې راليږل شوی يم (يعني زه په داسې زمانه کې پيغمبر شوی يم چې په هغه کې د قيامت د علاماتو شروع شوي ده او زه د قيامت نه دومره مخکې راغلی يم [۳] څومره چې دا منځنۍ ګوته د شهادت د دې ګوتې نه مخکې ده دې [۴] فرمايلو سره حضور ﷺ خپلې دواړې ګوتې (يعني منځنۍ او د شهادت ګوتې ته اشاره وکړه) ترمذی.

---

[۱] ) اخرجه البخاری فی كتاب الرقاق/باب سكرات الموت (رقم-۶۵۱۱) ومسلم فی كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب قرب الساعة (رقم-۱۳۶ - (۲۹۵۲) واحمد فی المسند:۳/۱۹۲

[۲] ) اخرجه الترمذی فی كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی قول النبی صلى الله عليه وسلم: «بعثت أنا والساعة كهاتين» يعنی السبابة والوسطى (رقم-۲۲۱۳)

حل اللغات: - ① نَفَسٍ: ساه (ابتداء مراد ده)، ② فَسَبَقْتُهَا: مخکښې والې کړې دې ما دهغې نه.

**تسهیلات:**

نوټ: ددې حدیث د مضمون تشریح وړاندې د مشکاة حدیث نمبر(۵۵۰۰) په تسهیل کښې تیره شوې ده.

**[۵۵۱٤] په دنیا کښې دامت محمدی تپاتی پاتې کیدو موده**

۵۵۱٤-()[۲] ۱ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ "«إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ لَا تَعْجِزَ أُمَّتِي عِنْدَ رَبِّهَا أَنْ يُؤَخِّرَهُمْ نِصْفَ يَوْمٍ". ۳ قِيلَ لِسَعْدٍ: وَكَمْ نِصْفُ يَوْمٍ؟ قَالَ: خَمْسُمِائَةِ سَنَةٍ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.[1]

**ترجمه:** ۱ او حضرت سعد ابن ابي وقاص ﷺ د رسول الله ﷺ نه روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ۲ یقینًا زه امید لرم چې څما امت به د خپل پروردګار په نظر کې دومره عاجز او بې حقیقته نشي چې د هغوئ پروردګار ورته د نیمي ورځي مهلت هم ورنه کړي ۳ حضرت سعد ابن ابي وقاص ﷺ نه دا پوښتنه وشوه چې دا نیمه ورځ به څومره وي هغه جواب ورکړو پنځه سوه کاله.

**تسهیلات:**

**قوله: أَنْ لَا تَعْجِزَ أُمَّتِي**

**پنځه سوه کالو څخه وړاندې د قیامت نه راتلل:** دَدې مطلب دادې چه دَ الله تعالی په نیزبه زما دَ امت دومره بې وقعتی او ناقدری نه وی اودا امت به دومره عاجز نه وی چه الله تعالی به دوی پنځو سوو کالو پورې روستو کړی دَنیمې ورځې عمر به هم ورنه کړی دَ نصف یوم نه دَ قیامت نیمه ورځ مراد ده کومه چه دَ پنځو سوو کالو وی. قرآن کریم کښې دی ﴿وَإِنَّ يَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِمَّا تَعُدُّونَ﴾ [سورت حج، ٤٧]

دَدې حدیث مطلب داشو چه قیامت به پنځو سوو کالو پورې نه قائمیږی. دَهغې نه پس چه الله تعالی څومره قیامت روستو کړی هغه دَ الله تعالی په اختیار کښې دی دَ دې نه بحث نه دې.

**دپنځوسوو کالوپه مصداق کښې دوه اقوال:** ① علامه جلال الدین سیوطی ﷫ خپل بعضو کتابونو کښې لیکلی دی چه دَدې پنځو سوو کالونه هغه کال مراد دې چه دَ زرو کالونه پس به وی. لکه چه یونیم زر کاله موده دَدې امت عمر دې. حضرت عمر فاروق ﷺ فرمائیلی دی چه دَ پوره دنیا عمر اووه زره کاله دې.

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب قیام الساعة (رقم-٤٣٥٠) واحمد فی المسند: ۱/۱۷۰

④ ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی دا کوم چه دَ پنځو سوو کالو ذکر دې دادَ اووه زره کالو نه پس دې حضرت عمر رضي الله عنه اووه زره کاله ذکر کړی دی اودَ پنځو سوو کالو کسر ئی پریخودې دې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵۵۱۵] د دنیا د فنا کیدو او قیامت ته د نزدې کیدو دپاره مثال

۵۵۱۵ – (۱) [۷] ۱ عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " «مَثَلُ هَذِهِ الدُّنْيَا مَثَلُ ثَوْبٍ ۳ شُقَّ مِنْ أَوَّلِهِ إِلَى آخِرِهِ، ۴ فَبَقِيَ مُتَعَلِّقًا بِخَيْطٍ فِي آخِرِهِ ۵ فَيُوشِكُ ذَلِكَ الْخَيْطُ أَنْ يَنْقَطِعَ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ۱ حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ۲ د دې دنیا فناء ته نزدې رسیدو او د قیامت نزدې راتلو مثال د هغه کپړې په شان دی ۳ چې هغه د شروع نه ترآخر پورې شلیدلې وي ۴ او د هغه ټکړې په آخر کې یوتار سره نښتي وي ۵ او هغه تار هم شلیدو ته نزدې وي نو دنیا هم خپلې خاتمیته دومره نزدې شوې ده دا روایت بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① شُقَّ: شلیدلې وی، ② مُتَعَلِّقًا: رازوړنده وی، ③ خَيْطٍ: تار.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَثَلُ هَذِهِ الدُّنْيَا مَثَلُ ثَوْبٍ شُقَّ مِنْ أَوَّلِهِ إِلَى آخِرِهِ:

**ددنیاوی عمر مثال:**

په حدیث الباب کښې تشبیه ډیره بلیغ ده چه دنیا ختمیدو ته نیزدې ده مګر دا قرب دَ الله پاك دَ علم په لحاظ سره دې دَ بندګانو دَ حساب په لحاظ سره نه دې

---

[1] ) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان / فصل فیما یقول العاطس فی جواب التشمیت... رقم الحدیث ۹۸۷۵

# [۷] بَابُ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ إِلَّا عَلَى شِرَارِ النَّاسِ]

## قیامت به په بد عمله خلقو باندې قائمیږی

**خلاصة الباب**

**فيه خمسة حديثاً مشتملة على مسئلتين:**

① قيام الساعة وقت عدم التوحيد والإيمان: ۱، ۳، ۴، ۵.

② قيام القيامة على أشرار الناس: ۲.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۵۵۱۶] په دنیا کښې چه ترڅو پورې دَالله تعالی نوم والا وی قیامت به نه قائمیږی**

۵۵۱۶-(۱)[۱] ① عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى لَا يُقَالَ فِي الْأَرْضِ: اللَّهُ اللَّهُ» "، ③ وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: " «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ عَلَى أَحَدٍ يَقُولُ: اللَّهُ اللَّهُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② قیامت به ترهغه وقته پورې نه راځي د څوپورې چې زمکه باندې الله الله وئیل موقوف نشي ③ او په یوه روایت کې داسې دي چې وي فرمایل قیامت به په هغه سړي نه قائمیږي چې الله الله وايي. (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله: لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى لَا يُقَالَ فِي الْأَرْضِ: اللَّهُ اللَّهُ:**

**دالله الله وئیلو په مفهوم کښې اقوال:** ① کله چې قیامت قائمیږی نو په هغه وخت به په مخ دَزمکې باندې داسې یو کس باقی نه وی چه دَ الله تعالی نوم اخستونکې او دَ هغه عبادت کونکې وی بلکه ټول په ټوله به کافران او بت پرست وی. دَدې نه دا هم معلومه شوه چه دنیا دَ نیکانو خلقو په برکت سره قائم ده.

② دَالله الله وئیلو څخه مراد اذان دې. په دنیاکښې یو داسې وخت خالی نه دې په کوم کښې چه دَ الله آواز نه وی

③ دالله الله وئیلو مطلب دا دې چه الله الله کونکې به څوک بچ پاتې نه شی.

**اشکال:** که په انسانانو کښې څوک الله الله کونکې نه وی نو ځناور او مرغان خودَ الله

---

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب ذهاب الإيمان آخر الزمان (رقم-۲۳۴ - (۱۴۸) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۲۰۷)واحمد فی المسند: ۳/۱۰۷

تعالى تسبيح كوي

**۵اشکال جواب:** دَ ﴿ وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ ﴾ په رڼړا كښې ځناور اومرغان دَدې مكلف نه دي بلكه انسان او جنات مكلف دي. او دَ حديث الباب نه مكلف مخلوق مراد دي

**[۵۵۱۷] قيامت به په بدكاره خلقو راځي**

۵۵۱۷-(۱)[۲] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " ② «لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ إِلَّا عَلٰى شِرَارِ الْخَلْقِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② قيامت به صرف بدكارو باندې قائميږي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① شِرَارِ الْخَلْقِ: بد تر خلق، بدكاره خلق.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ إِلَّا عَلٰى شِرَارِ الْخَلْقِ

**په بدترين خلقو د قيامت قائميدل:** دَمخلوق نه مراد انسانان دي ځكه چه دَ شرير يعني بدكارنه مراد ګناهګار دي. ښكاره خبره ده چه دَ ګناه اومعصيت تعلق صرف دَ انسان سره وي نه چه دَ ټول مخلوق سره.

**اشکال:** دَدې حديث په مقابل كښې بل حديث كوم چه مخكښې تير شوې دي «لايزال طائفة من أمتي حتى يقاتلون الحق ظاهرين إلى يوم القيامة» دې نه خو معلوميږي چه دَ قيامت پورې به يو جماعت قتل اوقتال كوي. حالانكه په دې حديث كښې دي چه قيامت به په شريرانو خلقو باندې قائميږي نو په ظاهره په دواړو كښې تعارض دې؟

**داشکال جواب:** «لايزال طائفة» دَ دې تعلق هغه ټولو زمانو سره دې چه په مخ كښې دَزمكې تركومې پورې دَاسلام دَ حاملينو وجود وي په هغوى كښې به څه نه څه جماعت هميشه دَحق دَ سر لوړئ دَپاره جهاد كوي. اوكله چه دَخدائي نوم اخستونكو كښې څوك باقي پاتې نه شي نوجنګ كونكې به هم څوك پاتې نه شي نو چه كله جنګ كونكى پاتې نه شي نو قيامت به راشي.

**[۵۵۱۸] د قيامت متعلق يو پيشن ګوئي**

۵۵۱۸-(۲)[۳] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② " «لَا تَقُوْمُ

[۱] ) اخرجه مسلم فى كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب قرب الساعة (رقم-۱۳۱ - (۲۹۴۹) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب شدة الزمان (رقم-۴۰۳۹)

[۲] ) اخرجه البخارى فى كتاب الفتن/باب تغيير الزمان حتى تعبد الأوثان (رقم-۷۱۱۶) ومسلم فى كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتى تعبد دوس ذا الخلصة (رقم-۵۱ - (۲۹۰۶) واحمد فى المسند:۲/۲٦۲

السَّاعَةُ حَتَّى تَضْطَرِبَ أَلَيَاتُ نِسَاءِ دَوْسٍ حَوْلَ ذِي الْخَلَصَةِ". [۳] وَذُو الْخَلَصَةِ: طَاغِيَةُ دَوْسٍ الَّتِي كَانُوا يَعْبُدُونَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] قيامت به دهغې پورې نه راځي د ځوپورې چې د قبيله دوس ښځې د ذو الخلصة چاپيره عبادت کول شروع نه کړي [۳] او حضرت ابوهريره ﷺ يا بل يو راوي د ذو الخلصة وضاحت کولو سره ويلي دي چې ذو الخلصة د قبيله دوس د يوبت نوم دی چه په زمانه د جاهليت کې به يې د هغه عبادت کوی . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① تَضْطَرِبَ: دَ اضطراب نه دي دَحرکت کولو په معنی کښې دې ② أَلَيَاتُ: دَ أَلية جمع ده. چاق پتون او دَ کوناتو غوښې ته وائی کوم ته چه تړوتې وائی ③ دَوْس: يو قبيله ده. ④ ذِي الْخَلَصَةِ: داپه يمن کښې دَ يوبت خانې نوم وو دې ته به ئی کعبه يمانيه هم ونيلې. ⑤ طَاغِيَةُ: سرکشه، يعنی بُت،

**تسهيلات:**

**قوله:** وَذُو الْخَلَصَةِ: طَاغِيَةُ دَوْسٍ الَّتِي كَانُوا يَعْبُدُونَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ:

**دذوالخلصه پيژندګلو:** دې ته به ئی کعبه يمانيه هم ونيلې شوه په دغه بت خانه کښې يو لوئی بت وو دَ کوم نوم چه خلصه وو هم په دې وجه پوره بت خانې ته ذوالخلصة اوونيلې شو. دَ مکې مکرمې دَ فتح کيدونه پس حضورپاك حضرت جرير بن عبدالله ﷺ دَدې د راغورزولو او سوزولو دَپاره روان کړو هغوی دغه هلاک کړه.

**دذوالخلصه بت عبادت شروع کيدو پيشنګوئی:** په دور جاهليت کښې به دَ قبيله خثعم بجيله او دَ دوس قبيلې خلقو دَدې بت عبادت کولو. حضورپاك پيشنګوئی اوکړه چه يوه زمانه به بيا داسې راځی چه دَ قبيله دوس ښځې به په ناز نخرو سره دَدې بت نه چاپيره طواف کوی ګرځی به.

**اشکال:** په يوحديث کښې راغلی دی چې شيطان مايوسه شوې دې چې په جزيرة العرب کښې به د بتانو عبادت شروع شی اوپه دې حديث کښې نبی ﷺ د ذوالخليصه بت دعبادت شروع کيدو پيشنګوئی کړې ده. دا تعارض دې

**داشکال دوه جوابونه:**

① دا به دَ هغه زمانې خبره وی کله چه دَ اسلام نظام اوچت کړې شی قيامت به شروع شی لکه ځنګه چه دې پسې په روايت نمبر(۵۵۵۵) کښې دَدې تصريح ده

② دا به يو جزئی واقعه وی ګنی دَ قيامته پورې په جزيرة عرب کښې دَ غلبې په توګه بت پرستی نه شی کيدې.

## [۵۵۱۹] قيامت نه مخکې به بيا د لات او عزى عبادت شروع شي

۵۵۱۹-()[۳] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " [۲] «لَا يَذْهَبُ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ حَتَّى يُعْبَدَ اللَّاتُ وَالْعُزَّى ". [۳] فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنْ كُنْتُ لَأَظُنُّ حِينَ أَنْزَلَ اللهُ: ﴿هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ﴾ [التوبة: ۳۳] [۴] أَنَّ ذَلِكَ تَامًّا

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] چې د شپې او د ورځې سلسله به ترهغه وقته پورې نه ختميږي يعنى دا دنيا به ترهغه وقته پورې نه فناء کېږي او قيامت به نه راځي د څوپورې چې دلالت او عزىٰ دوباره پرستش شروع نشي [۳] کوم وخت چې ما د حضور ﷺ دي ارشاد گرامي واوريدي نو ما عرض وکړو يا رسول الله! هرکله چې الله ﷻ دا آيت نازل کی: هُوَالَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْكَرِهَ الْمُشْرِكُونَ. نو دي آيت نه خو دا ثابتيږي چې ټول مذاهب باطل دي او مذهب د اسلام ربنتني او غالب دی [۴] او کم نه کم عربو کې د بت پرستی رواج به هميشه د پاره ختم شي څکه د يقين حد پورې ځما خيال وو چې د بت پرستی خاتمه کيدونکي ده او دا چې آئنده به هيڅ کله بت پرستي نه کېږي ليکن اوس تاسو دا خبر راکوئ ؟

**حل اللغات:-** ① اللَّاتُ وَالْعُزَّى: دا په مکه معظمه کښې دوه بتان وو.

[۱] قَالَ: إِنَّهُ سَيَكُونُ مِنْ ذَلِكَ مَا شَاءَ اللهُ، [۲] ثُمَّ يَبْعَثُ اللهُ رِيحًا طَيِّبَةً، فَتَوَفَّى كُلَّ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ; [۳] فَيَبْقَى مَنْ لَا خَيْرَ فِيهِ، فَيَرْجِعُونَ إِلَى دِينِ آبَائِهِمْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمايل درحقيقت دا سې به کېږي يعنی د اسلام رڼا به غالبه وي او د کفر اوشرک چراغ (ډيوه) به مره شي خو ترهغه وقته پورې د څوپورې چې الله ﷻ غواړي په خپله الله ﷻ داخبره واضحه فرمايلي ده، [۲] او بيابه الله ﷻ يوه خوشبوداره هوا راوليږي چې د هغه په ذريعه به هرهغه سړی مړ شي چې د هغه په زړه کې د اوري (رائي) برابر هم ايمان وي [۳] او په دنيا کې به صرف هغه سړی باقي پاتې شي چې په هغه کې هيڅ نيکي نه وي يعنی هغه وخت به د زمکې په مخ دا سې هيڅ سړی پاتې نشي چې په هغه کې خير او ايمان وي ،او هغه کسان به پاتې شي چې په چا کښې څه خيرنه وي نو دوی به دخپلو پلارانو دين ته وګرځي بيهقي.

**حل اللغات:-** ② مِثْقَالُ: په برابر، په اندازه، ③ حَبَّةٍ: دانه، ④ خَرْدَلٍ: غوبنت، أوری،

---

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب لا تقوم الساعة حتى تعبد دوس ذا الخلصة (رقم-۵۲ - (۲۹۰۷)

**تسهيلات:**

**قوله: حَتّٰى يُعْبَدَ اللَّاتُ وَالْعُزّٰى:**

**د لات او عزى د عبادت شروع كيدو پيشنګوئي:** لات او غزىٰ دا د جاهليت د بتانو نه د دوؤ بتانو نومونه دي. لات د قبيلهٔ ثقيف د بت نوم وو ددې د راغورزولو د پاره رسول الله ﷺ حضرت ابو سفيان رضي الله عنه او مغيره بن شعبه رضي الله عنه ليږلي وو او عزىٰ دا د بنو غطفان سليم وغيره بت وو كوم چه خالد بن وليد رضي الله عنه راغورزولې وو.

**قوله: فَيَرْجِعُونَ إِلَىٰ دِينِ آبَائِهِمْ:**

**دوباره د بت پرستۍ رواج شروع كيدل:** هغوى به د خپلو پلارانو او نيكونو د دين طرف ته راوګرځي يعني مرتد به شي. داهم د الله تعالى حكمت دې چه په آخرى وخت كښې به دكفر او د بت پرستنې د وجې نه الله تعالى ته غصه ورشي او بيا به په هغوى باندې قيامت راولي.

**[۵۵۲۰] قيامت نه مخكښې د بعضې نورو خبرو وضاحت**

۵۵۲۰-(¹)[۵] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ [۲]: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " «يَخْرُجُ الدَّجَّالُ فَيَمْكُثُ أَرْبَعِينَ " [۳] لَا أَدْرِي أَرْبَعِينَ يَوْمًا أَوْ شَهْرًا أَوْ عَامًا [۴] " فَيَبْعَثُ اللّٰهُ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ كَأَنَّهُ عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ فَيَطْلُبُهُ فَيُهْلِكُهُ، [۵] ثُمَّ يَمْكُثُ فِي النَّاسِ سَبْعَ سِنِينَ، لَيْسَ بَيْنَ اثْنَيْنِ عَدَاوَةٌ، [٦] ثُمَّ يُرْسِلُ اللّٰهُ رِيحًا بَارِدَةً مِنْ قِبَلِ الشَّامِ [۷] فَلَا يَبْقَى عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ أَحَدٌ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنْ خَيْرٍ أَوْ إِيمَانٍ إِلَّا قَبَضَتْهُ، [۸] حَتَّى لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ دَخَلَ فِي كَبِدِ جَبَلٍ لَدَخَلَتْهُ عَلَيْهِ حَتَّى تَقْبِضَهُ "،

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل دجال به راوخي او دخلويښتو پورې به وي [۳] حضرت عبد الله رضي الله عنه وايي ما ته معلومه نه ده چې هغه موقع باندې دحضور ﷺ مراد دخلويښتو عدد نه څه وو آيا خلويښت ورځې يا خلويښت مياشتې يا خلويښت كاله [۴] نو الله ﷻ به حضرت عيسىٰ عليه السلام راوليږي چې ګويا د عروه ابن مسعود رضي الله عنه په شكل وصورت كې به وي (يعني حضرت عيسىٰ عليه السلام به شكل وصورت كې د عروه ابن مسعود رضي الله عنه مشابه وي هغه به دجال تلاش كوي او هغه به وژني [۵] دي نه وروسته به حضرت عيسىٰ دنيا والاو كې اووه كاله پورې وي او په دې موده كې د دوو سرو په منځ كې هيڅ دښمني او عداوت به نه وي [٦] بيا به الله ﷻ د شام د طرف نه يوه يخه هوا را وليږي چې اهل ايمان به د مرګ غيږ ته ورسوي [۷] نو هغه وخت به د زمكې په مخ داسې هيڅ سړى باقي پاتې نشي د چا په زړه كې چې د اورې (رائي) برابر

¹) اخرجه مسلم فى كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب فى خروج الدجال ومكثه فى الأرض، ونزول عيسى وقتله إياه، وذهاب أهل الخير والإيمان، وبقاء شرار الناس وعبادتهم الأوثان، والنفخ فى الصور، وبعث من فى القبور (رقم-١١٦ - (٢٩٤٠)

هم نيکي يا ايمان څه وي نو هغه هوا به د هغه روح قبض کړي [۸] تردي که په تاسو کې څوك بالفرض په غره کې دننه هم تلی وي نو هغه هوا به په غره کې داخليدو سره په هغه پسي شي او د هغه روح به قبض کړي

**حل اللغات:** - ① کبد: سينه ، خيگر ، زړه،

> [۱] قَالَ: " فَيَبْقَى شِرَارُ النَّاسِ فِي خِفَّةِ الطَّيْرِ وَأَحْلَامِ السِّبَاعِ، [۲] لَا يَعْرِفُونَ مَعْرُوفًا وَلَا يُنْكِرُونَ مُنْكَرًا، [۳] فَيَتَمَثَّلُ لَهُمُ الشَّيْطَانُ، فَيَقُولُ: أَلَا تَسْتَجِيبُونَ؟ [۴] فَيَقُولُونَ: فَمَا تَأْمُرُنَا؟ فَيَأْمُرُهُمْ بِعِبَادَةِ الْأَوْثَانِ، [۵] وَهُمْ فِي ذَلِكَ دَارٌ رِزْقُهُمْ، حَسَنٌ عَيْشُهُمْ، [۶] ثُمَّ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ، فَلَا يَسْمَعُهُ أَحَدٌ إِلَّا أَصْغَى لِيتًا، وَرَفَعَ لِيتًا " [۷] قَالَ: " وَأَوَّلُ مَنْ يَسْمَعُهُ رَجُلٌ يَلُوطُ حَوْضَ إِبِلِهِ فَيَصْعَقُ، وَيَصْعَقُ النَّاسُ، [۸] ثُمَّ يُرْسِلُ اللَّهُ مَطَرًا كَأَنَّهُ الطَّلُّ، [۹] فَيَنْبُتُ مِنْهُ أَجْسَادُ النَّاسِ، ثُمَّ يُنْفَخُ فِيهِ أُخْرَى،

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمايل دي نه وروسته به د زمکي په مخ صرف بدکار او شرير خلق پاتې شي چې د مارغانو په شان به تيز رفتار او درندګانو په شان به مضبوط او سخت وي [۲] هغوئ به نه د نيکۍ او خير ښيګړي نه واقف وي او نه به بدۍ او بدکارۍ نه پرهيز کوي [۳] بيا به شيطان په معزز او قابلِ تکريم انسان شکل وصورت اختيارولو سره هغوئ ته راشي او ورته به وايي تاسو خلق چې کوم فسق وفجور کې مبتلا يئ په دې آيا تاسو ته شرم وحياء نه راځي ګويا دا به د شيطان مکر وتلبيس وي چې هغه به په دې طريقي سره هغوئ دبت پرستۍ طرف ته راولي [۴] نو هغه خلق به شيطان ته وايي ته وښايه چې مونږ څه وکړي يعني زمونږ په باره کې چې ستا مقصود دی هغه ظاهر کړه چې مونږ د هغه مطابق عمل وکړي نو شيطان به هغوئ ته د بت پرستۍ حکم ورکړي او هغوئ به په دې فريب کې مبتلا کړي چې تاسو خلق دوسيلي اختيارولو په طور د بتانو عبادت شروع کړئ چې الله ستاسو نه راضي شي نو کفار به دا وايي چې مونږ د بتانو محض د الله خوشحالو د پاره پرستش کوو او قرآن هغوئ ته د دې کمزوري خيال خبرپه دی الفاظو کې ورکړی دی مانعبدهم الا ليقربونا الى الله زلفا ويقولون هؤلاء شفعاؤنا عند الله بهر حال هغه خلق به د شيطان د وينا مطابق بت پرستي کول شروع کړي او د هغوئ اعمال او اخلاق به انتهائي درجه خراب شي . [۵] ليکن د هغوئ د هغه خراب اعمالو باوجود به د هغوئ په رزق کې زيادت او کثرت وي او هغوئ به د عيش وعشرت ژوند تيروي [۶] بيا قيامت قائمولو د پاره به شپيلۍ پوهه شي او کوم سړی چې هم د هغه اواز واوري هغه سړی به مري هغه به خپل څټ يوجانب ته خکته کړي [۷] او دويم جانب ته به يې پورته کړي د هغه شپيلۍ اواز به د ټولو نه مخکنی اوريدونکی هغه سړی وي چې خپل اوښ اوبه کولو د پاره به حوض ليو کوي او هغه به په هغه حالت کې مړ شي او نور ټول خلق به دغه شان خپل کار کې د مشغوليت په دوران کې مړه شي (يعني هيچاته به دومره مهلت نه وي چې

هغه په کوم کار کې مشغول دی دهغه نه فارغه شي) [۸] دي نه وروسته به الله ﷻ باران راووروي چې د پرخې په شان به وي (يعني سپك باران چې هغه ته به پشم هم وئيل کيدی شي [۹] او د هغه باران په ذريعه به د خلقو بدنونه زرغونه شي (چې په قبرونو کې به وښي شوي وي)

**حل اللغات:**- ② خِفَّةِ الطَّيْرِ: خفت سپکوالی ته وائی يعنی د سپکوالی په وجه چه مارغان ډير تيز روان وی. ③ أَحْلَامِ السِّبَاعِ: د درندګانو په شان به کم عقل، مضبوط او سخت وی ④ الْأَوْثَانِ: بتان. ⑤ دَارٌّ: زيات به وی، ⑥ أَصْغَى لِيتًا: دځې يوطرف به ښې ښکته وی ⑦ يَلُوطُ: ليو کول او پلستر کول مراد دی ⑧ يَصْعَقُ: بې هوشه به شی يعنی مړه به شی. ⑨ الطَّلُّ: شبنم ته وائی دلته ترې خفيف باران مراد دی.

[۱] فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنْظُرُونَ ثُمَّ يُقَالُ: [۲] يَا أَيُّهَا النَّاسُ! هَلُمَّ إِلَى رَبِّكُمْ، ﴿وَقِفُوهُمْ إِنَّهُمْ مَسْئُولُونَ﴾ [الصافات: ۲۴] [۳] فَيُقَالُ: أَخْرِجُوا بَعْثَ النَّارِ، [۴] فَيُقَالُ: مِنْ كَمْ كَمْ؟ [۵] فَيُقَالُ: مِنْ كُلِّ أَلْفٍ تِسْعَمِائَةٍ وَتِسْعَةً وَتِسْعِينَ " [۶] قَالَ: " فَذَلِكَ يَوْمَ يَجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِيبًا، وَذَلِكَ يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [۷] وَذُكِرَ حَدِيثُ مُعَاوِيَةَ: "«لَا تَنْقَطِعُ الْهِجْرَةُ»" فِي بَابِ التَّوْبَةِ.

**ترجمه:** [۱] بيابه ځلوېښت کاله وروسته دويمه شپيلی پوهه شي چې د هغه په اوريدو سره به ټول خلق د خپلو قبرونو او زمکو د لاري نه د ژوندي کيدو سره راوځي په يووار به پاځيدو سره اودريږي او د قيامت دهولناك منظر ننداره به ووينې بيابه هغوئ ټولو ته اوويل شي [۲] چې خلقو خپل پروردګار طرف ته راشئ او فرشتو ته به حکم وشي چې داټول حصار کړي د دوئ د اعمالو په باره کې به پوښتنه کيږي او دوئ نه به حساب اخستل کيږي [۳] بيابه د پروردګار د طرف نه فرشتو ته اوويل شي چې دي خلقو نه هغه ټول جدا کړئ کوم چې د دوزخ د اور لښکر دی چې هغوئ په دوزخ کې واچول شي [۴] د فرشتو د طرف نه به بارګاه رب العزت کې عرض وشي چې څومره خلقو نه څومره خلق جدا شي يعنی کوم خلق چې دوزخ ته ليږل دي د هغوئ تعداد څه دی او هغوئ د څومره خلقو نه د کوم مقدار حساب سره جدا شي [۵] فرشتو ته به اوويل شي چې په هرو زرو کې نه سوه نه نوي (۹۹۹) خلق دوزخ ته ليږلو د پاره جدا کړئ [۶] په دي ويلو سره حضور ﷺ وفرمايل داهغه ورځ ده چې بچي به بوډاګان کړي او دا هغه ورځ ده چې په هغه کې به امرِ عظيم ښکاره شي (مسلم) [۷] او د حضرت معاويه ﷺ روايت لاتنقطع الهجرة د توبي په باب کې نقل شوي دي.

**حل اللغات:**- ⑩ شِيبًا: بوډا، سپين ګرې. ⑪ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ: ساق پنډئ ته وائی. کشف ساق کنايه ده د داسې غم نه چه دَ برداشت نه بهر وی.

**تسهيلات: قوله: يَخْرُجُ الدَّجَّالُ فَيَمْكُثُ أَرْبَعِينَ:**

**د دجال په زمکه کښې د پاتې کيدو وضاحت:** رسول الله ﷺ دَ دجال قيام دَ څه مصلحت دَ وجې نه مبهم ساتلې دی هم په دې وجه وړاندې راوی وائی چه ماته معلومه نه شوه چه حضور پاك څلويښت ورځې اوفرمائيلی که څلويښت مياشتې ئی اووئيل يا څلويښت کاله ئی اووئيل په نورو رواياتو کښې راجح قول دَ څلويښت ورځو دې.

**د حديث د بعضې جملوو وضاحت:**

① كَبِدِ جَبَلٍ: يعنی هغه هوا به په دغه سری کښې ورداخليږی که هغه دَ غر يا چټان په سينه کښې دننه تلو سره پټ ولې نه شی.

② خِفَّةِ الطَّيْرِ: يعنی په نقل و حرکت اوپه عدم استقلال کښې به دَ مرغو په شان په منتشر انداز کښې غيرسنجيده طريقې سره به څپلئی تقونکې به بې وقاره ګرځی.

③ وَأَحْلَامِ السِّبَاعِ: يعنی وحشت بربريت، جهالت اوبې رحمئی کښې به دَ ماتونکی ځناورو په شان بې عقل وی.

④ أَلَا تَسْتَجِيبُونَ: آيا تاسو شرميږئی نه چه په فسق اوفجور کښې پراته ئی اوعبادت نه کوئی؟ داخبره به ابليس ځکه کوی چه هغوی له دهوکه ورکړی او دَ بتانو په عبادت کښې ئی اخته کړی.

⑤ دَارٌّ رِزْقُهُمْ: يعنی دَ کفر بت پرستئی اوفسق فجورباوجود الله تعالی به هغوی ته هم يوشان رزق ورکوی اودَهغوی ظاهری ژوند به ښه وی اوبدنی صحت وغيره به ورته حاصل وی

**قوله: أَصْغَى لِيتًا:**

**د اصغى په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① په لام باندې کسره ده دَ سټ يو طرف ته وائی. شارحين دَدې جملې مطلب دا بيانئی چه دَ نفخ صور دَ دهشت دَ وجې نه به زړونه اوشليږی نوستونه به رازوړند شی دَ هغې نظام به معطل شی نويوه حصه به ښکته شی اوبله حصه به پورته شی

② حافظ فضل محمد صاحب په توضيحات شرح مشکاة کښې ليکلی دی چې دَ شارحينو خبره په خپل ځائی باندې صحيح ده مګر زما په ناقص خيال کښې دا راځی چه ناڅاپی آواز دَ وجې نه هر سړې به دَښه اوريدو کوشش کوی نوغوږ به دَهغې طرف ته لګوی دې دَپاره چه زيات آواز راشی اودَ حقيقت حال اندازه اوشی لکه چه عام عادت دې چه په داسې صورت حال کښې دَ سټ اومخ يوه حصه ښکته پورته کيږی. په دغه شش وپنځ کښې به معامله نوره سخته شی.

**قوله: يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ**

**د ساق بربندولو څخه مراد:** يعني هم دغه به دَ شدائدو او مصائبو وخت وي. كشف ساق كنايه ده دَداسې غم نه چه دَ برداشت نه بهر وي. دادَ عربو خاص محاوره ده عرب خلق دا په سخت مصيبت كښې استعمالوي يعني چه كله په چا باندې ناقابل برداشت مصيبت راشي نوهغه سرې دَ خپلې پنډئى نه پاجامه او پرتوګ اوچتوي اودَ جنګ دَپاره تيارېږي. هم دَدې مصيبت په كيفيت كښې عربو دا محاوره داسې استعمالېږي. "كشف فلان عن ساقه".

# [٢٨] كِتَابُ صِفَةِ الْقِيَامَةِ وَالْجَنَّةِ وَالنَّارِ

**كتاب دې په بيان دقيامت او جنت او دوزخ په باره كښې**

## [١] بَابُ النَّفْخِ فِي الصُّورِ

**شپيلئ كښې دَپوكوهلو بيان**

**خلاصة الباب**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① المقدار بين النفختين مع العدد: ١، ٩.

② فناء العالم بالنفخ الأول: ٢، ٣، ٤، ٥، ٦.

③ حقيقة الصور: ٨.

④ حال إسرافيل عليه السلام: ٧، ١٠.

⑤ إحياء الموات بالنفخ الثاني: ١١.

**دنفخ لغوي معنى:** دَ پوك وهلوپه معنى كښې دې

**د صور څخه مراد:** صوريعني شپيلئ په أصل كښې نرسنګا يعني ښكرته وائي دا يوقدرتي ښكردې په كوم كښې چه به دَالله تعالى په حكم سره حضرت اسرافيل عليه السلام پوكې وهي.

**په اولل دشپيلۍ پوك وهل:** دَ ټولو انسانانودَ هلاك كولودَپاره به اوله شپيلۍ پوك وهلى شي. په دې نفخ اولى سره به ټول ساه والا مره شي. ابليس به هم په دغه نفخ اولى كښې هلاك كړې شي. دې به اخواديخوا تختې مګر فرښتې به دَ اور ګرز سره دې واپس راګرځوي. بيا به دَ ټولو انسانانو دَ زنكدن تكليف يوازې په ابليس باندې واچولې شي.

**په نفخ اولى سره د او څيزونو عدم هلاكت:** نفخ اولى به يوشان شپږو مياشتو پورې جاري وي. په دې سره به ټول مخلوق ختم شي. صرف اته څيزونه به دَ هلاكت نه محفوظ پاتې شي. ① عرش ② كرسي ③ لوح محفوظ ④ قلم ⑤ جنت ⑥ دوزخ ⑦ صور ⑧ أرواح.

بعضې علماء ليکي چه دا اته څيزونه به هم د څه وخت د پاره فنا شي او صرف رب ذوالجلال به باقي پاتې شي او اعلان به او فرمائي ﴿لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ﴾ [سورت مومن: ۱۶] درې ځل به اعلان نه پس پخپله جواب ورکړي ﴿لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ [سورت مومن: ۱۶]

**په دويم ځل د شپيلۍ پوک وهل:** ④ د ټولو د راژوندی کولو د پاره به شپيلۍ پوک وهلې شي دې د پاره چه حشر نشر او حساب کتاب قائم شي په اول ځل شپيلئ پوک وهلو او دويم ځل پوک وهلو په مينځ کښې به د څلويښتو کالو فاصله وی

**د محشر زمکه:** د محشر ميدان به د شام په زمکه باندې قائم شي. ټول انسانان به په دويم ځل شپيلئ پوک وهلو سره د دغه ميدان طرف ته راغونډيدلې شي "ياعظام البالية ويا اجسام المفتتة هلموا إلى الله الواحد القهار الجبار".

**د دوباره ژوندون شروع:** د شاهدولي کوم ته چه عجب الذنب وائي د دې نه به هريو انسان راپيدا کړې شي ټول خلق به بې ويښتو بربند ناسنته راژوندي شي. د ټولو نه اول به د زمکې نه حضور پاك او چتيږي، ابوبکر رضي الله عنه عمر رضي الله عنه او حضرت عيسى عليه السلام به ورسره وی بيا به هريو امت خپل خپل پيغمبر سره په خواکښې راجمع شي. د **قيامت د ورځې سختي:** سخته ګرمي به وی خلق به په خولو کښې ډوب وی الا ماشاء الله. زرکاله به خلق دغه شان په دې درد او تکليف کښې وی. بيا به خلق د انبياء کرامو نه شفاعت غواړی ټول انبياء کرام به غذرونه اوکړي صرف حضور پاك به د شفاعت کبرئ الله تعالى له مقام محمود ته ورځي د شفاعت کبرئ چه کله اجازت ملاؤ شي نو حضور پاك به دې سره د خپل امت د پاره هم شفاعت اوکړي تفصيل راروان دې

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۵۲۱] د دوارو نفخو پوکلو په مينځ کې موده**

٥٥٢١ - ()[1] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «مَا بَيْنَ النَّفْخَتَيْنِ أَرْبَعُونَ» ③ قَالُوا: يَا أَبَا هُرَيْرَةَ! أَرْبَعُونَ يَوْمًا؟ ④ قَالَ: أَبَيْتُ، قَالُوا: أَرْبَعُونَ شَهْرًا. قَالَ: أَبَيْتُ، قَالُوا: أَرْبَعُونَ سَنَةً؟ قَالَ: أَبَيْتُ ⑤ «ثُمَّ يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَيَنْبُتُونَ كَمَا يَنْبُتُ الْبَقْلُ ⑥» قَالَ: «وَلَيْسَ مِنَ الْإِنْسَانِ شَيْءٌ لَا يَبْلَى إِلَّا عَظْمًا وَاحِدًا، وَهُوَ عَجْبُ الذَّنَبِ ⑦ وَمِنْهُ يُرَكَّبُ الْخَلْقُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل ② د دوارو نفخو يعني د يووار د وژلو او دويم ځل د را ژوندي کولو ددواړه شپيلۍ پوکولو په منځ کې وقفه به

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب {يوم ينفخ في الصور فتأتون أفواجا} [النبأ: ۱۸] : زمراً (رقم-۴۹۳۵) ومسلم في كتاب الفتن وأشراط الساعة/باب ما بين النفختين (رقم-۱۴۱ - (۲۹۵۵) وابوداود في كتاب السنة/باب في ذكر البعث والصور (رقم-۴۷۴۳)واحمد في المسند: ۳۲۲/۲

څلويښت وي [۲]خلقو په دي اوريدو سره پوښتنه وکړه اې ابوهريره ﷺ! آيا څلويښتو نه مراد څلويښت ورځې دي [۳]ابوهريره ﷺ جواب ورکړو ماته نه ده معلومه بيا خنې خلقو پوښتنه وکړه آيا څلويښت مياشتې وې ابوهريره اوويل ماته معلومه نه ده بيا خنې پوښتنه وشوه آيا څلويښت کاله دي ابوهريره بيا دا جواب ورکړو ماته نه ده معلومه [۵]دې نه وروسته حضرت ابوهريره ﷺ د حديث بيانولو سلسله جاري ساتلو سره اوويل او حضور ﷺ وفرمايل بيا به الله ﷻ د آسمان نه اوبه ووروي او د هغه اوبو نه به خلق يعنې انسانان داسې زرغونيږي څرنګه چې سبزه (شينکې) زرغونيږي [۶]او حضور ﷺ وفرمايل د انسان د جسم او بدن هيڅ شي داسې نشته چې زړيږي اوبو سيده کېږي نه (يعنې خرابيدو او سخا کيدو سره ختميږي علاوه د يو هډوکي نه) چې هغه ته عجب الذنب وايي [۷]او د قيامت په ورځ به د دې هډوکي نه د هغه ټول جسم مرکب کېږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَبَيْتُ: ماته نه ده معلومه، ② الْبَقْلُ: سبزي، شينکې، ③ عَجْبُ الذَّنَبِ: عجب جرړې ته وائي اوذَنَب لکئي ته وائي. دَ شا هډوکي ته عجب الذنب وائي.

**[۱]وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ، قَالَ[۲]: "كُلُّ ابْنِ آدَمَ يَأْكُلُهُ التُّرَابُ إِلَّا عَجْبَ الذَّنَبِ،[۳]مِنْهُ خُلِقَ، وَفِيهِ يُرَكَّبُ".**

**ترجمه:**[۱]او د مسلم په يو بل روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲]چې د مرګ نه وروسته خاوره د ابن آدم پوره بدن وخوري خو عجب الذنب پوره طور سره نه خوري [۳]او دا هغه هډوکي دي چې دهغه نه د انسان مخکنې تخليق پيدا ايښت کېږي او د دې په ذريعه هغه دوباره جوړول کيږي.

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ أَبَيْتُ**

**دابوهريره رضي الله عنه د انکار وجه:** دَ حضرت ابوهريره ﷺ دا انکار په دې بنياد باندې وو چې هغوی هم دغه شان په مجمل توګه دَ حضورپاك نه اوريدلی وو يائی مفصل اوريدلی وو مګر هيرشوی وو ترې څکه چې ه مفصل روايت ته اوکتلې شی نو په هغې کښې دَ څلويښتو کالو تصريح موجود ده.

**قوله: عَجْبَ الذَّنَبِ**

دشاه د اډوکی څخه په دوباره ژوندی کيدوکښې دوه احتمالات: ① دَ شا هډوکی ته عجب الذنب وائی. داهډوکې دَ ټولو اندامونو نه پس ختميږي

② ددې هډوکی څه نه څه ريزه باقی پاتې کيږی کوم سره چه دَ انسان باقی اعضاء يوځائی کيږی. اودَ انبياء کرامو او شهداء عظامو اجسام محفوظ پاتې کيږی.

**[۵۵۲۲] د قيامت په ورځ د الله ﷻ د كبريائي او د عظمت اظهار**

۵۵۲۲-(¹)[۲] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «يَقْبِضُ اللّٰهُ الْأَرْضَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَيَطْوِي السَّمَاءَ بِيَمِينِهِ، ③ ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ، أَيْنَ مُلُوكُ الْأَرْضِ» "؟ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د قيامت په ورځ به الله ﷻ زمکه په خپله قبضه کې واخلي او آسمانونه به په خپل ښي لاس کې را ونغاړي ③ او بيابه وفرمايي زه بادشاه يم يعنی بادشاهي ځما نه علاوه بل چاته لائقه نه ده زه شهنشاه يم چيرته دی هغه خلق چې په زمکه يې دخپلې بادشاهی دعوی کوله. «بخاري مسلم»

**حل اللغات:** - ① يَطْوِي: راوبه نغاړی، راغونډ به کړی «فنا کول مراد دی»

**تسهيلات:**

**قوله: يَقْبِضُ اللّٰهُ:**

**دقبض کولو په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دا الفاظ دَ الله تعالی دَعظمت لويئی او جلال نه کنايه دی او دې طرف ته اشاره کولو دَپاره دی چه هغه عظيم کارنامې او کارونه دَ کوم په مخکښې چه پوره کائنات اودَ انسانانو عقلونه حيران دی. دَ الله په نظر کښې بالکل حقير.او بې معنې دی. دارنګ آسمان او پوره عالم په يو ساعت کښې لاندې باندې کول او زمکه او آسمان نيست او نابود کول دَ الله تعالی دَ قدرت په وړاندې بالکل آسان دی ② دَ قبض ځخه مراد د آسمان زمکې بدلول دی لکه چه پخپله الله تعالی فرمائی (يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ)

**[۵۵۲۳] د قيامت په ورځ د الله جاه وجلال**

۵۵۲۳-(²)[۳] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ② «يَطْوِي اللّٰهُ السَّمَاوَاتِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ③ ثُمَّ يَأْخُذُهُنَّ بِيَدِهِ الْيُمْنَى، ④ ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ أَيْنَ الْجَبَّارُونَ؟ أَيْنَ الْمُتَكَبِّرُونَ؟ ⑤ ثُمَّ يَطْوِي الْأَرَضِينَ بِشِمَالِهِ-

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله ابن عمر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د قيامت په ورځ بـه الله ﷻ آسـمانونه را ونغـاړي ③ نـو بيابـه هغـه پـه ښـي لاس کـې اخـتـو سـره ④ وفرمايي چې بادشاه زه يم چيرته دي ظلم او جبر کونکي چيرتـه دي خپـل جـاه وجلالـت باندې تکبر کونکي ⑤ بيابه زمکه په خپل لاس کې راتاؤ کړي

¹) اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب قوله: {والأرض جميعًا قبضته يوم القيامة، والسموات مطويات بيمينه} (رقم-۴۸۱۲) ومسلم فی کتاب صفة القيامة والجنة والنار (رقم-۲۳ - (۲۷۸۷)

²) اخرجه مسلم فی کتاب الجهاد والسير/باب الدعاء بالجهاد والشهادة للرجال والنساء (رقم-۲۷۸۸) وابوداود فی کتاب السنة/باب فی الرد على الجهمية (رقم-۴۷۳۲) وابن ماجه فی کتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فيما أنكرت الجهمية (رقم-۱۹۸)

۱ وَفِي رِوَايَةٍ: "يَأْخُذُهُنَّ ثُمَّ يَأْخُذُهُنَّ بِيَدِهِ الْأُخْرَى" - ۲ ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ، أَيْنَ الْجَبَّارُونَ؟ أَيْنَ الْمُتَكَبِّرُونَ "؟.» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او په يوه روايت کې داسې دي چې زمکي به په خپل دويم لاس کې واخلي ۲ او وبه فرمايي چې بادشاه زه يم چيرته دی بادشاهان يعنی هغه خلق چې ځان ته يي بادشاه وئيل چيرته دی ظلم وجبر کونکی . (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْجَبَّارُونَ: ظلم او جبر کونکی

**تسهيلات:**

**قوله: يَطْوِي اللَّهُ السَّمَاوَاتِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**د يطوی څخه مراد:** په حديث کښې دَ يطوی لفظ دې دَ کوم معنی چه راغوندول دی مګر دې نه فنا کول مراد دی.

**قوله: ثُمَّ يَطْوِي الْأَرَضِينَ بِشِمَالِهِ:**

**الله تعالى ته دشمال په نسبت کښې تاويل:** دَ الله تعالى دَپاره جهت متعين کولو سره حدوث لازم دی او په ښی او ګس کښې دَ جهت شائبه ده. بل ګس لاس ته په عام عرف کښې هغه عظمت حاصل ته دې کوم چه ښی ته حاصل دې. لهذا دَ الله تعالى په لاس باندې دَ شمال اطلاق نه شی کيدې. هم دغه وجه ده چه په دې روايت کښې دَ شمال دَاطلاق نه پس راوی وائی چه په يو روايت کښې بيده الاخرىٰ يعنی دَ دويم لاس اطلاق شوې دې دَ شمال نه دې.

**[۵۵۲۴] د يو يهودي په خبرو آوريدو باندې د حضور ﷺ خندا او دهغې تصديق**

۵۵۲۴-()[۳] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ ۲: «جَاءَ حَبْرٌ مِنَ الْيَهُودِ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ ۳: يَا مُحَمَّدُ إِنَّ اللَّهَ يُمْسِكُ السَّمَاوَاتِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى أُصْبُعٍ، ۴ وَالْأَرَضِينَ عَلَى أُصْبُعٍ، وَالْجِبَالَ وَالشَّجَرَ عَلَى أُصْبُعٍ، ۵ وَالْمَاءَ وَالثَّرَى عَلَى أُصْبُعٍ، وَسَائِرَ الْخَلْقِ عَلَى أُصْبُعٍ، ۶ ثُمَّ يَهُزُّهُنَّ فَيَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ، أَنَا اللَّهُ. ۷ فَضَحِكَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَعَجُّبًا مِمَّا قَالَ الْحَبْرُ تَصْدِيقًا لَهُ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه بيان کوي ۲ يوه ورځ د حضور ﷺ په خدمت کې د يهوديانو يو عالم حاضر شو او هغه اوويل ۳ اې محمد ﷺ! د قيامت په ورځ به الله تعالى آسمانونه په يوه ګوته ۴ زمکي په يوه ګوته غرونه او ونې په يوه ګوته ۵ او به او د اوبو لاندې لونده خاوره په يوه ګوته او باقي ټول مخلوقات په يوه ګوته

[1] اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب قوله: {وما قدروا الله حق قدره} [الأنعام: ۹۱] (رقم-۴۸۱۱) ومسلم فی کتاب صفة القيامة والجنة والنار (رقم-۱۹ - (۲۷۸۶) والترمذی فی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الزمر (رقم-۳۲۳۸)

کیږدي ⑥ او هغه به او وائي چې زه یم بادشاه زه یم الله ⑦ په دي اوریدو سره رسول الله ﷺ د هغه یهودي عالم په ژبه دي خبرو باندې د تعجب اظهار کولو سره مسکی شو

**حل اللغات:** - ① أَصْبَع: یوه ګوته. ② الثَّرىٰ: د اوبو لاندې لونده خاوره. ③ هَزَّ: خوزوی به.

① ثُمَّ قَرَأَ: ﴿وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ وَالْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَالسَّمَاوَاتُ مَطْوِيَّاتٌ بِيَمِينِهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ [الزمر: ۶۷]». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او بیا حضور ﷺ دا آیت اوونیلو وَمَاقَدَرُوااللهَ حَقَّ قَدْرِهِ وَالْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌ بِيَمِينِهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ (او افسوس دی، چې دي خلقو (یعني مشرکینو) د الله ﷻ هیڅ قدر ونه کړی څرنګه عظمت قدر چې کول پکار وو حالانکه د هغه شان دادی چې ټوله زمکه به د قیامت په ورځ به د هغه په موټ کې وي او ټول آسمانونه به یې په ښي لاس کې رانغاړلي وي هغه د دوئ د شرک نه پاك او برتر دی دا روایت بخاري او مسلم نقل کړی دی

**حل اللغات:** -③ مَطْوِيَّاتٌ: رانغاړلی به ئې وی. راغوند کړې به ئې وی.

**تسهيلات:** قوله: جَاءَ حَبْرٌ مِنَ الْيَهُودِ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**دحبر معنى:** دَ یهودو لوئی عالم ته حبروائی دکوم جمع چه احبارده. دغه یهودی عالم چه دَمیدان محشر او قیامت دَ ورځ کومه نقشه بیان کړې ده دا په اصل کښې یوتمثیل او فصیل دې مراد هم په لاس باندې اوچتول دی لکه څنګه چه حضورپاك بیان فرمائیلې دې

**[۵۵۲۵] په قیامت کښې دَ زمکې او آسمان دَ بدلیدو په وخت به خلق په پل صراط باندې وی**

وعنه -(۱)[۵] ① وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَىٰ عَنْهَا - قَالَتْ ②: «سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ قَوْلِهِ: ﴿يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمَاوَاتُ﴾ [إبراهيم: ۴۸] ③ فَأَيْنَ يَكُونُ النَّاسُ يَوْمَئِذٍ؟ ④ قَالَ: "عَلَى الصِّرَاطِ"». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه ؓ وایي ② ما د رسول الله ﷺ نه د دي آیت يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ په کومه ورځ چې دا زمکه به بدله شي او دي نه علاوه آسمان هم (یعني د قیامت په ورځ به موجوده زمکه او آسمان بدل شي او د دوی په ځاي به بله زمکه او آسمان پیدا شي) په دي باره کې پوښتنه مي وکړه ③ چې په هغه ورځ هرکله چې د زمکې او آسمان تبدیلي به واقع شي نو خلق به کوم ځاي وي ④ حضور ﷺ وفرمایل په پل صراط باندي. (مسلم)

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب فی البعث والنشور وصفة الأرض يوم القيامة (رقم-۲۹ - (۲۷۹۱) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذكر البعث (رقم-۴۲۷۹) واحمد فی المسند: ۳۵/۶

**تسهيلات:**

**قوله: يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمَاوَاتُ:**

**دزمکې په بدلیدو کښې دوه اقوال:** ① دزمکې ذات نه بلکه دَ زمکې او آسمان په صفاتو کښې به بدلون راځي مثلاً زمکه به سپینه روټئی جوړه شي خلق به په محشر کښې هم دغه خوري

② دَزمکې ذات به بدل شي دَ موجوده ذات په ځائې به نوې ذات راشي مثلاً نوې زمکه به دَ چاندئی وي او نوې آسمان به دَ سرو زرو وي. دا قول واضح او راجح دې.

**قوله: فَأَيْنَ يَكُونُ النَّاسُ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: "عَلَى الصِّرَاطِ:**

**اشکال اودهغې جواب:** چه کله زمکه او آسمان بدلیږي نو په دغه وخت کښې به خلق چرته وي؟ هم دَ دغه سوال حضرت عائشې ﷞ تپوس کړې دې دکوم په جواب کښې چه حضور پاك اوفرمائیل چه خلق به هغه وخت په پل صراط باندې وي.

**[٥٥٢٦] دقیامت په ورځ به سپوږمۍ او نمر راونغښتلې شي**

٥٥٢٦-()[٦] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢] «الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ مُكَوَّرَانِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابو هریره ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د قیامت په ورځ به نمر او سپوږمۍ راونغښتل شي . (بخاري)

**حل اللغات:** - ① مُكَوَّرَانِ: راغونډ به کړې شي دواړه، بې نوره او تور به شي،

**تسهيلات:**

**قوله: الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ مُكَوَّرَانِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**دنمرسپوږمۍ د راغونډولو وجه:** یعنې سپوږمئی او نمر دواړه به دَ قیامت په ورځ راغونډ کړې شي یعنې دواړه به بې نوره شي او بیا به دواړه په اورکښې واچولې شي. دا دَ دوی سزا نه ده بلکه دَدې دَ عبادت کونکو دَ سزا دَپاره به وي چه دَهغوی جوړ کړې شوې معبودان نن په اور کښې پراته دي.

---

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب صفة الشمس والقمر بحسبان (رقم-٣٢٠٠) (رقم-٣١٩٩)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۵۲۷] حضرت اسرافيل عليه السلام شپيلئ پوكولو دپاره تيار ناست دي

۵۵۲۷-()[۷] [۱] عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [۲] «كَيْفَ أَنْعَمُ وَصَاحِبُ الصُّورِ قَدِ الْتَقَمَهُ وَأَصْغَى سَمْعَهُ، وَحَنَى جَبْهَتَهُ يَنْتَظِرُ مَتَى يُؤْمَرُ بِالنَّفْخِ ". [۳] فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! وَمَا تَأْمُرُنَا؟ [۴] قَالَ: " قُولُوا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] و حضرت ابوسعيد خدري ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] زه آرام او سكون سره څرنگه كينم هركله چې شپيلئ پوكونكى (حضرت اسرافيل ﷤ شپيلئ پوكولو د پاره په خوله كې نيولې ده خپل غوږ يې دالله جل جلاله طرف ته لگولى دى او تندى يې تيټ كړى بالكل د تيارۍ په حالت كې دى او انتظار كوي چې كله به ورته د شپيلئ وهلو حكم وشي [۳] په دې اوريدو سره صحابه ﷡ عرض وكړو نو بيا تاسو زمونږ د پاره څه فرمايئ (يعني تاسو مونږ ته څه تلقين فرمايئ چې مونږ د څه آفت او سختئ په وخت څه وكړو) [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل هركله چې آفت او مصيبت راشي نو بس حق تعالى طرف ته توجه ساتئ او د هغه بارگاه كې التجاء كوئ او د هغه فضل وكرم باندې بهروسه او اعتماد ساتئ او دا وايئ حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ مونږ ته الله كافي دى او هغه ښه كار ساز دى.

**حل اللغات:-** ① صَاحِبُ الصُّورِ: شپيلئ والا يعنى حضرت اسرافيل ﷤ . ② اَلْتَقَمَهُ: په خوله كښې ئې نيولې ده شپيلئ. ③ أَصْغَى: غوږ ئې ايښې دې، د آواز آوريدو په انتظار ده. ④ حَنَى: تيټ كړې ئې دې.

**تسهيلات:**

**دبعضې جملو وضاحت:**

① اَلْتَقَمَهُ" يعنى حضرت اسرافيل شپيلئى په خله كښې نيولې ولاړ دې اودَالله تعالى حكم ته ئى غوږ ايخولې دې

② وَحَنَى جَبْهَتَهُ: يعنى تندې ئى تيټ كړې دې بالكل دَ الله تعالى دَ حكم دَپاره تيار دې بس دَ هغه خائى نه حكم اوشو اودلته دَ حكم تعميل.

[۱] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى شان الصور (رقم-۲۴۳۱) واحمد فى المسند:۳/۷۳

**[۵۵۲۸] دَ اسرافيل عليه السلام د شپيلئ حقيقت**

۵۵۲۸ -()[۸] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «الصُّورُ قَرْنٌ يُنْفَخُ فِيهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت كوي حضور ﷺ وفرمايل [۲] شپيلۍ يو ښكر دى چې په دي كې به پوكل وشي (ترمذي و ابوداؤد او دارمي)

**حل اللغات:** - ① الصُّورُ: شپيلئ، ② قَرْنٌ: ښكر،

**تسهيلات:**

**قوله: الصُّورُ قَرْنٌ يُنْفَخُ فِيهِ:**

**د قرن معنى:** يعنى شپيلئ يو ښكردې دَ صور ترجمه نرسنكا هم ده اوسنك هم دي دَ دغه شپيلئ خله دومره لويه ده چه زمكه او آسمان په كښې راتلې شى

**دشپيلۍ دوه ځله پوک وهل:** ① دَ كائناتود فنا كولودپاره به دَ وژلودپاره ② دَ ټولوانسانانو دوباره راژوندى كولودپاره به اسرافيل عليه السلام دوباره شپيلۍ پوک وهى

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۵۲۹] د ناقور، راجفه اورادفه مطلب**

۵۵۲۹-()[۹] [۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ﴾ [المدثر: ۸]: الصُّورُ [۲] قَالَ: وَ(الرَّاجِفَةُ): النَّفْخَةُ الْأُولَى [۳] وَ(الرَّادِفَةُ) الثَّانِيَةُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دى هغوئ د الله ﷻ د ارشاد فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ تفسير بيانولو سره وفرمايل چې نَاقُور نه مراد شپيلۍ ده هغوئ د دې آيت: يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ تفسير بيانولو سره اوويل [۲] چې راجفه نه مراد د مخكنى شپيلۍ پوكل دي [۳] او رادفة نه مراد دويم ځل پوكل دي دا روايت بخاري په ترجمة الباب كې نقل كرى دى

**حل اللغات:** - ① نُقِرَ: پوک اووهلې شى، ② النَّاقُور: شپيلئ، ③ الصُّور: شپيلئ، ④ الرَّاجِفَةُ: درزيدونكې، د اسرافيل عليه السلام رومبى ځل شپيلئ ترې مراد ده ⑤ الرَّادِفَةُ: روسته راتلونكې يعنى د اسرافيل عليه السلام په دويم ځل شپيلئ وهلو ته الرادفه وائى،

[۱] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب السنة/باب فى ذكر البعث والصور (رقم-۴۷۴۲)والترمذى فى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى شأن الصور(رقم-۲۴۳۰) واحمد فى السند: ۱۶۲/۲

[۲] ) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب نفخ الصور

**تسهيلات:**

**قوله:** فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ :

**د ناقور معنی:** دَ "ناقور" لغوی معنی ده کنستونکې چونکه دوباره شپیلئی پوک وهلو سره به مړی قبرونه ورانولو سره بهر راوځی په دې وجه شپیلئی پوك وهلو ته "ناقور" وائی.

**مشار الیها آیت:** په حدیث الباب کښې چه دې آیات طرف ته اشاره ده ﴿فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ ۝ فَذَٰلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ ۝﴾ یعنی په کومه ورځ چې په شپیلۍ کښې پوک وهلی شی نودغه ورځ به په کافرانو باندې ډیره ګرانه وی

**قوله:** وَ(الرَّاجِفَةُ): النَّفْخَةُ الْأُولَى، وَ(الرَّادِفَةُ) الثَّانِيَةُ.:

**په راجفة.. او رادفة.. کښې فرق:** ① راجفة "دَ رجف نه دې دَ کوم معنی چه دَ خوزیدو او لړزیدو ده په دې اول شپیلئی باندې به زمکه او آسمان لړزیدو سره اوشلیږی په دې وجه اولنئی شپیلئی ته "راجفة"

② "رادفة" معنی روستو دَ راتلو ده. ځکه دویمې شپیلئی ته "رادفة" وئیلې شی.

**[۵۵۳۰] د دوو فرشتو په موجودګئ کښې د شپیلی وهل**

-٥٥٣٠-()[١٠] [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَاحِبَ الصُّورِ [٢] وَقَالَ: "عَنْ يَمِينِهِ جِبْرِيلُ وَعَنْ يَسَارِهِ مِيكَائِيلُ"».

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوسعید ﷺ وایې یوه ورځ رسول الله ﷺ د شپیلۍ پوکونکی یعنی حضرت اسرافیل ذکر وکی [٢] او وې فرمایل چې د شپیلۍ وهلوپر وخت به د هغه ښې طرف ته حضرت جبرائیل ﷺ وي او چپ طرف ته به حضرت میکائیل وي . [رواه رزین]

**حل اللغات:** - ① الصُّور: شپیلئ.

**تسهیلات:**

**قوله:** صَاحِبَ الصُّورِ

**د صاحب صور څخه مراد:** دَ دې نه مراد حضرت اسرافیل ﷺ دې کله چه اسرافیل ﷺ شپیلئ پوك وهی دَهغه ښی طرف ته به جبرائیل ﷺ او ګس طرف ته میکائیل ﷺ ولاړ وی.

---

( ) اخرجه احمد فی المسند: ۳/ ۱۰ وابوداود فی کتاب الحروف والقراءات (رقم-۳۹۹۹)

## [۵۵۲۱] د دوباره ژوندي کولو یوه مثالي نمونه

۵۵۲۱-(۱) [۱۱] [۱] «وَعَنْ أَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ [۲]: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! كَيْفَ يُعِيدُ اللّٰهُ الْخَلْقَ؟ وَمَا آيَةُ ذٰلِكَ فِي خَلْقِهِ؟ [۳] قَالَ: "أَمَا مَرَرْتَ بِوَادِي قَوْمِكَ جَدْبًا ثُمَّ مَرَرْتَ بِهِ يَهْتَزُّ خَضِرًا"؟ [۴] قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: "فَتِلْكَ آيَةُ اللّٰهِ فِي خَلْقِهِ"، ﴿كَذٰلِكَ يُحْيِي اللّٰهُ الْمَوْتَىٰ﴾ [البقرة: ۷۳]». رَوَاهُمَا رَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو رزین عقیلي وایي [۲] ما عرض وکړو یا رسول الله! خداوند به مخلوقات دوباره څرنګه را ژوندی کوي هرکله چې د هغوئ جسم او بدن به ورستید و سره خاوري شوي وي او آیا د دې د پاره په موجوده مخلوقاتو کې څه داسې نښه شته (چې د هغه په لیدو سره دوباره د ژوندي کولو نظریه باندې استدلال وسي) [۳] حضور ﷺ وفرمایل آیا ته چیرته د قحط او وچ کالي په زمانه کې د خپل قوم جنګل او فصلونو (کهیتیو) په منځ کې تیر شوی یې هلته د سبزي شینکی نوم نشان هم په نظر نه راځي (بلکه ټوله زمکه بالکل بنجر او وچه په نظر راځي) لیکن هرکله چې ته باران نه وروسته هلته تیریږي نو تاته په پوره علاقه کې ښه ترو تازه سبزه په نظر راځي [۴] ما عرض وکړو چې هو نو رسول ﷺ وفرمایل دا نښه ده دالله په خپلو مخلوقاتو کې او الله ﷻ به مړی دغه شان را ژوندی کړي دا دواړه روایتونه رزین نقل کړي دی. [رواه رزین]

**حل اللغات:-** ① يُعِيدُ: دوباره به ژوندی کوی. ② آيَةُ: نښه، ③ جَدْبًا: په قحط او اوچ کالئ کښې، ④ يَهْتَزُّ: خوزی راخوزی، ⑤ خَضِرًا: شنه، سرسبزه.

**تسهیلات:**

**قوله: أَمَا مَرَرْتَ بِوَادِي قَوْمِكَ جَدْبًا ثُمَّ مَرَرْتَ بِهِ يَهْتَزُّ خَضِرًا:**

**په بعث بعد الموت مشاهداتی دلیل:** کله چې صحابی د نبی ﷺ څخه د بعث بعد الموت د نمونې اومثال مطالبه اوکړه نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل چې شاړه اوبنجره زمکه وی دهغې څخه روسته په هغې باندې باران اوشی یا په بله څخه ذریعه په هغې کښې د کروندې انتظام اوشی اوهغه څنګه شنه اوتروتازه شی دغه شان به الله تعالی دا ټول انسانان د مرګ څخه روسته دوباره راژوندی کړی.

[1]) رواه رزین. واحمد فی المسند: ۱۱/٤

# [۲] بَابُ الحَشْرِ

## د مرګ څخه روسته د دوباره راجمع کېدو بيان

**خلاصة الباب**

**فيه سبعة عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① صفة الأرض وقت الحشر: ۱، ۲، ۱۳۔
② حالة الناس في الحشر: ۳، ۴، ۵، ۶، ۱۵، ۱۷۔
③ صفة بعض الأشخاص في الحشر: ۷، ۱۲۔
④ الشدة في الحشر: ۸، ۹، ، ۱۴۱۰ ۔
⑤ الإبتلاء في الحشر: ۱۱۔
⑥ بيان ا لحشر في القرآن: ۱۶۔

**دحشر لغوی معنی:** دَ حشر اصل معنی جمع کول او يوځائی کول دی.

**قيامت ته د يوم الحشر وئيلو وجه:** دَ قيامت ورځې ته يوم الحشر ځکه وئيلې شوې دې چه په دغه ورځ به ټول انسانان راژوندی کولوسره يوميدان طرف ته شړلوسره جمع کولې شی. دغه ميدان ته دَمحشرميدان وائی.

**دحشر څخه مراد:** دلته دَحشر نه مراد هم دغه معنی ده چه ټول خلق به ژوندی کولوسره راجمع کړې شی اګرچه په دې باب کښې داقسم احاديث هم ذکردی چه دَ قيامت دَعلاماتونه دی لکه د دې باب په حديث نمبر(۵۵۳۴) کښې دَ يواور بيان دې داد قيامت دَ علاماتونه دې. بهرحال دَ شام په زمکه باندې به دَ حشر ميدان قائمولې شی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۵۲۲] د حشر د ميدان ذکر

۵۵۲۲-(۱)[۱] عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلٰى أَرْضٍ بَيْضَاءَ عَفْرَاءَ كَقُرْصَةِ النَّقِيِّ لَيْسَ فِيهَا عَلَمٌ لِأَحَدٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** حضرت سهل ابن سعد ﷛ وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به خلق د اسې سرخي مائل سپيني زمکي باندې جمع [۳] شي چې د رنګ او ګولائي د اعتبار نه به د چن کړي ا ورو د روټئ په شان وي او هغه زمکه باندې به د چا د مکان او عمارت وغيره څه نښه نه وي بلکه اوار ميدان به وي . (بخاری ومسلم)

---

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب: يقبض الله الأرض يوم القيامة (رقم-۶۵۲۱) ومسلم في كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب في البعث والنشور وصفة الأرض يوم القيامة (رقم-۲۸ - (۲۷۹۰)

حل اللغات: - ① بَیْضَاءَ: سپینه، ② عَفْرَاءَ: سُربخنه، سور رنګې، ③ قُرْصَةِ: چپاتۍ روټۍ. ④ النَّقِيِّ: چهاڼ شوی اوړه، ⑤ عَلَمٌ: نښه، نښانۍ او علامت

**تسهیلات:**

**قوله: يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى أَرْضٍ بَيْضَاءَ عَفْرَاءَ كَقُرْصَةِ النَّقِيِّ لَيْسَ فِيهَا عَلَمٌ لِأَحَدٍ**

**په سپينه زمکه د خلقو حشر کیدل** ،لکه چه دا زمکه به په ګولائۍ کښې دَ روټۍ په شان وی او محشر کښې به دَخلقو دَ خوراك دَپاره هم دغه انتظام وی چه دَزمکې ټکړې به پرې کوی او خوری به ئې دَ سالن پته نشته.

**[۵۵۳۲] دَ جنتیانو رومبی خوراك او ملمستیا**

۵۵۳۲ -()[۲] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«تَكُونُ الْأَرْضُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ خُبْزَةً وَاحِدَةً، [۳] يَتَكَفَّؤُهَا الْجَبَّارُ بِيَدِهِ كَمَا يَتَكَفَّأُ أَحَدُكُمْ خُبْزَتَهُ فِي السَّفَرِ نُزُلًا لِأَهْلِ الْجَنَّةِ [۴]". فَأَتَى رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ فَقَالَ: بَارَكَ الرَّحْمَنُ عَلَيْكَ يَا أَبَا الْقَاسِمِ [۵]! أَلَا أُخْبِرُكَ بِنُزُلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ فَقَالَ [۶]: "بَلَى". قَالَ: تَكُونُ الْأَرْضُ خُبْزَةً وَاحِدَةً، كَمَا قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

**ترجمه:** او حضرت ابوسعید خدري ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د قیامت په ورځ به ټوله زمکه د یوي روټئ په شان وي [۳] چې خداوند جبار به یې خپلو لاسونو سره داسې اړوي را اړوي خرنګه چې په تاسو کې یو سړی د سفر په دوران کې اړولو را اړولو سره یعنی تادی سره روټی پخوي او دا روټئ به د جنتیانو) میلمستیا وي او مهماني هغه طعام ته وایي چې میلمه باندې وخورول شي ( [۴] د حضور ﷺ دي فرمایلو نه وروسته یو یهودي راغې او هغه اوویل اې ابو القاسم الله پاك مهربانه دی په تاسو برکت نازل کړي [۵] آیا زه تاسو ته وښایم چې د قیامت په ورځ به د جنتیانو د مهمانی میلمستیا په طور مخکې طعام څه وي حضور ﷺ ورته وفرمایل هو وښایه هغه یهودي اوویل ټوله زمکه به یوه روټئ وي خرنګه چې حضور ﷺ فرمایلي وه

حل اللغات: - ① خُبْزَةً: روټئ، ② يَتَكَفَّؤُهَا: روټئ پخولو وخت کښې زر زر اړول راړول. ③ الْجَبَّارُ: زورآور. طاقت ور(الله)

فَنَظَرَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَيْنَا، ثُمَّ ضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ، [۲] ثُمَّ قَالَ: "أَلَا أُخْبِرُكَ بِإِدَامِهِمْ؟ بَالَامُ وَالنُّونُ [۳]". قَالُوا: وَمَا هَذَا؟ قَالَ [۴]: "ثَوْرٌ وَنُونٌ يَأْكُلُ مِنْ زَائِدَةِ كَبِدِهِمَا سَبْعُونَ أَلْفًا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ) په دي اوریدو سره د تعجب : اظهار او مونږ ته د ښودلو د پاره چې یهودي ټیك وایي( [۱] خلورو طرفونو ته وکتل او وي خندل ددي پورې چې حضور ﷺ د مخ غاښونه په

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب: یقبض الله الأرض یوم القیامة (رقم-۶۵۲۰) ومسلم فی کتاب صفة القیامة والجنة والنار/باب نزل أهل الجنة (رقم-۳۰ - (۲۷۹۲)

نظر راغلل [۲] دي نه وروسته هغه يهودي اوويل آيا زه تاسو ته وښايم چې د جنتيانو سالن (اينګولی) به څه وي ؟چې روټۍ سره به يې خوري؟( هغه بالام او نون دی) صحابه ؤ ﷺ د بالام په مطلب پوه نه شو ځکه چې عبراني لفظ وو( [۳] هغوئ اوويل دا بالام څه شی دی[٤] هغه وئيل د بالام مطلب غوئي دی او د نون په باره کې تاسو خلق پيژنئ چې کب (ماهی) ته وايي او د دي دواړو معنی داده چې د غوائي او کب (ماهی) د غوښې هغه ټکری نه چې د جګر زائد وي اويا زره سړي به ور نه خوري. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** -④نَوَاجِذُهُ: هغه غاښونه چه په وخت دخندا کښې ښکاری. ⑤أَدَامِ: سالن، اينګولې. ⑥بَالَامُ: غوئې، ⑦النُّونُ: کب، مهې، ⑧ثَوْرٌ: غوئې، ⑨كَبِدِ: ځيګر، زړه.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَلَا أُخْبِرُكَ بِأَدَامِهِمْ؟ بَالَامُ وَالنُّونُ:

**د جنتيانو ترکاری:** يعنی يهودی عالم بيا اووئيل چه آيا دَ سالن درته اونه وايم؟ صحابه کرامو وئيل اوښايه. هغه اووئيل "بالام" دا عبرانی لفظ دې عربی کښې دَ دې ترجمه ثور ده کوم چه غوئی ته وائی. که چرې دا لفظ عربی وې نو صحابه به پوهه شوی وو.

**قوله:** ثَوْرٌ وَنُونٌ يَأْكُلُ مِنْ زَائِدَةِ كَبِدِهِمَا سَبْعُونَ أَلْفًا:

**د غوئی او کب په ځيګر سره د جنتيانو ملمستيا:** يعنی دَ غوئی او کب دواړو دَ ځيګر دَ څه زياتی ټکرو نه به اويا زره جنتيانو ميلمستيا کولې شی. دا اويا زره به هغه کسان وی کوم چه دَ حساب کتاب نه بغير جنت ته داخل شوی وی. په حيواناتو کښې کب او مار دوه داسې حيوانات دی دکوم په غټيدو کښې چه څه حد بندی نشته دې هغه دَ غټ نه هم زيات غټ جوړيدې شی.

**[٥٥٣٤] په ميدان حشر کښې دَرا جمع کيدو منظر**

٥٥٣٤-()[٣] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«يُحْشَرُ النَّاسُ عَلَى ثَلَاثِ طَرَائِقَ [٣]: رَاغِبِينَ، رَاهِبِينَ، وَاثْنَانِ عَلَى بَعِيرٍ، وَثَلَاثَةٌ عَلَى بَعِيرٍ [٤] وَأَرْبَعَةٌ عَلَى بَعِيرٍ، وَعَشَرَةٌ عَلَى بَعِيرٍ، وَتَحْشُرُ بَقِيَّتَهُمُ النَّارُ، تَقِيلُ مَعَهُمْ حَيْثُ قَالُوا، وَتَبِيتُ مَعَهُمْ حَيْثُ بَاتُوا [٥] وَتُصْبِحُ مَعَهُمْ حَيْثُ أَصْبَحُوا، وَتُمْسِي مَعَهُمْ حَيْثُ أَمْسَوْا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په حشر کې به خلق دري قسمونو کې جمع شي [٣] يو قسم خلق خو به هغه وي کوم چې د جنت خواهشمند دي دويم قسم خلق به هغه وي چې دوزخ نه ويرېدونکی دی) او په دي دواړو قسمونو کې چې

[١] اخرجه البخاری فی كتاب الرقاق/باب: كيف الحشر (رقم-٦٥٢٢) ومسلم فی كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب فناء الدنيا وبيان الحشر يوم القيامة (رقم-٥٩ - (٢٨٦١) والنسائی فی كتاب الجنائز/باب البعث(رقم-٢٠٨٥)

کوم خلق په سورلی وي د هغه صورت به داوي( چې دوه به یو اوښ باندې سوارهوي (یعني د کوم سړي چې مرتبه خومره زیاته بلنده وي هغه به هغومره کم سړو سره سورلی باندې وي او ډیر آرام او کشادګی سره به ناست وي) او د چا مرتبه چې خومره اولنی وي هغه به هغومره زیات شړو سره سورلی باندې وي او تنګی سره به ناست وي④ او دریم قسم به باقي ټول خلقو باندې مشتمل وي چې اور به یې راجمع کړي او هغه خلق او هغه اور به هر وخت هغه خلقو سره وي او هیڅ وخت به هغوئ نه نه جدا کیږي ددې پورې چې چیرته هغه خلق قیلوله کوي چیر چې هغه خلق شپه تیروي اوربه هم هلته هغوئ سره شپه تیروي⑤ چیرته چې هغوئ سحر کوي هلته اور به هم هغوئ سره سحر کوي او چیرته چې هغه خلق ماښام کوي هلته اور به هم هغوئ سره ماښام کوي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ①طَرَائِقَ: دَ طریقة جمع ده، اقسام، ②رَاغِبِينَ: شوق لرونکی، خواهشمند، ③ رَاهِبِينَ: ویریدونکی، ④بَعِيرٍ: اوښ، ⑤تَقِيلُ: دَ قیلوله نه دې، یعنی لږ شان آرام به کوی، ⑥قَالُوا: دا هم دَ قیلوله نه دې، لږ شان آرام کول، ⑦تَبِيتُ: د بات یبیت نه، شپه تیرول، ⑧بَاتُوا: د بات یبیت نه، شپه تیرول،

**تسهیلات: قوله: يُحْشَرُ النَّاسُ عَلَى ثَلَاثِ طَرَائِقَ**

**دقیامت په ورځ دحشر درې کیفیتونه:** مراد درې قسمونه دی. یعنی خلق به دَ ژوندی کیدونه پس چه کله دَمحشر په میدان کښې جمع شئ نوهلته دَ راتلو به درې طریقې وی اودرې قسم خلق به وی. یو قسم به په جنت کښې دَ رغبت کونکووی دویم قسم به دَ دوزخ نه ویریدونکی وی.

**قوله: وَاثْنَانِ عَلَى بَعِيرٍ، وَثَلَاثَةٌ عَلَى بَعِيرٍ، وَأَرْبَعَةٌ عَلَى بَعِيرٍ:**

**دراغبون اوراهبون میدان حشرته د تګ مختلفې سورلیه:** یعنی دَدغه راغبینو او راهبینو څخه چه کوم خلق په سورلو وی دَهغوی کیفیت او صورت به داسې وی چه دوه دوه درې درې څلور څلور تردې چه لس لس به په یو یو اوښ باندې سواره وی خپلې خپلې مرتبې به ئې وی

**قوله: وَتَحْشُرُ بَقِيَّتَهُمُ النَّارُ، تَقِيلُ مَعَهُمْ حَيْثُ قَالُوا، وَتَبِيتُ مَعَهُمْ حَيْثُ بَاتُوا:**

**داوربه دریمه خلق میدان حشرته جمع کیدل:** مطلب دا چه هغه اور به دغه خلقو ته هرقسم آسانی ورکړی کله سفر کله قیلوله کله شپه تیرول اوکله سحر کول لیکن دَمحشرمیدان ته به ئې خامخا راولی. دا اور هغه دې چه دَ مره کیدو نه پس دوباره ژوندی کیدو باندې به خلق دَ محشرمیدان ته راولی. دَمحشرمیدان ته دَ راتلودپاره څو قسم حشر کیدې شی کله به سورلی وی کله به پیدل وی کله به په خپو راځی اوکله به پرمخې راځی.

## [۵۵۲۵] په ميدان حشر کښې د خلقو د حشر کيفيت

۵۵۲۵ -()[۳] ①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ② - قَالَ: "«إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا③" ثُمَّ قَرَأَ: ﴿كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ﴾ [الأنبياء: ۱۰۴]، "④وَأَوَّلُ مَنْ يُكْسَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِبْرَاهِيمُ، ⑤وَإِنَّ نَاسًا مِنْ أَصْحَابِي يُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ فَأَقُولُ: أُصَيْحَابِي أُصَيْحَابِي

**توجمه:** او حضرت ابن عباس ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي② حضور ﷺ وفرمايل تاسو به د قيامت په ورځ داسې حال کې را پاځئ چې تاسو به خپې آبلې پښې برېنډ او ناسنت غير مختون يئ③ دي نه وروسته حضور ﷺ بطور دليل او استشهاد دا آيت اووئيلو كَمَا بَدَءْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ يعنى څرنګه چې مونږ دوئ ابتداء پيدائش کې خپې آبلې پښې برېنډ او ناسنته د مور د خېټې نه پيدا کړي وه دغه شان به دوئ دوباره د قيامت په ورځ پيدا کړو ، يعنى قبرونو نه به يې را پاځوو ، دا وعده چې مونږ به دوئ دوباره راپيدا کړو په مونږ لازم ده او يقيناً مونږ چې کومه وعده کړې ده هغه پوره کونکي يو④ بيا حضور ﷺ وفرمايل د قيامت په ورځ په هغه په خلقو کې چې د ټولو نه مخکښې کوم سړي ته چې لباس واغوندې هغه حضرت ابراهيم ﷺ دي⑤ بيا يې وفرمايل او هغه وخت هرکله چې خلق د ميدان حشر نه جنت او دوزخ طرف ته بوتلل شي زه به وينم چې زما څه ملګري نيولو سره چپ لاس طرف ته يعنى دوزخ طرف ته به بوتلل شي په دې ليدو سره بطور حيرت او هغوئ ته نجات ورکولو د پاره به زه وايم چې دا خما ملګري دى دا خما ملګري دى دوى چيرته بوځې

**حل اللغات:-** ①مَحْشُورُونَ: راجمع کولى به شئ، ②حُفَاةً: خپې آبلې، ③عُرَاةً: برېنډ بدن. ④غُرْلًا: ناسنته. ⑤نُعِيدُهُ: سر دوباره به ئې ژوندى کړو، ⑥يُكْسَى: کپړې به اغوستولې شى. ⑦أُصَيْحَابِي: دا خو زما ملګرى دى

①فَيَقُولُ: إِنَّهُمْ لَنْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ.② فَأَقُولُ أَيْ قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ: ﴿وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ﴾ [المائدة: ۱۱۷] إِلَى قَوْلِهِ: الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**توجمه:** خداوند تعالى به فرمايي ، بيشکه دا ستا ملګري نه دى ، حقيقت دادى کله چې ته د دوى نه جدا شوى يې دوى برابر دين نه اوښتي دى ، څکه دوى دوزخ ته ليږل کېږي

[1] ) اخرجه البخارى فى كتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله تعالى: {واتخذ الله إبراهيم خليلًا} [النساء: ۱۲۵] (رقم-۳۳۴۹) ومسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب فناء الدنيا وبيان الحشر يوم القيامة (رقم-۵۸ - (۲۸۶۰) والترمذى فى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى شأن الحشر (رقم-۲۴۲۳) والنسائى فى كتاب الجنائز/باب ذكر أول من يكسى (رقم-۲۰۸۷) واحمد فى المسند: ۱/۲۲۰

(۲) په دې اوریدو سره زه به هغه وایم څه چې صالح بنده یعنی حضرت عیسی ویلي وه چې وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَّا دُمْتُ فِيهِمْ تر الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ پورې یعنی د څوپورې چې زه د دوئ په منځ کې وم زه د دوئ د احوالو نه واقف وم. (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا"**

**په پیدائشی حالت کښې دوباره راژوندی کیدل:** لفظ غرلاً کښې دَدې خبرې طرف ته اشاره ملاویږي چه دَانسان تخلیق په کوم صورت کښې شوې دې هم په هغه هئیت او صورت کښې به هغه دَ میدان حشر طرف ته بوتلې شي. هغه برېند پیدا شوې نو حشر به ئې هم برېند وی. ناسنته پیدا شوې نو په حشر کښې به هم ناسنته وی.([1])

**قوله: وَأَوَّلُ مَنْ يُكْسَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِبْرَاهِيمُ:**

**دابراهیم علیه السلام د خصوصیت وجوهات:** دَتولو نه اول چه کوم کس ته لباس اچولې شي هغه به حضرت ابراهیم علیه السلام وی.

(۱) ابراهیم علیه السلام ته به دا فضیلت ولې حاصل وی؟ یوقول دادې چه ابراهیم علیه السلام دَ الله تعالی په لارکښې بې لباس کړې شوې اور کښې اچولې شوې وو په دې وجه به دَ قیامت په ورځ هغوی سره دا خصوصی معامله کولې شي.([2])

(۲) شیخ الحدیث حضرت زکریا رحمه الله دَ دې خصوصیت یوه وجه داهم خودلې ده چه حضرت ابراهیم علیه السلام چونکه دَ ټولو نه اول سنت کیدو طریقه وضع کړې وه او په دې عمل کښې دَ یو اندام ښکاره کیدل کیږی په دې وجه دَ ټولو اول لباس به هم هغوی ته وراغوستلې شي.([3])

(۳) بعض شارحینو فرمائیلی چه دَ ټولو نه اول دَ ستر پټولو دَپاره پرتوګ استعمالول ابراهیم علیه السلام کړی نو هم په دې وجه به دَ قیامت په ورځ هغوی ته دا خصوصیت حاصل وی. ([4]) دَ قیامت په ورځ به دا دَ حضرت ابراهیم علیه السلام خصوصیت او فضیلت وی چه هغوی ته به دَ ټولو نه اول لباس اغوستلې شي.

**اشکال:** ددې خصوصیت څخه خو معلومیږی چې ابراهیم علیه السلام د محمد صلی الله علیه وسلم څخه افضل دې. ځکه هغوی ته د ټولو څخه وړاندې جامې اغوستلی شي.

---

[1] عمدة القاري: ۱۵/۳۳۳.
[2] فتح الباري: ۸/۴۸۰ عمدة القاري: ۱۵/۳۳۴ الكنز المتواري: ۱۳/۲۷۹.
[3] الكنز المتواري: ۱۳/۲۷۸.
[4] فتح الباري: ۸/۴۸۰ عمدة القاري: ۱۵/۳۳۴ الكنز المتواري: ۱۳/۲۷۹.

**د اشکال دوه جوابونه:** ① په دې خصوصیت سره دا نه لازمی کیږی چه ابراهیم علیه السلام دې د رسول الله ﷺ نه افضل وی. که چرې مفضول ته څه انفرادی فضیلت او خصوصیت حاصل وی نو په دې سره دَهغه فضیلت مطلقه نه ثابتیږی. ځکه چه دَ قیامت په ورځ به دَ ټولو نه افضل رسول الله ﷺ وی. (۱)

② ممکن ده دَ رسول الله ﷺ متذکره فضیلت کښې دَ اولیت اظهار دَ غیر متکلم په اعتبار سره کړې وی. دَاهل اصول په نیز قاعده ده «إن المتکلم لایدخل تحت عموم خطابه» یعنی پخپله متکلم دَخپل خطاب په عموم کښې شامل نه وی. شراح دَ دې قاعدې لاندې فرمائیلی چه ممکن دی پخپله حضورپاك ته دَ ټولو نه اول لباس ورواغوندلې شی بلکه دَحضورپاك حشر خو به په خپل کفن کښې وی. البته متکلم یعنی دَ حضورپاك دَ ذات نه علاوه په نورو خلقو کښې دَ ټولو نه اول به حضرت ابراهیم علیه السلام ته لباس اغوستلې شی (۲)

**قوله: فَأَقُولُ: أُصَيْحَابِيْ أُصَيْحَابِيْ:** زما څه صحابه به نیولو سره دَ کس لاس طرف ته «دَ دوزخ طرف ته» بوتلې شی زه به وایم دا زما صحابه دی دا زما صحابه «دوی چرته بوځئی؟

**د اصحابی د تکرار نکته:** دَ اصحابی لفظ دوه ځل راغلې دې. اول اصحابی مبتداء محذوف دَ هؤلاء خبر دې او تقدیری عبارت دې «هؤلاء أصحابی» او دویم أصحابی دَ اول أصحابی دَ تاکید دَپاره دې (۳)

**د اصیحابی د تصغیر د روایت اشاره:** دَ ابوذر رحمه الله او ابن عساکر رحمه الله په روایت کښې تصغیر سره «أصیحابی أصیحابی» دې. په دې کښې دَهغه کسانو دَ کم شمیر طرف ته اشاره ده چه داسې خلق به ډیر کم وی چه په حضورپاك باندې ایمان راوړلو سره دَ رسول الله ﷺ په اصحاب کښې شامل شو او دَ حضورپاك دَ انتقال نه پس مرتد شو. (۴) چونکه دا خلق دَ رسول الله ﷺ نه پس مرتد شوي وو په دې وجه دَ حشر په میدان کښې به دَ هغوی دَ جهنم طرف ته شړلو باندې حیرانتیا کولو سره دَ لاعلمئی دَ وجې نه اصحابی اصحابی فرمائی اودَهغوی دَ بچ کولو فکر به کوی.

**اشکال:** په رسول الله ﷺ باندې به دَ خپل امت دَ ټولو کسانو اعمال پیش کولې شی او حضورپاك به دَ ټولو دَ اعمالو نه خبر وی نو بیا به دَ دغه مرتدینو اعمال دَ حضورپاك نه څنګه پټ پاتې شی؟

(۱) فتح الباری: ۴۸۰/۸عمدة القاری: ۳۳٤/۱۵ الکنز المتواری: ۲۷۹/۱۳.
(۲) فتح الباری: ۴۸۰/۸ الکنز المتواری: ۲۷۹/۱۳.
(۳) عمدة القاری: ۳۳۵/۱۵.
(۴) إرشادالساری: ۱۷۳/۷.

**د اشکال جواب:** رسول الله ﷺ ته به دَموحدینو اعمال پیش کولې شی مرتدین او مخالفین به دَدې نه مستثنٰی وی (۱)

**قوله: فيقول: إِنَّهُمْ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ:** الله تعالی به فرمائی چه کله تاسو دَدوی نه جدا شوئی دوی یوشان دَ دین نه واوړیدل.

**د ارتداد په مفهوم کښې درې اقوال:** ① د عامو محدثینو په نیز ددې څخه مراد حقیقی ارتداد دې یعنی د اسلام څخه کفرته اوړیدل او دحدیث ظاهری الفاظ هم ددې تائید کوی.

② امام خطابی رحمه الله فرمائی چه دلته دَ ارتداد نه مراد (التأخير عن الحقوق اللازمة والتقصير فيها) لیکن دَ امام خطابی رحمه الله دا قول مردود کړې شوې دې.

**د تردید دلیل:** دَدې وجه داده چه په عام توګه باندې دَ ارتداد نه مراد هم کفر وی. چنانچه آیت مبارك ﴿أَفَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ﴾ کښې ارتداد هم دکفر په معنی کښې دې او ﴿انْقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ﴾ معنی ده: (رجعتم إلى الكفر والتنازع) هم دغه وجه ده چه دَدې مفهوم دَ صحیح مسلم روایت کښې (لاتدري ما أحدثوا بعدك) نه پس (بعدا لهم وسحقا) جمله هم ده او بنکاره خبره ده چه داسې خبره دَ مسلمان په حق کښې نه شی کولې ځکه چه دَ نبی کریم ﷺ شفاعت به هم دَ ګناهګارانو دَپاره وی.(۲)

**د تردید د دلیل ضعف:** دَدې جواب دادې چه دَ ارتداد نه دکفر والا معنی هغه وخت مراد وی چه کله ارتداد بغیردَ تقیید نه مطلقاً ذکرکړې شی اودلته په حدیث باب کښې ارتداد دَ ﴿عَلَى أَعْقَابِكُمْ﴾ قید سره مقید دې. لهذا دلته به کفر مراد نه وی لکه (ارتد فلان على عقبه) مقوله هغه وخت وئیلی شی کله چه څوك شاته رجوع کوی. بلکه دلته دَ واجبی حقوق نه بهٔ تخلف والا معنی مراد وی ځکه چه بحمدالله دَ نبی کریم ﷺ په صحابه کرامو کښې څوك هم مرتد شوی نه دی. مرتد کیدونکو نه دلته مراد عیینه بن حفص په شان دَ عربو سخت بدوان او سخت مزاج خلق دی چه ترغیبًا اوترهیبًا دَ اسلام قبلولو نه څه موده پس مرتد شوې وو.(۳)

③ ابوعمر رحمه الله فرمائی چه خوارج، روافض اوټول نفس پرست خلق چاچه په دین کښې ډیر بدعات راپیدا کړی، دَ حوض کوثر نه به لرې کولې شی. هم دغه شان حال دَ کبیره ګناهونو دَ مرتکبین او ظالمانو خلقو به هم وی.(۴)

(۱) عمدة القاری: ۳۳۵/۱۵.
(۲) عمدة القاری: ۳۳۵/۱۵.
(۳) شرح الکرمانی: ۱۱/۱۴ دار إحياء التراث العربي.
(۴) عمدة القاری: ۳۳۵/۱۵.

**[۵۵۳۶] محشر کښې به سړی او ښځې ټول بربند وی**

۵۵۳۶-(۱)[۵] ۱ «وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ۲ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا ۳" قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ جَمِيعًا يَنْظُرُ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ ۴ فَقَالَ: "يَا عَائِشَةُ الْأَمْرُ أَشَدُّ مِنْ أَنْ يَنْظُرَ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ۲ د قيامت په ورځ به په ميدان حشر کې خلق خپې آبلې پښې او بربند جمع شي ۳ بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې ما په دي اوريدو سره عرض وکړو يارسول الله آيا د سړو او ښځو ټولو به داحال وي او هغوئ به يو بل بربندويني، يعنى داسې خوبه ښځي سړی او سړی به ښځي خپې آبلې ويني نو بيا د ټولو په بربنډ حالت کې د جمع کولو کې څه مصلحت دی ۴ حضور ﷺ وفرمايل اې عائشې رضي الله عنها د هغه ورځ معامله به دي نه ډيره زياته سخته هولناکه وي چې څوك دي چاته نظر اوچتولو سره وکوري. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① حُفَاةً: خپې آبلې، ② عُرَاةً: بربند بدن، ③ غُرْلًا: ناسنته،

**تسهيلات:**

**قوله:** يَا عَائِشَةُ الْأَمْرُ أَشَدُّ مِنْ أَنْ يَنْظُرَ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ:

**د قيامت سختې:** يعنى معامله به د دې نه زياته سخته وی چه څوك چاته اوګوری هلته به د نفسی نفسی عالم وی چاته به معلومه هم نه وی چه دا سړې دې که ښځه بربنده ده که په پرده کښې ده.

**[۵۵۳۷] دوزخيان به پرمخې د حشر ميدان ته راجمع کولی شی**

۵۵۳۷-(۲)[۲] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- ۲ «أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا نَبِيَّ اللّٰهِ! كَيْفَ يُحْشَرُ الْكَافِرُ عَلَى وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ ۳ قَالَ: "أَلَيْسَ الَّذِي أَمْشَاهُ عَلَى الرِّجْلَيْنِ فِي الدُّنْيَا قَادِرًا عَلَى أَنْ يُمْشِيَهُ عَلَى وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دی ۲ يو سړي عرض وکړو يا نبي الله ۳ د قيامت په ورځ به کافر پرمخې تلو سره ميدان حشر ته څرنګه راځي، يعنى د چا د پاره پرمخې تلل به څرنګه ممکن وي ۴ حضور ﷺ وفرمايل حقيقت دا دی چې کوم ذات

[1] ) اخرجه البخاری فی كتاب الرقاق/باب: كيف الحشر (رقم-۶۵۲۷) ومسلم فی كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب فناء الدنيا وبيان الحشر يوم القيامة (رقم-۵۶ - (۲۸۵۹) والنسائی فی كتاب الجنائز/باب البعث (رقم-۲۰۸٤)وابن ماجه فی كتاب الزهد/باب ذكر البعث (رقم-٤۲۷۶)

[2] ) اخرجه البخاری فی كتاب تفسير القرآن/باب قوله{الذين يحشرون على وجوههم الى جهنم أولئك شر مكانًا واضل سبيلًا} [الفرقان: ۳٤](رقم-٤۷۶۰) ومسلم فی كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب يحشر الكافر على وجهه (رقم-٥٤ -(۲۸۰۶)

(يعني الله ﷻ) داكافر په دنيا كې پښو باندې روان كړي دي هغه ذات د هغوئ د قيامت په ورځ پرمخې روانولو باندې هم قادر دی. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: أَلَيْسَ الَّذِي أَمْشَاهُ عَلَى الرِّجْلَيْنِ فِي الدُّنْيَا قَادِرًا عَلَى أَنْ يُمْشِيَهُ عَلَى وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ :**

**د كافرانو ميدان حشرته په مخونو باندې تګ:** په حديث الباب كښې نبی كريم ﷺ د كافرانو متعلق خبر وركړو چه هغوی به د خپلو قبرونونه د محشر طرف ته پرمخې رانښكونكې يا په خوئيدو سره ځي. اودا د الله پاك د قدرت نه لرې نه ده چه هغه په دنياكښې انسانان په خپو ګرځولې شی نوكافران پرمخې هم د قيامت په ورځ د محشر طرف ته راوستې شي.

**[۵۵۳۸] په ميدان حشر كې د حضرت ابراهيم عليه السلام د پلار حالت**

۵۵۳۸-()[۷] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② قَالَ: «يَلْقَى إِبْرَاهِيمُ أَبَاهُ آزَرَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَعَلَى وَجْهِ آزَرَ قَتَرَةٌ وَغَبَرَةٌ ③، فَيَقُولُ لَهُ إِبْرَاهِيمُ: أَلَمْ أَقُلْ لَكَ لَا تَعْصِنِي؟ ④ فَيَقُولُ لَهُ أَبُوهُ: فَالْيَوْمَ لَا أَعْصِيكَ ⑤. فَيَقُولُ إِبْرَاهِيمُ: يَا رَبِّ! إِنَّكَ وَعَدْتَنِي أَنْ لَا تُخْزِيَنِي يَوْمَ يُبْعَثُونَ ⑥ فَأَيُّ خِزْيٍ أَخْزَى مِنْ أَبِي الْأَبْعَدِ»[1]

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت كوي ② چې حضور ﷺ وفرمايل د قيامت په ورځ به حضرت ابراهيم عليه السلام دخپل پلار آذر سره په داسې حال كې يوځاي كيږي چې د آذر مخ به د غم او فكر په سبب تور وي او غبار آلود (په ښاورو ككړ) به وي ③ حضرت ابراهيم عليه السلام په دې ليدو سره به ورته په حسرت او افسوس سره وايي آيا په دنيا كې ما تاته نه وئيل زه چې د الله ﷻ د طرف نه څه درته وايم او تعليم دركوم په هغه كې ځما نافرماني مه كوه ④ د هغوئ پلار آذر به ورته وايي زه نن ورځ ستانافرماني نه كوم الله د پاره ځما شفاعت وكړه او ماته نجات راكړه ⑤ حضرت ابراهيم عليه السلام د پلار داخبره اوريدو سره به عرض كوي اې ځما پروردګاره تا زما سره وعده كړي ده چې په هغه ورځ چې دوباره به خلق ژوندی كول كيږي ميدانِ حشر كې به ته ما نه ذليل او رسوا كوې ⑥ نو ځما د پلارد رسوائي او ذلت نه لوی ذلت او رسوائي د پاره نور څه كيدی شي چې هغه ستا د رحمت نه دومره ليرې دی

**حل اللغات:** - ① قَتَرَةٌ: توروالی، ② غَبَرَةٌ: په خاورو به ككړ وی، ③ الْأَبْعَدِ: د رحمت نه لرې شو او هلاك شو.

[1] اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله تعالى: {واتخذ الله إبراهيم خليلًا} [النساء: ۱۲۵] (رقم-۳۳۵۰)

[۱] فَيَقُولُ اللهُ تَعَالَى: إِنِّي حَرَّمْتُ الجَنَّةَ عَلَى الكَافِرِينَ، [۲] ثُمَّ يُقَالُ لإِبْرَاهِيمَ: مَا تَحْتَ رِجْلَيْكَ؟ [۳] فَيَنْظُرُ فَإِذَا هُوَ بِذِيخٍ مُتَلَطِّخٍ، [۴] فَيُؤْخَذُ بِقَوَائِمِهِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ». رَوَاهُ البُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] الله ﷻ به ورته فرمايي اې ابراهيمه! [۲] نن ورځ ستا د پلار په حق کې د مغفرت او نجات ستا درخواست منظور کيدې نشي ځکه چې هغه کافر دی (او حقيقت دادی چې ما جنت په کافرو حرام کړی دی [۲] بيا به حضرت ابراهيم عليه السلام ته اوويل شي چې لاندې وګوره ستا په پښو کې څه دی [۳] حضرت ابراهيم عليه السلام به دې اوريدو سره خپلو پښو طرف ته به نظر وکړي نو اوبه وينې چې د هغه پلار آذر د ګفتار (يعنی دادم خور (يو حيوان چې قبرونه کني او مړي خوري) په شکل کې به خاورو او سوتو (ګوبر) کې لړلی پروت دی [۴] بيا به د هغه يعنی د آذر پښو نيولو سره په دوزخ کې وغورځول شي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ④ذِيخٍ: ګورګوټی يا بل څه ورکوټې غوندې حشرات الارض ځنې يوځناور دې ⑤ مُتَلَطِّخٍ: لت پت، ککړ، ⑥قَوَائِم: خپې،

**تسهيلات:**

**قوله:** فَيُؤْخَذُ بِقَوَائِمِهِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ:

**دابراهيم عليه السلام په خپلو لاسونو خپل پلار جنهم ته غورځول:** ابراهيم عليه السلام د الله تعالى څخه دعا کړې وې چې يا الله د قيامت په ورځ ما د رسوائي څخه محفوظ اوساتې لکه څنګه چې په قرآن پاک کښې دی ((وَلَا تُخْزِنِي يَوْمَ يُبْعَثُونَ ۝ يَوْمَ لَا يَنْفَعُ مَالٌ وَلَا بَنُونَ ۝)) يعنی په هغه ورځ ما د رسوائی څخه محفوظ اوساته په کومه ورځ چې به نه مال فائده ورکولې شی اونه اولاد او الله تعالى ئې د نورو دعاګانو پشان دغه دعا هم قبوله کړې وه نو الله تعالى به خپله وعده داسې پوره کړی چې دابراهيم عليه السلام د پلار څخه به لړم جوړ کړی او ابراهيم عليه السلام به ئې په خپلو لاسونو جهنم ته ورغوزار کړی.

**[۵۵۲۹] دَحشر په ميدان کښې بهيدونکې خوله**

۵۵۲۹ - (۱) [۸] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "يَعْرَقُ النَّاسُ يَوْمَ القِيَامَةِ حَتَّى يَذْهَبَ عَرَقُهُمْ فِي الأَرْضِ سَبْعِينَ ذِرَاعًا، [۳] وَيُلْجِمُهُمْ حَتَّى يَبْلُغَ آذَانَهُمْ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ په ميدان حشر کې (چې د حساب کتاب ابتداء وي او نامه اعمال به خلاصول شروع شي) نو دخلقو خوله په زمکه کې اويا ګزه پورې به لاړه شي [۳] (اوبيا به هلته ډنډ کيدو سره را

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب قول الله تعالى: {الا يظن اولئك انهم مبعوثون ليوم عظيم يوم يقوم الناس لرب العالمين} [المطففين: ۵] (رقم-۶۵۳۲) ومسلم في كتاب الجنة وصفة نعيمها واهلها/باب في صفة يوم القيامة أعاننا الله على أهوالها (رقم-۶۱ - (۲۸۶۳) واحمد في المسند: ۲/ ۴۱۸

پورته وغورځيږي ددي پورې چې د هغوئ غوږونو پورې به ورسيږي . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① يَعْرَقُ : خوله، ② ذِرَاعًا :شرعي گزونه، ③ يُلْجِمُهُمْ : واګې به واچوی دوی ته دا خولې، يعنی دا خولې به چپه اووهی او راروانې به شی په دوی باندې،

**تسهيلات:**

**قوله:** يَعْرَقُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يَذْهَبَ عَرَقُهُمْ فِي الْأَرْضِ سَبْعِينَ ذِرَاعًا:

**دخلقو به خولو کېنې ډوبيدل:** د الناس څخه ټول خلق مراد دی يعنی پيريان اوانسانان ټولو ته شامل دی بلکه په جناتو به په طريق اولی خوله راځی او بهيږی به باقی دَ جنات ذکر نه کول دَ باب الاکتفاء دَ قبيل نه دی.

دَ انبياء، اولياء به دَ عرش اعظم سورې حاصليدو سره دَ خولې نه خلاص شی. دَ خولو په داسې سختئی سره راتلل او بهيدل به په دې سبب وی چه هغه به دَ سخت قسم هيبت وی او خوله دَ سختې پريشانئی، دَنمر دَ تاؤ اودَ اور دَ لمبو په وجه به راځی.

**قوله:** وَيُلْجِمُهُمْ حَتَّى يَبْلُغَ آذَانَهُمْ"

**دغوږونو پورې دخولې راتلل:** باقی دَ هرسرې دَ عمل نامې په اندازه به هغه ته خولې راځی. دَچا عمل نامه چه څومره اندازه کېنې بنه وی هغه ته به خوله هم کمه راځی. وراندې تفصيل راروان دې.

**[۵۵۴۰] دَ حشر په ميدان کښې به نمر ديوميل په فاصله نژدې وی**

٥٥٤٠-()[٩] ① وَعَنِ الْمِقْدَادِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ ②: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " «تُدْنَى الشَّمْسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْخَلْقِ، ③ حَتَّى تَكُونَ مِنْهُمْ كَمِقْدَارِ مِيلٍ، ④ فَيَكُونُ النَّاسُ عَلَى قَدْرِ أَعْمَالِهِمْ فِي الْعَرَقِ، ⑤ فَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ إِلَى كَعْبَيْهِ، وَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ إِلَى رُكْبَتَيْهِ، وَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ إِلَى حَقْوَيْهِ، وَمِنْهُمْ مَنْ يُلْجِمُهُمُ الْعَرَقُ إِلْجَامًا ⑥" وَأَشَارَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِيَدِهِ إِلَى فِيهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت مقداد ﷺ وايي ② ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل د قيامت په ورځ به په ميدان حشر کې نمر مخلوق ته نژدې شی ③ ددې پورې چې دهغوئ نه به د يوميل په فاصله شي ④ نو ټول خلق به د خپل اعمالو په قدر خوله (پسينه) کې غرق شي ⑤ په هغوئ کې به بعضې هغه وي چې پنړکو پورې به خوله کې وي بعضې خلق به هغه وي چې گوندو پورې به خوله کې وي او بعضې به تر بدې (دپرتوګ بنار ترلوځائې) پورې په خوله کښې وی او دځينو به ترخُلې پورې په خپله خوله کی ډوب وی، ⑥ دې وينا سره حضور ﷺ په خپل لاس خپلې خولې مبارکې ته اشاره وکړه . (مسلم)

---

[١] ) اخرجه مسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب فى صفة يوم القيامة أعاننا الله على أهوالها (رقم-٦٢-(٢٨٦٤) والترمذى فى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى شأن الحساب والقصاص (رقم-٢٤٢١) واحمد فى المسند: ٤١٨/٢

**حل اللغات:-** ①تُدْنَى: نزدې به شي، ②مِيل: د مسافت يو خاص مقدار، ③الْعَرَق: خوله، ④حَقْوَيْهِ: تشي، ⑤يُلْجِمُهُمْ: واګې به واچوي دوی ته دا خولې، يعنی دا خولې به چپه اووهی او راجمع به شي په دوی باندې،

**تسهيلات:**

**قوله:** تُدْنَى الشَّمْسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْخَلْقِ حَتَّى تَكُونَ مِنْهُمْ كَمِقْدَارِ مِيلٍ:

**دميل څخه په مراد کښې دوه اقوال:** ① دَميل نه مراد دَ مسافت او فاصلې والا ميل مراد دې کوم چه دَ فرسنګ دريمه حصه وی نوترجمه دا شوه چې نمر به دَ يو ميل په فاصله باندې وی

② د رانجه لګونکې سلائی هم مراد کيدې شی.نوترجمه دا شوه چې نمر به دَ رانجو دَ سلائی په اندازه فاصله باندې وی.

**قوله:** فَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ إِلَى كَعْبَيْهِ، وَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ إِلَى رُكْبَتَيْهِ:

**اشکال:** هرسړې به په خپلو خولوکښې دوب وی نودا به څنګه ممکن وی چه دَ بل سړی خولو سره به نه ملاويږی بلکه هم په خپله غاړه باندې به اودريږی؟

**داشکال جواب:** دَ الله تعالی قدرت کامله به دَ هر سړی خوله دَ هغه دَ اعمالو په نسبت سره اودرولې چه دَچا خوله به دَ هغه دَ خُلې يعنی دَ غابښونو پورې رسيږی اودَ چا خوله به دَ سټه پورې اودَ چا دَ سينې پورې دَچا دَ ملا پورې دَ چا دَ زنګونونو پورې دَ چا دَ ګيټو پورې دَ ګناهونو په مقدار رسيږی علی هذاالقياس. لکه څنګه چه په يو قبر کښې دوه مړی خښيږی ليکن په هغوی دواړو باندې جدا جدا حالات راځی چه په هغوی کښې يو عذاب کښې راګير وی نو بل په راحت او سکون سره وی او دواړه دَ يو بل دَ احوالو نه ناخبر وی.

**دنياوی مثال:** په دنيا کښې دَدې مثال داسې دې چه دوه کسان په يوه بستره باندې هم په يو شان خوب کوی او دواړه جدا جدا خوب وينی يو غم اوخفګان محسوسوی او بل خوشحاله وی. کله چه په دنيا کښې داسې ممکن دی چه دوه کسان يوځائی وی په هغوی کښې دَ يو سره جدا معامله وی نو په آخرت کښې خو به په طريقه اولی سره داسې ممکن وی. لهذا دَ آخرت احوال دَ دنيا په احوالو باندې نه شی قياس کولې.

[۵۵۴۱] په جنتیانو کښې به د حضور ﷺ د امت والا خلق زیات وي

۵۵۴۱-()[۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] - قَالَ: "«يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى [۳]: يَا آدَمُ! فَيَقُولُ: لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ كُلُّهُ فِي يَدَيْكَ. [۴] قَالَ: أَخْرِجْ بَعْثَ النَّارِ، قَالَ: وَمَا بَعْثُ النَّارِ؟ [۵] قَالَ: مِنْ كُلِّ أَلْفٍ تِسْعَمِائَةٍ وَتِسْعَةً وَتِسْعِينَ [۶] فَعِنْدَهُ يَشِيبُ الصَّغِيرُ، ﴿وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا [۷] وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى وَمَا هُمْ بِسُكَارَى وَلَكِنَّ عَذَابَ اللَّهِ شَدِيدٌ﴾ [الحج: ۲].

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعید خدري د رسول الله ﷺ نه روایت کوي [۲] چې حضور ﷺ وفرمایل د قیامت په ورځ به الله ﷻ په میدان حشر کې آواز ورکړي [۳] اې آدمه! آدم به جواب ورکړي زه حاضریم ستا تابعدارۍ د پاره تیاریم او ټولي خیر ښیګړې ستا په لاس کې دي [۴] الله ﷻ به فرمایي د اور والا لښکر رااوباسه [یعني مونږ ته چې ستا د اولاد نه د کومو خلقو دوزخ ته لیږل منظور دی هغه جدا کړه] آدم به عرض وکړو د دوزخیانو د لښکر تعداد اندازه څه ده [۵] الله ﷻ به فرمایي د هر زرو نه نهه سوه نهه نوي (۹۹۹) [یعني د دوزخیانو تناسب دادی چې د هر زرو نه به یو سړی جنت ته ځي او باقي به په دوزخ کې اچول کیږي] [۶] دا حکم خداوندي اوریدو سره وړوکي عمر والا به بوډاشي او هره حامله ښځه به خپل حمل ضائع کړي [۷] او هغه وخت به ته وویني چې خلق ګویا په نشه کې مست دي حالانکه هغوئ به (د شرابو په شان نشه کې) مست نه وي) که بالفرض هغه وخت څوك دوړوکي عمر وي ، نو هغه به دصورت حال هیبت او فیصله خداوندي درعب اوخوف نه بوډاشي ، دغسې هغه وخت که دیوې ښځې حمل وي ، نو دهیبت نه به دهغې دنس نه حمل وغورځیږي

[۸] قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! وَأَيُّنَا ذَلِكَ الْوَاحِدُ؟ [۹] أَبْشِرُوا فَإِنَّ مِنْكُمْ رَجُلًا، وَمِنْ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ أَلْفٌ [۱۰] ثُمَّ قَالَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا رُبُعَ أَهْلِ الْجَنَّةِ" فَكَبَّرْنَا. [۱۱] فَقَالَ: "أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا ثُلُثَ أَهْلِ الْجَنَّةِ" فَكَبَّرْنَا [۱۲] فَقَالَ: "أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا نِصْفَ أَهْلِ الْجَنَّةِ" فَكَبَّرْنَا. [۱۳] قَالَ: "مَا أَنْتُمْ فِي النَّاسِ إِلَّا كَالشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ فِي جِلْدِ ثَوْرٍ أَبْيَضَ، [۱۴] أَوْ كَشَعْرَةٍ بَيْضَاءَ فِي جِلْدِ ثَوْرٍ أَسْوَدَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۸] بیا صحابؤ عرض اوکړو اې د الله پیغمبره! دا یو کس به په مونږ کښې کوم یو وي؟ [۹] او بیا د (اطمینان ساتي) ، غم مه کوي یقینا په تاسو کښې به یو کس وي او د یاجوج ماجوج څخه به زرکسان وي [۱۰] بیا نبي ﷺ اوفرمائیل زما په هغه ذات قسم وي چې زما روح د هغوی په قبضه اوقدرت کښې دې زه دا امید ساتم چې تاسو به د جنتیانو څلورمه

[۱] ) اخرجه البخاری فی كتاب أحاديث الأنبياء/باب قصة يأجوج . ومأجوج (رقم-۳۳۴۸) ومسلم فی كتاب الإيمان/باب قوله يقول الله لآدم أخرج بعث النار من كل ألف تسعمائة وتسعة وتسعين (رقم-۳۷۹ - (۲۲۲) والترمذی فی كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الحج (رقم-۳۱۶۸)

حصه ئې (صحابه فرمائی په دې اوریدو سره) مونږ الله اکبر اووئیل [۱۱] (بیا) نبی ﷺ اوفرمائیل (بلکه) زه امید ساتم چې تاسو به د جنتیآنو دریمه حصه ئې (صحابه فرمائی نو) مونږ الله اکبر اووئیل [۱۲] (بیا) نبی ﷺ اوفرمائیل زه امید ساتم چې تاسو به د جنتیانو نیمه حصه ئې (صحابه فرمائی نو) مونږ د الله اکبر نعره اوچته کړه [۱۳] بیا نبی ﷺ اوفرمائیل تاسو به (په جنت کښې) د نورو خلقو په نسبت داسې ئې لکه څنګه چې یو توروېخته وی په څرمن د سپین غوائی کښې. [۱۴] اوپشان د سپین ویخته په څرمن د تور غوائې کښې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① لَبَّيْكَ: زه حاضریم. ② وَسَعْدَيْكَ: اوستا تابعداریٔ ته تیار یم. ③ يَشِبُ: بوډا به شی. ④ تَضَعُ: اوبه زیګوی ⑤ سُكَارَي: جمع دسکران ده، نشه یان ⑥ الشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ: تور ویښته، ⑦ ثَوْرٍ: غوئې.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا أَنْتُمْ فِي النَّاسِ إِلَّا كَالشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ فِي جِلْدِ ثَوْرٍ أَبْيَضَ:

**دمذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دَدې جملې مطلب دادې چه دَحضرت آدم ؑ نه واخله تر نبی آخرزمان ؑ پورې څومره انسانان دی که دَهغوی مقابله دَ نبی اکرم ؑ دَ امت سره اوکړې شی نودا به ډیر لږ وی لکه چه دَ یو جزء برابر کیدې شی.

② یا د حدیث مطلب دا دې چې دَ غوئی په بدن کښې دَعام رنګ نه علاوه چه کوم تور یا سپین رنګ وی دغه شان دَ یو ټاکی په شان برابر کیدې شی. دا قلیل حیثیت به ستاسو وی مګر دَ دغه قلت باوجود کله چه په جنت کښې ستاسو حیثیت ته کتلې شی نوتاسو به دَاهل جنت دَ نصف برابر یئې. صحابی فرمائی چه مونږ دَ خوشحالئی نه دَ تکبیر آواز اوچت کړو. دَدې نه معلومه شوه چه دَ خوشحالئی دَ اظهاردَ پاره نعرهٔ تکبیر اوچتول منع نه دی.

**[۵۵٤۲] دَقیامت په ورځ به ریاکار خلق الله ته سجده نه شی لګولې**

**۵۵٤۲-(۱)[۱] ① وَعَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② «يَكْشِفُ رَبُّنَا عَنْ سَاقِهِ ③ فَيَسْجُدُ لَهُ كُلُّ مُؤْمِنٍ وَمُؤْمِنَةٍ، وَيَبْقَى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ فِي الدُّنْيَا رِيَاءً وَسُمْعَةً، ④ فَيَذْهَبُ لِيَسْجُدَ فَيَعُودُ ظَهْرُهُ طَبَقًا وَاحِدًا» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسعید خدري ؓ وایې ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل ② د قیامت په ورځ به زمونږ پروردګار خپله پنډی خلاصه کړي ③ نو ټول مومنان سړي او ښځې به هغه ته سجده وکړي لیکن هغه به سجده نه کوي چې په دنیا کې دښووني او

[۱] ) اخرجه البخاری فی كتاب تفسير القرآن/باب {يوم يكشف عن ساق} [القلم: ٤٢] (رقم-٤٩١٩) ومسلم فی كتاب الإيمان/باب معرفة طريق الرؤية (رقم-٣٠٢ - (١٨٣)

آوروني د پاره سجده کوله (يعنی د هغه سرې سجده به د اخلاص په بناء نه وه بلکه د نفاق د مخ او دنيا وي منفعت او شهرت حاصلولو د پاره به وه) [۴] که څه هم هغه به سجده کول غواړي خو د هغه شا به يوه تخته شی او د سجدی توان او قدرت به يې نه وی (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① سُمْعَةً: د آورولو د پاره، (يعنی د ريا په طور تعريف خوښول) ② طَبَقًا: تخته، نيفه.

**تسهيلات:**

**قوله: يَقُولُ يَكْشِفُ رَبُّنَا عَنْ سَاقِهِ:**

**د ساق په تفسير کښې دوه اقوال:** ① بعضې حضرات دَ دې جملې تاويل نه کوی بلکه دا دَ متشابهاتو نه ګرځوی او دَ متشابهاتو حکم دادې چه دَ هغې دَ حقيقی مراد مفهوم پسې شاته نه دی لګيدل پکار بلکه په هغې دې دا عقيده اولرلې شی چه دَ دې حقيقی مفهوم دَ الله په علم کښې دې.

② دَ دې مراد دې دا واخستلې شی چه پروردګار به دَ خپلو بندګانو په مخکښې دَ خپل نور تجلی ښکاره کړی. دَ نور تجلی ساق سره تعبير کړې شوې ده. کوم ته په کتو چه به ټول مؤمنان سرې او مؤمنانې ښځې په سجده پريوځی. دې دَ پاره چه دَ دغه قربت په ذريعه دَ هغه سختئی او غم نه خلاصې بيامونډې شی.

**[۵۵٤۳] د قيامت په ورځ به تکبر کونکی خلق د ماشي د وزر برابر هم حيثيت نه لري**

۵۵٤۳-()[۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَيَأْتِي الرَّجُلُ الْعَظِيمُ السَّمِينُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ [۳] لَا يَزِنُ عِنْدَ اللّٰهِ جَنَاحَ بَعُوضَةٍ". [۴] وَقَالَ: اقْرَءُوا ﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾ [الكهف: ۱۰۵]» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] و حضرت ابو هريره ﷺ وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به (په ميدان حشر کي) د جاه ومال د اعتبار نه يو لوی او ښه غټ تازه په غوښه پټ سړی راشي [۳] ليکن د الله په نزد به د هغه د ماشي د وزر برابر هم څه حيثيت او قدر وقيمت به نه وي [۴] او (ای مؤمنانو) تاسو دا آيت اووايئ: [چې تاسو ته معلومه شي چې هغه دنيا دار خلق چې خپل دنياوي حيثيت او وقعت باندې ناز کونکی او مغروره دی او خپل کردار او عمل ښه ګني د حقيقت د اعتبار نه به هغوئ بي حيثيته وي او د هغوئ ټول اعمال او کردار ضائع او نابود کيدونکی دی] او هغه دادي. فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا. د قيامت په ورځ به مونږ د هغوئ د اعمالو د پاره هيڅ ترازو نه دروو.

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب {أولئك الذين كفروا بآيات ربهم ولقائه فحبطت أعمالهم} [الكهف: ۱۰۵] الآية (رقم-٤۷۲۹) ومسلم في كتاب صفة القيامة والجنة والنار (رقم-۱۸ - (۲۷۸۵)

**حل اللغات:** - ① اَلسَّمِينُ: غټ، څرب، ② لَايَزِنُ: برابريه نه وی، حيثيت به ئې نه وی، ③ جَنَاحَ: وزر، ④ بَعُوضَةٍ: ماشې، ⑤ وَزْنًا: تله، ترازو.

**تسهيلات:**

**قوله:** «لَيَأْتِي الرَّجُلُ الْعَظِيمُ السَّمِينُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَايَزِنُ عِنْدَ اللهِ جَنَاحَ بَعُوضَةٍ»:

**اشكال:** دَ خالص كافر دَپاره دَ اعمالو دَ وزن كولو ضرورت نشته دې. هغه به نيغ دوزخ ته خی لكه چه قرآن پاك كښې دی ﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَزْنًا﴾ [سورت الكهف، ۱۰۵] اولكه څنګه چه په دې حديث كښې دی. دَقرآن آيت ﴿وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذِ الْحَقُّ﴾ [سورت اعراف، ۸] صفاوائی چه دَ اعمالو وزن به كيږی داتعارض دې؟

**دَاشكال دوه جوابونه:** ① دَعمل وزن خو به كيږی مګر په وزن كښې به ئې وزن نه وی بلكه عمل به ئې بې وزنه وی داهيڅ تعارض نه دې.

② دَقيامت احوال مختلف دی بعضې احوال كښې به وزن كيږی او بعضې كښې به نه كيږی. بل چه په حديث كښې راغلی دی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۵٤٤] زمكه به دَ قيامت په ورځ پخپله دَ هرسړی په عمل باندې ګواهی وركوی**

وعنه-(١)[١٣] ١ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: «قَرَأَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-هَذِهِ الْآيَةَ: ٢ ﴿يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا﴾ [الزلزلة: ٤] قَالَ "أَتَدْرُونَ مَا أَخْبَارُهَا "؟ ٣ قَالُوا: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، ٤ قَالَ: فَإِنَّ أَخْبَارَهَا أَنْ تَشْهَدَ عَلَى كُلِّ عَبْدٍ وَأَمَةٍ بِمَا عَمِلَ عَلَى ظَهْرِهَا، أَنْ تَقُولَ: عَمِلَ عَلَيَّ كَذَا وَكَذَا". ٥ قَالَ: "فَهَذِهِ أَخْبَارُهَا". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي يوه ورځ رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت كي ٢ يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا په كومه ورځ چې زمكه خپله خبرونه واوروي او وي فرمايل پوهيږئ د قيامت په ورځ د زمكي خبرونه به څه وي؟ ٣ صحابه رضي الله عنهم عرض وكړو الله ﷻ او د هغه رسول ښه پوهيږي ٤ حضور ﷺ وفرمايل د زمكي خبرونه به داوي چې زمكه به د هر بنده او منځي يعنى د هرسړي او ښځي د هر هغه عمل شاهدي وركوي چې هغه د هغه په شاكرى وي يعنى هغه به داسې وايي چې څما په شا فلانى سړى فلانى ښځي فلانى فلانى ورځ باندې داكړي دي او هغه كړي دي يعنى فلاني سړي فلاني نيك كار كړى دى او فلاني وخت يي بدكار كړى دى ٥ بيا حضور ﷺ وفرمايل بس دا ګواهي وركول د

(١) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-٢٤٢٩) واحمد فى المسند، ٣٧٤/٢

زمکي خبرونه دي دا روايت احمد ﷺ ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دی چې دا حديث حسن غريب دی

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنَّ أَخْبَارَهَا أَنْ تَشْهَدَ عَلَى عَبْدٍ وَأَمَةٍ بِمَا عَمِلَ عَلَى ظَهْرِهَا:**

**په بندګانو د زمکې ګواهي:** دې حديث نه معلومه شوه چه انسان په مخ دَ زمکې څه عمل هم کوی زمکه هغه ريکارډ کوی. دَ زمکې په کومه حصه باندې چه هم يو سړی څه عمل کړې وی دَ زمکې هغه حصه به ګواهي ورکوی که ښه عمل ئې کړې وی نوهغه به دَ ده په حق کښې ګواهي کوی ګنی دَ دې خلاف به وی. نوچه انسان کله هم څه عمل کوی په سوچ اوفکرسره دې کوی څکه چه دازمکه هغه محفوظ کوی اودَ قيامت په ورځ به دَ دې باره کښې زمانه تپوس پښتنه کيږی.
[] تحفة الاحوذی ۹۸/۷.

**[۵۵۴۵]هر نيک او بد چې مړ شي پښيمانی کوی**

۵۵۴۵-()[۱۳] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَا مِنْ أَحَدٍ يَمُوتُ إِلَّا نَدِمَ». [۳] قَالُوا: وَمَا نَدَامَتُهُ يَا رَسُولَ اللهِ؟ [۴] قَالَ: "إِنْ كَانَ مُحْسِنًا نَدِمَ أَنْ لَا يَكُونَ ازْدَادَ، وَإِنْ كَانَ مُسِيئًا نَدِمَ أَنْ لَا يَكُونَ نَزَعَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ؓ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] داسې هيڅ سړی نشته چې مړ شي او پښيمانه نه وي [يعنی هر مړکيدونکی به بهر صورت پښيمانه وي نو قبل دي نه چې مرګ راشي خپل ژوند غنيمت وګڼئ او د مرګ نه مخکې زيات نه زيات نيك اعمال وکړئ] [۳] صحابه ؓ عرض وکړو يارسول الله د ندامت او پښيمانتيا سبب څه دی [۴] حضور ﷺ وفرمايل که هغه مړکيدونکی نيکو کار وي نو څکه به پښيمانه وي چې هغه زيات نه زيات نيك اعمال ولی ونه کړه او که هغه بد کاره وي نو څکه به پښيمانه وي چې هغه خپل ځان د بدی نه ولي منع نه کړي. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① نَدِمَ: پښيمانه، ② مُسِيئًا: ګناهګار، ③ نَزَعَ: منع کړې دې.

**تسهيلات:**

**قوله: مَا مِنْ أَحَدٍ يَمُوتُ إِلَّا نَدِمَ:**

**د پښيمانتيا څخه د پيغمبرانو استثناء:** انبياء کرام به دَدې نه مستثنٰی وی څکه چه انبياء کرام عليهم السلام به دَ عظمت په اوچتو مقاماتو باندې وی هغوی ته به خپيمانتيا نه وی.

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۴۰۳) والنسائی فی کتاب الجنائز/باب تمنی الموت (رقم-۱۸۱۸) واحمد فی المسند: ۲۶۳/۲

**قوله:** وَإِنْ كَانَ مُسِيئًا لِيَزْدَادَ أَنْ لَا يَكُونَ نَزَعَ:

**د پښيمانتيا درې قسمونه:** ① کافرانو ته به ښيپمانتيا وی چه مونږ ولې مسلمانان شوي نه يو خوهلته به په هغه ورځ ښيپمانتيا څه فائده نه ورکوی.

② گناهګاران به ښيپمانه وی چه مونږ ګناهونه ولې کړی دی

③ دَ نيکانو خلقو دَ خپيمانتيا وجه به دا وی چه افسوس زمونږ زيات عمر وې اوديرې نيکئی مو کړې وې نو زيات اوچت درجات به مو حاصل کړی وې.

**[۵۵۴۶] په ميدان حشر کې به خلق په درې ډلو کې تقسيم شی**

> ۵۵۴۶ -()[۱۵] ① وَعَنْهُ، قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَلَاثَةَ أَصْنَافٍ③: صِنْفًا مُشَاةً، وَصِنْفًا رُكْبَانًا، وَصِنْفًا عَلَى وُجُوهِهِمْ④" قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ! وَكَيْفَ يَمْشُونَ عَلَى وُجُوهِهِمْ؟ قَالَ: " إِنَّ الَّذِي أَمْشَاهُمْ عَلَى أَقْدَامِهِمْ قَادِرٌ عَلَى أَنْ يُمْشِيَهُمْ عَلَى وُجُوهِهِمْ، أَمَا إِنَّهُمْ يَتَّقُونَ بِوُجُوهِهِمْ كُلَّ حَدَبٍ وَشَوْكٍ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** او حضرت ابوهريره ﷜ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل د قيامت په ورځ به په ميدان حشر کې خلق په درې قسمه را وستل شي يوقسم خلق خو به هغه وي چې پياده به راځي او يوقسم به هغه وي چې په سورلو به راځي او يوقسم به هغه خلق وي چې پرمخي تلو سره به راځي عرض وشو يا رسول الله پرمخي به څرنګه راځي وي فرمايل حقيقت دادی چې کوم ذات هغوئ په پښو تلو سره ګرځوي هغه يې په پرمخ ګرځولو هم قادر دی او پوهه شئ چې هغه خلق به پرمخي تلو کې خپل مخ د بلندئ او ازغو نه بچ کوي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① أَصْنَافٍ: اقسام. ② مُشَاةً: پيدل تلونکی (دابه ګناهګارمسلمانان وی) ③ رُكْبَانًا: سواره. (دا به انبياء کرام وی.) ④ عَلَى وُجُوهِهِمْ: په مخونو خپلو. پرمخې. (دابه کافران وی) ⑤ حَدَبٍ: اوچت ځائ. کمر. ⑥ شَوْكٍ: ازغی.

**تسهيلات:**

**قوله:** يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَلَاثَةَ أَصْنَافٍ:

**د حشر په اعتبار سره د خلقو درې قسمونه:** ① اول قسم مسلمانان ګناهګاران به هغه وی چاسره چه نيك او بد اعمال وی اودَ ويرې او رجاء په حالت کښې به وی

② دويم قسم خلق به دکامل ايمان والا وی چه په نيکو اعمالو کښې به وړانديوالې او مخکی والې اختيارونکی وی اودا خلق به په خپلو قربانو او نيکو اعمالو باندې سواره

---

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب: ومن سورة بنی إسرائيل (رقم-۳۱۴۲) واحمد فی المسند:۲/۳۵۴

وی او په کافرانو باندې به دَ هغوی مالونه او اعمال سواره وی.

③ دریم قسم خلق به کافرانو او مشرکانو باندې مشتمل وی دا خلق به پرمخې روان وی. دَ کوم چه یو مطلب دا دې چه دوی په دنیاکښې سجدې نه کولې په دې وجه هغوی داسې کړې شو بل دا لکه څنګه چه په دنیا کښې په خپو باندې دَتلو په وخت هرقسم تکلیف انسان په خپو باندې برداشت کوی دغه شان به کافران په تګ سره دَ لارې هر یو تکلیف په خپل سر او مخ باندې برداشت کوی.

**نوټ:** دَدې حدیث نه معلومه شوه چه دا سفر به دَمیدان محشر نه دَ دوزخ طرف ته وی ځکه چه دَ قبرونو نه دَ حشر طرف ته سفر دَ میدې دَ روتئی په شان په صفا زمکه باندې وی. کما مر

**[۵۵٤۷] که څوک دَ قیامت د ورځې احوال لیدل غواړې نو دا سورتونه دې اولولي**

٥٥٤٧-()[١٦] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ ②: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُ رَأْيُ عَيْنٍ ③ فَلْيَقْرَأْ: ﴿إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ﴾ [التكوير: ١] وَ﴿إِذَا السَّمَاءُ انْفَطَرَتْ﴾ [الانفطار: ١] وَ﴿إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ﴾ [الانشقاق: ١]». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر ﷠ وایي ② چې رسول الله ﷺ وفرمایل کوم سړی چې د قیامت د ورځي احوال داسې لیدل خوښوي څرنګه چې هغه ظاهري سترګو سره ويني ③ نو هغه ته پکار دی چې سورة إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ او إِذَا السَّمَاءُ انْفَطَرَتْ او إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ اووائي (احمد وترمذي)

**حل اللغات:** - ① كُوِّرَتْ: راغونډ به کړې شي، بې نوره او توربه شي ② انْفَطَرَتْ: اوبه دوړیږي. اوبه شلیږي، ③ انْشَقَّتْ: اوبه چوي.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُ رَأْيُ عَيْنٍ:

**د حدیث مفهوم:** په دې سورتونو کښې دَ قیامت دَ احوالو ذکر دې نو که لوستونکې دا سورتونه دَ زړه په حضور سره او دَ قیامت تصور کولو سره وائی اودَدې په معنو باندې غور اوفکر کوی نودا سورتونه به دَ قیامت احوال داسې رامخې ته کوی لکه چه په سترګو باندې مشاهده کوی او ګوری ئې او دَ بنده دَپاره دَ بدو عملونو نه بچ کیدل آسانیږي.

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ومن سورة إذا الشمس کورت (رقم-۳۳۳۳) واحمد فی المسند:۲/۱۰۰

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵۵٤۸] خلق به میدان حشرته په دریو ډلوکښې راځي

۵۵٤۸-() [۱۷] ① عَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: إِنَّ الصَّادِقَ الْمَصْدُوقَ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَدَّثَنِي: ② "«أَنَّ النَّاسَ يُحْشَرُونَ ثَلَاثَةَ أَفْوَاجٍ: ③ فَوْجًا رَاكِبِينَ طَاعِمِينَ كَاسِينَ، ④ وَفَوْجًا تَسْحَبُهُمُ الْمَلَائِكَةُ عَلَى وُجُوهِهِمْ، وَتَحْشُرُهُمُ النَّارُ، ⑤ وَفَوْجًا يَمْشُونَ وَيَسْعَوْنَ وَيُلْقِي اللهُ الْآفَةَ عَلَى الظَّهْرِ فَلَا يَبْقَى، ⑥ حَتَّى إِنَّ الرَّجُلَ لَتَكُونُ لَهُ الْحَدِيقَةُ يُعْطِيهَا بِذَاتِ الْقَتَبِ لَا يَقْدِرُ عَلَيْهَا»". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي صادق او مصدوق ﷺ ماته بيان وکړو ② چې خلق به دريو ډلو کې ميدان حشرته راوستل شي ③ يوه ډله خو به سورلو باندې وي او د زاد راه د لارې د توښې آسانۍ او سهولتونو سره راحت او اطمينان سره به راځي ④ يوه ډله به هغه وي چې فرشتې به زمکه پرمخې راخکلو سره راولي او شرلو سره به يې دوزخ ته بوځي ⑤ او يوه ډله به هغه وي چې په منډه به راځي يعنی هغه خلق به سهولت او اطمينان سره نه بلکه بې اطمينانۍ او پريشانۍ سره به راځي او الله ﷻ به د سورلۍ د حيوانانو په شا آفت او هلاکت مسلط کړي چې د هغه په وجه به د سورلۍ حيوان ناياب شي ⑥ تردې که يوسړي سره باغ وي نو هغه باغ ورکولو سره د هغه بدله کې يو اوښ اخستل غواړي ليکن هغه ته به د دومره اوچت قيمت اداکولو باوجود هم هغه اوښ حاصل نه شي (نسائي)

**حل اللغات:** - ① الصَّادِقَ الْمَصْدُوقَ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: رښتيا ويونکې او رښتيا منلې شوې، مراد نبی پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② طَاعِمِينَ: سره د خوراکونو، د لارې توښې سره (دا به انبياء کرام وی) ③ كَاسِينَ: اغوستونکی به وی کپړو لره، ④ تَسْحَبُهُمْ: راکاږی به هغوی (يعنی کافران)، ⑤ يَمْشُونَ: پيدل به روان وی (دا به عام مسلمانان وی) ⑥ الْآفَةَ: هلاکت، تباهی، ⑦ الظَّهْرِ: شا، ملا، مراد ترينه سورلی ده ⑧ الْحَدِيقَةُ: باغ، ⑨ ذَاتُ الْقَتَبِ: قتب وړې کيجاوې ته وائی يعنی اوښ.

**تسهيلات:**

**قوله:** حَتَّى إِنَّ الرَّجُلَ لَتَكُونُ لَهُ الْحَدِيقَةُ يُعْطِيهَا بِذَاتِ الْقَتَبِ لَا يَقْدِرُ عَلَيْهَا:

● **سورلو نشتوالې**: يعنی الله تعالی به په سورلوباندې آفت نازل کړی تردې چه يوسړې به خپل باغ هم خرج کړی مګر سورلی به نه ملاويږی.

[۱] اخرجه النسائي في السنن كتاب الجنائز باب البعث (رقم-۲۰۸۶)

# [۳] بَابُ الْحِسَابِ وَالْقِصَاصِ وَالْمِيزَانِ]

## دَ حساب، قصاص او د میزان بیان

**خلاصة الباب**

**فيه ستة عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① كيفية العرض والحساب: ۱، ۲، ۳، ۵، ۶، ۹، ۱۳.
② كيفية القصاص: ۴، ۱۲.
③ عفوالحساب عن بعض الناس: ۸، ۱۶.
④ التخفيف في الحساب على بعض الناس: ۱۴، ۱۵.
⑤ حال وزن الأعمال: ۱۰، ۱۱، ۱۲.

**قوله:** الْحِسَابِ:

**دحساب څخه مراد:** په دې عنوان کښې دَحساب نه مراد دَقيامت دَ ورځې دَ بنديګانو اعمال شميرل اوحساب کول دی.

**دحساب کولو ضرورت:** داخبره بالکل واضحه اوښکاره ده چه دَانسانانودَ اعمالو او کردار پوره پوره علم الله تعالى سره دې ليکن دَ قيامت په ورځ به دَ انسانانودَاعمالو اوافعالو حساب کتاب څکه کيږی چه دَ ظاهری اوقانونی عدالت لاندې په ټولو خلقو واضحه شی چه په دنياکښې چا څه کړی دی اوڅوك دَ کومې درجې دَسلوك حقداردې؟ په قيامت کښې داحساب کتاب کول دَ قرآن اوحديث نه ثابت دې اودَهرمسلمان دَ عقيدې حصه ده.

**قوله:** وَالْقِصَاصِ:

**دقصاص معنى او مراد:** قصاص دَ مساوات او برابرۍ په معنى کښې دې دې نه مراد دادی چه چا په دنياکښې څه هم کړی دی يا ئې چاسره څه ناروا سلوکړې دې په قيامت کښې به دَهغه دَ هغې بدله اخستې شی مثلاً قتل ئې کړې دې يائې څوك زخمی کړې دې يائې په چاظلم کړې دې يائې چاته څه تکليف رسولې دې نودَ هغه نه به بدله اخستې شی اوحق به حقدار ته ورکولې شی داقصاص دې.

**قوله:** وَالْمِيزَانِ:

**د ميزان لغوی معنى اومراد:** ميزان په لغت کښې تلې ته وائی دلته ترې مراد دا دې چه دَمحشرپه ميدان کښې به يوه لويه تله وی دکوم چه به دوه چابرې وی دَهغې په ذريعه به دَ انسانانو اعمال تللې شی که هغه ښه اعمال وی اوکه بد وی. بيا به دَهغې مطابق دَثواب اودَ عقاب قانون متوجه کيږی. په دې باب کښې به دَدې دريوارو عنواناتو متعلق احاديث بيانيږی.

**باب سره متعلقه ضروري عقائد:** ① په هر مسلمان باندې يو خودا عقيده ساتل لازميږي چه په قيامت كښې حساب كتاب شته.

② دَجهنم په شا باندې يو پل دې په كوم چه به ټول انسانان تيريږي دا پل دَ تورې دَ تيره مخ نه زيات تيره اودَ ويښته نه زيات نرې دې مگر دَ مؤمن دَپاره آسان دې.

③ ميدان محشر كښې يوه تله ده په كوم چه به اعمال تللې شي

**د معتزلو اومرجئوه ميزان څخه انكار:** معتزلو خوارجو او مرجئو دَدې ميزان نه انكار كړې دې هغوى وائي چه اعمال اعراض دى او اعراض قائم بالغير وى دَهغې جدا وجود نه وى لهذا دَاعمالو تلل فضول خبره ده هلته عدل او انصاف مراد دې تله مراد نه ده

**د معتزلو او مرجئو گمراهي:** قرآن او حديث كښې هم دَتلې ذكر دې دَدې نه انكار كول گمراهي ده باقي كه چرې اعمال اعراض دى نو الله تعالى دې ته وجود وركولې شي هغه به متجسد شي يا مراد دادې چه دَاعمالو والا به تللې شي لكه چه بعضې احاديثو كښې دى يا دَاعمال رجسترې به تللې شي لكه چه په حديث البطاقة كښې دى هسې دا دَ پخوانئي زمانې جوابونه دى.

**دجديدايجاداتو څخه د اعمال د وزن ثبوت:** نن صبا دكمپيوټر په دور كښې دا اعتراض دَ سرنه صحيح كيدې نه شي ځكه چه اوس خو اعراض تللې شي. دَ هرڅيز دَ ټول دَپاره جدا تله ده كوم چه دَ هغې مناسب دى. دَ تلې نه دلته څه دَ گړې تللو والا تله مراد نه ده كه چرې اعراض دى نو دَ هغې دَپاره دَټول خپله تله ده. گورئى دَ تهرماميټر په ذريعه تبه تللې شي نن صبا نظر تللې شي سماعت تللې شي. په بدن كښې دننه شوگر وغيره تللې شي په جهاز كښې داسې آلات دى په كوم سره چه ارتفاع او انخفاض تللې شي. دَمسافت نيزديوالي اولريوالي تللې شي. گرمي اويخني تللې شي كه چرې يو انسان دومره مخكښې تلې شي نو دَ الله تعالى دَپاره څه گران دى چه هغه اعراض اوتلي. خوارج او معتزله بې كاره قسم خلق تيرشوى دى اومرجئه خو دَ عمل خلق نه دې دَهغوى دَ ميزان او دَ اعمالو دَ وزن سره څه كار دې.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۵٤۹]آسان حساب او سخت حساب

۵۵۴۹-()[۱] ① عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② "«لَيْسَ أَحَدٌ يُحَاسَبُ

---

[۱]) اخرجه البخاري فى كتاب الرقاق/باب: من نوقش الحساب عذب (رقم-۶۵۳۶) ومسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب إثبات الحساب(رقم-۷۹ - (۲۸۷۶) والترمذي فى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲٤۲۶) واحمد فى المسند:۲۰۶/۶

يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا هَلَكَ". ۳ قُلْتُ: أَوَلَيْسَ يَقُولُ اللهُ: ﴿فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا﴾ [الانشقاق: ۸] ۴ فَقَالَ: «إِنَّمَا ذَلِكَ الْعَرْضُ، وَلَكِنْ مَنْ نُوقِشَ فِي الْحِسَابِ يَهْلِكْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ بي بي عائشه رضي الله عنها نه روايت دی د قيامت په ورځ چې د چا نه حساب واخستل شو هغه تباه شو [يعنی کوم سړی چې سخت حساب سره مخ شو د هغه ساتل ممکن نه دی دلته د تباه کيدو نه مراد په عذاب کې مبتلا کيدل دي] ۲ بي بي عائشه رضي الله عنها وايي اهر کله چې ما دحضور ﷺ ارشاد د يو کُليه په طور واوريدی نو څما په ذهن کې اشکال پيدا شو او د هغه اشکال لرې کولو د پاره] ۳ ما عرض وکړو چې آيا الله ﷻ د اهل نجات په حق کې دانه دي فرمايلي چې. فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا يعنی کوم سړي ته چې اعمال نامه په ښي لاس کې ورکول شوه نو نزدې ده چې د هغه حساب آسان شی او هر کله چې حساب آسانه شي نو د هغه د تباه کيدو څه معنٰی ده؟ ۴ حضور ﷺ [څما ددي اشکال لرې کولو د پاره] وفرمايل دا آسانه حساب صرف پيش کول او محض بيان دی، ليکن د چاسره چې حساب کې مناقشه وشي [يعنی چا نه چې سختي پوښتني اوشي] هغه يقيناً تباه سو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ① الْعَرْضُ: پيش کول، وړاندې کول. ② نُوقِشَ: سخت تپوسونه اوشی.

**تسهيلات:**

**قوله: لَيْسَ أَحَدٌ يُحَاسَبُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا هَلَكَ:**

**دمحسوب هلاکت:** په دي حديث کښې دی چه دکوم سړی نه دَقيامت په ورځ حساب واخستې شو هغه هلاك شو. دَدې حديث په اوريدو سره حضرت عائشې رضي الله عنها عرض اوکړو يارسول الله ﷺ! الله تعالى خو په قرآن کښې فرمائی ﴿فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا﴾ چه په قيامت کښې به حساب آسان وی اوتاسو فرمايئی چه دَچانه حساب واخستې شو هغه هلاك شو

**دعائشې رضی الله عنها د اشکال جواب:** دَدې په جواب کښې حضرت محمد ﷺ په حساب کښې فرق اوخودلو چه يوحساب دَعرض په درجه کښې دې او يوحساب دَ مناقشې په درجه کښې دې. عرض دادې چه مثلاً سړې دَ حساب دفترکښې حاضر شو اودَ سوال اوجواب نه بغير هغه رخصت کړې شو صرف په ظاهرى توګه باندې اوکتلې شو تالاشی اونه کړې شوه اومناقشه داده چه دَ يويوڅيزباره کښې فرښتې تپوسونه اوکړی چه دادې ولې کړې دې دادې څنګه کړې دې؟ کله دې کړې دې؟ په دې مناقشه کښې څوك دَ هلاکت نه بچ کيدې نه شی.

## [۵۵۵۰] د قیامت په ورځ به الله تعالی بغیر واسطه هر سړي سره هم کلام کیږي

۵۵۵۰-()[۲] ①وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا سَيُكَلِّمُهُ رَبُّهُ، ③لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ تُرْجُمَانٌ وَلَا حِجَابٌ يَحْجُبُهُ، ④فَيَنْظُرُ أَيْمَنَ مِنْهُ، فَلَا يَرَى إِلَّا مَا قَدَّمَ مِنْ عَمَلِهِ، وَيَنْظُرُ أَشْأَمَ مِنْهُ فَلَا يَرَى إِلَّا مَا قَدَّمَ، ⑤وَيَنْظُرُ بَيْنَ يَدَيْهِ فَلَا يَرَى إِلَّا النَّارَ تِلْقَاءَ وَجْهِهِ، فَاتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت عدی ابن حاتم رضی الله عنه وایي ②چې رسول الله ﷺ وفرمایل د قیامت په ورځ به په تاسو کې هیڅ سړی داسې نه وي چې هغه سره به د هغه پروردګار بغیر څه رابطي هم کلام نشی ③هغه وخت به د هغه او د پروردګار په منځ کې نه څوك ترجمان وي چې یو د بل په مفهوم پوه کړي او نه به څه حجاب وي (چې بنده د هغه د پروردګار نه پټ کړي) ④هر کله چې بنده خپل ښي طرف ته نظر واچوي نو هغه ته به هغه شی په نظر راشي کوم چې هغه مخکې لیږلی وي یعنی نیك اعمال چې ظاهري صورتونو کې به ښکاره شي او چې خپل چپ طرف ته وګوري نو هغه ته به خپل هغه بد اعمال ښکاره شي چې مخکې لیږلی وي ⑤خپل مخې ته به داور نه بغیر بل څه نه ویني ، تاسو د دوزخ نه ځان وساتی که څه هم په یوه ټکړه خرما سره وي . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ①أَيْمَنَ: ښی طرف. ②أَشْأَمَ: ګس طرف. ③شِقِّ: ټکړه، یوحصه

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حدیث د مضمون تشریح دې څخه وړاندې د مشکاة په حدیث نمبر (۵۵۳۹) کښې تیره شوې ده

## [۵۵۵۱] د قیامت په ورځ مؤمن باندې د الله تعالی مهربانی

۵۵۵۱-()[۳] ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②«إِنَّ اللَّهَ يُدْنِي الْمُؤْمِنَ فَيَضَعُ عَلَيْهِ كَنَفَهُ وَيَسْتُرُهُ، ③فَيَقُولُ: أَتَعْرِفُ ذَنْبَ كَذَا؟ أَتَعْرِفُ ذَنْبَ كَذَا؟ ④فَيَقُولُ: نَعَمْ أَيْ رَبِّ! حَتَّى قَرَّرَهُ بِذُنُوبِهِ، ⑤وَرَأَى فِي نَفْسِهِ أَنَّهُ قَدْ هَلَكَ. ⑥قَالَ: سَتَرْتُهَا عَلَيْكَ فِي الدُّنْيَا، وَأَنَا أَغْفِرُهَا لَكَ الْيَوْمَ، ⑦فَيُعْطَى كِتَابَ حَسَنَاتِهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وایي رسول الله ﷺ وفرمایل ②د قیامت په ورځ به

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب: من نوقش الحساب (رقم-۶۵۳۹) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب الحث علی الصدقة ولو بشق تمرة، أو کلمة طیبة وأنها حجاب من النار(رقم-۶۷ - (۱۰۱۶) والترمذی فی کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی القیامة (رقم-۲۴۱۵) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فیما أنکرت الجهمیة (رقم-۱۸۵) واحمد فی المسند: ۳۷۷/۴

[2] اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب قول الله تعالی: {ألا لعنة الله علی الظالمین} [هود: ۱۸] (رقم-۲۴۴۱) ومسلم فی کتاب التوبة/باب قبول توبة القاتل وإن کثر قتله (رقم-۵۲ - (۲۷۶۸) واحمد فی المسند: ۱۰۵/۲

الله ﷻ مؤمن خپل فضل وکرم او خپل رحمت ته نزدې کړي او بيا به هغه د خپل حفاظت او د خپل عنايت (مهرباني) سايې کې پټ کړي [چې هغه داهل محشرپه وړاند ي د خپلو ګناهونو او بد اعمالو ښکاره يدو په وجه شرمنده او رسوا نشي] [۳] بيا به الله ﷻ هغه مؤمن نه پوښتنه وکړي آيا ته دا ګناه پيژني آيا ته دا ګناه پيژني [يعنې آيا ته د دې اعتراف کوي چې تا په دنيا کې فلانی فلانی ګناه کړي وه] [۴] هغه مؤمن به عرض وکړي هو اې پروردګاره! ماته خپله ګناه ياده ده او زه د خپل بدعملي اعتراف اقرار کوم غرض دا چې الله به هغه مؤمن نه د هغه د ټولو ګناهونو اقرار واخلي [۵] او هغه مومن به په خپل زړه کې وايي چې د هغه ګناهونو په بدله کې اوس زه هلاك شوم اوس تباه شوم [۶] ليکن الله ﷻ به فرمايي چې ما په دنيا کې ستا د دې ګناهونو او عيبونو پرده پوشي کړي وه او نن هم ستا دا ګناهونه بخښم [۷] نو هغه مومن ته به د هغه د نيکيو اعمال نامه ورکول شي اود بدو اعمال نامه به يي کالعدم شي

**حل اللغات:-** ①يُدْنِي: نزدې به کړي، ②كَنَفَهُ: کنف د مرغئ وزرو ته وائی. دلته ترې حفاظت او مهرباني مراد ده.

> [۱] وَأَمَّا الْكُفَّارُ وَالْمُنَافِقُونَ [۲] فَيُنَادَى بِهِمْ عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ: ﴿هَؤُلَاءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى رَبِّهِمْ أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ﴾ [هود:۱۸]». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوهر چې کافر او منافق خلق دی نو هغوئ به د ټول مخلوق په مخکې طلب شي [۲] او په چغه به اوويل شي چې داهغه خلق دي چې دوئ دکفر او شرك په ذريعه خپل رب باندې بهتان تهمت تړلی وو پوهه شئ ظالمانو باندې د الله لعنت دی (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ اللَّهَ يُدْنِي الْمُؤْمِنَ فَيَضَعُ عَلَيْهِ كَنَفَهُ وَيَسْتُرُهُ:

**دقيامت په ورځ په بنده باندې د الله تعالى پرده اچول:** الله پاك به په خپل فضل اوکرم سره مؤمن خپل ځان ته رانيزدې کړی اودَ ګناهونو حساب اخستلو سره دَمحشر والو نه به مؤمن بنده پټ کړی چه چاته خبر اونه شی چه الله پاك دَ مؤمن بنده دَ ګناهونو څه حساب واخستلو اومؤمن بنده څه حساب ورکړو. دَدې نه معلومه شوه چه مؤمن بنده به دَخپلو ګناهونوفوری اقرار کوی هيڅ بهانه يا دروغ به نه وائی او کافران به دَ اقرار په ځائی انکار کوی. کما في القرآن ﴿وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ﴾

**دمؤمن د نيکوالو ښکاره کول:** دَدې حديث نه داهم معلومه شوه چه دَ مؤمن بنده دَ ګناهونو حساب به پټ وی خودَ مؤمن دَ نيکو حساب به ښکاره وی بلکه دَ نيکو اثر به دَ مؤمن په مخ باندې ښکاره وی. دَ اودس اندامونه به ئې پړقيږی خودَ بدکارو شکلونه به

دَبدو عملونو او غلطو عقيدو دَ وجې نه تك تور وى

**قوله: وَرَأَى فِي نَفْسِهِ أَنَّهُ قَدْ هَلَكَ:**

**دخپل ځان د هلاکت ګمان کول:** دَدې مطلب دادې چه مؤمن به په خپل زړه کښې سوچ كوى چاته به وائى نه په دې وجه په حديث کښې "في نفسه" اوفرمائيلې شو بهرحال الله پاك به فرمائى چه ما په دنيا کښې ستا په ګناهونو باندې پرده اچولې وه نن ستا ګناهونه معاف كوم

**[۵۵۵۲] د مسلمانانو دښمن به د هغوئ دپاره دوزخ نه د نجات سبب وى**

۵۵۵۲-()[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ دَفَعَ اللَّهُ إِلَى كُلِّ مُسْلِمٍ يَهُودِيًّا أَوْ نَصْرَانِيًّا، [۳] فَيَقُولُ هَذَا فِكَاكُكَ مِنَ النَّارِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوموسى ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هركله چې : قيامت ورځ راشي او خلقوته د ابدي نجات او عذاب فيصله واورول شي نو هغه وخت به الله ﷻ هرمسلمان سړي او ښځي ته يو يهودي يا يونصراني حواله كړي [۳] او ورته به وفرمايي چې داسړى ددوزخ نه ستا دخلاصون بدله ده يعنى د دوزخ د اور نه ستا نجات سبب دى يعنى دا ستا پرځاي په دوزخ كې اچوم . (مسلم)

**حل اللغات:** - ① دَفَعَ: وربه كړي، حواله به كړي، ② فِكَاكُكَ: ستا خلاصون .

**تسهيلات:**

**قوله: فَيَقُولُ هَذَا فِكَاكُكَ مِنَ النَّارِ:**

**مؤمن جنتى ته د كافر حواله كول:** په اصولي توګه باندې داسې ګڼړل پكاردى چه دهرانسان دپاره په جنت او دوزخ کښې يو يوسيټ داول نه مقرردې اوس چه كوم سړى كوم سيټ اوګټلو هغه به هغې ته ځى نودويم سيټ به پاتې شى اوس چه دابيللې شوې كوم سيټ پاتې شوې دې هغه به بل سړى ته وركولې شى مثلاً يو سړې مسلمان دې او نيك دې هغه دَ جنت سيټ اوګټلو نودَهغه دَ دوزخ سيټ به بل چاته وركولې شى يا مثلاً يو سړې كافر دې هندو عيسائى يهودى دې هغه دَ دوزخ سيټ اوګټلو نودَهغه دَ جنت والا سيټ به يو مسلمان ته وركولې شى

دَ قرآن آيت ﴿وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا﴾ [سورت الزخرف: ۸۲] کښې چه دكوم ميراث طرف ته مفسرينو اشاره كړې ده دَدې په مصداق کښې دَ سيټونو دَدې بدلون ذكرهم كړې دې زيربحث حديث کښې دَ نبى كريم ﷺ دَ فرمان مطلب دا شوچه يو مسلمان ته به يو يهودى

---

[۱] ) اخرجه مسلم فى كتاب التوبة/باب قبول توبة القاتل وإن كثر قتله (رقم-۴۹ - (۲۷۶۷)وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب صفة أمة محمد صلى الله عليه وسلم (رقم-۴۲۸۵)

يا عيسائي وركولې شي اومسلمان ته به اوونيلې شي چه دَ دوزخ دَ سيځ نه ستادَ خلاصي ذريعه او سبب اوبدله داكافردې اوس ته جنت كښې دَ ده بيللې شوى سيځ ته ورشه اودې به په دوزخ كښې ستا بيللې شوى سيځ ته لاړشي لهذا ته دَخپل ځان په ځاني دې دوزخ طرف ته ورروان كړه دا سرې دَ دوزخ دَ اور نه ستادَ خلاصي سبب دې

**ديواشكال ازاله:** دَدې حديث دامطلب هيڅ كله نه دې چه دَمسلمانانو په بدله كښې به يهود او نصارىٰ دوزخ كښې اچولې شي ځكه چه په قرآن پاك كښې واضح حكم دې ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرٰى﴾[سورت فاطر:١٨] چه دَ چابوج به په بل باندې نه شي اچولې داخو دَ روافض عقيده ده چه دَهغوى گناه به په قيامت كښې دَ سنيانو په اوږوباندې اچولې شي اودَ يهودو عقيده ده چه هغوى به يو څو ورځې دوزخ ته ورځي بيا به دَهغوى په ځائې به دوزخ كښې مسلمانان اچولې شي اوداخودَ عيسايانو غلطه عقيده ده چه دَهغوى ټول گناهونه دَ اول نه معاف شوى دى ځكه چه دَهغوى كفاره حضرت عيسىٰ ﷺ اداكړه او په سولئي اوختلو دلته داخبره په ذهن كښې ساتل پكاردى چه دَ يهود اونصارىٰ تذكره دَ نمونې په توگه اودَ شهرت په توگه ده دامعامله به دَ ټولو كافرانو سره پيښيږي

## [۵۵۵۲] امت محمديه د نوح عليه السلام په قوم با ندې ګواه جوړشي

----(¹)[۵] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۳] «يُجَاءُ بِنُوحٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [۴] فَيُقَالُ لَهُ: هَلْ بَلَّغْتَ؟ [۵] فَيَقُولُ: نَعَمْ يَا رَبِّ! [۶] فَتُسْأَلُ أُمَّتُهُ: هَلْ بَلَّغَكُمْ؟ فَيَقُولُونَ: مَا جَاءَنَا مِنْ نَذِيرٍ. [۷] فَيُقَالُ: مَنْ شُهُودُكَ؟ [۸] فَيَقُولُ: مُحَمَّدٌ وَأُمَّتُهُ، [۹] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " فَيُجَاءُ بِكُمْ فَتَشْهَدُونَ أَنَّهُ قَدْ بَلَّغَ "

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۳] د قيامت په ورځ به په ميدان حشر كې حضرت نوح ﷺ راوستل شي [۴] او هغوىٔ نه به پوښتنه وشي آيا تا خپل امت ته د الله ﷻ ددين احكام وهدايت رسولى وو [۵] هغه به عرض وكړو بيشكه اې پروردګاره ما ستاددين احكام وهدايت د خپل امت خلقوته رسولى وو [۶] بيابه د حضرت نوح ﷺ د امت د هغه خلقو نه چې هغوىٔ ته حضرت نوح ﷺ د الله ﷻ ددين احكام وهدايت رسولى وو پوښتنه وشي آيا نوح تاسو ته زمونږ احكام رسولي وه هغه خلق به انكار وكړي او وايي به چې مونږ ته خو هيڅ بيرونكي كه هغه نوح وي يا بل څوك نبي نه وو راغلى [۷] او بيا به د حضرت نوح ﷺ نه پوښتنه وشي چې ستا ګواه څوك دى يعنى كه څه هم الله ﷻ ښه پيژني چې نوح ﷺ چې څه ويلي دي بالكل درست يي ويلي

¹) اخرجه البخاري في كتاب احاديث الأنبياء /باب قول الله تعالى: {إنا أرسلنا نوحًا إلى قومه أن أنذر قومک من قبل أن يأتيهم عذاب اليم} [نوح: ۱]...... (رقم-۳۳۳۹)

دي ليکن د هغه منکر امت قائل کولو دپاره به حضرت نوح عليه السلام نه د هغه په دي دعوی شاهد طلب شي چې هغوئ د منصب تبليغ د رسالت ذمه واري پوره کړي ده او که نه [۸] نو حضرت نوح به وايي چې ځما شاهد حضرت محمد ﷺ او د هغوئ د امت خلق دي [۹] دي نه وروسته رسول الله ﷺ صحابه ته وفرمايل بيا به تاسو پيش شئ او تاسو به دا شاهدي ورکوئ چه نوح عليه السلام خپل دعوت رسولي وؤ او دا به دحضور ﷺ د تعظيم وتوقير دا ظهار دپاره وی ، او هسی دا هم بعيده (ليری خبره) نه ده چی خپله حضور ﷺ هم د نوح عليه السلام شاهدی وکړی ځکه چی هغه وخت او ځاي به داسی وی ، چيری چی د زيات نه زيات مدد او نصرت رسولو ضرورت به وی رسول کريم ﷺ صحابه ؤ ته وفرمايل چی بيا به تاسو پيش کړل شی . د دې الفاظو اسلوب بيان ښيی چی هغه وخت هرکله چی دربار الٰهی کی دخلقو دټولو نه لويه پيشی وی حضور ﷺ به هلته حاضر وی . يعنی حضور ﷺ به د پوره کار وايی په دوران کی موجود وی ، او شاهد به وی . هرکله چی د انبياء او رسولانو پيشی وی . تو د ټولو نه به مخکی حضرت نوح عليه السلام پيش کړل شی . او بيا د هغه شاهدان يعنی دامت محمدی خلق به را وستل شی ، او تاسی به دا شاهدی ورکوی الخ . يعنی دحضرت نوح عليه السلام دوينا مطابق تاسو به دهغوی شاهدی ورکوی . او ستاسو نبی به ستاسی مزکی (پاکونکی) وی يادا چی تاسی به شاهدی ورکوی او ستاسو سره نبی به هم شاهدی ورکوی .

> [۱] ثُمَّ قَرَأَ رَسُولُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا﴾ [البقرة: ۱۴۳]». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**توجمه:** [۱] په دی آيت کريمه وكذلك جعلنكم امة وسطًا الاية کی چی دا فرمايل شوي دي چی مسلمانان به دقيامت په ورځ دتيرو امتونو په باره کی شاهدی ورکوی او د هغه مسلمانانو شاهدی به دهغوی پيغمبر ﷺ ورکوی ، دهغه تيرو خلقو په باره کی دمسلمانانو دشاهدی مثال خو داسی دی . چی هغه مسلمانان به دحضرت نوح عليه السلام په باره کی شاهدی ورکوی . چی هغوی دخپل امت خلقو ته دالله احکام رسولی وو او دهغه مسلمانانو په باره کی دهغوی دپيغمبر ﷺ دطرف نه دشاهدی صورت به دا وی لکه چی په يو حديث کی فرمايلی شوي دي هر کله چی دقيامت په ورځ دتير انبياؤ او رسولانو امتونه انکا کولو سره وايی چی مونږ ته هيڅ نبی څه نه دی را رسولی ، او مونږ ته يی دالله احکام نه دی خو دلی ، نو هغه رسولان او انبياء به دامت محمدی خلق خپل شاهد جوړ کړی او هر کله چی مسلمانان دهغوی شاهدی ورکړی ، نو دهغوی نه به پوښتنه وسی چی تاسو خلق خو هغه امتونو نه وروسته دنياته راغلی وئ ، نو تاسی ته څرنګه

معلومه شوه چې هغه انبياء دخپل امت خلقو ته دالله احکام رسولي وو ، او تاسو دا شاهدي په کومه بناء ورکوی ، نو هغه مسلمانان به جواب ورکړی چې په دی سلسله چې د حضرت نوح عليه السلام امت ته احکام خداوندي رسولي وه بيا رسول الله ﷺ د دې صورت واقعه د تصديق او تشويب د پاره دا آيت اووئيلو چې په هغه کې حق تعالی امت محمدي ته خطاب کولو سره فرمايي چې: وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا. او هم دارنګه مونږ (اې مسلمانانو) تاسو نيك او عادل او افضل امت جوړ کړي يي چې تاسو د هغه خلقو په باره کې چې ستاسو نه مخکې تير شوی دي او کفر وشرك باندې قائم وو ګواهي ورکړي او ستاسو شاهد به پيغمبر ﷺ وي دا روايت بخاري نقل کړی دی .

**تسهيلات:**

**قوله: فَيُجَاءُ بِكُمْ فَتَشْهَدُونَ أَنَّهُ قَدْ بَلَّغَ":**

**د نوح عليه السلام په دعوت رسولو د امت محمدی ګواهی:** دَدې حديث خلاصه داده چه دَقيامت په ورځ به دَحضرت نوح عليه السلام قوم اووائي چه نوح عليه السلام مونږ ته دعوت نه دې راکړې. الله تعالی به دَحضرت نوح عليه السلام نه تپوس اوکړی نوحضرت نوح عليه السلام به اوفرمائی چه ما خو اوږد دعوت ورکړې دې الله تعالی به اوفرمائی ستا ګواه څوك دې هغه به اوفرمائی دَمحمد ﷺ امت ګواه دې. کله چه دا امت ګواهی ورکړی نوقوم نوح عليه السلام به جرح اوکړی چه دا خلق خو زر کاله پس راغلی دی دوی ته څنګه معلومه ده اودوی څنګه ګواهی ورکوی؟ کله چه الله تعالی دَ هغوی نه تپوس اوکړی نوامت مرحومه به جواب ورکړی چه مونږ په قرآن کنبې وئيلی دی کوم چه ربنتونې کتاب دې. په دې به نبی مکرم ﷺ راشی او دَ خپل امت تزکيه به اوکړی چه دوی ربنتيا وئيلی دی نودا امت به په ټوله دنيا باندې ګواه شی اومحمد ﷺ به په خپل امت باندې ګواه جوړيږی

**[۵۵۵٤] دَقيامت په ورځ به دَخپل بدن اندامونه ګواهی ورکوی**

٥٥٥٤ - ()[٢] [١] «وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَضَحِكَ، [٣] فَقَالَ: (هَلْ تَدْرُونَ مِمَّا أَضْحَكُ)؟ [٤] قَالَ: قُلْنَا: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [٥] قَالَ: (مِنْ مُخَاطَبَةِ الْعَبْدِ رَبَّهُ، [٦] يَقُولُ يَا رَبِّ! أَلَمْ تُجِرْنِي مِنَ الظُّلْمِ)؟ [٧] قَالَ: يَقُولُ: بَلَى. [٨] قَالَ: (فَيَقُولُ فَإِنِّي لَا أُجِيزُ عَلَى نَفْسِي إِلَّا شَاهِدًا مِنِّي).

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضی الله عنه وايي [٢] يوه ورځ مونږ درسول الله ﷺ سره ناست وو اچانك رسول الله ﷺ په خنداسو [٣] بيا يې وفرمايل آيا تاسو پوهيږئ چې زه ولې خاندم

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق (رقم-١٧ - (٢٩٦٩))

۴حضرت انس ﷺ وايي مونږ اوويل الله او د هغه رسول ښه پوهيږي ۵حضور ﷺ وفرمايل زه د قيامت په ورځ د بنده او الله په منځ کې مخ په مخ گفتگو خيال کولو سره خاندم ۶هغه ورځ به بنده وايي اې پروردگاره! آيا تا ماته د ظلم نه پناه نه وه راکړي يعنى آيا تا دانه دى فرمايلى چې زه خپل بنده گانو باندې ذره برابر هم ظلم نه کوم ۷حضور ﷺ وفرمايل په دې اوريدو سره الله ﷻ به فرمايي هو تاته ما پناه درکړې ده او زه يقيناً بنده گانو باندې ظلم نه کوم رسول الله ﷺ وفرمائيل بيا به بنده وايي که تا ماته دظلم نه پناه راکړې ده نو زه د خپل ځان متعلق دې نه علاوه نور هيڅ نه منم چې ځما په باره کې شاهدي ورکونکى ځما نه وي

**حل اللغات:**- ①أَلَمْ تُجِرْنِي: آيا تا څه دَظلم نه محفوظ اومامون کړې نه يم؟ ②أُجِيزُ: اجازت ورکوم زه،

۱قَالَ: فَيَقُولُ: ۲(كَفَى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ شَهِيدًا وَبِالْكِرَامِ الْكَاتِبِينَ شُهُودًا). ۳قَالَ: (فَيُخْتَمُ عَلَى فِيهِ، فَيُقَالُ لِأَرْكَانِهِ: انْطِقِي)۴قَالَ: فَتَنْطِقُ بِأَعْمَالِهِ ثُمَّ يُخَلَّى بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْكَلَامِ ۵قَالَ: فَيَقُولُ: بُعْدًا لَكُنَّ وَسُحْقًا، فَعَنْكُنَّ كُنْتُ أُنَاضِلُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱حضور ﷺ وفرمايل د بنده په دې خبرې اوريدو سره الله ﷻ به فرمايي ماته په دې اعتراض نشته ۲نن ورځ ستا په باره کې خپله ستا ذات به گواهي ورکړي ۳حضور ﷺ وفرمايل بيا د بنده په خوله به مهر ولگول شي يعنى د هغه قوت گويائي به معطل شي او دې نه وروسته به د هغه ټول اعضاء جسم ته حکم ورکول شي چې اووائي نو د هغه د جسم اعضاء به د هغه هغه اعمال بيان کړي چې هغه د هغه اعضاء په ذريعه کړى وو بيا به د هغه بنده او دهغه د گويائي د منځ نه پرده پورته شي يعنى د هغه په خوله چې مهر لگول شوى وو هغه به مات شي او د هغه قوت گويائي به بحال شي چې هغه سره به د مخکې په شان خبرې کول شروع کړي حضور ﷺ وفرمايل بنده به دې صورت حال ليدو سره د خپل جسم اعضاوو ته به وايي لرې شئ بدبختو او هلاك شئ ما خو ستاسو د طرف نه او ستاسو د نجات خلاصون د پاره جگړه کوله . (مسلم)

**حل اللغات:**-③الْكِرَامِ الْكَاتِبِينَ: عزت منديې ليکونکې فرښتې، ④يُخْتَمُ: مُهر به اولگولې شي، ⑤أَرْكَانِ: اندامونه، ⑥انْطِقِي: خبرې اوکړه، ⑦بُعْدًا: لرې شئ، ⑧سُحْقًا: هلاک شئ، ⑨أُنَاضِلُ: جگړه مې کوله، منديې ترړې مې وهلې

**تسهيلات:**

**قوله:** يَقُولُ يَارَبِّ! أَلَمْ تُجِرْنِي مِنَ الظُّلْمِ:

**دبنده دالله په دربار کښې درخواست:** يعنى ولې تاڅه دَظلم نه دې ويناسره محفوظ اومامون کړې نه يم چه ﴿وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ أَحَدًا﴾ [سورت الکهف،۴۹] که چرې په ماباندې ظلم نه

دی کول نونن زما پـه حساب کتاب کښې دَمکمل گواهئ ضرورت دې چه پـه عدالت کښې عدل وی

**قوله: فَيَقُولُ فَإِنِّي لَا أُجِيزُ عَلَى نَفْسِي إِلَّا شَاهِدًا مِنِّي:**

**دخپل بدنې گواه مطالبه کول:** یعنی عدل او انصاف به کیږی تاته یقینًا مونږ پناه درکړې ده مګر دا اوښایه چه ستا پـه حساب کتاب کښې نقصان څه دې؟ هغه بـه وائی چه ستا فرښتو زما خلاف لیکلی دی دَ هغوی پـه تیار کړې شوی رپورټ باندې زما یقین نشته څه داسې گواه پکاردې چه هم زما دَ بدن نه اوچت شی او گواهی ورکړی

**قوله: فَتَنْطِقُ بِأَعْمَالِهِ ثُمَّ يُخَلَّى بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْكَلَامِ:**

**پـه دخپلو اندامونو گواهی ورکول:** یعنی کله چه اندامونه دَهغه خلاف گواهی ورکړی نو بیا بـه دغه بنده تـه دَ خپلو اندامونو سره دَخبرو اترو کولو موقع ورکړې شی او دَدې سری او دَ هغه دکلام دَ مینځ نه به بندش اوچت کړې شی نو هغه به خبرې شروع کړی.

**قوله: فَيَقُولُ: بُعْدًا لَكُنَّ وَسُحْقًا، فَعَنْكُنَّ كُنْتُ أُنَاضِلُ:**

**دبنده خپلو اندامونوته خیرې کول:** یعنی دا سړې بـه خپلو اندامونو تـه اووائی چه پـه تاسو دې هلاکت او لعنت وی داتولې مندې تړې خوما هم ستاسو دَپاره کولې او تاسو زما خلاف گواهی ورکړه . شرم او کړئ چرته دوب شئ مره شئ.

**[۵۵۵۵] دَ اندامونو دَ گواهئ ورکولو متعلق یوه واقعه**

| ۵۵۵۵-()[۴] [۱] «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! هَلْ نَرَى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ [۳] قَالَ: هَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ فِي الظَّهِيرَةِ لَيْسَتْ فِي سَحَابَةٍ؟ [۴] قَالُوا: لَا، قَالَ: فَهَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ لَيْسَتْ فِي سَحَابَةٍ؟ قَالُوا: لَا. قَالَ: فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ رَبِّكُمْ إِلَّا كَمَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ أَحَدِهِمَا. |
|---|

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وايي [۲] یوه ورځ صحابه ﷺ عرض وکړو یارسول الله! آیا د قیامت پـه ورځ بـه مونږ د خپل الله دیدار کوو [۳] حضور ﷺ وفرمایل آیا د غرمي وخت هرکله چې وریځ نه وي تاسو د نمر پـه لیدو کې څه شك کوئ [۴] هغوئ اوویل هیڅ کله نه حضور ﷺ ورته وفرمایل نو آیا څوار لسمي شپه کې هرکله چې ورځ نه وي تاسو سپوږمی پـه لیدو کې څه شك کوئ هغوئ اوویل هیڅ کله نه حضور ﷺ وفرمایل نو قسم دی پـه هغه ذات چې د هغـه د قدرت پـه لاس کې ځما ساه ده څرنګه چې تاسو نمر او سپوږمی پـه لیدو کې څه شك شبهه نه کوئ دغه شان به د قیامت پـه ورځ د خپل پروردګار پـه لیدو کې څه شك شبهه نه کوئ

[۱]) والترمذی فی کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی سوق الجنة (رقم-۲۵۴۹)وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فیما أنکرت الجهمیة (رقم-۱۷۷) واحمد فی المسند:۱۶/۳

**حل اللغات** – ① تُضَارُّونَ: د باب مفاعله صيغه ده كوم چه د ضرر په معنى كښې دى. ② تُغْبَنُوْ: غرمه. ③ سَحَابَةٌ: وريځ.

[١] قَالَ: فَيَلْقَى الْعَبْدَ فَيَقُولُ: [٢] أَيْ فُلْ: أَلَمْ أُكْرِمْكَ وَأُسَوِّدْكَ وَأُزَوِّجْكَ، [٣] وَأُسَخِّرْ لَكَ الْخَيْلَ وَالْإِبِلَ، وَأَذَرْكَ تَرْأَسُ وَتَرْبَعُ؟ [٤] فَيَقُولُ: بَلَى. قَالَ: فَيَقُولُ: أَفَظَنَنْتَ أَنَّكَ مُلَاقِيَّ؟ [٥] فَيَقُولُ لَا. فَيَقُولُ: فَإِنِّي قَدْ أَنْسَاكَ كَمَا نَسِيتَنِي. [٦] ثُمَّ يَلْقَى الثَّانِيَ فَذَكَرَ مِثْلَهُ، [٧] ثُمَّ يَلْقَى الثَّالِثَ فَيَقُولُ لَهُ مِثْلَ ذٰلِكَ، [٨] فَيَقُولُ: يَا رَبِّ! آمَنْتُ بِكَ، وَبِكِتَابِكَ وَبِرُسُلِكَ، وَصَلَّيْتُ وَصُمْتُ، وَتَصَدَّقْتُ، وَيُثْنِي بِخَيْرٍ مَا اسْتَطَاعَ، [٩] يَقُولُ: هَاهُنَا إِذًا، ثُمَّ يُقَالُ: اَلْآنَ نَبْعَثُ شَاهِدًا عَلَيْكَ،

**ترجمه:** [١] بيا رسول الله ﷺ وفرمايل هركله چې بندګان خپل پروردګار وينى نو الله ﷻ به يو بنده ته خطاب كولو سره وفرمايي [٢] اې بنده! آيا ما تاته پرجنس حيواناتو او نورو مخلوقاتو باندې فضيلت او شرف نه وو دركړى آيا ماتاته ستا ښځه نه وه دركړې چې ما ستا د جنس او ستا د نوع نه پيدا كړې وه او بيا ستا او د هغه په منځ كې مې د انس ومحبت او مينې رشته نه وه قائمه كړې [٣] او آيا ما ستا د پاره آسونه او اوښان او نور پكاررا تلونكي حيوانان او څيزونه ستا فرمانبردار كړى نه وو او آيا ماتاته داموقع نه وه نصيب كړې چې ته د خپل قوم سرېراه او سردارشې او څلورمه حصه مال وغنيمت حاصل كړې واضحه دې وي چې دا په زمانه جاهليت كې هم رواج وو چې د يوقوم او قبيلې سرېراه به حاصليدونكى مالِ غنيمت نه ځان د پاره څلورمه حصه هم آخسته او باقي مال به يې پوره قوم د پاره پريښودې وى [٤] هغه بنده به په دې اوريدو سره عرض وكړو اې خما پروردګاره! بيشكه دغه شان شوې وه يعنى تاچې د خپل كوم انعاماتو ذكر وفرمايه دې نه وروسته به پروردګار فرمايي آيا تاته داهم خيال وو چې يوه ورځ به ته ما سره يوځاى كېږې [٥] بنده به عرض وكړي نا ماته دا خيال نه وو شوى او زه دغه شان په غفلت كې پروت وم داخبره مې هيره وه نو پروردګار به ورته فرمايي نو زه دې هم اوس هيروم يعنى نن زه هم تا د خپل رحمت نه لرې كوم څرنګه چې تا په دنيا كې خما اطاعت او خما ياد ذكر هم هير كړى وو [٦] بيابه پروردګار دويم بنده سره ملاقات او خطاب وفرمايي دې نه وروسته حضور ﷺ د الله ﷻ او بنده په منځ كې د هغه سوال وجواب ذكر وكى كوم چې د مخكني بنده په سلسله كې نقل شو [٧] بيابه پروردګار دريم بنده سره ملاقات او خطاب وفرمايي او هغه ته به هغه وفرمايي كوم چې مخكې بنده ته يې فرمايلى وو [٨] او هغه دريم بنده به دا جواب وركړي اې خما پروردګاره ما په تا ستا په كتاب ستا په پيغمبرانو ايمان راوړى وو ما مونځ كوى روژې مې نيولې او صدقه يعنى زكوة مې اداكوى او دغه شان څومره چې كيدى شي هغه به د خپلو نيكيو په باره كې تعريف او توصيف بيان كړي الله ﷻ به د هغه ټولې خبرې اوريدو سره وفرمايي ته دلته حصار شه

اوس ستا په باره کې گواه پیدا کوو یعنی تا چې د خپلو نیکیو په باره کې کومه دعوی کړي ده او د هغه ثابتوولو کوشش دي کړی دی چې تا زمونږ د نعمتونو شکر گذاري کې خپل دنیاوي ژوند د اعمال خیر نه ډك کړی وو نو لږ صبر وکړه مونږ د شاهدانو په ذریعه اوس درته ښایو چې ته خپله دعوی کې ترکومه ځایه رښتنی یې

**حل اللغات:** -⑫أَيْ فُلْ: اې فلانی سړیه ⑬أُسَوِّدْكَ: سرداری مې درکړې وه، فضیلت او شرف مې درکړې وو. ⑭أُسَخِّرْ: تابع کړی مې وو، ⑮وَأَذَرْكَ: ما ته پریخودې وې، ⑯تَرْأَسُ: تا سرداری کوله. ⑰وَتَرْبَعُ: څلورمه حصه مال به دې د ټیکس په توګه اخستلو (داد عربود سردارانو دستور وو)

|  |
|---|
| [۱] وَيَتَفَكَّرُ فِي نَفْسِهِ: مَنْ ذَا الَّذِي يَشْهَدُ عَلَيَّ؟ [۲] فَيُخْتَمُ عَلَى فِيهِ وَيُقَالُ لِفَخِذِهِ: انْطِقِي، فَتَنْطِقُ فَخِذُهُ وَلَحْمُهُ وَعِظَامُهُ بِعَمَلِهِ، [۳] وَذَلِكَ لِيُعْذِرَ مِنْ نَفْسِهِ، [۴] وَذَلِكَ الْمُنَافِقُ، وَذَلِكَ الَّذِي سَخِطَ اللَّهُ عَلَيْهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [۵] وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ (يَدْخُلُ مِنْ أُمَّتِي الْجَنَّةَ) فِي (بَابِ التَّوَكُّلِ) بِرِوَايَةِ عَبَّاسٍ |

**ترجمه:** [۱] بنده به په دې اوریدو سره په خپل زړه کې سوچ کوي چې دا وخت به څما خلاف څوك شاهدي ورکړي [۲] لیکن د هغه په خوله به مهر ولګول شي او د هغه ورون (ران) ته به اوویل شي چې ګویا شه نو د هغه ورون د هغه غوښه او هډوکي یعنی د ورون تولې حصې به د هغه د هغه اعمالو په باره کې چې هغه په دنیا کې واقعه کړي وي بیان وکړي [۳] او دا تول هرڅه یعنی مذکوره سوال وجواب د بنده په خوله مهر لګول او د هغه د اعضاء په ذریعه شاهدي ورکول به څکه وي چې د بنده بد اعمالې ثابتې شي او هغه څه عذر ونه کړشي یا دا معنی ده چې داهرڅه به څکه وي چې الله ﷻ خپله دحساب معامله یعنی هغه بنده په عذاب کې د مبتلا کولو ذمه واري په هغه ورواچوي [۴] او دا دریم بنده چې د خپلو نیکیو په باره کې به دعوی کوي لیکن خپله هغه اعضاء جسم به د هغه د دعوي تردید کوي درحقیقت منافق به وي او دا هغه بنده دی چې حق تعالی به تری نه ناراض وي. (مسلم) [۵] او د حضرت ابوهریره ﷺ روایت یدخل من امتی الجنة د حضرت ابن عباس ﷺ په روایت سره د توکل په باب کې ذکر شوي دي.

**حل اللغات:** - ⑱يُخْتَمُ: مُهر به اولګی.

**تسهیلات:**

**قوله:** هَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ فِي الظَّهِيرَةِ لَيْسَتْ فِي سَحَابَةٍ:

**دالله تعالی په دیدار کښې عدم مزاحمت:** یعنی دَ نمر اوسپوږمئی په کتلو کښې تاسو ته دَ یو بل نه څه تکلیف دررسیږي؟ که چرې تکلیف نه دررسی نو بیا دَ الله تعالی په دیدار کښې به هم څه تکلیف نه دررسی. په یوروایت کښې دَتضامون الفاظ دی هغه دَ ګنړې او دَرش په معنی کښې دي مراد هم دغه ضرر اوتکلیف دي

**د بعضې جملو وضاحت:**

① هَا أَنَا: یعنې تاچه دا دومره نیک اعمال شمیرلی دی اوس لږ شان دیخوا اودریږه دې دپاره چه تاته د خپلې دعوې پته اولګی

② لِيُعْذِرَ: دباب افعال نه دې همزه د سلب ماخذ دپاره ده. "اي ليزيل الله عذره من قبل نفسه" یعنی ټول ګناهونه دهغه خپلو اندامونو اوشمیرل په کوم سره چه د هغه سرې عذر ختم شو. اوهم دا الله تعالی غوښتل څکه چه دا سړې کامل منافق وو

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۵۵٦] دامت محمدیه دیر زیات خلق به بغیرد حساب کتاب نه جنت ته ځی**

۵۵۵٦-(¹)[۸] [۱] عَنْ أَبِي أُمَامَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [۲] "«وَعَدَنِي رَبِّي أَنْ يُدْخِلَ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي سَبْعِينَ أَلْفًا لَا حِسَابَ عَلَيْهِمْ وَلَا عَذَابَ، [۳] مَعَ كُلِّ أَلْفٍ سَبْعُونَ أَلْفًا، [۴] وَثَلَاثُ حَثَيَاتٍ مِنْ حَثَيَاتِ رَبِّي»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو امامه رضی الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل [۲] څما پروردګار ما سره وعده کړي ده چې هغه به څما د امت نه اویازره خلق د حساب او عذاب نه بغیر په جنت کې داخل کړي [۳] او دهغه اویازرو نه به دهر زرو سره مزید اویا زره [۴] او څما د پروردګار د چونګولپو نه دري لپي دکولو سره خلق به جنت ته ځي. (احمد ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① حَثَيَاتٍ: حثية لپه دکولو سره ورکول.

**تسهیلات:**

**قوله: وَثَلَاثُ حَثَيَاتٍ مِنْ حَثَيَاتِ رَبِّي:**

**دالله تعالی د درې لپوپه برابری دامت محمدی جنت ته داخلیدل:** یعنی الله تعالی به درې لپې دکې کړی او نوربه ورکړی کله چه د یوڅیز شمیر معلومول ګران شی نوهغه په لپوسره بیانولې شی. دلته لویه مبالغه ده څکه چه لپې به هم د الله تعالی وی مایلیق بشانه تعالی

**[۵۵۵۷] د قیامت په ورځ به د الله تعالی په مخکښې درې ځله پیشیانی وی**

۵۵۵۷-(²)[۹] [۱] وَعَنِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«يُعْرَضُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَلَاثَ عَرَضَاتٍ: [۳] فَأَمَّا عَرْضَتَانِ فَجِدَالٌ وَمَعَاذِيرُ، [۴] وَأَمَّا الْعَرْضَةُ الثَّالِثَةُ فَعِنْدَ

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲٤۳۷) وابن ماجه فی كتاب الجهاد/باب السلاح (رقم-۲۸۰۷) واحمد فی المسند: ۲٦۸/۵

[2] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی العرض (رقم-۲٤۲۵) وابن ماجه فی كتاب الزهد/باب ذكر البعث (رقم-٤۲۷۷) واحمد فی المسند: ٤۱٤/٤

ذٰلِكَ تَطِيرُ الصُّحُفُ فِي الْأَيْدِي، [٥] فَآخِذٌ بِيَمِينِهِ، وَآخِذٌ بِشِمَالِهِ» ". [٦] رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: لَا يَصِحُّ هٰذَا الْحَدِيثُ مِنْ قِبَلِ أَنَّ الْحَسَنَ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت حسن بصري رحمه الله د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كوي هغوئ اوويل [٢] رسول الله ﷺ وفرمايل د قيامت په ورځ به خلق د الله په مخكښې درې ځله پيش كول كيږي [٣] او دوه ځله خوبه بحث وجرح او عذر آرائي وي [٤] او هركله چې په دريم ځل پيش شي نو هغه وخت به د حساب كتاب او پوښتني مرحله ختمه شوي وي ځكه اعمال نامي به الوتو آلوتو سره د خلقو لاسونو ته ورشي [٥] نو په هغوئ كې به تري نه خلق چې اهل سعادت او خوش نصيب وي په خپل ښي لاسونو كي به اعمال نامي واخلي او څه خلق چې اهل شقاوت او بدبخت وي خپل چپ لاسونو كې به اعمال نامي اخلي [٦] دا روايت امام احمد رحمه الله او ترمذي نقل كړى دي. او ترمذي رحمه الله ويلي دي دا روايت دي اعتبار نه صحيح نه دى چې دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه دحضرت حسن بصري رحمه الله سماع اوريدل ثابت نه دي

**حل اللغات:** - ① عَرَضَاتٍ: د عرض جمع ده پيشى كيدل، ② جِدَالٌ: جهګړې. ③ مَعَاذِيرُ: د مَعْذِرَةٌ جمع ده، صفائى پيش كول، ④ تَطِيرُ: الوځى به، ⑤ الصُّحُفُ: عمل نامې.

٥٥٥٨-() [١] وَقَدْ رَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي مُوسَى.

**ترجمه:** [١] او بعضي محدثينو دا روايت د حضرت حسن بصري رضي الله عنه نه او هغوئ د حضرت ابوموسى اشعري رحمه الله نه نقل كړى دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَمَّا عَرْضَتَانِ فَجِدَالٌ وَمَعَاذِيرُ،

**په اوله پيشى د ګناهونو څخه انكار:** دَ قيامت په ورځ به خلق دَ الله تعالى په وړاندې درې ځل پيش كولې شي. په اول ځل چه پيش كيږى نوهغه وخت به دَ خپلو ګناهونو اقرار اواعتراف نه كوي چه مونږ ته هډو چاوئيلى نه دى چه په كومه طريقه به ژوند تيرول وى كوم كار صحيح دې اوكوم كار غلط ستا ځوك نبى، قاصد او نمائنده مونږ له نه دې راغلې نو مونږ چه كوم عمل كړې هغه مو صحيح كړې دې غلط مونه دې كړې. حديث كښې لفظ جدال نه هم دغه مراددې

**د اولې پيشى په آخر كښې عذرونه پيش كول:** چه كله الله تعالى په مختلفو دلائلوطريقو اوګواهانو دا ثابت كړى چه هغوى له دَ الله تعالى پيغام راوړلوسره رسول راغلې وو هغه دوى پوهه كړې وو ولې خلقو يادَهغه خبره قبوله نه كړه اويائى په صحيح طريقه سره په هغې باندې عمل اونه كړو. په دې وجه چه په دويم ځل پيش شى نو دَ خپلو غلطو او بدعملو اعتراف به كوى.

---

[١] اخرجه احمد فى المسند: ٤/٤١٤

بیا به دَ الله تعالی په ورانديې په مختلفو طريقوباندې معذرت کوی. څوك به وائی مانه غلطی شوې غفلت او لاپرواهی شوې په دې وجه دَهدايت په لارلاړنه شوم. غرض دا چه هريوبه څه نه څه عذر بيانوی هم دې ته معاذير په لفظ سره ذکرکړې دې.

**قوله: وَأَمَّا العَرْضَةُ الثَّالِثَةُ فَعِنْدَ ذَلِكَ تَطِيرُ الصُّحُفُ فِي الْأَيْدِي**

**په دريمه پيشئ کښې دصحيفوتقسيمدل:** بيا په دريمه پيشئ کښې به دَ خلقو ټول معاملات ښکاره شوی وی په دې وجه به اهل حق او باطل، نيك او ګناهګار په مينځ کښې به فرق واضح شی دَ کوم صورت چه به داوی چه کوم جنتيان وی دَهغوی عمل نامې به په ښی لاس کښې رسيږی او دَ کومو چه دوزخ ته دَ تللوفيصله شوې وی دَهغوی عمل نامه به په ګس لاس کښې وررسيږی. []تحفة الاحوذی ۹۲/۷.

**دالله تعالی د پیشئ استحضار:** دې حديث نه دا درس حاصليږی چه دَ انسان په ذهن کښې هروخت دامنظرمخې ته راځی چه زه څه اعمال په دې دنياکښې کوم دَ هغې به زه دَ الله تعالی په عدالت کښې حساب ورکوم. اودَ حساب کتاب دَ پاره به درې ځل دَ پيشئ نه تيريدل وی. اوکه الله تعالی دې نه کړی اعمال صحيح نه شی اوعمل نامه دَ ګناهونونه ډکه شی نوپه هغه ورځ به داسې رسوائی وی دَ کومې چه به څه تلافی نه شی کيدې. په دې وجه هرمسلمان له دَ خپل ژوند هرقدم په ډير سوچ اوفکرکيخودل پکاردی. دې دَ پاره چه دَ آخرت ذلت اورسوائې نه محفوظ پاتې شی

## [۵۵۵۹]حديث بطاقة اودَ الله تعالی دَ نوم برکت

۵۵۵۹-(¹)[۱۰] ⑴وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⑵" «إِنَّ اللَّهَ سَيُخَلِّصُ رَجُلًا مِنْ أُمَّتِي عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ⑶فَيَنْشُرُ عَلَيْهِ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ سِجِلًّا، كُلُّ سِجِلٍّ مِثْلُ مَدِّ الْبَصَرِ، ⑷ثُمَّ يَقُولُ أَتُنْكِرُ مِنْ هَذَا شَيْئًا؟ أَظَلَمَكَ كَتَبَتِي الْحَافِظُونَ؟ ⑸فَيَقُولُ: لَا يَا رَبِّ! ⑹فَيَقُولُ: أَفَلَكَ عُذْرٌ؟ قَالَ: لَا يَا رَبِّ!

**ترجمه:** ⑴او حضرت عبد الله ابن عمرو رضی الله عنهما وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⑵د قيامت په ورځ به په ميدان حشر کې الله ﷻ زما د امت نه يو سړی د ټول مخلوقاتو مخکې طلب کړي ⑶او د هغه مخکې به نه نوي ۹۹ رجسترونه وغوړول شي چې په هغه کې به هر رجسټر دنظرترحده پورې خلاص په نظر راشي ⑷بيابه هغه سړي ته فرمايي چې دې رجسترونو کې څه ليکلي دي آيا ته ددې نه د څه شي انکار کوی او د دې ويلو جرئت کوی چې دې رجسترونو نه چې زما د کوم بد اعمالو معلومات کېږي هغه مانه دې کړي

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن يموت وهو يشهد أن لا إله إلا الله (رقم-۲۶۳۹) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ما يرجى من رحمة الله يوم القيامة (رقم-۴۳۰۰) واحمد فی المسند: ۲۱۲/۲

او آيا ته داګڼې چې ځما نامه اعمال ليکونکو فرښتو چې ستا د افعالو او احوالو نګهبان وي تا سره څه زياتی کړی دی ۵ هغه سړی به عرض وکړي اې ځما پروردګاره! نه خو زه دي رجسترونو کې ليکل شوو خپلو اعمالو نه انکار کولی شم او نه دا ګڼم چې نامه اعمال ليکونکو فرشتو دي رجسترونو کې د غلط اندراجاتو په ذريعه ما سره څه زياتی کړی دی ۶ بيا به پروردګار فرمايي آيا ته څه عذر لري؟ يعنی تاچي په دنيا کې څه بد اعمال کړي دي او دي رجسترونو کې ليکلي دي آيا ته د هغه معذرت کې څه وئيل غواړې چې ما سهواً يا جهلاً يا خطاءً يا په بله فلانی وجه بدکار کړی وو نو هغه بنده به عرض وکړي چې نه اې ځما پروردګاره زه هيڅ عذر بيانولی نشم

**حل اللغات:-** ① سَيُخَلِّصُ: زر ده چه خلاص به کړی. ② سِجِلًّا: رجستر، عمل نامه، ③ الْحَافِظُونَ: حفاظت کونکي نګهباني فرشتي،

> ١ فَيَقُولُ: بَلَى، إِنَّ لَكَ عِنْدَنَا حَسَنَةً، وَإِنَّهُ لَا ظُلْمَ عَلَيْكَ الْيَوْمَ، ٢ فَتُخْرَجُ بِطَاقَةٌ فِيهَا: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، ٣ فَيَقُولُ: احْضُرْ وَزْنَكَ، ٤ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ! مَا هَذِهِ الْبِطَاقَةُ مَعَ هَذِهِ السِّجِلَّاتِ؟ ٥ فَيَقُولُ: إِنَّكَ لَا تُظْلَمُ، ٦ قَالَ: فَتُوضَعُ السِّجِلَّاتُ فِي كِفَّةٍ، وَالْبِطَاقَةُ فِي كِفَّةٍ، ٧ فَطَاشَتِ السِّجِلَّاتُ وَثَقُلَتِ الْبِطَاقَةُ، فَلَا يَثْقُلُ مَعَ اسْمِ اللهِ شَيْءٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ بيا به الله ﷻ فرمايي هو زمونږ سره يوشی دی چې ستا د عذر قائم مقام دی يعنی زمونږ سره ستا يوه ډيره لويه نيکي ده چې زمونږ بارګاه کې قبوله شوي ده او ستا ټول ګناهونه به ورژوي او يقيناً نن ورځ به په تا هيڅ ظلم نه کيږي يعنی نه خو ستا د دې نيکي ثواب کميږي او نه به تاته عذاب درکولو د پاره ستا ګناهونه زياتول کيږی ٢ بيا به يوه پرچي راوايستل شي چې په هغه کې به اشهد ان لااله الاالله واشهد ان محمداً عبده ورسوله ليکل شوی وي ٣ دي نه وروسته به الله ﷻ هغه سړي ته وفرمايي چې ځه د خپلو اعمالو د تللو ځاي يا د اعمالو د تللو وخت يا د اعمالو د تللو شی يعنی ميزان ته ورشه چې ستا د نيکۍ دا وړه پرچه ستا د ګناهونو نه ډک ۹۹ نه نوي رجسترونو سره تلی شي نو په تاباندې به ښکاره شي چې زمونږ عدل او انصاف څرنګه ښکاره کيږي او په تا باندې د ظلم او زياتي په ځاي زمونږ د فضل واحسان سايه (سوري) څرنګه شوی ده ٤ هغه بنده به حيرت او تعجب سره عرض وکړي چې اې ځما پروردګاره! د دې کوچنې شان پرچي دومره لوی او زيات رجسترونو سره څه نسبت دی چيرته ځما د يوي نيکي دا يوه وړه شان پرچه او چيرته ځما ټولو ګناهونو باندې مشتمل دا دفتري دي صورت کې د دې پرچي د هغه رجسترونو په مقابله کې د تللو څه فائده؟ ٥ پروردګار به ورته فرمايي ته لاړ شه اوو خو ګوره يقيناً تا سره به ظلم نه کيږي يعنی دا پرچه معمولي مه ګڼه دا ډيره عظيم القدره او ډيره درنه ده د دې تول کول ضروري دي چې په تاباندې ظلم ونشی ٦ حضور ﷺ وفرمايل

بيابه هغه رجسټرونه د ترازوپه يوه پله کې کيښودل شي ⑦ نو هغه رجسټرونه به سپك وخيژي او هغه پرچه به درنه شي دالله تعالى د نوم سره په درونوالى کښې څيز مقابله نشي کولى. (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** -④ الْبِطَاقَةُ: پرچه، وړوکې ليکلې شوې کاغذ. ⑤ طَاشَتْ: پورته طرف ته به والوزى (د سپکيدو په وجه) ⑥ ثَقُلَتْ: درنه به شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَطَاشَتِ السِّجِلَّاتُ وَثَقُلَتِ الْبِطَاقَةُ، فَلَا يَثْقُلُ مَعَ اسْمِ اللّٰهِ شَيْءٌ:

**په گناهونوباندې د کلمې طيبې درنيدل:** داحديث د حديث بطاقه په نوم سره مشهوردې بطاقه هغه پرچې ته وائى په کومه کښې چه به کلمه شهادت ليکلې شوى وى کومه به چه دې سړى وئيلى وى دَدې سړى دګناهونو به يو کم سل بندلې وى دکوم په مقابله کښې چه به په تله دَميزان کښې دا کلمه درنه شى او ويونکې به جنت ته لاړشى

**د کلمې په تول کښې دوه احتمالات:** ① په کومه پرچه چه کلمه دَ شهادت ليکلې شوې وى نو صرف هم دغه پرچه به په ټولو ګناهونودرنه شى دا مفهوم زيات واضح دې
② دې کلمې سره به نور نيک اعمال هم وى مګر بنيادى حيثيت به هم دَ دې پرچې وى

**[۵۵۶۰] دَقيامت په ورځ درې سختې مرحلې**

۵۵۶۰-()[۱۱] ①«عَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهَا - أَنَّهَا ذَكَرَتِ النَّارَ فَبَكَتْ. ②فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا يُبْكِيكِ؟ قَالَتْ: ذَكَرْتُ النَّارَ فَبَكَيْتُ، ③فَهَلْ تَذْكُرُونَ أَهْلِيكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ ④فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (أَمَّا فِي ثَلَاثَةِ مَوَاطِنَ فَلَا يَذْكُرُ أَحَدٌ أَحَدًا: ⑤عِنْدَ الْمِيزَانِ حَتَّى يَعْلَمَ: أَيَخِفُّ مِيزَانُهُ أَمْ يَثْقُلُ؟

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه ﷺ نه روايت دى يوه ورځ بي بي عائشه ﷺ د دوزخ د اور خيال کولو په ژړا شروع شوه يعنى اچانك د هغه په زړه کې د دوزخ خيال راغې نو د هغه د دهشت نه په هغه ژړا وغورځيدله ② حضور ﷺ چې د هغې دغه شان اچانك ژړا وليدله نو پوښتنه يي ترينه وکړه په تا څه شوي دي ولي ژاړي هغې اوويل ماته د دوزخ د اور خيال راغې د هغه د دهشت او خوف نه په ژړا شوى يم ③ نوآيا تاسو به د قيامت په ورځ خپل اهل وعيال هم ياد لرئ ④ رسول الله ﷺ په دې اوريدو سره ورته وفرمايل هسې خو دخپل اهلِ بيتو څه چې د قيامت په ورځ به د خپل پوره امت راسره خيال او فکر وي ليکن صورت حال دادى چې په هغه ورځ درې موقعې داسې دي چې هلته به چاته د چا څه خيال نه وي يعنى مخصوص طور سره د چاخيال به نه وي البته شفاعت عظمى به عمومي طور

[۱] اخرجه ابوداود فى السنن کتاب السنة/باب فى ذکر الميزان (رقم-۴۷۵۵) واحمد فى المسند: ۶/۱۱۰

سره ټول خلائق د پاره وي ⓑيوه موقع خوبه هغه وي هركله چې اعمال او كردار تللو د پاره ميزان مخې ته وي ددې پورې چې دا معلومه نشي چې د هغه ميزان تله به درنه شي يا سپكه يعنى د څوپورې چې اعمال ونه تلل شي او دا معلومه نه شي چې د نيك اعمالو تله درنه شوي ده يا سپكه شوي ده هغه پورې هرسړى به خپل خپل فكر كې سرګردان وي

**حل اللغات:-** ① أَيَخِفُّ: آيا سپكه به شي؟

① وَعِنْدَ الْكِتَابِ حِينَ يُقَالُ: ﴿هَاؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ﴾ [الحاقة: ١٩] ② حَتَّى يَعْلَمَ أَيْنَ يَقَعُ كِتَابُهُ، أَفِي يَمِينِهِ أَمْ فِي شِمَالِهِ؟ أَوْ أَمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ؟ ③ وَعِنْدَ الصِّرَاطِ: إِذَا وُضِعَ بَيْنَ ظَهْرَيْ جَهَنَّمَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① دويمه موقع به هغه وي هركله چې اعمال نامې لاسونو ته حواله شي ذدې پورې چې دا ونه ويل شي چې راشئ ځما اعمال نامه اووايئ ② او د څوپورې چې دامعلومه نشي چې ښي لاس كې وركول شوي دى يا ګېڅ لاس كې وركول شوى ده اود شا طرف نه يعنى دويمه هولناكه موقع به هغه وي هركله چې د هريوه په باره كې به د نجات يا عذاب فيصله وي او د خلقو اعمالنامې به د هغوئ د شا د طرف نه د هغوئ لاسونو كې وركول شي نو كوم سړى چې نجات يافته وي د هغه اعمالنامه به د هغه په ښي لاس كې راشي او كوم سړى چې د عذاب مستحق وګرځول شي د هغه اعمالنامه به د هغه په ګېڅ لاس كې وي او دغه شان د څوپورې چې دا معلومه نشي چې د چا اعمالنامه د هغه ښي لاس كې او د چا اعمالنامه د هغه په ګېڅ لاس كې وركول شوي ده او د چا اعمالنامه چې په ښي لاس كې راشي هغه د خوشحالۍ نه دا ونه وايي چې راشئ ځما اعمالنامه وګورئ تر هغه پورې به هرسړى تردد كې وي او چاته به د چا فكر او خيال نه وي او دريمه موقع به هغه وي هركله چې خلق پُل صراط باندې تيريدوته نزدې وي او هغه پل صراط به د جهنم په شا ايښودل كېږي ددې پورې چې دا معلومه نشي چې په هغه عافيت سره تيريدو سره نجات يې پيدا كړى دى يا په جهنم كې لويدلى دى. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ② هَاؤُمُ: اسم فعل دې په معنى د امر، يعنى راشئ.

**تسهيلات:**

**قوله: وَعِنْدَ الصِّرَاطِ: إِذَا وُضِعَ بَيْنَ ظَهْرَيْ جَهَنَّمَ:**

**د هريو كس په پل صراط باندې تيريدل:** پل صراط دَ ويښته نه زيات نرې اودَ تورې نه زيات تيره دې. دا به دَ جنهم دَ پاسه قائمولې شي دَ قيامت په ورځ به ټول مخلوق په دې باندې تيريږي. كما في القرآن ﴿ وَإِنْ مِنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَى رَبِّكَ حَتْمًا مَقْضِيًّا﴾ اهل ايمان به دَ خپل ايمان اوعمل دَ مرتبې مطابق په آسانئى سره په دې پل صراط باندې تيريږي او جنت ته به ځي او كوم چه دوزخيان وى هغوى به پرې كيدو سره په دوزخ كښې غورزيږي.

ایمان والوته به دَ هغوی دَ عمل مطابق نور ورکولې شی دَ کوم په ذریعه چه به هغوی په پل صراط باندې تیریږی په هغوی کښې بعضې سواره، بعضې پیدل او بعضې په زنګونونو باندې تیریږی

**دپل صراط د تیریدو مسافت:** دَ آخرت دَ کالونو په اعتبار دَ پل صراط مسافت درې زره کاله دې په یو روایت کښې دا هم بیان کړې شوی دی چه په دوزخ باندې اووه پلونه دی اودَ هرپل په مینځ کښې دَ اویاؤ کالو دَمسافت هومره فاصله ده او هریو پل دَ توری دَمخ نه زیات تیره دې

**په پل صراط تیریدونکې د مؤمنانو اته قسمه ډلې تیریدل:** ① دَ دې دَ پاسه تیریدونکې رومبې ډله به دَ سترګو دَ رپ په شان تیره شی

② دویمه به دَ بجلئی دَ پرق په شان تیره شی

③ دریمه ډله به دَ تیزې هوا په شان تیره شی

④ څلورمه ډله به دَ مرغو دَ تیزئی په شان تیره شی

⑤ پنځمه ډله به دَ اسونو په شان په منډه تیریږی

⑥ شپږمه ډله به دَ انسان دَ منډې وهلو په شان تیریږی.

⑦ اوومه ډله به دَ پیدل تلونکو خلقو په شان تیره شی

⑧ دَدې ټولو په آخره کښې به یوه ډله باقی پاتې شی کله چه هغوی ته دَ تیریدو دَ پاره اوئیلې شی نوخپلې خپې به په پل صراط باندې ایږدی خو دَهغوی خپې به رچیږی بیا به هغوی په زنګونونو باندې روان شی اودَ دوزخ دَ اور بڅیری به دَ هغوی خپو نه اورسیږی. بیا به دوی په خیټه باندې راښکلو سره دَ لاسونو په ذریعه پل سره اونخلی او اور به هم هغوی پورې اونخلی بیا دَ اور نه دَ بچ کیدو دَپاره په خیټه باندې راښکونکې لاړشی تردې چه دَ دوزخ نه به واوړی تیریدونه پس چه واپس دَ دوزخ طرف ته ګوری اووائی به کوم الله چه مونږ ته دَدې نه خلاصې راکړو هغه مونږ سره صرف دَ فضل اوکرم معامله کړې ده هغه ترننه پورې چا سره دَداسې فضل معامله نه ده کړې والله أعلم.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۵۵۶۱] دقیامت په سخته ورځ به دهر چا سره حساب کیږی

۵۵۶۱-(¹)[۱۴] ① «عَنْ عَائِشَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا-قَالَتْ: ② جَاءَ رَجُلٌ فَقَعَدَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة الأنبياء (رقم-۳۱۶۵) واحمد في المسند:۶/۲۸۰

وَسَلَّمَ - ۳ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّ لِي مَمْلُوكِينَ يَكْذِبُونَنِي، وَيَخُونُونَنِي وَيَعْصُونَنِي، ۴ وَأَشْتِمُهُمْ وَأَضْرِبُهُمْ، فَكَيْفَ أَنَا مِنْهُمْ، ۵ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ يُحْسَبُ مَا خَانُوكَ وَعَصَوْكَ وَكَذَّبُوكَ، ۶ وَعِقَابُكَ إِيَّاهُمْ، فَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ بِقَدْرِ ذُنُوبِهِمْ كَانَ كَفَافًا لَا لَكَ وَلَا عَلَيْكَ،

**ترجمه:** ۱ د مؤمنانو مور عائشه صدیقه رضي الله عنها وايي ۲ يوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کې يو سړی راغې کېنا ستی ۳ او عرض يې وکړو يارسول الله! ځما غلامان دي چې ماته دروغ وايي ځما په مال کې خيانت کوي او ځما نافرماني کوي ۴ نو زه د تاديب او تنبيه له مخې هغوئ ته بدرد وايم او هغوئ وهم نو د دوئ په وجه به د قيامت په ورځ الله ﷻ ما سره څه سلوك کوي يعنی آيا زما نه به هغوئ ته د بدرد ويلو او وهلو ټکولو حساب اخستل وي او د دې ځيزونو په وجه به زما مواخذه کېږي ۵ حضور ﷺ ورته وفرمايل هرکله چې د قيامت ورځ شی او د هرسړي د يويو عمل او يويو شي پوښتنه وی نو هغه غلامانو چې ستا په مال کې کوم خيانت کړی وي ستا نافرماني يې کړي وي او ستا نه يې دروغ ويلي وي او د دې ټولو به حساب کېږي ۶ د غه شان چې تا کومه سزا ورکړي وي: هغه به هم حساب کېږي او که ستا ورکول شوي سزا د رائج ضابطه اخلاق او قانون او د ع م عادت او معمول مطابق د هغوئ د جرائمو په قدر ثابت شي نو ستا سو معمله به برابر برابر وي چې تا ته به نه څه ثواب وي او نه څه عذاب ځکه چې په دې صورت کې به ونيل کېږي چې تا هغوئ سره د حالاتو مطابق او مباح معامله کړي ده چې په هغه به ته د څه مواخذې او عذاب مستوجب نه يې

**حل اللغات:** - ① مَمْلُوكِينَ: غلامان. ② يَخُونُونَنِي: خيانت کوی ما سره. ③ أَشْتِمُهُمْ: کنځل ورته کوم. بد رد ورته وائم.

۱ وَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ دُونَ ذُنُوبِهِمْ كَانَ فَضْلًا لَكَ، ۲ وَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ فَوْقَ ذُنُوبِهِمْ، اقْتُصَّ لَهُمْ مِنْكَ الْفَضْلُ. ۳ فَتَنَحَّى الرَّجُلُ، وَجَعَلَ يَهْتِفُ وَيَبْكِي، ۴ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَا تَقْرَأُ قَوْلَ اللهِ تَعَالَى: ﴿وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَإِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا وَكَفَى بِنَا حَاسِبِينَ﴾ [الأنبياء: ۴۷]. ۵ فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُولَ اللهِ! مَا أَجِدُ لِي وَلِهَؤُلَاءِ شَيْئًا خَيْرًا مِنْ مُفَارَقَتِهِمْ، أُشْهِدُكَ أَنَّهُمْ كُلَّهُمْ أَحْرَارٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او که تا هغوئ ته سزا ورکړي وي او د هغوئ د جرائمو نه کمه ثابته شي نو هغه به ستا زائد حق وي يعنی ستا هغوئ ته د جرائمو نه کمه سزا ورکول په هغوئ به ستا د پاره يو داسې حق واجب کړي که ته غواړې نو د هغه په عوض کې به تاته انعام درکول شي کيني نه ۲ او که ستا ورکړي سزا د هغوئ د جرائمو نه زياته وي نو بيابه د هغوئ د پاره ستا نه د هغه زياته بدله اخستل کېږي يعنی الله ﷻ به دافيصله کوي چې تاخپلو غلامانو ته د هغوئ د جرائمو نه زياته سزا ورکړي وه چې د هغه تاته هيڅ حق نه وو نو

اوس ته خپلو هغه غلامانو ته د هغه زیاتي بدله ورکړه ④ نو په دي ارشاداوریدوسره هغه سړي یوطرفته شو ③ اوپه ژړا سرشونو حضور ﷺ دا ارشاد مؤکد او ثابت کولو د پاره وفرمایل آیا ته په قرآن کریم کې د الله ﷻ دا ارشاد نه وایي چې وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا وَكَفَىٰ بِنَا حَاسِبِينَ یعنی الله ﷻ فرمایي د قیامت په ورځ به مونږ د عدل وانصاف میزان ودروو چې د هغه په ذریعه به د تولو اعمال ټیك ټیك وزن شي نو په هیچا به ظلم نه کیږي یعنی د چا چې څه حق وي هغه به یقیناً هغه ته ورکول شي او که د چا عمل د اوري رائي د داني برابر هم وي نو هغه نه به صرف نظر نشي کولی بلکه مونږ به هغه هم هلته حاضر کړو او مونږ حساب آخستلو له کافي یو یعنی زمونږ وزن او حساب نه به وروسته د حساب کتاب او د چا د مدافعي د چا حاکم مخکې د خپلي دعوي پیش کولو ضرورت نه وي ځکه چې زمونږ نه زیات عدل او انصاف کونکی بل هیڅوك نشته او هغه وخت به زمونږ فیصله بالکل آخري فیصله وي چې په هغه چاته د شك شبهي کولو مونږ ګنجائش نه پریږدو ⑤ هغه سړی دي خبري اوریدوسره عرض وکړو یارسول الله! زه د خپل ځان او خپلو غلامانو په حق کې دهغوئ د جدائي نه ښه بله څه خبره نه وینم یعنی په دي صورت کې ځما خیال دی چې د قیامت د محاسبي او مواخذي نه بچ کیدو او جواب ورکولو نه د محفوظ کیدو له خاطره ځما او ځما د دې غلامانو دواړو په حق کې د تولو نه ښه خبره داده چې هغوئ زما نه جدا شي په دي طور چې زه هغوئ ته آزادي ورکړم ⑥ نو زه تاسو شاهدان جوړوم چې هغه ټول غلامان آزاد دي (ترمذي)

**حل اللغات:**-③ تَنَحّٰی: یو طرف ته شو. ⑤ يَهْتِفُ: په تیز آواز سره ئې ونیل ⑥ الْقِسْطَ: انصاف. ⑦ خَرْدَلٍ: اوری، غوښت. ⑧ أَحْرَارٌ: آزاد

**تسهیلات:**

**قوله: فَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ بِقَدْرِ ذُنُوبِهِمْ كَانَ كَفَافًا لَا لَكَ وَلَا عَلَيْكَ:**

**دغلامانو دنافرمانۍ اود سزا د برابرۍ صورت:** مطلب دادې چه ستاد غلامانو جرم اوستاد سزا حساب به لګولې شي چه دواړه برابر دی که کم یا زیات که چرې دواړه برابر شو نو نه به په تاباندې څه نقصان وی اونه به تاته ثواب ملاویږی ځکه چه نه د هغه جرم زیات دې اونه ستا سزا زیاته ده اوکه چرې ستا سزا دهغوی د جرمونونه زیاته شوه نوبیابه په تاباندې نقصان وی اوکه چرې دهغوی جرم ستا دسزا نه زیات شو نود هغه غلامانو رانیول به کیږی اوتاته به ثواب ملاویږی هغوی سره دمعافئی او آسانئی کولو به تاته ثواب حاصلیږی بلکه هغوی سره د معافئی معامله کول مباح دی اوددې په کولوکښې په تا باندې هیڅ حرج نشته دې.

**قوله**: وَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ دُونَ ذُنُوبِهِمْ كَانَ فَضْلًا لَكَ:

**د غلامانو د سزا د کموالي صورت**: فضل هغه څيز ته وائي چه دَ واجب حق نه زيات وی يعنی ستا دغه غلامانو ته کمه سزا ورکول به په آخرت کښې ستا دَپاره دَ اجر او انعام سبب وی دَ اجر او ثواب نه حسن او ثواب، قربت او نيزديکت اودَ درجې او مرتبې اوچتوالې مراد دې باقی دَ حديث الباب حاصل دادې چه کوم سړې دَخپلو غلامانو او لاندې خلقو په مينځ کښې معامله په ښه شان سره ته اورسوی هغه به دَ اجر او ثواب حقدار وی اودَ دې برعکس معامله کولو باندې به انسان دَ الله تعالی په نيز مواخذې سره مخ کيږی ځکه چه په هغه ورځ به تله دَ عدل قائميږی په چا باندې به ظلم نه شی کولې

**قوله**: مَا أَجِدُ لِي وَلِهَؤُلَاءِ شَيْئًا خَيْرًا مِنْ مُفَارَقَتِهِمْ، أُشْهِدُكَ أَنَّهُمْ كُلَّهُمْ أَحْرَارٌ:

**د غلامانو آزادولو دوه وجوهات**: ① کله چه غلامان زما په ملکيت کښې نه وی نو مانه به بيا دَهغوی په حق کښې کوتاهی هم نه کيږی.

② غلامان ئی ځکه آزاد کړل چه دَ مخکينو ګناهونو کفاره شی.

**[۵۵۶۲] دَآسان حساب اوسخت حساب مطلب**

> ۵۵۶۳- ( )[۱۳] ① «وَعَنْهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ فِي بَعْضِ صَلَاتِهِ: ② "اللَّهُمَّ حَاسِبْنِي حِسَابًا يَسِيرًا" قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللهِ! مَا الْحِسَابُ الْيَسِيرُ؟ ③ قَالَ: "أَنْ يَنْظُرَ فِي كِتَابِهِ فَيَتَجَاوَزَ اللهُ عَنْهُ، ④ إِنَّهُ مَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ يَوْمَئِذٍ يَا عَائِشَةُ هَلَكَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: ① او بي بي عائشه ﵂ وايي ماد رسول الله ﷺ نه په بعضې مونځو کې دادعا واوريده: ② اَللّٰهُمَّ حَاسِبْنِي حِسَابًا يَسِيرًا اي الله! څما د اعمالو حساب اسانه کړي بي بي عائشه ﵂ وايي ماچې دا واوريدل نوعرض مي وکی اې د الله نبي! د آسانه حساب نه څه مطلب دی او د دې به څه صورت وي ③ حضور ﷺ وفرمايل د آسانه حساب به داصورت وي چې بنده به خپل نامه اعمال ووينې او بيابه الله ﷻ هغه ته معافي وکړي ④ او اې عائشې ﵂ حقيقت دادی چې په هغه ورځ د کوم سړي سره حساب کې مناقشه جګړه وشي نو بس پوهه شه چې هغه برباد شو يعنی هغه د عذاب نه بچ کيدی نشي. (احمد)

**حل اللغات**: - ① نُوقِشَ: سخت تپوسونه اوشی،

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّهُ مَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ يَوْمَئِذٍ يَا عَائِشَةُ هَلَكَ:

**دبعض په مصداق کښې درې اقوال**: ① د دې څخه فرض مونځ مراد دې.

② د دې څخه نفل مونځ مراد دې.

[1] اخرجه احمد في المسند: ۴۸/۶

④ د دې څخه د مونځ بعضې ارکان مراد دی یعنی دا دعا حضورپاك په یوه حصه یعنی د قیام په شروع کښې یا په رکوع کښې یا په قومه کښې یا په سجده کښې غوښتې وه باقی د حضورپاك دا دعا غوښتل خود امت د تعلیم دپاره وه چه مسلمانانو له پکاردی چه هغوی دی دالله تعالی نه د آسان حساب دعاغواړی

**قوله مَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ**

**دمناقشه لغوی معنی**: د مناقشه لغوی معنی جانچ پړتال کولو سره حساب اخستل دی یعنی د پیسې پیسې حساب اخستل دی

**دمناقشه اصطلاحی تعریف**: په اصطلاح کښې مناقشه دا ده چه د هریو عمل او د هرعمل د یو یو جزء پوره پوره حساب اوشی نود ټولو نه ګران حساب هم دغه دې هم دې ته حساب مناقشه وئیلی شی په دې حساب کښې هیڅ یو بنده هم پوره شان سره کامیابیدې نه شی ځوك چه دالله د فضل اوکرم نه محروم پاتې شو نوهغه به دا سې حساب مناقشه سره مخ کیږی اودا سې کس به عذاب کښې د راګیریدو نه بچ کیدې نه شی

**په حساب یسیراومناقشه کښې فرق**: حساب یسیر دې ته وائی چه جرم معاف کړې شی او د بدعملونو معافی اوشی او حساب مناقشه دادې چه د جرم اقرارپرې کول او جرح کول او تپوس پښتنه کول الله پاك دې مونږ سره حساب یسیر اوکړی آمین

**[۵۵۶۲] دقیامت ورځ به په مؤمن باندې آسانه وی**

٣٣-()[١٣][١]«وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [٢]أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: [٣]أَخْبِرْنِي مَنْ يَقْوَى عَلَى الْقِيَامِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، الَّذِي قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ [المطففين: ٦]؟ [٤]فَقَالَ: يُخَفَّفُ عَلَى الْمُؤْمِنِ حَتَّى يَكُونَ عَلَيْهِ كَالصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ».

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه نه روایت دی [٢] هغه یوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او هغه اوویل [٣] یارسول الله ماته دا وښایي چې د قیامت په ورځ چې د هغه په باره کې الله ﷻ بزرګ وبرتر فرمایي يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِينَ په کومه ورځ چې ټول خلق به یویو د جهان د پروردګار په مخکې اودریږي نو کوم سري ته به دحساب د پاره د الله ﷻ په مخکې د اودریدو تاب وي [٤] حضور ﷺ وفرمایل د قیامت ورځ به مؤمن د پاره آسانه شي ددې پورې چې هغه ورځ به په هغه د فرض مونځ د آدائیګی د وخت په قدر پاتې شي

**حل اللغات**:- ① يَقْوَى: مضبوط به وی. طاقت به لری. ② يُخَفَّفُ: آسانه به کړې شی.

---

[١]) اخرجه البیهقی فی البعث والنشور

تسهيلات:

قوله: يُخَفَّفُ عَلَى الْمُؤْمِنِ حَتَّى يَكُونَ عَلَيْهِ كَالصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ:

**دالله تعالى په دربار كښې د قيام مختلف مقدارونه:** ① په بعضو خلقو به دا تخفيف كم او كيف دواړو اعتبارو سره وى يعنى واقعةً هم وختونه مختصر هم شى اودا سړې به هغه مختصر محسوسوى

② دَ بعضو دَ پاره به دَدغه ورځې وختونه مختصر كيږى خونه ورځ به هم اوږده وى مگر هغه سړې به دامختصر محسوسوى. لكه څنگه چه كله سړې په راحت كښې وى نو وختونه ورته مختصر ښكارى لكه چه دا ورځ په كيف كښې مختصر ده اوكم كښې مختصر نه ده

③ په بعضو به په كم كښې مختصر وى په كيف كښې به اوږده وى يعنى دَ عذاب دَ وجې نه به هغه دا ډيره اوږده محسوسوى گنى دَ اصل په اعتبارسره به دا ورځ دَ پنځوسو زرو كالو وى لكه چه قرآن كښې دى ﴿فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ﴾[سورت معارج: ۴. دَ زرو كالو ذكر هم دي

بهرحال مختلفو احوالو اودَ مختلفو اعمالودَ وجې نه به په دغه ورځ كښې اختلاف وى

**[٥٥٦٤] د قيامت سخته اوږده ورځ به په مومن باندې د فرض مونځ برابر وى**

۵۵۶۳-()[۱۵] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: [۲] «سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ ﴿يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ﴾ [المعارج: ۴] [۳] مَا طُولُ هَذَا الْيَوْمِ؟ [۴] فَقَالَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ [۵] إِنَّهُ لَيُخَفَّفُ عَلَى الْمُؤْمِنِ حَتَّى يَكُونَ أَهْوَنَ عَلَيْهِ مِنَ الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ يُصَلِّيهَا فِي الدُّنْيَا» ". رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي كِتَابِ (الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد خدري ﷛ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ نه د قيامت د ورځې په باره كې پوښتنه وشوه چې د پنځوسو زرو كالو برابر به وي [۳] د دي اوږدوالي به څومره وي يعنى هركله چې دا ورځ دومره زياته اوږده وي نو د خلقو به څه حال وي آيا هغوئ به حساب كتاب او خپله فيصله اوريدو د پاره په هغه ورځ دريدى شي [۴] حضور ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل په هغه ذات مي دي قسم وي چې د هغه قبضه كې ځما ساه ده [۵] هغه ورځ به كامل مسلمان د پاره د هغه فرض مونځ د وخت نه هم زياته آسانه شي كوم چې هغه په دنيا كې كولي دا دواړه روايتونه بيهقي كتاب البعث والنشور كې نقل كړى دى

**تسهيلات: نوټ:** ددې حديث د مضمون تشريح د مشكاة دحديث نمبر(۵۵۶۳) په تسهيل كښې تيره شوه.

---

[1] ) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۱/ ۳۲۴ واحمد فى المسند: ۷۵/۳

## [۵۵٦۵] بعضې خلق به بې حسابه بې ڪتابه جنت ته داخليږي

۵۵٦۵ - (١) [١٦] ⑴ وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⑵ قَالَ: " «يُحْشَرُ النَّاسُ فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ⑶ فَيُنَادِي مُنَادٍ يَقُولُ: أَيْنَ الَّذِينَ كَانَتْ تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ؟ ⑷ فَيَقُومُونَ، وَهُمْ قَلِيلٌ، فَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ، ⑸ ثُمَّ يُؤْمَرُ بِسَائِرِ النَّاسِ إِلَى الْحِسَابِ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ⑴ او بي بي اسماء بنت زيد ابن سکن رضي الله عنها د رسول الله ﷺ نه روايت کوي ⑵ چې رسول الله ﷺ وفرمايل د قيامت په ورځ به خلق يو فراخ او اوار ميدان کې جمع شي ⑶ بيا به يو اعلان کونکی اعلان وکړي چيرته دي هغه خلق چې د هغوئ اړخونه به د بسترو او د خوب د ځايونو نه جدا وو ⑷ دا اعلان اوريدو سره اهل محشر نه به ډير لږ خلق چې اهل اسلام کې به وي را پاځيږي يعنی د مجمع نه راوتلو سره بهر به راشي او د حساب کتاب مرحله تيرولو نه بغير به جنت ته لاړ شي ⑸ بيا به باقي خلقو نه د حساب اخستو حکم وشي دا روايت امام بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① صَعِيدٍ: هواره زمکه، ② الْمَضَاجِعِ: د خوب ځايونه، بسترې،

**تسهيلات:**

**قوله:** أَيْنَ الَّذِينَ كَانَتْ تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ؟.... فَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ:

بغير حسابه جنت ته داخليدونکې تهجد ګزار:

دالله تعالی بعضې بندګان به بلا حساب کتابه جنت ته داخليږي. په هغوی کښې تهجد ګذار، په الله تعالی باندې بهروسه کونکی وغيره شامل دی.

---

[1]) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان

# [۴]بَابُ الْحَوْضِ وَالشَّفَاعَةِ

## دَحوض كوثر اودَشفاعت بيان

**خلاصة الباب**

**فيه أربعون حديثاً مشتملة على إحدى عشر مسئلة:**

① ذكرالحوض وصفاته: ۱، ۲، ۳، ۲۳، ۲۵، ۳۷.

② ذكرالواردين على الحوض والممنوعين عنه: ۴، ۲۴، ۲۵.

③ ذكر الشفاعة الكبرى تفصيلاً: ۵، ۶، ۸، ۳۸.

④ ذكرمن لهم الشفاعة؟: ۷، ۲۹، ۳۰.

⑤ أقسام الشافعين سوى النبي ﷺ : ۹، ۱۱، ۳۱، ۳۲، ۳۴، ۴۰.

⑥ النجاة بقبول الشفاعة: ۵، ۶، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳ ، ۱۴ ، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۳۳، ۳۹.

⑦النجاة بفضل الله تعالى بغيرواسطة الشفاعة: ۱۲، ۱۵، ۱۸، ۲۰.

⑧ طريق فرحة أهل الجنة وخذلان أهل النار: ۲۱، ۲۲.

⑨ مقامات الشفاعة: ۲۶.

⑩ ذكرالمقام المحمود: ۵، ۲۷.

⑪ ذكر الصراط والمرور عليه وهوأحد مقامات الشفاعة: ۱۱، ۱۳، ۱۴، ۲۰، ۲۶، ۲۸، ۳۶.

**دحوض كوثرتعارف:** حوض مطلقاً هغه تالاب ته وائي په كوم كښې چې اوبه راجمع شوي وي خودلته د حوض څخه كوثرمراد دي.

**په حوض كوثرد اوبوڅکولو كيفيت:** دَقيامت په ورځ چه كله خلق دَقبرونونه اوچتيږي اوميدان محشرته راشي هغه وخت به سخته تنده لګيدلې وي. دَحضورپاك امتيان به دهغوى حوض ته راځي او حضورپاك به په هغوى باندې د كوثر اوبه په خپلو لاسونو مباركو باندې څكوي. نبي طرف ته به صديق اكبر رضي الله عنه ولاړ وي اوګس طرف ته به عمر فاروق رضي الله عنه ولاړ وي په مينځ كښې به نبي مكرم وي او اوبه به په خلقو باندې څكوي داحوض كوثر به دَميدان محشر وي دويم حوض كوثر به حضورپاك ته په جنت كښې ملاويږي دكوم اوبه چه به دَ نهر په صورت كښې دَ جنتيانو په كورونو كښې جاري وي اوكافران او بدعقيده خلق به حوض كوثرته نيزدې نه شي راتلې.

**دشفاعة لغوي معنى:** شفاعت دَ سفارش په معنى كښې دي.يعنى ديوحاجت مند دپاه هغه چا سوال كول چاته چې د حاجت مند حاجت وي.

**د شفاعت شرعی تعریف:** دَالله تعالی په مخکښې دَ چا دَ گناهونو دَمعافئی سفارش کول.

**دشفاعت کولو شرطونه:**

① **دمشفوع له ایمان:** دَالله تعالی په وړاندې دَ یو کافر سفارش نه شی کیدې اونه به دغه سفارش قبلیږی

② **دالله تعالی د طرفه دسفارش اجازت:** دَ شفاعت دَپاره دَ الله تعالی دَ طرف نه اجازت ضروری دې دَ اجازت نه بغیرخوك دَ چا شفاعت نه شی کولې دَقریشوکافرانو چه به دَ بتانو دَپاره کوم شفاعت ثابتول غوښتل هغه شفاعت قهریه او شفاعت غالبه وودَ کوم چه په سختئی سره الله تعالی په قرآن کښې نفی فرمائیلې ده. لیکن په دې سره دَجائز شفاعت نفی نه کیږی.

**دَ شفاعت قسمونه:**

① **شفاعت کبری:** دَ دې شفاعت تعلق دَ ټولو انسانانوسره دې. رسول الله ﷺ به الله تعالی ته فرمائی چه میدان محشرکښ خلق تنگ شوی دی دَ هغوی حساب کتاب دې شروع کړې شی. حضورپاك به په مقام محمودکښې دَ الله تعالی په مخکښې سجده لگوی اوعجیبه محامدبه بیانوی. الله تعالی به اعلان اوفرمائی چه دَسجدې نه سراوچت کړه غواړه درکولې به شی. شفاعت کوه شفاعت به قبلولې شی په دې باندې به حضورپاك اوفرمائی چه اې الله حساب کتاب شروع کړه. الله تعالی به اوفرمائی ته څه زه درځم دغه شان به دَشفاعت کبری مرحله مکمل شی.

② **شفاعت صغری:** حضورپاك به دَخپل امت باره کښې شفاعت صغری کوی دَدې دیرزیات قسمونه دی. خوټول هم دَ شفاعت صغری صورتونه دی.

**دشفاعت صغری صورتونه:**

① هرنبی به په دخپل امت دپاره شفاعت کوی.

② عالمان به شفاعت کوی

③ حافظان د قرآن پاک به د خپل خاندان د لسو گناهگارانو دپاره شفاعت کوی.

④ شهیدان به شفاعت کوی

⑤ قرآن پاک به د خپلو قاریانو دپاره شفاعت کوی.

⑥ روژه به د روژه دارو دپاره شفاعت کوی.وغیره

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۵۵٦٦] دَ حوض كوثر احوال

۵۵٦٦-(١)[١] ①عَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «بَيْنَا أَنَا أَسِيرُ فِي الْجَنَّةِ إِذَا أَنَا بِنَهَرٍ ③حَافَتَاهُ قِبَابُ الدُّرِّ الْمُجَوَّفِ، ④قُلْتُ: مَا هَذَا يَا جِبْرِيلُ؟ ⑤قَالَ: هَذَا الْكَوْثَرُ الَّذِي أَعْطَاكَ رَبُّكَ، ⑥فَإِذَا طِينُهُ مِسْكٌ أَذْفَرُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①حضرت انس ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②ما د معراج په شپه د جنت سيل كولو ناڅاپه زه يونهر باندې تير شوم ③چې د هغه دواړو طرفونو باندې د ملغلرو ګنبدونه وو ④ما پوښتنه وكړه اې جبرائيل ﷤ داڅه دى؟ ⑤هغوئ راته اوويل داحوض كوثر دى چې تاسو ته ستاسو پروردګار عطا كړى دى ⑥بيا چې ما وليدل نو د هغه خاوره د مشك په شان خوشبوداره وه . (بخاري)

**حل اللغات:** - ①حَافَتَاهُ: أي جانباه وطرفاه، دواړه طرفونه دنهر، ②قِبَابُ: دَدې مفرد قبة دې. ګنبدته وائى ③الدُّرّ: ملغلرې، ④الْمُجَوَّفِ: جوف خيټې ته وائى دلته هغه ملغلرې ته وئيلې شوې دې چه دَ دننه نه خالي او دډ وى، ⑤أَذْفَرُ: خوشبوئى به ئې ډيره تيزه وى.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا أَنَا بِنَهَرٍ حَافَتَاهُ قِبَابُ الدُّرِّ الْمُجَوَّفِ:

**دحوض كوثر عمارت:** دَخيمې په شان ګول عمارت وى يعنى دَ حوض كوثر دَنهر په غاړو باندې به دَ مرغلرو داسې ګنبدونه جوړوى چه دننه به په كښې دَ اوسيدو او دَ خوند اومزې ټول سامان موجود وى.

## [۵۵٦٧] د حوض كوثر د اوبو دهغې خوش بوئى او دهغې د ګلاسونو ذكر

۵۵٦٧-(١)[٢] ①وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «حَوْضِي مَسِيرَةُ شَهْرٍ، وَزَوَايَاهُ سَوَاءٌ، مَاؤُهُ أَبْيَضُ مِنَ اللَّبَنِ، ③وَرِيحُهُ أَطْيَبُ مِنَ الْمِسْكِ، ④وَكِيزَانُهُ كَنُجُومِ السَّمَاءِ، ⑤مَنْ يَشْرَبُ مِنْهَا فَلَا يَظْمَأُ أَبَدًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت عبد الله بن عمرو ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②زما حوض يعنى حوض كوثر د يومياشت د مسافت په قدر اوږد دى او د هغه څلور واړه غاړې برابرې دي يعنى طول اوعرض كې هغه مربع دى د هغه اوبه د پيئو نه زياتې سپينې ③او د هغه بوى د مشكو نه زيات خوشبودار دى ④او د هغه ګلاسونه د خپل چمك دمك

---

(١) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب فى الحوض (رقم-۶۵۸۱) واحمد فى المسند: ۳/۱۶۴

(٢) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب فى الحوض (رقم-۶۵۷۹) ومسلم فى كتاب الفضائل/باب إثبات حوض نبينا صلى الله عليه وسلم وصفاته (رقم-۲۷ - (۲۲۹۲) واحمد فى المسند: ۳/۳۸۴

او کثرت او زیاتي داعتبار نه د آسمان دستورو په شان دی [۵] او کوم سړی چې د هغه اوبه او څکي هغه بیا هیڅکله نه تږی کېږي (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ① زَوَايَاهُ: د زاوية جمع ده، اطراف، غاړې، ② كِيزَانُ: ګلاسونه.

**تسهيلات**:

**قوله**: حَوْضِي مَسِيرَةُ شَهْرٍ

**دحوض کوثر ښت والې**: په دې کښې دَ حوض کوثر وسعت بیان کړې شوې دې چه دَ حوض کوثر دَ پلنوالی او اوږدوالی داحال دې چه که دَ هغې دَ یوې غاړې نه بلې غاړې ته څوك لاړ شي نو تلونکې به په یوه میاشت کښې دا فاصله پوره کړی.

**قوله**: وَزَوَايَاهُ سَوَاءٌ

**دحوض کوثر مربع کیدل**: دَ دې ګوټونه برابر دی یعنی حوض کوثر مربع دې. اوږدوالې پلنوالې او ژوروالې ئې یو شان دې دَدې هر یو ګوټ زاویه قائمه دې.

**قوله**: مَاؤُهُ أَبْيَضُ مِنَ اللَّبَنِ، وَرِيحُهُ أَطْيَبُ مِنَ الْمِسْكِ، وَكِيزَانُهُ كَنُجُومِ السَّمَاءِ:

**دحوض کوثر بعضې خصوصیات**: ① دَدې حوض اوبه دَ پیئو نه هم زیاتې سپینې دی
② دَ دې خوشبوئی دَ خالص مشك نه هم ښکلې ده.
③ دَدې دَ اوبو لوښې په پرق پروق کښې دَ آسمان دَ ستورو په شان دی
④ په شمیر کښې دَ ستورو نه زیات دی.

**قوله**: مَنْ يَشْرَبُ مِنْهَا فَلَا يَظْمَأُ أَبَدًا:

**دحشر څخه روسته دتنده**: دَ حوض کوثر نه دَ اوبو څکولو نه پس به دَهمیشه دَ پاره تنده نه لګی چونکه دَ قبرونو نه پاڅیدونکی مسلمانان به تږی وی په دې وجه به دَ حوض کوثر اوبه اول د تندې ماتولو دَپاره څکلې شی.

**اشکال**: چه کله دَ حوض کوثر په اوبو سره دَهمیشه دَپاره تنده ختمه شی نو بیا په جنت کښې دَ اوبو نهر یا دَشاتو یا دَ پیئو یا دَ شرابو دَ نهرڅه ضرورت دې؟

**داشکال جواب**: دَ حوض کوثر په اوبو سره به تنده ختمه شی. بیا چه کومې اوبه وی نو کیدې شی چه صرف دَخوند دَحاصلولو دَپاره وی او دَ خوند په توګه به ئې جنتیان څکی.

**[۵۵۶۸] د حوض کوثر اوږدوالې او د هغې نور خصوصیات**

۵۵۶۸ -()[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ حَوْضِي أَبْعَدُ مِنْ أَيْلَةَ مِنْ عَدَنٍ، [۳] لَهُوَ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ الثَّلْجِ، وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ بِاللَّبَنِ، [۴] وَلَآنِيَتُهُ أَكْثَرُ مِنْ عَدَدِ

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الطهارة/باب استحباب إطالة الغرة والتحجيل فی الوضوء(رقم-۳۶ - (۲۴۷) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه (رقم-۳۴۴۵)وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب صفة أمة محمد صلی الله علیه وسلم (رقم-)(۴۲۸۲) واحمد فی المسند: ۴۲۴/۴

النُّجُومِ، ۵ وَإِنِّي لَأَصُدُّ النَّاسَ عَنْهُ كَمَا يَصُدُّ الرَّجُلُ إِبِلَ النَّاسِ عَنْ حَوْضِهِ". ۶ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! أَتَعْرِفُنَا يَوْمَئِذٍ؟ ۷ قَالَ: "نَعَمْ لَكُمْ سِيمَاءُ لَيْسَتْ لِأَحَدٍ مِنَ الْأُمَمِ، ۸ تَرِدُونَ عَلَيَّ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ أَثَرِ الْوُضُوءِ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷛ نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ خما د حوض يعنى د حوض كوثر د دوارو سرونو د منځ فاصله دا يله او د عدن درمياني فاصلې نه هم زياته ده ۳ او بلاشبه د دې حوض اوبه د واورې نه هم زياتې سپينې او دعسلو (شهد) نه هم زياتې خوږې دي چې په هغه كې پئې يوخاي شوي وي ۴ او د دې آبخور ګلاسونه د آسمان دستورو نه هم زيات دي ۵ او يقيناً زه به د نورو امتونو خلق دې حوض ته راتلو نه داسې منع كوم او تښتوم څرنګه چې يو سړى د خلقو اوښان خپل حوض ته راتلو نه منع كوي او دا منع كول به په دې وجه وي چې امتِ محمدي سره دې فضيلت او خصوصيت كې نور خلق شريك نه وي او د دې امت خلق د نورو امتونو د خلقو نه ممتاز او منفرد وي ۶ په دې اوريدو سره صحابه ؓ عرض وكړو يا رسول الله! آيا تاسو به هغه وخت مونږ وپيژنئ؟ يعنى د ټول مخلوق دومره زبردست ازدهام ګڼه ګونه كې آيا دابه ستاسو دپاره ممكنه وي چې خپل امت او د نورو امتونو خلقو په منځ كې فرق وكړي او هغه به كوم علامه وي چې د هغه په ليدو سره به تاسو خپل امت پيژندو سره حوض كوثر ته راپريږدئ او غير امتونه به هلته راتلو نه منع كوئ ۷ حضور ﷺ وفرمايل هو زه به تاسو ډيرې آسانۍ سره وپيژنم دراصل ستاسو به يوخاص نښاني وي چې هغه نه به د نورو امتونو خلق محروم وي ۸ او هغه علامه به داوي چې هركله تاسو زما طرف ته راځئ نو هغه وخت به ستاسو مخونه او ستاسو لاس پښې د اودس د نورانيت په سبب روښانه او ځلانده (ښائسته) وي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ۱ أَيْلَةَ: دَ شام دَ ملك دَ يوښار نوم دى. ۲ عَدَنٍ: په يمن كښې د بحراحمر په غاړه د يو ځاى نوم دې. ۳ الثَّلْجِ: واوره، ۴ أَحْلَى: ډيرې خوږې، ۵ أَصُدُّ: زه به منع كوم. ۶ سِيمَاءُ: نښه، علامت، ۷ تَرِدُونَ: تاسو به راځئ. راتيريږئ به، ۸ غُرًّا: روښانه، ځليدونكى. ۹ مُحَجَّلِينَ: دَ ځناور په خپو لاسونوباندې چه كوم سپينه نښه وى هغې ته تحجيل وائى دلته دَ اودس دَ اندامونو پړق پړوق مراد دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ حَوْضِي أَبْعَدُ مِنْ أَيْلَةَ مِنْ عَدَنٍ:

**دايله محل وقوع:** دَشام دَ ملك په ساحل كښې د يو ښار نوم دې او نن صبا دَ اسرائيل په قبضه كښې دې دكوم چه جديد وران شوې نوم ايلات دې دَبحر احمر يعنى بحيرهٔ قلزم په شمالى سر باندې واقع دې.

**قوله** مِنْ عَدَنٍ:

**دعدن محل وقوع**: داد بحراحمر په جنوبی غاړه باندې واقع دې دا یومشهور دَ جزیرې په شان دَښار نوم دې چه په یوه زمانه کښې دَ یمن بندرگاه وو "أصد" دَ بندولو په معنی کښې دې او "الناس" نه مراد دَ نورو امتونو خلق دي.

---

۵۵۰۳-(¹) [۱]وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ عَنْ أَنَسٍ، [۲]قَالَ: "«تَرَى فِيهِ أَبَارِيقَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ كَعَدَدِ نُجُومِ السَّمَاءِ»".

---

**ترجمه**: [۱]او د مسلم په یوبل روایت کې چې حضرت انس ﷛ نه منقول دی داسې دی [۲]چې حضور ﷺ وفرمایل په دې حوض کې به د سوني چاندي سرو زرو او سپینو زرو ګلاسونه وي چې د خپل چمک دمک او تعداد په اعتبار سره به د آسمان دستورو په شان ښکاره کیږي

**حل اللغات**:- ⓵أَبَارِيقَ :د ابریق جمع ده. د اوبو څکلو لوښي. ګلاسونه

---

۵۵۰۴-(²) [۱]وَفِي أُخْرَى لَهُ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: سُئِلَ عَنْ شَرَابِهِ، [۲]فَقَالَ: "«أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ، وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ [۳]يَغُتُّ فِيهِ مِيزَابَانِ يَمُدَّانِهِ مِنَ الْجَنَّةِ، [۴]أَحَدُهُمَا مِنْ ذَهَبٍ وَالْآخَرُ مِنْ وَرِقٍ»".

---

**ترجمه**: [۱]او د مسلم په یوبل روایت کې د حضرت ثوبان ﷛ نه داسې منقول دی چې هغوئ اوویل د حضور ﷺ نه د دې حوض د اوبو په باره کې پوښتنه وشوه [۲]نو حضور ﷺ وفرمایل د دې او به د پیئونه زیاتي سپیني او دعسلو(شهد) نه زیاتي شیریني خوږي دي [۳]د دې حوض ډکولو د پاره په دې کې دوه زورداري ناوی رابهیږي چې د جنت د نهر نه راځي چې د هغه نوم هم کوثر دی[۴] په هغه کې یوه پرناله ناوه د سوني ده او دویمه د چاندي

**حل اللغات** - ⓵أَحْلَى: ډیرې خوږې. ⓶يَغُتُّ:د فَرَّ يَفِرُّ او مَدَّ يَمُدُّ دواړو په وزن باندې ویلی کیږی. په زور سره د اوبو راغورزیدل.لکه آبشار. ⓷مِيزَابَانِ: د میزاب جمع ده. ناوې او پرنالې ته وائی ⓸يَمُدَّانِهِ: رابهیږی به. راوځی به. ⓹وَرِقٍ: چاندی. سپین زر

**تسهیلات**:

**د بعضې جملو وضاحت**:

⓵يَغُتُّ:یعنی په تیزه او په زور سره به په دې حوض کښې دوه ناوې دَ جنت ته راپریوځی اودا راپریوتل به مسلسل وی

---

(¹) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب فی الحوض (رقم-۶۵۸۰) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب إثبات حوض نبینا صلی الله علیه وسلم وصفاته ٤۳ (۲۳۰۳) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما یقول إذا ودع إنسانًا (رقم ۳٤٤۲) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذکر الحوض (رقم-٤۳۰۵)

(²) اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب إثبات حوض نبینا صلی الله علیه وسلم وصفاته (رقم-۳۷ - (۲۳۰۱) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذکر الحوض (رقم-٤۳۰٤) واحمد فی المسند: ۲۵۷/۱

⑦مِنْ ذَهَبٍ: دَ سرو زرو او سپینوزرو سره دَ اوبو دَ زینت طرف ته اشاره ده یا کیدې شی چه دَ ناوو رنګ بیان کړې شوې وی دَ شاتو ناوه دَ سرو زرو او دَ پیټو ناوه، دَ سپینو زرو به وی

**[۵۵۷۱] بې دینه مرتد خلق به دَحوض کوثر نه لرې ساتلې شی**

۵۵-()[۳] [۱]وَعَنْ سَهْلٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" «إِنِّي فَرَطُكُمْ عَلَى الْحَوْضِ، [۳]مَنْ مَرَّ عَلَيَّ شَرِبَ، وَمَنْ شَرِبَ لَمْ يَظْمَأْ أَبَدًا، [۴]لَيَرِدَنَّ عَلَيَّ أَقْوَامٌ أَعْرِفُهُمْ وَيَعْرِفُونَنِي، [۵]ثُمَّ يُحَالُ بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ، [۶]فَأَقُولُ: إِنَّهُمْ مِنِّي، فَيُقَالُ: إِنَّكَ لَا تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ؟ [۷]فَأَقُولُ: سُحْقًا سُحْقًا لِمَنْ غَيَّرَ بَعْدِي» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]زه به حوض کوثر باندې يم يعنې هلته به ستاسو د تولو نه مخکې رسيدو سره ستاسو استقبال کوم [۳]کوم چې ځما په خوا کې تيريږي هغه به د دې حوض اوبه څکي او څوک چې د دې اوبه اوڅکي هغه به هيڅکله تږې نشي [۴]هلته به ماته ځما د امت نه څه داسې خلق هم راشي چې زه به يې پيژنم او هغوئ به ما وپيژني [۵]خوبيابه ځما او د هغوئ ترمنځه څه شی حائل شي چې هغوئ به ځما نه او د حوض کوثر نه لري کړي [۶]په دي ليدو سره به زه وايم چې داخلق خو ځما خپل دی يعنې داخلق ځما د امت افراد دي يا دا هغه خلق دي چې په ښکاره ځما صحابيان پاتې شوي دي بيا دوئ ماته راتلو نه ولې منع کولی شي د دې په جواب کې به ماته وښودل شي چې تاسو ته معلومه نه ده دوئ ستاسو نه وروسته څه څه نوي خبري پيداکړي دی [۷]په دي اوريدو سره به زه وايم داخلق دي هلاك شي د الله جل جلاله د رحمت نه دي لرې شی چې ځما د وفات نه وروسته په دين او سنت کې تبديلي وکړه (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ①فَرَطُكُمْ: فرط پيش رو ته وائی، مخکښې د انتظام صحيح کولو دپاره تلونکې سړې. ②سُحْقًا: هلاک دې شی، ③غَيَّرَ: چه بدل ئې کړو.

**تسهیلات:**

**قوله: لَيَرِدَنَّ عَلَيَّ أَقْوَامٌ أَعْرِفُهُمْ وَيَعْرِفُونَنِي:**

**د پيژندګلو وجه:** نبی علیه السلام خو به ئې ځکه پيژنی چې دا به هغه خلقو وی کوم چې د نبی علیه السلام د وفات څخه روسته مرتد شوی وی. اويا به ئې د غرالمحجلين په وجه پيژنی. که ددې څخه بدعتيان مراد شی. اونبی علیه السلام به ځکه پيژنی چې دوی ته الله تعالی کوم مقام اوشان

---

[۱] ) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب الصراط جسر جهنم (رقم-۶۵۷۳) ومسلم في كتاب الفضائل/باب إثبات حوض نبينا صلى الله عليه وسلم وصفاته (رقم-۲۶ - (۲۲۹۰) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب ذكر الحوض (رقم-۴۳۰۴) واحمد في المسند: ۲۵۷/۱

ورکړې وی هغه به دبل هیڅ چا نه وی

**قوله: إِنَّكَ لَا تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ؟:**

**د محدثینوپه مصداق کښې دوه احتمالات:** ① دا به هغه خلق وی چه دَحضورپاك په زمانه کښې ئی اسلام راوړې وو بیا دَهغوی دَ وفات نه پس مرتد شو هغوی به دَحوض کوثر نه منع کولې شی

② دې څخه مراد هغه بدعتیان خلق دی چه په بدعت مکفره کښې اخته شوی وو.

**[۵۵۷۲] دَ حساب شروع کولودپاره پیغمبرانو ته خواست**

۵۵۷۲-()[۵] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «يُحْبَسُ الْمُؤْمِنُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُهَمُّوا بِذٰلِكَ، [۳] فَيَقُولُونَ: لَوِ اسْتَشْفَعْنَا إِلَى رَبِّنَا فَيُرِيحُنَا مِنْ مَكَانِنَا! [۴] فَيَأْتُونَ آدَمَ فَيَقُولُونَ: [۵] أَنْتَ آدَمُ أَبُو النَّاسِ، خَلَقَكَ اللّٰهُ بِيَدِهِ، وَأَسْكَنَكَ جَنَّتَهُ، [۶] وَأَسْجَدَ لَكَ مَلَائِكَتَهُ، وَعَلَّمَكَ أَسْمَاءَ كُلِّ شَيْءٍ، [۷] اشْفَعْ لَنَا عِنْدَ رَبِّكَ حَتَّى يُرِيحَنَا مِنْ مَكَانِنَا هٰذَا. [۸] فَيَقُولُ: لَسْتُ هُنَاكُمْ - وَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ الَّتِي أَصَابَ: أَكْلَهُ مِنَ الشَّجَرَةِ وَقَدْ نُهِيَ عَنْهَا - [۹] وَلٰكِنِ ائْتُوا نُوحًا أَوَّلَ نَبِيٍّ بَعَثَهُ اللّٰهُ إِلَى أَهْلِ الْأَرْضِ،

**ترجمه:** [۱] وحضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د قیامت په ورځ په میدانِ حشر کې مؤمنین منع کول کیږی یعنی ټول به په یوداسې ځاې کې محصور (بند سي) چې هیڅ سړی به هم څه قسم نقل او حرکت نشي کولی هر سړی به د سکتي په شان کیفیت کې حصار وي ددې پورې چې ټول خلق به د هغه محصور کیدو په وجه په سخت فکر او تردد کې مبتلاشي [۳] بیابه هغوئ خپلو کې تذکره کوي چې کاشکی آرمان مونږ ته یو داسې سړی حاصل شي چې زمونږ پروردګار ته زمونږ سفارش وکړي او مونږ تـه د دې سختی او پریشانی نـه خلاصـون راکـړي [۴] تـو بیابـه څـه خلـق د ټولـو نمایندګي کولو سره حضرت آدم علیه السلام ته راشي [۵] او هغوئ تـه بـه وایـي چې تاسـو آدم علیه السلام یئ د ټولو خلقو پلار یئ الله تعالیٰ تاسو بغیر څه واسطي او وسیلي خپـل لاس سره یعنی خپل قدرتِ کامله سره پیدا کړی تاسو تـه یـي د جنت سکونت (استوګنه) درکړله [۶] په خپلو فرشتو یي د تحیه سجده تاسو ته وکړله او تاسو تـه یـي د هرشـي نـوم و خودی [۷] نو تاسو خپل پروردګار ته چې تاسو ته یې دومره فضیلتونه او اعزازات درکړي دي زمونږ سفارش وکئ چې هغه مونږ ددې سخت هولناك او پریشان کن ځاي نه ویستلو سره راحت او اطمینان راکړي [۸] حضرت آدم علیه السلام په دې اوریدو سره به وایي چې زه د دې مرتبې لائق نه یم یعنی زه دا مرتبه درجه نه لرم چې نن ورځ بارګاهِ کبریائي کې د شفاعت کولو جرئت

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار (رقم-۶۵۶۵) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب ادنی أهل الجنة منزلةً فیها (رقم-۳۲۲ - (۱۹۳) والترمذی فی کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الشفاعة (رقم-۲۴۳۴)وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذکر الشفاعة (رقم-۴۳۱۲) واحمد فی المسند: ۱۴۴

وکړه بیا به حضرت آدم علیه السلام د خپل هغه خطا ذکر وکی چې هغوئ د غنمو د بوټي خوړلو په صورت کې کړې وه حالانکه هغه بوټي ونې ته نزدې ورتلو نه منع شوی وو [۹] دي نه وروسته به هغه اوواني تاسو نوح علیه السلام ته ورشئ ځکه چې هغه اول نبي دي چې الله تعالی زمکې والاؤته لیږلي دي ،

[۱] فَيَأْتُونَ نُوحًا فَيَقُولُ: لَسْتُ هُنَاكُمْ - [۲] وَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ الَّتِي أَصَابَ: سُؤَالَهُ رَبَّهُ بِغَيْرِ عِلْمٍ - [۳] وَلَكِنِ ائْتُوا إِبْرَاهِيمَ خَلِيلَ الرَّحْمَنِ. [۴] قَالَ: فَيَأْتُونَ إِبْرَاهِيمَ [۵] فَيَقُولُ: إِنِّي لَسْتُ هُنَاكُمْ - [۶] وَيَذْكُرُ ثَلَاثَ كِذْبَاتٍ كَذَبَهُنَّ - [۷] وَلَكِنِ ائْتُوا مُوسَى عَبْدًا آتَاهُ اللَّهُ التَّوْرَاةَ، وَكَلَّمَهُ وَقَرَّبَهُ نَجِيًّا.

**ترجمه:** [۱] نو خلک به نوح علیه السلام ته ورشي او هغوئ ته به د شفاعت د پاره درخواست وکی حضرت نوح علیه السلام به جواب ورکړي چې زه د دې مرتبې درجې لائق نه یم [۲] او هغوئ به د خپل هغه خطا غلطۍ ذکر وکړي چې هغوئ په ناپوهې کې د الله جل جلاله نه د خپل ځوی د غرقیدو نه د بچ کیدو د پاره د درخواست کولو په صورت کې کړې [۳] وه بیا به هغه مشوره ورکړي چې تاسو خلق ابراهیم علیه السلام ته ورشئ چې د الله جل جلاله خلیل او دوست دی [۴] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل هغه خلق به دي خبرې اورید وسره حضرت ابراهیم علیه السلام خلیل الله ته راشي او هغوئ ته به د شفاعت د پاره درخواست وکړي [۵] حضرت ابراهیم علیه السلام به جواب ورکړي زه د دې لائق نه یم [۶] او هغه به په دنیا کې درې ځله د خپل دروغ ویلو ذکر وکړي [۷] بیا به مشوره ورکړي چې تاسو خلق موسیٰ ته ورشئ هغه د الله جل جلاله داسې بنده دی چې الله جل جلاله ورته خپل عظیم الشان کتاب تورات عطا کړی دی او د بني اسرائیلو ټول انبیاء یې د هغوئ تابع جوړ کړل او براه راست خپلې هم کلامۍ سره یې مشرف کړی دی او خپل کمال قُرب عطا کولو سره خپل محرم راز یې جوړ کړی دی

[۱] قَالَ: فَيَأْتُونَ مُوسَى فَيَقُولُ: إِنِّي لَسْتُ هُنَاكُمْ - [۲] وَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ الَّتِي أَصَابَ - قَتْلَهُ النَّفْسَ - [۳] وَلَكِنِ ائْتُوا عِيسَى عَبْدَ اللَّهِ وَرَسُولَهُ وَرُوحَ اللَّهِ وَكَلِمَتَهُ [۴] قَالَ: فَيَأْتُونَ عِيسَى فَيَقُولُ: لَسْتُ هُنَاكُمْ [۵] وَلَكِنِ ائْتُوا مُحَمَّدًا عَبْدًا غَفَرَ اللَّهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ،

**ترجمه:** [۱] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل هغه خلق به دي خبرې اورید وسره حضرت موسیٰ علیه السلام ته راشي او شفاعت د پاره به ورته درخواست وکړي حضرت موسیٰ علیه السلام به جواب ورکړي چې زه د دې مرتبې لائق نه یم [۲] او د خپل خطا ذکر به وکړي چې یو قبطي قتلولو په صورت کې ځني سرزد شوی وه یعنې هغوئ په قهر راتلو سره یو قبطي یې په سوك وهلی وو چې په هغه سره مړسو [۳] بیا به هغه مشوره ورکړي چې تاسو عیسیٰ علیه السلام ته ورشئ چې د الله جل جلاله بنده او رسول دی هغه سراسر روحانی دی چې د جسماني مادي نه بغیر محض د الله جل جلاله په قدرت سره پیدا شوی وو او د نورو د جسماني حیات سبب به جوړیدی په

دي طور چې مړی به یې ژوندی کول او هغه د الله ﷻ کلمه ده (چي یو کلمه کن سره پیدا شوي وو) [۴] حضور ﷺ وفرمایل نو هغه خلق به په دي اوریدو سره حضرت عیسی ﷺ ته راشي او هغوئ ته به د شفاعت د پاره درخواست وکړي حضرت عیسی ﷺ به جواب ورکړي چې زه د دې مرتبې لائق نه یم [۵] البته تاسو خلق حضرت محمد مصطفی ﷺ ته ورشئ چې د الله ﷻ داسې بنده دی چې مخکني وروستني ټول ګناهونه یې الله ﷻ بخښلي دي هغوئ به یقینًا ستاسو خلق شفاعت وکړي

[۱] قَالَ: فَيَأْتُونِي [۲] فَأَسْتَأْذِنُ عَلَى رَبِّي فِي دَارِهِ، فَيُؤْذَنُ لِي عَلَيْهِ، [۳] فَإِذَا رَأَيْتُهُ وَقَعْتُ سَاجِدًا، [۴] فَيَدَعُنِي مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَدَعَنِي فَيَقُولُ: ارْفَعْ مُحَمَّدُ، [۵] وَقُلْ تُسْمَعْ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ، وَسَلْ تُعْطَهْ، [۶] قَالَ: فَأَرْفَعُ رَأْسِي فَأُثْنِي عَلَى رَبِّي بِثَنَاءٍ وَتَحْمِيدٍ يُعَلِّمُنِيهِ [۷] ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِي حَدًّا، [۸] فَأَخْرُجُ، فَأُخْرِجُهُمْ مِنَ النَّارِ وَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ، [۹] ثُمَّ أَعُودُ الثَّانِيَةَ فَأَسْتَأْذِنُ عَلَى رَبِّي فِي دَارِهِ. [۱۰] فَيُؤْذَنُ لِي عَلَيْهِ، فَإِذَا رَأَيْتُهُ وَقَعْتُ سَاجِدًا فَيَدَعُنِي مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَدَعَنِي، ثُمَّ يَقُولُ: "ارْفَعْ مُحَمَّدُ، وَقُلْ تُسْمَعْ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ، وَسَلْ تُعْطَهْ".

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمایل بیابه خلق د شفاعت درخواست سره ماته راشي او زه به د هغوئ د شفاعت د پاره تیارشم [۲] او دې مقصد د پاره به د رب العزت درته رسیدو سره د هغه بارګاه کې د پیش کیدو اجازت طلب کړم الله ﷻ به ماته خپله بارګاه کې د پیش کیدو اجازت عطاکړي [۳] زه چې د هغه په حضور کې رسیدو سره هغه ووینم نو د هغه د هیبت او خوف نه او د هغه تعظیم کولو د پاره به ورته په سجده پریوځم [۴] او الله ﷻ چې څومره وخت مناسب ګڼي هغومره وخت به ما په سجده پریږدي بیابه الله ﷻ وفرمایي چې اې محمد! سر پورته کړه [۵] څه چې وئیل غواړې هغه اووئیلو ستاخبره به اوریدل کیږي ته چې د چا په حق کې غواړې شفاعت وکړه ستا شفاعت به قبول شي او څه چې غواړې وغواړه دربه یې کړم [۶] حضور ﷺ وفرمایل په دې اوریدو سره زه به خپل سر پورته کړم او هغه حمد وتعریف سره چې پروردګار به یې ماته وښایي د هغه حمد وثناء به بیان کړم [۷] بیابه زه شفاعت کوم او زما د پاره به د شفاعت یوحد مقرر شي [۸] دې نه وروسته به زه د درګاه رب العزت نه بهر راووځم او هغه متعین جماعت به د دوزخ نه راایستلو سره په جنت کې داخل کړم [۹] بیابه د نورو جماعتونو په حق کې شفاعت د پاره به زه دوباره د رب العزت په در حاضر کیدو سره د هغه په خدمت کې د پیش کیدو اجازت طلب کړم [۱۰] ماته به د هغه بارګاه کې د پیش کیدو اجازت راکړې شي او هرکله چې زه د هغه په حضور کې رسیدو سره هغه ووینم نو په سجده به پریوځم او الله ﷻ چې د څوپورې غواړي زه به په سجده پروت یم بیابه وفرمایي اې محمد! خپل سر پورته کړه څه چې وئیل غواړې اووئیلو ستا خبره به اوریدل کیږي شفاعت کوه قبول به شي وغواړه دربه یې کړم

[۱] قَالَ: فَأَرْفَعُ رَأْسِي فَأُثْنِي عَلَى رَبِّي بِثَنَاءٍ وَتَحْمِيدٍ يُعَلِّمُنِيهِ، [۲] ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِي حَدًّا، فَأَخْرُجُ، فَأُخْرِجُهُمْ مِنَ النَّارِ وَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ، [۳] حَتَّى مَا يَبْقَى فِي النَّارِ إِلَّا مَنْ قَدْ حَبَسَهُ الْقُرْآنُ، أَيْ: وَجَبَ عَلَيْهِ الْخُلُودُ، [۴] ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ: ﴿عَسَى أَنْ يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَحْمُودًا﴾ [الإسراء: ۷۹] [۵] قَالَ: " وَهَذَا الْمَقَامُ الْمَحْمُودُ الَّذِي وُعِدَهُ نَبِيُّكُمْ ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمايل په دي اوريدو سره به زه خپل سر پورته کړم او هغه حمد او تعريف سره چې پروردګار به يې ماته وښايي د هغه حمد او ثناء به بيان کړم [۲] بيا به زه شفاعت کوم او زما د پاره به د شفاعت يو حد مقرر شي دي نه وروسته به زه درګاه رب العزت نه بهر را ووځم او هغه متعين جماعت به دوزخ نه راايستلو سره په جنت کې به يې داخل کړم [۳] دا دي پورې چې په دوزخ کې د هغه چا نه علاوه هيڅوك باقي پاتې نشي کوم چې قرآن هغوئ منع کړی وي (قتاده رحمه الله فرمائي) بس هغه خلق به په دوزخ کې باقي پاتې شي کوم چې د قرآن کريم د حکم په موجب هميشه هميشه د پاره د عذاب مستحق ګرځول شوي دي او هغه کفار دي [۴] بيا حضور ﷺ په استشهاد کښې د قرآن کريم دا آيت تلاوت کی عَسَىٰ أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا اميد دی چې ستاسو رب به تاسو ته مقام محمود درکړی [۵] او بيا حضور ﷺ وفرمايل داهغه مقام محمود دی چې د هغه وعده الله ﷻ ستاسو نبي سره کړيده (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يُهَمُّوا: غمونه اوفکرونو به کوی، ② اسْتَشْفَعْنَا: شفاعت اوغواړو مونږ. ③ يُرِيحُنَا: راحت او خلاصون به راکړی مونږته، ④ أَصَابَ: رسيدلې وو (کړې ده)، ⑤ نَجِيًّا: رازدار. ⑥ يَحُدُّ: حد او تعيين به اوشي. محدود به کړی ⑦ الْخُلُودُ: دهميشه هميشه. ⑧ مَقَامًا مَّحْمُودًا: دا يو خاص مقام اومرتبه ده چه زمونږ نبی عليه السلام ته به ملاويږي.

**تسهيلات:**

**قوله: لَسْتُ هُنَاكُمْ**

**دمذكوره جملې مفهوم:** يعني زه دَمقام دَ شفاعت نه لرې يم ته چه څنګه زماباره کښې ددې کاردَپاره خيال کوئ زه دَ دغه مقام دَپاره نه يم دا زمانه علاوه دَبل چا کار دې

**قوله. وَلَكِنِ ائْتُوا نُوحًا أَوَّلَ نَبِيٍّ بَعَثَهُ اللَّهُ إِلَى أَهْلِ الْأَرْضِ:**

**اشكال:** دَحضرت نوح عليه السلام نه مخکښې ډيرزيات انبياء تيرشوی دی نو هغوی ته اول نبی څنګه اووئيلې شو؟

**د اشكال جواب:** ① دَ کافرانودَ قوم طرف ته دَ مقابلې او دعوت سره اول نبی حضرت نوح عليه السلام وو چه الله تعالی رسول جوړولوسره ليږلې وو دهغوی دَ زمانې نه مخکښې کفر نه وو دَ کافرانو قوم طرف ته هغوی راتلونکی اول نبی وو.

④ اولو العزم نبی دَهغوی نه مخکښې څوك نه وو. دَ اولو العزم په اعتبار سره ورته اول نبی اوفرمائيلې شو

**قوله:** ثَلَاثَ كِذْبَاتٍ:

**د ثلاث څخه مراد:** ① انی سقیم: طرف ته اشاره ده. یعنی کله چې ابراهیم علیه السلام څخه د قوم خلقو مطالبه وکړه چې ولې میلې ته نه څې نودوی ورته وئیلی وو چې زه بیمار یم دلته دا توریه وه چې زه ستاسو دبتانو دعبادت څخه بیمار یم. په ما باندې ثقالت راځی اوما ته روحانی تکلیف ملاویږی

② "بل فعله کبیرهم" طرف ته اشاره ده یعنی کله چې ابراهیم علیه السلام بتان مات کړل او مشرکانو ده څخه پښتنه کړه چې دا بتان چا مات کړی دی نودوی ورته اوفرمائیل چې دا بتان دې غټ بت مات کړی دی حالانکه بتان خو ابراهیم علیه السلام مات کړی وو. په دې جواب کښې ابراهیم هغوی ته دهغوی غلطی په ګوته کول غوښتل چې د دې د خُلې څخه په خپله دا جواب راوځی چې دا خو بتان دی ماتول نشی کولې نودې به ورته اووائی چې تاسو دهغه بتانو عبادت کوئ چې تاسو په خپله هم د هغوی د عجز اقرار کوئ.

③ "هذه أختی" طرف ته اشاره ده. یعنی ابراهیم علیه السلام چې کله یوملک ته ورداخل شو اودهغې ملک د بادشاه دا قانون وو چې کله به یوه مسافره ښځه دهغه ملک ته داخله شوه نود هغې څخه به ئې خپل نفسانی خواهش پوره کولوخوکه هغې سره به نارینه وو اوهغه نارینه به د هغه محرم یعنی پلار یا روور وو. نوبیا به ئې ورته تعرض نه کولو په دغه موقع ابراهیم علیه السلام سره ساره بی بی وه نوابراهیم علیه السلام ورته د توریه په شکل کښې اوفرمائل چې دا زما خور ده یعنی زما اسلامی خور ده. دې دپاره چې د ظالم بادشاه د ظلم څخه بچ شی.

**په توریه باندې د کذب اطلاق:** دادَ توریه په توګه کلام وو دروغ نه وو. دَعربو په متل کښې توریه ته چا دروغ نه دی وئیلی البته په ظاهری الفاظو کښې داسې ښکاری چه دروغ دی. دَدې ظاهر په اعتبار سره په دې باندې دَ دروغو اطلاق کړې شوې دې.

**دتوریه تعریف:** توریه دې ته وائی چې متکلم مخاطب ته کومه خبره کوی نومخاطب ترې نزدې اومتبادره معنی مراد واخلی او متکلم ترې لرې معنی مراد واخلی لکه د هجرت په واقعه کښې چې کلی د ابوبکررضی الله عنه څخه تپوس اوشوچې دا تا سره څوک دې نوهغوی ورته جواب ورکړو چې دا دلیل دې ماته لار ښائی یعنی په هغه زمانه کښې به چې څوک ناآشنا ځائې ته تلل نویو کس به ئې په مزدوری باندې اونیولوچې ماته به ته لاره ښائې نوهغه ته به ئې دلیل وئیل نوپه دې جواب کښې ابوبکر رضی الله عنه د آخرت

او جنت لاره مراد اخستې وه او مخاطب ترې نزدې او متبادره معنی مراد اخستې وه دې نه توریه وائی.

**قوله: لَسْتُ هُنَاكُمْ:**

**د عیسی علیه السلام د شفاعت څخه عذر پیش کول:** یعنی حضرت عیسی علیه السلام به فرمائی دا زما کار نه دې ځکه چه زه خو خلقو دَ الله تعالی په مقابله کښې راوستې اودرولې یم او ماته ابن الله وئیلې شوې دی. اوس زه ویریږم هم او حیاء هم راځی په دې وجه دَ الله تعالی په وړاندې نه شم ورتلې. تاسو محمد ﷺ له لاړشئ ځکه چه الله تعالی دَهغوی وړاندې روستو تولې خطاګانې معاف کړی دی.

**قوله: ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِي حَدًّا:**

**په شفاعت کښې تحدید:** یعنی په شفاعت کښې به تحدید او تعین وی مثلاً دا تحدید به وی چه دَزناکارو شفاعت اوکړه دَ شرابیانو شفاعت اوکړه دَ فلانکی فلانکی شفاعت قبول دې او هغه تاسو اوکړئی دې نه علاوه سفارش مه کوئی. داتحدید دې.

**قوله: حَتَّى مَا يَبْقَى فِي النَّارِ إِلَّا مَنْ قَدْ حَبَسَهُ الْقُرْآنُ:**

**محبوس القرآن څخه مراد:** یعنی قرآن دا مخلدفی النار ګرځولې وی. ددې څخه کافران مراد دی چې دهغوی په باره کښې قران پاک فرمائیلی دی چې دوی به په جهنم کښې همیشه وی. ((خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا)).

### [۵۵۷۳] دمختلفو پیغمبرانو د سفارش کولو څخه معذرت

۵۵۷۳-()[۲] [۱]وَعَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ مَاجَ النَّاسُ بَعْضُهُمْ فِي بَعْضٍ، [۳]فَيَأْتُونَ آدَمَ فَيَقُولُونَ: اشْفَعْ إِلَى رَبِّكَ. [۴]فَيَقُولُ: لَسْتُ لَهَا وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِإِبْرَاهِيمَ فَإِنَّهُ خَلِيلُ الرَّحْمَنِ، [۵]فَيَأْتُونَ إِبْرَاهِيمَ، فَيَقُولُ: لَسْتُ لَهَا، [۶]وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِمُوسَى فَإِنَّهُ كَلِيمُ اللهِ، فَيَأْتُونَ مُوسَى - عَلَيْهِ السَّلَامُ - [۷]فَيَقُولُ: لَسْتُ لَهَا، وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِعِيسَى فَإِنَّهُ رُوحُ اللهِ وَكَلِمَتُهُ،

**ترجمه:** [۱]او حضرت انس رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲]هرکله چې د قیامت ورځ شي نو په میدان حشر کې به خلق یوبل سره د اضطراب او افرا تفري په حالت کې وي یعنې د هغه ځاي سختي ګرمي او هولناکي نه بیتا به کیدو سره اخوا دیخوا به تښتي راتښتي او په خپلو کې به صلاح مشوره کوي چې دي هولناکي نه د خلاصون لار راوایستل شي [۳]نو هغوئ به حضرت آدم ته راسي او ورته به عرض وکړي چې تاسو خپل پروردګار ته شفاعت وکئ چې زمونږ د حساب کتاب حکم جاري کی او مونږ ته اجر او

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب التوحید/باب کلام الرب عز وجل یوم القیامة مع الأنبیاء وغیرهم (رقم-۷۵۱۰) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب أدنی أهل الجنة منزلةً فیها (رقم-۳۲۶ - (۱۹۳)

ثواب یا عذاب راکولو سره زمونږ معامله یو طرف ته کړي [۴]حضرت آدم علیه السلام به جواب ورکړي چې زه د شفاعت اهل نه یم البته تاسو خلق ابراهیم ته ورشئ هغه د الله دوست دی او ستاسو شفاعت کولی شي [۵]نو هغه خلق به حضرت ابراهیم ته ورشي او حضرت ابراهیم به هم دا جواب ورکړي چې زه د شفاعت اهل نه یم [۶]البته تاسو خلق حضرت موسیٰ ته ورشئ هغه د الله کلیم دی او ستاسو شفاعت کولی شي هغه خلق به حضرت موسیٰ ته ورشي [۷]او حضرت موسیٰ به هم داجواب ورکړي چې زه د شفاعت اهل نه یم البته تاسو خلق حضرت عیسیٰ ته ورشئ هغه د الله تعالیٰ روح او د هغه کلمه ده او ستاسو شفاعت کولی شي

**حل اللغات:** - ① مَاجَ: یوبل کښې ورننوتل یعنې داضطراب او افرا تفری حالت کښې به وی،

[۱]فَيَأْتُونَ عِيسَى، فَيَقُولُ: لَسْتُ لَهَا، [۲]وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِمُحَمَّدٍ، فَيَأْتُونِي فَأَقُولُ: أَنَا لَهَا [۳]فَأَسْتَأْذِنُ عَلَى رَبِّي، فَيُؤْذَنُ لِي، [۴]وَيُلْهِمُنِي مَحَامِدَ أَحْمَدُهُ بِهَا لَا تَحْضُرُنِي الْآنَ، [۵]فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ، [۶]وَأَخِرُّ لَهُ سَاجِدًا، فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ! ارْفَعْ رَأْسَكَ، [۷]وَقُلْ تُسْمَعْ، وَسَلْ تُعْطَهْ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ، [۸]فَأَقُولُ يَا رَبِّ! أُمَّتِي أُمَّتِي. [۹]فَيُقَالُ: انْطَلِقْ، فَأَخْرِجْ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ شَعِيرَةٍ مِنْ إِيمَانٍ، [۱۰]فَأَنْطَلِقُ فَأَفْعَلُ، ثُمَّ أَعُودُ فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ، ثُمَّ أَخِرُّ لَهُ سَاجِدًا،

**توجمه:** [۱]هغه خلق به حضرت عیسیٰ ته ورشي حضرت عیسیٰ به هم دا جواب ورکړي چې زه د شفاعت اهل نه یم [۲]تاسو حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته ورشئ هغه ستاسو شفاعت کولی شي حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل بیابه خلق ماته راشي او ماته به د شفاعت درخواست وکړي زه به ورته وایم هو بې شکه زه دشفاعت اهل یم چې داکار کولی شم د بل چا د وس خبره نه ده [۳]بیابه زه بارګاه رب العزت کې د پیش کیدو اجازت طلب کړم ماته به د پیش کیدو اجازت راکړې شي [۴]او په دې سره به الله تعالیٰ خما په زړه کې د خپل حمد وثناء الفاظ واچوي [۵]چې د هغه په ذریعه به هغه وخت زه د هغه حمد وثناء اووایم او هغه حمد وثناء چې به په کومو الفاظو او کوم اسلوب کې وي دا وخت ماته معلومه نه ده [۶]بهرحال زه چې د هغه بارګاه کې پیش شم او هغه ووینم نو په سجده به ورته پریوځم او هغه حمد وثناء به یې بیان کړم بیابه ماته اوویل شي اې محمد! خپل سر پورته کړه [۷]څه چې وئیل غواړې اووئیلو ستا خبره به اوریدی شی څه چې غواړې وغواړه زه به یې درکړم کوم شفاعت چې کول غواړې وکړه زه به یې قبول کړم [۸]زه به سر د سجدې نه اوچتولو وروسته یا سجده کې عرض وکړم چې اې خما پروردګاره! خما امت وبخښې خما په امت باندې رحم وکړې یا دامطلب دی چې اې خما پروردګاره! زه د خپل امت په باره کې شفاعت کوم [۹]ماته به اوویل شي چې څه هر هغه سړی د دوزخ نه راوباسه چې د هغه په زړه کې د وربشي برابرهم ایمان وی [۱۰]نو زه به لاړشم او د پروردګار د حکم مطابق به عمل

وکړم دي نه وروسته به بیا بارګاهِ رب العزت کې حاضر شم او په هغه الفاظو کې د الله ﷻ حمد وثناء بیانولو سره په سجده به پریوځم

**حل اللغات:** -④ يُلْهِمُنِي: الهام به او کړی ماته، وابه چوی ماته، ④ مَحَامِدَ: حمدونه او ثناګانې، ④ تُعْجِزُهُ: اوربشي، ⑤ أَخِرُّ: پرېږو به او ځم،

١ فَيَقَالُ: يَا مُحَمَّدُ! ارْفَعْ رَأْسَكَ، وَقُلْ تُسْمَعْ، وَسَلْ تُعْطَهْ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ، ٢ فَأَقُولُ: يَا رَبِّ! أُمَّتِي أُمَّتِي. ٣ فَيَقَالُ: انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ أَوْ خَرْدَلَةٍ مِنْ إِيمَانٍ، ٤ فَأَنْطَلِقُ فَأَفْعَلُ، ثُمَّ أَعُودُ فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ، ثُمَّ أَخِرُّ لَهُ سَاجِدًا، ٥ فَيَقَالُ: يَا مُحَمَّدُ! ارْفَعْ رَأْسَكَ، وَقُلْ تُسْمَعْ، وَسَلْ تُعْطَهْ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ، ٦ فَأَقُولُ: يَا رَبِّ! أُمَّتِي أُمَّتِي، ٧ فَيَقَالُ: انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ أَدْنَى أَدْنَى أَدْنَى مِثْقَالِ حَبَّةِ خَرْدَلَةٍ مِنْ إِيمَانٍ، فَأَخْرِجْهُ مِنَ النَّارِ،

**ترجمه:** ١ بیا به ماته اوویل شي اې محمد! خپل سر پورته کړه څه چې وئیل غواړې اووئیلو ستا خبره به اوریدی شي څه چې غواړې وغواړه زه به یې درکړم او کو شفاعت چې کول غواړې وکړه زه به یې قبول کړم ٢ زه به عرض وکړم اې خما پروردګاره! خما امت وبخښې خما په امت رحم وکړې ٣ ماته به اوویل شي چې څه هرهغه سړی د دوزخ نه را اوباسه چې د هغه په زړه کې د ذرې یا د اورې رائي د دانې برابرهم ایمان دی ٤ بیا به زه لاړشم او د پروردګار د حکم مطابق به عمل وکړم دي نه وروسته به بیا زه بارګاه رب العزت کې حاضر شم او په هغه الفاظو کې به د الله ﷻ حمد وثناء ویلو سره په سجده ورته پریوځم ٥ بیا به ماته اوویل شي اې محمد! خپل سر پورته کړه څه چې وایې اووئیلو ستا خبره به اوریدل کېږي څه چې غواړې وغواړه زه به یې درکړم او کوم شفاعت چې کول غواړې وکړه زه به یې قبول کړم ٦ زه به عرض وکړم چې اې ربه خما امت وبخښې خما په امت رحم وکړې ٧ ماته به اوویل شي چې لاړ شه او هرهغه سړی د دوزخ نه رااوباسه چې د هغه په زړه کې د اورې رائي د ادنی نه ادنی ادنی دانې برابر هم ایمان دی

**حل اللغات:** -⑥ خَرْدَلَةٍ: د اورې دانه، غوښت،

١ فَأَنْطَلِقُ فَأَفْعَلُ، ثُمَّ أَعُودُ الرَّابِعَةَ فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ، ثُمَّ أَخِرُّ لَهُ سَاجِدًا، ٢ فَيَقَالُ: يَا مُحَمَّدُ! ارْفَعْ رَأْسَكَ، وَقُلْ تُسْمَعْ، وَسَلْ تُعْطَهْ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ، ٣ فَأَقُولُ: يَا رَبِّ! ائْذَنْ لِي فِيمَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ. ٤ قَالَ: لَيْسَ ذَلِكَ لَكَ، وَلَكِنْ وَعِزَّتِي وَجَلَالِي وَكِبْرِيَائِي وَعَظَمَتِي لَأُخْرِجَنَّ مِنْهَا مَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ نو زه به لاړشم او د پروردګار د حکم مطابق به عمل وکړم دي نه وروسته به زه په څلورم ځل بارګاه رب العزت کې حاضر شم او په هغه الفاظو کې به د الله ﷻ حمد وثناء کولو سره په سجده به ورته پریوځم ٢ بیا به زما نه پوښتنه وشي اې محمد خپل سر پورته کړه څه چې وئیل غواړې اووئیلو ستا خبره به اوریدل کېږي څه چې غواړې وغواړه زه به یې درکړم او کوم شفاعت کول چې غواړې زه به یې قبول کړم ٣ زه به عرض وکړم اې

خما ربه اوس ماته د هغه سري د شفاعت اجازت هم راکړه چې هغه لا اله الا الله ويلي وي [۴]پروردګار به وفرمايي چې نه د دې تا سره هيڅ تعلق نشته بلکه په خپل عزت او جلال او په خپل ذاتي او صفاتي عظمت او لوئي مي دي قسم وي هغه سرى به زه په خپله د دوزخ نه راوباسم چې هغه لا اله الا الله ويلي وي. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَقُولُ: يَارَبِّ! أُمَّتِي أُمَّتِي:

**دامتى په تكرار كښې دوه وجوهات:** ① دَامتى لفظ دَتاكيد دَپاره مكرر راوړلې شوې دې ② دَ مخكى اوروستى امت اراده په كښې شوې ده يعنى اې ربه زما اولنې امت هم اوبخې او روستنې امت هم اوبخې. "أي يارب ارحمهم واغفر لهم أولهم وآخرهم".

### [٥٥٧٤] دَشفاعت دَ ټولو نه زيات مستحق څوک دې؟

٥٥٧٤-()[٧] [۱] «عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "أَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، خَالِصًا مِنْ قَلْبِهِ أَوْ نَفْسِهِ» ". (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت كوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] دقيامت په ورځ به څما شفاعت د پاره خوش نصيبه سړى هغه وي چې هغه د زړه په خلوص سره يا دايي وفرمايل چې خلوصِ نفس سره لااله الا الله ويلي وي (بخارى ومسلم)

**حل اللغات:** - ① أَسْعَدُ: ډير خوش نصيبه، ډير نيک بخت.

**تسهيلات:** **قوله:** مَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، خَالِصًا مِنْ قَلْبِهِ أَوْ نَفْسِهِ:

**دنبى عليه السلام د شفاعت حقدار:** يعنى په خلوص دَ زړه اومكمل توحيد سره كلمه ويونكې سړې دَنبى مكرم دَ شفاعت دَ ټولونه زيات مستحق اواسعد او نصيب والا سړې اوګرځولې شو

### [٥٥٧٥] دَحضور ﷺ د شفاعت تفصيل

٥٥٧٥-()[٨] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: «أُتِيَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِلَحْمٍ [۲] فَرُفِعَ إِلَيْهِ الذِّرَاعُ، وَكَانَتْ تُعْجِبُهُ، [۳] فَنَهَسَ مِنْهَا نَهْسَةً، ثُمَّ قَالَ: [۴] " أَنَا سَيِّدُ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ، [۵] وَتَدْنُو الشَّمْسُ، فَيَبْلُغُ النَّاسَ مِنَ الْغَمِّ وَالْكَرْبِ مَا لَا يُطِيقُونَ، [۶] فَيَقُولُ النَّاسُ: أَلَا تَنْظُرُونَ مَنْ يَشْفَعُ لَكُمْ؟ فَيَأْتُونَ آدَمَ".

---

[۱] ) اخرجه البخارى فى كتاب العلم /باب الحرص على الحديث (رقم-٩٩) واحمد فى المسند:٢/٣٧٣

[۲] ) اخرجه البخارى فى كتاب تفسير القرآن /باب {ذرية من حملنا مع نوح إنه كان عبداً شكوراً} [الإسراء: ٣] (رقم-٤٧١٢) ومسلم فى كتاب الإيمان /باب أدنى أهل الجنة منزلة فيها (رقم-٣٢٧ - (١٩٤) والترمذى فى كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى أي اللحم كان أحب إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-١٨٣٧) وابن ماجه فى كتاب الأطعمة /باب أطايب اللحم (رقم-٣٣٠٧) واحمد فى المسند: ٢/٤٣٥

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ بیان کوي یوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کې پخه کړي غوښه راوړل شوه [۲] د هغه نه د وروڼ غوښه حضور ﷺ ته پیش شوه چې حضور ﷺ ته ډیره خوښه او مرغوبه وه [۳] حضور ﷺ د هغې ځخه په غاښونو غوښه اوشوکوله او بیا ئې وفرمایل [۴] زه به د قیامت په ورځ هرکله چې خلق د دواړو جهانونو د پروردګار فیصله اوریدوپه انتظار کې ولاړ وي د ټولو خلقو سرداریم [۵] په هغه ورځ به نمر د خلقو سرونو ته ډیر نزدې وي او د خلقو حالت به د مسلسل ودریدو د ګرمي د تاو او سختی او د هغه خاي دهولناك ماحول د اثر نه دومره غمناك وي چې هغوئ به همت بائیللي وي یعنی صبر او استقامت باندې به قادر نه وي [۶] او د ډیري پریشانی په عالم کې به یوبل ته وایي چې آخر تاسو یوداسي سړی ولی نه تلاش کوئ چې ستاسو پروردګار ته ستاسو سفارش وکړي او هغه تاسو ته د دې کرب واذیت تکلیف د حالت نه نجات درکړي نو خلق به حضرت آدم ته راشي

**حل اللغات:**- ① نَهَسَ: غاښونو سره اوشوکوله، ② الْكَرْبِ: اضطراب او د سختئ حالت.

[۱] وَذَكَرَ حَدِيثَ الشَّفَاعَةِ [۲] وَقَالَ: فَأَنْطَلِقُ فَآتِي تَحْتَ الْعَرْشِ، فَأَقَعُ سَاجِدًا لِرَبِّي [۳] ثُمَّ يَفْتَحُ اللَّهُ عَلَيَّ مِنْ مَحَامِدِهِ وَحُسْنِ الثَّنَاءِ عَلَيْهِ شَيْئًا لَمْ يَفْتَحْهُ عَلَى أَحَدٍ قَبْلِي، [۴] ثُمَّ قَالَ: يَا مُحَمَّدُ! ارْفَعْ رَأْسَكَ، وَسَلْ تُعْطَهْ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ، فَأَرْفَعُ رَأْسِي فَأَقُولُ: أُمَّتِي يَارَبِّ، أُمَّتِي يَارَبِّ، أُمَّتِي يَارَبِّ،

**ترجمه:** [۱] دې نه وروسته حضرت ابوهریره ﷺ یا خپله حضور ﷺ د شفاعت په سلسله کې د حدیث هغه اجزاء بیان کړل چې مخکې په یوحدیث کې بیان شوي دي چې خلق به یوبل پسې ټول انبیاء ته ورتلو سره د شفاعت درخواست وکړي او هغوئ ټول به جواب ورکړي چې مونږ د دې کار اهلیت نه لرو بیابه هغه خلق د شفاعت درخواست اخستو سره ماته راشي [۲] دې ذکرکولو نه وروستنه حضور ﷺ وفرمایل زه به د خلقو نه روانیدو سره د عرش لاندې راشم او هلته به بارګاه رب العزت کې د خپل پروردګار مخکې په سجده پریوځم [۳] بیابه الله ﷻ په ما د خپل حمد او بهترینې ثناء هغه الفاظ او طرز وطریقه منکشف کړي چې زما نه مخکې به هغه په هیچا نه وي منکشف کړي یعنی هغه موقع د پاره ځما په زړه کې به د خپل حمد وثناء هغه الفاظ او د اداب حضوري هغه طریقې القاء کړي چې زما نه مخکې به یې په بل چا نه وي القاء کړي بلکه هغه وخت نه مخکې ماته به هم د هغه څه علم نه وي ځرنګه چې مخکې په یوحدیث کې دي طرف ته اشاره شوي ده [۴] بیابه پروردګار وفرمایي اې محمد، خپل سر پورته کړه غواړه در به یې کړم که شفاعت کول غواړې نو قبول به یې کړم په دې اوریدو سره به زه خپل سر پورته کړم او عرض به وکړم اې ځما پروردګاره! ځما امت وبخښې

**حل اللغات:**- ③ أَقَعُ: پریو به ځم.

۱فَيُقَالُ: يَا مُحَمَّدُ! أَدْخِلْ مِنْ أُمَّتِكَ مَنْ لَا حِسَابَ عَلَيْهِمْ مِنَ الْبَابِ الْأَيْمَنِ مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ، ۲وَهُمْ شُرَكَاءُ النَّاسِ فِيمَا سِوَى ذَلِكَ مِنَ الْأَبْوَابِ". ۳ثُمَّ قَالَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّ مَا بَيْنَ الْمِصْرَاعَيْنِ مِنْ مَصَارِيعِ الْجَنَّةِ كَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَهَجَرَ".» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱بيابه راته اوويل شي اې محمد! ته د خپل امت نه هغه خلق چې حساب څني نه اخستل کيږي او بغير حساب نه د جنت مستحق دی د جنت د ښي طرف دروازي نه په جنت کې داخل کړه ۲او هغه خلق به د هغه دروازي نه علاوه د نورو طرفونو د دروازو د استعمال په حق کې هم دخلقو سره شريك دی ۳دي نه وروسته حضور ﷺ وفرمايل قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کې ځما ساه ده د جنت د دروازو د هري دروازي دواړو تمبو دمنځ فاصله دومره ده څومره چې دمکي او هجر مقام په منځ کې ده (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ④مَصَارِيع: د مصراع جمع ده د دروازې چوکاټ ته وائی. ⑤هَجَرَ: دَ بحرين دَ يوښارنوم دې کوم ته چه احساء وائی.

**تسهيلات**:

**نوټ**:د حديث د مختلفو جملووضاحت په مختلفو احاديثوکښې تيرشوې دې د دوباره ذکر کولو ضروت نشته.

## [۵۵۷٦]پل صراط سره د صله رحمی اودریدل

۵۵۷٦-()[۹] ۱وَعَنْ حُذَيْفَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- فِي حَدِيثِ الشَّفَاعَةِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۲قَالَ: «وَتُرْسَلُ الْأَمَانَةُ وَالرَّحِمُ ۳فَتَقُومَانِ جَنَبَتَيِ الصِّرَاطِ يَمِينًا وَشِمَالًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۱وحضرت حذيفه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه د شفاعت د سلسلې تفصيلي حديث نقل کولو سره بيان وکړو ۲چې حضور ﷺ بيا وروسته داهم وفرمايل چې امانت او رحم يعنی قرابتداري به وليږل شي ۳او هغوئ به دواړه د پل صراط ښي او چَپ طرف ته اودريږي (مسلم)

**تسهيلات**:

**قوله**: وَتُرْسَلُ الْأَمَانَةُ

**د ارسال مفهوم**: امانتونو اوصله رحمی به اوليږلې شی هغوی به دَ پل صراط نه چاپيره اودريږی دې دَپاره چه دَ صله ماتونکو نه خپل حق واخلی او صله يوځائی کونکو اوامانت داروخلقو باندې گواهی ورکړی چه هغوی زمونږ حق اداکړې دې. او په صله ماتونکواو خيانت کونکو باندې دا گواهی ورکړی چه دوی زمونږ حق نه دې ادا کړې

[1]) اخرجه مسلم فی كتاب الإيمان/باب أدنی أهل الجنة منزلةً فيها (رقم-۳۲۹ - (۱۹۵)

## [٥٥٧٧] د حضوراكرم ﷺ په شفاعت به الله پاك هغه خوشحاله كړي

٥٥٧٧-( )[١٠] ١ «وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- ٢ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- تَلَا قَوْلَ اللّٰهِ تَعَالَى فِي إِبْرَاهِيمَ ٣ ﴿رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ فَمَن تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي﴾ [إبراهيم: ٣٦] ٤ وَقَالَ عِيسَى: ﴿إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ﴾ [المائدة: ١١٨] ٥ فَرَفَعَ يَدَيْهِ، فَقَالَ: "اللّٰهُمَّ أُمَّتِي أُمَّتِي". وَبَكَى،

**ترجمه:** ١ او حضرت عبد الله بن عمرو بن عاص رضي الله عنهما روايت كوي ٢ يوه ورځ رسول الله ﷺ په خپل مجلس كې د خلقو په مخكې د حضرت ابراهيم علیه السلام په باره كې دا بيانولو د پاره چې هغه به د قيامت په ورځ د خپل امت متعلق بارگاه رب ذوالجلال كې څه عرض كوي دا آيت يي اوونيلو ٣ رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ فَمَن تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي او د آيت بقيه حصه داده وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ او د پوره آيت ترجمه داده چې اي پروردگاره! دا بتان د ډيرو خلقو د گمراهۍ سبب جوړشوي دي نو په دي په خلقو كي چې كومو څما اطاعت قبول كی يعنی توحيد اخلاص او توكل يي اختيار كی هغه څما خپل او څما تابعدار دی او چاچي څما نافرماني كړي ده نو ته معاف كونكي او رحم كونكی يي ٤ بيا حضور ﷺ په دي سلسله كې د حضرت عيسیٰ علیه السلام متعلق دا آيت اوونيلو چې په هغه كې دابيان دی چې هغه به د قيامت په ورځ د خپل امت په حق كې كوم عرض كوی إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ او د آيت بقيه حصه داده وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ او د پوره آيت ترجمه داده كه ته دوئ په عذاب كې مبتلا كړي نو بهرحال دوئ ستا بندگان دي يعنی ته د دوئ مطلق مالك يي دوئ ستا د حكم خلاف څه كولی شي او دوئ په عذاب كې مبتلا كولو نه تاڅوك منع كولی شي؟ او كه ته دوئ وبخښي نو بيشكه ته غالب او د حكمت خاوند يي يعنی په تا هيڅوك غالب نشته ته چې څه غواړي حكم كولی شي هيڅوك ستا د حكم د پس پشت غورځولو طاقت نه لري بيا داچي ستا حكمت او دانائي كې هم ذره برابر شك نشته ته د هريوه په باره كې هغه حكم كوي چې د هغه هغه مستحق دی او هرشي ته هغه ځاي وركوي چې د هغه هغه لائق دی ٥ دي نه وروسته حضور ﷺ خپل دواړه لاسونه پورته كړل او دعائي وكړه اې پروردگاره! څما امت وبخښي څما په امت رحم وكړي او دا دعا كولو سره حضور ﷺ په ژړا شو

١ فَقَالَ اللّٰهُ تَعَالَى: "يَا جِبْرِيلُ اذْهَبْ إِلَى مُحَمَّدٍ، ٢ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ، فَسَلْهُ مَا يُبْكِيهِ؟ ٣ فَأَتَاهُ جِبْرِيلُ، فَسَأَلَهُ فَأَخْبَرَهُ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِمَا قَالَ، ٤ فَقَالَ اللّٰهُ لِجِبْرِيلَ: اذْهَبْ إِلَى مُحَمَّدٍ فَقُلْ: إِنَّا سَنُرْضِيكَ فِي أُمَّتِكَ وَلَا نَسُوءُكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

) اخرجه مسلم في كتاب الإيمان/باب دعاء النبي صلى الله عليه وسلم لأمته. وبكائه شفقةً عليهم (رقم -٣٤٦ - (٢٠٢)

**توجمه:** [۱] نو سمد ستي الله ﷻ حضرت جبرائیل ﷺ ته حکم وکړي چې محمد ته ورشه [۲] و حالانکه اې جبرائیل ﷺ ستا پروردګار ته ښه معلومه ده هغه ته د هیڅ څه معلومولو ضرورت نشته خو د محمد ﷺ د دلاسې او د پروردګار د مهربانۍ او توجه د اظهار له خاطره د هغه نه پوښتنه وکړه چې ته ولې ژاړې [۳] دا حکم اوریدو سره حضرت جبرائیل ﷺ حضور ﷺ ته راغې او د ژړا پوښتنه یې ترینه وکړه حضور ﷺ په دې الفاظو کې ورته ونبودل چې د خپل امت په باره کې خوف خداوندي په ما خورشوي دي بیا حضرت جبرائیل ﷺ د الله تعالی په دربار کښې حاضر شو او صورتِ حال یې عرض کی [۴] بیا ورته الله ﷻ وفرمایل چې محمد ته ورشه او ورته اووئیلو هرکله چې وخت راشي نو مونږ به یقینًا تا د امت په باره کې راضي او خوشحاله کړو [۵] تا به هیڅ کله غمجن نه کړو (مسلم)

**حل اللغات:** - ① سَنُرْضِيكَ: مونږ به تا راضی اوخوشحاله کړو. ② لَانَسُوْءُكَ: مونږبه تا نه خفه کوو

**تسهیلات:**

**قوله:** تَلَاقَوْلَ اللّٰهِ تَعَالٰی..... قَالَ عِيسٰی: ﴿إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ﴾

**د قَالَ ماضی صیغې راوړلو کښې دوه توجیهات:** ① دلته راوی د قرآن پاک آیت چې څنګه دې هم هغه شان نقل کړې دې او هلته د الله تعالی او عیسی ﷺ مکالمه به د قیامت په ورځ کیږی خو الله تعالی د ماضی صیغه یعنی قال راوړې ده په دې کښې بلاغی نکته ده چې دا مکالمه به داسې په یقین سره کیږی لکه څنګه چې په تیره شوې زمانه کښې یوه واقعه شوې وی

② یعنی حضورپاك دَ عیسٰی ﷺ قول هم اولوستلو دلته قال عیسٰی په معنی دَ قول عیسٰی دې او "قَالَ يقول قولا وقيلا وقالاً" مصادر راځی نو دلته قال مصدری معنی کښې دې چه په معنی د قول دې "أي تلا النبی قول ابراهيم وتلا قول عيسى" نو دا په قول دَ ابراهيم ﷺ باندې عطف دې

**[۵۵۷۸] دَ قیامت اوشفاعت متعلق لوروضاحت**

۵۵۷۸- (۱)[۱۱] [۱] «وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] أَنَّ نَاسًا قَالُوا: يَارَسُولَ اللّٰهِ! هَلْ نَرٰى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ [۳] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ، هَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ بِالظَّهِيرَةِ صَحْوًا لَيْسَ مَعَهَا سَحَابٌ؟ [۴] وَهَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ صَحْوًا لَيْسَ فِيهَا سَحَابٌ؟". [۵] قَالُوا: لَا يَارَسُولَ اللّٰهِ، قَالَ: "مَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ اللّٰهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا كَمَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ أَحَدِهِمَا،

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب معرفة طریق الرؤیة (رقم-۲۹۹ - (۱۸۲)

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابو سعید خدري ﷺ نه روایت دی ۲ یوه ورځ مجلس نبوي کې خني خلقو اوویل یارسول الله! آیا د قیامت په ورځ به مونږ خپل پروردګار وینو؟ ۳ رسول الله ﷺ وفرمایل هو وینئ به یې بیا حضور ﷺ د دیدار الهي ثبوت واضح کولو د پاره خلقو نه پوښتنه وکړه آیا تاسو د غرمې په وخت چې آسمان باندې د وریځې ټکړه هم نه وي نمر لیدو کې څه تکلیف محسوسوئ؟ ۴ او دڅوارلسمې شپې د سپوږمې په لیدو کې کله چې صفا وي اوڅه وریځ نه وي تاسو څه تکلیف محسوسوي؟ ۵ خلقو عرض وکړو هیڅ کله نه یارسول الله! وي فرمایل نو بیا د قیامت په ورځ به تاسو د الله ﷻ په لیدو کې هم څه تکلیف نه محسوسوئ مګر څرنګه چې تاسو ددې دوارو یعنی د نمر او سپوږمۍ د هریو په لیدو کې څومره تکلیف محسوسوي

**حل اللغات:**- ① الظَّهِيرَةِ: غرمه. ② صَحْوًا: چه ښه صفا وی. ③ سَحَابٌ: وریځ. ④ الْبَدْرِ: د څوارلسمې شپې سپوږمۍ.

۱ إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ: ۲ لِيَتَّبِعْ كُلُّ أُمَّةٍ مَا كَانَتْ تَعْبُدُ: ۳ فَلَا يَبْقَى أَحَدٌ كَانَ يَعْبُدُ غَيْرَ اللهِ مِنَ الْأَصْنَامِ وَالْأَنْصَابِ إِلَّا يَتَسَاقَطُونَ فِي النَّارِ ۴ حَتَّى إِذَا لَمْ يَبْقَ إِلَّا مَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللهَ مِنْ بَرٍّ وَفَاجِرٍ ۵ أَتَاهُمْ رَبُّ الْعَالَمِينَ ۶ قَالَ: فَمَاذَا تَنْتَظِرُونَ؟ يَتْبَعُ كُلُّ أُمَّةٍ مَا كَانَتْ تَعْبُدُ. ۷ قَالُوا: يَا رَبَّنَا فَارَقْنَا النَّاسَ فِي الدُّنْيَا أَفْقَرَ مَا كُنَّا إِلَيْهِمْ وَلَمْ نُصَاحِبْهُمْ».

**ترجمه:** ۱ دې نه وروسته حضور ﷺ وفرمایل هرکله چې د قیامت ورځ شی او ټول مخلوق میدان حشر کې جمع شي نو یو اعلان کونکی به اعلان وکړي ۲ چې کومې طبقې په دنیا کې د کوم شي عبادت کوی هغوئ دې په هغه پسې شی ۳ نو کومو خلقو چې د الله ﷻ په ځای د بتانو او انصابو عبادت کوی په هغوئ کې به یو هم بچ نشي او ټول به په دوزخ کې واچول شي څکه چې انصاب او بتان به چې د هغه عبادت کیدی په دوزخ کې وغورځول شي نو هغوئ سره به د هغوئ عبادت کونکی هم په دوزخ کې واچول شي ۴ دې پورې چې د هغه خلقو نه ماسوا هیڅوک موجود به پاتې نشي چې د الله ﷻ عبادت یې کولو که هغه نیك وي یابد ۵ نو د ټول جهانونو پروردګار به هغوئ ته راشي ۶ او ورته وبه فرمایي تاسو د چا منتظریاست هره طبقه دې هغه شی پسې ځي چې د هغه یې عبادت کوی نو بیا دلته څه ته ولاړ یئ تاسو هم ولې نه ځئ ۷ هغه خلق به جواب ورکړي چې زمونږ پروردګار مونږ په دنیا کې د هغه خلقو نه چې په دنیا کې د غیر الله عبادت کوی او اوس خپلو معبودانو پسې دوزخ ته ځي پوره طور سره جدائي اختیار کړې ده حالانکه مونږ خپل دنیاوي ضرورتونو کې د دې خلقو د مدد او اعانت ضرورت مند وو لیکن مونږ هیڅ کله د هغوئ صحبت او هم نشیني خوښه نه کړله او نه مو کله د هغوئ اتباع وکړله بلکه همیشه د هغوئ مدّ مقابل وو او صرف ستا د رضا له خاطره

هغوئ سره مو جنګ او جدال کوی اوس چې مونږ د هغوئ هیڅ قسم ضرورتمند هم نه یو او د هغه ټولو منزل هم دوزخ دی نو مونږ به دهغوئ سره څرنګه څو

**حل اللغات**: ⑤الْأَنْصَابِ: درګاهونه. چرته چه بُتان اودرولې شوی وی

**قوله** فَلَا يَبْقَى أَحَدٌ كَانَ يَعْبُدُ غَيْرَ اللّٰهِ مِنَ الْأَصْنَامِ وَالْأَنْصَابِ:

"الْأَنْصَابِ" هغه مقامات دی چرته چه مشرکان په بتانو باندې څیزونه اچوی کوم ته چه تهان وائی داسې ځایونو کښې به هغه خلقو کله کانړی لګول کله به ئی ونه اودرولې دې ته په آسانو الفاظو کښې یادګارونه وئیلی شی

**قوله** أَنَا أَهُمْ رَبُّ الْعَالَمِينَ:

**دالله تعالی په حق کښې د اتیان معنی**:دا متشابه الفاظ دی. دَ سلف په نیز دَدې هم دغه ظاهری ترجمه کیږی مګردَ "مایلیق بشانه" تعبیرکوی. متشابهاتو کښې داسې تاویل کول جائز نه دی په کوم سره چه دَهغې ظاهری معنی فوت کیږی. مثلاً دَ "يد" ترجمه قدرت سره کول د احنافو په نیزجائز نه ده.

٥٤٧٧-( ) ①وَفِي رِوَايَةِ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: (فَيَقُولُونَ: هَذَا مَكَانُنَا حَتَّى يَأْتِيَنَا رَبُّنَا، فَإِذَا جَاءَ رَبُّنَا وَفِي رِوَايَةِ أَبِي سَعِيدٍ «فَيَقُولُ هَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ آيَةٌ تَعْرِفُونَهُ؟ ③فَيَقُولُونَ: نَعَمْ، فَيُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ، ④فَلَا يَبْقَى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ لِلّٰهِ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِهِ إِلَّا أَذِنَ اللّٰهُ لَهُ بِالسُّجُودِ، ⑤وَلَا يَبْقَى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ اتِّقَاءً وَرِيَاءً إِلَّا جَعَلَ اللّٰهُ ظَهْرَهُ طَبَقَةً وَاحِدَةً ⑥كُلَّمَا أَرَادَ أَنْ يَسْجُدَ خَرَّ عَلَى قَفَاهُ، ⑦ثُمَّ يُضْرَبُ الْجِسْرُ عَلَى جَهَنَّمَ، وَتَحِلُّ الشَّفَاعَةُ»

**ترجمه**: ①او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایت کې دلته نقل شوي دي چې هغه خلق چې د الله ﷻ عبادت يې کولو هغوئ به دا وايي چې مونږ ددي ځاي نه دهغه پورې نه ځو د خوپوري چې زمونږ پروردګار مونږ ته را نشي يعنی د څوپوري چې هغه په مونږ داسې تجلي ونه فرمايي چې د هغه په سبب مونږ هغه وپيژنو چې دا زمونږ پروردګار دی او هرکله چې زمونږ پروردګار د خپل تجلي او صفاتو د اظهار په صورت کې چې د هغه په سبب مونږ د هغه د پيژندو صلاحيت لرو مونږ ته راشي نو مونږ به يي په ښه شان وپيژنو ②او دحضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه د روايت الفاظ دادي چې الله ﷻ به د هغوئ نه پوښتنه وکړي آيا ستاسو او ستاسو د پروردګار په منځ کې هغه نښه شته چې د هغه په ذريعه تاسو هغه وپيژنئ ③هغوئ به وايي هو هغه نښه شته بيابه د الله ﷻ ساق کولاؤ شي«ساق دالله صفت دی کما يليق بشانه پښتو ترجمه يی په پنډی کول ناروادی» او په دي موقع به الله ﷻ هرهغه سړي ته د سجدي اجازت او توفيق عطا کړي چې په دنيا کې

[1] اخرجه البخاری فی کتاب التوحید/باب قول الله تعالی: {وجوه یومئذ ناضرة إلی ربها ناظرة} [القیامة: ٢٣] (رقم-٧٤٣٩) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب معرفة طریق الرؤیة (رقم-٣٠٢ - (١٨٣) واحمد فی المسند:٢/٥٣٤

چې په دنیا کې به یې په خپله سجده کوله د چادخوف یاریاکاري د پاره نه وه ۴ وچاچې د چا د خوف نه یا خلقوته د ښودني او آوروني د پاره الله ﷻ ته سجده کوله الله ﷻ به د هغه ملا (شا) یوه پوره تخته جوړه کړي یعنی د هغه د شا او ملا د هډوکو جوړ به بالکل ختم کړي او د هغه پوره شا به یوه تخته جوړه کړي چې هغه ټیټیدي نشي او نه سجده کولي شي ۵ نو هغه به سجدي ته تلو د پاره خکته کیدل وغواړي نو نسکور به راولوېږي ۶ بیابه په دوزخ برسیره د هغه په منځ کې پُلِ صراط کینبودل شي او د شفاعت اجازت به ورکړي شي

**حل اللغات:** - ① طَبَقَةً: تخته، ② خَرَّ: راوبه غورځیږي، ③ الْجِسْرُ: پُل چه پُل صراط ورته وائی.

| ١ وَيَقُولُونَ: اللَّهُمَّ سَلِّمْ سَلِّمْ، ٢ فَيَمُرُّ الْمُؤْمِنُونَ كَطَرْفِ الْعَيْنِ وَكَالْبَرْقِ، ٣ وَكَالرِّيحِ وَكَالطَّيْرِ، وَكَأَجَاوِيدِ الْخَيْلِ وَالرِّكَابِ، ٤ فَنَاجٍ مُسَلَّمٌ، ٥ وَمَخْدُوشٌ مُرْسَلٌ، ٦ وَمَكْدُوسٌ فِي نَارِ جَهَنَّمَ، ٧ حَتَّى إِذَا خَلَصَ الْمُؤْمِنُونَ مِنَ النَّارِ، ٨ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا مِنْ أَحَدٍ مِنْكُمْ بِأَشَدَّ مُنَاشَدَةً فِي الْحَقِّ - وَقَدْ تَبَيَّنَ لَكُمْ - مِنَ الْمُؤْمِنِينَ لِلَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِإِخْوَانِهِمُ الَّذِينَ فِي النَّارِ، ٩ يَقُولُونَ: رَبَّنَا كَانُوا يَصُومُونَ مَعَنَا، وَيُصَلُّونَ، وَيَحُجُّونَ. |
|---|

**ترجمه:** ١ نو ټول انبیاء علیهم السلام به د خپل خپل امتونو په حق کې طلب استقامت او سلامتیا د پاره دا دعا کوي چې اې الله! دوئ پُلِ صراط باندې سلامتیا سره تیر کړئ دوی په دوزخ کې د لویدو نه محفوظ کړي ٢ نو مسلمانان خلق به پُلِ صراط باندې داسې تیر شي چې بعضې به د سترګي په رپ کې تیر شي بعضې دبجلی د پړك په شان تیر شي ٣ بعضې به د هوا په شان تیر شي بعضې به د مارغانو د آلوتو په شان تیر شي او بعضې به د تیز رو او خوش رفتار اسونو په شان او بعضې به د اوښ د چال په شان تیر شي ٤ نو په هغوئ کې به څه مسلمانان خو هغه وي چې د دوزخ د اور نه به بالکل سلامتیا او نجات بیا مومي یعنی د پُلِ صراط برسیره نه دتیریدو په وخت به هغوئ ته هیڅ ضررونه رسیږي ٥ او څه مسلمانان به هغه وي چې د زخم خوړلو سره به وځي او د دوزخ نه به نجات بیا مومي ٦ او څه مسلمانان به هغه وي چې پاره پاره ټکړي ټکړي به شي او دوزخ ته به ورډیکه شي ٧ ددې پورې چې هرکله مؤمن د دوزخ د اور نه نجات بیا مومي ٨ نو قسم دی په هغه ذات چې د هغه د قدرت په لاس کې ځما ساه ده په تاسو کې به هرسړی د ظاهر او ثابت شده حق حصول کې دومره شدید جد وجهد او سختي نه کوي څومره سخت کوشش چې به مؤمن د قیامت په ورځ د خپلو ورونو د نجات دپاره د الله تعالی په حضور کې کوي ٩ هغوئ به وایي اې زمونږ ربه دوي په دنیا کې زمونږ سره روژې نیولې اومونځونه یې کول اوحجونه یې کول ،

**حل اللغات:** - ③ الْبَرْقِ: بجلی ⑤ أَجَاوِيدِ: دَ أجواد جمع ده او اجواد دَجواد جمع ده ښکلي اس ته وائی. ⑥ نَاجٍ: نجات به ئې اوشی. خلاص به شی ⑦ مَخْدُوشٌ: دَخدش نه دې زخمی کیدل او شلیدل

⑧مُرْسَلٌ: پريخودونكى. خلاصيدونكى، ⑨مَكْدُوشٌ: دَ كدس نه دې ديكه به وركولې شى (چه دوزخ كښې پريوځى)، ⑩مُنَاشَدَةٌ: سخت كوشش اومحنت، په سفارش كښې ډير كوشش كول.

①فَيَقَالُ لَهُمْ: أَخْرِجُوا مَنْ عَرَفْتُمْ، فَتُحَرَّمُ صُوَرُهُمْ عَلَى النَّارِ، ②فَيُخْرِجُونَ خَلْقًا كَثِيرًا، ③ثُمَّ يَقُولُونَ: رَبَّنَا مَا بَقِيَ فِيهَا أَحَدٌ مِمَّنْ أَمَرْتَنَا بِهِ، ④فَيَقُولُ: ارْجِعُوا فَمَنْ وَجَدْتُمْ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالَ دِينَارٍ مِنْ خَيْرٍ فَأَخْرِجُوهُ، ⑤فَيُخْرِجُونَ خَلْقًا كَثِيرًا. ⑥ثُمَّ يَقُولُ: ارْجِعُوا فَمَنْ وَجَدْتُمْ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالَ نِصْفِ دِينَارٍ مِنْ خَيْرٍ فَأَخْرِجُوهُ، ⑦فَيُخْرِجُونَ خَلْقًا كَثِيرًا،

**ترجمه**: ①نودوي ته به و وئيل شي چې ځئ ورشئ او كوم خلق چې تاسو پيژنئ. هغوى د دوزخ څخه را وكاږئ د دوزخ اور به د هغوئ په صورتونو حرام شوي وي ②نو هغه مؤمنان به ډيرخلق د دوزخ نه را وكاږي ③بيابه وايي چې اې زمونږ پروردګاره د كومو خلقو چې تا د دوزخ نه دايستلو حكم كړى وو يعنى اهلِ صلوة اهلِ زكوة اهلِ حج وغيره په هغوئ كې اوس دوزخ كې څوك باقي نه دى پاتې شوى ④الله ﷻ به فرمايي بيا ورشئ او هرهغه سړى هم دوزخ نه را وكاږئ چې د هغه په زړه كې تاسو د دينار برابر هم نيكي پيدا كئ ⑤نو مؤمنان به لاړ شي او ډير خلق به دوزخ نه را وكاږي ⑥دي نه وروسته به بيا الله ﷻ هغوئ ته وفرمايي اوس هرهغه سړى دوزخ نه را وكاږئ چې د هغه په زړه كې د نيم دينار برابرهم نيكي پيدا كئ ⑦نو هغه مومنان به لاړ شي او ډير خلق به دوزخ نه را وكاږي

①ثُمَّ يَقُولُ: ارْجِعُوا فَمَنْ وَجَدْتُمْ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ مِنْ خَيْرٍ ②فَأَخْرِجُوهُ، فَيُخْرِجُونَ خَلْقًا كَثِيرًا، ③ثُمَّ يَقُولُونَ: رَبَّنَا لَمْ نَذَرْ فِيهَا خَيْرًا، ④فَيَقُولُ اللَّهُ: شُفِّعَتِ الْمَلَائِكَةُ، وَشُفِّعَ النَّبِيُّونَ، وَشُفِّعَ الْمُؤْمِنُونَ، ⑤وَلَمْ يَبْقَ إِلَّا أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ، ⑥فَيَقْبِضُ قَبْضَةً مِنَ النَّارِ فَيُخْرِجُ مِنْهَا قَوْمًا لَمْ يَعْمَلُوا خَيْرًا قَطُّ ⑦قَدْ عَادُوا حُمَمًا، فَيُلْقِيهِمْ فِي نَهْرٍ فِي أَفْوَاهِ الْجَنَّةِ يُقَالُ لَهُ نَهْرُ الْحَيَاةِ،

**ترجمه**: ①بيابه الله ﷻ حكم وكړي چې لاړشئ اوس هرهغه سړى دوزخ نه را وكاږئ چې د هغه په زړه كې تاسو د نيكي له قسمه ذره برابرهم څه شى بيا مومي ②نو هغه مؤمنان به لاړ شي او ډير خلق به دوزخ نه را وكاږي ③او وايي به چې پروردګاره! مونږ په دوزخ كې نيكي كونكى باقي نه دى پريښى يعنى اوس په دوزخ كې داسې هيڅوك باقي نه دى پاتې شوى چې د هغه په زړه كې د اصل ايمان نه علاوه د ادنى نه ادنى درجې او ذره برابر بلكه د ذرې نه هم كم ترچې څه نيكي وي كه د هغه نيكي تعلق اعمالو سره وي يا د زړه دافعالو سره ④الله ﷻ به فرمايي چې دفرښتو شفاعت قبول كړل شو او د پيغمبرانو هم شفاعت قبول كړل شو اود مؤمنانو هم شفاعت قبول كړل شو او د هغه ټولو د شفاعت تعلق دهغه خلقو سره وو چې د هغوئ اعمالنامه كې څه ناڅه نيكي ضرور ده كه هغه نيكي د ذرې برابر يا د هغه نه هم كمتروي ⑤او دغه شان اوس څه داسې ذات باقي نه دى

باتې شوی چې خپله خبر رسولو یا خبر رسونکي نه د سفارش او شفاعت په ذریعه دچاسره رحم او مروت او مهرباني اود همدردی معامله وکړي لیکن اوس د ارحم الراحمین ذات باقي دی چې د هغه رحمت د هغه کرم او د هغه مهرباني هریوه باندې شوی اوکیدونکی ده او د هغه د رحمت او مهربانۍ د اثراتو په مقابله کې د هر چا رحمت او مهربانۍ هیڅ هم نده [۶] او دي فرمایلو سره به الله ﷻ ددوزخ نه خپل موټ ډکولو سره هغه خلق را وکاږي چې هغوئ کله هم څه وړه یا لویه نیکي نه وي کړي [۷] خلق به په دوزخ کې د سوزیدو په وجه سکاره شوي وي نو هغوئ به په هغه نهر کې واچوي چې د جنت د دروازو مخې ته دی او هغه ته نهر حیات وايي

**حل اللغات:** - ⑪ قَبْضَةً: موټي، لپه، ⑫ حُمَمًا: سکاره شوی،

[۱] فَيَخْرُجُونَ كَمَا تَخْرُجُ الْحِبَّةُ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ، [۲] فَيَخْرُجُونَ كَاللُّؤْلُؤِ، فِي رِقَابِهِمُ الْخَوَاتِمُ، [۳] فَيَقُولُ أَهْلُ الْجَنَّةِ: هَؤُلَاءِ عُتَقَاءُ الرَّحْمٰنِ، [۴] أَدْخَلَهُمُ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ عَمَلٍ عَمِلُوهُ وَلَا خَيْرٍ قَدَّمُوهُ، [۵] فَيُقَالُ لَهُمْ: لَكُمْ مَا رَأَيْتُمْ وَمِثْلُهُ مَعَهُ» .مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بیا به هغه خلق هغه نهر نه داسې تروتازه راوځي لکه دا نه چې د سیلاب په خځلو کې زرغونه شي ، یعنی څرنګه چې سیلابی خزله کی پرته دانه ډیر ښه اوشنه معلومیږي دغه شان داخلق به هم په هغه نهر کې غوپه ورکولو نه وروسته ډیر تیزۍ سره بهتر جسماني حالت کې به واپس راشي او ښه تروتازه او توانا به معلومیږي [۲] او داخلق به د هغه نهر نه دملغلري (ملغلري) په شان صاف شفاف بهر را وځي د هغوئ په څټونو کې به مهرونه لګیدلي وي [۳] هرکله چې اهلِ جنت داخلق امتیازي علامو سره ووینی نو وايي به چې داهغه خوش نصیبه خلق دي چې خپله د الله رحمٰن آزارکرده دی [۴] الله ﷻ دوی د خپل خاص فضل وکرم لاندي د دې امر با وجود په جنت کې داخل کړی دی چې نه دوئ په دنیا کې څه نیك عمل کړی وو او نه دوئ کم نه کم د افعالِ قلب په صورت کې څه نیکي کولو سره مخکې لیږلې وه [۵] او بیابه د الله ﷻ د طرف نه دی آزادشده خلقوته اوویل شي چې جنت کې تاسو څه وینئ یعنی ستاسو دنظرترحده پورې چې کوم اعلی نه اعلی نعمتونه درته په نظر راځي نه صرف دا نه بلکه د دې په شان نور ډیر نعمتونه هم تول ستاسو دپاره دي . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ⑬ الْحِبَّةُ: دَ حبوب نه دي دَ دانې په معنی کښې دي ⑭ حَمِيلِ: خځله، ⑮ السَّيْلِ: سیلاب. ⑯ الْخَوَاتِمُ: دَ خاتم جمع ده او خاتم ګوتمې ته وائی مهر ته هم وائی.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَيَمُرُّ الْمُؤْمِنُونَ كَطَرْفِ الْعَيْنِ...... وَكَأَجَاوِيدِ الْخَيْلِ وَالرِّكَابِ

**دعملو عملولوپه اعتبارسره په پل صراط تیریدل:** دلته د صفت اضافت دَ موصوف طرف

ته دي "اي كالخيل الجواد" هر سړي به دَخپلو اعمالو په اعتبارسره په پل صراط باندې تيريږي دَهر رفتار جدا جدا تشبيه ده څوك به تيز وي او څوك به سست.

**قوله: وَمَخْدُوشٌ مُرْسَلٌ:**

**په زخمي حالت كښې د جهنم څخه وتل:** بعضې مسلمانان به په داسې حالت كښې دجهنم څخه اوځي چې زخمي شوې به وي خوبيا هم دجهنم څخه به راؤويستلې شي.

**قوله: وَمَكْدُوسٌ فِي نَارِ جَهَنَّمَ:**

**د مكدوس معنى:** دالفظ شين سره مكدوش هم وئيلې شوې دې دواړه الفاظو يومعنى ده چه سخت زغلوونكې، دفع كول، زخمي كول او ټكړه ټكړه كولو سره دوزخ كښې دَ غورزولو په معنى كښې دې.

**دويم روايت لفظ او معنى:** په يو روايت كښې دَ "مكروس" لفظ هم راغلې دې دكوم معنى چه داده چه دَدواړو لاسونو نه اوتړلې شي يودَ بل دَ پاسه په دوزخ كښې وراوغورزولې شي.

**قوله: مَا مِنْ أَحَدٍ مِنْكُمْ بِأَشَدَّ مُنَاشَدَةً فِي الْحَقِّ**

**دمذكوره جملې مفهوم:** يعنى په خدائى قسم چه تاسو كښې يوكس هم په خپل واضح او ثابت شوى حق كښې دومره سخت كوشش او سختى نه وى څومره سخت محنت او كوشش چه به مؤمن دَ قيامت په ورځ دَ الله تعالى په مخكښې دَ خپلو مسلمانانو رونړو دَ خلاصى دَپاره كوى. يعنى بنه مطالبه مناظره او سفارش به كوى او وائى به اې الله دوى دَ دوزخ نه راؤباسه

**قوله: رَبَّنَا لَمْ نَذَرْ فِيهَا خَيْرًا،**

**ټول ګناهګاران مسلمانان د جهنم څخه راويستل:** يعنى مونږ په دوزخ كښې څوك داسې سړې پرينخودو په چاكښې چه دَ رتې برابر خير ايمان اونيك عمل وى ټول مو راويستى دى.

**قوله: فَيَخْرُجُونَ كَمَا تَخْرُجُ الْحِبَّةُ**

**دحبة په معنى كښې درې اقوال:** ① خبة دې دانه ته بقلة حمقآء هم وائى. دا سيلاب سره يوه توره دانه راځى او په يوه شپه ورځ كښې دَ هغې بوټې دير زر راټوكيږى.

② علامه كسائى وئيلى دى چه دا دانه دَ ګل ريحان يعنى دَ تخم ملنګه تخم دې.

③ نورو شارحينو دې دا دانه ته يو صحرائى بې نسب دانه ګرځولې ده. "هى بذر الصحراء" دا قول زيات واضح دې.

**دحبة سره د تشبيه وجه:** داداسې عجيبه دانه ده كه كانړې وى اوكه لرګې وى اوكه هرڅه هم وى په هغې باندې پريوتلو سره په يوشپه ورځ كښې دَ دې بوټې راټوكيږى.نولكه څنګه چه دا دانې دير زر بوټې راټوكوى دغه شان به په هغه نهر كښې دوزخيان خلق دير

زر په ښائسته شکل کښې راټوکیږي

**قوله: فِي حَمِيلِ السَّيْلِ:**

**وحميل السيل څخه مراد:** داده محمول په معنی کښې دي يعنی سيلاب د خس اوخشاك سره دا دانه د صحراء نه راوچتوي راوړي ئې لکه څنګه چه دده بوټي ښائسته وي دغه شان به د هغه نهر نه سوزيدلی دوزخيان په ښائسته شکلونو کښې د مرغلرو په شان راوځي او تروتازه به وي.

**قوله: فَيَخْرُجُونَ كَاللُّؤْلُؤِ فِي رِقَابِهِمُ الْخَوَاتِمُ:**

**دخواتيم په مصداق کښې دوه اقوال:** ① يعنی څه علامات به وی په کوم سره چه به دهغوی پيژندګلو کيږی مثلاً مهرونه به لګيدلي وی وغيره وغيره

② صاحب تحرير ليکلی دی چه دلته د خواتم نه د سرو زرو او سپينو زرو هغه څيزونه مراد دی کوم چه به دهغوی په ستونو کښې زوړندولې شی په کوم سره چه به دهغوی پيژندګلو کيږی بهرحال که د سرو زرو او سپينو زرو تعويذونه مراد واخستې شی نو ډير به ښه وی.

**[۵۵۸۰] ذره برابر ايمان لرونکی خلق به هم د دوزخ نه راايستلو سره په جنت کې داخل شي**

۵۵۸۰-()[۱۳] ① وَعَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " إِذَا دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَأَهْلُ النَّارِ النَّارَ ③ يَقُولُ اللهُ تَعَالَى: مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَخْرِجُوهُ ④ فَيَخْرُجُونَ قَدِ امْتَحَشُوا، وَعَادُوا حُمَمًا، ⑤ فَيُلْقَوْنَ فِي نَهْرِ الْحَيَاةِ، ⑥ فَيَنْبُتُونَ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ، ⑦ أَلَمْ تَرَوْا أَنَّهَا تَخْرُجُ صَفْرَاءَ مُلْتَوِيَةً» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ② هرکله چې جنتيان جنت ته او دوزخيان دوزخ ته ورسول شي او هرسړی د خپل عمل مطابق په جنت يا دوزخ کې خپل ځاي ته ورشي ③ نو الله جل جلاله به انبياوو ته ياشفاعت کونکو ته او زياته صحيح خبره داده چې فرشتو ته وفرمايي د چا په زړه کې چې د اوري (رائي) د داني برابرهم ايمان ايمان يعنی نيکي او خير وي نو هغه د دوزخ نه را وکاږئ ④ نو هغه خلق به دوزخ نه راوايستل شي او هغه وخت به د هغوئ داحالت وي چې هغوئ به سوزيدو سره د ايرو په شان شوی وي ⑤ بيا به هغوئ نهر حيات کې واچول شي ⑥ نو هغوئ به هغه نهر نه دومره تروتازه راوځي څرنګه چې د سيلاب خځله کې د وښو دانه زرغونيږي ⑦ آيا تاسو نه دي ليدلي چې هغه دانه څرنګه رانغښتل شوی زيړه راوځي يعنی څومره زياته تروتازه او

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار (رقم-۶۵۶۰) ومسلم في كتاب الإيمان/باب إثبات الشفاعة وإخراج الموحدين من النار (رقم-۳۰۴ - (۱۸۴)

خومره زر بهر راوځي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① حَبَّةٍ: دَ حبوب نه دې دَ دانې په معنی کښې دې. ② خَرْدَلٍ: د اُوری دانه، غوښت. ③ امْتَحَشُوا: سکاره شوی، بالکل سوزیدلی. ④ صَفْرَاءَ: دَ زیړ رنګ بوټې. ⑤ مُلْتَوِيَةً: تازه راکوګ شوې بوټې

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَخْرِجُوهُ:

**د خردل نه مراد:** دَ اُوری دانې ته خردل وائی دا دَ شړشم تخم ته هم وائی. زیت خردل دَ شړشمو تیلو ته وائی.

**[۵۵۸۱] دَ پل صراط او دَ شفاعت نور تفصیل**

۵۵۸۱ -()[۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] أَنَّ النَّاسَ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! [۳] هَلْ نَرَى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ [۴] فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ أَبِي سَعِيدٍ غَيْرَ كَشْفِ السَّاقِ، [۵] «وَقَالَ: يُضْرَبُ الصِّرَاطُ بَيْنَ ظَهْرَانَيْ جَهَنَّمَ، [۶] فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يَجُوزُ مِنَ الرُّسُلِ بِأُمَّتِهِ، [۷] وَلَا يَتَكَلَّمُ يَوْمَئِذٍ إِلَّا الرُّسُلُ، [۸] وَكَلَامُ الرُّسُلِ يَوْمَئِذٍ: اللَّهُمَّ سَلِّمْ سَلِّمْ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دی [۲] یوه ورځ خلقو پوښتنه وکړه یارسول [۳] د قیامت په ورځ به مونږ خپل پروردګار وینو؟ [۴] دي نه وروسته حضرت ابوهریره ﷺ د مضمون د اعتبار نه هغه حدیث بیان کی کوم چې وروسته حضرت ابوسعید ﷺ نه نقل شوي دي که څه هم دواړو روایتونو کې د الفاظو اختلاف دی خو حضرت ابوهریره ﷺ د پنډۍ خلاصولو ذکر ونه کړی [۵] او بیایې اوویل چې حضور ﷺ وفرمایل هرکله چې د دوزخ سرییره پل صراط ودرول شي [۶] نو ټولو رسولانو کې به پردې پل برسیره دخپل امت سره تیریدونکی د ټولو نه مخکې رسول زه یم [۷] او هغه وخت به د رسولانو نه علاوه هیڅ سړی هم په ژبې نسره د خبرې کولو جرات نشي کولي [۸] نور رسولان به هم صرف دومره قدري وايي چې اې الله! سلامتیا سره مو وساتې

[۱] وَفِي جَهَنَّمَ كَلَالِيبُ مِثْلُ شَوْكِ السَّعْدَانِ، [۲] لَا يَعْلَمُ قَدْرَ عِظَمِهَا إِلَّا اللَّهُ، تَخْطَفُ النَّاسَ بِأَعْمَالِهِمْ، [۳] فَمِنْهُمْ مَنْ يُوبَقُ بِعَمَلِهِ، [۴] وَمِنْهُمْ مَنْ يُخَرْدَلُ ثُمَّ يَنْجُو، [۵] حَتَّى إِذَا فَرَغَ اللَّهُ مِنَ الْقَضَاءِ بَيْنَ عِبَادِهِ [۶] وَأَرَادَ أَنْ يُخْرِجَ مِنَ النَّارِ مَنْ أَرَادَ أَنْ يُخْرِجَهُ مِمَّنْ كَانَ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، [۷] أَمَرَ الْمَلَائِكَةَ أَنْ يُخْرِجُوا مَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللَّهَ، فَيُخْرِجُونَهُمْ وَيَعْرِفُونَهُمْ بِآثَارِ السُّجُودِ، [۸] وَحَرَّمَ اللَّهُ تَعَالَى عَلَى النَّارِ أَنْ تَأْكُلَ أَثَرَ السُّجُودِ، فَكُلُّ ابْنِ آدَمَ تَأْكُلُهُ النَّارُ إِلَّا أَثَرَ السُّجُودِ، [۹] فَيَخْرُجُونَ مِنَ النَّارِ قَدِ امْتَحَشُوا، [۱۰] فَيُصَبُّ عَلَيْهِمْ مَاءُ الْحَيَاةِ، فَيَنْبُتُونَ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ،

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب الصراط جسر جهنم (رقم-۶۵۷۳) ومسلم في كتاب الإيمان/باب معرفة طريق الرؤية (رقم-۲۹۹ - (۱۸۲) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب ذكر البعث (رقم-۴۲۸۰) واحمد في المسند: ۲/۲۹۳

**ترجمه:** ۱او د دې پل دواړه طرف ته به جهنم کې د سعدان د ازغو په شان چنګکان وي ۲د هغه چنګکانو اوږدوالی د الله ﷻ نه سوا هیچاته معلوم نه دی هغه چنګکان به خلقو سره د هغوئ د خراب عمل په سبب مبتلي اوراابنکي به یي ۳نو هغه په خلقوکي بعضې خوبه هغه وي چې د خپلو اعمالوپه بدله کې به هلاك شي یعنی دوزخ کې به ولویږي او همیشه همیشه د پاره به په عذاب کې مبتلا وي لکه کافر ۴او بعضې به هغه وي چې د هغه ازغو د نیولو په وجه به ټکرې ټکرې شي بیابه نجات بیا مومي یعنی د چنګکانو لګیدو په وجه به د هغوئ چنګکانو د جسم غوښې په ځاي پریشي او ټول بدن به یي خراب طور سره زخمي شی اوبیا به هغوئ په دې حالت کې په څه ناڅه طور پل باندې تیریږي یا که په دوزخ کې ولویږي نو هلته به څه موده پورې د خپلو ګناهونو سزا خوړلو نه وروسته آخر همیشه همیشه د پاره نجات بیا مومي دا د ګنهګار فاسق مسلمانانو حال بیان شوي دي ۵بیا چې الله ﷻ د خپلو بنده ګانو د فیصلي نه فارغه شي چې د خپل خپل عمل د اعتبار نه څوك چې د جنت مستحق وي هغه به جنت ته ولیږل شي او څوك چې د دوزخ مستحق وي هغه به په دوزخ کې واچول شي او چې ددوزخ نه دچا دراایستلو اراده یي وي یعنی چې کومو خلقو د لا اله الا الله محمد رسول الله ګواهي ورکړې وي په هغوئ کې چې څوك غواړي چې دوزخ نه یي وکاږي ۷نو فرشتو ته به حکم وکړي چې داخلق دي دوزخ نه وایستل شي چې الله ﷻ یي معبود مني او د هغه نه علاوه د بل چا په معبودیت یي ایمان نه لرلو نو فرشتي به هغه خلق د دوزخ نه وکاږي او د هغوئ په تندیانو به د سجدې د نښو په ذریعه د هغوئ شناخت کوي ۸او الله ﷻ د دوزخ په اور حرام کړی دی چې هغه د سجدو نښه وخوري ۹ځکه د دوزخ اور به د ابن آدم انسان ټول جسم وخوري یعنی وسوزي خو د سجدو نښه به نه خوري بهرحال هغه خلق به دوزخ نه په دې حالت کې بهر راوستل شي چې هغوئ به په اور کې شوزیدلو سره تور شوی وي ۱۰نو په هغوئ باندې به آب حیات واچول شي او هغوئ به د هغه د اوبو د اثر نه داسې تروتازه شي څرنګه چې د سیلاب خځله کې دانه یو دم زرغونیږي

> ۱وَيَبْقَى رَجُلٌ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ، وَهُوَ آخِرُ أَهْلِ النَّارِ دُخُولًا الْجَنَّةَ، ۲مُقْبِلٌ بِوَجْهِهِ قِبَلَ النَّارِ، فَيَقُولُ يَا رَبِّ اصْرِفْ وَجْهِي عَنِ النَّارِ، ۳فَإِنَّهُ قَدْ قَشَبَنِي رِيحُهَا، وَأَحْرَقَنِي ذَكَاؤُهَا. ۴فَيَقُولُ: هَلْ عَسَيْتَ إِنْ أَفْعَلْ ذَلِكَ أَنْ تَسْأَلَ غَيْرَ ذَلِكَ؟ ۵فَيَقُولُ: لَا وَعِزَّتِكَ، فَيُعْطِي اللَّهَ مَا شَاءَ مِنْ عَهْدٍ وَمِيثَاقٍ. ۶فَيَصْرِفُ اللَّهُ وَجْهَهُ عَنِ النَّارِ، فَإِذَا أَقْبَلَ بِهِ عَلَى الْجَنَّةِ رَأَى بَهْجَتَهَا، ۷سَكَتَ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَسْكُتَ، ۸ثُمَّ قَالَ: يَا رَبِّ قَدِّمْنِي عِنْدَ بَابِ الْجَنَّةِ،

**ترجمه:** ۱او هغه وخت به یوه دلچسپه واقعه داهم وي چې ،یو سړی چې دوزخیانو نه به په جنت کې داخلیدونکی سړی وي د جنت او دوزخ په منځ کې به ولاړ وساتل شي اودابه آخري سړی وي ددوزخیانونه چې جنت ته به داخلیږي ۲د هغه مخ به دوزخ طرف ته وي

هغه به عرض وکړي اې څما پروردګاره! بس دومره کرم راباندې وکړه چې څما مخ د دوزخ طرف نه وګرځوه ۳ د دوزخ د اور بدبويي زه په سخت اذيت کې مبتلا کړی يم او د هغه د شعلو تيزی او ګرمي ما برباد وي ۴ الله ﷻ به ورته فرمايي که زه داسې وکړم يعنی ستا مخ دوزخ طرف نه وګرځوم نو بياکيدی شي چې ته نور څه غوښتل شروع کړې ۵ هغه سړی به عرض وکړي څما دي ستا په عزت قسم وي نور هيڅ به نه غواړم بيا به هغه څه نور عهد وپيمان کوي څه چې الله ﷻ غواړي ۶ او الله ﷻ به د هغه مخ دوزخ طرف نه وګرځوي هرکله چې د هغه مخ دوزخ طرف نه جنت طرف ته وګرځول شي او د جنت زيبائش آرائش او تروتازګي ويني ۷ نو مخکې خو به هغه وقته پورې خاموش ولاړ ګوري د خوپوري چې الله ﷻ غواړي بيا به عرض وکړي اې څما پروردګاره! ما د جنت دروازې ته ورسوي

۱ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى: أَلَيْسَ قَدْ أَعْطَيْتَ الْعُهُوْدَ وَالْمِيثَاقَ ۲ أَنْ لَا تَسْأَلَ غَيْرَ الَّذِيْ كُنْتَ سَأَلْتَ. ۳ فَيَقُوْلُ: يَا رَبِّ لَا أَكُوْنُ أَشْقٰى خَلْقِكَ. ۴ فَيَقُوْلُ: فَمَا عَسَيْتَ إِنْ أُعْطِيْتُ ذٰلِكَ أَنْ تَسْأَلَ غَيْرَهُ ۵ فَيَقُوْلُ: لَا وَعِزَّتِكَ لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَ ذٰلِكَ، فَيُعْطِيْ رَبَّهُ مَا شَاءَ مِنْ عَهْدٍ وَمِيْثَاقٍ، ۶ فَيُقَدِّمُهُ إِلٰى بَابِ الْجَنَّةِ، فَإِذَا بَلَغَ بَابَهَا فَرَأٰى زَهْرَتَهَا وَمَا فِيْهَا مِنَ النَّضْرَةِ وَالسُّرُوْرِ، ۷ فَسَكَتَ مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَسْكُتَ، فَيَقُوْلُ: يَا رَبِّ أَدْخِلْنِي الْجَنَّةَ،

**ترجمه:** ۱ الله ﷻ به ورته فرمائي آيا تا دالوظ او اقرار نه وو کړی ۲ چې ته به دخپل دي درخواست نه علاوه چې څما مخ دوزخ طرف نه وګرځوه بل څه درخواست نه پيش کوي ۳ هغه به زاری کوي اې څما پروردګاره! ته خپل مخلوق کې د ټولو نه زيات بد نصيبه مامه جوړوي چې ستا داټول مخلوق خو په جنت کې دی او زه دومره بدنصيبه يم د جنت دروازې ته مي ورسوي ۴ نو الله به ورته وفرمايي بيا نزدې يې که تاته داځيزونه درکول شي چې بيابه دبل شي سوال کوي، ۵ نو هغه بنده به وايي چې ياستا په عزت مې دي قسم وي زه ستا نه ددې نه علاوه دبل شي سوال نه کوم بيابه هغه څه نور عهد وپيمان کوي څه چې الله ﷻ غواړي ۶ خو کله چې هغه د جنت دروازې ته ورشي او د جنت چمک دمک برق پروق او په هغه کې دننه ځيزونه لکه عالي شان محلات د عيش وعشرت اسباب حور وغلمان او په جنت کې د اوسيدونکو شان وشوکت ويني ۷ نو مخکې خو تر هغه وقته پورې خاموش ولاړ ګوری به د خوپوري چې الله ﷻ غواړي بيابه عرض وکړي اې څما پروردګاره! ما جنت ته دننه ورسوي

۱ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى: وَيْلَكَ يَا ابْنَ آدَمَ مَا أَغْدَرَكَ! ۲ أَلَيْسَ قَدْ أَعْطَيْتَ الْعُهُوْدَ وَالْمِيْثَاقَ أَنْ لَا تَسْأَلَ غَيْرَ الَّذِيْ أُعْطِيْتَ. ۳ فَيَقُوْلُ: يَا رَبِّ لَا تَجْعَلْنِيْ أَشْقٰى خَلْقِكَ، ۴ فَلَا يَزَالُ يَدْعُوْ حَتّٰى يَضْحَكَ اللّٰهُ مِنْهُ، ۵ فَإِذَا ضَحِكَ أَذِنَ لَهُ فِيْ دُخُوْلِ الْجَنَّةِ، ۶ فَيَقُوْلُ: تَمَنَّ، فَيَتَمَنّٰى حَتّٰى إِذَا انْقَطَعَتْ أُمْنِيَّتُهُ ۷ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى: تَمَنَّ مِنْ كَذَا وَكَذَا، ۸ أَقْبَلَ يُذَكِّرُهُ رَبُّهُ، حَتّٰى إِذَا انْتَهَتْ بِهِ الْأَمَانِيُّ ۹ قَالَ اللّٰهُ: لَكَ ذٰلِكَ وَمِثْلُهُ مَعَهُ». ۱۰ وَفِيْ رِوَايَةِ أَبِيْ سَعِيْدٍ

-رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ: "قَالَ اللّٰهُ: لَكَ ذٰلِكَ وَعَشَرَةُ أَمْثَالِهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيهِ.

**ترجمه:** [۱] الله ﷻ به ورته فرمايي اې ابن آدم! افسوس ته څومره وعده ماتونكى او وعده هيرونكى يې [۲] آيا تا وعده نه وه كړې چې دې وعدې نه علاوه چې ستا د خواهش مطابق منظور شوي وه څه بل درخواست به نه پيش كوې [۳] هغه به عرض وكړي اې خما پروردګاره! بيشكه ما اقرار كړى وو ليكن هركله چې ما ستا شانِ عفو او ستا بې انتهاء رحمت طرف ته وكتل او په دې خبره مې غور وكړ چې خپله تا خپل كلام مجيد كې فرمايلى دى: لَا تَايْئَسُوا مِن رَّوحِ اللّٰهِ نو ماته معلومه شوه چې زه د هغه كافرو په شان نه يم چې ستا د رحمت نه نا اميده شوي دي زه ستا د كرم او ستا د وسعتِ رحمت هره لمحه اميد لرونكى يم نو ستا د رحمت لمن ټينګه نيولو سره عرض كوم چې ما په خپل مخلوق كې د ټولو نه زيات بد نصيب مه جوړوې [۴] غرض دا چې هغه به دغه شان زارى كوي ددې پورې چې الله ﷻ به د هغه منت زارى او طلب صادق ليدو سره هغه نه راضي شي [۵] او هركله چې الله ﷻ خني راضي شي نو هغه ته به په جنت كې د داخليدو اجازت وركول شي [۶] او ورته به وفرمايي ته كه څه نور خواهش او ارزو لرې هغه ښكاره كړه او څه چې غواړې او غواړه نو هغه به په خلاص زړه سره خپلې ارزوګانې بيان كړي او هركله چې دآخرې نه آخرې ارزو يې هم پوره شي [۷] نو الله ﷻ به ورته فرمايي د فلانې فلانې څيز خواهش ولې نه ظاهروې [۸] ګويا پروردګار به هغه ته ورياد ول وغواړې چې تا فلانى فلانې څيزخو ونه غوښتى دا څيزونه هم وغواړه نن زه تاته هرشى عطاكوم ددې پورې چې هغه ارزوګانې به هم پوره شي [۹] نو الله ﷻ به ورته فرمايي چې نه صرف دا ټول څيزونه چې ستا خواهش باندې تاته عطا شوي دي ستا د پاره دى بلكه د فضل له مخه داسې نور نعمتونه هم تاته عطا كېږي [۱۰] او د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه په روايت كې داسې دي چې الله ﷻ به ورته فرمايي نه صرف دا ټول څيزونه ستا د پاره دى بلكه دې سره لس چنده نور نعمتونه هم تاته دركړې كېږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① كَلَالِيبُ: دَدې مفرد كَلُّوبٌ دې. د اوسپنې كونډه سيخ، ② شَوْكٌ: ازغې، ③ السَّعْدَانِ: د اوښانو د خوراك يوه ازغى داره اونه ده لكه كيكر، ④ تُخْتَطَفُ: تختوى به ئې، راكاږى به ئې، ⑤ يُوبَقُ: هلاك به شي (دابه كافران وى)، ⑥ يُخَرْدَلُ: د اورى د دانې برابر به ئې ذره ذره كړى (دا به فاسقان وى). ⑦ امْتَحَشُوا: سكاره شوى، بالكل سوزيدلى، ⑧ يُصَبُّ: وابه ړولې شى، ⑨ حَمِيلِ: خځلې، ⑩ السَّيْلِ: سيلاب، ⑪ قَشَبَنِي: په تكليف كړې يم زه، ⑫ ذَكَاؤُهَا: شغلې د اور، ⑬ مِيثَاقِ: كلكه او پخه وعده، ⑭ بَهْجَتَهَا: ښائست او ترو تازګى دجنت، ⑮ زَهْرَتَهَا: پرق پروق او ځلا او ښائست دجنت. ⑯ النَّضْرَةِ: ترو تازګى، خوشحالى، ⑰ مَا أَغْدَرَكَ: دَ تعجب صيغه ده يعنى ته څومره غدار او دهوكه باز ئې.

**تسهيلات:**

**دحديث ده بعضي مشکلو جملو وضاحت:**

① گَلَالِيبُ" دادَ اوسپني هغه سيخ او راډ ته وائي دکوم سر چه راتاؤ شوې وی دکوم په ذريعه چه خلق دَ تندور نه روټئي راؤباسي يا غوښه زوړندوی او ورتوئی دې ته کنډې هم وائي په اردو کښې دَدې ترجمه "آکڑے"سره کړې شوې ده دې ته خمدار ازغی هم وائی.

② شَوْكِ السَّعْدَانِ: سعدان يو بوټې دې دا اوښان په ډير شوق سره خوری په دې کښې دَ ښخو دَ سينو دَ خوکې په شان ازغی وی چه ډيرزيات مضبوط او سخت وی. دلته هم دَ هغه ازغو ذکردې دې ته په عربی کښې حسکة او حسيکة هم وائی.

③ قَشَبَنِي: يعنی ماته دَ دوزخ گرمائش او بدبوئی دومره زيات تکليف رسولې دې په کوم سره چه زما رنګ بدل شو اودَ مخ څرمن مې بدله شوه.

④ هَلْ عَسَيْتَ: يعنی آيا دَدې امکان نشته چه که چرې زه تاسو دَ دغه حالت نه راؤباسم نو تاسو به بل څه مطالبه کول شروع کړئی؟

⑤ فَيُعْطِي اللَّهَ: يعنی الله تعالی سره به پخه وعده اوکړی چه بيابه مطالبه نه کوم.

⑥ مَا أَغْدَرَكَ: يوه نسخه کښې "ماأغذرك"ذال سره دې يعنی کوم يوڅيز ته په بار بار سوال کولو او وعده ماتولو کښې معذور او صاحب عذر جوړکړې؟

⑦ أَقْبَلَ يُذَكِّرُهُ: يعنی الله تعالی به دَهغه طرف ته متوجه کيدو سره هغه ته ياد کړی چه فلانکې فلانکې څيز اوغواړه مطلب دادې چه الله تعالی به دَهغه په زړه کښې دَدغه څيزونو دَ غوښتلو جذبه القاء کړی اودَ الهام په ذريعه سره به هغه دَ غوښتلو طرف ته متوجه کړی چه فلانکې فلانکې څيز اوغواړه.

**[۵۵۸۲] جنت کښې دَ تيولو نه آخر کښې د داخليدو نکی سړی ذکر**

۵۵۸۲-()[۱۳][1] ① «وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "آخِرُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ رَجُلٌ، يَمْشِي مَرَّةً، وَيَكْبُو مَرَّةً، ② وَتَسْفَعُهُ النَّارُ مَرَّةً، فَإِذَا جَاوَزَهَا الْتَفَتَ إِلَيْهَا فَقَالَ: تَبَارَكَ الَّذِي نَجَّانِي مِنْكِ، ③ لَقَدْ أَعْطَانِي اللَّهُ شَيْئًا مَا أَعْطَاهُ أَحَدًا مِنَ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ، فَتُرْفَعُ لَهُ شَجَرَةٌ فَيَقُولُ: أَيْ رَبِّ أَدْنِنِي مِنْ هَذِهِ الشَّجَرَةِ فَلِأَسْتَظِلَّ بِظِلِّهَا ④ وَأَشْرَبَ مِنْ مَائِهَا فَيَقُولُ اللَّهُ: يَا ابْنَ آدَمَ لَعَلِّي إِنْ أَعْطَيْتُكَهَا سَأَلْتَنِي غَيْرَهَا؟ ⑤ فَيَقُولُ: لَا يَا رَبِّ، وَيُعَاهِدُهُ أَنْ لَا يَسْأَلَهُ غَيْرَهَا، وَرَبُّهُ يَعْذِرُهُ ; لِأَنَّهُ يَرَى مَا لَا صَبْرَ لَهُ عَلَيْهِ ⑥ فَيُدْنِيهِ مِنْهَا ; فَيَسْتَظِلُّ بِظِلِّهَا، وَيَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا، ثُمَّ تُرْفَعُ لَهُ شَجَرَةٌ هِيَ أَحْسَنُ مِنَ الْأُولَى، ⑦ فَيَقُولُ: أَيْ رَبِّ! أَدْنِنِي مِنْ هَذِهِ الشَّجَرَةِ لِأَشْرَبَ مِنْ مَائِهَا، وَأَسْتَظِلَّ بِظِلِّهَا، لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَهَا،

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب آخر أهل النار خروجًا (رقم-۳۱۰ - (۱۸۷) واحمد فی المسند:۴۱۱/۱

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن مسعود ﷺ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل په جنت کې به د ټولو نه په آخر کې داخليدونکی هغه سړی وي چې هغه دوزخ نه وتلو سره روان شي نو يو قدم به مخکې تلی وي چې په دويم قدم به پرمخې لاندې را ولويږي ۲ او په دريم قدم به د دوزخ اور د هغه د جسم بعضې اعضاء وسوزي او د هغه د څرمې رنګ به بدل شي بيا چې هغه دغه شان لويدو سوزيدو او د دوزخ د ګرمۍ او تاو نه مخکې تيريږي نو تاويدو سره دوزخ طرف ته به وګوري او وايي به د الله ذات بزرګ او برتر دی چې الله ﷻ ماته ستا نه نجات راکی ۳ قسم په الله خما پروردګار ماته هغه شی راکړی دی چې هغه مخکې وروسته هيچاته نه دی ورکړي بيا د هغه د نظر مخکې به يوه ونه ودرول شي چې د هغه لاندې به د اوبو چينه وي هغه چې هغه ونې او چشمې ته وګوري نو عرض به وکړي اې خما پروردګاره! ماديي ونې ته نزدې کړې چې زه د دې سايه (سورې) حاصله کړم ۴ او د هغه د چشمې نه اوبه اوڅکم الله ﷻ به ورته فرمايي اې ابن آدم که زه ستا دا ارزو پوره کړم نو کيدی شي چې ته زما نه نور څه غوښتل شروع کې ۵ هغه به عرض وکړي اې خما پروردګاره! داسې به نه کيږي دې نه وروسته به هغه الله ﷻ سره د دې خبرې عهد وکړي چې هغه به دې نه علاوه نور هيڅ نه غواړي نو هغه سړی به يو داسې شی ويني چې هغه به بې صبره کوي ځکه د هغه پروردګار به هغه معذور ګڼلو سره هغه ته معافي وکړي ۶ او هغه به هغه ونې ته ورسوي هغه سړی چې د هغه ونې سايې کې کينې او د هغه چشمې نه اوبه اوڅکي بيابه هغه ته نور زيات مخکې کيدو د پاره د هغه د نظر مخکې يوه بله ونه ودرول شي چې د مخکنۍ ونې نه به زياته ښه وي ۷ هغه سړی چې هغه ونه ويني نو وايي به اې خما پروردګاره! ماديي ونې ته ورسوئ چې د هغه سايه (سورې) حاصل کړم او د هغه د چشمې نه اوبه اوڅکم او زه به اوس د دې ونې نه علاوه ستا نه نور هيڅ نه غواړم

۱ فَيَقُولُ: يَا ابْنَ آدَمَ! أَلَمْ تُعَاهِدْنِي أَنْ لَا تَسْأَلَنِي غَيْرَهَا؟ ۲ فَيَقُولُ: لَعَلِّي إِنْ أَدْنَيْتُكَ مِنْهَا تَسْأَلُنِي غَيْرَهَا؟ ۳ فَيُعَاهِدُهُ أَنْ لَا يَسْأَلَهُ غَيْرَهَا، وَرَبُّهُ يَعْذِرُهُ لِأَنَّهُ يَرَى مَا لَا صَبْرَ لَهُ عَلَيْهِ، ۴ فَيُدْنِيهِ مِنْهَا ; فَيَسْتَظِلُّ بِظِلِّهَا، وَيَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا، ۵ ثُمَّ تُرْفَعُ لَهُ شَجَرَةٌ عِنْدَ بَابِ الْجَنَّةِ هِيَ أَحْسَنُ مِنَ الْأُولَيَيْنِ، ۶ فَيَقُولُ: أَيْ رَبِّ! أَدْنِنِي مِنْ هَذِهِ فَلِأَسْتَظِلَّ بِظِلِّهَا وَأَشْرَبَ مِنْ مَائِهَا، لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَهَا،

**ترجمه:** ۱ حق تعالی به هغه ته وفرمايي اې ابن آدم! آيا تا ما سره دا وعده نه وه کړې چې ته به د مخکنۍ ونې نه علاوه نور هيڅ زما نه نه غواړې ۲ دې نه وروسته به ورته الله ﷻ فرمايي که زه تا دې ونې ته هم ورسوم نو کيدی شي چې ته زما نه نور څه غوښتل شروع کړې ۳ هغه به د الله ﷻ سره د دې خبرې عهد وکړي چې هغه به د دې نه علاوه نور هيڅ نه غواړي نو د هغه پروردګار به هغه معذوره ګڼلو سره هغه ته معافي وکړي ځکه چې هغه

به یو داسي شي وویني چې هغه به بي صبره کړي [۴] او بیابه الله ﷻ هغه هغه ونې ته ورسوي هغه سړی به د هغه وني لاندې کیني او د هغه د چشمې اوبه به اوڅکي [۵] او دریمه و نه به د هغه مخکې ودرول شي چې د جنت دروازې ته به نزدې او د مخکنی دوارو و نو نه به زیاته ښه وي [۶] هغه سړی به هغه و نه لیدو سره وایي اې څما پروردګاره! ما دې ونې ته ورسوي چې د دې د سایه (سورې) حاصله کړم او د دې د چشمې نه اوبه اوڅکم

[۱] فَيَقُولُ: يَا ابْنَ آدَمَ! أَلَمْ تُعَاهِدْنِي أَنْ لَا تَسْأَلَنِي غَيْرَهَا؟ [۲] قَالَ: بَلَى يَا رَبِّ هٰذِهِ، لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَهَا، وَرَبُّهُ يَعْذِرُهُ لِأَنَّهُ يَرَى مَا لَا صَبْرَ لَهُ عَلَيْهِ، [۳] فَيُدْنِيهِ مِنْهَا، فَإِذَا أَدْنَاهُ مِنْهَا سَمِعَ أَصْوَاتَ أَهْلِ الْجَنَّةِ، [۴] فَيَقُولُ: يَا رَبِّ! أَدْخِلْنِيهَا، [۵] فَيَقُولُ: يَا ابْنَ آدَمَ مَا يَصْرِينِي مِنْكَ؟ [۶] أَيُرْضِيكَ إِنْ أَعْطَيْتُكَ الدُّنْيَا وَمِثْلَهَا مَعَهَا، [۷] قَالَ: أَيْ رَبِّ! أَتَسْتَهْزِئُ مِنِّي وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ؟

ترجمه: [۱] حق تعالی به ورته فرمایي اې ابن آدم! آیا تا ما سره دا وعده نه وه کړي چې د هغه نه علاوه به زما نه نور څه نه غواړي [۲] هغه به عرض وکړي هو بیشکه ما وعده اقرار کړی وو لیکن اوس دا څما آخري سوال دی دي نه علاوه به نور څه نه غواړم نو د هغه پروردګار به هغه معذور ګڼلو سره هغه معاف کړي ځکه چې هغه سړی به داسې شی وویني چې هغه به بي صبره کړي [۳] بیابه الله ﷻ هغه وني ته ورسوي او د هغه غوږ ته به داسې دلچسپي او خوندوري خبري راشي چې جنتیان به یې خپلو بیبیانو او دخپلو دوستانو سره کوي [۴] نو هغه سړی به بي اختیاره کیدو سره عرض وکړي چې اې څما پروردګاره! اوس ما حنت ته ورسوي [۵] الله ﷻ به ورته فرمایي اې ابن آدم! آیا څه داسې شي هم شته چې ستا دبار بار خواهش او ارزو کولو نه ماخلاص کړي [۶] آیا ته به په دي هم خوشحاله شي که نه چې زه تاته په جنت کې د ټولي دنیا د مسافت برابر او دهغه په اندازه نورهم ځای درکړم [۷] هغه سړی به د انتهائي درجې خوشحالي او مسرت په حالت کې وایي چې پروردګاره آیاته ما سره مذاق ټوقي کوي حالانکه ته خو د ټولو جهانونو پروردګار یې

[۱] فَضَحِكَ ابْنُ مَسْعُودٍ، فَقَالَ: أَلَا تَسْأَلُونِي مِمَّا أَضْحَكُ؟ [۲] فَقَالُوا: مِمَّ تَضْحَكُ؟ [۳] فَقَالَ: ضَحِكَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۴] فَقَالُوا: مِمَّ تَضْحَكُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ [۵] قَالَ: مِنْ ضَحِكِ رَبِّ الْعَالَمِينَ حِينَ قَالَ: أَتَسْتَهْزِئُ مِنِّي وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ؟ [۶] فَيَقُولُ: إِنِّي لَا أَسْتَهْزِئُ مِنْكَ، وَلَكِنِّي عَلَى مَا أَشَاءُ قَادِرٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: [۱] د حدیث دا الفاظ بیانولو نه وروسته حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وخندل او بیا حدیث اوریدونکو ته یې اوویل آیا تاسو دا پوښتنه نه کوئ چې ما ولې وخندل؟ [۲] خلقو اوویل هو او وایې تاسو ولې وخندل؟ [۳] نو وي فرمایل چې په دې موقع حضور ﷺ خندلي وه [۴] او هرکله چې صحابه ؤ رضی الله عنهم پوښتنه وکړه چې یارسول الله تاسو ولې وخندل؟

[۵]نو حضور ﷺ ورته وفرمايل ما په دې وجه وخندل چې هركله هغه سړى وايي چې پروردګاره چيرته ته خوبه ما سره توقي نه كوي حالانكه ته د ټولو جهانونو پروردګار يې نو بيا به پروردګار عالم په دې وخاندي [۶]بهر حال الله ﷻ به د هغه سړي داخبره اوريده سره و فرمايي چې نه زه تا سره مذاق نه كوم او ښه پوهيږم چې ته د دې عطا مستحق نه يې ليكن دا هرڅه ځكه تاته دركوم چې زه څه غواړم كولى شم چې د هرشي مالك او مختار او قادر مطلق زه يم دا روايت مسلم نقل كړى دى.

**حل اللغات:** - ①يَكْبُو: كمايكبو پرمخې پريوتونه وائي. ②تَسْفَعُهُ: راګير كړى ده لره (شغلې د اور) ③يَصْرِينِي: صرى يصرى صرى، ضرب يضرب نه منع كولو په معنى كښې دې

**تسهيلات:**

**قوله:** وَرَبُّهُ يَعْذِرُهُ لِأَنَّهُ يَرَى مَا لَا صَبْرَ لَهُ عَلَيْهِ:

**الله تعالى بنده لره معذوره ګنړل:** يعنى دعظيم نعمتونو مخې ته د دغه سړى بې صبره كيدل به الله تعالى ته معلوم وى په دې وجه الله تعالى به بار بار په مخالفت او بيا سوال كولوباندې دې معذور او مجبور ګڼړي.

**قوله:** يَا ابْنَ آدَمَ مَا يَصْرِينِي مِنْكَ؟:

**دمذكوره جملې مطلب:** هم ددې نه بيع "مصراة" په معنى د حبس اللبن فى الضرع دې. په يوه نسخه كښې "مايصريك منى" دې د معنى په اعتبارسره دا زيات واضح دې دواړه نسخې صحيح دى مطلب دادې چه اې بنيادمه! هغه كوم يوڅيزدې چه ستا د بار بار سوالونو كولو اومطالباتو نه زما ځان خلاص كړى؟ دا د الله تعالى د طرف نه د ډيرزيات شفقت اظهاردې.

۵۶۰۵-()[۱]وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- نَحْوَهُ، [۲]إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ (فَيَقُولُ: يَا ابْنَ آدَمَ مَا يَصْرِينِي مِنْكَ؟) إِلَى آخِرِ الْحَدِيثِ، وَزَادَ فِيهِ: [۳]«وَيُذَكِّرُهُ اللَّهُ: سَلْ كَذَا وَكَذَا، حَتَّى إِذَا انْقَطَعَتْ بِهِ الْأَمَانِيُّ [۴]قَالَ اللَّهُ: هُوَ لَكَ وَعَشَرَةُ أَمْثَالِهِ، [۵]قَالَ: ثُمَّ يَدْخُلُ بَيْتَهُ، فَتَدْخُلُ عَلَيْهِ زَوْجَتَاهُ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ [۶]فَيَقُولَانِ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَحْيَاكَ لَنَا وَأَحْيَانَا لَكَ. [۷]قَالَ: فَيَقُولُ: مَا أُعْطِيَ أَحَدٌ مِثْلَ مَا أُعْطِيتُ»).

**ترجمه:** [۱]او په مسلم كې يوبل روايت حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه دغه شان الفاظو كې منقول دى [۲]ليكن هغه روايت كې د فيقول ياابن أدم مايصرينى منك نه تر آخر پورې الفاظ خو نشته البته دا الفاظ نور نقل شوي دي [۳]چې بيا به الله ﷻ هغه سړي ته ورياد كړي او ورته به وښايي چې فلانى فلانى څيزوغواړه او هركله چې هغه ټول څيزونه وغواړي او د

) اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب أدنى أهل الجنة منزلةً فيها (رقم-۳۱۱ - (۱۸۸)

هغه ارزوګاني ختمي شي ۴ نو الله ﷻ به ورته وفرمايي چې نه صرف دا ټول څيزونه چې تاسو ئې خواهش کړى دى بلکه د دې لس چنده نور څيزونه هم تاته درکړې کېږي ۵ حضور ﷺ وفرمايل دې نه وروسته به هغه سړى په جنت کې خپل کور کې داخل شي هلته به هغه ته د حورو نه د هغه دوه بيبياني راشي ٦ او وايي به ټول تعريف الله بزرګ او بر ترلره دى چې هغه دې عاليشان محل کې چې دلته د عيش او راحت نه ماسوا نه څه غم او فکر شته او نه د مرګ خوف شته ته يې زمونږ د پاره او مونږ يې ستا د پاره پيدا کړي ۷ يو حضور ﷺ وفرمايل هغه سړى به د ډيرې خوشحالۍ نه وايي چې دلته د ټولو نه زيات خوش نصيبه زه يم ځکه چې څومره ورکړه ماته شوي ده دومره بل هيچا ته نه ده شوى دا خبره به هغه په دې بناء کوي چې هغه وقته پورې به هغه ته نورو ته د حاصليدونکو نعمتونو علم نه وي هغه به داګڼي چې دلته د ټولو نه زيات نعمتونه بس په ما شوي دى او تر ټولو زيات په نعمتونو کې پټ بنده بس زه يم .

**حل اللغات:-** ① يَصْرِيني :صرى يصرى صرى، ضرب يضرب نه منع کولو په معنى کښې دې.
② الْحُورِ الْعِينِ : غټو سترګو والا حُورې،

**تسهيلات:**

**قوله:** الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَحْيَاكَ لَنَا وَأَحْيَانَا لَكَ

**حورې اود الله تعالى تعريف:** دوارو ځايونو کښې أحياك دَتخليق او پيدا کولو په معنى کښې دې يعنى ته ئې زمونږ دَپاره او مونږ يو ستاد پاره پيدا کړو.

**[٥٥٨٤] دَ دوزخ نه جنت ته د تلونکو جنتيا نو لقب به جهنمي وى**

> ٥٥٨٤-()[١٥] ١ «وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ٢ "لَيُصِيبَنَّ أَقْوَامًا سَفْعٌ مِنَ النَّارِ بِذُنُوبٍ أَصَابُوهَا عُقُوبَةً، ٣ ثُمَّ يُدْخِلُهُمُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِهِ وَرَحْمَتِهِ، ٤ فَيُقَالُ لَهُمُ: الْجَهَنَّمِيُّونَ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د مسلمانانو څه ډلې به داسې وي چې هغوئ به د هغوئ د ګناهونو په بدل کې د دوزخ د اور شعلې سوزي او دهغوئ حُليې به بدلې کړي ٣ بيا به الله ﷻ د خپل خاص فضل وکرم او رحمت لاندې هغوئ ته دوزخ نه خلاصون ورکولو سره جنت ته به يې ورسوي ۴ او هغه خلقو ته به جهنميان وئيل کېږي . (بخاري)

**حل اللغات:-** ① سَفْعٌ: دَ اور شعلې،

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار (رقم-٦٥٥٩)

**تسهيلات:**

**دبعضي جملو وضاحت:**

① سَفْعٌ: دا فاعل واقع دې يعنى داسې به ډيرې ډلې وى چالره چه به دَ خپلو گناهونو په وجه دَ دوزخ دَ اور شغلې سوزوى.

② الْجَهَنَّمِيُّونَ: دا لقب به دَتكليف وركولو په توگه نه وى بلكه دَتذكرهٔ خلاص من النار او تذكرهٔ احسان دَ الله تعالى په توگه به وى.

**[۵۵۸۵] د حضور ﷺ په شفاعت سره د اور نه جنت ته د تلونكو لقب**

۵۵۸۵-()[۱٦] ⓵ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⓶ "يَخْرُجُ أَقْوَامٌ مِنَ النَّارِ بِشَفَاعَةِ مُحَمَّدٍ، فَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ ⓷ وَيُسَمَّوْنَ الْجَهَنَّمِيِّينَ» ". ⓸ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَفِي رِوَايَةٍ: "«يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنْ أُمَّتِي مِنَ النَّارِ بِشَفَاعَتِي، يُسَمَّوْنَ الْجَهَنَّمِيِّينَ»".

**ترجمه:** ⓵ او حضرت عمران بن حصين ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⓶ ډير خلق به د محمد ﷺ د شفاعت په نتيجه كې دوزخ نه ويستلو سره په جنت كې به داخل شي ⓷ او د هغوئ نوم به جهنمي كيښودل شي. ⓸ (بخاري) او په يوه روايت كې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل خما په امت كې به ډير خلق خما د شفاعت په نتيجه كې دوزخ نه ويستل شي او د هغوئ نوم به جهنمي كيښودل شي.

**تسهيلات:**

**نوټ:** دحديث دترجمې څخه مطلب واضح دې ځكه په شرح كښې څه ضرورت نشته.

**[۵۵۸٦] هغه سړى چه د ټولو نه په آخر كې به جنت ته ځي**

۵۵۸٦-()[۱۷] ⓵ «وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⓶ "إِنِّي لَأَعْلَمُ آخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا مِنْهَا، وَآخِرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولًا، ⓷ رَجُلٌ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ حَبْوًا، ⓸ فَيَقُولُ اللَّهُ: اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ، فَيَأْتِيهَا، فَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهَا مَلْأَى ⓹ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ! وَجَدْتُهَا مَلْأَى، ⓺ فَيَقُولُ اللَّهُ: اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ، فَإِنَّ لَكَ مِثْلَ الدُّنْيَا وَعَشَرَةَ أَمْثَالِهَا،

**ترجمه:** ⓵ او حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⓶ زه يقينا هغه سړى پيژنم چې د ټولو نه په آخر كې به دوزخ نه ويستل شي او د ټولو نه په آخر كې به جنت ته ورسول شي ⓷ دا به يو داسې سړى وي چې په خږ پوسو سره به د دوزخ نه بهر

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار (رقم-۶۵۶۶) والترمذى فى كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۶۰۰)وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب ذكر الشفاعة (رقم-۴۳۱۵) واحمد فى المسند:۱۳۳/۳

[2]) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار(رقم-۶۵۷۱) والترمذى فى كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۵۹۵)

راووخي [۴] الله ﷻ به هغه ته فرمايي څه او په جنت کې داخل شه هغه سړی چې هلته جنت ته دننه يا د جنت دروازې ته ورشي نو هغه ته به جنت داسې حال کې ښکاره شي چې ګويا هغه بالکل ډک شوی دی او په هغه کې مزيد د څا د پاره ګنجائش نشته [۵] نو هغه سړی به عرض وکړي اې څما پروردګاره! دا جنت خو بالکل ډک شوی دی دلته خو زما د پاره هيڅ ځاي په نظر نه راځي [۶] الله ﷻ به ورته فرمايي ته ورشه او جنت کې داخل شه هلته ستا د پاره د دنيا د مسافت برابر او د هغه نه لس چنده مزيد ستا د پاره مخصوص شوي دي

**حل اللغات:** - ① حَبْوًا: په زنګونانو سره تلل

[۱] فَيَقُولُ: أَتَسْخَرُ مِنِّي - أَوْ تَضْحَكُ مِنِّي - [۲] وَأَنْتَ الْمَلِكُ؟. [۳] وَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ، [۴] وَكَانَ يُقَالُ: ذَلِكَ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] هغه سړی به د انتهائي درجه تعجب په حالت کې وايي اې پروردګاره! آيا ته ما سره مذاق کوې؟ يا دا به وايي ته ما سره خندا کوې [۲] حالانکه ته خو د بادشاهانو هم بادشاه يې [۳] حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايي ما وليدل چې رسول الله ﷺ دا خبره فرمايلو سره وخندل ددې پورې چې مخکني غاښونه يې ښکاره شوه [۴] او وئيل کيږي چې دا سړی به په جنتيانو کې د ټولو نه د لاندې درجې سړی وي. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: تَضْحَكُ مِنِّي - وَأَنْتَ الْمَلِكُ؟:**

**دبنده الله تعالى په اعلان حيرانيدل:** يعنى ته بادشاه على الإطلاق ئى او بادشاه مذاق اوټوقې نه کوى. ته موږ پورې ټوقې کوې چه په جنت کښې دَ خپې دَ کيخودو ځائى نشته دې اوته دَ لس چنده زيات خبره کوې.

**[۵۵۸۷] آخرى جنت ته تلونکى سړى سره دَ الله تعالى د رحمت معامله**

۵۵۸۷-()[۱۸] [۱] «وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "إِنِّي لَأَعْلَمُ آخِرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولًا الْجَنَّةَ، وَآخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا مِنْهَا، [۳] رَجُلٌ يُؤْتَى بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُقَالُ: [۴] اعْرِضُوا عَلَيْهِ صِغَارَ ذُنُوبِهِ، وَارْفَعُوا عَنْهُ كِبَارَهَا، [۵] فَتُعْرَضُ عَلَيْهِ صِغَارُ ذُنُوبِهِ، [۶] فَيُقَالُ: عَمِلْتَ يَوْمَ كَذَا وَكَذَا، كَذَا وَكَذَا؟ وَعَمِلْتَ يَوْمَ كَذَا وَكَذَا، كَذَا وَكَذَا؟

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] زه يقيناً هغه سړی پيژنم چې د ټولو نه په آخر کې به په جنت کې داخل شي او د ټولو نه په آخر کې به دوزخ نه را ويستل شي [۳] دا به يو داسې سړی وي چې هغه به د قيامت په ورځ هر کله چې د

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب أدنى أهل الجنة منزلةً فيها (رقم-۳۱۴ - (۱۹۰) والترمذى فى كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۵۹۶)

پروردگار حضور کې پیش شي نو فرشتو ته به اوویل شي ④چې د ده کوچني گناهونو باندې مشتمل فرد جرم لاوس په ده مه ښکاره کوئ ⑤نو د هغه ور و ور و گناهونو فرد جرم به د هغه مخې ته شي ⑥او بیا به هغه ته اوویل شي وښایه تا په فلاني فلاني ورځ فلانی فلاني خراب کار کړی وو او په فلاني فلاني ورځ دې طاعت ترک کړی وو

①فَيَقُولُ: نَعَمْ، لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يُنْكِرَ ②وَهُوَ مُشْفِقٌ مِنْ كِبَارِ ذُنُوبِهِ أَنْ تُعْرَضَ عَلَيْهِ. ③فَقَالَ لَهُ: فَإِنَّ لَكَ مَكَانَ كُلِّ سَيِّئَةٍ حَسَنَةً. ④فَيَقُولُ: رَبِّ قَدْ عَمِلْتُ أَشْيَاءَ لَا أَرَاهَا هَاهُنَا". ⑤وَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①هغه به اقرار وکړي چې هو ما په فلاني فلاني ورځ داسې داسې کړی وو او د خپلو هغه گناهونو نه به انکار نشي کولی ②ځکه چې هغه به د خپلو لويو لويو گناهونو خوف کې مبتلا وي او سوچ به کوئ که چیرته د هغه د لوی گناهونو فرد جرم مخې ته راشي نو بیا به د ډیري سختۍ پوښتني او مواخذي سره مخ کیدل راځي ③نو هغه ته به اوویل شي چې څه مونږ نه صرف ته معاف کړي بلکه زمونږ د خصوصي رحمت او کمال فضل وکرم لاندې تاته د هرې بدی په بدله کې یوه نیکي درکړي کیږي ④هغه سړی به وایي اې څما پروردگاره! ما نور هم خراب کارونه یعنی لوی گناهونه کړي وه چې ماته دلته فرد جرم کې په نظر نه راځي ⑤حضرت ابوذر ﷛ وایي ما ولیدل چې رسول الله ﷺ دا بیانولو سره وخندل ددې پورې چې دحضور ﷺ دمخ غاښونه مبارك ښکاره شول. (مسلم)

**حل اللغات:-** ①مُشْفِقٌ: ویریدونکې،

**تسهيلات:**

**قوله:** رَبِّ قَدْ عَمِلْتُ أَشْيَاءَ لَا أَرَاهَا هَاهُنَا:

**دبنده حرص او لالچ:** یعنی زما څه لوئی گناهونه وو هغه دلته نه ښکاری. کله چه دَ ورو گناهونو په وجه دومره نعمت ملاوْ شو نو په لویو گناهونو باندې به څومره انعام ملاویږی. رښتیادی چه کله دَ الله تعالی رحمت جوش اووهی نو دَ ابلیس به هم طمع پیدا شی چه کیدې شی چه ماته هم څه معافی ملاوْ شی.

### [٥٥٨٨] دَ دوزخ نه راویستلی شوی دَ یو سړی واقعه

٥٥٨٨-()[١٩]①«وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②" يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ أَرْبَعَةٌ، فَيُعْرَضُونَ عَلَى اللَّهِ، ③ثُمَّ يُؤْمَرُ بِهِمْ إِلَى النَّارِ، ④فَيَلْتَفِتُ أَحَدُهُمْ فَيَقُولُ: أَيْ رَبِّ! لَقَدْ كُنْتُ أَرْجُو إِذْ أَخْرَجْتَنِي مِنْهَا أَنْ لَا تُعِيدَنِي فِيهَا" ⑤قَالَ: (فَيُنْجِيهِ اللَّهُ مِنْهَا)». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** ①او حضرت انس ﷛ نه روایت دی چی رسول الله ﷺ وفرمایل ②په آخر کې

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب أدنی أهل الجنة منزلةً فیها (رقم-٣٢١ - (١٩٢)) واحمد فی المسند: ٢٨٥/٣

دوزخ نه کوم خلق چې وايستل شي په هغوئ کې به څلور سړي هغه وي چې هغوئ دوزخ نه ويستل شي او د الله ﷻ په حضور کې به پيش شي ③نو د هغوئ په باره کې به دا حکم وي چې هغوئ دي دوزخ ته وليږل شي ④دي نه وروسته چې هغوئ دوزخ ته بوتلل شي نو په هغوئ کې به يو سړی راګرځيدو سره ډير حسرت سره وايي اې خما پروردګاره! ما خو دا اميد لرلو چې هرکله ته ما د دوزخ نه راوباسې نو دوباره به ما هلته نه ليږې ⑤حضور ﷺ وفرمايل الله ﷻ چې دا خبره واوري نو هغه ته به د دوزخ نه نجات ورکړي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَيَلْتَفِتُ: نو اوبه ګوري اخوا ديخوا.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَيْ رَبِّ! لَقَدْ كُنْتُ أَرْجُو إِذْ أَخْرَجْتَنِي مِنْهَا أَنْ لَا تُعِيدَنِي فِيهَا:

**د بنده دالله تعالى په دربار كښې خواست:** يعنى چه كله الله تعالى هغه سړى ته دوباره دوزخ ته دتلو حكم وركړى. نو يو دوزخى به په عجيبه عاجزانه اندازكښې اووائى چه زماخوخيال وو چه كله تا زه راويستلم نودوباره به مې نه ورليږې. په دې باندې به الله تعالى اوفرمائى چه دا يو امتحان او ازميښت وو. څه جنت كښې اوسيږه دلته دَيو سړه دَدې مكالمه ذكردې ګنى دامعامله به څلورو واړو سره وى څكه چه كافرخو چرته دَ دوزخ نه ويستلې نه شى. چه دغه څلور راوويستل نودا به مسلمانان وى كله چه راؤوتل نوبس راؤوتل.

### [۵۵۸۹] دَمؤمن څخه دَپل صراط تېوس

۵۵۸۹-()[۲۰] ①«وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②"يَخْلُصُ الْمُؤْمِنُونَ مِنَ النَّارِ، ③فَيُحْبَسُونَ عَلَى قَنْطَرَةٍ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ، ④فَيُقْتَصُّ لِبَعْضِهِمْ مِنْ بَعْضٍ مَظَالِمُ كَانَتْ بَيْنَهُمْ فِي الدُّنْيَا، ⑤حَتَّى إِذَا هُذِّبُوا وَنُقُّوا أُذِنَ لَهُمْ فِي دُخُولِ الْجَنَّةِ، ⑥فَوَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ ⑦لَأَحَدُهُمْ أَهْدَى بِمَنْزِلِهِ فِي الْجَنَّةِ مِنْهُ بِمَنْزِلِهِ كَانَ لَهُ فِي الدُّنْيَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابو سعيد ؓ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②هرکله چې اهلِ ايمانو ته ددوزخ نه خلاصون حاصل شي ③نو هغوئ به جنت ته رسولو نه مخکې په دې پُل حصار شي کوم چې د جنت او دوزخ په منځ کې به وي ④او بيا به هغوئ ته د هر يو بل نه د هغوئ د حقوقو او مطالباتو بدله ورکول شي چې په دنيا کې هغوئ په يو بل لرله نو کوم سړی چې دنيا کې په خپله ذمه د چا حق لرې او د هغه د آدائيګی نه مخکې مړ شي نو په دې موقع به د هغه نه هغه حق حقدار ته ورکول شي ⑤د دې پورې چې هرکله هغه خلق د هرقسم ګناه نه بالکل پاک صاف شي نو هغوئ ته به په جنت کې د داخليدو اجازت

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب القصاص يوم القيامة " (رقم-۶۵۳۵) واحمد فی المسند: ۱۳/۳

ورکول شي [۶] نو قسم دی په هغه ذات چې د هغه د قدرت په لاس کې د محمد ساه ده [۷] هرکله چې هغه خلق په جنت کې داخل شي نو په هغوئ کې به هرسړی خپل هغه مکان چې هغه د پاره په جنت کې مخصوص وي د خپل دنیا د مکان نه زیات ښه پیژني (بخاري)

**حل اللغات:** - ① قَنْطَرَةٍ: پل، ② هُذِّبُوا: پاک به کړې شی، ③ نُقُّوا: صفا به کړې شی

**تسهیلات:**

**قوله:** فَيُحْبَسُونَ عَلَى قَنْطَرَةٍ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ:

**نوټ:** دې تفصیل د مشکاة د حدیث نمبر (۵۵۷۶) په تسهیل کښې تیرشوې دې

**قوله:** لَأَحَدُهُمْ أَهْدَى بِمَنْزِلِهِ فِي الْجَنَّةِ مِنْهُ بِمَنْزِلِهِ كَانَ لَهُ فِي الدُّنْيَا:

**په جنت کښې د خپل جنت معلومیدل:** یعنی دَ پل صراط نه دَ تیریدو نه پس به مؤمن سړې ته خپل دَ جنت مکان داسې معلوم وی لکه څنګه چه په دنیا کښې هغه ته خپل مکان معلوم وو دا به دَهغه سړی دَ ایمان دَ نور کمال وی لکه څنګه چه په دنیا کښې هغه ته دَ هدایت نور حاصل شوې وو. دغه شان به مؤمن په دغه نور سره دَ جنت مکان په آسانئ سره معلومولې شی

**[۵۵۹۰] دَهرسړی دَپاره په جنت او دوزخ کښې خاص خاص ځایونه مقرردی**

۵۵۹۰-()[۲۱] [۱] «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "لَا يَدْخُلُ أَحَدٌ الْجَنَّةَ إِلَّا أُرِيَ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ لَوْ أَسَاءَ; [۳] لِيَزْدَادَ شُكْرًا، [۴] وَلَا يَدْخُلُ النَّارَ أَحَدٌ إِلَّا أُرِيَ مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ لَوْ أَحْسَنَ; [۵] لِيَكُونَ عَلَيْهِ حَسْرَةً» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې د جنت مستحق ګرځول شوی وي ترهغه وقته پورې به په جنت کې نه داخلیږي د خوپورې چې هغه ته په دوزخ کې هغه ځاي ونه ښودل شي کوم چې د هغه ټیکانه وي که هغه بدکارونه کولي یعنی هغه ته هغه ځاي ښودلو سره ورته ویلی به شي که تا په دنیا کې خراب کارونه کولي نو په دوزخ کې به دا ستا ځاي وو [۳] او دا به ځکه وي چې هغه په دنیا کې بدکار نه د بچ کیدو او دوزخ ته د تلو په ځاي په جنت کې داخلیدو باندې زیات نه زیات شکر اداء کې [۴] او کوم سړی چې د دوزخ د عذاب مستحق ګرځول شوی وي تر هغه وقته پورې به په دوزخ کې نه شي اچولی ترڅو پورې چې هغه ته په جنت کې هغه ځاي ونه ښودل شي کوم چې د هغه د پاره مخصوص وو که هغه نیک کار کولي یعنی هغه ته هغه ځاي ښودلو سره ورته به اوویل شي که ته په دنیا کې د بدی په لار باندې نه تلاي او نیک کار دي کولي نو په جنت کې به تاته دا مقام درکړي شوی وو [۵] او داسې به ځکه وي

[۱] اخرجه البخاري فی کتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار (رقم-۶۵۶۹) واحمد فی المسند: ۲/۵۴۱

چې هغه زيات نه زيات حسرت او ندامت کې مبتلا شي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① مَقْعَدَهُ: ځائ د ناستې يعنى د اوسيدو دهغه، ② أَسَاءَ: بدکارونه او ګناهونه ئې کړی وی.

**تسهيلات:**

**قوله مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ**

**جنتى او دوزخى ته د دوزخ او جنت ځايونه خودل کيدل:** هريو ته به دَهغه نه دَ پاتې کيدو والا مقام اولاً په قبر کښې او ثانيًا په قيامت کښې خودلې کيږى. په دې صورت کښې به مطلب دا شى چه دوزخى په دوزخ کښې دَ داخليدو نه مخکښې به هغه ته دَهغه دَ جنت والا مقام خودلې کيږى او جنتى ته به په جنت کښې دَ داخليدو نه مخکښې دَ هغه دَ دوزخ والا مقام خودلې کيږى.

**[۵۵۹۱] کله چه مرګ هم مرګ ته حواله کړې شى**

٥٥٥-()[۲۲] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " إِذَا صَارَ أَهْلُ الْجَنَّةِ إِلَى الْجَنَّةِ، وَأَهْلُ النَّارِ إِلَى النَّارِ، ③ جِيءَ بِالْمَوْتِ حَتَّى يُجْعَلَ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ، ثُمَّ يُذْبَحُ، ④ ثُمَّ يُنَادِي مُنَادٍ: يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ لَا مَوْتَ، وَيَا أَهْلَ النَّارِ لَا مَوْتَ; ⑤ فَيَزْدَادُ أَهْلُ الْجَنَّةِ فَرَحًا إِلَى فَرَحِهِمْ، وَيَزْدَادُ أَهْلُ النَّارِ حُزْنًا إِلَى حُزْنِهِمْ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايي ② هرکله چې جنتي په جنت کې او دوزخي په دوزخ کې خپل خپل ځاي ته لاړ شي ③ نو مرګ به راوستل شي او بعضې روايتونو کې داسې دي چې مرګ به د يو پسه په شکل کې راوستل شي او د جنت او دوزخ په منځ کې به اچولو سره ذبح شي ④ بيا به اعلان کونکي اعلان وکړي چې اې جنتيانو! واورئ اوس دمرګ هيڅ وجود پاتې نه شو کوم سړی چې چيرته او په کوم حالت کې دی په هغه به هيڅکله د مرګ سايه (سوري) نه راځي هريوه ته د هميشه هميشه ژوند حاصل شو دی او اې دوزخيانو! تاسوهم واورئ اوس د مرګ څه وجود پاتې نه شو ⑤ دا اعلان اوريدو سره د اهل جنت د خوشحالۍ به څه انتها پاتې نشي او د اهل دوزخ به د غم او رنج په درياب کې نور زيات غرق شي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَرَحًا: خوشحالى. ② حُزْنًا: غم او خفګان

---

[1] ) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار(رقم-۶۵۴۸) ومسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب النار يدخلها الجبارون والجنة يدخلها الضعفاء (رقم-۴۳ - (۲۸۵۰) والترمذى فى كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى خلود أهل الجنة وأهل النار (رقم-۲۵۵۷)وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب صفةالنار (رقم-۴۳۲۷) واحمد فى المسند:۱۱۸/۲

**تسهيلات:**

**قوله: جِيءَ بِالْمَوْتِ حَتَّى يُجْعَلَ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ، ثُمَّ يُذْبَحَ:**

**د مرگ ذبح کيدل:** يعنې مرگ به حاضر کړې شي او په يو روايت کښې دی چه «إنه يؤتى به على صورة كبش أملح ليتقينوا غاية اليقين والعرفان» يعنې مرگ به دَ گډ په شکل کښې راوستلې شي کوم چه به املح (تور اوسپين) وی او هغه به ذبح کړې شي چنانچه جنتيان اودوزخيان به هغې لره کتو سره يقين اوکړی چه اوس به مرگ نه راځی

**مرگ د گډورۍ په شکل کښې د راوستو حکمت:** امام قرطبي رحمه الله فرمائي چه مرگ دَ گډ په شکل کښې دَ راوستو حکمت دادې چه دا اشاره ده دې خبرې طرف ته چه دَ حضرت ابراهيم عليه السلام دَ ځوئی په بدله کښې دا ذبح کړې شوې وو په دې وجه دَ هغې په مناسبت سره به ورته دلته هم دَ گډ شکل ورکولې شي. باقي دَ گډ شکل به املح دَ اهل جنت او اهل دوزخ دَ مشابهت دَ وجې نه وی ځکه چه دَ دوزخ والا به دَ کوئلې په شان تور او جنت والا به سپين نوراني وی (التعليق الصبيح: ۶/۲۴۵)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۵۹۲] حوض کوثر ته دَ ټولو نه مخکښې راتلونکی به غريب مهاجرين وی**

۵۵۹۲-()[۲۳] ① عَنْ ثَوْبَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "حَوْضِي مِنْ عَدَنٍ إِلَى عَمَّانَ الْبَلْقَاءِ، ③ مَاؤُهُ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ، وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ، ④ وَأَكْوَابُهُ عَدَدُ نُجُومِ السَّمَاءِ، ⑤ مَنْ شَرِبَ مِنْهُ شَرْبَةً لَمْ يَظْمَأْ بَعْدَهَا أَبَدًا، ⑥ أَوَّلُ النَّاسِ وُرُودًا فُقَرَاءُ الْمُهَاجِرِينَ الشُّعْثُ رُءُوسًا، الدُّنْسُ ثِيَابًا، ⑦ الَّذِينَ لَا يَنْكِحُونَ الْمُتَنَعِّمَاتِ، ⑧ وَلَا يُفْتَحُ لَهُمُ السُّدَدُ» . رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ثوبان رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② ځما د حوض کوثر اوږدوالی (طول) د عدن او عمانِ بلقاء د درمياني فاصلې په قدر دی ③ د هغه اوبه د سيدو نه زياتي سپيني او د عسلو (شهد) نه زياتي خوږې دي ④ د هغه گلاسونه يعنې د اوبو د څکلو لوښي به د آسمان د ستورو نه زيات وي ⑤ کوم سړی چې يو وار هم د هغه اوبه اوڅکي بيا به هيڅ کله ورته تنده نه راځي ⑥ دي حوض ته اوبو څکلو د پاره د ټولو نه مخکې راتلونکي به فقراء مهاجرين وي هغه فقراء مهاجرين چې په دي دنيا کې د خپل فقر او افلاس په وجه پريشانه حال او شليدلي کپړو کې په نظر راځي ⑦ که مالداره کورنۍ جينکو د پاره د نکاح پيغام وليږي نو هغوئ سره د نکاح کولو قابل

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صفة أواني الحوض (رقم-۲۴۴۴) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذکر الحوض (رقم-۴۳۰۳) واحمد فی المسند: ۲۷۵/۵

به ونه گنهل شي⑧ او د چا د پاره چې د کورونو دروازي نشي خلاصي دا روايت احمد ترمذي او ابن ماجه نقل کړی دی او ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دی

**حل اللغات** - ①عَدَن: په يمن کښې د بحراحمر په غاړه د يو ځای نوم دې ②عُمَانَ الْبَلْقَاءِ: دَ شام علاقه دمشق سره نيزدې دَ يو پخوانی ښارنوم دې ③أَكْوَابُهُ: د کوب جمع ده د اوبو څکلو لوښی. گلاسونه. ④الشُّعْثُ: دَدې مفرد أشعث دې کوم چه خيرنو گډو وډو ويښتو ته وائی ⑤الدُّنْسُ: دَدې مفرد دنس دې خيرنو خيچنوکپړو ته وائی ⑥الْمُتَنَعِّمَاتِ: نيازبينې ښکلې او په ناز او نعمتونو کښې پاللې شوې ښځې. ⑦السُّدَدُ: دَدې مفرد سدة دې دروازې ته وائی

**تسهيلات**: **قوله**: حَوْضِي مِنْ عَدَنٍ إِلَى عُمَانَ الْبَلْقَاءِ:

**په درې مقاماتو دعمان اطلاق**: ①دعمان بحراحمر سره دې چه اول دَ شام حصه وه اوس د اردن دارالخلافه ده

② عمان په شام کښې واقع دې دَيو علاقې نوم دې کومه چه کلی والا علاقه ده

③ عمان بحرين کښې دې. بلقاء چه کوم مقام دې داد شام علاقه دمشق سره نيزدې د يو پخوانی ښارنوم دې

**دعمان څخه مراد**: دې حديث کښې دَعمان نه بلقاء شام مراد دې. هم په دې وجه دَدې طرف ته اضافت کړې شوې دې دې دپاره چه دَعمان اردن اوعمان بحرين نه احتراز اوشی په دې حديث کښې دمختلفو ځايونونوم اخستو سره دَ حوض کوثردَ اوږدوالی اوپلنوالی تمثيل بيان کړې شوې دې اودَمختلفو مقاماتو نوم اخستې شوې دې دې دَپاره چه کوم سړې په کوم مقام باندې پوهيږی هغه دې هم دَ هغې دَ طول اوعرض نه اندازه اولګوی په حديث کښې هيڅ تحديد تعيين اومخصوص کول مقصود نه دی

**قوله** الَّذِينَ لَا يَنْكِحُونَ الْمُتَنَعِّمَاتِ، ⑧وَلَا يُفْتَحُ لَهُمُ السُّدَدُ:

**دفقيرانانو غلقو فضيلت**: مطلب دادې چه دَدې فقيرانو طرف ته څوك نظر او توجو نه کوی که چرې په دروازه کښې هم ولاړوی نودَ هغوی دَپاره دروازه نه شی کولاوولې اونه دَهغوی د نکاح پيغام څوك اوری دا دَ دنيا فقيران دی مګر دَ آخرت بادشاهان دی دَدوی په شان په يو درويش باندې ټول دنيادار قربان شه

**[٥٥٩٢]په حوض کوثرباندې دَراتلونکو خلقوبه څه شمير نه وی**

٥٥٩٢-(١)[٢٣]①«وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ- رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ- صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ②فَنَزَلْنَا مَنْزِلًا، فَقَالَ: ③" مَا أَنْتُمْ جُزْءٌ مِنْ مِائَةِ أَلْفِ جُزْءٍ مِمَّنْ يَرِدُ عَلَيَّ الْحَوْضَ "، ④قِيلَ: كَمْ كُنْتُمْ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: سَبْعَمِائَةٍ أَوْ ثَمَانَمِائَةٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

(١) اخرجه ابوداود في السنن كتاب السنة/باب في الحوض (رقم-٤٧٤٦)واحمد في المسند: ٣٦٦/٤

**ترجمه:** [۱] او حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه وایي په یوه سفر کې مونږ خلق د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ملګري وو [۲] په یو ځای کې زمونږ پړاو وشو هلته حضور صلی الله علیه وسلم موجود صحابه رضی الله عنهم ته وفرمایل [۳] په آخرت کې چې کوم خلق ځما حوض کوثر ته ماته راځي د هغوئ د تعداد د اعتبار نه تاسو د لاک جزؤنو نه یو جزء هم نه یئ [۴] حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه نه پوښتنه وشوه چې په هغه موقع د خلقو تعداد څه وو؟ هغه اوویل اووه سوه یا اته سوه (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله.** مَا أَنْتُمْ جُزْءٌ مِنْ مِائَةِ أَلْفِ جُزْءٍ مِمَّنْ يَرِدُ عَلَيَّ الْحَوْضَ:

**د مذکوره عدد څخه مراد:** په حدیث کښې دَ مذکوره عدد نه مراد تحدید او تعین نه دې بلکه په حوض کوثر باندې دَ راتلونکو دَ خلقو کثرت او ډیروالي بیانول مقصود دی

**قوله:** أَوْ ثَمَانِمِائَةٍ

**په کلمه د ،،او،، کښې احتمالات:** ① "او" دَ شك دَپاره دې یعنی چه حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه ته په دې کښې تردد شوې وی چې نبی علیه السلام الف جزء یاد کړې دې او که ثمان مأة ئې یاد کړې دې.

② "او" دَ "بل" په معنی کښې دې یعنی اول کښې صحابی د مأة عدد یاد کړو او بیا ئې په بل سره ترقی وکړه چې نه بلکه اته سوه شمار به وی.

**[۵۵۹٤] هر نبي ته به یو حوض عطاء وي**

۵۵۹٤-(١)[٢٥] وَعَنْ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوْضًا، [۳] وَإِنَّهُمْ لَيَتَبَاهَوْنَ أَيُّهُمْ أَكْثَرُ وَارِدَةً، [۴] وَإِنِّي لَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَكْثَرَهُمْ وَارِدَةً» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سمره رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] په آخرت کې به هریونبي ته حوض ورکړي شی او هر امت به د خپل خپل نبي علیه السلام حوض ته راتلو سره اوبه څکي [۳] ټول انبیاء به په خپلو کې په دې فخر کوي چې د چا په حوض زیات کسان (افراد) راځي [۴] او زه امید لرم چې د ټولو نه زیات شړی به ځما حوض ته راځي (ترمذي) اووایي دا حدیث غریب دی.

**حل اللغات:**- ① يَتَبَاهَوْنَ: په یوبل به فخر کوی

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة الحوض (رقم-۲٤٤۳)

**تسهیلات:**

**قوله وَإِنِّي لَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَكْثَرَهُمْ وَارِدَةً:**

**دامت هزیاتوالی په اعتبار سره د نبی علیه السلام فوقیت:** دنبی علیه السلم د امت د خلقو شمار به زیات وی نو په حوض کوثرته راتلونکی به هم زیات وی نو ددې څخه معلومه شوه چې نبی علیه السلام ته به د ټولو څخه زیات شرف او اعزاز حاصل وی او پاتې شوه د نبی علیه السلام دا خبره چې زه امید کوم چې د ټولو پیغمبرانو څخه به زما امت زیات وی نو دا خبره خو یقینی ده خو نبی علیه السلام دعاجزۍ په طور اوفرمائیل چې زه امید کوم

**[۵۵۹۵]میدان محشرکښې د حضورپاک ﷺ د ملاقات ځایونه**

۵۵۹۵-()[۲٦]①«وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②سَأَلْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ يَشْفَعَ لِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ③فَقَالَ: " أَنَا فَاعِلٌ "، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ فَأَيْنَ أَطْلُبُكَ؟ ④قَالَ: " اطْلُبْنِي أَوَّلَ مَا تَطْلُبُنِي عَلَى الصِّرَاطِ " ⑤قُلْتُ: فَإِنْ لَمْ أَلْقَكَ عَلَى الصِّرَاطِ؟ قَالَ: " فَاطْلُبْنِي عِنْدَ الْمِيزَانِ " ⑥قُلْتُ: فَإِنْ لَمْ أَلْقَكَ عِنْدَ الْمِيزَانِ؟ ⑦قَالَ: " فَاطْلُبْنِي عِنْدَ الْحَوْضِ، فَإِنِّي لَا أُخْطِئُ هَذِهِ الثَّلَاثَ الْمَوَاطِنَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت انس ﷺ وايي ②يوه ورځ ما حضور ﷺ ته درخواست وکو چې تاسو به د قیامت په ورځ د عام شفاعت نه علاوه خاص طور سره جدا هم ځما شفاعت وفرمايې ③حضور ﷺ وفرمایل ښه دی زه به شفاعت کوم ماعرض وکړو تاسو به کوم ځاي تلاش کوم او تاسو به کوم ځاي پیدا اکرم ④حضور ﷺ وفرمایل د ټولو نه مخکې ما په پُل صراط تلاش کوه ⑤ماعرض وکړو که په پُل صراط مو پیدا نه کی وي فرمایل بیا د میزان سره مې تلاش کوی ⑥ماعرض وکړو که میزان سره هم بیانه شي پیدا ⑦وي فرمایل که دي دواړو ځایونو کې مې پیدا نه کی نو بیا حوض باندې ما تلاش کوه زه به ددي دريو ځایونه نه چیرته هم نه ځم دا حدیث امام ترمذي رحمه الله نقل کړی دی او ویلي يي دي چې دا حدیث غریب دی

**تسهیلات:**

**قوله: اطْلُبْنِي أَوَّلَ مَا تَطْلُبُنِي عَلَى الصِّرَاطِ ":**

**په دريو ځايونوکښې دنبی علیه السلام د موجودګۍ وجه:** دري مقامات او ځایونه داسې دی چه دلته به مسلمانان پریشانه کیږی په دې وجه به حضورپاك په دغه مقاماتو کښې

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی شان الصراط (رقم-۲٤۳۳) واحمد فی المسند: ۱۷۸/۳

په يو مقام باندې ضرور موجود وي يا به دغه دريوارو ځايونو ته نبي كريم ﷺ وار په وار راځي دې دپاره چه چاته څه مشكل پيښيږي نوچه د هغه مشكل د نبي كريم ﷺ د شفاعت په وجه سره آسان كړې شي.

**اشكال** د مشكاة په حديث نمبر (۵۵۶۰) كښې تيرشوى دى چې په درې مقاماتو كښې به څوك هم څوك نه يادوى اودلته په دې حديث كښې نبي ﷺ فرمائي چې په دې درې مقاماتو كښې ما تلاش كوه.نودا حديث د هغې سره معارض دې

**داشكال جواب:** هغه حديث په غائبينو باندې محمول دې مطلب دادې چه په هغه ورځ به په دغه دريوموقعو باندې څوك خپل غائبين خپلوان نه يادوى او د حضرت انس ﷛ حديث په حاضرينو باندې محمول دې.

**[۵۵۹۶] د مقام محمود او د كرسۍ ذكر**

۵۵۹۶-()[۲۷] ①«وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②قِيلَ لَهُ: مَا الْمَقَامُ الْمَحْمُودُ؟ ③قَالَ: " ذَلِكَ يَوْمٌ يَنْزِلُ اللَّهُ تَعَالَى عَلَى كُرْسِيِّهِ ④فَيَئِطُّ كَمَا يَئِطُّ الرَّحْلُ الْجَدِيدُ بِرَاكِبِهِ مِنْ تَضَايُقِهِ بِهِ، ⑤هُوَ كَسَعَةِ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، ⑥وَيُجَاءُ بِكُمْ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا، ⑦فَيَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُكْسَى إِبْرَاهِيمُ،

**ترجمه:** ①او حضرت ابن مسعود ﷛ د رسول الله ﷺ نه روايت كوي ②چې رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه چې مقام محمود او ددې اهميت او خصوصيت څه دى چې د هغه په آيت كې ستاسو سره وعده شوى ده: عَسَىٰ أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا نو ③حضور ﷺ وفرمايل په هغه ورځ هركله چې دا مقام محمود به ماته راكړې كېږي الله ﷻ به خپلې كرسۍ باندې نزول وفرمايي ④او هغه كرسۍ به چرچر كوي څرنګه چې د نوي چمړې تنګ زين چرچر كوي ⑤او د هغه كرسۍ كشاده ګي او وسعت دومره دى څومره چې د زمكي او آسمان درمياني فضاء ده ⑥بيابه تاسو ټول خپې آبلې پښې بربنډ او بي ختني ميدان حشر ته راوستل شي ⑦او په هغه ورځ د ټولو نه مخكښې كوم سړي ته چې به لباس واغوستل شي هغه به حضرت ابراهيم وي

**حل اللغات:** - ① يَئِطُّ: أطَّ يئط أطا وأطيطا په نوې كرسۍ باندې د كيناستو په وخت د چنګاري آواز ته وائي ② الرَّحْلُ: كيجاوه. ③ تَضَايُقِهِ: د تنګوالي په وجه. ④ حُفَاةً: خپې آبله خپې. ⑤ عُرَاةً: بربنډ بدن. ⑥ غُرْلًا: ناسنته. ⑦ يُكْسَى: د كَسٰى يَكْسُوْ نه د اغوستولو په معنى كښې دې.

①يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى: اكْسُوا خَلِيلِي ; ②فَيُؤْتَى بِرَيْطَتَيْنِ بَيْضَاوَيْنِ مِنْ رِيَاطِ الْجَنَّةِ، ③ثُمَّ أُكْسَى عَلَى أَثَرِهِ، ④ثُمَّ أَقُومُ عَنْ يَمِينِ اللَّهِ مَقَامًا ⑤يَغْبِطُنِي الْأَوَّلُونَ وَالْآخِرُونَ» ". رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

[1]) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ۲۸۰۰

**ترجمه**: [۱] الله ﷻ به فرشتو ته حکم وکړي چې خما دوست ته لباس واغوندوئ [۲] او د جنت د څادرونو نه د ملائم کتان یو قسم نرمی اعلی کپړي دوه سپین څادرونه راوړلو سره حضرت ابراهیم علیه السلام ته به واغوستل شي [۳] هغوئ نه وروسته به ماته لباس واغوستل شي [۴] او بیا به زه د الله ﷻ په ښي طرف ودریږم [۵] او په دې اعزاز پیدا کولو باندې به مخکنی او وروستني خلق په ما رشك کوي (یعني ماته به پسخیږي) (دارمي)

**حل اللغات**: ⑧ بِرَيْطَتَيْنِ: ريطة د کتان او د ټاسرې څادر ته وائی ⑨ أَثَرِهِ: هغه پسې، دهغه نه وروسته. ⑩ يَغْبِطُنِي: په ما به رشک کوی، پسخیږی به

**تسهیلات**:

**قوله**: اكْسُوا خَلِيلِي، فَيُؤْتَى بِرَيْطَتَيْنِ بَيْضَاوَيْنِ مِنْ رِيَاطِ الْجَنَّةِ:

**ابراهیم ته د ټولو نه اول جنتی جامې اغوستل**: حضرت ابراهیم علیه السلام ته به د ټولو نه مخکښې کپړې ځکه اغوستلې شي چه نمرود په اورکښې د اچولو په وخت د هغه کپړې کوزې کړې وې. حضور پاك نه مخکښې ورته ځکه واچولې شوې چه د هغوی نیکه دې هم دغه د احترام تقاضا ده

### [۵۵۹۷] پُل صراط باندې د ایمان والو د پیژندلو نښه

۵۵۹۷-()[۳۸] [۱] وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "شِعَارُ الْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى الصِّرَاطِ: رَبِّ سَلِّمْ سَلِّمْ» ". [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د قیامت په ورځ به پُلِ صراط باندې تیریدو په وخت د اهلِ ایمانو علامه دا الفاظ وي ربِّ سلم سلم پروردګاره: مونږ بچ کی پروردګاره مونږ بچ کی [۳] دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دی چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات**: - ① شِعَارُ: خاص نښه او علامت. ② سَلِّمْ سَلِّمْ: مونږ ته سلامتیا راکړې. مونږ بچ کړې.

**تسهیلات**:

**قوله**: شِعَارُ الْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى الصِّرَاطِ: رَبِّ سَلِّمْ سَلِّمْ:

**د شعار تعریف**: "شعار" هغه علامت ته وائی چه فوجیان ئی په خپل مینځ کښې د یو بل د پیژندګلو د پاره استعمالوي دې د پاره چه که څوك دښمن راشي نو چه هغه اونیولې شي کوم ته چه په عام اصطلاح کښې د شپې نام شب او د جواب شب (کود ورډ) وائی.

**د مؤمنانو نه مراد**: د مؤمنانو نه مراد د نورو امتونو مؤمنین دی په هغه ورځ به د ټولو

) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی شأن الصراط (رقم-۲۴۳۲)

ژبه عربي وی لهذا انبیاء به هم "سلم،سلم" فرمائی خو رسول کریم ﷺ به "یارب أمتي، یارب أمتي" فرمائی

**د پیغمبرانو او غیر پیغمبرانو په رب سلم کښې فرق:** د انبیاؤ کرامو "رب‌سلم‌سلم" فرمائیل به د خپل امت د شفاعت په توګه باندې وی او د مؤمنانو "رب‌سلم" فرمائیل به د خپل ځان د پاره د دعا په توګه وی دارنګ د پل صراط د تیریدو په وخت به د نورو امتونو د مؤمنانو پیژندګلو "رب‌سلم‌سلم" سره کیږی خو د امت محمدیه د مؤمنانو پیژندګلو به "لا إله إلا أنت" سره کیږی

**اشکال:** په زیربحث حدیث کښې د مسلمانانو شعار ,,رب سلم سلم،، وی او ابن مردویه رحمه الله د حضرت عائشه رضی الله عنها نه مرفوعًا نقل کړی دی چه هغه وخت به د ایمان والو شعار "لا إله إلا الله وعلى الله فليتوكل المؤمنون" وی او په بل روایت کښې دی چه د قیامت د ورځې په هیبت او په تیارو کښې به د ایمان والو شعار "إلا إله إلا أنت" وی

**د اشکال جواب:** د مؤمنانو مختلف طبقاتو مختلف علامات وی په دې سره به په روایاتو کښې تطبیق هم اوشی.

**[۵۵۹۸] د ګناه کبیره شفاعت به صرف د دې امت د پاره وی**

۵۵۹۸-()[۲۹] [۱] «وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " شَفَاعَتِي لِأَهْلِ الْكَبَائِرِ مِنْ أُمَّتِي». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د ګناه کبیره کونکو په حق کې ځما شفاعت صرف ځما د امت د خلقو د پاره مخصوص به وي (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** - ① أَهْلِ الْكَبَائِرِ: کبیره ګناه کونکی

۵۵۹۹-()[۱] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ جَابِرٍ.

**ترجمه:** [۱] او ابن ماجه دا روایت د حضرت جابر رضی الله عنه نه نقل کړی دی

**تسهیلات:**

**قوله:** شَفَاعَتِي لِأَهْلِ الْكَبَائِرِ مِنْ أُمَّتِي:

---

[۱] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب السنة/باب في الشفاعة (رقم-۴۷۳۹) والترمذي في كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۴۳۵)واحمد في المسند:۳/۲۱۳

[۲] ) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الزهد/باب ذكر الشفاعة (رقم-۴۳۱۰)

**۵ امت محمدی دپاره دشفاعت تخصیص:** دَ کبیره گناهونونه دَمعافئی دَپاره زما شفاعت زما دَ امت دَپاره خاص دي دَ نورو امتونودَ خلقو دَپاره نشته.

**دشفاعت دوه قسمونه:** ① امام طیبی رحمه الله فرمائی یوشفاعت د گناهگارانودپاره دي چې دوی د جهنم دعذاب بچ کړی

② دویم شفاعت دنیکانوخلقو د رفع درجاتودپاره دي چې د هغوی په درجوکښې اوچتوالي اوشی

**[۵۶۰۰] دَ محدود شمار په ځائې د نبی علیه السلام شفاعت کول غوره کول**

۵۶۰۰-()[۳۰] ۱ وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "أَتَانِي آتٍ مِنْ عِنْدِ رَبِّي، ۳ فَخَيَّرَنِي بَيْنَ أَنْ يُدْخِلَ نِصْفَ أُمَّتِي الْجَنَّةَ وَبَيْنَ الشَّفَاعَةِ، ۴ فَاخْتَرْتُ الشَّفَاعَةَ، ۵ وَهِيَ لِمَنْ مَاتَ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عوف بن مالک رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د الله تعالی دطرف نه یوه فرشته ماته راغله ۳ او هغه د بارگاه رب العزت د طرف نه ماته په دي دوو خبرو کې د یوي خبري اختیارولو واك راکی چې یا خو ځما نیم امت دی په جنت کې داخل شي یا د ټولو په حق کې د شفاعت حق ماته حاصل شي ۴ نو ما د خپل امت په حق کې د شفاعت حق حاصلولو اختیار حاصل کی چې بلا استثنٰی ټول مؤمنان مسلمانان ددي نه فیضاب شي او هیڅوك هم محروم پاتې نشي ۵ نو ځما شفاعت ځما په امت کې دهرهغه سړي د پاره فیصله کړل شوي دي چې هغه په داسې حال کې خپل ځان الله تعالی ته سپارلی وي چې د الله تعالی سره په شرك کې مبتلا شوي نه وي حاصل داچې د قیامت په ورځ ټول اهل ایمان ته د حضور ﷺ شفاعت نصیب کیدل یقیني دي. (ترمذي ابن ماجه)

**تسهیلات:**

**قوله فَاخْتَرْتُ الشَّفَاعَةَ:**

**دامت دزیاتوالی په اعتبارسره د نبی علیه السلام فوقیت:** دنبی علیه السلم د امت د خلقوشماربه زیات وی نو په حوض کوثرته راتلونکی به هم زیات وی نو ددې څخه معلومه شوه چې نبی علیه السلام ته به د ټولوڅخه زیات شرف او اعزاز حاصل وی اوپاتې شوه د نبی علیه السلام دا خبره چې زه امید کوم چې د ټولوپیغمبرانوڅخه به زما امت زیات وی نودا خبره خو یقینی ده خو نبی علیه السلام دعاجزی په طور اوفرمائیل چې زه امید کوم

---

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه (رقم-۲۴۴۱) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذکر الشفاعة (رقم-۴۳۱۱) واحمد فی المسند: ۲۳/۶

## [۵٦۰۱] دبنوتمیم قبیلې د افرادو څخه د زیاتو ګناهګارانو شفاعت

۵٦۰۱-()[۳۱] [۱] «وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي الْجَدْعَاءِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [۲] "يَدْخُلُ الْجَنَّةَ بِشَفَاعَةِ رَجُلٍ مِنْ أُمَّتِي أَكْثَرُ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله بن ابي جدعاء ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] خما د امت د يو بزرګ او صالح سړي په شفاعت سره به د بني تميم د سړو د تعداد نه هم زيات خلق په جنت کې داخل شي (ترمذي دارمي ابن ماجه)

**تسهیلات:**

**قوله: يَدْخُلُ الْجَنَّةَ بِشَفَاعَةِ رَجُلٍ مِنْ أُمَّتِي أَكْثَرُ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ:**

**د رجل په مصداق کښې درې اقوال:**

① رجل څخه حضرت عثمان بن عفان ﷺ مراد دي لکه د حسن بصرى ﷺ نه هم مرسلاً روايت امام ترمذى ﷺ ذکر کړي دي

② دي څخه حضرت اويس قرنى ﷺ مراد دې ځکه چه په يو بل حديث کښې د رسول الله ﷺ ارشاد مبارك دې چه زما په امت کښې يو سړې دې کوم ته چه اويس بن عبدالله قرنى وئيلې شي هغه به د قيامت په ورځ د قبيله ربيعه اومضر برابر خلقو سفارش کوى

③ بعضو وئيلى رسول الله ﷺ چه کله د دغه سړى د نوم ذکر اونه فرمائيلو نو اوس د هغې تعين مشکل دې لهذا دې نه هريونيك سړې مراد کيدې شى داقول زين العرب د حديث مفهوم سره ډير نيزدې ګرځولي دې. په حديث شريف کښې چه دا فرمائيلې شوى دى قلت من هذا؟ قالوا: هذا ابن ابى الجذعاء دې نه راوى مراد دي

## [۵٦۰۲] د عام شفاعت ذکر

۵٦۰۲-()[۳۲] [۱] «وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "إِنَّ مِنْ أُمَّتِي مَنْ يَشْفَعُ لِلْفِئَامِ وَمِنْهُمْ مَنْ يَشْفَعُ لِلْقَبِيلَةِ، [۳] وَمِنْهُمْ مَنْ يَشْفَعُ لِلْعُصْبَةِ، [۴] وَمِنْهُمْ مَنْ يَشْفَعُ لِلرَّجُلِ، حَتَّى يَدْخُلُوا الْجَنَّةَ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو سعيد ﷺ نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] خما په امت کې چې کومو خلقو تـه بـه د شفاعت حق او اذن حاصل وي لکه علماء شهداء او

---

[1]) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۴۳۸) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب ذكر الشفاعة (رقم-۴۳۱٦) واحمد فى المسند:۳/۴٦۹

[2]) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۴۴۰) واحمد فى المسند:۳/۲۰۰

صالحین په هغوئ کې به څوك خو د خپل متعلقینو د څو جماعتونو شفاعت کوي ۲ څوك به د یو قبیلي د خلقو برابر د خپلو متعلقینو شفاعت کوي ۴ او څوك به د خپل متعلق صرف د یو سړي سفارش کوي غرض دغه شان د هر یو د شفاعت په نتیجه کې به ټول امت په جنت کې داخل شي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① لِلْفِئَامِ: جماعت، قبائل یعنی ډیرې قبیلې، (قبیله هغې خاندان ته وائی چه نیکه ئې یو وی ② لِلْعُصْبَةِ: دَ لسو نه ترڅلویښتو پورې کسانو ته عصبه وائی

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ مِنْ أُمَّتِي مَنْ يَشْفَعُ لِلْفِئَامِ: الخ

**د نیکانو خلقو شفاعت:** دَ دویم حدیث نه معلومه شوه چه دَ قیامت په ورځ به ډیرنیکان خلق دَ الله تعالی په اجازت سره سفارش کوی. دَ بعض په سفارش سره به ډیرې ډلې جنت کښې داخلیږی دَ بعضو په سفارش یوه قبیله، یوجماعت اودَ بعضو په شفاعت به یوسړې په جنت کښې داخلیږی غرض دا چه الله تعالی به دَ دې امت په خلقو باندې دَ خصوصی فضل معامله فرمائی اودغه شان به ډیرزیات خلق جنت کښې داخلیږی. (۱)

**[۲-۵۶۰۲] جنت کې بغیر د حساب نه د داخلیدو نکو تعداد**

۵۶۰۳-(۲) [۳۳] ۱ «وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ وَعَدَنِي ۳ أَنْ يَدْخُلَ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي أَرْبَعُمِائَةِ أَلْفٍ بِلَا حِسَابٍ". ۴ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: زِدْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، ۵ قَالَ وَهَكَذَا، فَحَثَا بِكَفَّيْهِ وَجَمَعَهُمَا، ۶ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: زِدْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: وَهَكَذَا، ۷ فَقَالَ عُمَرُ: دَعْنَا يَا أَبَا بَكْرٍ!

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ۲ الله جل جلاله ما سره دا وعده کړي ده ۳ چې هغه به څما د امت نه څلور لاکه سړي د حساب کتاب نه بغیر اود مواخذي او په عذاب کې داخته کولو نه بغیر په جنت کې داخل کړي ۴ حضرت ابوبکر رضی الله عنه دا ارشاد اوریدو سره عرض وکړو یارسول الله! زمونږ په دي تعداد کې اضافه وکړي یعنی الله جل جلاله نه دي تعداد کې اضافي د پاره درخواست وکئ یا داچي پروردګار ستاسو سره د کوم شي وعده کړي ده هغه زیاتولو سره بیان کړئ څکه چې تاسو رحمت خداوندي باندې اعتماد کولو سره مونږ ته چې څومره زیات نه زیات بیان کړي الله جل جلاله به هغه پوره کړي ۵ حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل ښه دی دومره نور زیات، په دې ویلو سره حضور صلی الله علیه وسلم دواړه لاسونه یوځاي کولو سره لپه جوړ کړل ۶ حضرت ابوبکر رضی الله عنه بیا عرض وکړو یارسول الله!

---

۱) تحفة الاحوذی ۷/ ۱۱۰. مرقاة ۹/ ۵۶۶ الکوکب الدری ۳/ ۲۸۳.

۲) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحدیث ۴۳۳۵ واحمد فی المسند: ۳/ ۱۶۵

زمونږ په دې تعداد او مقدار کې نوره اضافه وکړي بيا حضور ﷺ لپه جوړولو سره اوويل چې ښه دومره نور زيات [۷] حضرت عمر رضي الله عنه هم په هغه مجلس کې موجود وو هغه محسوس کړه او وې وئيل چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه بس اوس مونږ په خپل حال پرېږدئ يعنې دومره زيات رعايت مه کوئ چې مونږ د الله جل جلاله په کرم او عنايت باندې اعتماد وکو او کينو او د عذاب خداوندي د خوف نه دومره بې فکره شو چې عمل کول پرېږدو

**حل اللغات:**- ① حَثَا: لپه ئې ډکه کړه، ② دَعْنَا: پرېږده مونږ.

[۱] فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: وَمَا عَلَيْكَ أَنْ يُدْخِلَنَا اللهُ كُلَّنَا الْجَنَّةَ؟ [۲] فَقَالَ عُمَرُ: إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ إِنْ شَاءَ أَنْ يُدْخِلَ خَلْقَهُ الْجَنَّةَ بِكَفٍّ وَاحِدٍ فَعَلَ، [۳] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَدَقَ عُمَرُ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوبکر رضي الله عنه په دې اوريدو سره اوويل که الله جل جلاله مونږ ټول بې حسابه او بغير مواخذې جنت ته وليږي نو په دې کې ستا څه نقصان دی [۲] حضرت عمر رضي الله عنه جواب ورکړو که الله جل جلاله خپل ټول مخلوق په جنت کې داخلول واغواړي نو کولی شي چې په يوې لپې مودا خل کړي بيا بار بار د اضافي درخواست کولو څه ضرورت دی [۳] نو رسول الله ﷺ د حضرت عمر رضي الله عنه خبره اوريدو سره وفرمايل چې عمر رضي الله عنه بالکل رښتيا اوويل دا روايت بغوي رحمه الله په شرح السنه کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:**- ③ كَفّ: لپه، موټې.

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: زِدْنَا يَا رَسُولَ اللهِ:**

**دابوبکر په امت باندې شفقت:** دَحضرت ابوبکر رضي الله عنه همدردي او دَ جنت دَحرص جذبه دومره زياته وه چه حضورپاك ته ئې اوفرمائيل چه تاسو په الله تعالى باندې نور زياتوالې اوکړئ ځکه چه تاسو به سفارش کوئ نو الله تعالى به زياتوالې کوی بل طرف ته دَ الله تعالى دَ طرف نه دَدې وسيع شفاعت په صورت کښې دَ شمير په ځائې باندې په لاسونو لپې ډکولو وو حضورپاك هم لپې ډکولو سره دَ الله تعالى دَ فعل نقل اوخودلو. په دې باندې صديق اکبر رضي الله عنه دَ نورو زياتولو درخواست اوکړو. حضورپاك نوره اضافه اوکړه

**دعمر رضى الله عنه په نبى عليه السلام شفقت:** په دې باندې ابوبکر رضي الله عنه دَ نور زياتوالى درخواست اوکړونو حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل ابوبکر بس کړه که الله تعالى اوغواړى نو يوه لپه کښې ټول مخلوق جنت کښې داخلولې شى حضورپاك دَ حضرت ابوبکر رضي الله عنه په سفارش باندې اضافه هم اوکړه اوبيائى دَ حضرت عمر رضي الله عنه دَ رائې تائيد اوفرمائيلو نودَ دواړو زړه ساتنه اوشوه.

**[٥٦٠٤] گناهگار خلق به څرنګه د خپل شفاعت درخواست کوي؟**

۵۶۰۴-(۱)[۳۴] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "يُصَفُّ أَهْلُ النَّارِ، فَيَمُرُّ بِهِمُ الرَّجُلُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ، ۳ فَيَقُولُ الرَّجُلُ مِنْهُمْ: يَا فُلَانُ أَمَا تَعْرِفُنِي؟ ۴ أَنَا الَّذِي سَقَيْتُكَ شَرْبَةً. وَقَالَ بَعْضُهُمْ: أَنَا الَّذِي وَهَبْتُ لَكَ وَضُوءًا، ۵ فَيَشْفَعُ لَهُ فَيُدْخِلُهُ الْجَنَّةَ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ چې په اهلِ ايمانو کې چې کوم خلق د خپلو ګناهونو په سبب دوزخي ګرځول شوي دي هغوئ به د اهلِ جنت يعنی علماوو اخيار و صلحاؤ او ابرابرو په لاره کې صف تړلی ودرول شي څرنګه چې په دي دنيا کې فقير او سائل د ورکونکوانتظار کې په لار کې ولاړ وي او بيا چې يوجنتي د هغوئ مخې ته تيريږي ۳ نو په هغه دوزخيانو کې به يو سړی د هغه جنتي نوم اخستو سره وايي اې فلانيه! آيا ته مانه پيژني ۴ زه هغه سړی يم چې يووار مې په تا اوبه څکلي وي په هغوئ کې به يو سړی دا وايي چې زه هغه سړی يم چه يووار مي اودس د پاره تاته اوبه درکړي وي ۵ هغه جنتي به په دي اوريدو سره د هغه شفاعت کوي او هغه به په جنت کې داخل کړي (ابن ماجه)

**حل اللغات:**- ① سَقَيْتُكَ: په تا مې اوبه څکلي وې. ② وَهَبْتُ: درکړې مې وې، ③ وَضُوءًا: د اودس اوبه

**تسهيلات:**

**قوله فَيَشْفَعُ لَهُ فَيُدْخِلُهُ الْجَنَّةَ:**

**دنيکانو خلقو د خپلو محسنينو د پاره سفارش:** دَ حديث الباب نه معلوميږی چه که چرې ګناهګار سړې دَ پرهيزګارو، عالمانو او صالحانو خلقو امداد يا خدمت کوی نو ګناهګار ته به په آخرت کښې دَ هغه دا عمل دَ شفاعت دَپاره فائده ورکړی

**نيکانو سره د احسان کولو ترغيب:** امام مظهر ﷫ فرمائی چه دَ دې حديث په ذريعه لکه چه ددې امر ترغيب ورکړې شوې دې چه خپلو مسلمانانو رونړو اوخصوصاً دَ نيکانو بزرګانو کسانو سره دَ حسن سلوك. دَ مروت او احسان رويه اختيارول پکاردی ځکه چه د هغوی صحبت په دنيا کښې دَ ښائست او په آخرت کښې دَ نور او بخښنې دَ حصول ذريعه ده ددې حديث نه داهم معلومه شوه چه هيڅ يوه وړه نيکی سپکه ګنړل او پريخودل نه دی پکار او يوه ګناه هم وړه ګنړل نه دی پکار. اکثر واړه اعمال هم دَ شفاعت سبب جوړيږی كما قال الشاعر "لاتحقرن صغيرةً إن الجبال من الحصى".

[۱] اخرجه ابن ماجه فی السنن كتاب الأدب/باب فضل صدقة الماء (رقم-۳۶۸۵)

[۵۶۰۵] دوه دوزخيانو سره د الله د رحمت عجيبه معامله

۵۶۰۵ - ()[۳۵] [۱] «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "إِنَّ رَجُلَيْنِ مِمَّنْ دَخَلَ النَّارَ اشْتَدَّ صِيَاحُهُمَا، [۳] فَقَالَ الرَّبُّ تَعَالَى: أَخْرِجُوهُمَا. [۴] فَقَالَ لَهُمَا: لِأَيِّ شَيْءٍ اشْتَدَّ صِيَاحُكُمَا؟ [۵] قَالَا: فَعَلْنَا ذَلِكَ لِتَرْحَمَنَا. [۶] قَالَ: (فَإِنَّ رَحْمَتِي لَكُمَا أَنْ تَنْطَلِقَا فَتُلْقِيَا أَنْفُسَكُمَا حَيْثُ كُنْتُمَا مِنَ النَّارِ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هل ايمانو کې چې کوم خلق د خپلو ګناهونو په بدله کې په دوزخ کې داخل شوي دي په هغوئ کې به دوه سړي ډير زيات شور کوي يعنى ژړا انګولا او آه وفرياد به کوي او چغې به وهي [۳] نو پروردګار به د دوزخ فرشتو ته حکم ورکړي چې دا دواړه بهر راوباسي [۴] او هرکله چې هغوئ بهر شي نو هغوئ ته به وفرمايي چې تاسو ولې دومره چغې وهى؟ [۵] هغوئ به وايي مونږ ځکه چغې وهلې چې ستا رحمت زمونږ طرف ته متوجه شي او مونږ ته ښه معلومه ده چې ته هغه سړى خوښوې چې ستا مخکې ژړا زارى کوي او آه وفرياد وکړي [۶] الله ﷻ به ورته وفرمايي ستاسو په حق کې ځما رحمت دادى چې تاسو واپس لاړشئ او په دوزخ کې چې چيرته وئ هلته پراته اوسئ

**حل اللغات:** - ① صِيَاحُهُمَا: چغې ستاسو دواړو، ② تَنْطَلِقَا: واپس شئ دواړه

[۱] فَيُلْقِي أَحَدُهُمَا نَفْسَهُ، [۲] فَيَجْعَلُهَا اللهُ عَلَيْهِ بَرْدًا وَسَلَامًا، [۳] وَيَقُومُ الْآخَرُ فَلَا يُلْقِي نَفْسَهُ، [۴] فَيَقُولُ لَهُ الرَّبُّ تَعَالَى: مَا مَنَعَكَ أَنْ تُلْقِيَ نَفْسَكَ كَمَا أَلْقَى صَاحِبُكَ؟ [۵] فَيَقُولُ: رَبِّ إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ لَا تُعِيدَنِي فِيهَا بَعْدَمَا أَخْرَجْتَنِي مِنْهَا. [۶] فَيَقُولُ لَهُ الرَّبُّ تَعَالَى: لَكَ رَجَاؤُكَ. فَيُدْخَلَانِ جَمِيعًا الْجَنَّةَ بِرَحْمَةِ اللهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] په هغوئ کې يو سړى خو به په دي اوريدو سره کامل اطاعت او د رضائي الٰهي طلب کې واپس راشي [۲] او ځان به د دوزخ په اور کې واچوي او الله ﷻ به په هغه اور داسې يخ کړي ځرنګه چې حضرت ابراهيم عليه السلام د پاره يې اور ګل وګلزار جوړ کړى وو [۳] او دويم سړى به په دي معامله کې ځان بالکل بې بس پيدا کولو سره او د الله ﷻ په لطف وکرم باندې کامل يقين لرلو سره هلته به ولاړ وي او ځان به په اور کې نه غورځوي [۴] الله ﷻ به د هغه نه پوښتنه وکړي تا ځان په اورکې ولې وانه چوى حال دا چې ستا ملګري ځما دحکم په اوريدو سره ځان په اور کې واچوى [۵] هغه به عرض وکړي اې پروردګاره! زه خو په دي اميبهر ولاړ يم چې تا زه د دوزخ نه راويستم نو اوس به مې دوباره هلته نه ليږې [۶] الله ﷻ به ورته فرمايي تا چې کوم اميد قائم کړى دى هغه ستا په حق کې پوره کېږي نو هغه دواړه سړيان به د الله ﷻ د رحمت او مهربانۍ په صدقه کې يوځاي په جنت کې داخل شي. (ترمذي)

---

[1]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۵۹۹)

**تسهیلات:**

نوټ د حدیث مضمون آسان دې د تشریح څخه ضرورت نشته

**[۵٦۰٦] پُل صراط باندې د تیریدونکو احوال**

۵٦۰٦-(¹)[۳٦] ۱ «وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "يَرِدُ النَّاسُ النَّارَ، ثُمَّ يَصْدُرُونَ مِنْهُ بِأَعْمَالِهِمْ، ۳ فَأَوَّلُهُمْ كَلَمْحِ الْبَرْقِ، ۴ ثُمَّ كَالرِّيحِ، ۵ ثُمَّ كَحُضْرِ الْفَرَسِ، ثُمَّ كَالرَّاكِبِ فِي رَحْلِهِ، ٦ ثُمَّ كَشَدِّ الرَّجُلِ، ثُمَّ كَمَشْيِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ خلق یعنی اهل ایمان به پُل صراط باندې د تیریدو په وخت چې په دوزخ برسیره به اینبودل شوی دي اور باندې حاضر شي یعنی هغه به خپلو سترګو سره ویني او بیابه د خپلو خپلو اعمالو مطابق د هغه نه نجات بیا مومي او پُل صراط به آسانۍ سره یا په تندي پرمخې عبور کړي ۳ نو په هغوئ کې به اول او د ټولو نه افضل خلق هغه وي چې پل صراط باندې به د بجلۍ د پړک په شان تیر شي ۴ بیابه هغه خلق وي چې د هوا د څپې په شان به تیر شي ۵ بیابه هغه خلق وي چې د آس د رفتار په شان بیابه هغه خلق وي چې د اوښ د سور په شان ٦ بیابه هغه خلق وي چې د سړي د زغلیدو په شان بیابه هغه خلق وي چې د سړي د معمول مطابق پیاده تلو په شان به تیر شي دا روایت ترمذي رحمه الله او دارمي رحمه الله نقل کړی دی

**حل اللغات:** - ۱ لَمْحِ الْبَرْقِ: د بجلۍ برق، ۲ حُضْرِ الْفَرَسِ: د اس په رفتار، ۳ شَدِّ الرَّجُلِ: زغلیدل د سړی. منډې وهل.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵٦۰۷] د حوض کوثر د دوارو غاړو په مینځ کې فاصله**

۵٦۰۷-(²)[۳۷] ۱ «عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: ۲ "إِنَّ أَمَامَكُمْ حَوْضِي، ۳ مَا بَيْنَ جَنْبَيْهِ كَمَا بَيْنَ جَرْبَاءَ وَأَذْرُحَ». ۴ قَالَ بَعْضُ الرُّوَاةِ: هُمَا قَرْيَتَانِ بِالشَّامِ، بَيْنَهُمَا مَسِيرَةُ ثَلَاثِ لَيَالٍ. ۵ وَفِي رِوَايَةٍ: («فِيهِ أَبَارِيقُ كَنُجُومِ السَّمَاءِ، مَنْ وَرَدَهُ فَشَرِبَ مِنْهُ لَمْ يَظْمَأْ بَعْدَهَا أَبَدًا»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ ستاسو مخکې د قیامت په ورځ خما حوض کوثر ښکاره کیدونکی دی ۳ چې د هغه د دوارو

---

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة مریم (رقم-۳۱۵۹) واحمد فی المسند: ۱/۴۳۳

²) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب فی الحوض (رقم-۶۵۷۷) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب إثبات حوض نبینا صلی الله علیه وسلم وصفاته (رقم-۳۴ - (۲۲۹۹) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذکر الحوض (رقم-۴۳۰۳)

غاړو درمياني فاصله دومره ده څومره چې د جرباء او اذرح په منځ کې فاصله ده ۳ د يو راوي وينا ده چې جرباء او اذرح ملك شام کې دوه قريې دي چې د هغه په منځ کې د دريو ورځو مسافت دی ۵ او په يوه حديث کې دا الفاظ هم دي چې د دې حوض دواړو غاړو باندې گلاسونه پراته دي چې د برېښ او کثرت د اعتبار نه د آسمان د ستورو په شان به وي کوم سړی چې دې حوض ته راشي او اوبه تری نه اوڅکي بيابه هيڅ کله نه تږی کېږي (بخاری ومسلم)

**حل اللغات:** - ① جَرْبَاءَ وَأَذْرُحَ: دا دواړه په ملك شام کې دوه کلي دی ② أَبَارِيْقُ: د اوبو څکلو لوښي.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا بَيْنَ جَنْبَيْهِ كَمَا بَيْنَ جَرْبَاءَ وَأَذْرُحَ:

**دحوض کوثر وسعت:** په دې حديث کښې دَحوض وسعت بيانول مقصود دی محققينو ليکلي دی چه جرباء دَ يو کلي نوم دې چه اذرح سره بالکل نيزدې واقع دې

**قوله:** هُمَا قَرْيَتَانِ بِالشَّامِ، بَيْنَهُمَا مَسِيرَةُ ثَلَاثِ لَيَالِيَ:

**د درې شپوه فاصلې د قول عدم صحت:** باقي دَ دغه دواړو په مينځ کښې دَ دريو ورځو دَمسافت وينا صحيح نه ده بلکه تحقيق دادې چه دَدې حديث دَ يو راوی په وهم کښې دَ اخته کيدو په وجه دا الفاظ نقل نه شو دکوم نه چه دَ حوض کوثر وسعت بيانول مقصود وو والله اعلم

**[۵٦۰۸] دشفاعت او د پل صراط تذکره**

۵٦۰۸(۱)-۵٦۰۹-(۲)[۳۸] ١ «وَعَنْ حُذَيْفَةَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ " يَجْمَعُ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى النَّاسَ، ٣ فَيَقُومُ الْمُؤْمِنُونَ، حَتَّى تُزْلَفَ لَهُمُ الْجَنَّةُ، ٤ فَيَأْتُونَ آدَمَ فَيَقُولُونَ: يَا أَبَانَا اسْتَفْتِحْ لَنَا الْجَنَّةَ، ٥ فَيَقُولُ: وَهَلْ أَخْرَجَكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ إِلَّا خَطِيئَةُ أَبِيكُمْ؟ لَسْتُ بِصَاحِبِ ذَلِكَ، ٦ اذْهَبُوا إِلَى ابْنِي إِبْرَاهِيمَ خَلِيلِ اللهِ"

**ترجمه:** ١ او حضرت حذيفه رضي الله عنه او حضرت ابوهريره رضي الله عنه بيان وکړو چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د قيامت په ورځ به برکت والاو بلند قدر پروردگار په ميدانِ حشر کې خلق جمع کړي ٣ او بيابه ټول مؤمنان د حساب کتاب او آخري فيصلي په انتظار کې ولاړ وي چې جنت ته هغوئ نزدې شي ٤ نو د هر امت خاص خاص مومنان به حضرت آدم عليه السلام ته

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار(رقم-۶۵۶۵) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب أدنى أهل الجنة منزلةً فيها(رقم-۳۲۹ - (۱۹۵) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذکر الشفاعة (رقم-۴۳۱۲)

[2] ) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار(رقم-۶۵۶۵) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب أدنى أهل الجنة منزلةً فيها(رقم-۳۲۹ - (۱۹۵) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذکر الشفاعة (رقم-۴۳۱۲)

راشي او ورته به وايي اې زمونږ باباجانه! زمونږ د پاره جنت خلاص کړه چې مونږ خپل آبدي آرامگاه کې داخل شو ⑤ حضرت آدم علیه السلام به هغوئ ته جواب ورکړي آیا تاسو ته نه ده معلومه چې تاسو د جنت نه ستاسو د پلار گناه ویستلي وئ نو داکار یعنی ستاسو په حق کې شفاعت کول او د جنت خلاصولو اهل زه نه یم ⑥ تاسو خلق ځما ځوی ابراهیم ته ورشئ چې د الله دوست او د الله په رسولانو کې افضل او د خاتم الانبیاء جدّ اعلیٰ دی

**حل اللغات:-** ① تُزْلَفُ: نزدې به کړی شی.

① قَالَ: " فَيَقُولُ إِبْرَاهِيمُ: لَسْتُ بِصَاحِبِ ذٰلِكَ، ② إِنَّمَا كُنْتُ خَلِيلًا مِنْ وَرَاءَ وَرَاءَ، ③ اِعْمِدُوا إِلَى مُوسَى الَّذِي كَلَّمَهُ اللّٰهُ تَكْلِيمًا، ④ فَيَأْتُونَ مُوسَى فَيَقُولُ: لَسْتُ بِصَاحِبِ ذٰلِكَ، ⑤ اِذْهَبُوا إِلَى عِيسَى كَلِمَةِ اللّٰهِ وَرُوحِهِ، ⑥ فَيَقُولُ عِيسَى: لَسْتُ بِصَاحِبِ ذٰلِكَ، فَيَأْتُونَ مُحَمَّدًا - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⑦ فَيَقُومُ فَيُؤْذَنُ لَهُ، ⑧ وَتُرْسَلُ الْأَمَانَةُ وَالرَّحِمُ، فَيَقُومَانِ جَنَبَتَيِ الصِّرَاطِ يَمِينًا وَشِمَالًا، فَيَمُرُّ أَوَّلُكُمْ كَالْبَرْقِ ".

**ترجمه:** ① حضور ﷺ وفرمایل خلق په دې اوریدو سره د حضرت ابراهیم علیه السلام په خدمت کې به حاضر شي او هغوی ته به هغه عرض وکړي کوم چې هغوئ حضرت آدم علیه السلام ته کړی ووحضرت ابراهیم به هم هغه جواب ورکړي چې زه د دې کار اهل نه یم ② زه د الله جل جلاله دوست دنن نه مخکې مخکې وم ③ تاسو خلق موسیٰ علیه السلام ته ورشئ چې الله جل جلاله هم کلامي سره مشرف کړي دي ④ خلق به د حضرت موسیٰ په خدمت کې حاضر شي هغه به هم دا جواب ورکړي چې زه د دې کار اهل نه یم ⑤ تاسو خلق عیسیٰ علیه السلام ته ورشئ چې د الله کلمه او د هغه روح دی خلق به د حضرت عیسیٰ په خدمت کې حاضر شي ⑥ حضرت به هم دا جواب ورکړي چې زه د دې کار اهل نه یم آخر هغه به داخبره واضحه شي چې د شفاعت انحصار صرف خاتم الانبیاء محمد ﷺ باندې دی نو بارگاه رب العزت کې د ټولو نه زیات قرب او عزت حضور ته حاصل دی او ټول انبیاء اورسولانو کې د ټولو نه زیات ممتاز او مشهور د حضور ذات مبارك دی نو هغه خلق به حضرت محمد ﷺ ته راشي ⑦ او حضرت محمد ﷺ به د عرش الهي ښي طرف ته ودریدو سره ټول نوع انساني ته د میدانِ حشر سختیو او پریشانیو نه د راحت ورکولو شفاعت کولو اجازت طلب کړي حضور ته به اجازت ورکړي شي او څرنگه چې مخکې تیر شو حضور ﷺ به بارگاه رب العزت کې پیش کیدو سره په سجده پریوځي بیابه حکم خداوندي باندې سر پورته کړي او عرض به وکړي ⑧ بیا چې د حساب کتاب مرحله تیره شي او ټول خلق پل صراط باندې پوریوځي نو امانت او رحم (صله رحمي) ته به صورت ورکولو سره راوستل شي او دا دواړه به خپل حق او انصاف غوښتلو د پاره د پل صراط ښي او چَپ دواړه طرف ته اودریږي بیابه پل صراط نه د خلقو تیریدل شروع شي نو یوه طبقه چې په تاسو ټولو کې

به افضله وي او د تولو نه به مخکښ تيره شي د بجلۍ په شان به ډيري تيزۍ سره پل صراط باندې پوريوځي

**حل اللغات:**- ② خَلِيلًا: دوست، ③ وَرَاءَ وَرَاءَ: ددي نه مخکښي مخکښې. (د زياتي زماني څخه کنايه ده) ④ الْبَرْقِ: بجلي.

[۱] قَالَ: قُلْتُ: بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي، أَيُّ شَيْءٍ كَمَرِّ الْبَرْقِ؟ [۲] قَالَ: (أَلَمْ تَرَوْا إِلَى الْبَرْقِ كَيْفَ يَمُرُّ وَيَرْجِعُ فِي طَرْفَةِ عَيْنٍ، [۳] ثُمَّ كَمَرِّ الرِّيحِ، ثُمَّ كَمَرِّ الطَّيْرِ، وَشَدِّ الرِّجَالِ، [۴] تَجْرِي بِهِمْ أَعْمَالُهُمْ، [۵] وَنَبِيُّكُمْ قَائِمٌ عَلَى الصِّرَاطِ يَقُولُ: يَا رَبِّ سَلِّمْ سَلِّمْ، [۶] حَتَّى تَعْجِزَ أَعْمَالُ الْعِبَادِ، حَتَّى يَجِيءَ الرَّجُلُ فَلَا يَسْتَطِيعُ السَّيْرَ إِلَّا زَحْفًا.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي دي خبري اوريدو سره ماعرض وکړو يارسول الله به تاسو دي ځما مور پلار قربان وي د بجلۍ په شان د تيريدو صورت به څه وي؟ [۲] حضور ﷺ وفرمايل آيا ته نه ويني چې د بريښنا چمك څرنګه تيريږي او د سترګو په رپ کې واپس راشي مطلب دادی چې هغه خلق به پل صراط باندې بس داسې تير شي لکه د سترګو په رپ کې [۳] بيا څه خلق به د مارغانو په شان او څه خلق به د سړو د منډې يا پياده تلونکو په شان تير شي [۴] او هغوئ به د هغوئ د اعمالو طاقت او نورانيت او پاکيزګي په مخکښ بوځي يعنی د چا اعمال چې د کومې درجي وي د هغه د تيريدو رفتار به هم د هغه درجي وي او هغه وخت چې هرکله مسلمانان پل صراط باندې تيريږي [۵] ستاسو نبي به پل صراط باندې ولاړ وي وايي به اې پروردګاره دوئ سلامتيا سره تير کړي دوی په دوزخ کې بې دلويدو نه محفوظ کړي [۶] بيا به د څه بنده ګانو اعمال عاجزه وي يعنی د کومو بنده ګانو اعمال چې ناقص او کمتروي يا داسې اعمال نه لري چې د هغه په بناء پل صراط باندې تيريدو کې هغوئ ته مدد ورکړي نو هغه خلق به پل باندې تيريدو په وخت سخت قسم پريشانيو کې ګير وي ددې پورې چې يو سړی به د خپل زيات خراب اعمالو د خرابي په وجه تلو باندې قادر نه وي په ځکيدلو يا په ګونډو به راځي

**حل اللغات:**- ⑤ طَرْفَةِ عَيْنٍ: د سترګو رپ، ⑥ شَدِّ الرِّجَالِ: زغليدل د سړی، منډې وهل. ⑦ تَعْجِزَ: عاجز وی، ناقص اوکمتر وی. ⑧ زَحْفًا: په ګونډو باندې تلل، خرپوسو باندې تلل.

[۱] وَقَالَ: " وَفِي حَافَّتَيِ الصِّرَاطِ كَلَالِيبُ مُعَلَّقَةٌ مَأْمُورَةٌ، [۲] تَأْخُذُ مَنْ أُمِرَتْ بِهِ، فَمَخْدُوشٌ نَاجٍ، وَمُكَرْدَسٌ فِي النَّارِ". [۳] وَالَّذِي نَفْسُ أَبِي هُرَيْرَةَ بِيَدِهِ إِنَّ قَعْرَ جَهَنَّمَ لَسَبْعِينَ خَرِيفًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] دي نه وروسته حضور ﷺ وفرمايل او د پل صراط دواړه طرف ته به (کونډې) چنګکان وي او هغه چنګکانو ته به د الله جل جلاله د طرف نه دا حکم وشي چې هرهغه سړی

راونیسئ کوم چې د نیولو قابل گرځول شوي دي [۲] نو هغه چنگکان به داسې خلق رانیسي او بیا هغوئ کې به څه خلق خو د هغه چنگکانو مصیبت زغملو سره او زخمي کیدو سره د دوزخ د اور نه نجات خلاصون بیا مومي او څه خلق به لاس پښې تړلي په دوزخ کې وغورځول شي [۳] قسم دی په هغه ذات چې د هغه قبضه کې د ابوهریره رضي الله عنه ساه ده د دوزخ ژوروالی د اویا کاله د مسافت د لارې برابر دی ‹مسلم›

**حل اللغات**:- ⑨ حَافَتَي: أي جانباه وطرفاه، دواړه طرفونه دنهر. ⑩ كَلَالِيبُ: دَدې مفرد كَلُّوبٌ دې د اوسپنې کونډه سیخ. ⑪ مُعَلَّقَةٌ: رازوړند به وی، ⑫ مَخْدُوشٌ: دَ خدش نه دې زخمي کیدل او شلیدل ⑬ نَاجٍ: نجات به ئې اوشی، خلاص به شی، ⑭ مُكَرْدَسٌ: دَ کردس نه دې دیکه به ورکولې شی ‹چه دوزخ کښې پریوځي›. ⑮ قَعْرَ: ژوروالی، ⑯ خَرِيفًا: خریف دَ خزان موسم ته وائی دلته ترې کال مراد دی

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّمَا كُنْتُ خَلِيلًا مِنْ وَرَاءَ وَرَاءَ:

**دوراء الوراء مفهوم**: یعنی نن الله تعالی په غضب کښې دې زه نیزدې نه شم ورتلې بیشکه دَ الله تعالی خلیل اودوست وو لیکن هغه زمانه ډیره مخکښې وه دَ نن نه ده نن شاته شاته دوستی ده مخې ته دَ ورتلو همت نشته دی

**نوټ**: دحدیث د نورو جملو وضاحت وړاندې دحدیث نمبر(۵۵۷۲) په تسهیل کښې تیرشوې دی

**دوزخ نه دراوتو نکو خلقو د تازګئ او خوشحالئ مثال**

۵۵۸۰-(۱)[۳۹] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ قَوْمٌ بِالشَّفَاعَةِ كَأَنَّهُمُ الثَّعَارِيْرُ [۳] قُلْنَا مَا الثَّعَارِيْرُ [۴] قَالَ إِنَّهُ الضَّغَابِيْسُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وایي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل [۲] هغه خلق چې د شفاعت په بناء د دوزخ نه ویستل کیږي د هغوئ مثال به داسې وی لکه چې هغوئ ثعاریر دی [۳] مونږ عرض وکړو یارسول الله! ثعاریر نه څه مراد دی [۴] حضور صلى الله عليه وسلم وفرمایل هغه واړه بادرنګ خنې مراد دی ‹بخاري مسلم› یعنی لکه څرنګه چې هغه واړه بادرنګ دغوتې نه راوتلو سره څومره تازه وي دوي به هم دغه شان تازه وي.

**حل اللغات**:- ① الثَّعَارِيْرُ: دَدې مفرد ثُعْرُوْرٌ دې، بادرنګ ته وائی. ② الضَّغَابِيْسُ: بادرنګ،

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق، باب صفة الجنة والنار رقم الحديث ۶۵۵۸

**تسهيلات:**

**قوله:** يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ قَوْمٌ بِالشَّفَاعَةِ كَأَنَّهُمُ الثَّعَارِيرُ:

**د ثغاريرو مطلب:** چې بادرنګ بنه شنه تازه وي اود دې د پاسه مزيدار غوړوالې وي په دې وجه چه کله دوزخيان د دوزخ نه راوويستلې شي په نهرحيات کښې واچولې شي نو هغوي به اوپرقيږي اوبنائسته به شي چه د بادرنګ په شان به تك شنه اوتازه شي

**د قيامت په ورځ به درې قسمه خلق شفاعت کوي**

۵۰-()[۳۰] ①وَعَنْ عُثْمَانَ ابْنِ عَفَّانَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ②يَشْفَعُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَلَاثَةٌ ③اَلْاَنْبِيَاءُ ثُمَّ الْعُلَمَاءُ ثُمَّ الشُّهَدَاءُ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ.[1]

**ترجمه:** ①او حضرت عثمان ابن عفان رضي الله عنه وايي ②د قيامت په ورځ به درې قسمه خلق شفاعت کوي ③اول انبياء بيا باعمله علماء او بيا شهداء (ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**قوله:** يَشْفَعُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَلَاثَةٌ اَلْاَنْبِيَاءُ ثُمَّ الْعُلَمَاءُ ثُمَّ الشُّهَدَاءُ:

**د درې قسمه هستيانو اعزازي شفاعت:**

① انبياء کرام به د ګناهګارانو دپاره شفاعت کوي.

② علماء کرام به د ګناهګارانو دپاره شفاعت کوي.

③ شهيدان به د ګناهګارانو دپاره شفاعت کوي.

---

[1] اخرجه ابن ماجة، كتاب الزهد، باب ذكر الشفاعة رقم الحديث ۴۳۱۳

# [۵] بَابُ صِفَةِ الْجَنَّةِ وَأَهْلِهَا]

## دَ جنت او اهل جنت دَ صفاتو بيان

**خلاصة الباب**

**فيه أحد و أربعون حديثاً مشتملة على اثنى عشرة مسئلة:**

① ذكر نعيم الجنة عموماً: ۱۔
② ذكرسوق الجنة: ۷، ۳۴، ۳۵۔
③ صفات درجات الجنة: ۶، ۱۶، ۲۰، ۲۱۔
④ ذكر رضوان الله تعالى فى الجنة: ۱۴۔
⑤ ذكر أنهار الجنة: ۱۶، ۲۹، ۳۸۔
⑥ ذكر أبواب الجنة: ۱۷، ۳۳۔
⑦ ذكر أشجار الجنة: ۴، ۱۹۔
⑧ ذكر سدرة المنتهى: ۲۸۔
⑨ عدم النوم فى الجنة: ۴۱۔
⑩ صفة نعيم الجنة على الخصوص: ۲، ۳، ۴، ۵، ۷، ۱۸، ۲۲، ۲۵، ۳۰، ۳۱، ۳۹، ۴۰۔
⑪ ذكر أزواج أهل الجنة ولونهم: ۳، ۲۳، ۲۴، ۳۶، ۳۷، ۳۹۔

**د جنت معنى:** جنت دَ باغ په معنى كښې دې جيم اونون مشدددى په دې كښې دَ ستر اوپټوالى معنى ده. هم دډې نه جن او جنات دى. هم دَدې نه جنين اوجنون دې هم ددې نه جنان په معنى دَ زړه كښې دې

**د جنت په وجه تسميه كښې دوه اقوال.** ① جنت الله تعالى دَ خلقودَ ستر گونه پټ ساتلې دې دې دَپاره چه دَ غيب په پرده كښې پاتې شى او په دې باندې ايمان بالغيب قائم اودائم پاتې شى

② جنت الله تعالى په باغونو او ونوكښې پټ كړې دې ځكه ورته جنت وائى.

**دجنت اودوزخ وجود:** جنت او دوزخ دواړه الله تعالى تيار كړى دى دَحشر اونشر اوحساب او كتاب نه پس به كامياب انسان جنت ته ځى اوناكام به دوزخ ته ځى لكه چه جنت دَ راحتونودَ مجموعې نوم دې او دوزخ دَ زحمتونودَ مجموعې نوم دې. جنت دَ الله تعالى دَ محبوبانودَپاره دَ ميلمستياځائى دې اودوزخ دَ مغضوبين دَپاره قيدخانه ده.

**دانسان د ترغيب دپاره دجنتى نعمتونو ذكر كول:** انسان چونكه په طبعى توكه باندې هم

په دې څیز کښې رغبت لري کوم چه محسوس او مادي او طبعي وي. ددې وجې نه الله تعالی د انسان د ترغیب دپاره خپلې رضا او خوشحالئ سره د جنت مادي نعمتونه پیش کړي دي. کوم باندې چه انساني طبیعت ډیر زر پوهیږي مثلاً چه دوی ته اووئیلې شي چه تاسو ته به حورې ملاویږي غلامان به ملاویږي د انارو منړو او انګورو باغ به ملاویږي د پیئوشاتو شرابو او صفاوبو نهرونه به ملاویږي نو په دې باندې انسان ډیر زر پوهیږي ددې په مقابله کښې د الله تعالی رضا اوخوشحالي په دغه شان جذباتی انداز کښې په پوهه کښې نه راځي. الاماشاء الله.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۶۱۲] د جنت ذکر

۵۶۱۲ ()- [۱] ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: أَعْدَدْتُ لِعِبَادِيَ الصَّالِحِينَ ۳ مَا لَا عَيْنٌ رَأَتْ، وَلَا أُذُنٌ سَمِعَتْ، وَلَا خَطَرَ عَلَى قَلْبِ بَشَرٍ. ۴ وَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ: ﴿فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا أُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ﴾ [السجدة: ۱۷]». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ الله جل جلاله فرمايي ما خپل نیك بنده ګانو د پاره هغه شی تیار کړی دی ۳ چې تر ننه پورې نه یوي سترګې هغه شان شی لیدلی دی نه یو غوږ هغه شان خوبي اوریدلي ده او نه د یو انسان په زړه کې د هغه د ماهیت تصور پورې راغلی دی ۴ که تاسو د دې خبرې تصدیق کول غواړئ نو دا آیت اووايئ. فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ (بخاري مسلم) هیڅ سړي ته نه ده معلومه چې کوم بنده ګان شب بیداري کوي او د الله جل جلاله په لار کې خپل مال خرڅ کوي د هغوئ د پاره څه شی پټ اینبودل شوي دي چې د سترګو د یخ والي سبب دی.

**حل اللغات:-** ۱ أَعْدَدْتُ: أَيْ: هَيَّأْتُ: تیار کړی مې دی ۲ لَا خَطَرَ: أَيْ: وَقَعَ: نه دې راغلې. نه دې تیرشوې (په تصورکښې نه دی راغلې) ۳ بَشَرٍ: هیڅ یو انسان ۴ أُخْفِيَ: پټ ساتلې شوې دې. ۵ قُرَّةِ: ددې دوه معانې دی یو: بِمَعْنَى الْبَرْدِ: یخوالې (څکه د خوشحالئ په وخت د سترګو اوښکې یخې وی دې نه مراد د سرتګو خوندونه او مزې دی.) او دویمه بِمَعْنَى الْقَرَارِ: په یو ځائې باندې قرار او اطمینان ساتل (یعنی سترګې به اخوا دیخوا نه مائل کیږي) ۶ أَعْيُنٍ: د عین جمع ده، سترګې.

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب ما جاء فی صفة الجنة وأنها مخلوقة (رقم-۳۲۴۴) ومسلم فی کتاب الجنة وصفة نعیمها وأهلها (رقم-۲ - (۲۸۲۴) والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة السجدة (رقم-۳۱۹۷) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب صفة الجنة (رقم-۴۳۳۰) واحمد فی المسند:۳۱۵/۲

**تسهیلات:**

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت:**

① مَالَاعَيْنٌ رَأَتْ: یعنی یوې سترګې دَهغه نعمت ذات په محسوس توګه نه دې لیدلې بلکه دَهغه حسین صورت پټ دې.

② وَلَاأُذُنٌ سَمِعَتْ: یعنی نه یوغوږ دَدې حقیقی صفت اوریدلې دې اونه دَهغه خائی ښکلې آوازونه غوږونوته رسیدلی دی.

③ وَلَاخَطَرَ: یعنی نه دَدې اصلی ماهیت اودَعیش اوعشرت تصور دَچا په زړه کښې تیرشوې دې مطلب دا چه په دنیاکښې دَ جنت دَ اصل نعمتونوپورې نه څوك رسیدلې دې اونه په دې باندې دَ چااحاطه شوې ده اودَ رسیدو نه پس به ټول هرڅه په کامیاب انسانانوباندې ښکاره شي.

④ قُرَّةِ أَعْيُنٍ: یعنی دَ سترګوکوم یخوالې چه الله تعالی دَ جنت والودَپاره تیارکړې دې دا صرف نه دَ سترګو یخوالې دې بلکه دا یخوالې په جنت کښې دَهرقسم عیش و عشرت خوند او مزونه کنایه ده. لکه چه جنت ته رسیدونکوته به په زړه اوځان سره قرار حاصل شي

**[۵٦١٢] دجنت فضیلت**

۵۵۳-[۲] () ⓵ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⓶ "«مَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⓵ او حضرت ابوهریره ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ⓶ په جنت کې د یوې کوړې برابرهم ځاي په دنیاکې او څه چې په دنیا کې وي دي ټولو نه ښه دی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① مَوْضِعُ: أي مِقْدَارُمَوْضِعِهِ: یعنی دَ یوې کوړې برابرځائی یادَ یوچابك په اندازه ځائی به دَنیا اوڅه چه په دنیاکښې دی نه بهتروی (یا ددې نه مراد معمولی مقدار طرف ته اشاره ده) ② سَوْطٍ: چابک، کوړه.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا:

**جنت د عظمت او قیمت وجه:** دَدې وجه داده چه دَ جنت هریونعمت دَهمیشه دَپاره دې اودَ دنیاهرنعمت فانی دې نوفانی نعمت دَ دائمی اوباقی پاتې کیدونکی نعمت مقابله څرته

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب الحور العین، وصفتهن یحار فیها الطرف، شدیدة سواد العین، شدیدة بیاض العین " (رقم-۲۷۹٦) والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة المائدة (رقم-۳۰٦۳)

کولې شي حضرت لبید رضی الله عنه ښه فرمائیلي دي:

الا کل شيء ما خلا الله باطل — وکل نعیم لا محالة زائل

دَجنت نه مراد دَ الله تعالی رضامندي او خوشحالي ده جنت دَ الله تعالی دَ رضوان مجموعه ده کله چه دَ الله تعالی رضا حاصله شي نودَ باقي نعمتونو به څه وایئي دَ جنت نعمتونه او دَهغې حاصلول الله تعالی الفوزالکبیر گرځولی دی لکه ﴿ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْكَبِيْرُ﴾

**د جنت طبقات او درجات:**

① جنت الماوی ② دارالمقام ③ دارالسلام ④ دارالخلد

⑤ جنة النعیم ⑥ جنة الفردوس ⑦ جنة عدن ⑧ طوبی

**[۵۶۱۴] د جنت د حورو تعریف**

۵۶۱۴-[۳] () ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «غَدْوَةٌ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ أَوْرَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، ③ وَلَوْ أَنَّ امْرَأَةً مِنْ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ اطَّلَعَتْ إِلَى الْأَرْضِ لَأَضَاءَتْ مَا بَيْنَهُمَا ④ وَلَمَلَأَتْ مَا بَيْنَهُمَا رِيْحًا، ⑤ وَلَنَصِيفُهَا عَلَى رَأْسِهَا خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② په سهار کې او په ماښام کې یو وار د الله جل جلاله په لار کې وتل دنیا او د دنیا د ټولو څیزونو نه ښه دی ③ او که د جنتیانو نه د چاښځه یعنی یوه حوره زمکي طرف ته یو نظر سره وګوري نو د مشرق او مغرب په منځ کې یعنی د دنیا دي یو ګوټ نه بل ګوټ پورې ټول څیزونه به روښانه او منور کړي ④ او د مشرق نه واخله مغرب پورې به ټوله فضاء د خوشبو نه ډکه کړي ⑤ او د هغه د سر یو څادر د دې دنیا او د دنیا د ټولو څیزونو نه ښه دی. (بخاري)

**حل اللغات:**- ① غَدْوَةٌ: أَيْ: مَرَّةٌ مِنْ ذَهَابِ أَوَّلِ النَّهَارِ: د سحر په وخت کښې تلل. ② رَوْحَةٌ: أَيْ: مَرَّةٌ مِنْ رَوَاحِ آخِرِ النَّهَارِ: د ماښام په وخت کښې تلل. ③ اطَّلَعَتْ: أَيْ: أَشْرَفَتْ وَطَالَعَتْ: اوچته رابکاره شي، ④ لَأَضَاءَتْ: رڼرا به کړي. روښانه به کړي، ⑤ لَمَلَأَتْ: ډک به ئې کړي، ⑥ رِيْحًا: أَيْ: طِيْبًا: د باد نه مراد خوشبوئي ده. ⑦ نَصِيفُهَا: أَيْ: وَخِمَارُهَا: لوپټه (د جنتي ښځې).

**تسهیلات:**

**قوله: وَلَنَصِيفُهَا عَلَى رَأْسِهَا خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا:**

**دحورې دسر دلوپټې د دنیا وما فیها څخه غوره والې:** یعنی په سرچه کومه وړه شان لوپټه وی هغه به دَدنیا او مافیهانه بهتر اوافضل وی په پوره بدن باندې خوره شوې لوپټه خوبه ډیره اعلی وی. دَدنیا څیزونه به فاني وی دالوپټه باقي ده په دې وجه بهتر ده.

---

() اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار (رقم-۶۵۶۸) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب فضل الغدوة والروحة فی سبیل الله (رقم-۱۱۲ - (۱۸۸۰) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: فضل غدوة فی سبیل الله عز وجل (رقم-۳۱۱۸) واحمد فی المسند:۳/۲۶۴

دَجنتي ښځو دَحسن کتلو دَپاره به سترګې هم داسې ورکولې شي چه دغه شعاګانې برداشت کړې شي

**[۵۶۱۵] دجنت دیوې ونې ذکر**

۵۶۱۵ - [۴] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ فِي الْجَنَّةِ شَجَرَةً يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ لَا يَقْطَعُهَا، [۳] وَلَقَابُ قَوْسِ أَحَدِكُمْ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ أَوْ تَغْرُبُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] په جنت کې یوه ونه ده چې د هغه نوم طوبیٰ ده که یو سوار د هغه ونې سایه (سورې) کې سل کاله روان وي بیاهم د هغه مسافت به ختم نشي [۳] او په جنت کې ستاسو د لیندی کمان برابر ځاي د هغه ټولو ځیزونو نه ښه او برتر دی چې په هغه نمر راخیژي یا لویږي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَسِيرُ: روان شی، مزل اوکړی. ② لَايَقْطَعُهَا: ختم به ئې نه کړی. ③ قَابَ: بِمَعْنَى الْقَدْرِ: دالفظ قاب هم دې او سقيب هم دې قاد هم دې قيد هم دې دټولو معنی مقدار او اندازه ده يوه نښه ده چه دې سره د مسافت دمقدار پته لګی. ④ قَوْسِ: لينده، کمان.

**تسهيلات:**

**قوله.** إِنَّ فِي الْجَنَّةِ شَجَرَةً يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ لَا يَقْطَعُهَا:

**دجنتي ونې نوم:** يعنی دومره لويه ونه به وی چه تيز زغليدونکې په اس سور دَدې په سوری کښې سل کالو پورې سفرکوی بيابه هم دَ دغه ونې سورې ختم نه شی. وئيلی شی چه دا به دَطوبیٰ ونه وی دَ کومې يو يو ښاخ به دَ هرجنتی کورته رسيږی.

**قوله.** وَلَقَابُ قَوْسِ أَحَدِكُمْ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ أَوْ تَغْرُبُ:

**دجنت د لندې برابر د ځائې د دنيا وما فيها څخه غوره والې:** "ای مقدارقوس" دکمان يعنی لندې برابر ځائی مراد دې دومره ځائی دَ دنيا او مافيها نه ځکه بهتردې چه دا دائمی دې اودنيا فانی ده

**[۵۶۱۶] دجنت خيمه**

۵۶۱۶ - [۵] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ لِلْمُؤْمِنِ فِي الْجَنَّةِ لَخَيْمَةً مِنْ لُؤْلُؤَةٍ وَاحِدَةٍ مُجَوَّفَةٍ، [۳] عَرْضُهَا - وَفِي رِوَايَةٍ طُولُهَا - سِتُّونَ مِيلًا، [۴] فِي كُلِّ زَاوِيَةٍ مِنْهَا

---

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار (رقم-۶۵۵۲) ومسلم فی کتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب إن فی الجنة شجرة يسير الراكب فی ظلها مائة عام لا يقطعها (رقم-۶ - (۲۸۲۶) والترمذی فی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الواقعة (رقم-۳۲۹۲) واحمد فی المسند:۲/۲۵۷

[۲] ) اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب ما جاء فی صفة الجنة وأنها مخلوقة (رقم-۳۲۴۳) ومسلم فی کتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب فی صفة خيام الجنة وما للمؤمنين فيها من الأهلين (رقم-۲۳ - (۲۸۳۸) والترمذی فی کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صفة غرف الجنة (رقم-۲۵۲۸)واحمد فی المسند:۴/۴۰۰

أَهْلٌ مَا يَرَوْنَ الْآخَرِينَ، [۵] يَطُوفُ عَلَيْهِمُ الْمُؤْمِنُ، [۶] وَجَنَّتَانِ مِنْ فِضَّةٍ آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا، وَجَنَّتَانِ مِنْ ذَهَبٍ، آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا، [۷] وَمَا بَيْنَ الْقَوْمِ وَبَيْنَ أَنْ يَنْظُرُوا إِلَى رَبِّهِمْ إِلَّا رِدَاءُ الْكِبْرِيَاءِ فِي جَنَّةِ عَدْنٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوموسی ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] مؤمن ته چې په جنت کې کومه خیمه حاصله شي هغه به پوره یوه منځ خالي ملغلره (موتي) وي [۳] چې د هغه عرض پلنوالی یوبل روایت کې دی او د هغه طول اوږدوالی به د شپیته میله مسافت په قدر وي [۴] د دې خیمي هرګوټ کې به د هغه مؤمن اهل خانه کوروالا وي او د یوګوټ سرې به د دویم ګوټ سرې نشي لیدی دي [۵] ټول اهل خانه ته به مؤمن خې راځي [۶] د مؤمن د پاره به دوه جنتونه د چاندي وي چې د هغه جنتونو لوښي مکانات او محلات او د خانه داري نور ضروري او آرائشي سامان تخت کرسی میز پالنګ جهاړ فانوس ترمه چې ونې وغیره ټول به د چاندي وي او دوه جنتونه به د سرو زرو سوني وي چې د هغه جنتونو لوښي وغیره به هم د سوني وي [۷] او جنت العدن کې به د جنتیانو او دپروردګار د طرف نه د هغوئ لیدو په منځ کې د ذات باري تعالی د عظمت او بزرګۍ او پردي نه علاوه بل هیڅ شی حائل نه وي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① لُؤْلُؤَةٌ: ملغلرې ته وائی کوم چه ګول وی. ددې عمارت چه به ډیر زره رانبکونکې وی اوخیمه به ئې مزیداره وی. ② مُجَوَّفَةٌ: منځ به ئې خالي وی. دد به وی (یعنی دا ټوله خیمه به یوه ملغلره وی) ③ زَاوِيَةٌ: ګوټ، ④ يَطُوفُ: أَيْ يَدُورُ عَلَى خِيَمِهِمْ: یعنی مؤمنان به خپل کور والو لـه خې او راځی معلومیږی چه په دې اهل وعیال کنبې به دَ مؤمنانو بیبیانې هم وی ⑤ رِدَاءُ الْكِبْرِيَاءِ: د لویئ ځادر (دا د الله تعالی د عظمت ځخه کنایه ده) ⑥ جَنَّةِ عَدْنٍ: دا دجنت نوم دې معنی ئې ده جَنَّةِ إِقَامَةٍ وَخُلُودٍ: همیشه د اوسیدو جنت.

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّ لِلْمُؤْمِنِ فِي الْجَنَّةِ لَخَيْمَةً مِنْ لُؤْلُؤَةٍ وَاحِدَةٍ مُجَوَّفَةٍ:**

**دجنتی دپاره دیوې ملغلرې ځخه جوړشوې کور:** یعنی ډیرې مرغلرې به یوځائی کولوسره یومکان نه وی جوړ کړې شوې په کوم کښې چه جوړ راځی بلکه یولوئی مرغلره به وی ګول به وی دَ دننه نه به ددد وی. ډیر په طریقه به وی. دکوم نه چه به زړه رانبکونکې اوبې مثاله مکان تیار کړې شوی وی.

**قوله: عَرْضُهَا - وَفِي رِوَايَةٍ طُولُهَا - سِتُّونَ مِيلًا:**

**دجنتی خیمې څنګوالې:** یعنی دَدې خیمې پلنوالې او اوږدوالې به دومره زیات وی که اوږدوالې په شپیته میله باندې مشتمل وی نودَدې نه اندازه لګولې شی چه دَدې خیمې پلنوالې به څومره وی اوکه پلنوالې شپیته میله وی نودَدې نه اندازه لګولې شی چه دَدې

خيمې اوږدوالې به څومره زيات وي بهرحال دَ روايت په دې اختلاف کښې هيڅ مشکل نشته دې اصل مقصد خو دَ دغه خيمې پلنوالې او اوږدوالې بيانول دي.

**قوله**: وَمَا بَيْنَ الْقَوْمِ وَبَيْنَ أَنْ يَنْظُرُوا إِلَى رَبِّهِمْ إِلَّا رِدَاءُ الْكِبْرِيَاءِ فِي جَنَّةِ عَدْنٍ:

**دخپل رب څخه د الله تعالى په ديدار مشرف کيدل**؛ په دې جمله کښې ما نافيه ده يعنى چرته چه په دې خيمه کښې دَمؤمنانو دَ استوګنې ځائى وى دَهغه ځائى نه به دَ الله تعالى په ديدار کښې صرف پردۀ کبريائى حجاب وى دې نه علاوه به بل هيڅ رکاوټ اوبنديز نه وى اودا نورانى پرده به هم حجاب نه جوړيږى بس هم ديدار اوديدار به وى.

**[۵۶۱۷]د جنت درجات**

۵۶۱۷-[۲]()[۱]وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[۲]" «فِي الْجَنَّةِ مِائَةُ دَرَجَةٍ، مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ،[۳]وَالْفِرْدَوْسُ أَعْلَاهَا دَرَجَةً،[۴]مِنْهَا تُفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ الْأَرْبَعَةُ،[۵]وَمِنْ فَوْقِهَا يَكُونُ الْعَرْشُ،[۶]فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللَّهَ فَاسْأَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ» "[۷]رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَلَمْ أَجِدْهُ فِي (الصَّحِيحَيْنِ) وَلَا فِي (كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ).

**ترجمه**: [۱]او حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]دَ جنت سل درجې دي په هغه کې د هر دوو درجو په منځ کې دومره فاصله ده څومره چې د زمکې او آسمان په منځ کې ده [۳]او فردوس صورةً او معنیً او د خپلو درجاتو د بلندۍ د اعتبار نه د ټولو جنتونو نه اعلى او برتر دى [۴]او دې فردوس نه د بهشت څلور نهرونه وځي [۵]او د فردوس برسيره عرشِ الٰهي دى [۶]نو هرکله چې تاسو د الله تعالى نه جنت غواړئ نو جنت الفردوس ځني غواړئ چې د ټولو څخه اعلى او برتر دى [۷]دا روايت ترمذي رحمه الله نقل کړى دى او ما دا حديث نه خو صحيحينو کې پيدا کړي دى او نه کتاب حميدي کې

**حل اللغات**:-① الْفِرْدَوْسُ: دا دجنت نوم دې‌دا دَ ټولونه افضل جنت دې، دَعرش فرش دَجنت الفردوس چت دې يعنى عرش دجنت الفردوس دچت دپاسه دې② تُفَجَّرُ: أَيْ تُشَقَّقُ وَتَجْرِي: راوځى. رابهيږى.

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ:

**دسلو په تعداد کښې دوه اقوال**: ① دَ سلو په هندسه کښې تحديد پيش نظرنه دې بلکه دې نه کثرت مراددې دَ دې تائيد په سنن بيهقى کښې دَ حضرت عائشه رضی الله عنها دَدې مرفوع حديث نه هم کيږى په کوم کښې چه دَ جنت درجاتوشميردقرآن دَ آياتونوبرابر بيان کړې دې. دَ روايت الفاظ دادى: عدد درج الجنة عدداى القرآن فمن دخل الجنة من اهل القرآن فليس فوقه درجة.

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة درجات الجنة (رقم-۲۵۳۱) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب صفة الجنة (رقم-۴۳۳۱)

② داهم ممکن دی چه دَ دې نه دَ سلو مخصوص هندسه مراد وی اودَ دې په ذریعه دَ جنت دَ ډیرو درجونه هغه سل درجې بیانول مقصود وی دَ کوم په هرو دوو درجو مینځ کښې دومره فاصله وی څومره چه دَ زمکې او آسمان په مینځ کښې فاصله ده نوداسې کیدې شی چه دَ جنت نورې ډیرې درجې وی دَ کومو په مینځ کښې چه فاصله یا یاخودَدې فاصله نه کمه وی یا دې نه زیاته وی چنانچه په مسندفردوس کښې دَحضرت ابوهریره ﷺ مرفوع روایت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلې دې په جنت کښې څه درجې داسې دی کوموته چه به هم هغه خلق رسیږی چه په دنیاکښې دَ الله تعالی په خاطر غم اوخفګانم او پریشانو کښې اخته وی

**قوله: مِنْهَا تُفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ الْأَرْبَعَةُ:**

**دجنت څلور نهرونه:** دَ جنت الفردوس دَ لاندې نه څلور نهرونه بهیږی چه په ټولو جنتونو کښې به چلیږی. ① دَ اوبو نهر ② دَ شاتو نهر ③ دَ شرابو نهر ④ اودَ پیئونهر دَدې څلور مشهورو نهرونو باره کښې الله تعالی داسې ارشاد فرمائیلی دې ﴿فِيهَا أَنْهَرٌ مِّن مَّآءٍ غَيْرِ ءَاسِنٍ وَأَنْهَرٌ مِّن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُۥ وَأَنْهَرٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّٰرِبِينَ وَأَنْهَرٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى﴾

ترجمه: په جنت کښې ډیرنهرونه دَ داسې اوبودی په کوم کښې چه به لږشان بدلون نه وی اوډیرنهرونه دَ پیئو دی دَ کوم خوندچه به لږ شان هم بدل نه وی اوډیر نهرونه دَ شرابودی چه څیلو څکونکو ته به ډیرزیات خوندمعلومیږی اوډیر نهرونه دَ شاتودی چه بالکل صفااوسوتره به وی. دَ جنت الفردوس نه پاس دَ رحمن عرش دې دَ دې دَ پاره نبی کریم ﷺ خپل امت ته دَ دې خبرې تاکید فرمائی چه دَ الله تعالی نه دَ جنت الفردوس سوال کوئی دې دَ پاره چه تاسو ته دَ ټولونه اعلی او افضل جنت حاصل شی [مرقاة المفاتیح ۵۸۳،۵۹۸/۹ کتاب الفتن باب صفة الجنة تحفة الاحوذی ۱۹۸/۷].

**نوردرې قسمه نهرونه:** ① تسنیم دا خوږې اوبه دی چه دَ جنت په هواکښې به جاری وی
② زنجبیل اوسلسبیل. دادَ ګرم مزاج اوبه دی لکه قهوه اوچائی وغیره
③ کافور دَدې چینې او نهر مزاج یخ اومزیدار وی لکه چه یخ شربتونه وی. قرآن کریم کښې د دې تذکره په سورة دهرکښې شوې ده.

**نوټ:**

دحدیث دنوروجملووضاحت وړاندې د مختلفو احادیثو په تسهیل کښې تیرشوې دې.

## [۵٦۱۸]د جنت د بازار ذکر

۵٦۱۸-[٤]()[۱]وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲]"«إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَسُوقًا يَأْتُونَهَا كُلَّ جُمُعَةٍ، [۳]فَتَهُبُّ رِيحُ الشَّمَالِ فَتَحْثُو فِي وُجُوهِهِمْ وَثِيَابِهِمْ، [٤]فَيَزْدَادُونَ حُسْنًا وَجَمَالًا، [۵]فَيَرْجِعُونَ إِلَى أَهْلِيهِمْ وَقَدِ ازْدَادُوا حُسْنًا وَجَمَالًا، [٦]فَيَقُولُ لَهُمْ أَهْلُوهُمْ: وَاللهِ لَقَدِ ازْدَدْتُمْ بَعْدَنَا حُسْنًا وَجَمَالًا. [۷]فَيَقُولُونَ: أَنْتُمْ وَاللهِ لَقَدِ ازْدَدْتُمْ بَعْدَنَا حُسْنًا وَجَمَالًا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت انس ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]په جنت کې يو بازار دی چې په هغه کې هره جمعه خلق جمع کېږي [۳]او هلته به شمالي هوا وچليږي چې د جنتيانو په مخونو او کپړو قسم قسم خوشبوئي وغورځوي [٤]چې هغه سره به هلته د موجوده جنتيانو حسن وجمال کې اضافه کېږي [۵]او هرکله چې هغه خلق ډير زيات حسين او جميل جوړيدو سره هغه بازار نه خپلو کورونو ته واپس راشي [٦]نو د هغوئ کور والا به هغوئ ته وايي چې قسم په الله زمونږ نه جدا کيدو سره تاسو خپل حسن وجمال خومره زيات کړی دی [۷]د دې په جواب کې به هغوئ وايي او قسم په الله زمونږ د ورغيو نه وروسته تاسو هم خپل حسن وجمال زيات کړی دی (مسلم)

**حل اللغات:-** ①سُوقًا: بازار. ②فَتَهُبُّ:أَيْ فَتَأْتِي: راځي به. رالوځي به. ③رِيحُ الشَّمَالِ: شمالي هوا په دې هوا کښې د باران اثرات وی. ④فَتَحْثُو:أَيْ تَنْثُرُ: شيندی به. چرکاؤ کوی به (يعنی دا شمالي هوا به د خلقو په مخونوباندې مشك اوعنبر او خوشبو چنړکاو کوی. دې عمل ته تاسو د خوشبو سپرې ونيلې شئ

**تسهيلات:**

**قوله** إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَسُوقًا يَأْتُونَهَا كُلَّ جُمُعَةٍ:

**د بازار څخه مراد:** د بازارنه مراد د حسن او جمال پيدا کيدل او د دې د زياتيدلو مرکز دې چرته چه به جنتيان هره جمعه راجمع کيږی او د هغوی په حسن او ښائست کښې به زياتوالي کيږی

**قوله** وَاللهِ لَقَدِ ازْدَدْتُمْ بَعْدَنَا حُسْنًا وَجَمَالًا:

**دالله تعالى په ديدار سره په حسن کښې زياتوالې:** دا حسن او جمال هم د دغه مشك اوعنبر او د خوشبود سپرې د وجې نه زياتيږی په دې بازارحسن کښې به خپل يوراز هم وی په کوم سره چه به د ټولو خلقو حسن زياتيږی بل طرف ته به په کورونو کښې د بيبيانو حسن هم زياتيږی نو دواړه به يوبل ته د ښائست اوښکلې کيدو داد او شاباسې ورکوی.

---

() اخرجه مسلم في كتاب الجنة وصفة نعيمها واهلها/باب في سوق الجنة وما ينالون فيها من النعيم والجمال (رقم-۱۳-(۲۸۳۳) واحمد في المسند:۳/۲۸٤

**[٥٦١٩] د جنت د نعمتونو ذکر**

٥٦١٩-[٨] ()[١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[٢]" «إِنَّ أَوَّلَ زُمْرَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ،[٣]ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ كَأَشَدِّ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ إِضَاءَةً،[٤]قُلُوبُهُمْ عَلَى قَلْبِ رَجُلٍ وَاحِدٍ، لَا اخْتِلَافَ بَيْنَهُمْ وَلَا تَبَاغُضَ،[٥]لِكُلِّ امْرِءٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ،[٦]يُرَى مُخُّ سُوقِهِنَّ مِنْ وَرَاءِ الْعَظْمِ وَاللَّحْمِ مِنَ الْحُسْنِ،

**ترجمه:** [١]او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢]کوم خلق چې به په جنت کې مخکې داخل شي يعنې انبياء عليهم السلام هغوئ به د څوارلسمي شپې د سپوږمۍ په شان روښانه او منور وي [٣]او هغوئ نه وروسته چې کوم خلق داخليږي يعنې علماء اولياء شهداء او صلحاء هغوئ به د هغه ستوري په شان روښانه او ځلانده (ښائسته) وي کوم چې آسمان باندې ډېر تيز ځليږي او د نمر سپوږمۍ نه کم ليکن د نورو ستورو نه به زيات روښانه وي [٤]د ټولو جنتيانو زړونه به د يو جنتي د زړه په شان وي يعنې د هغوئ په منځ کې به داسې باهمي ربط او اتفاق وي چې هغوئ ټول به يو زړه او يوځاي وي نه خو هغوئ کې به څه باهمي اختلاف وي او نه به هغوئ يوبل سره څه بغض او عداوت لري [٥]په هغوئ کې به هريوسړي د پاره د حور عين نه دوه دوه بيبياني وي [٦]چې دومره زياتي حسيني جميلي صاف شفافي به وي چې د هغوئ د پنډيو د هډوکي نلۍ به د هډوکي او غوښې نه بهر په نظر راځي

**حل اللغات:-** ① زُمْرَةٍ: أَيْ أَوَّلَ جَمَاعَةٍ: يعنې رومبې جماعت. ② كَوْكَبٍ: ستوري. ③ دُرِّيٍّ: أَيْ: شَدِيدُ الْإِنَارَةِ: ډير تيز ځليدونکي. ④ إِضَاءَةً: روښانه، رڼا ورکونکي ⑤ تَبَاغُضَ: يوبل سره بغض کول. ⑥ الْحُورِ: وَهُوَ الْبَيَاضُ الْخَالِصُ: حور خالص سپينوالی ته وائی يعنې د سپين ښائسته بدن والا ښځي. ⑦ الْعِينِ: أَيْ: حِسَانُ الْأَعْيُنِ: غټو سترګو والا، ښائسته سترګو والا ⑧ مُخُّ: مغز، منځ. ⑨ سُوقِهِنَّ: د ساق جمع ده. پنډئ ته وائی، مراد تري د پنډئ هډوکې دي

[١]يُسَبِّحُونَ اللهَ بُكْرَةً وَعَشِيًّا، لَا يَسْقَمُونَ،[٢]وَلَا يَبُولُونَ، وَلَا يَتَغَوَّطُونَ وَلَا يَتْفُلُونَ، وَلَا يَمْتَخِطُونَ،[٣]آنِيَتُهُمُ الذَّهَبُ وَالْفِضَّةُ، وَأَمْشَاطُهُمُ الذَّهَبُ،[٤]وَوَقُودُ مَجَامِرِهِمُ الْأَلُوَّةُ، وَرَشْحُهُمُ الْمِسْكُ،[٥]عَلَى خُلُقِ رَجُلٍ وَاحِدٍ،[٦]عَلَى صُورَةِ أَبِيهِمْ آدَمَ سِتُّونَ ذِرَاعًا فِي السَّمَاءِ» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:-** [١]ټول جنتيان به سهار ماښام يعنې هروخت الله ﷻ يادوي نه به هغوئ بيمار کېږي [٢]نه به لوی متيازې کوي نه به توکي او نه به پوزه سوڼ کوي [٣]د هغوئ لوښي به د

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب ما جاء في صفة الجنة وأنها مخلوقة (رقم-٣٢٤٥) ومسلم في كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب في سوق الجنة وما ينالون فيها من النعيم والجمال (رقم-١٥ - (٢٨٣٤) والترمذي في كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٥٢٢) واحمد في المسند:١٦/٣

سوني چاندي وي د هغوئ ږمونځ به د سوني وي [٤] او د هغوئ د انگيټيو خشاك به ،عود، وي د هغوئ خوله به د مشك په شان خوشبوداره وي [٥] او ټول جنتيان به د يو سړي په شان د عادت او سيرت وي يعني ټول به يوشان طور سره خوش خلق نرم طبع او يوبل سره ژور ربط او تعلق لرونكي وي [٦] او ټول به شكل وصورت كې د خپل پلار آدم په شان وي او شپيته گزه اوږد قد به لري ‹بخاري مسلم›

**حل اللغات:**- ⑩بُكْرَةً: سحر، د ورځ شروع ‹مراد ترې ورځ ده›. ⑪عَشِيًّا: ماښام ‹مراد ترې شپه ده› يعني بكرة وعشيًا كښې ذكر دجزء مراد ترې كُل دې صرف د سحر او ماښام وخت نه دې مراد بلكه هميشوالي مراد دې ⑫لَايَسْقَمُونَ: د سَقِمَ يَسْقَمُ نه، أي لَايَمْرَضُونَ: نه به بيماريږي ‹او نه به بوډاګان كيږي او نه به زړيږي› ⑬لَايَبُولُونَ: أَيْ مِنْ قُبُلٍ: نه به تشي متيازې كوي. ⑭لَايَتَغَوَّطُونَ: أَيْ مِنْ دُبُرٍ: نه به ډك اودس ماتې كوي ⑮لَايَتْفُلُونَ: أَيْ لَايَبْزُقُونَ: لاړې به نه تهوكي. تفل د توكانړو په معنى كښې دې يعني د خلې تولې گندگئي مثلاً بلغم اوخراشكي وغيره هيڅ به نه وي ⑯لَايَمْتَخِطُونَ: نه به پوزه سونړ كوي، دَمخاط نه دې دَ پوزې گندگي وغيره ته وائي ⑰ أَمْشَاطُهُمْ: د مُشط جمع ده، گمنز ته وائي. ⑱وَقُودُ: أَيْ: مَايُوقَدُ: په واؤ باندې زبر دې په اوركښې سوزيدونكي خشاك ته وائي. ⑲مَجَامِرُهُمْ: دَ مجمر جمع ده انگيټئ ته وائي ⑳الْأَلُوَّةُ: هُوَ الْعُودُ الْهِنْدِيُّ: عود ته وائي دې ته اگرهم ونيلي شي اگربتئي چه دَ خوشبودَپاره سوزولې شي دا دَ "اَلُوَّةُ" يو مصنوعي نمونه ده دَدې ترجمه لوبان هم ده. ㉑رَشْحُهُمْ: أَيْ عَرَقُهُمْ: خوله مراد ده دا بدبو داره نه بلكه خوشبوداره دَمشك اوعنبرپه شان به وي. ㉒الْمِسْكُ: مشک، ㉓خُلُقِ رَجُلٍ وَاحِدٍ: كه د خاء پيښ شي نو مراد ترې اخلاق دي يعني د يو سړي په شان اخلاق به ئې وي. اوكه په خاء زبر شي نو د تخليق په معنى كښې دې. وَالْمَعْنَى أَنَّهُمْ أَتْرَابٌ فِي سِنٍّ وَاحِدٍ: يعني همزولي او هم عمر به وي

**تسهيلات:**

**قوله:** يُرَى مُخُّ سُوقِهِنَّ مِنْ وَرَاءِ الْعَظْمِ وَاللَّحْمِ مِنَ الْحُسْنِ:

**دجنت دحورو ښائست:** يعني دا حورې به دومره ښائسته صفا اوتازه وي چه دَ اوياؤ جوړونه اوبيا دَ غوښې او بيا په هډوكو كښې دننه به دَهغوى دَ پنډو دَبدن مازغه ښكارې په دې كښې دَ ښائست سره سره دې طرف ته هم اشاره ده چه دې حورو ته په كتوسره به هيڅ كدورت او نفرت نه پيدا كيږي بلكه رغبت به ورته پيدا كيږي.

**دجنتي حوروپه دنيا كښې مثال:** الله تعالى دَ جنت دَ حورو په دې صفت باندې په دنياكښې دَ يو كب نسل پيدا كړې دې كوم ته چه شيشه كب وائي. دې كب ته چه دَ بهرنه څوك كتونكې گورې نودَهغه په خيټه كښې كولمې وغيره ټول هرڅه ښكارې.

**قوله:** يُسَبِّحُونَ اللَّهَ بُكْرَةً وَعَشِيًّا:

**د جنتيانو دتسبيح حيثيت:** په جنت كښې چه خلق كوم عبادت يا تسبيح كوي دا دَامور

تکلیفیه نه نه دی بلکه یو طبعی عمل به وی لکه څنګه چه په سا اخستلو کښې چه تکلیف نه وی دا تسبیحات به هم دغه شان وی.

**قوله: عَلَى خُلُقِ رَجُلٍ وَاحِدٍ، عَلَى صُورَةِ أَبِيهِمْ آدَمَ سِتُّونَ ذِرَاعًا فِي السَّمَاءِ:**

**د جنتیانو به یو عمر او یو قد کښې کیدل:** په خاء کښې چرې ضمه وی نو دا به د اخلاق په معنی کښې وی د کوم تذکره چه دې نه مخکښې شوې ده. په دې وجه ملا علی قاری رحمه الله فرمائی دلته په خاء باندې زبر ډیر مناسب دې کوم چه د تخلیق په معنی کښې دې مطلب به داشی چه ټول جنتیان به په یو عمر کښې وی یعنی د ۳۰ او ۳۳ کالو په عمر کښې به وی دا جنتیان به د خپل نیکه حضرت آدم علیه السلام په صورت کښې وی یعنی د هغوی د قد و قامت به شان ۶۰ ګزه اوچت قد به لری. دغه شان د حدیث آخری جمله د حدیث د ړومبې جملې "علی خلق رجل واحد" به وضاحت او تفسیر جوړ شی.

**[۵۶۲۰] اهل جنتوته به د ډرو لویو بولو حاجت نه وی**

۵۶۳۰-[۹] ()[۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[۲] «إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ يَأْكُلُونَ فِيهَا وَيَشْرَبُونَ،[۳] وَلَا يَتْفُلُونَ، وَلَا يَبُولُونَ، وَلَا يَتَغَوَّطُونَ، وَلَا يَمْتَخِطُونَ[۴]» قَالُوا: فَمَا بَالُ الطَّعَامِ؟ [۵] قَالَ: "جُشَاءٌ وَرَشْحٌ كَرَشْحِ الْمِسْكِ،[۶] يُلْهَمُونَ التَّسْبِيحَ وَالتَّحْمِيدَ كَمَا تُلْهَمُونَ النَّفَسَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**توجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] جنتي خلق به په جنت کې بنه خوري څکي [۳] لیکن نه به توکي نه به متیازې کوي او نه به غټ اودس ماتې او نه به پوزه سون کوي [۴] په دې اوریدو سره بعضې صحابه ؤ رضی الله عنهم عرض وکړو هرکله چې جنتي خلق متیازې نه کوي نو بیا د خوراك فضله څه شوه او د هغه د اخراج به څه صورت وي [۵] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل د خوراك فضله به ډرکار او خوله پسینه شي چې د مشکو د خوشبو په شان به وي [۶] او د جنتیانو په زړونو کې به تسبیح او تحمید یعنی د سبحان الله الحمدلله ورد او ذکر الهي داسې واچول شي چې هغه به د هغوئ عادت او معمول جوړ شي لکه جاري ساه ده. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① جُشَاءٌ: أَيْ صَوْتٌ مَعَ رِيحٍ يَخْرُجُ مِنَ الْفَمِ عِنْدَ الشِّبَعِ: یعنی په خوراک د مړیدو نه پس هغه هوا چه آواز سره د خلې نه اوخی کوم ته چه ادرقی وئیلې شی په جنت کښې به دغه ادرقی هم خوشبودار وی. ② رَشْحٌ: أَيْ عَرَقٌ: خوله. ③ يُلْهَمُونَ: الهام به اوکړې شی، وابه چولې شی ورته به زړه کښې.

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الجنة وصفة نعیمها وأهلها/باب فی صفات الجنة وأهلها وتسبیحهم فیها بکرةً وعشیا (رقم-۱۸-(۲۸۳۵))واحمد فی المسند:۳/۳۴۹

**تسهيلات:**

**قوله: جُشَاءٌ وَرَشْحٌ كَرَشْحِ الْمِسْكِ:**

**دجنتيانوه غولې غوشيولې:** دَ جنتيانو دَپاره به په جنت کښې خوراك او څښاك وى ليکن هلته به متيازې وغيره نه وى بلکه دغه ټوله فضله به دَ اډرقې يا خوله جوړيدو سره ختميږي

**دانسانى فضلې خارجيدو مختلف صورتونه:** اوس دَ اډرقى او خولې صورت يا خو به دَ اشخاص اودَ اوقات په اعتبار سره په جدا جدا توګه باندې راځى

① بعضې اوقات يا دَبعضې خلقو فضله به هوا جوړيدو سره دَ اډرقى په صورت کښې اوځى

② بعضې وختونو کښې دَ بعض خلقو فضله به خوله جوړيدو سره دَ بدن وينبتو دَ بيخ دَ سورو په ذريعه اوځى

③دَ بعضې خوراك فاضل ماده خو به دَ اډرقى په صورت کښې خارجيږى لکه څنګه چه دَ ساه دَ تلو راتلو سلسله بغيردَ څه تکليف نه جارى وى

**قوله: يُلْهَمُونَ التَّسْبِيحَ وَالتَّحْمِيدَ كَمَا تُلْهَمُونَ النَّفَسَ:**

**دساه اخستوپشان دتسبيح اوتهليل ورد كول:** تسبيح او تحميد اودَ الله تعالى دَ ذکر کلمات دَ جنتيانو په ژبه باندې جارى وى يا دا مراد دې لکه څنګه چه دَمعمول مطابق دَ ساه تلو راتلو دَ وجې نه تاسو ته څه تکليف او پريشانى نه وى اوتاسو څه بوج نه محسوسونى هم دغه شان به مسلسل تسبيح او تهليل جارى کيدو دَ وجې نه جنتيان هيڅ بوج او پرشانى نه محسوسوى.

**[۵۶۲۱]داهل جنتو دائمي عيش وشباب**

**۵۶۲۱-[۱۰] ()[۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" «مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ يَنْعَمُ وَلَا يَبْأَسُ،[۳]وَلَا تَبْلَى ثِيَابُهُ، وَلَا يَفْنَى شَبَابُهُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.**

**ترجمه:** [۱]و حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲]کوم سړى چې په جنت کې داخليږي عيش وعشرت کې به وي نه به ورسره فکر وغم وي [۳]و نه به يي کپړي خيرنيږي او نه به يي ځواني فنا کېږي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ①يَنْعَمُ: أَنْ يَتَنَعَّمَ: په نعمتونو يعنى په عيش اوعشرت کښې به وى، ②لَا يَبْأَسُ: أَيْ لَا يَفْتَقِرُ وَلَا يَهْتَمُّ: يعنى جنتيان به نه په څه غم کښې وى اونه به په څه اولګه تنده کښې راګيروى. ③لَا

[۱] ) اخرجه مسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب فى صفات الجنة وأهلها وتسبيحهم فيها بكرةً وعشيا (رقم-۲۱ - (۲۸۳۶) والترمذى فى كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صفة الجنة ونعيمها (رقم-۲۵۲۶) واحمد فى المسند:۹۵/۳

تَبْلَى :دا دَ بلی ییلی سمع نه دي، أي: لَا تَخْلَقُ ثِيَابُهُ: دَ کپړو زړیدل اوشلیدل مراددی چه داسې به نه کیږی ④لَا يَفْنَى :أَيْ لَا يَذْهَبُ: نه به فناء کیږی یعنی نه به ختمیږی ⑤شَبَابُهُ: شباب ځوانئ ته وائی

**تسهیلات:**

**قوله: يَنْعَمُ وَلَا يَبْأَسُ، وَلَا تَبْلَى ثِيَابُهُ، وَلَا يَفْنَى شَبَابُهُ:**

**دجنتیانو دری خصوصیات:**

① همیشه دپاره به نعمتونو کښې مشغول وی چرته به هم نا امیده نشی

② همیشه دپاره به دهغوی جامو پاکې وی زړې به نشی.

③ همیشه دپاره به دهغوی ځوانی باقی وی بوډاګان به نشی

**[۵۳۳۲] [۵۳۳۳] په جنت کې به همیشه حیات او ځوانی او خوشحالئ وی**

۵۳۳۳()- ۵۳۳۲-()[۵] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] " «يُنَادِي مُنَادٍ: إِنَّ لَكُمْ أَنْ تَصِحُّوا فَلَا تَسْقَمُوا أَبَدًا، [۳] وَإِنَّ لَكُمْ أَنْ تَحْيَوْا فَلَا تَمُوتُوا أَبَدًا، [۴] وَإِنَّ لَكُمْ أَنْ تَشِبُّوا فَلَا تَهْرَمُوا أَبَدًا، [۵] وَإِنَّ لَكُمْ أَنْ تَنْعَمُوا فَلَا تَبْأَسُوا أَبَدًا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعید خدري ﷛ او حضرت ابوهریره ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په جنت کې به یو اعلان کونکی دا اعلان وکړي چې اې جنتیانو تاسو صحت او تندرستی سره اوسئ تاسو ته به هیڅ کله بیماري نه لاحق کیږي [۳] تاسو همیشه همیشه ژوندي او سلامت اوسئ مرګ به هیڅ کله تاسو ته نه راځي [۴] تاسو همیشه ځلمی اوسئ بوډاتوب به هیڅکله درته نه راځي [۵] او تاسو د عیش وعشرت ژوند تیروئ هیڅ قسم فکر وغم او رنج والم ودرد به درته نه رسیږی. (مسلم)

**حل اللغات:-** ①مُنَادٍ: اعلان کونکې فرشته، ②تَصِحُّوا: أَيْ تَكُونُوا صَحِيحِي الْبَدَنِ: صحت او تندرستئ والا شئ. ③فَلَا تَسْقَمُوا: أَيْ: فَلَا تَمْرَضُوا: تاسو به نه بیماریږئ، ④تَحْيَوْا: أَيْ تَكُونُوا أَحْيَاءً: همیشه به ژوندی یئ ⑤تَشِبُّوا: أَيْ تَدُومُوا شَبَابًا: همیشه به ځوانان او ځلمی یئ. ⑥فَلَا تَهْرَمُوا: أَيْ لَا تَشِيبُوا: بوډاګان کیږئ به نه. ⑦تَنْعَمُوا: په نعمتونو یعنی په عیش اوعشرت کښې به یئ. ⑧فَلَا تَبْأَسُوا: یعنی جنتیان به نه په څه غم کښې وی اونه به په څه اولګه تنده کښې راګیروی

[۱] ) اخرجه مسلم فی کتاب الجنة وصفة نعیمها وأهلها/باب فی دوام نعیم أهل الجنة وقوله تعالی: {ونودوا أن تلکم الجنة أورثتموها بما کنتم تعملون} [الأعراف: ۴۳] (رقم-۲۲ - (۲۸۳۷) والترمذی فی کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة الجنة ونعیمها (رقم-۲۵۲۶) واحمد فی المسند:۹۵/۳

[۲] ) اخرجه مسلم فی کتاب الجنة وصفة نعیمها وأهلها/باب فی دوام نعیم أهل الجنة وقوله تعالی: {ونودوا أن تلکم الجنة أورثتموها بما کنتم تعملون} [الأعراف: ۴۳] (رقم-۲۲ - (۲۸۳۷) والترمذی فی کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة الجنة ونعیمها (رقم-۲۵۲۶) واحمد فی المسند:۹۵/۳

**تسهيلات:**

**قوله يُنَادِي مُنَادٍ: إِنَّ لَكُمْ أَنْ تَصِحُّوا فَلَا تَسْقَمُوا أَبَدًا،**

**په جنت کښې نه ناجوړه کیدل:** جنت د الله تعالی دنعمتونوځائې دې هلته به بیماری او رنځوری نه وی بلکه همیشه دپاره به صحت مند وی

**قوله وَإِنَّ لَكُمْ أَنْ تَحْيَوْا فَلَا تَمُوتُوا أَبَدًا:**

**د مرگ خاتمې اعلان:** لکه څنګه چې مخکې په یوبل حدیث کښې تیرشوی دی چې دقیامت په د فیصلې څخه روسته به مرگ د یوگډوری «دگډبچې» په صورت کښې راوستې شی نو اوذبح به کړې شی اوبیا به اعلان اوشی چې اې جنتیانو همیشه دپاره ژونددې مرگ ختم شو اوجهنمیاتوته به اووئیلی شی چې اې دوذخیانو همیشه دپاره ژوندې مرگ ختم شو

**[۵٦٢٤] د جنت د بالاخانو اوسیدونکي**

۵۶۲۴-[۳] ()[۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ يَتَرَاءَوْنَ أَهْلَ الْغُرَفِ مِنْ فَوْقِهِمْ [۳] كَمَا تَتَرَاءَوْنَ الْكَوْكَبَ الدُّرِّيَّ الْغَابِرَ فِي الْأُفُقِ، مِنَ الْمَشْرِقِ إِلَى الْمَغْرِبِ لِتَفَاضُلِ مَا بَيْنَهُمْ [۴]" قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، تِلْكَ مَنَازِلُ الْأَنْبِيَاءِ لَا يَبْلُغُهَا غَيْرُهُمْ، [۵] قَالَ: "بَلَى وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ رِجَالٌ آمَنُوا بِاللَّهِ وَصَدَّقُوا الْمُرْسَلِينَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] جنتیان به خپل پورته بالاخاني والا خلق داسې ویني [۳] څرنګه چې تاسو خلق هغه روښانه ستوري وینئ چې د آسمان مشرقي یا مغربي افق کې وي او د هغه د بلندی او خوشنمائي تعلق به فرق مراتب سره وي چې د اهل جنت په منځ کې به پیدا کولی شي [۴] صحابه و رضي الله عنهم عرض وکړو یارسول الله! دا بالاخاني برسیره ښائسته محلات به آیا د انبیاو مکانات وي چې هغه ته به د انبیاوو نه ماسوا د بل چا رسائي نه وي [۵] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل ولي نه قسم دی په هغه ذات چې د هغه په قبضه کې ځما ساه ده هغه بلند وبالا محلات او بالاخانو ته به د هغه خلقو هم رسائي وي چې په الله تعالی باندې ایمان راوړی او د رسولانو تصدیق وکړي «بخاري مسلم»

**حل اللغات:**- ① يَتَرَاءَوْنَ : أَيْ: يَنْظُرُونَ: یعنی اهل جنت به دخپل ځان نه پورته بالاخانوته داسې گوری لکه څنګه چه تاسو روښانه ستورو ته گورئ ② الْغُرَف: د غُرْفَة جمع ده، وَهِيَ بَيْتٌ يُبْنَى فَوْقَ

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب ما جاء فی صفة الجنة وأنها مخلوقة (رقم -(رقم-۳۲۵۶) ومسلم فی کتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب ترائی أهل الجنة أهل الغرف. کما یری الکوکب فی السماء (رقم-۱۱ - (۲۸۳۱) والترمذی فی کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی ترائی أهل الجنة فی الغرف (رقم-۲۵۵۶) واحمد فی المسند:۳۳۵/۲

الدَّارِ: دکور دپاسه کمره یعنی بالاخانه، خو دلته ددې نه مراد محلات (بنګلې) دی، ⓶ الدُّرِّيُّ: أَيْ: شَدِيدُ الْإِنَارَةِ: ډير تيز ځليدونکې (ځکه چه بالکل صفا رنګ او رڼا والا به وی او ښکاره به ښکاری). ⓷ الْغَابِرَ: أَيِ الْبَاقِيَ: باقی باتې کیدونکې یعنی هغه ستورې چه د راختونه پس دوبيږی نه، بلکه باقی پاتې وی. ⓸ الْأُفُقِ: د آفاق جمع ده، أَيْ أَطْرَافِ السَّمَاءِ: د آسمان کنارې او اطرافو ته وائي. ⓹ مَنَازِلُ: د منزل جمع ده، د اوسيدو ځايونه (محلات او بالاخانې د جنت مراد دی).

**تسهيلات:**

**قوله: بَلَى وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ رِجَالٌ آمَنُوا بِاللَّهِ وَصَدَّقُوا الْمُرْسَلِينَ:**

**هيره پيغمبرانو ته اوچتې درجې ملاويدل:** يعنی حضورپاک د صحابه کرامو ﷺ په جواب کښې اوفرمائيل چه نه نه. دا مقام صرف انبياء کرامو عليهم السلام سره خاص نه دې چه د هغوی نه بغيربه بل څوک هلته نه شی رسيدلې بلکه چه کومو خلقو په الله تعالی باندې ايمان راوړلې اود انبياء کرامو تصديق ئی کړې وی هغوی به هم دغه مقاماتو ته رسيږی اود دغه نعمتونو نه به خوندونه اخلی.

**[۵۶۲۵] د ځو جنتيانو ذکر**

| ٥٦٣٥-()[٣] ⓵ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⓶ "«يَدْخُلُ الْجَنَّةَ أَقْوَامٌ ⓷ أَفْئِدَتُهُمْ مِثْلُ أَفْئِدَةِ الطَّيْرِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
|---|

**ترجمه:** ⓵ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل ⓶ په جنت کې به د داسې خلقو ډيرجماعتونه داخليږي ⓷ چې دهغوئ زړونه به د مارغانو په شان وي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ⓵ أَفْئِدَتُهُمْ: أَيْ: قُلُوبُهُمْ: زړونه دهغوی (يعنی دجنتيانو).

**تسهيلات:**

**قوله: يَدْخُلُ الْجَنَّةَ أَقْوَامٌ أَفْئِدَتُهُمْ مِثْلُ أَفْئِدَةِ الطَّيْرِ:**

**د افئدة الطير په مفهوم کښې دوه اقوال:** ⓵ يعنی جنت ته به داسې ډيرمخلوقات ورځی د چا زړونه چه به په توکل اويقين کښې به دهغوی زړونه د مرغود زړونو په شان متوکل شی ⓶ دا تشبيه د الله تعالی د ويرې د وجې په نرمئی کښې د مرغود زړونو په شان نرم وی. مرغئی چه لږه شان ويره اووينی اوتختی.

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب يدخل الجنة أقوام أفئدتهم مثل أفئدة الطير(رقم-٢٧ - (٢٨٤٠) واحمد فی المسند:٣٣١/٢

**[۵٦۳٦]د حق تعالی خوشنودي**

(۳)[۱]وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى يَقُولُ لِأَهْلِ الْجَنَّةِ: يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ [۳]يَقُولُونَ: لَبَّيْكَ رَبَّنَا وَسَعْدَيْكَ، وَالْخَيْرُ كُلُّهُ فِي يَدَيْكَ. [۴]فَيَقُولُ: هَلْ رَضِيتُمْ؟

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابو سعيد خدري ؓ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله ﷻ به جنتيان مخاطب کولو سره اواز ورکړي اې جنتيانو! [۳]ټول جنتيان به دا اواز اوريدو سره جواب ورکړي اې زمونږ پروردګاره! مونږ حاضر يو ستا په خدمت کې موجود يو ټول ترخير ستا په قبضه او اراده کې دي چې چاته غواړې ورکړه کوئ [۴] الله ﷻ به فرمايي زه يوښتنه کول غواړم چې آيا تاسو د جنت انعام پيداکيدو سره زما نه راضي او خوشحاله شوئ.

**حل اللغات:** - ① لَبَّيْكَ: زه حاضريم ② سَعْدَيْكَ: اوستا تابعداری ته تيار يم.

[۱]فَيَقُولُونَ: وَمَا لَنَا لَا نَرْضَى يَا رَبِّ [۲]وَقَدْ أَعْطَيْتَنَا مَا لَمْ تُعْطِ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ؟ [۳]فَيَقُولُ: أَلَا أُعْطِيكُمْ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ؟ [۴]فَيَقُولُونَ: يَا رَبِّ وَأَيُّ شَيْءٍ أَفْضَلُ مِنْ ذَلِكَ؟ [۵]فَيَقُولُ: أُحِلُّ عَلَيْكُمْ رِضْوَانِي فَلَا أَسْخَطُ عَلَيْكُمْ بَعْدَهُ أَبَدًا» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]هغوئ به عرض وکړي چې هو مونږ به ستا نه راضي او خوشحاله ولې نه يو [۲]تاخو مونږ ته هغه لوی نه لوی نعمت او سرفرازي ورکړه کړي ده چې نور مخلوق ته دې نه دی ورکړي نو ددی نه بهتر نعمتونه بل کوم دی [۳]نو الله ﷻ به فرمايي آيا زه تاسي ته ددې نه بل بهترين نعمت درنکړم ؟[۴]نو جنتيان به عرض وکړي اې پروردګاره ددې نه به بل کوم بهترين نعمت وي . [۵]نو الله ﷻ به وفرمايي بل لوی نعمت دا دی چې ما خپل رضا په تاسې خوره کړه زه ستاسو نه راضی اوخوشحاله يم اوبيا به ستاسو نه هيڅ کله ناراضه نه يم . ظاهره ده چې دا به داهل جنتو پحقله کې دټولو نه دلوی سرفرازی بشارت (خوشخبری) وی چې دهغوئ پروردګار هميشه هميشه دهغوی نه راضی او خوشحاله وی دی سعادت او نعمت نه لوی سعادت او نعمت نورڅه کيدی شی حقيقت خو دا دی چې دحق تعالی څه لږ رضا او خوشنودی هم دپوره رضا او خوشنودی دپوره جنت او دجنت دټولو نعمتونو اوسعادتونو نه زياته ده ، څه چې هغه رضا او خوشنودی مستقل توګه سره او هميشه دپاره حاصله شی ، خپله الله ﷻ فرمايی ورضوان من الله اکبر ، نوهر صاحب

[۱]) اخرجه البخاری فی كتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار(رقم-۶۵۴۹) ومسلم فی كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب إحلال الرضوان على أهل الجنة فلا يسخط عليهم أبدا (رقم-۹ - (۲۸۲۹) والترمذی فی كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۵۵۵)

ايمان له التجاء كول پكار دى ، اللهم ارض عنا وارضنا منك ، اې الله مونږ نه راسى او مونږ دخان نه راضى كړى .

**حل اللغات:** -③ فَلَا أَسْخَطُ: أَيْ لَا أَغْضَبُ: نه به خفه كيږم، نه به غصه كيږم

**تسهيلات:**

**قوله: أُحِلُّ عَلَيْكُمْ رِضْوَانِي فَلَا أَسْخَطُ عَلَيْكُمْ بَعْدَهُ أَبَدًا:**

**جنتيانو ته د الله تعالى د رضا سند ملاويدل،** په دنيا كښې يو كس ډير كوشش كوى چې الله تعالى ترې راضى شى نو الله تعالى د هغه څخه راضى وى خو ناګهانه يوه ګناه د اسې اوكړى چې هغه د الله تعالى د خفګان سبب اوګرځى او هغه د رضا په خفګان بلكه بعضې وخت كښې په غصه بدله شى.ليكن په جنت كښې به داسې نه وى بلكه جنتيان چې كله جنت ته لاړشى نو الله تعالى به ترې هميشه دپاره راضى وى كله به ترې هم خفه او ناراض نشى.دا ډير لوئى اعزاز دې. ارشاد عالى دې ﴿وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ﴾ يعنى د الله تعالى رضا ډيرلوې اعزاز اونعمت دې.

**[۵۶۲۷] د معمولي جنتي مرتبه**

۵۶۲۷-()[۵] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② قَالَ: "«إِنَّ أَدْنَى مَقْعَدِ أَحَدِكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ أَنْ يَقُولَ لَهُ: ③ تَمَنَّ، فَيَتَمَنَّى وَيَتَمَنَّى. ④ فَيَقُولُ لَهُ: هَلْ تَمَنَّيْتَ؟ ⑤ فَيَقُولُ: نَعَمْ، فَيَقُولُ لَهُ: فَإِنَّ لَكَ مَا تَمَنَّيْتَ وَمِثْلَهُ مَعَهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② په تاسو كې چې كوم سړى د ټولو نه د ادنى درجې او كمتر مقام جنتي وي د هغه به دا مرتبه وي چې الله ﷻ به هغه ته فرمايي ③ كوم خواهش چې لري هغه بيان كړه او څه چې غواړي وغواړه هغه به خپلي ارزوګاني او خواهشونه ظاهر كړي او بار بار به يي ښكاره كوي يعنى هغه چې څومره خواهشات لري بيانوى به يي او څومره چې غوښتى شى غواړي به يي ④ الله ﷻ به د هغه ارزوګاني او خواهشات اوريدو سره فرمايي آيا تا خپلي ارزوګاني بيان كړي او خپل زړه كې چې دى كوم خواهش لرلو هغه هرڅه دي ظاهر كړل ⑤ هغه به عرض وكړى چې هو ماچې څه غوښتى شو او ومي غوښتل او خپله يوه يوه ارزومي بيان كړله الله ﷻ به ورته فرمايي تا چې كومي ارزوګاني بيان كړي او څه چې دي وغوښتل ، نه صرف هغه، بلكه هغومره تاته مزيد دركړي شو. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَدْنَى: أَيْ: أَقَلُّ مَرْتَبَةً: په مقام او مرتبه كښې دټولو نه كم. ② مَقْعَدِ: د اوسيدو ځائې اومقام، ③ تَمَنَّ: خواهش ښكاره كړه،مطالبه اوكړه.

[1] ) اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب معرفة طريق الرؤية (رقم-۳۰۱ - (۱۸۲) واحمد فى المسند: ۳۱۵/۲

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث مضمون آسان دي ځکه تشريح ته څه ضرورت نشته

**[٥٦٢٨] هغه څلور درياب ونه چه د هغه سرچشمه په جنت کې ده**

٥٦٢٨-()[٣] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]«سَيْحَانُ وَجَيْحَانُ وَالْفُرَاتُ وَالنِّيلُ كُلٌّ مِنْ أَنْهَارِ الْجَنَّةِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] سيحان جيحان فرات او نيل د دې تولو دريابونو تعلق د جنت د نهرونو او چينو سره دی . (مسلم)

**حل اللغات:** - ① سَيْحَانُ: د السَّيح نه دې، وَهُوَ جَرْيُ الْمَاءِ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ: په زمکه باندې د اوبو بهيدو ته وائی. دا په شام کښې يو نهر دې. ② جَيْحَانُ: په شام کښې د يو نهر نوم دې. ③ الْفُرَاتُ: دا په کوفه کښې بغداد سره نيزدې يو نهر دې. ④ النِّيلُ: دا په مصر کښې يو نهر دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** سَيْحَانُ وَجَيْحَانُ وَالْفُرَاتُ وَالنِّيلُ كُلٌّ مِنْ أَنْهَارِ الْجَنَّةِ:

**د دريائې جيحون محل وقوع:** د دريائې جيحون او دريائې سيحون په تعين کښې اختلاف دې. په زير بحث حديث کښې سيحان او جيحان دَ دوو دريابونو چه کوم نومونه راغلی دی دا دواړه دريابونه په بلاد عواصم کښې مصيصه او طرطوس په مينځ کښې واقع دی اودَ جيحون او سيحون په نوم باندې مشهوردی. دواړه دريابونه دَ شام په زمکه کښې واقع دی او بحيرهٔ روم کښې راپريوځی

**قوله:** مِنْ أَنْهَارِ الْجَنَّةِ"

**د څلورو دريابونو د جنت څخه کيدو کښې دوه اقوال:** ① په زمکه کښې بهيدونکی دَدې څلورو نهرونو اصل ماده اومرکز په جنت کښې بهيدونکی څلور نهرونه دی کوم چه دَعرش نه لاندې سدرة المنتهی نه جاری کيږی او په جنتونو کښې بهيږی. بياهم دَ دغې اوبه دنياته راغلې اوجيحون اوسيحون اونيل اوفرات په نومونوباندې مشهورشو هم په دې وجه دې ته انهارالجنة وئيلې شوی دی

② يعنی داڅلورنهرونه په فوائد کښې دَ جنت دَ څلورو نهرونو مشابه دی هم په دې وجه دې ته "انهارالجنة" اووئيلې شو.

[١] ) اخرجه مسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب ما فى الدنيا من أنهار الجنة (رقم-٢٦ - (٢٨٣٩)واحمد فى المسند:٢/٤٤٠

**[٥٦٢٩] د دوزخ او جنت وسعت**

٥٦٢٩-()[١٤] ① وَعَنْ عُتْبَةَ بْنِ غَزْوَانَ قَالَ: ② «ذُكِرَ لَنَا أَنَّ الحَجَرَ يُلْقَى مِنْ شَفَةِ جَهَنَّمَ فَيَهْوِي فِيهَا سَبْعِينَ خَرِيفًا لَا يُدْرِكُ لَهَا قَعْرًا، ③ وَاللهِ لَتُمْلَأَنَّ، ④ وَلَقَدْ ذُكِرَ لَنَا أَنَّ مَا بَيْنَ مِصْرَاعَيْنِ مِنْ مَصَارِيعِ الْجَنَّةِ مَسِيرَةُ أَرْبَعِينَ سَنَةً، ⑤ وَلَيَأْتِيَنَّ عَلَيْهَا يَوْمٌ وَهُوَ كَظِيظٌ مِنَ الزِّحَامِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت عتبه بن غزوان رضی الله عنه وایي ② زمونږ مخکښې دا ذکر وشو یعنی حضور ﷺ نه دا روایت نقل شو چې حضور ﷺ وفرمایل که د دوزخ برسیره غاړي نه یو کانړی راوغورځول شي نو هغه به اویا کاله پورې لاندې رغړیدو سره ځي او د دوزخ بیخ ته به ونه رسیږی ③ قسم په الله دوزخ دومره ژور او د وسیع کیدو باوجود به د کافرو نه پوره ډك شي ④ او حضرت عتبه رضی الله عنه وایي زمونږ مخکښې د حضور ﷺ دا ارشاد گرامي هم ذکر شو چې د جنت د یوې دروازې د دواړو بازوگانو په منځ کې د څلویښت کاله د مسافت فاصله ده ⑤ او یوه ورځ به داسې وي چې جنت به د دومره وسعت او کشادگۍ باوجود د خلقو نه ډك شي . (مسلم)

**حل اللغات:-** ① شَفَةِ: أَيْ مِنْ طَرَفِهَا: شونډې ته وائی، دلته ترې د جنت غاړه مراد ده. ② فَيَهْوِي: أَيْ: فَيَسْقُطُ الْحَجَرُ وَيَنْزِلُ: راغورزیږی به او راروان به وی، ③ خَرِيفًا: أَيْ: سَنَةً: خریف دَ خزان موسم ته وائی دلته ترې کال مراد دي. ④ قَعْرًا: بیخ، لاندې سطح، ⑤ مَصَارِيع: أَيْ: مَا بَيْنَ طَرَفَيْ بَابٍ مِنْ أَبْوَابِهَا: د دروازې دواړه طرف ته بازوگان مراد دی. ⑥ مَسِيرَةُ: فاصله، مسافت، ⑦ كَظِيظٌ: فعیل دې په معنی د مفعول سره، أَيْ مَمْلُوءٌ: ډک کړې شوې به وی، ⑧ الزِّحَام: أَيِ الْكَثْرَةُ: زیات وسعت او فراخ والې

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَيَأْتِيَنَّ عَلَيْهَا يَوْمٌ وَهُوَ كَظِيظٌ مِنَ الزِّحَامِ:

**د لفظ كظيظ توضیح او د حدیث مقصد:** دَ یو څیز دومره ډکیدل چه ساه اخستل ئی گران شی دې ته کظیظ وائی. مراد زیات ډکیدل دی. دلته دا خودل مقصود دی چه دَ جنت دَ دروازې تنبې به دَ دومره کولاؤوالی باوجود یوه ورځ به په دې باندې داسې هم راځی چه دَ خلقو دَ ډیروالی دَ وجې نه به دا دروازه دومره ډکه شوې وی چه په دې کښې به دَ خلقو ساه اخستل گران شی او دَ کظیظ صورت به پیدا شی.

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق (رقم-١٤ - (٢٩٦٧) واحمد فی المسند:٣٧١/٢

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵٦٣٠] د جنت د تعمير ذكر

٥٦٣٠-()[٨] [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قُلْتُ: «يَا رَسُولَ اللّٰهِ، [٢] مِمَّ خُلِقَ الْخَلْقُ؟ قَالَ: "مِنَ الْمَاءِ". [٣] قُلْنَا: الْجَنَّةُ مَا بِنَاؤُهَا؟ [٤] قَالَ: "لَبِنَةٌ مِنْ ذَهَبٍ وَلَبِنَةٌ مِنْ فِضَّةٍ، وَمِلَاطُهَا الْمِسْكُ الْأَذْفَرُ، [٥] وَحَصْبَاؤُهَا اللُّؤْلُؤُ وَالْيَاقُوتُ، وَتُرْبَتُهَا الزَّعْفَرَانُ، [٦] مَنْ يَدْخُلُهَا يَنْعَمُ وَلَا يَبْأَسُ، [٧] وَيَخْلُدُ وَلَا يَمُوتُ، [٨] وَلَا يَبْلَى ثِيَابُهُمْ، وَلَا يَفْنَى شَبَابُهُمْ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي ماعرض وكړو يارسول الله! [٢] مخلوق د كوم شي نه پيدا شوي دي حضور ﷺ وفرمايل د اوبو نه [٣] بيا مونږ پوښتنه وكړه چې جنت د څه شي نه جوړدى؟ يعنى د دې عمارت د كاني يا خښتي دي يا د خاوري يا د لرګي وغيره [٤] وي فرمايل د جنت تعمير د خښتودى او خښتي هم داسې دي چې يوه خښته د سوني سروزرو ده او يوه خښته د چاندي ده د دې خټه يا مصاله چې دهغه نه خښتي جوړيږي د تيز خوشبوداره مشك ده [٥] د دې شګي په رنګ او چمك كې دملغلري او ياقوت په شان دى او ددي خاوره دزعفران په شان زيړه اوخوشبو داره ده [٦] كوم سړى چې په جنت كې داخل شي عيش وعشرت كې به وي هيڅ كله به رنج او فكر نه ويني [٧] هميشه به ژوندى وي مري به نه [٨] نه به يي لباس زړيږي او نه به بوسيده كيږي او نه به يي خواني فناء كيږي. (احمد ترمذي دارمي)

**حل اللغات:-** ① لَبِنَةٌ : خښته، ② مِلَاطُهَا : أَيْ مَا بَيْنَ اللَّبِنَتَيْنِ مَوْضِعُ النُّورَةِ: خټه، مصالحه، دَدوو خښتودَيوځاى كولودَپاره چه كومه خټه اومصالحه استعمالولې شى هغې ته ملاط ونيلې شوې دي ③ الْمِسْكُ الْأَذْفَرُ: أَيِ الشَّدِيدُ الرِّيحِ: تيز خوشبودار مشک، او عنبر پلستر شوې دې ④ حَصْبَاؤُهَا: شګې (نرۍ شګې كومې چه په نهرونو كښې وى، دا دَ ښائست او دول دَپاره وى دا په ځرق ځروق كښې دَ ملغلرو په شان وى.) ⑤ تُرْبَتُهَا : خاوره د جنت، ⑥ الزَّعْفَرَانُ: أَيِ النَّاعِمُ الْأَصْفَرُ الطَّيِّبُ الرِّيحِ: دا زيړ رنګ خوشبو ده. ⑦ يَنْعَمُ: په نعمتونو او عيش او عشرت كښې به وى. ⑧ لَا يَبْأَسُ: يعنى جنتيان به نه په څه غم كښې وى اونه به په څه اولګه تنده كښې راګيروى. ⑨ يَخْلُدُ: أَيْ: يَدُومُ: هميشه اوسيدل به وى (واپس تلل به نه وى). ⑩ لَا يَبْلَى : دا دَ بَلِيَ يَبْلَى سمع نه دې، أَيْ: لَا يَخْلَقُ ثِيَابُهُ: دَ كپړو زړيدل اوشليدل مرادى چه داسې به نه كيږى. ⑪ لَا يَفْنَى: أَيْ لَا يَذْهَبُ: نه به فناء كيږى يعنى نه به ختميږى.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِمَّ خُلِقَ الْخَلْقُ؟ قَالَ: "مِنَ الْمَاءِ:

---

[١] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صفة الجنة ونعيمها (رقم-٢٥٢٦) واحمد فى المسند: ٣٠٥/٢

**د كائنات د تخليق ابتداء:** يعنى دهرڅيز اصل او ماده د اوبو نه دې د كائنات د تخليق ابتداء څنګه اوشوه؟ په دې سلسله كښې خود تولونه مخكښې هغه حديث دې كوم چه په ابن ماجه وغيره كښې دې «كان الله وليس معه شئ» يعنى صرف هم د الله تعالى ذات وو نور هيڅ نه وو.

**د كائناتو د تخليق مراحل:** ① تورات سفر اول كښې يو روايت دې چه الله تعالى يوه شنه مرغلره پيدا كړه او په هغې باندې ئې د هيبت نظر واچولو نو هغه ويلى شوه او د دې نه اوبه راپيدا شوې. په قرآن كښې دا صورت حال داسې بيان كړې شوې دې ﴿ وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَآءِ﴾ يعنى پورته عرش وو لاندې اوبه وې.

② دې نه پس الله تعالى په دې اوبو باندې د هيبت رعب او دبدبه نظر واچولو په كوم سره چه اوبه راڅوټكيدې او سوزيدو سره لوګې راوچت شو. د دغه لوګى نه الله تعالى آسمان پيدا كړو ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَآءِ وَهِيَ دُخَانٌ﴾ هم د دغه حقيقت طرف ته اشاره ده.

③ د اوبو سوزيدو نه پس لاندې د ځګ په شكل كښې بيخ پاتې شو چه د بيت الله په مقام باندې راوچته شوې غونډئى وه هم د دغه لاندې ناست خيرى نه الله تعالى زمكې پيدا كړې. ﴿وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحٰهَا﴾ هم د دغه كيفيت طرف ته اشاره ده.

**[٥٦٢١] د جنت ونې**

٥٦٢١-()[م] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «مَا فِي الْجَنَّةِ شَجَرَةٌ إِلَّا وَسَاقُهَا مِنْ ذَهَبٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** [١] او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په جنت كې چې كومه و نه هم ده د هغه تنه د سوني سروزرو ده. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① سَاقُهَا: ساق پنډئ ته وائى دلته ترې د اونې تنه مراد ده

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا فِي الْجَنَّةِ شَجَرَةٌ إِلَّا وَسَاقُهَا مِنْ ذَهَبٍ :

**دجنت د ونو كيفيت:** دجنت دهرى ونى تنه دسرو زرو ده، البته دهغه ونو څانګى دمختلفو قسمونو دى ، دڅا دسونى دى ، دڅا دچاندى دى، څينى څانګى دياقوتو او زمرودو دي ، يا دموتى (ملغلرى) وغيره او هره څانګه قسم قسم غوټيو (شګوفو) سره مرصع او مزين ده ،اوپه هغه قسم قسم ميوى لګيدلى دى،او دجنت دتولو و نو لاندى نهرونه جاري دى.

---

[1] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صفة شجر الجنة (رقم-٢٥٢٥)

## [۵۶۳۳] د جنت درجات

۵۶۳۲-()[۲۰] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ مِائَةُ عَامٍ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② په جنت کې به سل درجې وي او د هر دوو درجو په منځ کې د سل کاله مسافت فاصله ده دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې داحديث غريب دی

**تسهيلات:** **قوله:** إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ:

**د درجو څخه مراد:** دَ درجونه مراد اوچتې مرتبې دي چه جنتيانوته به دَهغوی دَ اعمالو او نيکو په اعتبار سره ملاويږي لکه چه الله تعالی ارشاد فرمائيلې دي ﴿هُمْ دَرَجَاتٌ عِنْدَ اللهِ﴾ يعنې جنتيانوته به دَ خپلو خپلو اعمالو مطابق درجې ملاويږي دَ کوم جنتی چه نيک اعمال څومره زيات وی هغه ته به هم دومره دَ جنت مرتبې حاصلې وی

۵۶۳۳-()[۲۱] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ، ③ لَوْ أَنَّ الْعَالَمِينَ اجْتَمَعُوا فِي إِحْدَاهُنَّ لَوَسِعَتْهُمْ» ". ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسعيد خدري ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② په جنت کې سل درجې دي ③ که د ټول عالم خلق په هغه يوه درجه کې هم جمع شي نو هغه به دټولو دپاره کافي وي ④ دا روايت ترمذي ﷫ نقل کړی دی او ويلي يې دي چې داحديث غريب دی.

**حل اللغات:** - ① الْعَالَمِينَ: أَيْ خَلْقَ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ: د اول نه تر آخره پورې ټول مخلوق مراد دي.
② لَوَسِعَتْهُمْ: أَيْ لَكَفَتْهُمْ: ټولو دپاره به کافي شي (يعنې ډير زيات فراخه دي).

**تسهيلات:**

**نوټ:** ددې حديث د مضمون تشريح د مشکاة د حديث نمبر(۵۶۱۷) په تسهيل کښې ذکر شوې ده

## [۵۶۳۴] د جنت فرش

۵۶۳۴-()[۲۲] ① وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿وَفُرُشٍ مَرْفُوعَةٍ﴾ [الواقعة: ۳۴] قَالَ: ② "ارْتِفَاعُهَا لَكَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ مَسِيرَةَ خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

[1] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صفة درجات الجنة (رقم-۲۵۲۹)

[2] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى صفة نساء أهل الجنة (رقم-۲۵۳۵) واحمد فى المسند:۲۹/۳

[3] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صفة ثياب أهل الجنة (رقم-۲۵۴۰) واحمد فى المسند:۷۵/۳

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو سعيد خدري ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ د الله ﷻ د دې ارشاد: وَفُرُشٍ مَّرْفُوعَةٍ او اوچت لوړ فرشونه او تختونه به وي د دې په تفسير کې فرمايلي دي ٢ چې د هغه تختونو بلندي به دومره وي څومره چې د آسمان او زمکې په منځ کې مسافت دی يعنی د پنځه سوه کاله لار ، دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** - ① اِرْتِفَاعُهَا: اوچتوالې د درجو دجنت، ② مَسِيرَةً: فاصله، مسافت

**تسهيلات:**

**قوله:** اِرْتِفَاعُهَا لَكَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ مَسِيرَةَ خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ:

**د فرش اوچتيدو او پورته کيدو صورت:** دَ فرش نه قالين او بسترې وغيره مراد دی دَدې دَ اوچتيدو او پورته کيدو صورت به داوی چه دَ بنکته درجې خلق دَ پورته درجو بالاخانو ته کله ګوری نو دَهغه ځائی فرشونه او دَهغې په مينځ کښې به دومره فاصله وی چه دَ پنځو سوو کالو پورې به وی.

**[٥٦٣٥] د جنتيانو ځليدونکي مخونه**

٥٦٣٥-() [٣٣] ١ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «إِنَّ أَوَّلَ زُمْرَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ضَوْءُ وُجُوهِهِمْ عَلَى مِثْلِ ضَوْءِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ، ٣ وَالزُّمْرَةُ الثَّانِيَةُ عَلَى أَحْسَنِ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ، ٤ لِكُلِّ رَجُلٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ، ٥ عَلَى كُلِّ زَوْجَةٍ سَبْعُونَ حُلَّةً، ٦ يُرَى مُخُّ سَاقِهَا مِنْ وَرَائِهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو سعيد خدري ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د قيامت په ورځ به په جنت کې چې کوم خلق د ټولو نه مخکې داخل شي يعنی انبياء عليهم السلام د هغوئ مخونه به د څوارلسمي شپې د سپوږمۍ په شان روښانه او ځلانده (ښائسته) وي ٣ او د دويم جماعت خلق به چې د انبياؤ نه وروسته به جنت کې داخليږي هغه اولياء او صلحاء دي د هغوئ مخونه به د آسمان د هغه ستورو په شان روښانه او ځلانده (ښائسته) وي کوم چې د ټولو نه زيات چمك کوي ٤ او په هغه جنتيانو کې به دهرسړي د پاره دوه ښځې وي ٥ او د هري ښځې په جسم به د لباس اويا جوړی وي ٦ او هغه دواړي ښځې به دومره صافي شفافي حسينی او جميلي وي چې د هغوئ د پنډيو دننه نلی به د اويا جوړو لاندي نه په نظر راځي . (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① زُمْرَةٍ: أَيْ أَوَّلَ جَمَاعَةٍ: يعنی رومبی جماعت، ② ضَوْءُ: رڼا ، ښائست، ③ لَيْلَةَ الْبَدْرِ: د څوارلسمې شپې سپوږمۍ، ④ حُلَّةً: جوړې، جامې، ⑤ مُخُّ: مغز، منځ (يعنی د هډوکی په مينځ کښې نلی) ⑥ سَاقِهَا: د ساق پنډئ ته وائی مراد ترې د پنډئ هډوکي دي.

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في صفة نساء أهل الجنة (رقم-٢٥٣٥)

**تسهيلات:**

**قوله:** لِكُلِّ رَجُلٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ:

**د دوو ببيبانوه تخصيص وجه:** مطلب دادې چه دَ جنتی بيبيانې خو به زياتې وی مگر په دغه بيبيانوکښې به دوه بيبيانې داسې لطافت والا وی چه اويا جوړې به ئې اغوستې وی لهذا حديث الباب دَ هغه روايت خلاف نه دې په کوم کښې چه دی چه ادنی جنتی ته به اويا بيبيانې ملاويږی. لهذا په هغه حديث کښې دَ ټولو بيبيانو ذکر دې او په حديث الباب کښې دَ لطافت والا خاصو دوو بيبيانو ذکر دې.

**[٥٦٣٦] د جنتيانو د مردانه قوت ذکر**

٥٦٣٦-()[٢٣] ①وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②" «يُعْطَى الْمُؤْمِنُ فِي الْجَنَّةِ قُوَّةَ كَذَا وَكَذَا مِنَ الْجِمَاعِ ③" قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَوَيُطِيقُ ذَلِكَ؟ ④قَالَ: " يُعْطَى قُوَّةَ مِائَةٍ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت انس ﷛ نه روايت دی چی رسول الله ﷺ وفرمايل ②په جنت کې مؤمن ته د جنسي اختلاط دومره دومره قوت ورکړې شي ③عرض وشو يارسول الله آيا يوسړی به دومره ښځو سره د جنسي اختلاط (مباشرت) طاقت لرلو شی ④حضور ﷺ ورته وفرمايل په جنت کې به يوسړي ته د سلو سړو قوت ورکول شي او هرکله چې هغه ته دومره زيات مردانه قوت حاصل وي نو بيابه هغه ځوځو ښځو سره د جنسي اختلاط طاقت ولي نه لري (ترمذي)

**حل اللغات:**- ①قُوَّةَ كَذَا وَكَذَا: وَهُوَ كِنَايَةٌ عَنْ جِمَاعِ عِدَّةٍ مِنَ النِّسَاءِ: دومره دومره طاقت دجماع به ورته ورکړې شی. دا کنايه ده ددې نه چه دا جنتی به په جنت کښې په يو وخت کښې د ډيرو ښځو سره جماع کولې شی

**تسهيلات:**

**قوله:** يُعْطَى الْمُؤْمِنُ فِي الْجَنَّةِ قُوَّةَ كَذَا وَكَذَا مِنَ الْجِمَاعِ:

**په جنتی کښې سل محله د جماع کولوطاقت:** چه جنتيانوته به دَ خپلو بيبيانو سره دَ کوروالی کولو ډير طاقت ورکولې شی بيا به په جماع سره کمزوری هم نه راځی دغه شان په جماع کښې به منی هم نه خارجيږی ځکه چه دا گندگی ده لکه چه په جنت کښې به متيازې وغيره نه وی دغه شان به دَ منی خروج هم نه وی صرف هوا به خارجيږی اودَ دغه هوا په اخراج کښې به خوند دَ منی نه هم زيات وی دارنگ جنتيانوته به دَ سلو سړو دَ

[١] اخرجه الترمذی في السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صفة جماع أهل الجنة (رقم-٢٥٣٦)

طاقت په اندازه دَ جماع طاقت ورکولې شي. دغه شان دَ دغه طاقت دَ برداشت او کنټرول کولو به هم قوت ورکولې شي یا به ورته دَ سل څل جماع کولو طاقت ورکولې شي. چنانچه په یو وخت کښې دَ ډیرو ښځو سره دَ جماع کولو په صورت کښې به جنتی ته هیڅ کمزوری نه محسوسیږی.

**[۵۶۳۷] د جنت د اشیاوو ذکر**

۵۶۳۷-()[۳۵] [۱] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] قَالَ: "«لَوْ أَنَّ مَا يُقِلُّ ظُفُرٌ مِمَّا فِي الْجَنَّةِ بَدَا [۳] لَتَزَخْرَفَتْ لَهُ مَا بَيْنَ خَوَافِقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ، [۴] وَلَوْ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ اطَّلَعَ فَبَدَا أَسَاوِرُهُ لَطَمَسَ ضَوْؤُهُ ضَوْءَ الشَّمْسِ [۵] كَمَا تَطْمِسُ الشَّمْسُ ضَوْءَ النُّجُومِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوي [۲] چې حضور ﷺ وفرمایل د جنت د څیزونو (یعنې د زینت او آرائش د اشیاوو) نه که د نوك برابر هم څه شی دنیا ته راشي [۳] نو د آسمان او زمکې د اطرافو او جوانبو پورې به د دنیا په هر شی کې رونق بیا مومي [۴] او حقیقت دادی که په جنتیانو کې یو سړی دنیا طرف ته تا وکړي یعنې وګوري او د هغه دلاسونو کړي ښکاره شي نو د هغه چمك دمك به د نمر رڼا پست کړي څرنګه چې نمر د ستورو رڼا پست کوي [۵] دا روایت ترمذي رحمه الله نقل کړی دی او ویلي یې دي چې داحدیث غریب دی.

**حل اللغات:**- ① مَا يُقِلُّ: أَيْ: يَحْمِلُهُ: دا دَ اقلال نه دې دَ اوچتولو پورته کولو اودَ راښکاره کولو په معنی کښې دې. ② ظُفُرٌ: جمع ده، ددې واحد ظُفُرٌ راځي، نوکونانو ته وائی (خو دلته ترې مراد د نوک په اندازه مقدار دې). ③ بَدَا: أَيْ: ظَهَرَ: راښکاره شي، ④ تَزَخْرَفَتْ: أَيْ: تَزَيَّنَتْ: ښائسته به ئې کړی. او به ځلیږی. ⑤ خَوَافِقِ: أَيْ أَطْرَافِهَا: دا جمع ده دَدې مفرد خافقة دې دَ طرف اوغاړې په معنی کښې دې. ⑥ اطَّلَعَ: أَيْ: أَشْرَفَ: راښکاره شي، سر راوچتولو سره اوګوری، ⑦ أَسَاوِرُهُ: دا جمع الجمع ده کوم چه دَ أَسْوِرَة جمع ده او أَسْوِرَة دَ سوار جمع ده. سوار بنګړی او په لاس کښې اچونکې کړې ته وائی ⑧ طَمَسَ: أَيْ: مَحَاهُ وَرُهُ: دَ یو څیز رڼا اوبرق پروق تتولو اوختمولو ته طمس وائی.

**تسهیلات:**

### دحدیث دبعضې جملوو ضاحت:

① **ظُفُرٌ:** یعنی دَ جنت دَ نعمتونونه که چرته دَ یونوك برابر (یعنی چه نوك هغه اوچتولې شي)څه څیز راؤچت کړې شي اودنیاته راښکاره کړې شي نوټوله دنیا به روښانه کړي.

[۱]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صفة جماع أهل الجنة (رقم-۲۵۳۸) واحمد في المسند: ۱۶۹/۱

④ خَوَافِقِ: مطلب دا چه دَجنت یو معمولی شان نعمت سره زمکه او آسمان تول اطراف ښائسته شی

⑤ أَسَاوِرَةُ: دَ فارس بادشاه به دا اچول دَ جنت بادشاه به ئی هم اچوی. نن صبا دَدې نمونه دَ گهړئ په صورت کښې دې

⑥ طَمَسَ: مطلب دا چه دَ جنتی بنګړی یو پړق که چرته دنیا ته رابنکاره کړې شی نودَ دنیا تولې رڼاګانې به ختمې شی نودَ باقی نعمتونو به څه حال وی؟

**[٥٦٢٨] د جنت د مردانو ذکر**

٥٣٨-()[٣٠] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «أَهْلُ الْجَنَّةِ جُرْدٌ مُرْدٌ كُحْلَى، [٣] لَا يَفْنَى شَبَابُهُمْ، وَلَا تَبْلَى ثِيَابُهُمْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] جنتیان به بغیر وینتانو خوانان وي او د هغوئ سترګي به توري وي [٣] او د هغوئ شباب به هیڅ کله نه فناء کیږي او نه به د هغوئ کپړې هیڅکله زړیږي. (ترمذي دارمي)

**حل اللغات:-** ① جُرْدٌ: دا جمع ده، ددې مفرد أَجْرَد راځی. وَهُوَالَّذِي لَاشَعَرَعَلَى جَسَدِهِ: هغه کس چه په بدن ئې هیڅ وینښته نه وی (ددې ضد أَشْعَرْ راځی). ② مُرْدٌ: دا جمع ده. ددې مفرد أَمْرَدَ راځی. وَهُوَغُلَامٌ لَا شَعَرَعَلَى ذَقَنِهِ: هغه هلک چه په زنه ئې وینښته نه وی یعنی ږیره ئې نه وی. ③ كُحْلَى: دا د فعلی نه په معنی د فعیل سره دې. أَيْ: مَكْحُولٌ: وَهُوَعَيْنٌ فِي أَجْفَانِهَا سَوَادٌ خِلْقَةً: دَ تورو سترګو والا ښائسته خوان مراد دې دَ چا سترګې چه خلقةً تورې وی. ④ لَا يَفْنَى: أَيْ لَايَذْهَبُ: نه به فناء کیږی یعنی نه به ختمیږی ⑤ لَا تَبْلَى: دا دَ بلی یبلی سمع نه دې، أَيْ: لَا تَخْلَقُ ثِيَابُهُ: دَ کپړو زړیدل اوشلیدل مراددی چه داسې به نه کیږی

**تسهیلات:**

**قوله** أَهْلُ الْجَنَّةِ جُرْدٌ مُرْدٌ كُحْلَى، [٣] لَا يَفْنَى شَبَابُهُمْ، وَلَا تَبْلَى ثِيَابُهُمْ:

**نوټ** د جرد اومرد وضاحت په حل اللغات کښې شوې دې اود حدیث د باقی جملو تشریح د مشکاة د حدیث نمبر (٥٣١) په تسهیل کښې ذکرشوې ده

**[٥٣٩] د جنتیانو د بدنونو صفات**

٥٣٩-()[٢٧] [١] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] " «يَدْخُلُ

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة ثیاب أهل الجنة (رقم-٢٥٣٩) واحمد فی المسند:٥/٢٤٣

[٢] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی سن أهل الجنة (رقم-٢٥٤٥) واحمد فی المسند:٥/٢٤٣

أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ جُرْدًا مُرْدًا [٣] مُكَحَّلِينَ أَبْنَاءَ ثَلَاثِينَ - أَوْ ثَلَاثٍ وَثَلَاثِينَ سَنَةً» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت معاذ بن جبل ﷛ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] جنتيان به په جنت کې داسې داخليږي چې د هغوئ بدن به د ويښتانو نه صاف وي بې ږيري ځلمي به وي [٣] د هغوئ سترګې به تکې توري وي او د ديرش يا دريو ديرش کاله عمر به يې وي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ددې حديث ګران لغات د حديث نمبر(٥٣٨) په مشکلولغاتو کښې حل شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَوْ ثَلَاثٍ وَثَلَاثِينَ:

**د جنتيانو عمر:** دا اودَ شك دَپاره دې. دَ راوی په دې کښې شك دې چه حضورپاك ٣٠ کاله فرمائيلي وو يا ٣٣ کاله ئی فرمائيلي وو. بهرحال کوم چه هم وی دا عمر دَ ډيرې ځوانئی عمر وی اودَ مخ دا نظاره ډيره ښکلې زړه راښکونکې وی

**[-٥٦٤٠] د سدرة المنتهٰی ذکر**

٥٣٠-()[٢٨] [١] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَتْ: [٢] «سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَذُكِرَ لَهُ سِدْرَةُ الْمُنْتَهَى قَالَ: [٣] يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّ الْفَنَنِ مِنْهَا مِائَةَ سَنَةٍ، [٤] أَوْ يَسْتَظِلُّ بِظِلِّهَا مِائَةُ رَاكِبٍ - شَكَّ الرَّاوِي - [٥] فِيهَا فَرَاشُ الذَّهَبِ، كَأَنَّ " ثَمَرَهَا الْقِلَالُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] او بی بی اسماء بنت ابي بکر ﷛ وايي [٢] هغه وخت چې د رسول الله ﷺ مخکې د سدرة المنتهٰی ذکر وشو نو ما د حضور ﷺ نه واوريدل [٣] چې سدرة المنتهٰی يوه داسې و نه ده چې يو تيز رفتار سوار د هغه د ښاخونو په سايه (سورې) کې به سل کاله پورې ځي [٤] يا دايي وفرمايل د هغه په سايه (سورې) کې په يو وخت سل سواره دَم اخلي [٥] په دې و نه باندې به د سرو زرو ملخان وي ګويا د دې ميوې د منګو برابر وي دا روايت ترمذي ﷫ نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** - ① الْفَنَن : دا مفرد دې ددې جمع أَفْنَانٌ راځی، أَيِ الْغُصْنُ: ښاخ او څانګې ته وائی. ② يَسْتَظِلُّ : سورې به حاصلوی (يعنی سوری ته به راتلې شی). ③ فَرَاشُ : مفرد دې، ددې جمع فَرَاشَة ده، وَهِيَ الَّتِي تَطِيرُ وَتَتَهَافَتُ فِي السِّرَاجِ: وړه شان مرغئ ده چه الوځی اوپه ډيوه کښې ځان راغورځوی پتنګ ورته وائی ④ الْقِلَالُ :دا جمع ده،ددې مفرد قُلَّة راځی، چاټئ يا منګی ته وائی.

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صفة ثمار أهل الجنة (رقم-٢٥٤١)

**تسهیلات: قوله: وَذُكِرَ لَهُ سِدْرَةُ الْمُنْتَهَى:**

**د سدرة څخه مراد:** دَ بیرې ونې ته وائي. په اووم آسمان باندې دَ عرش الهی بنی طرف ته داعظیم الشان ونه قائم ده دَدې پاڼې دَ هاتهی دَ غوږونو هومره لوئی دی اودَدې میوه دَ غټو منګو برابر ده

**د سدرة المنتهی وجه تسمیه:** دَ انتهاء په معنی کښې دې ځکه چه په دې ونه باندې دَ ښکته مخلوق انتهاء کیږی او دغه شان دَ پورته مخلوق انتهاء هم کیږی نه دَ پورته مخلوق ښکته راتلې شی اونه دَ ښکته مخلوق پورته تلې شی. دَ هرنظام هرعلم اوعمل او هرکار دَپاره دا ونه حد فاصل او انتهاء ده په دې وجه دا سدرة المنتهی ده.

**قوله: فِيهَا فَرَاشُ الذَّهَبِ:**

**دفراش الذهب په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دادَ فراشة جمع ده فاء باندې زبر دې پتنګ ته وائی مطلب دادې چه په دې ونه کښې به دَ سرو زرو پتنګان وی چه دَ سرو زرو په شان به پرقیږی

② کیدې شی چه دَ فراش الذهب نه مراد دَ فرښتو یوقسم وی دکومو وزرې چه به دَ سرو زرو په شان پرقیږی دَ هغې طرف ته اشاره ده دَ الله تعالی په دې فرمان کښې چه ﴿إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَىٰ﴾

**[۵۶۴۱] د حوض کوثر ذکر**

۵۳۱-()[۳] ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا الْكَوْثَرُ؟ ② قَالَ: " ذَاكَ نَهْرٌ أَعْطَانِيهِ اللَّهُ - يَعْنِي فِي الْجَنَّةِ - ③ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ، وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ، ④ فِيهِ طَيْرٌ أَعْنَاقُهَا كَأَعْنَاقِ الْجُزُرِ ⑤ " قَالَ عُمَرُ: إِنَّ هَذِهِ لَنَاعِمَةٌ، ⑥ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " أَكَلَتُهَا أَنْعَمُ مِنْهَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷺ وایي چې درسول الله ﷺ نه د کوثر په باره کې پوښتنه وشوه چې هغه څه شی دی؟ ② نو حضور ﷺ ورته وفرمایل چې هغه یونهر دی چې الله ﷻ ماته راکړی دی یعنی په جنت کې زما د پاره مخصوص دی ③ د دې نهر اوبه د پیئو نه زیاتي سپیني او دعسلو(شهد) نه زیاتي شیریني خوږي دي ④ په دې کې داسې پرندی مارغان دی چې د هغوئ څټونه د اوښانو د څټونو په شان اوږده دي ⑤ حضرت عمر ﷺ په دې اوریدو سره عرض وکړو چې هغه مارغان خو به ډیر چاغ او تندرست وي ⑥ حضور ﷺ ورته وفرمایل د هغه مارغانو خوړونکی یعنی جنتي خلق به د هغه مارغانو

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة طیر الجنة (رقم-۲۵۴۲) وابن ماجه فی کتاب الجنائز، باب ما جاء فیما یقال عند المریض إذا حضر (رقم-۱۴۵۰)

نه هم زيات توانا او خوشحال وي . (ترمذی)

**حل اللغات:-** ① الْكَوْثَرُ: په جنت كښې د يو خاص نهر نوم دې. ② أَحْلَى: ډيرې خوږې دی، ③ الْجُزُر: داجمع ده اودَدې مفرد جَزُور دې اوښ ته وائی. ④ لَنَاعِمَةٌ: يعنی دا مرغئ به چاقې ډکې او ډيرې مزيدارې وی ⑤ أَنْعَمُ: زيات طاقتور، ځرب او خوشحاله به وی

**تسهيلات:**

**د بعضې جملو وضاحت:**

① كَأَعْنَاقِ الْجُزُرِ: اعناق غاړو او ستونوته وائی يعنی دَ دغه مرغو ستونه به دَ اوښانو دَ ستونو په شان اوږده وی پخپله به هم دَ اوښانو په شان لوئی وی

② أَكَلَتُهَا: دَ دريواړو حروفو فتحات سره جمع ده دَدې مفرد آكل دې مطلب دادې چه دا مرغئی خو به سره دَدې چه چاقې ډكې اوښه مزيدارې وی مګر دَدوی خوړونکی جنتيان به دَدوی نه هم ښه صحت مند خوشحاله اوتازه وی

**اشكال:** په جنت كښې دومره چاقې مرغئی وی دغه شان دَ بيرې ميوه دَ منګی برابر اودَ انګورو دانې هم دَمنګو برابر وی نودَدنيا دا انسان به دا څنګه خوری او په دې كښې به څه خوند اومزه وی؟

**داشكال جواب:** دَهغه ځائی انسانان به هم ښه تازه تکړه او جسامت والا وی هغوی به په آسانئی سره دا انګور خوړلې شی. دَدې حديث نه دې جواب طرف ته اشاره كيدې شی

**[٥٦٤٢] جنتيا نوته هرهغه شی حاصليږي دكوم چه هغوئ خواهش وكړي**

٥٦٤٣-()[٣٠] ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ② «أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَلْ فِي الْجَنَّةِ مِنْ خَيْلٍ؟ ③ قَالَ: "إِنِ اللَّهُ أَدْخَلَكَ الْجَنَّةَ ④ فَلَا تَشَاءُ أَنْ تُحْمَلَ فِيهَا عَلَى فَرَسٍ مِنْ يَاقُوتَةٍ حَمْرَاءَ يَطِيرُ بِكَ فِي الْجَنَّةِ حَيْثُ شِئْتَ إِلَّا فَعَلْتَ"

**ترجمه:** ① او حضرت بريده ﷺ نه روايت دی ② يو سړي پوښتنه وكړه يا رسول الله! آيا په جنت كې به آسونه وي؟ ③ حضور ﷺ ورته وفرمايل كه الله ﷻ ته په جنت كې داخل كړي ④ او تا په آس د سورلۍ خواهش ښكاره كې نو ته به په جنت كې د سروياقوتو په آس سپور شی او ته چې په جنت كې چيرته غواړې چې هغه آس په برق رفتارۍ سره وزغلي نوهغه آس به برق رفتارۍ سره وزغلوي او ګويا الوتو سره به تابوځي

① وَسَأَلَهُ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، ② هَلْ فِي الْجَنَّةِ مِنْ إِبِلٍ؟ فَإِنِّي أُحِبُّ الْإِبِلَ. ③ قَالَ: فَلَمْ يَقُلْ لَهُ مَا قَالَ لِصَاحِبِهِ، ④ فَقَالَ: "إِنْ يُدْخِلْكَ اللَّهُ الْجَنَّةَ يَكُنْ لَكَ فِيهَا مَا اشْتَهَتْ نَفْسُكَ وَلَذَّتْ عَيْنُكَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صفة خيل الجنة (رقم-٢٥٤٤) واحمد فی المسند:٣٥٢/٥

**ترجمه:** [۱] دې نه وروسته حضور ﷺ نه يو بل سړي پوښتنه وکړه هغه اوويل يارسول الله [۲] آيا په جنت کښې به اوښان هم وي؟ ځکه چې اوښان ما خوښ دي [۳] حضرت بريده ؓ وايي حضور ﷺ هغه سړي ته هغه جواب ورنه کړو چې حضور ﷺ د هغه ملګري ته ورکړي وو يعنی څرنګه چې حضور ﷺ مخکښې سړي ته جواب ورکړی وو هغه شان يې دې سړي ته دا جواب ورنه کړو [۴] چې که الله ﷻ ته په جنت کښې داخل کړي او ته په اوښ باندې د سوريدو خواهش ښکاره کړې نو...... الخ بلکه بطريق قاعده کُليه حضور ﷺ وفرمايل که الله ﷻ ته په جنت کښې داخل کړي نو هغه به تاته هرهغه شی درکړي کوم چې ستا زړه غواړي او ستا سترګه يې خوښوي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① مَا اشْتَهَتْ نَفْسُكَ: کوم څه چه ستا زړه غواړی. ② وَلَذَّتْ عَيْنُكَ: او کوم څه چه ستا سترګه ئې خوښوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَا تَشَاءُ أَنْ تُحْمَلَ فِيهَا عَلَى فَرَسٍ.... فِي الْجَنَّةِ حَيْثُ شِئْتَ إِلَّا فَعَلْتَ"

**د فعلت په صيغه کښې دوه احتمالات:** ① دا معروف لوستلې شي په دې صورت کښې به معنی دا شي چه په جنت کښې خو به خپله مدعا ورکولې شي

② دا مجهول لوستلې شي. په دې صورت کښې به ترجمه داسې شي چه ستاسو د پاره به داسې کولې شي يعنی ستاسو دَ خواهش مطابق به هغه اس تيار درکولې شي

**قوله:** إِنْ يُدْخِلْكَ اللَّهُ الْجَنَّةَ يَكُنْ لَكَ فِيهَا مَا اشْتَهَتْ نَفْسُكَ وَلَذَّتْ عَيْنُكَ:

**په جنتي نعمتونو د سترګو يخوالي واقلل:** د دې جملې تائيد دَ قرآن کريم آيت ﴿وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنْفُسُ وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ﴾ نه هم کيږی چه په جنت کښې به جنتيان د کوم څيز خواهش کوی هغه به په جنت کښې مخې ته راځی په خله دَ غوښتو به هم ضرورت نه وی دغه شان دَ ميوو شوکولو دَپاره به جنتيانو ته هيڅ قسم تکليف نه وی بلکه هغه دَ ميوو ښاخونه به پخپله راټيټيږی او ميوې به ئې مخې ته وی. کما فی القرآن ﴿وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلَالُهَا وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا تَذْلِيلًا﴾

**[۵۳۳] په جنت کښې داسونو موجودوالی**

۵۳۳-()[۳۱] [۱] وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ [۲] «أَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَعْرَابِيٌّ، [۳] فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أُحِبُّ الْخَيْلَ، أَفِي الْجَنَّةِ خَيْلٌ؟ [۴] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "إِنْ أُدْخِلْتَ الْجَنَّةَ أُتِيتَ بِفَرَسٍ مِنْ يَاقُوتَةٍ لَهُ جَنَاحَانِ، [۵] فَحُمِلْتَ عَلَيْهِ، ثُمَّ طَارَ بِكَ حَيْثُ شِئْتَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو ايوب انصاري ؓ وايي [۲] د رسول الله ﷺ په خدمت کښې يو

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صفة خيل الجنة (رقم-۲۵۴۴) واحمد فی المسند:۳۴۷/۵

باندې (کليوال) راغې [۳] او عرض يې وکړو يارسول الله! څما اسونه ډير خوښ دي آيا په جنت کې به اسونه هم وي؟ [۴] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل که په جنت کې داخل شوې نو تاته به د ياقوتو يو اس درکول شي چې د هغه به دوه وزرونه وي [۵] بيا به ته په هغه اس سپور شې او ته چې چيرته تلل غواړې هغه آس به تا الوځولو سره بوځي دا روايت ترمذي نقل کړې دی

**حل اللغات:-** ① جَنَاحَانِ: د جناح تثنيه ده، وزرو ته وائي. ② فَحُمِلْتَ: أَيْ رَكِبْتَ: ور سور به شې ته.

[۱] وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ، وَأَبُو سَوْرَةَ الرَّاوِي يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، [۲] وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ يَقُولُ: أَبُو سَوْرَةَ هَذَا مُنْكَرُ الْحَدِيثِ، يَرْوِي مَنَاكِيرَ.

**ترجمه:** [۱] او ويلي يې دي چې د دې حديث اسناد قوي نه دي او ابو سوره چې د دې حديث راوي دی په څه سبب په فنِ حديث کې يا اسناد حديث کې ضعيف شميرلی شي [۲] او ما د حضرت محمد بن اسماعيل بخاري رحمه الله نه دا اوريدلي دي چې ابو سوره منکر الحديث دی هغه منکر حديثونه روايت کوي.

**حل اللغات:-** ③ طَارَ: وابه لوځي.

**تسهيلات: نوټ:** د دې حديث د مضمون وضاحت د مشکاة د حديث نمبر(۵۳۲) په تسهيل کښې ذکر شوې دې.

## [۵٦٤٤] جنتيانو کې د اُمت محمديه تناسب

۵۳۳-()[۳۳] [۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «أَهْلُ الْجَنَّةِ عِشْرُونَ وَمِائَةُ صَفٍّ، [۳] ثَمَانُونَ مِنْهَا مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ، [۴] وَأَرْبَعُونَ مِنْ سَائِرِ الْأُمَمِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ)

**ترجمه:** [۱] او حضرت بريده رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د جنتيانو به يو سل شل صفونه وي [۳] په هغه کې به اتيا صفونه د دې امت يعنی مسلمانانو وي [۴] او څلويښت صفونه به د نورو امتونو د خلقو وي دا روايت ترمذي رحمه الله او دارمي او بيهقي په کتاب البعث والنشور کې نقل کړې دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَهْلُ الْجَنَّةِ عِشْرُونَ وَمِائَةُ صَفٍّ:

**تعارض:** په دې حديث کښې د اهل محشر د جنتيانو ۱۲۰ صفتونو ذکر دې په کوم کښې چه د دې امت د ۸۰ صفتونو بيان دې چه دوچند زيات دی. په بل حديث کښې د نصف

[۱] اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صف أهل الجنة (رقم-۲۵۴۶) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب صفة أمة محمد صلى الله عليه وسلم (رقم-۴۲۸۹) واحمد في المسند:۳۵۵/۵

اهل جنت ذکر دې دا واضح تعارض دې.

**داشکال جواب:** دَ وحی په ذریعه دَ یوتناسب ذکر وو بیا دَالله تعالی په نوره مهربانئی سره اضافه اوشوه نودَ نصف نه زیات شو. اوس اعتراض پاتې نه شو

**[٥٦٤٥]د جنت د هغه دروازې وسعت چه په هغه به اهل اسلام داخليږي**

٥٦٣٥-()[٣٣] [١]وَعَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]" «بَابُ أُمَّتِي الَّذِينَ يَدْخُلُونَ مِنْهُ الْجَنَّةَ عَرْضُهُ مَسِيرَةُ الرَّاكِبِ الْمُجَوِّدِ ثَلَاثًا، [٣]ثُمَّ إِنَّهُمْ لَيُضْغَطُونَ عَلَيْهِ، [٤]حَتَّى تَكَادُ مَنَاكِبُهُمْ تَزُولُ» ". [٥]رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ ضَعِيفٌ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ فَلَمْ يَعْرِفْهُ، وَقَالَ: يَخْلُدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ يَرْوِي الْمَنَاكِيرَ.

**ترجمه:** [١]او حضرت سالم تابعي رحمه الله خپل پلار محترم حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه نقل کوي هغه بیان وکړو چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢]د جنت په کومه دروازه چې به څما امت داخلیږي د هغه پلنوالي د هغه سورو د منډو دمسافت په قدر به وي چې آس تیز زغلول نبه پیژني [٣]بیا به هم هغه خلق یعنی څما د امت جنتیان به په هغه دروازه داخلیدو په وخت ډیره تنګي محسوسوي [٤]دې پورې چې د هغوئ اوږې به یوبل سره جنګیږي یعنی باوجود د دې چې هغه دروازه به دومره پلنه وي خوهرکله چې اهلِ اسلام هجوم درهجوم ګڼه ګوڼه کې دننه داخلیږي نو هغه دروازه به هم تنګه معلومیږي او هغه خلق به د یوبل اوږو سره جنګیږي په ډیر مشکل سره به تر دروازې تیریږي [٥]دا روایت ترمذي رحمه الله نقل کړی دی او ویلي یې دي دا حدیث ضعیف دی او ما د حضرت محمد بن اسماعیل بخاري رحمه الله نه اوریدلي دي چې د دې حدیث راوي منکر روایتونه بیانوي

**حل اللغات:**- ① الرَّاكِبِ الْمُجَوِّدِ: دا د تجوید نه اسم فاعل دې، وَهُوَ الْمُحْسِنُ: یعنی هغه شهسوار چه هغه د اس زغلولو کښې ماهر وی. ② لَيُضْغَطُونَ: أَيْ: لَيُعْصَرُونَ وَيُضَيَّقُونَ: تنګی به محسوس کړی رش به جوړ شی③ تَكَادُ: أَيْ: تَقْرُبُ: نزدې ده ④ مَنَاكِبُهُمْ: د منکب جمع ده. اوګو ته وائی ⑤ تَزُولُ: أَيْ تَنْفَطِعُ: یوبل سره لګیدلو ته وائی (یعنی د ډیرې ګڼې او رش په وجه به د یوبل سره لګی)

**تسهیلات:**

**قوله بَابُ أُمَّتِي الَّذِينَ يَدْخُلُونَ مِنْهُ الْجَنَّةَ عَرْضُهُ مَسِيرَةُ الرَّاكِبِ الْمُجَوِّدِ ثَلَاثًا:**

**د ثلاثا څخه مراد:** دلته دَ دریو نه دَ دریو کالو مسافت مراد دې،

**اشکال:** په حدیث الباب کښې د دواړو چوکاټونو په مینځ کښې د فاصلې مقدار درې کاله خودلې شوی دی او په یوبل روایت کښې ددې فاصلې مقدارڅلویښت کاله خودلې شوې

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صفة أبواب الجنة (رقم-٢٥٤٨)

دي دا ښکاره تعارض دي

**د اشکال دوه جوابونه:** ① د درې ښخه کثرت مراد دي معين عدد مراد نه دي

② اول حضورپاك ته دَ وحي په ذريعه دَ دغه دروازو پلنوالي کم خودلې شوې وی کوم چه حضورپاك دَ دريو کالو دَ مسافت په فاصلې سره تعبيرکړو او بيا روستو دَ زيات نه زيات پلنوالی علم حضورپاك ته ورکړې شو کوم چه حضورپاك څلويښتو کالو سره تعبيرکړو

**[٥٦٤٦] د جنت يو بازار**

٥٦٤٥-()[٣٣] ① وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَسُوقًا مَا فِيهَا شِرًى وَلَا بَيْعٌ ③ إِلَّا الصُّوَرَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ، ④ فَإِذَا اشْتَهَى الرَّجُلُ صُورَةً دَخَلَ فِيهَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت علي ﷛ وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل ② په جنت کې يو بازار دی چې په هغه کې به خريد وفروخت اخستل او خرڅول نه وي ③ بلکه هلته به د سړو او ښځو قسم قسم حسين وجميل صورتونه په نظر راځي ④ څوك چې که سړی وي يا ښځه هلته کوم صورت خوښ کړي په هغه کې به ځاي شي او د هغه صورت به شي دا حديث ترمذي ﷫ نقل کړی دی او ويلې يې دی چې دا حديث غريب دی

**حل اللغات:** - ① سُوقًا: أَيْ: مُجْتَمَعًا: بازار (د خلقو د راجمع کيدو يو ځاې به وی) ② الصُّوَرَ: أَيِ التَّمَاثِيلَ الْمُخْتَلِفَةَ: تصويران به وی. قسما قسم شکلونه به وی.

**تسهيلات:**

**قوله فَإِذَا اشْتَهَى الرَّجُلُ صُورَةً دَخَلَ فِيهَا:**

**د جنتيانو په مختلفو صورتونو کښې مشتکل کيدل:** دَ دې په شان حديث مخکښې تيرشوې دې هلته صرف دَ سړو دَ صورتونو ذکر وو او دلته دَ سړو او ښځو دواړو دَ صورتونو ذکر دې مقصود د دواړو يو دې چه دَ جنتيانو ښائست زياتولودَ پاره به دا بازار قائمولې شی

**[٥٦٤٧] ديدار الهي او د جنت بازار**

٥٦٤٦-()[٣٥] ① وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّهُ لَقِيَ أَبَا هُرَيْرَةَ، ② فَقَالَ لَهُ أَبُو هُرَيْرَةَ: أَسْأَلُ اللَّهَ أَنْ يَجْمَعَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ فِي سُوقِ الْجَنَّةِ. ③ فَقَالَ سَعِيدٌ: أَفِيهَا سُوقٌ؟ ④ قَالَ: نَعَمْ، أَخْبَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "

[1] ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في سوق الجنة (رقم-٢٥٥٠) واحمد في المسند: ١٥٦/١

[2] ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في سوق الجنة (رقم-٢٥٤٩) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب صفة الجنة (رقم-٤٣٣١)

**ترجمه:** [۱] او حضرت سعيد بن مسيب تابعي رحمه الله نه روايت دی يوه ورځ په بازار کې حضرت ابوهريره رضي الله عنه سره د هغه ملاقات وشو [۲] نو حضرت ابوهريره رضي الله عنه او وويل زه د الله تعالی نه دعا غوارم چې څرنګه نن د مديني بازار کې زمونږ دواړو ملاقات شوي دي دغه شان د جنت بازار کې هم مونږ دواړه يو ځاي کړي [۳] حضرت سعيد رحمه الله په دي اوريدو سره او وويل آيا په جنت کې به بازار وي حالانکه بازار خو د خريد وفروخت ضرورت پوره کولو د پاره وي او ښکاره ده چې په جنت کې دا ضرورت نه پيښيږي [۴] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وفرمايل هو په جنت کې به بازار هم وي خو د هغه ځاي بازار به د دنياوي بازار په شان ضرورت پوره کولو د پاره نه وي ماته رسول الله ﷺ خو دلي وو

> [۱] «إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ إِذَا دَخَلُوهَا نَزَلُوا فِيهَا بِفَضْلِ أَعْمَالِهِمْ، [۲] ثُمَّ يُؤْذَنُ لَهُمْ فِي مِقْدَارِ يَوْمِ الْجُمُعَةِ مِنْ أَيَّامِ الدُّنْيَا، فَيَزُورُونَ رَبَّهُمْ، [۳] وَيُبْرِزُ لَهُمْ عَرْشَهُ، وَيَتَبَدَّى لَهُمْ فِي رَوْضَةٍ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ، [۴] تُوضَعُ لَهُمْ مَنَابِرُ مِنْ نُورٍ، وَمَنَابِرُ مِنْ لُؤْلُؤٍ، وَمَنَابِرُ مِنْ يَاقُوتٍ، وَمَنَابِرُ مِنْ زَبَرْجَدٍ، وَمَنَابِرُ مِنْ ذَهَبٍ، [۵] وَمَنَابِرُ مِنْ فِضَّةٍ، وَيَجْلِسُ أَدْنَاهُمْ - وَمَا فِيهِمْ دَنِيءٌ - عَلَى كُثْبَانِ الْمِسْكِ وَالْكَافُورِ، [٦] مَا يَرَوْنَ أَنَّ أَصْحَابَ الْكَرَاسِيِّ بِأَفْضَلَ مِنْهُمْ مَجْلِسًا".

**ترجمه:** [۱] هر کله چې جنتي خلق په جنت کې داخل شي نو د خپلو خپلو اعمالو د فضيلت او برترۍ د لحاظ سره د جنت منزلونو او درجو کې به داخليږي يعنی د چا اعمال چې څومره زيات او اعلی وي به هغه اعتبار سره به هغه ته بلند تر او ډيرښه مکانات او منازل حاصليږي [۲] بيا هغوئ ته به د دنياوي ورځو د اعتبار نه د جمعي په ورځ اجازت ورکول شي او هغوئ تول به په هغه ورځ د خپل پروردګار زيارت کوي [۳] پروردګار به د هغوئ مخکې خپل عرش ظاهر کړي او جنتيانو ته به د خپل ديدار کولو د پاره د جنت يو لوی باغ کې جلوه وفرمايي [۴] نو د پروردګار زيارت له به راتلونکو جنتيانو د پاره په هغه باغ کې د مختلفو درجاتو منبر يعنی د نور منبر ، د ملغلرو منبر د ياقوتو منبر د سوني منبر او د چاندي منبر کيښودل شي چې په هغه به هغه جنتيان د خپلو اعمالو او افعالو او مراتبو او درجاتو د فرق په اعتبار سره کيني [۵] چې کوم جنتي د کومي درجي او مرتبي وي د هغه مطابق هغه منبرونو نه يو منبر به هغه د پاره مخصوص وي او هغه جنتيانو کې چې کوم جنتي د ادنی مرتبي او درجي وي يعنی صرف د مرتبي د اعتبار نه ادنی نه چې په هغوئ کې به څوك معمولي او ذليل وي هغه به د مشکو او کافورو په غونډيو کيني څرنګه چې په دنيا کې هم قاعده ده چې عامو اجتماعاتو کې د اوچت حيثيت خلق کرسيو او اوچتو ځايونو باندې کيني او کم حيثيته خلق په زمکه او فرش باندې کيني [٦] ليکن غونډيو باندې ناست خلق به دا نه محسوسوي چې منبر او کرسو باندې ناست خلق د ځاي او نشستګاه د اعتبار نه د هغوئ نه برتر او افضل دی

**حل اللغات:** - ① نَزَلُوا: داخليږی به ② فَيَزُورُونَ: زيارت به کوی (د خپل رب). ③ يُبْرِزُ: أي: يُظْهِرُ: ښکاره

به كړي (عرش)، ⑦ تَتَبَدَّى: أَيْ: يَظْهَرُ وَيَتَجَلَّى: راښكاره به شي، جلوه به اوكړي. ⑧ دَنِيءٌ: د كمې مرتبې والا، ⑨ كُثْبَانٌ: دا د كثيب جمع ده، غونډئ او ډهيرى ته وائي (كوم چه يو ځاى ته راجمع كړې شوى وى) ⑥ الْكَافُورُ: هُوَ نَبْتٌ طَيِّبٌ: دا يوه خوشبوداره ونې نه په خاص طريقې سره جوړيږى ⑧ الْكَرَاسِيّ: أَيْ: الْمَنَابِرُ: دكرسئ جمع ده، يعنى كرسى ګانې اومنبرونه.

① قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، وَهَلْ نَرَى رَبَّنَا؟ ② قَالَ: نَعَمْ، هَلْ تَتَمَارَوْنَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ؟ ③ قُلْنَا: لَا، قَالَ: "كَذٰلِكَ لَا تَتَمَارَوْنَ فِي رُؤْيَةِ رَبِّكُمْ، ④ وَلَا يَبْقَى فِي ذٰلِكَ الْمَجْلِسِ رَجُلٌ إِلَّا حَاضَرَهُ اللّٰهُ مُحَاضَرَةً ⑤ حَتّٰى يَقُولَ لِلرَّجُلِ مِنْهُمْ: يَا فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ، أَتَذْكُرُ يَوْمَ قُلْتَ كَذَا وَكَذَا؟ ⑥ فَيُذَكِّرُهُ بِبَعْضِ غَدَرَاتِهِ فِي الدُّنْيَا. ⑦ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ أَفَلَمْ تَغْفِرْ لِي؟" ⑧ فَيَقُولُ: بَلَى، فَبِسَعَةِ مَغْفِرَتِي بَلَغْتَ مَنْزِلَتَكَ هٰذِهِ.

ترجمه: ① حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي ما عرض وكړو يارسول الله! آيا مونږ به په هغه ورځ خپل پروردګار وينو؟ ② حضور ﷺ وفرمايل هو يقينًا آيا تاسو د ورځې نمر او د رڼا په شپه كې د شپې سپوږمۍ ليدو كې څه شك كوئ؟ ③ مونږ عرض وكړو هيڅ كله نه نو وي فرمايل دغه شان به تاسو ته په هغه ورځ د خپل پروردګار په ليدو كې څه شبهه نه وي ④ او د ديدار الهي هغه مجلس كې به هيڅ سړى داسې باقي پاتې نشي چې هغه نه پروردګار تول حجابات اوچتولو سره براه راست ورسره هم كلام نشي ⑤ د دي پورې چې الله تعالی به حاضرينو كې يويو سړى مخاطب كولو سره ورته وفرمايي اې فلان ابن فلان! آيا تاته هغه ورځ ياده ده كله چې تا داسې ويلي وو يعنى خپلې ژبې نه دي داسې الفاظ ويستلي وو چې شرعًا ناجائز وو ⑥ هغه سړي به دې خبرې اوريدو سره توقف وكړي او د خپل كړي ګناهونو اظهار كې به تأمل وكړي نو پروردګار به هغه ته څه هغه عهد شكنۍ وريادوه كړي چې هغه په دنيا كې كړي وه يعنى هغه ته به د هغه په دنيا كې كړي ګناهونه ورياد كړي چې د هغه په كولو كې عهد ربوبيت ماتول لازميږي ⑦ بيا به هغه سړى عرض وكړي اې خما پروردګاره! آيا تا خما هغه ګناهونه بخښلي نه دي يعنى خما په جنت كې داخليدل آيا د دې خبرې علامه نه ده چې ما كوم ګناهونه كړي وه تا هغه بخښلي دي؟ ⑧ الله تعالی به ورته وفرمايي بيشكه ما ستا هغه ګناهونه بخښلي دي او ته نن خما د وسعت فضل په بركت دې مرتبې ته رسيدلى يې

حل اللغات:- ⑨ هَلْ تَتَمَارَوْنَ: أَيْ: هَلْ تَشُكُّونَ آيا تاسو څه شک کوئ. ⑩ غَدَرَاتِهِ: د غَدْرَةٌ جمع ده، وَهُوَ تَرْكُ الْوَفَاءِ: بې وفايې ته وائي يعنى عهد نه پوره كول خودلته ترې نافرمانى كول مراد ده

① فَبَيْنَا هُمْ عَلٰى ذٰلِكَ غَشِيَتْهُمْ سَحَابَةٌ مِنْ فَوْقِهِمْ، ② فَأَمْطَرَتْ عَلَيْهِمْ طِيبًا لَمْ يَجِدُوا مِثْلَ رِيحِهِ شَيْئًا قَطُّ، ③ وَيَقُولُ رَبُّنَا: قُومُوا إِلٰى مَا أَعْدَدْتُ لَكُمْ مِنَ الْكَرَامَةِ ④ فَخُذُوا مَا اشْتَهَيْتُمْ، ⑤ فَنَأْتِي سُوقًا قَدْ حَفَّتْ بِهِ الْمَلَائِكَةُ، ⑥ فِيهَا مَا لَمْ تَنْظُرِ الْعُيُونُ إِلٰى مِثْلِهِ، وَلَمْ تَسْمَعِ الْآذَانُ، وَلَمْ يَخْطُرْ عَلَى الْقُلُوبِ، ⑦ فَيُحْمَلُ لَنَا مَا اشْتَهَيْنَا، لَيْسَ يُبَاعُ فِيهَا وَلَا يُشْتَرٰى،

**ترجمه:** [۱] بیا به هغه خلق په هغه حالت او هغه ځاي باندې وي چې یوه وریځ به راتلو سره په هغوئ وغورېږي [۲] او په هغوئ به داسې خوشبو ووروي چې هغوئ به هغه شان خوشبو هیڅ کله په څه شي کې نه وي پیدا کړي [۳] دې نه وروسته به زمونږ پروردګار وفرمایي خلقو! لاړشئ او هغه شي طرف ته راشئ چې مونږ د عظمت او بزرګۍ له قسمه ستاسو دپاره تیار کړي دی [۴] او تاسو د خپلي خوښي او خواهش مطابق چې څه غواړئ واخلئ [۵] حضور ﷺ وفرمایل په دې اوریدو سره به جنتیان خلق هغه بازار ته ورشي چې فرشتې به ترې نه چاپیره وي [۶] په هغه بازار کې به داسې داسې څیزونه موجود وي چې هغه شان څیزونه به نه یوې سترګې لیدلي وي نه به یو غوږ اوریدلي وي او نه به د چا په زړه کې د هغه تصور راغلی وي [۷] بیا به هغه بازار نه اوچتولو سره مونږ ته هغه څیزونه راکول شي د کوم چې مونږ خواهش کوو حالانکه په هغه بازار کې به د خرید وفروخت په شان هیڅ معامله نه وي بلکه هغه بازار به دراصل جنتیانو ته د هغوئ د خوښې شی ورکولو مرکز وي

**حل اللغات:** -① غَشِيَتْهُمْ: أَيْ: غَطَّتْهُمْ: چه دوی به پټ کړی یعني په دوی به را خوره شی. ② سَحَابَةٌ: وریځ. ③ حَفَّتْ: أَيْ: أَحَاطَتْ: چاپیره به وی، ④ لَمْ يَخْطُرْ: أَيْ: لَمْ يَمُرَّ: نه راځی، نه تیرېږی (دهغې څه ماهیت اوتصور).

[۱] وَفِي ذٰلِكَ السُّوقِ يَلْقَى أَهْلُ الْجَنَّةِ بَعْضُهُمْ بَعْضًا". [۲] قَالَ: "فَيُقْبِلُ الرَّجُلُ ذُو الْمَنْزِلَةِ الْمُرْتَفِعَةِ، فَيَلْقَى مَنْ هُوَ دُونَهُ - [۳] وَمَا فِيهِمْ دَنِيءٌ - [۴] فَيَرُوعُهُ مَا يَرَى عَلَيْهِ مِنَ اللِّبَاسِ، [۵] فَمَا يَنْقَضِي آخِرُ حَدِيثِهِ حَتَّى يَتَخَيَّلَ عَلَيْهِ مَا هُوَ أَحْسَنُ فِيهِ، وَذٰلِكَ أَنَّهُ لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَحْزَنَ فِيهَا،

**ترجمه:** [۱] او هغه بازار کې به ټول جنتي خلق په خپلو کې یوبل سره ملاقات کوي [۲] حضور ﷺ وفرمایل په هغه بازار کې به خپلو کې د ملاقاتونو په وخت به یوبلند مرتبه سړی یوداسې سړي طرف ته متوجه شي او هغه سره به ملاقات کوي چې مرتبه کې به د هغه نه کمتر وي [۳] لیکن په جنتیانو کې به د چا اعلی کیدل او د چا کمتر کیدل صرف د مرتبې او درجې د اعتبار نه وي دانه چې څوك به معمولي او ذلیل خیال کولی شي ګویا ذاتي اعتبار نه خو ټول جنتیان به بلند حیثیت او بلند عزت وي خو په دنیا کې د اختیارونکي اعمال او افعال له نسبت نه څه خلق به د اعلی مرتبې وي او څه خلق به د هغوئ نه د کمې مرتبې [۴] بهرحال هغه بلند مرتبه سړي ته به هغه لباس خوښ نشی کوم چې د کمتر درجې هغه سړي اغوستی ووینې [۵] او د هغه دواړو سلسله ګفتګو یا د هغوئ د خیالاتو سلسله به لاختمه شوې نه وي چې هغه بلند مرتبه سړی به محسوس کړي چې ځما د مخاطب لباس خو ځما د لباس نه هم ښه دی او د دې کمتر درجې سړي جسم باندې به د اعلی لباس ښکاره کیدل به ځکه وي چې په جنت کې به هیچا ته د غمجن کیدو موقع نشي ورکولی

**حل اللغات:** -⑮ فَيُقْبِلُ: دا د إقْبَالِ نه دي، أَيْ: فَيَجِيءُ وَيَتَوَجَّهُ: رابه شي، متوجه به شي. ⑯ ذُو الْمَنْزِلَةِ الْمُرْتَفِعَةِ: د اوچتې مرتبې والا جنتى، ⑰ فَيَرُوعُهُ: أَيْ: يُعْجِبُ الرَّجُلَ: نوپه دغه ادنى جنتى به تعجب اوكړي، ⑱ يَتَخَيَّلَ: أَيْ: يَتَصَوَّرَ: خيال او تصور به كوي، ⑲ يَحْزَنَ: أَيْ: يَغْتَمَّ: چه خفه او غمجن شي.

[١] ثُمَّ نَنْصَرِفُ إِلَى مَنَازِلِنَا، [٢] فَيَتَلَقَّانَا أَزْوَاجُنَا، فَيَقُلْنَ: مَرْحَبًا وَأَهْلًا، [٣] لَقَدْ جِئْتَ وَإِنَّ بِكَ مِنَ الْجَمَالِ أَفْضَلَ مِمَّا فَارَقْتَنَا عَلَيْهِ، [٤] فَيَقُولُ: إِنَّا جَالَسْنَا الْيَوْمَ رَبَّنَا الْجَبَّارَ، [٥] وَيَحِقُّنَا أَنْ نَنْقَلِبَ بِمِثْلِ مَا انْقَلَبْنَا» ". [٦] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] حضور ﷺ وفرمايل دي نه وروسته به مونږ تول جنتيان خپل خپل محلاتو او مكاناتو طرف ته واپس راشو [٢] او هلته به زمونږ ښځې يعنى د دنيا ښځې او د جنت حوري زمونږ سره يوځاى شي نو مرحبا پخير راغلئ پخير راغلى ويلو سره به زمونږ استقبال كوي [٣] او هره ښځه به خپل خاوند ته وايي چې ته په داسې حال كې واپس راغلى يې چې دا وخت ستا حسن وجمال د هغه حسن وجمال نه څه ډيرزيات دى چې زمونږ نه د تلو په وخت كې په تاكي وو [٤] نو مونږ به خپلو بيبيانو ته وايو چې نن مونږ دخپل پروردګار سره د هم نشينئ عزت حاصل كړى دى چې د جسم وبدن او د حسن وجمال هره كمي ښه پوره كونكې دې [٥] نو مونږ خپل دي شان سره د واپس راتلو لائق يو كوم شان سره چې مونږ راغلي يو ځكه چې كوم سړي ته د هغه ذات هم نشيني حاصله شي چې تول ترحسن وجمال د هغه د نور پريوتو عكس دى نو هغه سړى به زيات نه زيات ښيا مومي [٦] دا روايت ترمذي او ابن ماجه روايت كړى دى او ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دى

**حل اللغات:** -⑳ مَرْحَبًا وَأَهْلًا: پخير راغلى دې اوخپل د كور خلقو ته راغلې ㉑ يَحِقُّنَا: مونږ لائق يو. مونږ سره مناسب دى.

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث كښې مشكل لغات دى دهغې وضاحت د حل اللغات په عنوان سره شوې دې اوباقى مضمون آسان دې د تشريح څه ضرورت نشته

**[٥٦٤٨] تقسيم په جنتيا نوكي د اولاد خواهش**

٥٣٣٨-()[٣٢] [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ الَّذِي لَهُ ثَمَانُونَ أَلْفَ خَادِمٍ [٣] وَاثْنَتَانِ وَسَبْعُونَ زَوْجَةً، [٤] وَتُنْصَبُ لَهُ قُبَّةٌ مِنْ لُؤْلُؤٍ وَزَبَرْجَدٍ وَيَاقُوتٍ [٥] كَمَا بَيْنَ الْجَابِيَةِ إِلَى صَنْعَاءَ» ".

---

[١] ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ما لأدنى أهل الجنة من الكرامة (رقم-٢٥٦٢) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب صفة الجنة (رقم-٤٣٣٨) واحمد في المسند: وابوداود في/٧٦

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو سعيد رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په جنتيانو کې چې د ټولو نه کمه مرتبه کوم سړی وي د هغه به اتيا زره خادمان [۳] او دوو اويا ۷۲ ښځې وي چې په هغه کې به دوه ښځې د دنيا د ښځو نه او اويا ښځې د جنت د حورو نه وي [۴] او دده د پاره به يوه خيمه ودرول شي چې هغه به د ملغلري زبرجد و اوياقوتو څخه جوړه وي يا داچې دې خيزونو نه به مرصع او مزين وي

**حل اللغات:** - ① أَدْنَى: کمې مرتبې والا، ② تُنْصَبُ: أي: تُضْرَبُ: اودرولې به شي، جوړولې به شي. ③ قُبَّةٌ: خيمه، ④ الجَابِيَة: وَهِيَ مَدِينَةٌ بِالشَّامِ: په شام کښې د يو ښار نوم دی، ⑤ صَنْعَاءَ: وَهِيَ بَلْدَةٌ بِاليَمَنِ: په يمن کښې ديو کلي نوم دی.

[۱] وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، قَالَ: [۲] "«وَمَنْ مَاتَ مِنْ أَهْلِ الجَنَّةِ مِنْ صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ [۳] يُرَدُّونَ بَنِي ثَلَاثِينَ فِي الجَنَّةِ، [۴] لَا يَزِيدُونَ عَلَيْهَا أَبَدًا، وَكَذَلِكَ أَهْلُ النَّارِ»".

**ترجمه:** [۱] او په دې اسنادو سره حضرت ابو سعيد رضي الله عنه نه نقل کيدونکې يو روايت کې دی چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] هغه خلق چې هغوئ په جنت کې داخل شي په دنيا کې خواه لږ عمر کې مړ شي يا ډير عمر کې [۳] په جنت کې به د ديرش ديرش کالو کيدو سره داخليږي [۴] او هغوئ به هيڅ کله دې عمر نه نه زياتيږي دا معامله به د دوزخيانو هم وي

[۱] وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، قَالَ: [۲] "«إِنَّ عَلَيْهِمُ التِّيجَانَ، [۳] أَدْنَى لُؤْلُؤَةٍ لَتُضِيءُ مَا بَيْنَ المَشْرِقِ وَالمَغْرِبِ»".

**ترجمه:** [۱] او دې اسنادو سره په يوه روايت کې دادي [۲] چې حضور ﷺ وفرمايل د جنتيانو په سرونو چې به کوم تاج وي [۳] د هغه د ټولو نه معمولي ملغلره به داسې وي چې مشرق نه مغرب پورې به روښانه او منور کړي

**حل اللغات:** - ⑥ التِّيجَانَ: د تَاج جمع ده، تاج ته وائي (کوم چه به بادشاهانو به په سر کولو).

[۱] وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، قَالَ: [۲] "«المُؤْمِنُ إِذَا اشْتَهَى الوَلَدَ فِي الجَنَّةِ [۳] كَانَ حَمْلُهُ وَوَضْعُهُ وَسِنُّهُ فِي سَاعَةٍ كَمَا يَشْتَهِي»"

**ترجمه:** [۱] او دې اسنادو سره په يوه روايت کې دادی چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] که بالفرض يو مسلمان په جنت کې د اولاد خواهشمند شي [۳] نو د هغه خواهش به داسې پوره شي چې د بچي حمل کيدل د هغه بيا موميدل د هغه انتهائي درجه عمر يعنی ديرش کاله ته رسيدل هرڅه به يو ساعت کې و شي

[۱] وَقَالَ إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ فِي هَذَا الحَدِيثِ: [۲] «إِذَا اشْتَهَى المُؤْمِنُ فِي الجَنَّةِ الوَلَدَ كَانَ فِي سَاعَةٍ، وَلَكِنْ لَا يَشْتَهِي». [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ الرَّابِعَةَ، وَالدَّارِمِيُّ الأَخِيرَةَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت اسحاق بن ابراهيم رحمه الله د دې آخري روايت په باره کې وايي [۲] که يو مومن په جنت کې د اولاد خواهشمند شي نو د هغه خواهش به يو ساعت کې پوره شي

ليکن حقيقت دادى چې داسې خواهش به هيڅوك نه کوي ۳دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی ابن ماجه څلورم روايت نقل کړی دی او دارمي صرف دا آخري حصه چې دا سحق نه منقول ده نقل کړي ده.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَمَنْ مَاتَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ مِنْ صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ ۳ يُرَدُّونَ بَنِي ثَلَاثِينَ فِي الْجَنَّةِ.:

**په تير کاله عمر مقرر کولو کښې حکمت:** دَ جنتيانو عمرونه به ديرش يا درې ديرش کاله وی. دغه شان دَ دوزخيانو عمرونه به هم ديرش يا درې ديرش کاله وی. دَ دوی ديرش کاله عمر مقرر کول کيدې شی چه دَدې وجې وی چه کوم دَ آرام او راحت مستحق وی هغوی ته پوره راحت او خوشحالی نصيب شی او څوك چه دَ عذاب مستحق وی هغوی ته پوره عذاب ملاؤ شی. لهذا څنګه چه به جنتيان خپل دې عمر سره آرام او راحت سره پوره خوشحالی اوچتوی دغه به شان دوزخيان دارالبوار کښې هميشه هميشه خپل ټول عمر سره دَ عذاب اودَ سختنی پورا تکليف زغمی او عذاب به څکی

**[۵۶۴۹] د حورو سندري**

۵۶۳۹-()[۲۷] ۱ وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَمُجْتَمَعًا لِلْحُورِ الْعِينِ، ۳ يَرْفَعْنَ بِأَصْوَاتٍ لَمْ تَسْمَعِ الْخَلَائِقُ مِثْلَهَا، ۴ يَقُلْنَ: نَحْنُ الْخَالِدَاتُ فَلَا نَبِيدُ، وَنَحْنُ النَّاعِمَاتُ فَلَا نَبْأَسُ، ۵ وَنَحْنُ الرَّاضِيَاتُ فَلَا نَسْخَطُ، ۶ طُوبَى لِمَنْ كَانَ لَنَا وَكُنَّا لَهُ»". (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه:** ۱ او حضرت علي ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ په جنت کې به د حور عين د اجتماع يوځاي وي چيرته چې به حوري سير وتفريح او يوي بلي سره يوځاي کيدو د پاره جمع کيږي ۳ او هلته به په اوچت اواز سره سندري وايي د هغوئ اوازونه به دومره دلکش او حسين وي چې مخلوقاتو کې به هيڅ کله داسې اواز چا نه وي اوريدلی هغه ۴ حوري به داسې سندري وايي مونږ ته هميشه ژوند حاصل دی مونږ ته به هيڅ کله مرګ نه راځي مونږ عيش وآرام سره اوسيدونکي يو مونږ به هيڅ کله سختي او پريشاني نه وينو ۵ مونږ د خپل پروردګار يا خپلو خاوندانو نه راضي او خوشحاله يو مونږ هيڅ کله ناراضه کيږو نه ۶ هرهغه سړي د پاره مبارك بادي ده چې په جنت کې زمونږ د پاره دی او مونږ دهغه د پاره يو. (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① لَمُجْتَمَعًا: أَيْ: مَوْضِعًا لِلِاجْتِمَاعِ: د را يوځاې کيدو او يوبل سره د ملاويدو ځاي. ② الْخَالِدَاتُ: أَيِ الدَّائِمَاتُ: هميشه اوسيدونکی. ③ فَلَا نَبِيدُ: د بَادَ نه دې په معنى د هَلَكَ سره. أَيْ: فَلَا نَفْنَى:

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کلام الحور العين (رقم-۲۵۶۴) واحمد فی المسند:۱/۱۵۶

مونږ به كله هم نه فنا كيږو، ④ النَّاعِمَاتُ: أَيِ الْمُتَنَعِّمَاتُ: مونږ په نعمتونو كښې اوپه عيش وعشرت سره اوسيدونكى يو. ⑤ فَلَا نَبْأَسُ: أَيْ: فَلَا نَصِيرُ فَقِيرَاتٍ وَمُحْتَاجَاتٍ: يعنى مونږ به هيڅ كله فقيران او محتاجان كيږو نه، اونه به په مونږه څه لوږه تنده راځى ⑥ الرَّاضِيَاتُ: أَيْ: عَنْ رَبِّنَا: مونږ خوشحاله يو د خپل پروردګار نه (يا دخپلو خاوندانو نه) ⑦ فَلَا نَسْخَطُ: مونږبه هيڅ كله په هيڅ حالت كښې نه خفه كيږو، ⑧ طُوبَى: مَعْنَاهُ فَرَحٌ: خوشحالى او خير دې وى.

**تسهيلات:**

**دحورو سندرې:** دَ دې حديث شريف نه معلومه شوه چه په جنت كښې يوخاص ځائى كوم ځائى كښې چه حورې جمع كيږى او په اوچت آوازسره نغمې اوسندرې وائى په داسې خوندناك او ښكلې آواز سره سندرې وائى چه داسې آواز په چرې چا اوريدلې نه وى دَهغوى نغمه به دا وى مونږ دَ هميشه اوسيدو والاښځې يو مقصددادې چه انسان له په دنياكښې داسې اعمال كول پكاردى په كوم سره چه الله تعالى اودَ هغه رسول ﷺ خوشحاله وى دې دَ پاره چه دَ جنت اودَ دې دَ نعمتونونه فائده اوچته كړې شى.

**[۵٦۵۰]د جنت درياب او نهرونه**

٥٦٥٠-(١)[٣٨] ① وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ فِي الْجَنَّةِ بَحْرَ الْمَاءِ، وَبَحْرَ الْعَسَلِ، وَبَحْرَ اللَّبَنِ، وَبَحْرَ الْخَمْرِ، ③ ثُمَّ تَشَقَّقُ الْأَنْهَارُ بَعْدُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① و حكيم ابن معاويه رضي الله عنه وايي چى رسول الله ﷺ وفرمايل ② په جنت كې د اوبو درياب دى او دعسلو (شهد)درياب دى او د پيئو درياب دى او د شرابو درياب دى ③ او بيا په جنت كې د جنتيانو داخليدو نه وروسته به هغه دريابونو نه نور نهرونه وځي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① بَحْرٌ: درياب. نهر. ② تَشَقَّقُ: أَيْ: تَفْتَرِقُ الْأَنْهَارُ: راجدا كيږى به. رابهيږى به

٥٦٥١-(٢) وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ مُعَاوِيَةَ.

**ترجمه:** دارمي دا روايت معاويه ؓ نه نقل كړى دى

**تسهيلات: نوټ:** په جنت كښې دنهرونوتفصيل دمشكاة د حديث نمبر(٥٦١٧) په تسهيل كښې ذكر شوې دې.

[1] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صفة أنهار الجنة (رقم-٢٥٧١) واحمد فى المسند:٥/٥

[2] ) اخرجه الدارمي فى السنن رقم الحديث ٢٨٣٦

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٥٦٥٢] د جنت د حورو ذكر

٥٦٥٢-()[٣٩] [١] عَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنْ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] "«إِنَّ الرَّجُلَ فِي الْجَنَّةِ لَيَتَّكِئُ فِي الْجَنَّةِ سَبْعِينَ مَسْنَدًا قَبْلَ أَنْ يَتَحَوَّلَ، [٣] ثُمَّ تَأْتِيهِ امْرَأَةٌ فَتَضْرِبُ عَلَى مَنْكِبِهِ، [٤] فَيَنْظُرُ وَجْهَهُ فِي خَدِّهَا أَصْفَى مِنَ الْمِرْآةِ، [٥] وَإِنَّ أَدْنَى لُؤْلُؤَةٍ عَلَيْهَا تُضِيءُ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ،

**ترجمه:** [١] حضرت ابو سعيد رضي الله عنه د حضور ﷺ نه نقل كوي چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] جنتي سړى به په جنت كې د اويا مسندونو تكيه لګولو سره به ناست وي مخكې دي نه چې يو اړخ نه دويم اړخ بدل كړي [٣] بيا به د جنت د ښځو نه يوه ښځه هغه ته راشي او هغه خپل خان طرف ته متوجه او مائل كولو د پاره به هغه په وږه وټكوي [٤] هغه سړى به هغه طرف ته متوجه شي او د هغه رخسارونو كي به چې د آئيني نه به زيات صاف او روښانه وي خپل مخ ويني [٥] او حقيقت دادى چې د هغه ښځي په زيور يا تاج كې لګيدلى يوه معمولي شان ملغلره به هم دومره قيمتي او نظر برينوونكى وي كه هغه دنيا ته راشي نو مشرق نه تر مغرب پورې هرشى به روښانه او منور كړي

**حل اللغات:-** ① لَيَتَّكِئُ: أَيْ: لَيَعْتَمِدُ: وده او تكيه به لګوى، ② مَسْنَدًا: ګديانې. تكيه ګانې. بالختونه ③ يَتَحَوَّلَ: أَيْ: مِنْ شِقٍّ إِلَى آخَرَ: چه اړخ بدل كړى. ④ خَدِّهَا: رخسار او اننګى دهغې (جنتى ښځې)، ⑤ أَصْفَى: أَيْ: أَنْوَرُ: ډير صفا او روښانه. ⑥ تُضِيءُ: أَيْ: تُنَوِّرُ: روښانه كوى.

[١] فَتُسَلِّمُ عَلَيْهِ، فَيَرُدُّ السَّلَامَ وَيَسْأَلُهَا: مَنْ أَنْتِ؟ [٢] تَقُولُ: أَنَا مِنَ الْمَزِيدِ، وَإِنَّهُ لَيَكُونُ عَلَيْهَا سَبْعُونَ ثَوْبًا، [٣] فَيَنْفُذُهَا بَصَرُهُ حَتَّى يَرَى مُخَّ سَاقِهَا مِنْ وَرَاءِ ذَلِكَ، [٤] وَإِنَّ عَلَيْهَا مِنَ التِّيجَانِ أَنَّ أَدْنَى لُؤْلُؤَةٍ مِنْهَا لَتُضِيءُ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] بهرحال هغه ښځه به هغه سړي ته سلام وكړي او سړى به د هغه د سلام جواب وركړي او پوښتنه به ترې نه وكړي چې ته څوك يې [٢] هغه به ورته وايي چې زه د مزيد نه يم او صورت حال به داوي چې د هغه ښځي په جسم به اويا رنګ په رنګ د كپړو (ته درته) لباسونه وي [٣] او د هغه سړي نظر به د هغه ښځي د لباس نه هم پارسي يعنى هغه به د لباس لاندي پټي ښځي د حسن وجمال او د هغه د جسم د نزاكت نظاره كوي ددي پورې چې هغه سړى به د هغه ښځي د پنډيو نلى هم د لباس د لاندي نه ويني ګويا د هغه نظر به دومره تيز اوصاف وي چې هيڅ شى به د هغه مخكې ليدو نه بنديز نه جوړيږي [٤] او د هغه ښځي په سربه داسې تاجونه ايښي وي چې دهغه تاجونو معمولي شان ملغلره به هم داسې وي كه هغه دنيا ته راشي نو مشرق نه مغربه پورې هرشى به روښانه او منور كړي. (احمد)

[1] ) اخرجه احمد فى المسند: ٧٥/٣

**حل اللغات:** -⑦ الْمَزِيد: أي فَضْلٌ عَلَىٰ فَضْلٍ: دمهربانئ دپاسه نوره مهرباني ⑧ فَيَنْظُرُهَا: نظر د سړی به ترې بل طرف ته اوځي (يعني د جنتي ښځې د بدن حسن، لطافت او باريکئ به داسې وي چه نظر به ترې بل طرف ته اوځي) ⑨ مُخّ: مغز، منځ (يعني د هډوکي په مينځ کښې مغز اوونلي) ⑩ التِّيجَان: د تَاج جمع ده، تاج ته وائي (کوم چه به بادشاهانو په سر کولو).

**تسهيلات:**

**قوله: فَيَنْظُرُ وَجْهَهُ فِي خَدِّهَا أَصْفَىٰ مِنَ الْمِرْآةِ:**

**دجنتي حورې په مخ کښې دخاوند مخ ښکاريدل:** يعنې دَ جنت دَ حورو بدنی لطافت به دومره زيات وی چه دَ خاوند مخ به دَهغې دَ آئينه په شان اننګۍ کښې منعکس کيدو سره به ئې خاوندوينی.

رأيت الخال في خد فقلت الخال افسانا　　　　فما كانا وما كان لعين كان انسانا

**[۵۶۵۲] په جنت کې د زراعت خواهش او د هغه تکميل**

٥٦٥٢-(١)[٣٠] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- ②أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُحَدِّثُ -وَعِنْدَهُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ-: ③«إِنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ اسْتَأْذَنَ رَبَّهُ فِي الزَّرْعِ. ④فَقَالَ لَهُ: أَلَسْتَ فِيمَا شِئْتَ؟ ⑤قَالَ: بَلَىٰ، وَلَكِنْ أُحِبُّ أَنْ أَزْرَعَ، ⑥فَبَذَرَ، فَبَادَرَ الطَّرْفَ نَبَاتُهُ وَاسْتِوَاؤُهُ وَاسْتِحْصَادُهُ، ⑦فَكَانَ أَمْثَالَ الْجِبَالِ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهريره ﷛ نه روايت دی ②يوه ورځ رسول الله ﷺ سره يو بانډچي (کليوال) مسلمان ناست وو او حضور ﷺ داحديث ارشاد فرمايلي ③چې په جنتيانو کې به يوسړی دخپل پروردګار نه د کر (زراعت کولو) اجازت طلب کړي ④الله ﷻ به ورته فرمايي څه چې ته غواړې هغه موجود نه دي يعنې هرکله چې دلته د هرجنس هرهغه شی موجود دی چې د هغه تاته خواهش وي نو بيا د کر کروندي کولو څه ضرورت دی ⑤هغه سړی به عرض وکړي بيشکه دلته هرڅه موجود دي ليکن ځما خواهش دادی چې زه زمينداري کرکرونده وکړم حضور ﷺ وفرمايل بهرحال هغه سړي ته به د زميندارۍ کولو اجازت ورکول شي ⑥او هغه به په زمکه کې تخم وکړي او د سترګو رپ کې به سبزه زرغونه شي ⑦او هرکله چې فصل پخيدو سره وريبل شي او د غر برابر انبار ولګيږي

**حل اللغات:** - ① الْبَادِيَة: کلي، ځنګل، بانډه، ② الزَّرْع: زميندارې، کرونده، ③ فَبَذَرَ: أَيْ رَمَى الْبَذْرَ فِي أَرْضِ الْجَنَّةِ: يعنې دجنت په زمکه به تخم اوکړی، ④ فَبَادَرَ الطَّرْفَ: أَيْ فَسَابَقَهُ: د سترګو په رپ کښې يعنې په لږ ساعت کښې به سبزه او شينکئ راوتوکيږی، ⑤ نَبَاتُهُ: زرغونه او سبزه، ⑥ اسْتِوَاؤُهُ: پوخوالی ته برابريدل، د فصل ريبلو حد ته رسيدل، ⑦ اسْتِحْصَادُهُ: ريبل او کټ کول د فصل (يعنې دا هرڅه به د سترګو په رپ کښې کيږی).

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة /باب كراء الأرض بالذهب والفضة (رقم-٢٣٤٨) واحمد في المسند: ٥١١/٢

[۱] فَيَقُولُ اللّٰهُ تَعَالَى: دُونَكَ يَا ابْنَ آدَمَ، [۲] فَإِنَّهُ لَا يُشْبِعُكَ شَيْءٌ". [۳] فَقَالَ الْأَعْرَابِيُّ: وَاللّٰهِ لَا تَجِدُهُ إِلَّا قُرَشِيًّا أَوْ أَنْصَارِيًّا، فَإِنَّهُمْ أَصْحَابُ زَرْعٍ! [۴] وَأَمَّا نَحْنُ فَلَسْنَا بِأَصْحَابِ زَرْعٍ، فَضَحِكَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] نو الله ﷻ به هغه سړي ته فرمايي اې ابن آدم وګوره ستا خواهش پوره شو [۲] حقيقت دا دی چې ستا د حرص خېټه هيڅ شی نشي ډکولی [۳] راوي وايي په دي حديث اوريدو سره هغه باندچي (کليوال) چې دحضور سره ناست وو هغه اوويل قسم په الله هغه سړی به يقينًا يا خو قريشي وي يا انصاري يعنی په جنت کې د کرکروندي کولو خواهش لرونکي سړی ياخوبه د مکي والو نه وي يا مديني والو نه ځکه چې داخلق کرکرونده کوي [۴] اوهر چې مونږ دصحرا خلق يو دی کرکرونده سره زمونږ هيڅ واسطه نشته مونږ ځنګلونو کې اوښ بزه (چيلئ) څرولو سره او محنت مزدوري کولو سره پئي او کجورو باندې ګذاره کوو د دې څيزونو نه علاوه مونږ ته د بل شي خواهش نشته د هغه باندچي (کليوال) داخبره اوريدو سره حضور ﷺ وخندل (بخاري)

**حل اللغات**: -⑧ دُونَكَ: أَيْ خُذْ مَا تَمَنَّيْتَهُ: اوګوره. واخله څه چه ستا خواهش وو پوره شو دا به ورته د توبيخ اوتنبيه دپاره اوفرمائي. ⑨ لَا يُشْبِعُكَ: ستا خېټه نه شی ډکولي.

**تسهيلات**:

**قوله** إِنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ اسْتَأْذَنَ رَبَّهُ فِي الزَّرْعِ:

**په جنت کښې د زميندارۍ د خواهش اظهار**: دَ حديث الباب حاصل دادې چه په جنت کښې به دَ بې شميره نعمتونو باوجود انسان دَ زميندارئی خپل خواهش ښکاره کوی ددې نه معلومه شوه چه حرص او ترک قناعت دَ انسان په جبلت کښې داخل دې کوم چه به په جنت کښې دَ خوند په توګه اودَ نعمتونو د زياتوالی په صورت کښې باقی پاتې وی

**[۵۶۵۴] په جنت کې به خوب نه وي**

۵۶۵۵-() [۴۱] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] أَيَنَامُ أَهْلُ الْجَنَّةِ؟ قَالَ: "النَّوْمُ أَخُو الْمَوْتِ، [۳] وَلَا يَمُوتُ أَهْلُ الْجَنَّةِ»". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه**: [۱] او حضرت جابر ﷺ وايي يو سړی د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه [۲] آيا جنتيان به اوده کيږي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل خوب يعنی اوده کيدل د مرګ ورور دی [۳] او ښکاره ده چې جنتيان به نه مري او هرکله چې هغوئ نه مري نو اوده کيږي به هم نه دا روايت بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړی دی

() اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۴۷۴۵

**تسهیلات:**

**قوله وَلَا يَمُوتُ أَهْلُ الْجَنَّةِ**

**په جنت کښې د خوب نشتوالې:** هرکله چه جنتیان به په جنت کښې مری نه نو هغوی به په جنت کښې خوب هم نه کوی دا جواب دَ دلیل برهانی په توګه ورکړې شوې دې کوم چه ذهن ته ښه پریوځی که چرې اجمالی جواب ئې ورکړې وې نو هغه به ذهن ته ښه نه پریوتلو

## [۶] بَابُ رُؤْيَةِ اللّٰهِ تَعَالٰی]

**د دیدار الهي بیان**

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① إثبات رؤية الله تعالى بالمثال: ١، ۴.

② إثبات الرؤية بكتاب الله تعالى: ٢، ٣، ٨.

③ عظمة رؤية الله تعالى: ٣، ۴، ٩.

④ رؤية الله تعالى في الدنيا نفياً وإثباتاً: ۵، ۶، ٧، ٨.

**د الله تعالي د لیدو په امکان اوعدم امکان کښې دوه مذاهب:**

① د اهل اهواء، خوارج اومعتزله دا عقیده ده چه په قیامت او عالم آخرت کښې څوک دَالله تعالی دیدارنشی کولې

② دَ اهل سنت والجماعت متفقه عقیده ده چه په قیامت او عالم آخرت کښې به مؤمنان دَالله تعالی دیدارکوی اودا نه شرعًا محال دی اونه عقلاً محال دی لهذا بلاوجه دَالله تعالی دَ دیدارنه انکارمکابره اومجادله ده.

**په رؤیت باری تعالی باندې اشکال:** که چرته څوك داسوال اوکری چه دَ انسانی سترګې دَپاره ضروری دی چه د لیدونکی څیز وجود وی چه په هغې باندې نظراونخلی. اوداهم ضروری دی چه دَ لیدونکی څیز دَپاره جهت اوطرف وی چه سترګې دَهغې دَپاره متوجه شی اوداهم ضروری دی چه هغه لیدونکی څیز په یوخاص مقام اومکان باندې موجودوی دې دَپاره چه هغه په نظرکښې راګیرکړې شی اودا ټول څیزونه دَالله تعالی د الوهیت اوقدیمی صفت منافی دی. لهذا دیدارالهی ممکن نه دې

**د اشکال جواب:** الله تعالی قادرمطلق ذات دې دَهغه دَپاره داهیڅ ګران نه دی چه هغه دَ سر دَ دې موجوده سترګو په بصارت کښې داسې بصارت پیداکړی لکه څنګه بصیرت

چه الله تعالی په زړه کښې دننه پیدا کړې دې. بیا دَ سترګوهم دَ دغه بصیرت په وجه دا انسان دَ جسماني وجود نه بغیر بل دَ مکان او جهت دَ تعین نه بغیرهم په دې سترګو سره دَ یو څیزپیژندګلو کوی نو په دې کښې استحاله نشته دې

**داول فریق اول دلیل:** ① معتزله اوخوارج په رؤیت باری تعالی باندې دَ قرآن کریم دَدې آیت نه استدلال کوی ﴿لَاتُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ﴾ دَهغوی په نیزدَدې آیت تعلق دنیااوآخرت دواړوسره دې لهذا په قیامت کښې به هم دیدارنه وی.

**د اول فریق داول دلیل درې جوابونه:** ① په مذکوره آیت کښې احاطه دَنفی ده چه په الله تعالی باندې دَ نظراحاطه نه شی کیدې کتل خو بل څیزدې اواحاطه او ادراك بل څیزدې

② په مذکوره آیت کې دَ دیدار دَنفی تعلق دنیاسره دې چه په دنیاکې داسې نه شی کیدې

③ په ﴿لَاتُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ﴾ والا دَنفی آیت کښې دَ څو احتمالاتو ګنجائش شته خودَ دیداردَ اثبات آیت ﴿اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ صریح دې په دې کښې احتمالات نشته دې

**داول فریق دویم عقلی دلیل:** ② معتزله اوخوارج عقل هم په خپل استدلال کښې استعمالوی وائی چه دَسترګو په وړاندې دَ وجود موجودکیدل ضروری دی اوالله تعالی دَ بدن او بدنی حوادثاتونه پاك دې په دې وجه دَهغه لیدل محال دی.

**داول فریق د عقلی دلیل جواب:** دَ رؤیت دَپاره که جسامت ضروری دې نوکیدې شی چه دادَ دنیادَ بصارت دَپاره وی. دآخرت په بصارت کښې به یونوې قوت راځی بل دَ رؤیت دَپاره جهت اوطرف ضروری څیزنه دې. دَهرطرف نه هم رؤیت کیدې شی لکه څنګه چه علم دَ هرجهت نه راځی دَدې دَپاره دَ هیڅ جهت ضرورت نشته دې. دَ هرطرف نه علم راځی دغه شان کله چه الله تعالی چاته ګوری نودَهغې دَپاره هم دَ جهت کیدل ضروری نه دی لهذا داعقلی تصور صحیح نه دې چه دَالله تعالی دَ دیدار دَ پاره جهت اومکان کیدل ضروری دی

**د دویم فریق دلائل:** ① اهل سنت والجماعت دَ الله تعالی دَ دیدار په اثبات کښې دَ قرآن کریم آیت ﴿وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ۙ اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ۚ﴾ په توګه دَ استدلال پیش کوی

② دَ قرآن کریم داآیت هم د دوی مستدل دې ﴿لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ﴾ یعنی کوموخلقو چه نیك کارونه کړی دی دَهغوی دَپاره حسنٰی یعنی جنت هم دې او څه زیات هم دی دا زیات هم دَالله تعالی دیداردې.

③ اهل سنت دَدې آیت نه هم استدلال کوی ﴿كَلَّآ اِنَّهُمْ عَنْ رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوْبُوْنَ ۗ﴾ طرزدَ استدلال داسې دې چه کافران به دَ دیدارنه دَ سزا په توګه منع کړې شی لهذا مؤمنانوته به داسزا نه وی بلکه دیدار به وی.

④عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " «إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ عِيَانًا»". [1]

⑤عَنْ صُهَيْبٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " «إِذَا دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ يَقُولُ اللّٰهُ تَعَالَى: تُرِيدُونَ شَيْئًا أَزِيدُكُمْ؟ فَيَقُولُونَ: أَلَمْ تُبَيِّضْ وُجُوهَنَا؟ أَلَمْ تُدْخِلْنَا الْجَنَّةَ وَتُنَجِّنَا مِنَ النَّارِ؟

قَالَ: " فَيُرْفَعُ الْحِجَابُ، فَيَنْظُرُونَ إِلَى وَجْهِ اللّٰهِ، فَمَا أُعْطُوا شَيْئًا أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنَ النَّظَرِ إِلَى رَبِّهِمْ " ثُمَّ تَلَا ((لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَى وَزِيَادَةٌ)) [يونس:۲۶]» [2]

**دَرؤيت باري تعالى قسمونه اومقامات:** ① دَحساب کتاب په وخت به دَالله تعالى يو عام ديدار کيږي کوم چه به په ميدان محشرکښې وي په دې کښې به ټول مخلوقات شامل وي که هغه مسلمان وي او که غيرمسلمان، دَنفى تعلق دغه ديدار سره نه دې بيا به هيڅ کله ديدار نه کيږي دَنفى تعلق دَميدان محشرنه پس ديدار سره کيدې شي

② دويم ديدار به په جنت کښې کيږي دامسلمانانو سره خاص دې چه يوځل نه بلکه بار بار به کيږي دَدې ثبوت په قرآن اوحديث کښې دې دغه شان راجح قول دادې چه جنتي ښځې به هم دَالله تعالى په ديدار کښې شامل وي هم دغه شان دَ راجح قول مطابق فرښتې او جنات به هم په جنت کښې دَ الله تعالى دَ ديدارنه خوند اخلي په دنيا کښې دَالله تعالى ديدار سره دَدې چه ممکن دې مگرغيرواقع دې کوم سړې چه په دنيا کښې دَالله تعالى دَديدار دعوى کوي هغه به گمراه شي.

**په شب معراج کښې دالله تعالي په رؤيت کښې مذاهب:**

①دحضرت عائشه صديقه حضرت ابن مسعود اوحضرت ابو هريره رضي الله عنهم رائې داده چې د معراج به شپه نبى عليه السلام ته د الله تعالى ديدار نه وو شوې

② دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حضرت انس رضي الله عنه او دَ جمهور صحابه كرامو دارائې ده چه ديدار شوې وو اوهم دغه راجح دى دَ حضرت ابو ذرغفارى رضي الله عنه نه دَ ديدار نفى او اثبات دواړه نقل دى

③ دعلامه طيبى رحمه الله په نيز توقف بهتر دې

---

[1] اخرجه البخاري فى كتاب التوحيد/باب قول الله تعالى: {وجوه يومئذ ناضرة إلى ربها ناظرة} [القيامة: ۲۳] (رقم-۷۴۳۵) ومسلم فى كتاب المساجد/باب فضل صلاتى الصبح والعصر. والمحافظة عليهما (رقم-۲۱۱ - (۶۳۳) والترمذى فى كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى رؤية الرب تبارک وتعالى (رقم-۲۵۵۱) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فيما أنكرت الجهمية (رقم-۱۷۷) واحمد فى المسند:۱۶/۳

[2] اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب إثبات رؤية المؤمنين فى الآخرة ربهم سبحانه وتعالى (رقم-۲۹۷ - (۱۸۱) والترمذى فى كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى رؤية الرب تبارک وتعالى (رقم-۲۵۵۲) واحمد فى المسند:۱۵/۶

**د رؤیت دلیل:** عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- «+مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى- وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَى_ [النجم: ۱۱-۱۳] قَالَ: رَآهُ بِفُؤَادِهِ مَرَّتَيْنِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ قَالَ: «رَأَى مُحَمَّدٌ رَبَّهُ، قَالَ عِكْرِمَةُ: قُلْتُ: أَلَيْسَ اللّٰهُ يَقُولُ: لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ_ [الأنعام: ۱۰۳] قَالَ: وَيْحَكَ! ذَاكَ إِذَا تَجَلَّى بِنُورِهِ الَّذِي هُوَ نُورُهُ، وَقَدْ رَأَى رَبَّهُ مَرَّتَيْنِ.»([1])

یعنی حضرت ابن عباس ﷺ د الله ﷻ د دې ارشاد مَاكَذَبَ الْفُؤَادُ مَارَأٰى وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى او د محمد زړه غلط ونه وئیل د هغه شي بابت کې چې هغوئ په خپلو سترګو سره اولیدلو یعنی ذات اقدس تعالی او حقیقت دادی چې هغوئ پروردګار یووار بل ولیدي د دې په تفسیر کې وایي چې حضور ﷺ پروردګار د خپل زړه په سترګو سره دوه ځله اولیدلو (مسلم) او د ترمذي روایت کې داسې دي چې حضرت ابن عباس ﷺ د مذکوره آیت تفسیر کې اوویل چې محمد ﷺ خپل پروردګار اولیدلو حضرت عکرمه ﷺ وایي ما دي خبري اوریدو سره خپل اشکال ظاهر کی او حضرت ابن عباس ﷺ ته مي اوویل چې قرآن کریم کې د خپل ذات په باره کې الله ﷻ فرمایلي دي. لَاتُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ بیا تاسو څرنګه وایئ چې حضور ﷺ الله ﷻ لیدلی دی حضرت ابن عباس ﷺ د حضرت عکرمه ﷺ د دې اشکال په جواب کې اوویل په تا افسوس دی چې ته په خبره پوه نه شوي حقیقت دادی چې دا مفهوم چې تا د دې آیت په ذریعه پیش کړی دی هغه وخت د پاره دی هرکله چې الله ﷻ خپله تجلي ښکاره کړي او خپل هغه نور سره ښکاره شي کوم چې د هغه د ذات خاص نور دی او په دې کې څه شك نشته چې حضور ﷺ خپل پروردګار دوه ځله اولیدلو.

**دعدم رؤیت دلیل:** عَنْ أَبِي ذَرٍّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ رَأَيْتَ رَبَّكَ؟ قَالَ: "نُورٌ أَنَّى أَرَاهُ»"([2]) یعنی هغه خو یوه تجلی ده زه هغه څرنګه لیدلي شم؟

**د تجلیاتو الهی دوه قسمونه:** ① تجلیات "قاهرة للبصر" یعنی هغه تجلیات چې دهغې په موجودګئی کښې سرې دالله تعالی دیدارنشی کولي

② تجلیات "غیرقاهرة للبصر" یعنی هغه تجلیات چې دهغې په موجودګئی کښې سرې دالله تعالی دیدارنشی کولي

---

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب فی قوله علیه السلام: «نور أنی أراه» . وفی قوله: «رأیت نوراً» (رقم-۲۹۱ - ۱۷۸)والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة والنجم (رقم-۳۲۷۹)

[2]) اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب فی قوله علیه السلام: «نور أنی أراه» . وفی قوله: «رأیت نوراً» (رقم-۲۹۱ - ۱۷۸) والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة والنجم (رقم-۳۲۸۲)

**د رؤیت او عدم رؤیت په دلائلو کښې تطبیق:** په دې دواړه قسمه روایاتو کښې تطبیق په تقسیم سره کیدې شی د کوم ذکر چې مونږ په اول کښې اوکړل چې دعدم رؤیت تعلق دهغه تجلیاتو سره دې چې ،،قاهرة للبصر،، وی او د ثبوت رؤیت تعلق دهغه تجلیاتو سره دې چې غیرقاهرة للبصر وی.

نوحضرت عائشه رضي الله عنها په معراج کښې دَ دیدارکوم انکارکړې دې نوهغه دَالله تعالی دَ ذات دیدار اودَهغه خاص تجلیاتو انکاردې دَ کومې طرف ته چه په یوحدیث کښې داسې اشاره کړې شوې ده.

اود حضرت ابن عباس رضي الله عنهما خخه چې دَ کوم دیدار اثبات کړې دې هغه جدا انوارات او تجلیات دی دکوم ثبوت چې په دې حدیث کښې دې.

**د خوب په حالت کښې د نبی علیه السلام دیدار:** حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله اوفرمائیل چه ماپه خوب کښې سل ځل دَالله تعالی دیدارکړې دې. دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله متعلق هم داسې وئیلی شی چه هغوی فرمائی ما الله تعالی په خوب کښې اولیدلو نوما تپوس اوکړو چه کوم یوعمل ستاسو دَتولونه ډیرخوښ دې. الله تعالی اوفرمائیل چه دَ قرآن تلاوت. امام صاحب رحمه الله پوښتنه اوکړه چه معانی اومطلب پوهیدلوسره یا دَدې نه بغیر؟ وئی فرمائیل که په معنی پوهیدلوسره وی اوکه دَدې نه بغیروی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵٦۵۵] کولاؤ سترګو سره د الله جل جلاله دیدارکول

٥٦٥٥-()[١] [١]عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]" «إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ عِيَانًا» ". [٣]وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: «كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَنَظَرَ إِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ

**ترجمه:** [١]او حضرت جریر بن عبد الله رضي الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢]هغه وخت راتلونکی دی چې په قیامت کې به تاسو خپل پروردګار خپلو کولاؤ سترګو سره ووینئ [٣]په یوه روایت کې حضرت جریر دا بیان وکړو چې یوه ورځ مونږ درسول الله صلی الله علیه وسلم سره ناست وو چې حضور صلی الله علیه وسلم د څوارلسمي شپې سپوږمۍ ته وکتل

**حل اللغات:-** ① عِيَانًا: أَيْ جَهَارًا: بالکل ښکاره، ای رَفْعُ الْحِجَابِ بَيْنَ الرَّائِي وَالْمَرْئِيِّ: چه د رائی او مرئی په مینځ کښې هیڅ پرده اوحجاب نه وی

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد/باب قول الله تعالى: {وجوه يومئذ ناضرة إلى ربها ناظرة} [القيامة: ٢٣] (رقم-٧٤٣٥) ومسلم في كتاب المساجد/باب فضل صلاتي الصبح والعصر، والمحافظة عليهما (رقم-٢١١ - (٦٣٣) والترمذي في كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في رؤية الرب تبارك وتعالى (رقم-٢٥٥١) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فيما أنكرت الجهمية (رقم-١٧٧) واحمد في المسند:١٦/٣

۱ فَقَالَ: " إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ هٰذَا الْقَمَرَ لَا تُضَامُونَ فِي رُؤْيَتِهِ، ۲ فَإِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ لَا تُغْلَبُوا عَلٰى صَلَاةٍ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا فَافْعَلُوا ۳ " ثُمَّ قَرَأَ: ﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا﴾ [طه:۱۳۰]». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او وې فرمايل تاسو به خپل پروردگار داسې وويني څرنګه چې دا سپوږمۍ وينئ او د سپوږمۍ په ليدو کې به تاسو څه بنديز او پريشاني نه محسوسوئ ۲ که تاسو کولی شي نو تاسو هغه مونځ چې د نمر راختو نه مخکې دی يعنی د سهار مونځ او هغه مونځ چې د نمر غرقيدو نه مخکې دی يعنی د مازيګر مونځ مه پريږدئ او ضرور دا کوئ ۳ بيا حضور ﷺ دا آيت تلاوت کې: وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا او د خپل پروردګار حمد او پاکي بيانوئ يعنی مونځ کوئ د نمر ختو نه مخکې او د نمر غرق يدو نه مخکې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ۶ لَا تُضَامُونَ: لَا تَشُكُّونَ: تاسو هيڅ شک نه کوئ (د څوارلسمې شپې په سپوږمۍ ليدلو کښې). ۳ لَا تُغْلَبُوا: أَيْ لَا تَصِيرُوا مَغْلُوبِينَ: که تاسو مغلوبه او کمزوری کيږئ نه يعنی که ستاسو نه کيدې شی.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ هٰذَا الْقَمَرَ لَا تُضَامُونَ فِي رُؤْيَتِهِ:

**دتضامون په اعراب کښې دوه احتمالات:** ۱ دتاء په ضمې سره نقل دې اوهم دغه زيات مشهور دې. په دې صورت کښې به معنی دا وی چه د پروردګار په ديدار کښې به په تاسو ظلم نه کيږی چه څوك دې ګوری او څوك به محروم پاتې وی يا د هغه په ديدارکښې به تاسو په يو بل باندې زياتې اوکړئی چه د يو بل د کتو نه انکاراوکړئی او يو بل دروغ ګڼړئی لکه څنګه چه د سپوږمئی په اوله شپه وی

۲ د تاء په فتحې سره هم نقل کړې شوې دې په دې صورت کښې به معنی دا شی چه د الله تعالی د ديدار په وخت به د هيڅ قسم ګڼړې ګوڼړې سره نه مخ کيږی بلکه هر سړې به په خپل خپل ځائې پاتې کيدو سره ډير په تسلئی او سکون د الله تعالی ديدار کوی

**قوله:** فَإِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ لَا تُغْلَبُوا عَلٰى صَلَاةٍ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا فَافْعَلُوا:

**دسحر اومازيګر د مونځوا اهميت:** دلته د فاء څخه معلوميږی چې د دې دواړو مونځود الله تعالی د ديدار په حاصلولوکښې خاص اثردې يعنی که تاسوطاقت لرئ يعنی کوشش کوئ چې دا دواړه مونځونه په پابندئ سره کوئ نود الله تعالی ديدار به درته حاصل شی

**د سحر اوماښام د مونځونو دتخصيص وجه:** د سحر او مازيګر مونځونه ځکه خاص کړې شو چه د سحر د مونځ وخت دآرام او استراحت وی اود مازيګر د مونځ په وخت کښې د کار

روزګار د راغوندولو وخت وي په دې وجه د دې دوارو مونځونو د فوت کیدو اندېښنه وي او ددې په اداکولوکښې مشقت او مجاهده ده په دې وجه ئې د دې دوارو مونځونو تخصیص اوکړو

**[۵٦۵٦] دیدار الهي د ټولو نه لوی نعمت دی**

٥٦٥٦-( )[٤] ①وَعَنْ صُهَيْبٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②قَالَ: "«إِذَا دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ ③يَقُولُ اللّٰهُ تَعَالَى: تُرِيدُونَ شَيْئًا أَزِيدُكُمْ؟ ④فَيَقُولُونَ: أَلَمْ تُبَيِّضْ وُجُوهَنَا؟ ⑤أَلَمْ تُدْخِلْنَا الْجَنَّةَ وَتُنَجِّنَا مِنَ النَّارِ؟

**ترجمه:** ①او حضرت صهیب ﷺ د رسول الله ﷺ نه روایت کوي ②حضور ﷺ وفرمایل هرکله چې ټول جنتیان په جنت کې خپل خپل ځاي ته ورشي ③نو الله ﷻ به وفرمايي څه چې تاسو ته عطا شوي دي د هغه نه زیات څه نور تاسو زما نه غواړئ ④په دې اوریدو سره به جنتیان عرض وکړي اې زمونږ پروردګاره! آیا تا زمونږ مخونه روښانه او منور کړي نه دي ⑤آیا تا مونږ په جنت کې داخل کړي نه یو آیا تا مونږ ته د دوزخ د اور نه نجات خلاصون نه دی راکړی دومره لویو نعمتونو نه زیات بل کوم نعمت کیدی شي چې مونږ دې ستا نه مزید وغواړو

①قَالَ: "فَيُرْفَعُ الْحِجَابُ، فَيَنْظُرُونَ إِلَى وَجْهِ اللّٰهِ، ②فَمَا أُعْطُوا شَيْئًا أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنَ النَّظَرِ إِلَى رَبِّهِمْ ③" ثُمَّ تَلَا: ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَى وَزِيَادَةٌ﴾ [يونس: ٢٦]» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①حضور ﷺ وفرمایل بیا به حجاب پرده پورته شي او جنتیان به ذات اقدس تعالی طرف ته وګوري چې د صورت او جسم او جهت او مقام د قیود او شرائطو نه پاك او منزه دی ②او هغه وخت به معلومه شي چې جنتیانو ته داسې هیڅ نعمت عطای شوی نه دی چې پروردګار طرف ته د هغه د لیدو نه زیات ښه او خوښ (غوریز) وي ③بیا حضور ﷺ دا آیت اوونیلو للذين احسنوا الحسنى وزيادة کومو خلقو چې ښه کارونه کړي دي د هغوئ جزاء هم ښه ده یعنی جنت او د هغه نه زیات یعنی د خصوصي انعام په طور دیدار الهي به هغوئ ته نصیب وي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْحِجَابُ: پرده (نوراني جلوي دی چه دخلقو د نظرونو دمخې نه به لرې شی) ② الْحُسْنَى: أي الْمَثُوبَةُ الْحُسْنَى: ښائسته ثواب او بدله یعنی جنت ③ زِيَادَةٌ: زیاتی ثواب چه هغه د الله تعالی دیدار دي

---

( ) اخرجه مسلم فی كتاب الإيمان/باب إثبات رؤية المؤمنين في الآخرة ربهم سبحانه وتعالى (رقم-۲۹۷ - (۱۸۱) والترمذي في كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في رؤية الرب تبارك وتعالى (رقم-۲۵۵۲) واحمد في المسند: ۱۵/٦

**تسهيلات:**

**قوله: فَمَا أُعْطُوا شَيْئًا أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنَ النَّظَرِ إِلَى رَبِّهِمْ:**

**په جنتي نعمتونو كښې د ديدار الهى عظمت:** كوم وخت جنتيانو ته ټول نعمتونه وركړې شي او دَ الله تعالى په فرمائيلو سره چه تاسو بل څه نعمت غواړئ نو جنتيان به سوچ كوي چه اوس لا كوم نعمت باقى پاتې دې چه زمونږ دَ اعمالو دَ اصل بدلې او جزاء نه زيات دې بيا چه كله الله تعالى پرې خپل ديدار اوكړى نو ورته به اوفرمائي چه گورئ دا هغه لوئى نعمت دې كوم چه ما تاسو ته دركول غوښتل اودا نعمت ستاسو د عمل او اصل بدلې اوجزاء نه زيات دې دَ الله تعالى ديدار دَ ټولو نعمتونو نه زيات دې او په دې به جنتيان هم پوهه شي څكه لكه څنګه چه په دنيا كښې حاصليدونكى ټول ذاتى او روحانى مراتب اودَ درجو اوچتوالې او لوئى والې دَ الله تعالى په ذات باندې ختميږى دغه شان په آخرت كښې حاصليدونكو دَ ټولو نعمتونو او سعادتونو په انتهاء كښې به د الله تعالى ديدار وى

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٥٦٥٧] د جنتيانو مرتبې

٥٦٥٧-() [٣] [١] عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«إِنَّ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً لَمَنْ يَنْظُرُ إِلَى جِنَانِهِ وَأَزْوَاجِهِ وَنَعِيمِهِ وَخَدَمِهِ وَسُرُرِهِ [٣] مَسِيرَةَ أَلْفِ سَنَةٍ. [٤] وَأَكْرَمُهُمْ عَلَى اللَّهِ مَنْ يَنْظُرُ إِلَى وَجْهِهِ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً [٥]" ثُمَّ قَرَأَ ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ [القيامة: ٢٣]». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په جـنـانو كې د قدر او مرتبې د اعتبار نه ادنى سړى به هغه وي چې خپل باغات خپلو ښځو خپلو نعمتو نو خپلو خدمتګارو اود خپلې ناستې استراحت كولو تخت او كرسۍ باندې به نظر لرې [٣] چې د يو زر كال مسافت په قدر رقبه كې به خواره وي يعنى د جنت لامحدود وسعت كې هغه ادنى سړى به هم دومره نوازلى شي چې د هغه د ملكيت او تسلط څيزونه به د يوهزار كاله مسافت په قدر وسيع رقبه كې خواره وي او هغه به خپل څيزونو ته كتلو كتلو سره خوشحاليږي [٤] او د الله ﷻ په نز دد لوېې مرتبې او قدر سړى به هغه وي چې سهار او مانبام د خپل پروردګار د ذات اقدس د ديدار سعادت حاصلوي [٥] بيا حضور ﷺ دا آيت تلاوت كې وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ډير مخونه به په هغه ورځ تروتازه او خوشحاله وي د خپل پروردګار ديدار كونكي به وي (ترمذي)

---

(١) اخرجه احمد فى السنن ٢/ ٦٤ والترمذى فى كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب منه (رقم-٢٥٥٣)

**حل اللغات:-** ① مَنْزِلَةً : درجه، مرتبه، ② جِنَانِهِ : أَيْ بَسَاتِينِهِ: باغونه، ③ نَعِيمِهِ : نعمتونه او عيش وعشرت، ④ سُرُرِهِ: تختونه (د استراحت او آرام كولو د عيش وعشرت تختونه او كرسئ به وي) ⑤ غُدْوَةً : أَيْ صَبَاحًا: سحر، ⑥ عَشِيَّةً : أَيْ مَسَاءً: مابنام، ⑦ نَاضِرَةً: أَيْ نَاعِمَةً: تر وتازه او خوشحاله به وي (يعنى دنعمتونو او دعيش وعشرت دخوشحالئ آثار به پرې ښكارى) ⑧ نَاظِرَةً: ديدار كونكى به وى د الله تعالى

**تسهيلات:**

**قوله** وَأَكْرَمُهُمْ عَلَى اللهِ مَنْ يَنْظُرُ إِلَى وَجْهِهِ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً:

**دالله تعالى ديدار د مرتبو په اعتبار:** په جنت كښې به دَ الله تعالى ديدار دَ مرتبو په اندازه وى چاته به په هفته كښې يو ځل، چاته روزانه سحر مابنام. په دې وجه اووئيلې شو چه دَ مازيگر اوسحر په مونځونو كښې دې دوام اختياركړې شي دې دپاره چه دَ الله تعالى ديدار هره ورځ نصيب شي. يا دَ دې يو مطلب داهم كيدې شي چه دَ الله تعالى په ديدار باندې سحر مابنام مشرف كيدونكې به دَ لوئى مرتبې والا كس وى

**[۵۶۵۸] ديدار الهي كې به د هيڅ قسم مزاحمت خند نه وي**

۵۶۵۸-()[۳] ① وَعَنْ أَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قُلْتُ: «يَا رَسُولَ اللهِ! ② أَكُلُّنَا يَرَى رَبَّهُ مُخْلِيًا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ ③ قَالَ: "بَلَى". ④ قَالَ: قُلْتُ: وَمَا آيَةُ ذَلِكَ فِي خَلْقِهِ؟ ⑤ قَالَ: "يَا أَبَا رَزِينٍ، أَلَيْسَ كُلُّكُمْ يَرَى الْقَمَرَ لَيْلَةَ بَدْرٍ مُخْلِيًا بِهِ؟" قَالَ: بَلَى. ⑥ قَالَ: "فَإِنَّمَا هُوَ خَلْقٌ مِنْ خَلْقِ اللهِ، وَاللهُ أَجَلُّ وَأَعْظَمُ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① و حضرت ابو رزين عقيلي رضي الله عنه وايي ماعرض وكړو يارسول الله ② ايا د قيامت په ورځ به په مونږ كې هرسړى بلا مزاحمت غير ځان له خپل پروردگار ويني ③ حضور ﷺ وفرمايل هو ④ ابورزين رضي الله عنه وايي ما بيا خني پوښتنه وكړه آيا د پروردگار دديدار دنياوي مخلوق كې څه مثال شته؟ ⑤ حضور ﷺ وفرمايل اې ابو رزين آيا تاسو كې هرسړى به خوارلسمه شپه كې سپوږمى بلا مزاحمت غير تنها نه ويني؟ ماعرض وكړو بيشكه وينى يي ⑥ نو حضور ﷺ وفرمايل سپوږمى خو دي نه علاوه نور هيڅ نه ده چې هغه د پروردگار د مخلوق نه يو مخلوق دى او پروردگار ډير بزرگ او برتر دى يعنى هركله چې سپوږمى چې د پروردگار يو مخلوق دى هر سړى يي بلا مزاحمت بغير څه تكليف او ركاوټ ليدى شي نو هركله چې بزرگ او برتر الله ﷻ په خپل ديدار كول غواړي نو هغه به هرسړى بلامزاحمت او ركاوټ ولي نشي ليدى (ابوداؤد)

[۱] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب السنة/باب فى الرؤية (رقم-۴۷۳۱) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فيما أنكرت الجهمية (رقم-۱۸۰)

**حل اللغات:** - ① مُخْلِيًا : أَيْ خَالِيًا بِرَبِّهٖ: د تخليه نه دي يعني دخپل رب په ديدار کولو کښې به ورته هيڅ څيز مخې ته حائل او مزاحم نه وی بالکل صفا به ورته خپل رب ښکاری چه هيڅ شک به ئې پکښې نه وی ② أَجَلُّ : أَيْ أَكْمَلُ مَرْتَبَةً: ډيرې لوئې مرتبې والا ، لوئې شان والا

**تسهيلات:**

**قوله:** أَلَيْسَ كُلُّكُمْ يَرَى الْقَمَرَ لَيْلَةَ بَدْرٍ مُخْلِيًا بِهٖ

**دالله تعالى په ديدار کښې عدم مزاحمت:** يعنی دَدې ديدارمثال دَ نمراوسپوږمئ ليدل دی کله چه دا دواړه دَالله تعالى په مخلوقاتو کښې مخلوق دې او تاسو بې دَتکلف نه او بغيردَ مزاحمت نه په آسانئ سره دې ته کتلې شئ نو الله تعالى خو رب العالمين دې ډير لوئی دې دَهغه په ديدار کښې څه تکليف او څه مزاحمت کيدې شی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [٥٦٥٩] په شپه د معراج کې د حضور ﷺ ديدار الٰهي

٥٦٥٩-()[٥] عَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: «سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] هَلْ رَأَيْتَ رَبَّكَ؟ [٣] قَالَ: "نُورٌ أَنّٰى أَرَاهُ"» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوذر ﷺ وايي ما د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه [٢] آيا تاسو په شب معراج کې خپل پروردګار ليدلی دی؟ [٣] حضور ﷺ وفرمايل پروردګار خو يو نور دی زه هغه څرنګه ليدی سم. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① نُورٌ: وَهُوَ الَّذِي ظَاهِرٌ بِنَفْسِهٖ، وَمُظْهِرٌ لِغَيْرِهٖ: رڼا چه په خپله هم روښانه وی او نور څيزونه ئې هم روښانه کړې وی ② أَنّٰى : أَيْ كَيْفَ: څرنګه؟ ③ أَرَاهُ: أَيْ أُبْصِرُهُ: ليدلې ئې شم.

**تسهيلات:**

**قوله:** نُورٌ أَنّٰى أَرَاهُ:

**په مذکوره جمله کښې درې احتمالات:** ① که چرې أَنّٰى اراه شی نودا به دَديدار دَ يوقسم نفی شی چه ذات اوتجليات يوخاص قسم به مراد وی

② که چرې إِنِّي اراه شی نوبيا به دادَ يوبل قسم دَ تجلی اثبات شی

③ که چرې نُوْرَانِيٌّ أَرَاهُ شی نوبيا به هم اثبات کيږی ديدار به ثابت شی.

¹) اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب فى قوله عليه السلام: «نور أنى أراه» ، وفى قوله: «رأيت نوراً» (رقم-٢٩١ - (١٧٨) والترمذى فى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة والنجم (رقم-٣٢٨٢)

## [٥٦٦٠] حضور ﷺ ته دیدار الهي سره متعلق د یو آیت تفسیر

٥٦٦٠ -()[٢] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - « ﴿مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى - وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَى﴾ [النجم: ١١-١٣] [٢] قَالَ: رَآهُ بِفُؤَادِهِ مَرَّتَيْنِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د الله تعالی د دي ارشاد مَاكَذَبَ الْفُؤَادُ مَارَأٰى وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً أُخْرٰى [٢] او د محمد زړه غلط ونه وئیل د هغه شي بابت کې چې هغوئ په خپلو سترګو سره اولیدلو یعنی ذات اقدس تعالی او حقیقت دادی چې هغوئ پروردګار یو وار بل ولیدي د دې په تفسیر کې وایي چې حضور ﷺ پروردګار د خپل زړه په سترګو سره دوه خله اولیدلو (مسلم)

[٣] وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ قَالَ: «رَأَى مُحَمَّدٌ رَبَّهُ، [٤] قَالَ عِكْرِمَةُ: قُلْتُ: أَلَيْسَ اللَّهُ يَقُولُ: ﴿لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ﴾ [الأنعام: ١٠٣] [٥] قَالَ: وَيْحَكَ! ذَاكَ إِذَا تَجَلَّى بِنُورِهِ الَّذِي هُوَ نُورُهُ، [٦] وَقَدْ رَأَى رَبَّهُ مَرَّتَيْنِ.»

**ترجمه:** [٣] او د ترمذي روایت کې داسې دي چې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د مذکوره آیت تفسیر کې اوویل چې محمد ﷺ خپل پروردګار اولیدلو [٤] حضرت عکرمه رحمه الله وایي ما دي خبري اورید وسره خپل اشکال ظاهر کی او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ته مي اوویل چې قرآن کریم کې د خپل ذات په باره کې الله تعالی فرمایلي دي لَاتُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ بیا تاسو څرنګه وایئ چې حضور ﷺ الله تعالی لیدلی دی [٥] حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د حضرت عکرمه رحمه الله د دې اشکال په جواب کې اوویل په تا افسوس دی چې ته په خبره پوه نه شوي حقیقت دادی چې دا مفهوم چې تا د دې آیت په ذریعه پیش کړی دی هغه وخت د پاره دی هرکله چې الله تعالی خپله تجلي ښکاره کړي او خپل هغه نور سره ښکاره شي کوم چې د هغه د ذات خاص نور دی [٦] او په دې کې څه شک نشته چې حضور ﷺ خپل پروردګار دوه خله اولیدلو

**حل اللغات** - ① الْفُؤَادُ: زړه. ② نَزْلَةً أُخْرٰى: دوباره ③ وَيْحَكَ: دا کلمه د زجر ده. د افسوس په طور د رحم دپاره استعمالیږی یعنی افسوس دې په تا باندې (چه ته په خبره پوهه نه شوې). ④ تَجَلّٰى: ښکاره ئې کړل انوارات خپل

**تسهیلات:**

**قوله:** رَاٰهُ بِفُؤَادِهٖ مَرَّتَيْنِ:

**په زړه سره د دیدار کولو مفهوم:** یعنی په زړه سره ئې دیدار اوکړو او دوه ځل ئې اوکړو

[١]) اخرجه مسلم فی کتاب الایمان/باب فی قوله علیه السلام: «نور أنی أراه» . وفی قوله: «رأیت نوراً» (رقم-٢٩١ - (١٧٨))والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة والنجم (رقم-٣٢٧٩)

بو ځل سدرة المنتهى سره او دويم ځل عرش عظيم سره
په زړه سره د ديدار كولو مطلب دادې چه الله تعالى د حضورپاك په زړه كښې دننه دكتلو هغه طاقت پيدا كړو كوم چه په سترګو كښې پيدا كړې وو نو د زړه په سترګو حضورپاك الله تعالى اوليدلو علم اوتصور مراد نه دې كتل مراد دى. د سورت نجم په آياتونو كښې نور د الله تعالى د ديدار په امكان اوعدم امكان كښې دتفصيل د دې باب په اول كښې ذكرشوې دې.

**[٥٦٦١] آيا حضور ﷺ په شب معراج كې الله ﷻ ليدلى وو**

٥٦٦١-()[۷] ۱ وَعَنِ الشَّعْبِيِّ، قَالَ: «لَقِيَ ابْنُ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - كَعْبًا بِعَرَفَةَ، ۲ فَسَأَلَهُ عَنْ شَيْءٍ، فَكَبَّرَ حَتَّى جَاوَبَتْهُ الْجِبَالُ. ۳ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: إِنَّا بَنُو هَاشِمٍ ۴ فَقَالَ كَعْبٌ: إِنَّ اللَّهَ قَسَمَ رُؤْيَتَهُ وَكَلَامَهُ بَيْنَ مُحَمَّدٍ وَمُوسَى، ۵ فَكَلَّمَ مُوسَى مَرَّتَيْنِ، وَرَآهُ مُحَمَّدٌ مَرَّتَيْنِ

**ترجمه:** ۱ او حضرت شعبي رحمه الله وايي د عرفي په ورځ په ميدان عرفات كې حضرت ابن عباس رضي الله عنه حضرت كعب احبار رضي الله عنه سره ملاقات وكړ ۲ او هغه نه يې پوښتنه وكړه چې آيا په دنيا كې د حق تعالى ديدار ممكن دى؟ حضرت كعب رضي الله عنه دا پوښتنه دومره عجيب او غريب وګڼله چې د ډيرې حيرانتيا نه هغه د الله اكبر نعره ووهله او د هغه د دې زور داري نعرې دبازګشت نه غرونه وكړنګيدل ۳ حضرت ابن عباس رضي الله عنه ورته اوويل مونږ د هاشم اولاد يو ۴ حضرت كعب رضي الله عنه ورته اوويل نبه ستا د پوښتني مقصد اوس ځما په پوهه كې راغې نو واوره! الله ﷻ خپل ديدار او خپل كلام د حضرت محمد ﷺ او حضرت موسى عليه السلام په منځ كې تقسيم كړ يعنى يو يې خپل كلام سره مشرف كړ او يو ته يې د خپل ديدار سعادت وركړې ۵ نو الله ﷻ دوه ځله د موسى عليه السلام سره كلام وكړ يووار خو وادي ايمن كې او دويم ځل كوه طور باندې او حضرت محمد ﷺ شب معراج كې دوه ځله الله ﷻ اوليدلو

۱ قَالَ مَسْرُوقٌ: فَدَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ، ۲ فَقُلْتُ: رَأَى مُحَمَّدٌ رَبَّهُ؟ ۳ فَقَالَتْ: لَقَدْ تَكَلَّمْتَ بِشَيْءٍ. قَفَّ لَهُ شَعْرِي، ۴ قُلْتُ: رُوَيْدًا، ثُمَّ قَرَأْتُ: ﴿لَقَدْ رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى﴾ [النجم: ۱۸] ۵ فَقَالَتْ: أَيْنَ تَذْهَبُ بِكَ؟ ۶ إِنَّمَا هُوَ جِبْرِيلُ. ۷ مَنْ أَخْبَرَكَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَأَى رَبَّهُ أَوْ كَتَمَ شَيْئًا مِمَّا أُمِرَ بِهِ ۸ أَوْ يَعْلَمُ الْخَمْسَ الَّتِي قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: ﴿إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ﴾ [لقمان: ۳۴] ۹ فَقَدْ أَعْظَمَ الْفِرْيَةَ،

**ترجمه:** ۱ حضرت مسروق رحمه الله چې د حديث راوي دى او هغه نه حضرت شعبي رحمه الله دا روايت نقل كوي وايي چې د عرفات ميدان كې د حضرت كعب رضي الله عنه او حضرت ابن عباس

---

() اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب سورة والنجم (رقم-٤٨٥٥) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة والنجم (رقم-٣٢٧٨)

ﷺ په منځ کې کیدونکي خبري اتري اوریدو سره زه دبي بي عائشي ﷺ په خدمت کې حاضر شوم [۲] او هغه ته مي عرض وکړو آیا حضرت محمد ﷺ خپل پروردګار لیدلی دی؟ [۳] بي بي عائشه ﷺ جواب راکړو اې مسروق تا دداسي خبري پوښتنه کړیده چې هغه سره ځما په جسم ویښته ودریدل یعنی ځما اعتقاد دادی چې د الله ﷻ ذات دي نه پاك او منزه دی چې چاته په نظر راشي ځکه ځما په نزد دنیا کې د هغه د دیدار واقع کیدل محال دی اوس تا دا پوښتنه وکړه نو د هغه د پاك ذات د عظمت او خوف نه ځما د جسم ویښته ودریدل [۴] ما عرض وکړو لږ د توقف نه کار واخلئ ځما دي پوښتني سره دومره پریشانه کیږئ مه او مه دومره زر د دیدار الهي نه انکار کوئ زه غواړم چې تاسو ځما خبره پوره طور سره واورئ بیا ما د دیدار الهي ثبوت کې دا آیت اوونیلو لَقَدْرَأٰی مِنْ اٰیٰتِ رَبِّهِ الْکُبْرٰی ګویا حضرت مسروق ﷫ د دې آیت په ذریعه دا ښکاره کړه چې ځما په نزد آیت کې لوی نښي نه مراد حضور ﷺ ته د سر په سترګو یا د زړه په سترګو دیدار الهي حاصلیدل دي چې د پروردګار په عظمت شان یا د حضور ﷺ تعظیم وتکریم باندې دلالت کوي [۵] بي بي عائشه ﷺ په دي اوریدو سره وفرمایل اې مسروق دا آیتونه تاکوم خوا بوځي یعنی درست مطلب باندې نه پوهیږې د دې آیتونو مطلب حضور ﷺ ته دیدار الهي حاصلیدل نه دی [۶] بلکه لوی نښي نه مراد حضرت جبرائیل ﷷ دی چې حضور ﷺ هغه د هغه په اصل صورت کې اولیدلو [۷] کوم سړی چې په تاسو کې دا وایي چې حضرت محمد ﷺ شب معراج کې خپل پروردګار لیدلی دی یا دا وایي چې حضور ﷺ دهغه څیزونو نه څه پټ کړی دی چې د هغه د اظهار هغوئ ته حکم ورکول شوی وو [۸] یا دا وایي چې حضور ﷺ د هغه پنځه غیبي خبرو علم لرلو چې د هغه په باره کې الله ﷻ د قرآن آیت اِنَّ اللهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ وَیُنَزِّلُ الْغَیْثَ الخ کې ارشاد فرمایلی دی [۹] نو بلاشبه هغه په حضرت محمد ﷺ دیر لوی تهمت بهتان وتړی

**حل اللغات:**- ① جَاثَيْتُهُ: په غرونو کښې آواز راوتمبیدو ② قَفَّ لَهٗ شَعْرِي: أَيْ قَامَ مِنَ الْفَزَعِ: د ویرې د وجې نه مې ویښته اودریدل. ویښته مې زیګ زیګ شول. ③ رُوَيْدًا: أَيِ ارْفُقِي وَأَمْهِلِي: لږ صبر اوکړه. نرمی راسره اوکړه ④ الغَيْثَ: باران. ⑤ الفِرْيَةَ: أَيِ الْكَذِبَ: بهتان. دروغ.

[۱] وَلٰكِنَّهٗ رَأٰى جِبْرِيلَ، لَمْ يَرَهُ فِي صُورَتِهِ إِلَّا مَرَّتَيْنِ: مَرَّةً عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى، وَمَرَّةً فِي أَجْيَادٍ [۲] لَهٗ سِتُّمِائَةِ جَنَاحٍ قَدْ سَدَّ الْأُفُقَ» . [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَرَوَى الشَّيْخَانِ مَعَ زِيَادَةٍ وَاخْتِلَافٍ، [۴] وَفِي رِوَايَتِهِمَا: قَالَ: «قُلْتُ: لِعَائِشَةَ: فَأَيْنَ قَوْلُهٗ: ﴿ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى - فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنٰى﴾ [النجم: ۸-۹] [۵] قَالَتْ: ذَاكَ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ، كَانَ يَأْتِيهِ فِي صُورَةِ الرَّجُلِ، [۶] وَإِنَّهٗ أَتَاهُ هٰذِهِ الْمَرَّةَ فِي صُورَتِهِ الَّتِي هِيَ صُورَتُهٗ، فَسَدَّ الْأُفُقَ.»

**ترجمه:** ①او هر چې د دې آیت مطلب دی چې تا ویلی دی نو د دې مراد ددې نه علاوه نور هیڅ نه دی چې حضور ﷺ حضرت جبرائیل د هغه اصل صورت کې یوه وار خو سدرة المنتهٰی سره نژدې لیدلی دې خرنګه چې دې آیت: لَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى کې فرمایل شوي دي او یو وار د مکې په نواح اجیاد کې ②او حضور ﷺ حضرت جبرائیل د هغه اصل صورت کې داسې اولیدلو چې د هغه شپږ سوه وزر وه او هغه پوره افق ګیر کړی وو ③دا روایت ترمذي رحمه الله دې الفاظو کې او بخاري او مسلم څه مزید او مختلف الفاظو سره نقل کړی دی ④او د بخاري او مسلم په یوه روایت کې داسې دي چې مسروق رحمه الله بي بي عائشه رضي الله عنها ته اوویل که حضور ﷺ الله جل جلاله نه دی لیدلی نو بیا د الله جل جلاله د دې ارشاد محمل او مصداق څه دی: ثُمَّ دَنٰى فَتَدَلّٰى فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى ⑤بي بي عائشه رضي الله عنها جواب ورکړو د دې تولو ضمیرونو مرجع حضرت جبرائیل علیه السلام دی چې عام طور سره به حضور ﷺ ته په انساني شکل کې او هغه به هم اکثره د یو صحابي حضرت دحیه کلبي رضي الله عنه په صورت کې راتلو ⑥او دا ځل د مکې نواح اجیاد کې په خپل هغه صورت کې راغلی وو کوم چې د هغه اصل صورت دی او هغه پوره اُفق ګیر کړی وو.

**حل اللغات:** -⑨سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى: سدره د بیرې ونې ته وائی او منتهی د اووم آسمان دپاسه د یوځائې نوم دې هلته د بیرې دغه وونه ده. ⑥أَجْيَادٍ: مَوْضِعٌ مَعْرُوفٌ بِأَسْفَلِ مَكَّةَ: دمکې نه ښکته یو مشهور ځائې دی. ⑧جَنَاحٌ: وزر. ⑨سَدَّ: پټ کړې ئې وو، ګیرکړې ئې وو ⑩الْأُفُقَ: د آفاق جمع ده. أَيْ أَطْرَافِ السَّمَاءِ: د آسمان کناري او اطرافو ته وائی. ⑪دَنَا: نژدې شو. ⑫فَتَدَلّٰى: پس نبه نژدې شو ⑬قَابَ: نو شو په مقدار. ⑭قَوْسَيْنِ: د لیندې د دواړو لرګو په اندازه

**تسهیلات:**

**قوله: فَقُلْتُ: رَأٰى مُحَمَّدٌ رَبَّهُ؟:**

**دمسروق اشکال:** دَ حدیث په تشریح کښې صرف آیاتونه مبارك، دَهغې ضمائر، یو اشکال اودَ هغې جواب اوګورئی آیاتونه دادی: ﴿ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى ۝ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى ۝ فَاَوْحٰى اِلٰى عَبْدِهٖ مَا اَوْحٰى ۝ مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى﴾ په دې آیاتونو کښې ﴿دَنَا﴾ او ﴿فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ﴾ کښې دَ ضمائر مرجع الله تعالی دې دَ کوم چه ظاهری قرینه دَ ﴿فَاَوْحٰى﴾ ضمیر دې. دَدې مرجع په بنیاد باندې حضرت مسروق رحمه الله اشکال اوکړو

**د اشکال جواب:** حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها د دې اشکال جواب.دا ورکړو چه دَدې افعالو دَ ضمیر مرجع هډو الله دې نه بلکه حضرت جبرائیل علیه السلام دې.

**قوله:** وَلَكِنَّهُ رَأَى جِبْرِيلَ، لَمْ يَرَهُ فِي صُورَتِهِ إِلَّا مَرَّتَيْنِ: مَرَّةً عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهَى، وَمَرَّةً فِي أَجْيَادٍ:

**اشكال:** حضرت عائشه رضي الله عنها د دي لاندې د يو بل سوال جواب ورکړو سوال دا شو چه حضورپاك به حضرت جبرائيل عليه السلام ته برابر کتل نو په شپه د معراج د هغه کتلو لره په دومره اهتمام سره د بيانولو څه ضرورت وو؟

**داشكال جواب:** حضرت جبرائيل عليه السلام به اکثر حضورپاك له په انساني شكل کښې راتللو په خپل اصل شكل کښې صرف دوه ځل راغلې وو يو ځل په مقام اجياد کښې دويم ځل سدرة المنتهى سره په دې وجه په خصوصيت سره ئې د حضرت جبرائيل عليه السلام د رؤيت ذکراوکړو

## [۵۶۶۲] د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه تفسير او تحقيق

۵۶۶۲-()[۸] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - فِي قَوْلِهِ: ﴿فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَى﴾ [النجم: ۹] وَفِي قَوْلِهِ: ﴿مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى﴾ [النجم: ۱۱] وَفِي قَوْلِهِ: ﴿رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى﴾ [النجم: ۱۸] [۲] قَالَ فِيهَا كُلِّهَا: رَأَى جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ لَهُ سِتُّمِائَةِ جَنَاحٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د الله جل جلاله دي ارشاد فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَى او د الله جل جلاله د دې ارشاد مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى اود الله جل جلاله د دې ارشاد لَقَدْ رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى [۲] د دې ټولو آيتونو په تفسير کې ليکي چې حضور صلى الله عليه وسلم حضرت جبرائيل عليه السلام د هغه اصل صورت کې اوليدلو چې د هغه شپږ سوه وزرې وې بخاري . مسلم

[۱] وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ قَالَ: ﴿مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى﴾ [النجم: ۱۱] [۲] قَالَ: «رَأَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جِبْرِيلَ فِي حُلَّةٍ مِنْ رَفْرَفٍ، قَدْ مَلَأَ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ.» [۳] وَلَهُ وَلِلْبُخَارِيِّ فِي قَوْلِهِ: ﴿لَقَدْ رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى﴾ [النجم: ۱۸] قَالَ: [۴] رَأَى رَفْرَفًا أَخْضَرَ سَدَّ أُفُقَ السَّمَاءِ.

**ترجمه:** [۱] او د ترمذي روايت کې داسې دی چې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د الله جل جلاله د دې ارشاد مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى په تفسير کې اوويل [۲] حضور صلى الله عليه وسلم حضرت جبرائيل عليه السلام اوليدلو چې د شنو کپړو جوړه يې اغوستې وه او اودآسمان او د زمکې په منځ کې فضاء ترينه معموره وه [۳] او د بخاري په يو بل روايت کې داسې دي چې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د الله جل جلاله ارشاد وَلَقَدْ رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى په تفسير کې اوويل [۴] چې حضور صلى الله عليه وسلم جامه سبز پوش يعنى حضرت جبرائيل اوليدلو چې پوره آسماني أفق يې گير کړې وو

) اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن باب {فكان قاب قوسين أو أدنى} [النجم. ۹] «حيث الوتر من القوس» (رقم-۴۸۵۶) ومسلم في كتاب الإيمان/في ذكر سدرة المنتهى (رقم ۲۸۱ (۱۷۴)والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة (رقم-۳۲۸۳)

۵۲۶۳ -(١) [١] وَسُئِلَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ [القيامة: ٢٣] [٢] فَقِيلَ: قَوْمٌ يَقُولُونَ: إِلَى ثَوَابِهِ. [٣] فَقَالَ مَالِكٌ: كَذَبُوا، [۴] فَأَيْنَ هُمْ عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿كَلَّا إِنَّهُمْ عَنْ رَبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَمَحْجُوبُونَ﴾ [المطففين: ١۵]

**ترجمه**: [١] او د امام مالك بن انس رحمه الله نه د الله تعالی د ارشاد اِلٰی رَبِّهَا نَاظِرَةٌ په باره کې پوښتنه وشوه [٢] او هغوئ ته اوويل شوه چې څه خلق يعنی معتزله او د هغوئ همنوا نور اهلِ بدعت وايي چې په دي آيت کې الله تعالی طرف ته د کتلو نه مراد د الله تعالی ذات ليدل نه دي بلکه د هغه ثواب ليدل مراد دی [٣] نو امام مالك رحمه الله وفرمايل هغه خلق دروغجن دي [۴] آخر د هغوئ پوهه چيرته لاړه هغوئ د الله تعالی دا ارشاد. كَلَّا إِنَّهُمْ عَنْ رَبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَمَحْجُوبُونَ ولې نه ويني چې الله تعالی کافرانو ته پيغوررورکړيدي

[١] قَالَ مَالِكٌ: النَّاسُ يَنْظُرُونَ إِلَى اللّٰهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِأَعْيُنِهِمْ، [٢] وَقَالَ: لَوْ لَمْ يَرَ الْمُؤْمِنُونَ رَبَّهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ [٣] لَمْ يُعَيِّرِ اللّٰهُ الْكُفَّارَ بِالْحِجَابِ [۴] فَقَالَ: ﴿كَلَّا إِنَّهُمْ عَنْ رَبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَمَحْجُوبُونَ﴾ [المطففين: ١۵]. رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه** [١] بيا امام مالك وفرمايل په دي کې څه شك نشته چې مسلمانان خلق به الله تعالی خپلو سترګو سره ويني [٢] او وي فرمايل که داخبره وي چې اهلِ ايمان به د قيامت په ورځ خپل پروردګار نه ويني [٣] نو الله تعالی به کفاروته د ديدار الٰهي نه د محرومی عار نه ورکولي [۴] او دابه يي نه فرمايل چې. كَلَّا إِنَّهُمْ عَنْ رَبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَمَحْجُوبُونَ دا روايت بغوي رحمه الله شرح السنه کې نقل کړی دی.

**حل اللغات**- ① حُلَّةٌ: جامې. ② رَفْرَفٌ: ددې جمع رُفُوفٌ راځي. نبانسته نرمې جامې. زيرې جامې ③ مَلأٌ: ډکه کړې وه. ④ سَدَّ: پټ کړې ئې وو. ګيرکړې ئې وو ⑤ الأُفُقَ: د آفاق جمع ده. أَيْ أَطْرَافَ السَّمَاءِ: د آسمان کنارې او اطرافو ته وائی ⑥ لَمَحْجُوبُونَ: أَيْ لَا يَرَوْنَ اللّٰهَ سُبْحَانَهُ: دوی به په پردو کښې پټ وی الله تعالی به نه وينی (اولکه څنګه چه دالله ديدار کول زيادت من الله دې په ثواب کښې لکه. ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَى وَزِيَادَةٌ﴾ دغسې ديدار نه محروم کيدل سخت عذاب دې) ⑦ لَمْ يُعَيِّرْ: عار يعنی شرم به ئې نه ورکولې (د محروم کيدو نه به ئې نه ويرول)

**تسهيلات**:

**نوټ**: د الله تعالی د ديداربارہ کښې تفصيل د مشکاة د حديث نمبر(۵۲۶۶) په تسهيل کښې ذکرشوې دي

---

(١) اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم الحديث ١۵/ ٢٣٩

## [٥٦٦٤] د ديدار الهي كيفيت

٥٦٦٣-()[٩] ① وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«بَيْنَا أَهْلُ الْجَنَّةِ فِي نَعِيمِهِمْ إِذْ سَطَعَ لَهُمْ نُورٌ، ③ فَرَفَعُوا رُءُوسَهُمْ، فَإِذَا الرَّبُّ قَدْ أَشْرَفَ عَلَيْهِمْ مِنْ فَوْقِهِمْ، ④ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ، ⑤ قَالَ وَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى: ﴿سَلَامٌ قَوْلًا مِنْ رَبٍّ رَحِيمٍ﴾ [يس: ٥٨]

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي حضور ﷺ وفرمايل ② هركله چې جنتيان خپلو خاصو نعمتونو نه لذت او كيف اوچتولو كې مشغول شي نو اچانك به د هغوئ مخكې يو عظيم نور راشي ③ هغوئ به دي نور ليدو د پاره خپل سرونه پورته كړي نو څه به ويني چې دهغوئ سربيره پروردګار جلوه ګردی ④ او پروردګار به هغوئ ته فرمايي اې جنتيانو! السلام عليكم ⑤ او دا يعنى هغه وخت د پروردګار جنتيانو ته سلام كول قرآن كريم كې د دي ارشاد: سَلَامٌ قَوْلًا مِّن رَّبٍّ الرَّحِيمِ نه ثابت دی

**حل اللغات:-** ① سَطَعَ: أَيْ سَنَحَ وَلَمَعَ: راښكاره به شي، اوبه ځليږي. ④ أَشْرَفَ: أَيْ تَجَلَّى: راښكاره به شي يعنى خپله تجلى به راښكاره كړي.

① قَالَ: فَيَنْظُرُ إِلَيْهِمْ وَيَنْظُرُونَ إِلَيْهِ ② فَلَا يَلْتَفِتُونَ إِلَى شَيْءٍ مِنَ النَّعِيمِ ③ مَا دَامُوا يَنْظُرُونَ إِلَيْهِ، ④ حَتَّى يَحْتَجِبَ عَنْهُمْ وَيَبْقَى نُورُهُ وَبَرَكَتُهُ عَلَيْهِمْ فِي دِيَارِهِمْ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① حضور ﷺ وفرمايل بيا به الله ﷻ جنتيانو طرف ته وګوري او جنتيان به الله ﷻ طرف ته وګوري ② او هغوئ به ديدارِ الهي كې دومره محو شی چې هغه وخت به د جنت نعمتونو كې هيڅ شی طرف ته توجه نه كوي ③ د دي پورې چې پروردګار به د هغوئ د نظرونو نه مخفي شي او د هغه نور به باقي پاتې شي (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ② فَلَا يَلْتَفِتُونَ: هيڅ توجه به نه وركوی، نه به ګوری. ④ يَحْتَجِبَ: أَيْ بِإِيقَاعِ الْحِجَابِ عَلَيْهِمْ: پټ به شي يعنى په جنتيانو به د خپلو تجلياتو پردې واچوی

**تسهيلات:** قوله: قَالَ: فَيَنْظُرُ إِلَيْهِمْ وَيَنْظُرُونَ إِلَيْهِ ② فَلَا يَلْتَفِتُونَ إِلَى شَيْءٍ مِنَ النَّعِيمِ:

**په جنت كښې د الله تعالى د ديدار بار بار حاصليدل:** د حديث الباب حاصل دادې چه تركومې پورې الله تعالى خپل ديدار وركول غواړی هم دومره وخت به ښكاری بيا به الله تعالى د جنتيانو مخې ته حجاب يعنى پرده راولی ليكن دهغه د جلوې نورانيت او د هغه د ديدار نه حاصليدونكې حالت او مزه به باقی وی بيابه الله تعالى د جنتيانو دپاره داسې صورت حال پيدا كړی چه جنتيان به بيا دخپل جنت په نعمتونو كښې مشغول شی بيا به هغوی د نوی سر نه د الله تعالى د ديدار خواهش مند شی بيا به ورته الله تعالى دوباره ديدار اوكړی دكوم په وجه چه به د جنتيانو انعامات نور هم ډير شی اوهم دغه سلسله به روانه وی

) اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم باب فيما أنكرت الجهمية (رقم-١٨٤)

# [۷] بَابُ صِفَةِ النَّارِ وَأَهْلِهَا

## ددوزخ اودوزخيانو بيان

**خلاصة الباب**

**فيه تسعة وعشرون حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① بيان شدة حرارة النار: ۱، ۲ ۳، ۴، ۵، ۹.
② ذكر من يلقى ف النار : ۵، ۲۸، ۲۹.
③ أحوال جهنم: ۲، ۱۷، ۲۴.
④ أحوال أهل النارعذاباً: ۳، ۴، ۷، ۸، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۶.
⑤ بعض مقامات جهنم خصوصاً: ۱۳، ۲۵.
⑥ شدة أحوال جهنم : ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۸، ۱۹، ۲۷.
⑦ التخويف عن النار بالشدة: ۲۳.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۶۶۵] ددوزخ د اور گرمي

۵۶۶۵-(۱)[۱] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②"«نَارُكُمْ جُزْءٌ مِنْ سَبْعِينَ جُزْءًا مِنْ نَارِ جَهَنَّمَ③" قِيلَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِنْ كَانَتْ لَكَافِيَةً! ④قَالَ: " فُضِّلَتْ عَلَيْهِنَّ بِتِسْعَةٍ وَسِتِّينَ جُزْءًا، ⑤كُلُّهُنَّ مِثْلُ حَرِّهَا" .»مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَاللَّفْظُ لِلْبُخَارِيِّ.

**ترجمه:** ①حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②ستاسو د دنيا اور د دوزخ د اور د اويا حصو نه يوه حصه ده ③عرض وشو يارسول الله د دنيا دا اورهم عذاب ورکولو د پاره کافي وو بيا دي نه د زيات حرارت لرونکي اور پيدا کولو څه ضرورت وو ④حضور ﷺ وفرمايل د دوزخ اور د دنيا د اور نه يوکم اويا ۶۹ حصي زياتي شوي دي ⑤اودی يوکم اويا حصو کې هره حصه ستاسو د دنيا د اور برابره ده دا روايت بخاري او مسلم نقل کړی دی ليکن دلته مذکوره الفاظ د بخاري دی

**حل اللغات** - ①کَافِيَةً کافی وو ،دا د دنيا أور،.

[۱] ) اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب صفة النار. وأنها مخلوقة " (رقم-۳۲۶۵) ومسلم في كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب في شدة حر نار جهنم وبعد قعرها وما تأخذ من المعذبين (رقم-۳۰ - (۲۸۴۳) والترمذي في كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن ناركم هذه جزء من سبعين جزءاً من نار جهنم (رقم-۲۵۸۹) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب صفة النار (رقم-۴۳۱۸) واحمد في المسند:۲/۳۱۳ ومالک في الموطا في كتاب جهنم باب ما جاء في صفة جهنم (رقم-۱)

[۱] وَفِي رِوَايَةِ مُسْلِمٍ: " «نَارُكُمُ الَّتِي يُوقِدُ ابْنُ آدَمَ» ". [۲] وَفِيهَا: " عَلَيْهَا "، " وَكُلُّهَا " بَدَلُ: " عَلَيْهِنَّ "، وَ" كُلُّهُنَّ ".

**ترجمه:** [۱] او د صحيح مسلم روايت داسې دی چې حضور ﷺ وفرمايل ستاسو د دنيا دا اور چې ابن آدم انسان يې بلوي د دوزخ د اور اويا حصو نه يوه حصه ده [۲] او د مسلم په يوه روايت کې عليهن او کلهنّ په ځاي د عليها او کلها الفاظ دي.

**حل اللغات:** -⑦ يُوقِدُ: اور بلوی

**تسهيلات:**

**قوله:** نَارُكُمْ جُزْءٌ مِنْ سَبْعِينَ جُزْءًا مِنْ نَارِ جَهَنَّمَ:

**د جنهم د اور د دنياوی اور په مقابله کښې شدت:** يعنی دَ دنيا دَ اور ګرمائش دَ دوزخ دَ اور دَ ګرمائش په نسبت اويايم جز دې. دَ دوزخ اور په ګرمائش کښې يوکم اويا درجې زيات دي ممکن ده چه دَ اويا ذکر دَتکثير په توګه وی يعنی دَ دوزخ دَ اور حرارت دَحساب نه بهر اوډير زيات هم وی. چونکه دَ دوزخ په اور الله تعالی خپل نافرمانه بنديګانوته عذاب ورکوی اودَ دنيا په اور سره انسان ته عذاب ورکوی نو په دواړو کښې دا فرق شو ګني دَ سوزولودَپاره خودَدنيا دا اورهم کافی اوشافی دې. وړاندې په حديث کې هم دغه بيان دې

**قوله:** إِنْ كَانَتْ لَكَافِيَةً:

**دعذاب په شدت کښې نکته:** يعنی چه په يوه درجه کښې هم وی بياهم دَ سوزولودَپاره دَدنيا اور کافی وو بيا دَ اوياؤ درجو دَ زياتولو څه ضرورت وو؟ دَدې په جواب کښې حضورپاك اوفرمائيل چه دَ دوزخ دَ اورحرارت څکه زيات کړې شوچه په دې سره الله تعالی عذاب ورکوی.

### [۵۶۶۶] د دوزخ راوستلوذکر

۵۶۶۶-(¹)[۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «يُؤْتَى بِجَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لَهَا سَبْعُونَ أَلْفَ زِمَامٍ [۳] مَعَ كُلِّ زِمَامٍ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ يَجُرُّونَهَا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به دوزخ د هغه ځاي نه چيرته چې الله ﷻ هغه پيدا کړی دی راوستی شی د هغه به اويا زره واګي (قيزي) وي [۳] او هري واګي باندې به اويا زره فرښتي مقرري وي چې هغه به رانښکلو سره راولي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① زِمَامٍ: وَهُوَ مَا يُشَدُّ بِهِ: واګې، په کوم سره چه به تړلې شوې وی ② يَجُرُّونَهَا: أَيْ يَسْحَبُونَهَا: راکاږی به ئې (فرښتې به دا جهنم راکاږی)

---

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب فی شدة حر نار جهنم وبعد قعرها وما تأخذ من المعذبين (رقم-۲۹ - (۲۸۴۲) والترمذی فی کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صفة النار (رقم-۲۵۷۳)

**تسهيلات:**

**قوله:** يُؤْتَى بِجَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لَهَا سَبْعُونَ أَلْفَ زِمَامٍ مَعَ كُلِّ زِمَامٍ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ يَجُرُّونَهَا:

**دجهنم د حفاظت دپاره د فرښتو تكورى:** دَ قيامت په ورځ به ميدان محشرته دوزخ راوستلې شي نو دې به په كافرانو باندې سخت غضبناك وى په دې وجه فرښتې په قابو كښې راوستلو دپاره دي ته اويازره واګې اچوى اوهرې واګې سره به اويا زره فرښتې وى لكه چه څلور اربه لس كم سل كروړه فرښتې به په حفاظت باندې مامورى دَدې دپاره هسې نه چه په غصه اوغضب كښې راتلوسره دوزخ ټول انسانان په يوځل ستلوسره صفانه كړى

**[٥٦٦٧]د دوزخ د ټولو نه سپك لړعذاب**

٥٦٦٧-()[٣] [١]وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]" «إِنَّ أَهْوَنَ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا مَنْ لَهُ نَعْلَانِ وَشِرَاكَانِ مِنْ نَارٍ، [٣]يَغْلِي مِنْهُمَا دِمَاغُهُ كَمَا يَغْلِي الْمِرْجَلُ، [٤]مَا يَرَى أَنَّ أَحَدًا أَشَدُّ مِنْهُ عَذَابًا، وَإِنَّهُ لَأَهْوَنُهُمْ عَذَابًا» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١]او حضرت نعمان بن بشير ﵄ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢]حقيقت دى چې په دوزخيانو كې كوم سړى د ټولو نه سپك عذاب كې مبتلا وي هغه ته به د اور دوه څپلي واچول شي چې د هغه برسيره به د اور دوه تسمې وي يعنى د هغه چپلو تَلى به هم د اور وي چې د پښو برسيره حصه باندې وي [٣]او د هغه دواړو چپلو د تلو او تسمو د حرارت نه به د هغه دماغ داسې جوش وهي څرنګه چې ديګ جوش وهي [٤]هغه سړى به د نورو دوزخيانو د حالت او كيفيت نه ناخبره وي څكه دا خيال به كوي چې د هغه نه زيات په عذاب كې مبتلا هيڅوك نشته [٥]حالانكه هغه به د ټولو نه سپك عذاب كې مبتلا وي

**حل اللغات:-** ① أَهْوَنَ: أَيْ أَيْسَرَ: آسان، سپك. ② نَعْلَانِ: د نعل تثنيه ده. چپلو يعنى پيزار ته وائى ③ شِرَاكَانِ: دوه تسمې. ④ يَغْلِي: أَيْ يَفُورُ: جوشيږى او خوټكيږى به. ⑤ الْمِرْجَلُ: أَيْ: قِدْرٌ: كټوئ. ديګچې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ أَهْوَنَ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا مَنْ لَهُ نَعْلَانِ وَشِرَاكَانِ مِنْ نَارٍ:

**د كم عذاب والا جهنمى د عذاب كيفيت:** په آخرت كښې چه كوم سړى ته سپك عذاب وى هغه ته به دَ اور دوه څپلئى واچولې شى دكوم په وجه چه به دَ هغه دماغ خوټكيږى او جوش به وهى هغه سړې به دا خيال كوى چه دَټولو نه زيات عذاب هم هغه ته وركولې

[١]) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار (رقم-٦٥٦١و٦٥٦٢) ومسلم في كتاب الإيمان/باب أهون أهل النار عذابًا (رقم-٣٦٢ - (٢١٢) واحمد في المسند:٧٨/٣

شي حالانکه هغه ته به دَ تولو نه سپك عذاب ورکولې کيږي دَ اهل علم په نيز به دا سرې ابو طالب وی چه دَحضورپاك دَ شفاعت دَ دعا په برکت سره به ورته سپك عذاب ورکولې شي لکه چه په وړاندې روايت کښې راځي بل دَ اور څپلئي خو به يا دَ سرو تکو نه جوړې وی يا به په اور باندې ګرمې کړې شوې وی اول معنی راجح ده دَدې نه معلومه شوه چه دَ داسې سړی په خپو کښې به صرف اور وی باقی بدن کښې به نه وی

**[٥٦٦٨]په دوزخ کې د ټولو نه کم عذاب به ابوطالب ته وي**

٥٦٦٨-()[٣] [١]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] «أَهْوَنُ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا أَبُو طَالِبٍ، [٣]وَهُوَ مُنْتَعِلٌ بِنَعْلَيْنِ يَغْلِي مِنْهُمَا دِمَاغُهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**توجمه:** [١]و حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢]په دوزخيانو کې د ټولو نه کم عذاب به ابوطالب ته وي [٣]هغه به د اور څپلي اچولي وي چې په هغه سره به يې دماغ جوش وهي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ①مُنْتَعِلٌ: د باب تفعيل نه يا د باب افعال نه دې، أَيْ مُتَلَبِّسٌ: اغوستې به ئې وی

**تسهيلات:**

**قوله: أَهْوَنُ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا أَبُو طَالِبٍ، [٣]وَهُوَ مُنْتَعِلٌ بِنَعْلَيْنِ يَغْلِي مِنْهُمَا دِمَاغُهُ :**

**دنبی عليه السلام په مدد او حفاظت کښې دابو طالب کردار:** ابو طالب دَ حضورپاك سکه تره وو هغوی دَ رسول الله ﷺ ډير زيات خدمت او حمايت کړې وو دَ الله تعالی تکوينی فيصله وه او دا حکمت هم وو چه ابو طالب دَ حضورپاك او قريشو په مينځ کښې دَ رابطې کار او کړی او دَ ډهال په توګه باندې کردار اداکړی. قريشو به په حضورپاك باندې يودم لاس نه شو اوچتولې ځکه چه ابوطالب دَهغوی په مذهب باندې وو اسلام ئې دَ زړه نه پيژندلو مګر ايمان ئې رانوړلو په آخر وخت کښې يو ځل دَ اسلام اقرار اوکړو مګر ابوجهل لعين منع کړو چنانچه دَ ابوطالب دَ بدن ظاهری حصې سره دَ حضورپاك بدن مبارك لګيدلې وو په دې وجه به دَ هغه په ظاهری بدن باندې به دَ دوزخ اور نه شی اچولې البته دَهغه دَ خپو لاندې به دوه سکروټکې کيخودې شی يا به ورته دَ اور څپلئی اچولې شی په کوم سره چه به دَهغوی مازغه خوټکيږی دَدې حديث نه معلومه شوه چه ابو طالب مسلمان شوې نه وو دويمه خبره دا معلومه شوه چه په دوزخ کښې به دَعذاب په اعتبار سره فرق وی چاته به زيات وی او چاته کم

---

[١]) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب أهون أهل النار عذابًا (رقم-٣٦٢ - (٢١٢) واحمد فی المسند:١/ ٢٩٠

## [٥٦٦٩] يو دوزخي يو جنتي

٥٦٦٩ - ( )[٥] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«يُؤْتَى بِأَنْعَمِ أَهْلِ الدُّنْيَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [٣] فَيُصْبَغُ فِي النَّارِ صَبْغَةً، [٤] ثُمَّ يُقَالُ لَهُ: يَا ابْنَ آدَمَ، هَلْ رَأَيْتَ خَيْرًا قَطُّ، هَلْ مَرَّ بِكَ نَعِيمٌ قَطُّ؟ [٥] فَيَقُولُ: لَا وَاللَّهِ يَا رَبِّ. [٦] وَيُؤْتَى بِأَشَدِّ النَّاسِ بُؤْسًا فِي الدُّنْيَا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ، فَيُصْبَغُ صَبْغَةً فِي الْجَنَّةِ،

**ترجمه:** [١] او حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د قيامت په ورځ به په دوزخيانو کې يو داسې سړی راوستل شي چې په دنيا کې د ټولو نه زيات په عيش او ارام کې ژوند تيروی او هغه عيش او ارام نه به مست کيدو سره ظلم زور کې ډير زيات شوی وو [٣] بيا به هغه ته په دوزخ کې يوه غوپه ورکول شي يعنی په دوزخ کې به غرق شي څرنګه چې کپړه رنګ کې غوپه کولی شي [٤] او ورته به اوويل شي چې ای ابن آدم آيا ته په دنيا کې څه راحت ليدلی وو او څه عيش وعشرت دي کړی وو هغه دوزخي به په دوزخ کې د اچولو د ويرې نه دومره وارخطاشي چې د دنيا هغه ټول ناز ونعم او ټول آسائش او راحت به هير کړي کوم چې ده ته هغه حاصل وو او داسې به ښکاره کړي لکه چې هغه ته په دنيا کې هيڅ راحت او نعمت نصيب شوی نه وو [٥] نو هغه به وايي چې نه ای خما پروردګاره! قسم په الله ما ته هيڅ راحت او نعمت نصيب شوی نه وو [٦] د غه شان جنتيانو نه به يو داسې سړی راوستل شي چې په دنيا کې د ټولو نه زيات غم او الم او مشقت او کلفت برداشت کونکی وو بيا به هغه ته په جنت کې يوه غوپه ورکول شي

**حل اللغات:** - ① بِأَنْعَمِ: أَيْ أَشَدِّهِمْ تَنَعُّمًا: چه ډير په نعمتونو او عيش وعشرت کښې به وو ② فَيُصْبَغُ: أَيْ يُغْمَسُ: غوپه به ورته ورکړې شي (په اور د جهنم کښې)

[١] فَيُقَالُ لَهُ: يَا ابْنَ آدَمَ، هَلْ رَأَيْتَ بُؤْسًا قَطُّ؟ وَهَلْ مَرَّ بِكَ شِدَّةٌ قَطُّ؟ [٢] فَيَقُولُ: لَا وَاللَّهِ يَا رَبِّ، مَا مَرَّ بِي بُؤْسٌ قَطُّ، وَلَا رَأَيْتُ شِدَّةً قَطُّ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او ورته به اوويل شي چې اې بني ادمه! آيا تا په دنيا کې څه غم پوزنه کړی وو او څه مشقت او کلفت تکليف سره مخ شوی وي؟ [٢] هغه جنتي به د جنت نعمتونه او راحتونه ليدو سره د دنيا ټول رنج وغم کلفت او مشقت هير کړي او جواب به ورکړي چې نه اې خما پروردګاره! قسم په الله ما په دنيا کې هيڅ کله رنج وغم نه وو ليدی او هيڅ مشقت او تکليف مې نه وو تير کړی (مسلم)

**حل اللغات:** -③ بُؤْسًا: أَيْ شِدَّةً وَمَشَقَّةً: محتاج چه ډير مشقتونه او تکليفونه به ئې برداشت کول د غريبئ او د محتاجئ په وجه

**تسهيلات:** **نوټ:** د مذکوره حديث په مفهوم کښې څخه مشکل نشته

[١] ) اخرجه مسلم في كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب صبغ أنعم أهل الدنيا في النار وصبغ أشدهم بؤسًا في الجنة (رقم-٥٥ - (٢٨٠٧) واحمد في المسند:٢٠٣/٣

## [۵۶۷۰] د شرک خلاف اشتباه خبرداري ورکول

۵۶۷۰-()[۲] ۱ وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ "«يَقُولُ اللهُ لِأَهْوَنِ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ: ۳ لَوْ أَنَّ لَكَ مَا فِي الْأَرْضِ مِنْ شَيْءٍ أَكُنْتَ تَفْتَدِي بِهِ؟ ۴ فَيَقُولُ: نَعَمْ، ۵ فَيَقُولُ أَرَدْتُ مِنْكَ أَهْوَنَ مِنْ هَذَا وَأَنْتَ فِي صُلْبِ آدَمَ ۶ أَنْ لَا تُشْرِكَ بِي شَيْئًا، فَأَبَيْتَ إِلَّا أَنْ تُشْرِكَ بِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ۲ الله ﷻ به د قيامت په ورځ دوزخيانو نه يو سړي ته چې د ټولو نه به کم عذاب کې وي وفرمايي ۳ که تا سره دزمکي د مخ د څيزونو نه څه داسې شی وی چې ته يې په خپله فديه کې ورکړي او دهغه په عوض کې د دوزخ د عذاب نه خواه هرځومره لږ وي خلاصون پيدا کړي نو آيا تا به داسې کړي وه ۴ هغه دوزخي به وايي چې هو زه به د دنيا د حاصل شوي د لوی نه لوی شی په بدله کې ورکولو سره دوزخ نه به خلاصون وغواړم ۵ الله ﷻ به ورته فرمايي اې بدنصيبه انسانه! ما خو هغه وخت هرکله چې ته د آدم په شا کې وي په دي بدله کې دڅه شی ورکولو نه هم آسانه شی ستا د پاره مقرر کړی وو ۶ او هغه دا چې ته ما سره څه شی مه شريکوه خو ته د هغه نه واوريدی او ځما د احکامو څه پابندي دي ونه کړه ددي پورې چې د بتانو وغيره د پرستش او تعظيم په ذريعه ځما شريك دی وګرځوی نو اوس زه د دوزخ د هغه عذاب په بدله کې هيڅ شی نه قبلوم که ته د دنيا ټول څيزونه راوړي «بخاري مسلم»

**حل اللغات:**- ① تَفْتَدِي : دا د اِفْتِدَاء نه دي، بِمَعْنَى إِعْطَاء: دخان خلاصی دپاره فديه او معاوضه ورکول ② أَرَدْتُ: أَيْ طَلَبْتُ: د اراده نه مراد مطالبه کول او حکم کول دی، يعنی ما ستا نه مطالبه کړې وه. اوحکم مې درته کړې وو ③ أَهْوَنَ : أي بِأَسْهَلَ: آسان. ④ صُلْبِ: شا ، ملا . ⑤ فَأَبَيْتَ: انکار دې اوکړو يعنی زما دحکم نه دې مخ واړولو

**تسهيلات:**

**قوله:** فَيَقُولُ أَرَدْتُ مِنْكَ أَهْوَنَ مِنْ هَذَا.....أَنْ لَا تُشْرِكَ بِي شَيْئًا، فَأَبَيْتَ إِلَّا أَنْ تُشْرِكَ بِي:

**د ارادې څخه مراد دی:** دَ حديث ظاهری الفاظ خودَ اراده دَپاره دی مګر په دې سره حکم ورکول مراد دی چه ما تاته دَدې نه آسان حکم درکړې وو کوم وخت چه ته دَ آدم عليه السلام په شا کښې وې مګر تا اونه منلو علامه طيبی رحمه الله فرمائی دَ "عهدالست" طرف ته اشاره ده

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب أحادیث الأنبياء/باب خلق آدم صلوات الله عليه وذريته (رقم-۳۳۳٤) ومسلم فی کتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب طلب الكافر الفداء بملء الأرض ذهبًا (رقم-۵۱ - (۲۸۰۵)

## [٥٦٧١] په عذاب کې تفاوت او درجات

٥٦٧٠-(١) [١] وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «مِنْهُمْ مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى كَعْبَيْهِ، [٣] وَمِنْهُمْ مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى رُكْبَتَيْهِ، [٤] وَمِنْهُمْ مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى حُجْزَتِهِ، [٥] وَمِنْهُمْ مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى تَرْقُوَتِهِ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [٢] دوزخيانو نه به څه خلق هغه وي چې د هغوئ دواړو پنړكو پورې به اور وي [٣] او څه خلق به هغه وي چې د هغوئ دواړو زنګنونو پورې به اور وي [٤] ځنې خلق به هغه وي چې د هغوئ دملا پورې به اور وي او څه خلق به هغه وي چې د هغوئ ترخټ او غاړې پورې به اور وي (مسلم)

**حل اللغات:-** ① تَأْخُذُهُ: چه نيسى به ئې، رسيږى به ورته (اور) ② كَعْبَيْهِ: دكعب تثنيه ده. يعنى دواړو ګيټو پورې. ③ رُكْبَتَيْهِ: د ركبة تثنيه ده يعنى دواړو كوندو پورې. ④ حُجْزَتِهِ: أَيْ مَعْقِدِ إِزَارِهِ: د ننګ ترلو ځائې يعنى بدې پورې (حجزة نرئ ملا ته وائى). ⑤ تَرْقُوَتِهِ: أَيْ إِلَى حَلْقِهِ: د حلق يعنى مرئ پورې (ترقوة د مرئ غوټې ته وائى).

**تسهيلات:**

**قوله: مِنْهُمْ مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى كَعْبَيْهِ:**

**دګناهونوپه اعتبارسره دجهنميانود عذاب شدت:** په آخرت كښې به خلقو نه دهغوى دخرابو عقيدو او خرابو اعمالو په اندازه سره عذاب وركولې شي د چا چه څومره لويه ګناه وى هغه به په هغه هومره عذاب كښې راګيروى

## [٥٦٧٢] د دوزخيانو جسم

٥٦٧١-(٢) [٨] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «مَا بَيْنَ مَنْكِبَيِ الْكَافِرِ فِي النَّارِ مَسِيرَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ لِلرَّاكِبِ الْمُسْرِعِ» . [٣] وَفِي رِوَايَةٍ: «ضِرْسُ الْكَافِرِ مِثْلُ أُحُدٍ، وَغِلَظُ جِلْدِهِ مَسِيرَةُ ثَلَاثٍ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ، [٤] وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ: «اشْتَكَتِ النَّارُ إِلَى رَبِّهَا» فِي بَابِ (تَعْجِيلِ الصَّلَاةِ).

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په دوزخ كې به د كافر جسم دومره غټ او چاغ شي چې د هغه د دواړو اوږو په منځ كې درمياني فاصله به

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب فى شدة حر نار جهنم وبعد قعرها وما تأخذ من المعذبين (رقم-٣٣ - (٢٨٤٥) والنسائى فى كتاب الإيمان وشرائعه/باب زيادة الإيمان (رقم-٥٠١٠) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب باب فى الإيمان (رقم-٦٠) واحمد فى المسند:١٠/٥

[٢] اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار(رقم-٦٥٥١) ومسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب النار يدخلها الجبارون والجنة يدخلها الضعفاء (رقم-٤٥ - (٢٨٥٢) واحمد فى المسند:٣٢٨/٢

د تیز رفتار سواري د دریو ورځو د مسافت برابر وي ۲ او په یوه روایت کې داسې دي چې په دوزخ کې به د کافر غاښ د اُحد دغره برابر وي، (مسلم) ۴ او په ((باب تعجیل الصلوٰة)) کښې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کښې ذکر دی چې اور خپل رب ته شکایت (ګیله) وکړو

**حل اللغات:-** ① الْمُسْرِع: تیز رفتار. ② ضِرْسُ : د داړې غاښ. ③ غِلَظُ : أَيْ عِظَمُهُ: سختوالې. پیړوالې

**تسهیلات:**

**قوله: ضِرْسُ الْكَافِرِ مِثْلُ أُحُدٍ، وَغِلَظُ جِلْدِهِ مَسِيرَةُ ثَلَاثٍ:**

**جهنم کښې د کافرانو د جسامت غټوالې:** دَدې حدیث نه معلومیږی چه په قیامت کښې به دَ کافرانو بدنونه ډیر زیات غټ شی. دَدې نه وړاندې دَ جنت متعلق احادیثو کښې داذکرشو چه دَ اهل جنت بدنونه به هم په جنت کښې غټ شی دَدې اصل وجه داده چه په قیامت کښې به دَالله تعالی په صفاتو کښې دکمال اوترقئی ظهوراوشی په دې وجه به دَ اهل جنت او اهل دوزخ بدنونه په کمال باندې راشی لکه چه دَ الله تعالی صفت دَتخلیق به په کمال باندې راشی. دا به دَهغې نتیجه وی.

**اشکال:** په دې حدیث کښې دَ کافرانودَ بدن غټیدو بیان دې خو په یوبل حدیث کښې دی چه دَ قیامت په ورځ به دَ کبرژنو خلقو بدنونه دَ میږو په شان واړه اوذلیل شی. داتعارض دې دَدې څه جواب دې؟

**داشکال جواب:** دَ بدن دا خوریدل اوچاقیدل به په دوزخ کښې دننه وی دې دَپاره چه اور ته پوره خوراك ملاؤشی اودَ بدن دَ وړوکی کیدو اوذلت اورسوا کیدل به په میدان محشرکښې وی نو څه تعارض پاتې نه شو.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

### [۵۶۷۳]د دوزخ داور ذکر

۵۶۷۳-()[۱] ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ "«أُوقِدَ عَلَى النَّارِ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى احْمَرَّتْ، ۳ ثُمَّ أُوقِدَ عَلَيْهَا أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى ابْيَضَّتْ، ۴ ثُمَّ أُوقِدَ عَلَيْهَا أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى اسْوَدَّتْ، ۵ فَهِيَ سَوْدَاءُ مُظْلِمَةٌ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهریره رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل ۲ د دوزخ اور یو زر کاله بل شو ددې پورې چې هغه سره سور شو ۳ بیا زر کاله نور بل

---

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن نارکم هذه جزء من سبعين جزءاً من نار جهنم (رقم-۲۵۹۰) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب صفة النار (رقم-۴۳۲۰)

شو ددي پورې چې هغه سپين شو [۴] بيا زر کاله بل شو ددي پورې چې تور شو نو [۵] اوس د دوزخ اور بالکل تك تور دی چې درنړا نوم هم پکښې نشته. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① أُوقِدَ: بل کړې شو أور. ② احْمَرَّتْ: د راحمرار نه دې، سور والی ته وائی. ③ اسْوَدَّتْ: تک تور شو ④ مُظْلِمَةٌ: تياره،

**تسهيلات:**

**قوله:** أُوقِدَ عَلَى النَّارِ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى احْمَرَّتْ :

**داوس محفه د جهنم د موجودوالی دلیل:** اورچه کله دَ ډیروخت پورې بلیږی نودَدې نه دَ لوګی امیزش ختمیږی او هغه سپین شی. دَلوګی دَ امیزش په وخت اور سور وی بیا دَ زیات وخت پورې بلیدودَ وجې نه تور شی. دَدې حدیث نه معلومه شوه چه دوزخ دَ اوس نه تیار دې. معتزله وائی چه اوسه پورې لا تیارنه دې. اهل سنت والجماعة وائی چه "اعدتم للکافرین" آیت ښائی چه تیاردې معتزله بیکاره دی. بهرحال دَ دوزخ اور دَ دریوزرو کالو پورې ګرم کړې شوې دې اول سور شو بیا سپین شو اوبیا تور شو

**[۵۶۷۴] د کافر دوزخي جسامت**

۵۶۷۴-()[۱۰] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «ضِرْسُ الْكَافِرِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِثْلُ أُحُدٍ، [۳] وَفَخِذُهُ مِثْلُ الْبَيْضَاءِ، [۴] وَمَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ مَسِيرَةَ ثَلَاثٍ مِثْلُ الرَّبَذَةِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به په دوزخ کې د کافر غاښ د أحد د غره برابر [۳] او د هغه ورنونه به د بيضاء غر برابر وي [۴] او په دوزخ کې د هغه د ناستي ځاي به د دريو ورځو د مسافت په قدر وي څرنګه چې ربذه ده. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① ضِرْسٌ: د داړې غاښ. ② الْبَيْضَاءُ: هُوَ اسْمُ جَبَلٍ: د يو غر نوم دې. ③ مَقْعَدُهُ: أَيْ مَوْضِعُ قُعُودِهِ: د کيناستلو ځائي. ④ الرَّبَذَةُ: قَرْيَةٌ مَعْرُوفَةٌ قُرْبَ الْمَدِينَةِ: مدينې ته نزدې د يو کلی نوم دې چه په درې ميله فاصله کښې دې يعنی دکيناستوځائی به دومره زيات راګيروی څومره چه دَ مدينې نه دَ ربذه پورې دَ دريوورځو مسافت دې.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د کافرانود جسامت د غټوالی باره کښې تشريح د مشکاة د حديث نمبر(۵۶۷۳) په تسهيل کښې تيره شوې ده.

---

[1] ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في عظم أهل النار (رقم-۲۵۷۸)

۵۶۷۵-()[۲] ①وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«إِنَّ غِلَظَ جِلْدِ الْكَافِرِ اثْنَانِ وَأَرْبَعُونَ ذِرَاعًا، ③ وَإِنَّ ضِرْسَهُ مِثْلُ أُحُدٍ، ④ وَإِنَّ مَجْلِسَهُ مِنْ جَهَنَّمَ مَا بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②د کافر دوزخي څرمن به دوه څلویښت ۴۲ لاسه پیړه وي ③د هغه غاښ به د احد د غره برابر وي ④او په دوزخ کې د هغه د ناستې ځای به د مکې او مدینې د درمیاني فاصلې برابر وي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① غِلَظَ: أَيْ عِظَمُهُ: سختوالی، پیړوالی ② ذِرَاعًا: مِنْ طَرَفِ الْمِرْفَقِ إِلَى طَرَفِ الْأُصْبُعِ الْوُسْطَى: د څنګلې د هډوکی نه تر د مینځ ګوتې پورې اوږد والی ته ذراع وائی. دې ته شرعی ګز هم وائی ③ ضِرْسَهُ: د داړې غاښ.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَإِنَّ مَجْلِسَهُ مِنْ جَهَنَّمَ مَا بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ:

**اشکال:** په دې حدیث کښې دَمجلس په ځائی دَ مکې اومدینې فاصله اوخودلې شوه اود مشکاة په حدیث نمبر(۵۶۷۳) حدیث کښې مدینه او ربذه فاصله خودلې شوې ده.

**داشکال جواب:** دَ کافرانودَ عذاب دَ تفاوت سره به په بدنونو کښې تفاوت راځی په دې وجه دا فرق دې

۵۶۷۶-()[۳] ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«إِنَّ الْكَافِرَ لَيُسْحَبُ لِسَانُهُ الْفَرْسَخَ وَالْفَرْسَخَيْنِ ③ يَتَوَطَّاُهُ النَّاسُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابن عمر ﷺ وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ②کافر به په دوزخ کې خپله ژبه دري دري او شپږ شپږ فرسخه یونیم میل یا دوه میله پورې راښکي ③او خلق به هغه خپلو پښو سره پامال کوي یعنی په هغه ژبې به ګرځي (احمد ترمذي) او ترمذي ویلي دي چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات:** - ① لَيُسْحَبُ: أَيْ يُجَرُّ: راکاږی به. ② الْفَرْسَخَ: دا دمسافت په لحاظ سره یو خاص مقدار دې ③ يَتَوَطَّاُهُ: أَيْ يَطَئُونَهُ بِأَقْدَامِهِمْ: په خپو کښې به ئې پامال کوی یعنی خلق به پرې دپاسه ګرځی راګرځی

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ الْكَافِرَ لَيُسْحَبُ لِسَانُهُ الْفَرْسَخَ وَالْفَرْسَخَيْنِ يَتَوَطَّاُهُ النَّاسُ:

**دکافر د ژبې راوتل:** کافر به هنریږی اوهنریدل به ئی هم دَ سپی په شان ژبه راوباسی نودَ

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی عظم أهل النار (رقم-۲۵۷۷)
[2]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی عظم أهل النار (رقم-۲۵۸۰) واحمد فی المسند:۹۲/۲

هغه ژبه به درې ميله بهر زوړند وی او دوزخيان خلق به منډې وهلو سره د هغه په ژبه باندې خيژی دډې نه مقصود کافرانوته د ذلت او دردناك عذاب ورکول دی.

**[۵٦۷۷] د دوزخ غر**

۵٦۷۷-()[۳] ۱ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ "«الصَّعُودُ جَبَلٌ مِنْ نَارٍ يَتَصَعَّدُ فِيهِ سَبْعِينَ خَرِيفًا، ۳ وَيَهْوِي بِهِ كَذٰلِكَ فِيهِ أَبَدًا»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوسعيد د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ۲ صَعُود چې د هغه ذکر د قرآن مجيد دې آيت سارهقه صعودًا کې دې دوزخ کې يو غر دی چې په هغه به کافر اويا کاله پورې خيژول کيږی . ۳ او دهغه خاي نه به دغه شان اويا کاله پورې به ګويا راغورځول کيږي او برابر دا سلسله به جاري وي يعنی کافر دوزخي به هميشه په هغه غر باندې خيژول کيږی او راغورځول کيږي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① الصَّعُودُ: پورته ختلو ته وائی، ددې ضد هُبُوط راځی. صعود په جهنم کښې د يو غر نوم دې ② خَرِيفًا: أَيْ: سَنَةً: خريف د خزان موسم ته وائی. دلته ترې کال مراد دې ③ يَهْوِي: أَيْ يُكَلَّفُ: دا کافر به مکلف وی يعنی لګيا به وی (دا سلسله به جاري وی چه غورزولې به شی هميشه دپاره په دې کښې)

**تسهيلات:**

**قوله:** الصَّعُودُ جَبَلٌ مِنْ نَارٍ يَتَصَعَّدُ فِيهِ سَبْعِينَ خَرِيفًا :

**دصعود څخه مراد:** په جهنم کښې د يوغر نوم دې لکه چه قرآن پاك کښې دی ﴿ سَأُرْهِقُهُ صَعُودًا ﴾ (المدثر ۱۷) د دغه غر په څوکه به کافر د اوياؤ کالو پورې خيژولې شی او د اوياؤ کالو پورې به راغورزولې شی او مسلسل به دا سلسله جاری وی

**[۵٦۷۸] د دوزخيانو غذا**

۵٦۷۸-()[۳] ۱ وَعَنْهُ، «عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۲ قَالَ فِي قَوْلِهِ: ﴿كَالْمُهْلِ﴾ [الكهف: ۲۹] ۳ أَيْ كَعَكَرِ الزَّيْتِ، فَإِذَا قُرِّبَ إِلَى وَجْهِهِ سَقَطَتْ فَرْوَةُ وَجْهِهِ فِيهِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي ۲ چې رسول کريم ﷺ د الله ﷻ ارشاد يعنی دې آيت إِنَّ شَجَرَةَ الزَّقُّومِ طَعَامُ الْأَثِيمِ كَالْمُهْلِ يَغْلِي فِي الْبُطُونِ کې د لفظ مهل وضاحت کولو سره وفرمايل ۳ چې هغه به د زيتون د خيري په شان يوشی وي هرکله

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة قعر جهنم (رقم-۲۵۷۶) واحمد فی المسند:۷۵/۳

[2] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة شراب أهل النار (رقم-۲۵۸٤) واحمد فی المسند: ۷۰/۳ و ۷۱

چې دا مهل د دوزخي خولي ته نږدې يوړل شي نو د ګرمۍ نه به د هغه د خولي څرمن په هغه کې راولويږي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① الْمُهْلِ: تيل چټ. د تيلو سخا خيرې. ② عَكَرِ الزَّيْتِ: أَيْ دُرْدِيْهِ: د زيتونو د تيلو په وبخ کښې ناست خيرې ته وائي. تيل چټ. ③ سَقَطَتْ: راوبه غورځيږي. ④ فَرْوَةُ: أَيْ جِلْدَهُ: څرمن

**تسهيلات:** قوله: فَإِذَا قُرِّبَ إِلَى وَجْهِهِ سَقَطَتْ فَرْوَةُ وَجْهِهِ فِيهِ :

**په حديث کښې د آيت قرآني استشهاد:** فَرْوَةُ: دَمخ څرمن ته فروه وائي دَ مخ څرمن مراد ده په حديث نمبر ۱۶ کښې فروة رأسه لفظ هم راغلي دي ددې نه دَ سر اوتندی څرمن مراد ده په دې حديث کښې دَ قرآن پاك آيت ﴿وَإِنْ يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ﴾ طرف ته اشاره ده

**[٥٦٧٩] د ګرمو اوبو عذاب**

٥٦٧٩ -( )[١٥] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «إِنَّ الْحَمِيمَ لَيُصَبُّ عَلَى رُءُوسِهِمْ فَيَنْفُذُ الْحَمِيمُ حَتَّى يَخْلُصَ إِلَى جَوْفِهِ، [٣] فَيَسْلُتُ مَا فِي جَوْفِهِ [٤] حَتَّى يَمْرُقَ مِنْ قَدَمَيْهِ، [٥] وَهُوَ الصَّهْرُ، ثُمَّ يُعَادُ كَمَا كَانَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] هرکله چې د دوزخيانو په سرباندې ګرمي اوبه واچول شي نو هغه ګرمي اوبه به خکته تللو سره خيټي ته ورسيږي [٣] او هغه څيزونه به پريشي کوم چې په خيټه کې وي يعنى کولمي وغيره [٤] ددې پورې چې هغه ګرمي اوبه به په خيټه کې دننه څيزونه پريکولو او ويلي کولو سره د پښو په لار بهر راووځي [٥] او د صَهر هم دا معنى ده او بيا به هغه دوزخي چې هغه سره د ګرمو اوبو دا عمل شوى وي هغه شان به شي څرنګه چې مخکې وو (ترمذي)

**حل اللغات** - ① الْحَمِيمَ: ډيرې ګرمې اوبه. ② يُصَبُّ: أَيْ يُكَبُّ: اړولې به شى. ③ فَيَنْفُذُ: دا د نُفوذ نه دې. وَهُوَ التَّأْثِيرُ وَالدُّخُولُ فِي الشَّيْءِ: په يو څيز کښې تاثير کول او په هغې کښې داخليدلو ته نفوذ وائى يعنى دا وبه به دومره ګرمي وى چه په سر باندې اړولو سره به خيټې پورې او بيا تر خپو پورې به هر څيز ويلى کړى او په خپو به ترې بهر راوځى. ④ يَخْلُصَ: أَيْ يَصِلَ: اوبه رسيږى. ⑤ جَوْفِهِ: د خيټې مينځ. ⑥ فَيَسْلُتُ: د نصر ينصر نه دې د قطع يعنى د پرې کولو په معنى کښې دې ⑦ يَمْرُقَ: أَيْ يَخْرُجَ. دَ وتلو په معنى کښې دې ⑧ الصَّهْرُ: بِمَعْنَى الْإِذَابَةِ: ددې معنى هم د نفوذ په شان ده يعنى په بر څيز کښې تاثير کول او په هغې کښې د اخليدل

---

[1]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صفة شراب أهل النار (رقم-٢٥٨٢) واحمد في المسند: ٢/٣٧٤

**تسهيلات:**

**قوله:** فَيَسْلُتُ مَا فِي جَوْفِهِ ۲ حَتَّى يَمْرُقَ مِنْ قَدَمَيْهِ،

**په قدميه كښې دوه احتمالات:**

① په حقيقت كښې دَ قدمين څخه دا گندگي راوځي

② دَ قدميه څخه دبر مراد دي دا زيات واضح دي

**قوله:** وَهُوَ الصَّهْرُ:

**دصهر څخه مراد:** په دې جمله كښې دې آيت طرف ته اشاره ده ﴿يُصْهَرُ بِهِ مَا فِي بُطُونِهِمْ وَالْجُلُودُ﴾ يعنى په گرمو اوبو سره به ټول څيزونه سخاشي دمشكاة حديث نمبر (۵۶۸۰) كښې ددې تسهيل موجود دې.

**[۵۶۸۰] د دوزخيانو د څكلو اوبه**

۵۶۸۰-()[۳] ۱ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ فِي قَوْلِهِ: ﴿يُسْقَى مِنْ مَاءٍ صَدِيدٍ يَتَجَرَّعُهُ﴾ [إبراهيم: ۱۶] قَالَ: ۳ " يُقَرَّبُ إِلَى فِيهِ فَيَكْرَهُهُ، ۴ فَإِذَا أُدْنِيَ مِنْهُ شَوَى وَجْهَهُ، وَوَقَعَتْ فَرْوَةُ رَأْسِهِ، ۵ فَإِذَا شَرِبَهُ قَطَّعَ أَمْعَاءَهُ، حَتَّى يَخْرُجَ مِنْ دُبُرِهِ، ۶ يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى: ﴿وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ﴾ [محمد: ۱۵]، ۷ وَيَقُولُ: ﴿وَإِنْ يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ﴾ [الكهف: ۲۹] ".» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت كوي ۲ چې حضور ﷺ د الله ﷻ د دې ارشاد يُسْقَى مِنْ مَاءٍ صَدِيدٍ يَتَجَرَّعُهُ وضاحت كولو سره وفرمايل ۳ هركله چې هغه اوبه د هغه دوزخي خولي ته نزدې راوړل شي نو هغه به پوزه تروه كړي ۴ او بيا چې هغه اوبه د هغه په خوله كې واچول شي نو د هغه د خولي غوښه به وښوروي او د هغه د سر خرمن به ولويږي ۵ او هركله چې هغه دوزخي هغه اوبه اوڅكي او هغه اوبه يې خيټه ته ورسيږي نو كولمي به يې ټكړي ټكړي كړي تردي چې هغه به دده د دبري دخوا نه ووځي ۶ لكه چې الله ﷻ فرمايي وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ دغه شان قرآن كريم كې يوبل ځاي كې يې داسې فرمايلي دي وَإِنْ يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① صَدِيدٍ: الْجُرْحِ مَاؤُهُ الرَّقِيقُ الْمُخْتَلِطُ بِالدَّمِ السَّائِلِ مِنْهُ: د زخم اوبه چه وينې سره گډ وي شوې وي هغې ته صديد وائي. يعنې پيپ. نو. وينې زوې ② يَتَجَرَّعُهُ: أَيْ يَشْرَبُهُ جُرْعَةً بَعْدَ جُرْعَةٍ: په كوټ كوټ به ئې څكي. ③ شَوَى: أَيْ أَحْرَقَ: وريت به ئې كړى يعنى اوبه ئې سوزوى. ④ فَرْوَةُ: أَيْ

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صفة شراب أهل النار (رقم-۲۵۸۴) واحمد في المسند: ۵/۲۶۵

جِلْدَةُ: څرمن ⑤قَطَعَ: ټکړې ټکړې به کړی. ⑥أَمْعَاءَهُ: امعاء کولمو ته وائی یعنی د هغه کولمې
⑦يَسْتَغِيثُوا أَيْ يَطْلُبُوا الْغِيَاثَ بِالْمَاءِ: اوبه اوغواړی. ⑧الْمُهْلِ: تیل چټ. د تیلو سخا خیرې

**تسهیلات**

**قوله** يُسْقَى مِنْ مَاءٍ صَدِيدٍ يَتَجَرَّعُهُ الخ

**دصدید څخه مراد**: صدید- کچه وینې او نرې پیپ ته وائی کله چه دوزخیان دَ تندې دَ وجې نه اوبه غواړی نودَ څکلو دَپاره به هم دغه اوبه وی نو کله به په دوزخیانو باندې صدید څکولې شی اوکله به حمیم څکولې شی مقصود عذاب ورکول دی

**[٥٦٨١] د دوزخ چار دیواري**

٥٦٨١ -()[١٧] [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] قَالَ: "«لِسُرَادِقِ النَّارِ أَرْبَعَةُ جُدُرٍ [٣] كُثُفُ كُلِّ جِدَارٍ أَرْبَعِينَ سَنَةً»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي [٢] چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل د دوزخ داحاطې د پاره به چار دیواري وي [٣] چې د هغه نه د هر دیوال پلنوالی به د څلویښت کاله د مسافت برابر وي (ترمذي)

**حل اللغات** - ①لِسُرَادِقِ: ددې جمع سُرَادِقَاتٌ راځی. وَهُوَ كُلُّ مَا أَحَاطَ بِشَيْءٍ: احاطه کونکې څیز ته سرادق وائی (لکه دیوال. خیمه یا شپول وغیره) ②جُدُرٍ: د جِدَار جمع ده. دیوال ته وائی ③كُثُفُ أَيْ غِلَظُ. د کثافت نه دَ دیوال پلنوالې او پیروالې مراد دې

**تسهیلات**:

**نوټ**: په حدیث کښې ګران لغات دی اود هغې حل د حل اللغات د عنوان لاندې اوشو

٥٦٨٢ -()[١٨] [١] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«لَوْ أَنَّ دَلْوًا مِنْ غَسَّاقٍ يُهَرَاقُ فِي الدُّنْيَا [٣] لَأَنْتَنَ أَهْلَ الدُّنْيَا»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوسعید رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] د دوزخیانو د زخمونو نه چې کومې زړې اوبه بهیږې یعنی خرابه وینه او نور که د هغه یوه بوقه د کولو سره په دنیا کې توی شی [٣] نو یقیناً ټول دنیا والا به بدبویه شي (ترمذي)

**حل اللغات** - ①دَلْوًا: بوقه. بالټې. ②غَسَّاقٍ: وینې او نوونو ته غساق وائی دې نه دَ دوزخیانو د بدن دننه چه کومه ګندګی وی هغه مراد دی ③يُهَرَاقُ: أَيْ يُصَبُّ: واړولې شی. راتوې کړې شی.

---

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة شراب أهل النار (رقم-٢٥٨٤) واحمد فی المسند:٢٩/٣

[2] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة شراب أهل النار (رقم-٢٥٨٤) واحمد فی المسند:٢٨/٢

⑥لَأَنْتَنَ: بد بويه او سخا به كړي، دَ يوخيز دَ سخاكيدونه پس چه كوم سخت سخا بوئي راوچتيږي هغې ته نتن وائي د نتن ضد فَوح راځي يعني پاك او خوشبودار.

**تسهيلات:**

**قوله لَوْ أَنَّ دَلْوًا مِنْ غَسَّاقٍ يُهْرَاقُ فِي الدُّنْيَا لَأَنْتَنَ أَهْلَ الدُّنْيَا:**

**د جهنميانو په يوه بوقه پيپ باندې دنيا بدبويداره كيدل:** مطلب دا چه دَدې په وجه سره به ټول دَ دنيا خلق په سخت خراب بوئي كښې راګيرېږي. په دې حديث كښې دَ قرآن پاك دې آيت ﴿هَٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ ۝ وَآخَرُ مِنْ شَكْلِهِ أَزْوَاجٌ﴾ طرف ته اشاره ده

٥٦٨٣-( )[٨] ①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- ②أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ: ﴿اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ﴾ [آل عمران: ١٠٢] ③قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«لَوْ أَنَّ قَطْرَةً مِنَ الزَّقُّومِ قُطِرَتْ فِي دَارِ الدُّنْيَا لَأَفْسَدَتْ ④عَلَى أَهْلِ الْأَرْضِ مَعَايِشَهُمْ، ⑤فَكَيْفَ بِمَنْ يَكُونُ طَعَامَهُ» "؟!. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی ②يوه ورځ رسول الله ﷺ دا آيت اِتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ تلاوت كړې ③بيا يي وفرمايل كه د دوزخ د زقوم ونې يوه قطره هم د دې دنيا كور كې وڅځيږي نو يقينًا د دنيا والو د ژوند سامان به خراب كړي ④بيا سوچ وكړئ د هغه سړي به څه حال وي چې د هغه خوراك دا زقوم وي دا روايت ترمذي نقل كړی دی او ويلي يي دي چې دا حديث حسن صحيح دی.

**حل اللغات:-** ①قَطْرَةً: څاڅكي، ②الزَّقُّومِ: أَيْ شَجَرٍ يَخْرُجُ فِي أَصْلِ الْجَحِيمِ: دجهنم په مينځ كښې يوه اونه ده هغې ته زقوم وائي. الزَّقُّومُ شَجَرَةٌ خَبِيثَةٌ مُرَّةٌ كَرِيهَةُ الطَّعْمِ وَالرَّائِحَةِ: زقوم يوه بې خونده، ترخه او بدبوداره اونه ده چه جهنمی له به ددې دخوړلو نه كركه ورځي ③مَعَايِشَهُمْ: د مَعِيشَة جمع ده. د ژوند اسباب او سامان ته وائي يعني د خوراك څكاك څيزونه

**تسهيلات:**

**قوله: لَوْ أَنَّ قَطْرَةً مِنَ الزَّقُّومِ قُطِرَتْ فِي دَارِ الدُّنْيَا لَأَفْسَدَتْ عَلَى أَهْلِ الْأَرْضِ مَعَايِشَهُمْ:**

**نوټ:** دمشكاة حديث نمبر(٥٦٨٢) په تشريح كښې چې څه دی هم هغه تشريح دلته هم مراد دې صرف هلته د عساق ذكر وو اودلته د زقوم ذكر دې

---

[1] ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صفة شراب أهل النار (رقم-٢٥٨٥) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب صفة النار (رقم-٤٣٢٥) واحمد في المسند:١/٣٠١

## [٥٦٨٤] د دوزخيانو د خولي بدهيلتي

٥٦٨٤-()[۲۰] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] قَالَ: ﴿وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ﴾ [المؤمنون: ۱۰۴] قَالَ: [۳] " تَشْوِيهِ النَّارُ فَتَقَلَّصُ شَفَتُهُ الْعُلْيَا حَتَّى تَبْلُغَ وَسَطَ رَأْسِهِ، [۴] وَتَسْتَرْخِي شَفَتُهُ السُّفْلَى حَتَّى تَضْرِبَ سُرَّتَهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد د رسول الله ﷺ نه روايت کوي [۲] چې رسول الله ﷺ د ﴿وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ﴾ آيت په تفسير کښې وفرمايل [۳] د دوزخ اور به د کافر د خولي غونبه پخه کړي چې هغه سره به د هغه برسيره شونډه پورته وخيژي ددي پورې چې د سر درمياني حصي ته به ورسيږي [۴] او لاندي شونډه به وزړيږي ددي پورې چې نامه ناف پوري به ورسي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① كَالِحُونَ: أَيْ عَابِسُونَ: بد مخي (شکلونه به ئې مسخ شوي وي) ② تَشْوِيهِ: أَيْ تُحْرِقُ: اوبه سوزوي. ③ فَتَقَلَّصُ: أَيْ تَنْقَبِضُ: راګونجې به شي ④ شَفَتُهُ: شونډه د جهنمي. ⑤ تَسْتَرْخِي: أَيْ تَسْتَرْسِلُ: رازوړنده به شي. ⑥ تَضْرِبَ: أَيْ تَقْرُبُ: اوبه رسيږي. ⑦ سُرَّتَهُ: سرّة نامه يعني ناف ته وائي

**تسهيلات:**

**قوله. وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ:**

**د كالحون په تفسير کښې درې اقوال:**

① دکوم سرې شونډې چه پورته شي او دهغه غاښونه ښکاره شي هغه سړی ته کالح وائي

② دَدغه دوزخيانو شونډې به اوچتې شوي وي.

③ دَ چاغاښونه چه به په بدرنګه انداز کښې رابنکاره شوي وي دغه کالحون دی

## [٥٦٨٥] دوزخي به په وينو ژاړي

٥٦٨٥-()[۲۱] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «يَا أَيُّهَا النَّاسُ ابْكُوا، فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِيعُوا فَتَبَاكَوْا، [۳] فَإِنَّ أَهْلَ النَّارِ يَبْكُونَ فِي النَّارِ حَتَّى تَسِيلَ دُمُوعُهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ كَأَنَّهَا جَدَاوِلُ، [۴] حَتَّى تَنْقَطِعَ الدُّمُوعُ فَتَسِيلَ الدِّمَاءُ، [۵] فَتَقَرَّحَ الْعُيُونُ، [۶] فَلَوْ أَنَّ سُفُنًا أُزْجِيَتْ فِيهَا لَجَرَتْ» ". رَوَاهُ (فِي شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] اې خلقو! د الله ﷻ د خوف نه وژاړئ او ژړل اختياري شی نه دی څکه که تاسو له ژړا نه راځي نو په تکلف سره وژاړئ يعنی د هغه احوال تصور وکئ کوم چې خوف خداوندي نه [illegible]

---

[۱]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صفة طعام أهل النار (رقم-۲۵۸۷) واحمد في المسند: ۳/۸۸ [illegible]

[۲]) اخرجه ابن ماجة رقم الحديث [illegible] (رقم-٤٣٢٤) [illegible] (رقم-۲۸۵۲)

ژړا راولي او رقت يعنى زړه نرموي [۳] حقيقت دادى چې دوزخيان به په جهنم کې ژاړي او د هغوئ اوښکي به ډير ژړيدو سره د هغوئ په مخو داسې رابهيږي گويا هغه نالى دي [۴] او هرکله چې د هغوئ اوښکي ختمي شي نو ويني بهيدل به شروع شي [۵] او سترگي به د وينو نه ډکي شي [٦] د هغوئ د سترگو نه بهيدونکي وينه خون او د اوښکو زياتي به د دې درجي وي که د هغوئ د سترگو په سيلاب کې کشتى پريښودل شي نو يقينًا هغه به رواني شى دا روايت بغوي رحمه الله خپلو اسنادو سره شرح السنه کې نقل کړى دى

**حل اللغات** - ① ابْكُوا: د بَكَى يَبْكِي نه د امر صيغه ده. الله تعالى به ورته اووائى اوژاړئ ② فَتَبَاكَوْا: د باب تَفَاعُل نه امر دې. په تکلف سره ژړل يعنى د ژړا شکل جوړول ③ جَدَاوِلُ: دا د جَدْوَل جمع ده. وَهُوَ النَّهْرُ الصَّغِيرُ: وړونالولختوته وائى ④ فَتَقْرَحَ: د باب تفعل نه د مضارع صيغه ده. زخم ته وائى. دلته ترې مراد راوتل او بهيدل دى أَيْ فَتَقْرَحَ: يعنى راوبه خى ⑤ أُزْجِيَتْ: دا د إِزْجَاء باب افعال نه دې. أَيْ أُرْسِلَتْ: پريخودلې شى. روانه کړې شى. ⑥ لَجَرَتْ: نو روانه به شى

**تسهيلات**:

**قوله** فَتَقْرَحَ الْعُيُونُ، فَلَوْ أَنَّ سُفُنًا أُزْجِيَتْ فِيهَا لَجَرَتْ:

**د جهنميانو دسترگو څخه د اوښکو بهيدل: فَتَقْرَحَ**: قرح زخم ته وائى دا په اصل کښې فتتقرح وو يوه تاء محذوف ده په دې صورت کښې به العيون د دې فاعل شى يعنى سترگې به نى زخمى شى اوکه چرې دا د باب فتح نه د مضارع صيغه ده نو العيون به د دې مفعول به شى يعنى دا وينې به سترگې زخمى کړى

**[٥٦٨٦] د دوزخيانو حالت**

> ٥٦٨٦-(١) [٢٢] [١] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «يُلْقَى عَلَى أَهْلِ النَّارِ الْجُوعُ، فَيَعْدِلُ مَا هُمْ فِيهِ مِنَ الْعَذَابِ، [٣] فَيَسْتَغِيثُونَ، فَيُغَاثُونَ بِطَعَامٍ: (مِنْ ضَرِيعٍ، [٤] لَا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِي مِنْ جُوعٍ، [٥] فَيَسْتَغِيثُونَ بِالطَّعَامِ، فَيُغَاثُونَ بِطَعَامٍ ذِي غُصَّةٍ، [٦] فَيَذْكُرُونَ أَنَّهُمْ كَانُوا يُجِيزُونَ الْغُصَصَ فِي الدُّنْيَا بِالشَّرَابِ،

**ترجمه**: [١] او حضرت ابودرداء رضى الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] دوزخيانو باندې به لوږه داسې مسلطه شي چې د هغه لوږي اذيت تکليف به د هغه عذاب برابر وي چې په هغه کې هغه دوزخي د مخکې نه گرفتار وي [٣] نو هغوئ د لوږي د تکليف نه بې تابه کيدو سره فرياد به کوي او د هغوئ فريادرسي به د ضريع (ازغيداري ونې) خوړلو په ذريعه کولى شي [٤] چې نه به يې غټوي چاغوى او نه به يې لوږه دفع کوي [٥] بيا به هغوئ

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صفة طعام أهل النار (رقم ٢٥٨٦)

مخکنی خوراك او حاصليدو سره په دويم ځل فرياد کوي او دا ځل به د هغوئ فرياد رسي په ستوني کې د منښتونکي طعام په ذريعه کولى شي [٦] دا وخت به هغوئ ته دارا ياديږي چې په دنيا کې د طعام خوړلو په وخت د هغوئ په ستوني کې چې به څه شي ونښتی.

**حل اللغات** - ① اَلْجُوْعُ: سخته لوږه، ② فَيَعْدِلُ: أَيْ فَيُسَاوِيْ: برابر به وی (یعنی دا د اولوږې عذاب به داُور دعذاب په شان وی). ③ ضَرِيعٍ: وَهُوَنَبْتٌ بِالْحِجَازِ: په حجاز کښې د يو بوټي نوم دې، دا ازغی دار تريخ او بې خونده بوټې دې، ددې نه څناور هم ځان ساتی که څناور دا اوخوری نو مړ کيږی، دلته ددې نه مراد جهنمی ازغی داره ترخه اونه ده ④ لَايُسْمِنُ: أَيْ لَايُشْبِعُ: نه به موړول کوی، نه به څه فائده ورکوی، ⑤ لَايُغْنِي: أَيْ وَلَايَدْفَعُ: نه به لرې کوی (څه درد او تکليف). ⑥ ذِيْ غُصَّةٍ: أَيْ مِمَّا يَنْشَبُ فِي الْحَلْقِ: په حلق يعنی مرئ کښې اينښتونکې خوراک، ډير ستغ خوراک، ⑦ يُجِيزُوْنَ: أَيْ يُسِيغُوْنَ: چه تير ئې کړی (بلکه په حلق کښې به ئې اونخلی) ⑧ اَلْغُصَصُ: د غُصَّة جمع ده، وَهِيَ مَا اعْتَرَضَ فِي الْحَلْقِ: په مرئی کښې دَ يو څيز انښتو ته غُصص وائی.

[١] فَيَسْتَغِيثُونَ بِالشَّرَابِ [٢] فَيُرْفَعُ إِلَيْهِمُ الْحَمِيمُ بِكَلَالِيبِ الْحَدِيدِ، [٣] فَإِذَا دَنَتْ مِنْ وُجُوهِهِمْ شَوَتْ وُجُوهَهُمْ، [٤] فَإِذَا دَخَلَتْ بُطُونَهُمْ قَطَّعَتْ مَا فِي بُطُونِهِمْ، [٥] يَقُولُونَ: ادْعُوا خَزَنَةَ جَهَنَّمَ، [٦] فَيَقُولُونَ: ﴿أَوَلَمْ تَكُ تَأْتِيكُمْ رُسُلُكُمْ بِالْبَيِّنَاتِ قَالُوا بَلَى قَالُوا فَادْعُوا وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ﴾ [غافر: ٥٠] قَالَ: [٧] فَيَقُولُونَ: ادْعُوا مَالِكًا، [٨] فَيَقُولُونَ: ﴿يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ﴾ [الزخرف: ٧٧] [٩] قَالَ: " فَيُجِيبُهُمْ ﴿إِنَّكُمْ مَاكِثُونَ﴾ [الزخرف: ٧٧]

**ترجمه**: [١] نو هغوئ به د څښونکي شي سره لاندې کی نو هغوئ به خپل ستوني کې منښتی خوراك خکته کولو د پاره د څه څښونکي شي التجاء درخواست وکړي [٢] نو هغوئ ته به تيزې ګرمې اوبه ورکول شي چې د انبورونو په ذريعه به نيولو سره به ورپورته کړل شي يعنی کوم لوښو کې چې هغه تيزې ګرمې اوبه وي د آنبورونو په ذريعه به نيولو سره هغه اوچتولی شي او پورته کونکی به يا فرشتې وي يا براه راست به هغه اوچتولو سره د دوزخيانو خولې سره ولګوي [٣] او هرکله چې د ګرمو اوبو هغه لوښي د هغوئ خولې ته ورسيږی نو د هغوئ د مخونو غوښه به پخه کړي [٤] او هرکله چې د هغه لوښو دننه شی چې هغوئ ته به دڅکلو د پاره ورکولی شي لکه نو ژړی اوبه وغيره د هغوئ په خيټه کې داخل شي نو د خيټې دننه څيزونه يعنی کولمې وغيره به ټکرې ټکرې کړي [٥] نو په دې صورت حال سره به بې تابه کيدو سره هغه دوزخيان به جهنم باندې مقررو فرشتو ته وايي اې د دوزخ محافظانو! الله ﷻ نه دعا وغواړئ چې کم نه کم ديوې ورځې د پاره په مونږ مسلط داعذاب سپك کړي [٦] د دوزخ محافظان به ورته وايي چې اوس مونږ ته د دعا د پاره وايئ آيا د الله رسولان خدائي معجزو او واضح دليلونو سره تاسو ته نه وو راغلی او

تاسو ته يي دانه وئيل چې د کفر او سر کشي لار پريښودو سره د الله ﷻ د اطاعت او فرمانبرداري لار اختيار کړئ چې صبا په آخرت کې د دوزخ د سخت عذاب نه محفوظ شئ هغوئ به ورته وايي بيشکه د الله رسولان مونږ ته راغلي وه او د هغوئ تعليمات مونږ ته رسيدلي وه ليکن هاى آفسوس مونږ ګمراهي کې مبتلا وو او د ايمان او سلامتى لار مو اختيار نه کړه د دوزخ محافظان به ورته وايي بيا تاسو خپله دعا وغواړئ او خپله معامله درسته کړئ مونږ ستاسو شفاعت نه شوکولی او د کافرانو دعا د زيان کاري او بې فائده ګى نه علاوه نور هيڅ نه ده نو هغوئ به يقين وکړي چې مونږ ته د خداوندي عذاب نه خلاصون حاصليد ونکى نه دى بيا مرګ دي ولي ونه غواړو [۷]نو هغوئ به خپلو کې وايي چې د جنت داروغه مالك ته د مدد درخواست وکړ نو [۸]بيابه هغوئ التجاء وکړي اې مالکه! خپل پروردګار نه دعا وغواړه چې هغه مونږ ته مرګ راکړي چې مونږ آرام پيدا کړو [۹]حضور ﷺ وفرمايل د دوزخيانو التجاء اوريدو سره مالك به خپل يا د پروردګار د طرف نه جواب ورکړي چې دي دوزخ نه د نجات يا د مرګ خيال پريږدئ تاسو به هميشه هميشه دلته او په دي عذاب کې ګرفتار يي

**حل اللغات:-** ⑨الْحَمِيمُ: وَهُوَ الْمَاءُ الْحَارُّ الشَّدِيدُ: ډيرې سختې ګرمې اوبه. ⑩كَلَالِيبَ: انبورونه. پلاسونه چه په دې سره به د ګرمو اوبو لوښي نيولې شوي وي، ⑪شَوَتْ: أَيْ أَحْرَقَتْ: وريت به ئې کړي يعنى اوبه ئې سوزوي. ⑫خَزَنَةُ: دجهنم داروغه، د جهنم دربانانې او نګرانى کونکې فرشتې. ⑬الْبَيِّنَاتِ: ښکاره او واضح آياتونه. معجزې او دلائل. ⑭ضَلَالٍ: أَيْ فِي ضَيَاعٍ: فضول به وى يعنى فائده به نه ورکوى. ⑮مَالِكًا: د جهنم په نګرانانو فرشتو کښې يوه سرداره فرشته ده. ⑯مَاكِثُونَ: أَيْ مُكْثًا مُخَلَّدًا: هميشه اوسيدونکى،

[۱]قَالَ الْأَعْمَشُ: نُبِّئْتُ أَنَّ بَيْنَ دُعَائِهِمْ وَإِجَابَةِ مَالِكٍ إِيَّاهُمْ أَلْفَ عَامٍ[۲]قَالَ: فَيَقُولُونَ: ادْعُوا رَبَّكُمْ، فَلَا أَحَدَ خَيْرٌ مِنْ رَبِّكُمْ، [۳]فَيَقُولُونَ: ﴿رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَالِّينَ - رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا ظَالِمُونَ﴾ [المؤمنون: ۱۰۶-۱۰۷] [۴]" قَالَ: "فَيُجِيبُهُمْ: ﴿اخْسَئُوا فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ﴾ [المؤمنون: ۱۰۸] قَالَ: [۵]" فَعِنْدَ ذَلِكَ يَئِسُوا مِنْ كُلِّ خَيْرٍ، [۶]وَعِنْدَ ذَلِكَ يَأْخُذُونَ فِي الزَّفِيرِ وَالْحَسْرَةِ وَالْوَيْلِ". [۷]قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ: وَالنَّاسُ لَا يَرْفَعُونَ هَذَا الْحَدِيثَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱]حضرت اعمش رحمه الله چې د دې حديث راوي دى وايي بعضې صحابه ﷺ بطريق مرفوع يا موقوف ماته بيان وکړو چې مالك ته د دې دوزخيانو التجاء او د مالك د طرف نه جواب ورکولو په منځ کې به د زر کاله وقفه وي يعنى هغه دوزخيان به مالك ته التجاء کولو نه وروسته يو زر کاله پورې د جواب انتظار کوي او په دې دوران کې به هم عذاب کې مبتلا وي [۲]حضور ﷺ وفرمايل بيابه هغه دوزخيان خپلو کې وايي چې اوس مونږ ته براه راست خپل پروردګار ته د نجات خلاصون التجاء کول پکار دى ځکه چې هغه قادر

مطلق رحيم وكريم او غفار دى زمونږ په حق کې خير او بهتري كونكى دى پروردګار نه بهتر بل څوك نشته [۳]نو هغوئ به التجاء وكړي چې اې پروردګاره!زمونږ بدبختي مونږ ګير كړلو او په دي کې شك نشته چې مونږ د توحيد د لاري نه ګمراه شوي وو اې پروردګاره! مونږ ته ددوزخ او دي عذاب نه خلاصون راكړي كه مونږ دي نه وروسته هم كفر او شرك طرف ته راشو نو خپل ځان باندې به ظلم كونكي [۴]يو الله ﷻ به هغوئ ته جواب وركړي چخې شئ كمبختو! د سپو په شان ذليل او خوار اوسئ او په دي دوزخ کې پراته اوسئ او د خلاصون په باره کې ما سره هيڅ خبره مه كوئ ستاسو خلاصون هيڅ كله كيدي نشي [۵]حضور ﷺ وفرمايل آخر هغه دوزخيان به دهر خير نه نا اميده شي [۶]او بيا به حسرت او ژړا فرياد شروع كړي [۷]حضرت عبد الله بن عبد الرحمٰن رحمه الله چې د دې حديث راوي دى وايي چې علماؤدا حديث مرفوع نه ګرځوي ليكن ترمذي داحديث مرفوع نقل كړى دى ځرنګه چې د روايت د ابتداء نه معلوميږي

**حل اللغات:-** ⑰شِقْوَتُنَا:أي هَلَكَتُنَا: شقاوت بد بختئ او هلاكت ته وائى ددې ضد سعادت راځى يعنى نيک بختى ⑱اخْسَئُوا:أيْ ذِلُّواوَانْزَجِرُوا:د سپى د شړلو اوړتلو دپاره په عربى كښې د اِخْسَأْ لفظ استعمالولې شى. يعنى كړې شئ اوس مونږ سره خبرې مه كوئ ⑲يَئِسُوا:أيْ قَنَطُوا: نا اُميده به شى. ⑳الزَّفِيرِ:أوَّلُ صَوْتِ الحِمَارِ: د خر د چغې شروع آواز ته زفير وائي او د خر د چغې ختميدو آواز ته شهيق وائى (يعنى جهنميان به د خرو په شان چغې وهل شروع كړى). ㉑الحَسْرَةِ:أيْ النَّدَامَةِ: نا اُميدى. ㉒الوَيْلِ:أيْ الهَلَاكِ وَالعُقُوبَةِ: ويل يا هلاكت او عذاب ته وائي يا دا په جهنم کې يوه كنده ده

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث كښې د ګرانو تكو وضاحت د حل اللغات په عنوان سره اوشواوباقى د حديث مضمون اسان دي

**[۵۶۸۷] حضور ﷺ خپل امت د دوزخ نه پوره طور سره آګاه كړى دى**

٥٦٨٧-(¹)[٢٢] [۱]وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [۲] "«أَنْذَرْتُكُمُ النَّارَ، أَنْذَرْتُكُمُ النَّارَ»" [۳]فَمَا زَالَ يَقُولُهَا حَتَّى لَوْ كَانَ فِي مَقَامِي هَذَا سَمِعَهُ أَهْلُ السُّوقِ، [۴]وَحَتَّى سَقَطَتْ خَمِيصَةٌ كَانَتْ عَلَيْهِ عِنْدَ رِجْلَيْهِ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه وايي يوه ورځ ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲]اې خلقو! ما تاسو د دوزخ د عذاب نه ويرولئ، ما تاسو د دوزخ د عذاب نه ويرولئ، [۳]حضور ﷺ دا الفاظ بار بار فرمايل او د يو عجيب كيفيت په عالم کې تالى وهلو سره دومره اوچت اواز سره يې فرمايل كه حضور ﷺ دا ځاى تشريف فرماواى چيرته چې دا

¹) اخرجه الدارمى فى السنن رقم الحديث ٢٨١٢ واحمد فى المسند:٢٦٨

وخت زه ناست یم نو یقیناً د حضور ﷺ اواز به بازار والاو اوریدی ۲ددي پورې چې د هغه تالي. وهلو په وجه د حضور ﷺ کمبله چې په اوږه یې پرته وه په پښو کې رالویدلی وه

**حل اللغات:-** ① أَنْذَرْتُكُمْ: یعنی د دوزخ د اورنه ما تاسو اوویرولئ یعنی تاسو مې خبر کړئ چه د جهنم اور ډیر سخت دي په هغې کښې قسم قسم عذابونه دي وغیره لهذا تاسو د هغې نه ځان بچ کړئ ② فَمَا زَالَ يَقُولُهَا: أَيْ يُكَرِّرُ الْكَلِمَةَ الْمَذْكُورَةَ: یعنی بار بار به ئې دغه کلمه په اوچت آواز سره وئیله ③ خَمِيصَةٌ: وَهِيَ ثَوْبٌ: یو قسم جامې یا د ورئ نقش دار ځادرته وائی یعنی شړئ

**تسهیلات:**

**قوله: حَتَّى لَوْ كَانَ فِي مَقَامِي هَذَا سَمِعَهُ أَهْلُ السُّوقِ:**

**په ویرولو کښې د نبی علیه السلام مقام:** یعنی حضورپاك به الفاظ داسې په زور زور سره اداکول چه زما په دغه ځائی باندې تاسو وئی نوستاسو آوازبه د بازارپورې رسیدلو

**[۵۶۸۸] د دوزخیانو د ترلو زنجیر**

۵۶۸۸-()[۳۳] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " «لَوْ أَنَّ رَصَاصَةً مِثْلَ هَذِهِ -۳ وَأَشَارَ إِلَى مِثْلِ الْجُمْجُمَةِ- ۴ أُرْسِلَتْ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ وَهِيَ مَسِيرَةُ خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ ۵ لَبَلَغَتِ الْأَرْضَ قَبْلَ اللَّيْلِ، ۶ وَلَوْ أَنَّهَا أُرْسِلَتْ مِنْ رَأْسِ السِّلْسِلَةِ، ۷ لَسَارَتْ أَرْبَعِينَ خَرِيفًا اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ قَبْلَ أَنْ تَبْلُغَ أَصْلَهَا أَوْ قَعْرَهَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبد الله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ که د سکي یوه ګوله داسې وي ۳ او حضور ﷺ د سر طرف ته اشاره وکړه چې د کاسې په شان وي یعنی د سکي هغه ګوله د کاسي په شان ګول او د درنیدو په وجه ډیره تیزي سره رغړیدونکی وي ۴ د آسمان نه زمکي طرف ته وغورځول شي چې د هغه درمیاني فاصله د پنځه سوه کاله د مسافت برابر ده ۵ نو یقیناً هغه ګوله به یوه شپه تیریدو نه مخکې یعنی ډیره مختصره موده کې زمکي ته راورسیږي ۶ لیکن که هغه ګوله د زنجیر د سر نه پریښودل شي نو څلویښت کاله پورې مسلسل ورځ او شپه رغړیدو باوجود د هغه زنجیر د ویخ یعنی د هغه آخري سره پورې یادایي وفرمایل د هغه تل ته به ونه رسیږي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① رَصَاصَةٌ: أَيْ قِطْعَةٌ مِنَ الرَّصَاصِ: د سیسې یوه ګوله. ② الْجُمْجُمَةَ: وَهِيَ قَدَحٌ صَغِيرٌ: د سر برابر وړوه کاسه. ③ السِّلْسِلَةِ: زنځیر. ④ أَصْلَهَا: آخرې سر. بیخ. ⑤ قَعْرَهَا: بیخ. تل

() اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۵۸۸) واحمد فی المسند:۱۹۷/۲

**تسهيلات:**

**قوله:** لَوْأَنَّ رَصَاصَةً... أُرْسِلَتْ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ وَهِيَ مَسِيرَةُ خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ،

**د جهنم ژوروالي:** دَ سيسه يو ګوله چه دَ سر اوګوپرئي په شان وي هغه كه دَ آسمان نه دَ زمكې طرف ته راپريخودې شي نو په ډير كم وخت كښې به زمكې ته راؤرسيږي حالانكه دَ زمكې او آسمان په مينځ كښې دَ پنځو سوو كالو فاصله ده ليكن كه چرې هم دغه ګوله دَ دوزخيانو دَ زنځيرونو په يو سر پورې اوتړلې شي اوبيا ښكته راپريخودې شي نو دا زنځير دومره اوږد دې اودَ دوزخ ژوروالې دومره زيات دې چه څلويښت كاله پس به دا ګوله لاندې تلوسره اورسيږي.

**[۵٦٨٩]د دوزخ هَبهَب ناله**

۵٦٨٩ـ()[۲۵] [۱]وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ ـ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ـ أَنَّ النَّبِيَّ ـ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ قَالَ: [۲] "«إِنَّ فِي جَهَنَّمَ لَوَادِيًا يُقَالُ لَهُ: هَبْهَبُ، [۳]يَسْكُنُهُ كُلُّ جَبَّارٍ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوبرده تابعي رحمه الله خپل پلار حضرت ابوموسى اشعري رضي الله عنه نه نقل كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]په دوزخ كې يوه ناله ده چې د هغه نوم هبهب دی [۳]په دې ناله كې هرهغه سړی ساتلی شي چې متكبر سر كش د حق نه لري او مخلوق باندې سختي كونكی وي. (دارمي)

**حل اللغات:** ـ ①وَادِيًا: هُوَمُفْرَجٌ بَيْنَ جِبَالٍ: د غرونو په مينځ كښې كهلاؤ فضا ته وائي يعنی كنده ②هَبْهَبُ: أي السَّرِيعُ: د جهنم كندې ته وائي، ددې معنی ده ډيره جلتي او تادي كول. دا عذاب به هم په مجرمانو باندې ډير زر په جلتئ سره واقع كيږي او ډير په تيزئ سره به مجرمانو ته عذاب وركوی څكه ورته هبهب وائی ③جَبَّار: أي مُتَكَبِّر: سركشه. تكبر كونكې

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ فِي جَهَنَّمَ لَوَادِيًا يُقَالُ لَهُ: هَبْهَبُ، يَسْكُنُهُ كُلُّ جَبَّارٍ:

**د جهنم كنده:** په دوزخ كښې يوه وادي ده په دې كښې به دَ دنيا بدمعاشان ډاكوان لوفران جوارګروغيره قسم خلق اچولې شي اوهم په دې كښې به اوسيږي دَدې نوم هبهب دې الله تعالى دې په دې كښې هغوی واچوی چاچه په هغه معصومانو طالبانو او طالباتو باندې ظلمونه اوكړل.

---

[۱]) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ٢٨١٦

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٥٦٩٠] په جهنم کښې د جهنميانو بدنونه غټيدل

٥٦٩٠-()[٣٦] ①عَنِ ابْنِ عُمَرَ- رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُمَا- عَنِ النَّبِيِّ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ②قَالَ: "«يَعْظُمُ أَهْلُ النَّارِ فِي النَّارِ ③حَتَّى إِنَّ بَيْنَ شَحْمَةِ أُذُنِ أَحَدِهِمْ إِلَى عَاتِقِهِ مَسِيرَةَ سَبْعِمِائَةِ عَامٍ، ④وَإِنَّ غِلَظَ جِلْدِهِ سَبْعُونَ ذِرَاعًا، وَإِنَّ ضِرْسَهُ مِثْلُ أُحُدٍ»".[1]

**ترجمه:** ①حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د رسول الله ﷺ نه روايت کوي ②چې حضور ﷺ وفرمايل په دوزخ کې به د دوزخيانو بدن ډير غټ غټ شي چې هغه سره به هغوئ ته عذاب هم زيات معلوميږي ③ددې پورې چې د يو دوزخي د غوږ د پوستکي نه د هغه د اوږې پورې فاصله د اووه سوه کاله د مسافت برابر وي ④د هغه د څرمې پنډه والى به اويا ګزه وي ⑤او د هغه غاښ به د احد د غره برابر وي.

**حل اللغات:-** ①يَعْظُمُ: أَيْ تَكْبُرُ جُثَّتُهُمْ: بدن به ئې ډير غټ شي. ②شَحْمَةِ: د غوږ پوستکې. پوڅکې يعنى د غوږ نرمه غوښه، ③غِلَظَ: أَيْ عِظَمُهُ: سختوالې، پيړوالې ④ذِرَاعًا: مِنْ طَرَفِ الْمِرْفَقِ إِلَى طَرَفِ الْأُصْبُعِ الْوُسْطَى: د څنګلې د هډوکې نه تر د مينځ ګوتې پورې اوږد والى ته ذراع وائى. دې ته شرعى ګز هم وائى. ⑤ضِرْسَهُ: د داړې غاښ.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَعْظُمُ أَهْلُ النَّارِ فِي النَّارِ حَتَّى إِنَّ بَيْنَ شَحْمَةِ أُذُنِ أَحَدِهِمْ إِلَى عَاتِقِهِ مَسِيرَةَ سَبْعِمِائَةِ عَامٍ

**اشکال:** په دې حديث کښې دَ دوزخيانو دَ څرمن باره کښې اوخودلې شو چه هغه به اويا ګزه پيړه وى حالانکه دَ دې نه مخکښې فصل اول په آخره کښې دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت کښې دى «وغلظ جلده مسيرة ثلاث» چه دَهغوى څرمن به دَ دريو ورځو په مسافت سره پيړه وى نو په ظاهره په دواړو رايتونو کښې تعارض دې؟

**د اشکال څلور جوابونه:**

① دا په مختلف حالاتو باندې محمول دى

② دا دَ پوهه کولو دَپاره مختلفې اندازې بيان کړې شوى دى

③ دادَ دوزخيانو مختلف کيدو باندې محمول دى چه بعضې دوزخيانوته به دَ دريو ورځو دَمسافت په اندازه څرمن ورلګولې شى او بعضو ته دَ اويا ګزه پورې پيړه لګولې شى.

④ دا تفاوت دکافرانودَ تفاوت دَ وجې نه دې چه دَ بعضې کافرانو قد به دَ دريو ورځو دَ مسافت په اندازه وى او دَ بعضو کافرانو قد به دَ اووه سوو مسافت په اندازه وى.

[1] اخرجه احمد فى المسند: ٢/٢٦

## [۵٦۹۱] د دوزخ ماران او لړمان

۵٦۹۱-()[۲۷] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "إِنَّ فِي النَّارِ حَيَّاتٍ كَأَمْثَالِ الْبُخْتِ، [۳] تَلْسَعُ إِحْدَاهُنَّ اللَّسْعَةَ فَيَجِدُ حُمُوَّتَهَا أَرْبَعِينَ خَرِيفًا، [۴] وَإِنَّ فِي النَّارِ عَقَارِبَ كَأَمْثَالِ الْبِغَالِ الْمُؤْكَفَةِ، [۵] تَلْسَعُ إِحْدَاهُنَّ اللَّسْعَةَ فَيَجِدُ حُمُوَّتَهَا أَرْبَعِينَ خَرِيفًا". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله بن حارث بن جزء ﷜ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په دوزخ کې د بختي اوښ برابر غټ غټ ماران دي [۳] په هغه کې يو مارهم چې څوک يووار وچيچي نو د هغه دچيچلو په شدت کې به څلويښت کاله پورې مبتلا وي [۴] دغه شان په دوزخ کې چې کوم لړمانان دي هغه د پالان تړلی غاترو په شان دي [۵] او هغه نه چې يو لړم يو وار څوک وچيچي هغه به د هغه د زهرو او درد په شدت کې څلويښت کاله پورې مبتلا وي دا دواړه روايتونه احمد نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ① حَيَّاتٍ: د حية جمع ده، ماران، ② الْبُخْتِ: ددې مفرد بُخْتِيّ راځي. الإبل الخراسانية: خراساني يعني غير عربي اوښ، ③ اللَّسْعَةَ: أي اللَّدْغَةَ: يو ځل چيچل، ④ حُمُوَّتَهَا: أي أثر سمها: د چيچلو يا د زهرو اثر، دَ حموة نه تيزوالی او دَ تيك وركولوسوزيدوته وائی يعنی دَ څلويښتو کالو پورې به ددې درد اثرباقي وی. ⑤ عَقَارِبَ: د عقرب جمع ده، لړم ته وائی. ⑥ الْبِغَالِ: قچر (قچر د خرو نه غټ او د اسونو نه واړه وی). ⑦ الْمُؤْكَفَةِ: دَ إِكاف نه دې. دَاسم مفعول صيغه ده يعنی کجاوې اچونکې قچر.

**تسهيلات:**

**نوټ:** دَحديث کښې د ګرانو معاني په حل اللغات کښې اوشو

## [۵٦۹۲] سپوږمی او لمر به اورته حواله شي

۵٦۹۲-()[۲۸] [۱] وَعَنِ الْحَسَنِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ [۲]: حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۳] "«الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ثَوْرَانِ مُكَوَّرَانِ فِي النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". [۴] فَقَالَ الْحَسَنُ: وَمَا ذَنْبُهُمَا؟ [۵] فَقَالَ: أُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! فَسَكَتَ الْحَسَنُ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت حسن بصري ﷫ وايي [۲] حضرت ابوهريره ﷜ مونږ ته د رسول الله ﷺ داحديث بيان کی [۳] چې د قيامت په ورځ به نمر او سپوږمی د پنير د دوو ټکرو په شان د دوزخ په اور کې واچول شي [۴] حضرت حسن ﷫ وايي ما داحديث اوريدو سره د حضرت ابوهريره ﷜ نه پوښتنه وکړه چې آخر نمر او سپوږمی څه ګناه کړيده چې هغوی به اور ته حواله شي [۵] حضرت ابوهريره ﷜ جواب راکړو ماچي څه بيان کړل دا د

[۱]) اخرجه احمد فی المسند: ۱۹۱/٤

[۲]) لم اجده

رسول الله ﷺ حديث دی حسن بصري ﷫ دي خبري اوريدو سره خاموش شو دا روايت بيهقي په کتاب البعث والنشور کې نقل کړی دی

**حل اللغات:-** ① ثَوْرَانِ: ثوران تثنيه ده دَدې مفرد ثور دې دَ پنير تکړې ته وئيلی شوی دی ② مُكَوَّرَانِ: مکوران هم دَ مکور تثنيه ده دَ اينغختلو په معنی کښې دې

**تسهيلات:**

**قوله. الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ثَوْرَانِ مُكَوَّرَانِ فِي النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**د نمر او سپوږمئی په جهنم کښې د دويدلو وجه:** يعنی نمر او سپوږمئی به دَ پنيرد تکړو په شان راغونډولو سره په دوزخ کښې اچولې شی دې دپاره چه دَ دې په ذريعه دَ اور په تيزوالی کښې دَ خشاك په توګه اضافه اوکړې شی اودَدې دپاره هم چه دَدې دواړو عبادتونه به کيدل نو عابد او معبود دواړه به په دوزخ کښې وی اوچه کافران ذليل شی بـل دې دواړو دَ دنيـا اووه طبـق روښـانه کـړی دی نـو مـشهورشوی دی لهـذا دَدې مشهورتيا څه سزا تيرول پکاردی. هسې دا حديث ضعيف هم دې.

**[٥٦٩٢] شقي څوک دی؟**

٥٦٩٣-()[٣٩] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ②«لَا يَدْخُلُ النَّارَ إِلَّا شَقِيٌّ ". ③قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَمَنِ الشَّقِيُّ؟ ④قَالَ: " مَنْ لَمْ يَعْمَلْ لِلَّهِ بِطَاعَةٍ، ⑤وَلَمْ يَتْرُكْ لَهُ مَعْصِيَةً» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهريره ﷛ وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل ②په دوزخ کې به هغه سړی اچول کيږي چې شقي يعنی بدبخت وي ③پوښتنه وشوه يارسول الله شقي څوک دی؟ ④حضور ﷺ وفرمايل شقي هغه دی چې نه خو د الله ﷻ د رضا او خوشنودي له خاطره فرض او واجب او طاعات اختياروي ⑤او نه د الله ﷻ رضا او خوشنودي د پاره يعنی د هغه د خوف نه ګناه او معصيت ترک کوي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① شَقِيٌّ: بد بخت. ددې ضد سعيد راځی يعنی نيک بخت

**تسهيلات: قوله: لَا يَدْخُلُ النَّارَ إِلَّا شَقِيٌّ:**

**په دخول النار کښې دوه احتمالات:** ① که چرې په دوزخ کښې دَ داخليدو نه مراد مطلقًا دخول وی نو بيا "شقی" نه مراد مطلقًا بدکار دې که هغه کافر وی او که فاسق مسلمان ② که چرې دَ دخول نه مراد دائمی دخول وی نو بيا به دَ شقی نه مراد کافر وی کما فی القرآن ﴿ لَا يَصْلَاهَا إِلَّا الْأَشْقَى الَّذِي كَذَّبَ وَتَوَلَّى ﴾ (مرقاة ۱۰/ ۳۷۰)

[1] ) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الزهد/باب ما يرجى من رحمة الله يوم القيامة (رقم-٤٢٩٨) واحمد في المسند:٣٤٩/٢

# [۸] بَابُ خَلْقِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ

## د جنت او دوزخ د تخليق بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه اربعة احاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① ذكر أهل النار والجنة: ۱، ۲.

② ذكر تخليق النار والجنة: ۳.

③ تمثل الجنة والنار للنبي ﷺ في الدنيا: ۴.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### [۵۶۹۴] د جنت او دوزخ شکايت

۵۶۹۴-(۱)[۱] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «تَحَاجَّتِ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ ③فَقَالَتِ النَّارُ: أُوثِرْتُ بِالْمُتَكَبِّرِينَ وَالْمُتَجَبِّرِينَ، ④وَقَالَتِ الْجَنَّةُ: فَمَا لِي لَا يَدْخُلُنِي إِلَّا ضُعَفَاءُ النَّاسِ وَسَقَطُهُمْ وَغِرَّتُهُمْ. ⑤قَالَ اللهُ تَعَالَى لِلْجَنَّةِ: إِنَّمَا أَنْتِ رَحْمَتِي أَرْحَمُ بِكِ مَنْ أَشَاءُ مِنْ عِبَادِي،

**ترجمه:** ①حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②جنت او دوزخ په خپلو کې بحث او تکرار وکی ③دوزخ دا اوويل چې زه سر کشو متکبرو او ظالمانو د پاره جوړ شوی يم ④او جنت اوويل زه خپل په باره کې څه اووايم په ماکې به هم هغه خلق داخليږي کوم چې ضعيف او کمزوري د خلقو په نظر کې راغلی وی او ساده سيده او دهوکه کې راتلونکی وی ⑤په دې اوريدو سره الله ﷻ جنت ته وفرمايل ته خما د رحمت د اظهار ذريعه او خما د کرم ځای يې زه چې خپلو بنده ګانو کې څوک خپل رحمت سره نوازل غوارم دهغه د پاره تا ذريعه جوړوم

**حل اللغات:-** ① تَحَاجَّتْ: أَيْ تَخَاصَمَتْ: يوبل سره ئې جګړه يعنی بحث مباحثه ئې اوکړه. او مناظره اوتکرارئی اوکړو ② أُوثِرْتُ: أَيْ اخْتِرْتُ: ماله اختيار راکړې شوې دې يعنی زه مسلط کړې شوې يم. ③ الْمُتَجَبِّرِينَ: متکبره او سرکش خلق. ④ وَسَقَطُهُمْ: أَيْ أَرْذَلُهُمْ: سپک او معمولی خلق چه خلق ورته په سپک نظر سره ګوری ⑤ وَغِرَّتُهُمْ: ددنيا په کارونو کنبې ناپوهه او غافله خلق.

①وَقَالَ لِلنَّارِ: إِنَّمَا أَنْتِ عَذَابِي أُعَذِّبُ بِكِ مَنْ أَشَاءُ مِنْ عِبَادِي ②وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْكُمَا مِلْؤُهَا ③فَأَمَّا النَّارُ فَلَا تَمْتَلِئُ حَتَّى يَضَعَ اللهُ رِجْلَهُ. ④تَقُولُ قَطْ قَطْ قَطْ، فَهُنَالِكَ تَمْتَلِئُ ⑤وَيُزْوَى بَعْضُهَا إِلَى بَعْضٍ، ⑥فَلَا يَظْلِمُ اللهُ

[۱] اخرجه البخاری فی كتاب تفسير القرآن/باب قوله: {وتقول هل من مزيد} [ق: ۳۰] (رقم-۴۸۵۰) ومسلم فی كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب النار يدخلها الجبارون والجنة يدخلها الضعفاء (رقم-۳۶ - (۲۸۴۶))والترمذی فی كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی احتجاج الجنة والنار (رقم-۲۵۶۱) واحمد فی المسند:۲/۳۱۴

مِنْ خَلْقِهِ أَحَدًا، ⑦وَأَمَّا الْجَنَّةُ فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى يُنْشِئُ لَهَا خَلْقًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او دوزخ ته يې وفرمايل ته خما د عذاب د محل او مظهر کيدو نه علاوه نور هيڅ نه يې زه چې خپلو بنده ګانو کې چاته عذاب ورکول غوارم هغه د پاره تا ذريعه جوړوم ②او زه به تاسو دواړه د خلقو نه ډك کړم ③البته دوزخ سره خو به دا معامله وي چې هغه به هغه وقته پوره نه ډکيږي د خوپوري چې په هغه الله ﷻ خپله پښه کيږدي ④هرکله چې الله ﷻ خپله پښه پرې کيږدي نو دوزخ به نعري کړي چې بس بس هغه وخت به دوزخ د الله ﷻ په قدرت سره ډك شي ⑤او د هغه حصې به يوې بلې ته نزدې کړي نو هغه به راټول شي ⑥مطلب دا چې الله ﷻ په خپل مخلوق کې په هيڅا باندې ظلم نه کوي ⑦او د جنت معامله خوبه داوي چې د هغه ډکيدو د پاره به الله ﷻ نوي خلق پيدا کړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** -③قَطْ قَطْ قَطْ: که په سکون د طاء سره شي نو معنى ئې ده أَيْ:كَفَى كَفَى: بس بس. يعنى کافى شو. اوکه په کسرې د طاء سره شى نو معنى ئې ده: أَيْ حَسْبِي حَسْبِي: بس دې بس کافى دې ④تُزْوَى: أَيْ يُضَمُّ وَيُجْمَعُ: يعنى د دوزخ حصې به رانيزدې کړې شى نوهغه به راغونډ شى. ⑧يُنْشِئُ: پيدا به کړى.

**تسهيلات:**

**قوله:** تَحَاجَّتِ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ:

**دجنت او جهنم يوبل سره مکالمه:** حجت بازى اوکړه او په يوبل باندې خپله لوئى بيان کړه خو زياته واضح خبره داده چه دَ دواړوطرفونه داد يوقسم شکايت اظهاردې دوزخ اووئيل چه زه ولې صرف بدمعاشانو سرکشو کافران شيطانانو سره خاص کړې شوې يم؟ هرملعون ولې زما ګاوندى دې؟ جنت اووئيل چه ته څه شکايت کوې اوستاشکايت څه دې. ماته لږ شان اوګوره هربې نامې مفلس غريب غيرمعروف زما ګاونډيان دى. دَدې دواړو داخبرې اترې او شکايت اوريدو سره الله تعالى اوفرمائيل تاسو دواړه زما دَجمال اوجلال مظهريئى. تاسو دواړه برابريئى. صرف دومره خبره ده چه تاسو کښې يوسره زما عدل اوانصاف تړلې دې کوم چه دوزخ دې اودويم سره زما انعام اواکرام او فضل احسان تړلې دې کوم چه جنت دې.

**قوله:** وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْكُمَا مِلْؤُهَا:

**دالله تعالى دجنت او جهنم د ډکولووعده:** يعنى زما په ذمه دا وعده ده چه زه به دواړه ډکوم دَ جنت دَپاره خو به يونوې مخلوق پيداکولې شى ځکه چه دابه دَ الله تعالى انعام اواحسان وى اودوزخ دَپاره به نوې مخلوق نه شى پيداکولې ځکه چه بغيردَ څه وجې نه به دوزخ کښې څوك نه شى اچولې. په دې وجه به په دوزخ باندې الله تعالى دَخپل قدرت قدم ايږدى نو دوزخ به اقرار کوى چه زه ډك شوم کافى دى کافى دى.

**قوله: وَيُزْوَى بَعْضُهَا إِلَى بَعْضٍ، فَلَا يَظْلِمُ اللّٰهُ مِنْ خَلْقِهِ أَحَدًا:**

**دالله تعالى د طرفه به ظلم نه كيدل:** يعنى الله تعالى به دَ دوزخ ډكولودَپاره نوي مخلوق نه پيدا كوى ځكه چه بغيردَ گناه څوك دوزخ كښې اچول په ظاهرى صورت كښې دَ ظلم برابر دى. الله تعالى خودَ ظلم نه پاك دې. په دې وجه به دَ دوزخ په خله باندې الله تعالى دَخپل قدرت قدم كيږدى نودوزخ به دَ خپل ډكيدو اقرار كوى اودغه شان دوزخ سره چه كومه دَ ډكيدو وعده كړې شوې ده هغه به پوره شي.

## [۵٦۹۵] دوزخ او جنت به ډكشي

۵٦۹۵-()[۲] ①وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ②قَالَ: «لَا تَزَالُ جَهَنَّمُ يُلْقَى فِيهَا ③وَتَقُولُ: هَلْ مِنْ مَزِيدٍ؟ ④حَتَّى يَضَعَ رَبُّ الْعِزَّةِ فِيهَا قَدَمَهُ. ⑤فَيُزْوَى بَعْضُهَا إِلَى بَعْضٍ ⑥فَتَقُولُ: قَطْ قَطْ، بِعِزَّتِكَ وَكَرَمِكَ، ⑦وَلَا يَزَالُ فِي الْجَنَّةِ فَضْلٌ حَتَّى يُنْشِئَ اللّٰهُ لَهَا خَلْقًا فَيُسْكِنُهُمْ فَضْلَ الْجَنَّةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
⑧وَذَكَرَ حَدِيثَ أَنَسٍ: «حُفَّتِ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ» فِي (كِتَابِ الرِّقَاقِ).

**ترجمه:** ①او حضرت انس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت كوي ②چې حضور ﷺ وفرمايل په دوزخ كې به مسلسل خلق اچول كېږي ③او هغه به وايي چې څه نور هم شته يعنى تراوسه پورې ځما خيټه ډكه شوى نه ده ماته نور خلق پكار دي ④آخر الله عز وجل به په هغه خپله پښه كيږدي ⑤نو د دوزخ حصې به يوي بلي ته نزدې راشي چې په هغه سره به دوزخ راټول شي ⑥بيا به هغه وايي بس بس ستا په عزت او كرم مې دي قسم وي زه ډك شوم ⑦دغه شان په جنت كې به وسعت وي يعنى د جنتيانو جنت ته د رسيدو با وجود به د هغه محلات او مكانات خالي وي ددي پورې چې الله جل جلاله به د جنت هغه خالي محلاتو او مكاناتو ډكولو د پاره نوي مخلوق پيدا كړي چې په هغه كې به آباد شي. (بخاري مسلم)
⑧او حديث د انس رضي الله عنه حُفَّتِ النَّارِ بالمكاره په كتاب الرقاق كې ذكر شوي دي.

**حل اللغات:-** ① فَيُزْوَى: أَيْ يُضَمُّ وَيُجْمَعُ: يعنى دَ دوزخ حصې به رانيزدې كړې شي نوهغه به راغونډه شي ② فَيُسْكِنُهُمْ: د إسْكَانٌ نه دې. د اوسيدلو په معنى كښې دې ③ حُفَّتْ: أَيْ أَحَاطَهَا: پټ كړې ني دې. راگير كړې ني دې. ④ الْمَكَارِهِ: د كُرْه جمع ده. مكاره مكروه او ناخوښه ته وائى دلته ترې مراد تكاليف شرعيه دى چه هغې سره بدن ته تكليف او مشقت رسيږى مثلا يخنئ يا بيمارئ كښې اوبو سره اودس كول دى چه دا په انسان بد لگى،

---

[^] ) اخرجه البخارى فى كتاب تفسير القرآن/باب قوله: {وتقول هل من مزيد} [ق: ۳۰] (رقم-٤٨٤٨) ومسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب النار يدخلها الجبارون والجنة يدخلها الضعفاء (رقم-۳۷ - (۲۸٤٨) واحمد فى المسند: ۱۳/۳

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۶۹۶] جنت د نفس په مکروهاتو او دوزخ د نفس په خواهشاتو کي پټ شوي دي**

۵۶۹۶-()[۳] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ قَالَ: [۲] «لَمَّا خَلَقَ اللهُ الْجَنَّةَ قَالَ لِجِبْرِيلَ: [۳] اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا [۴] فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا، وَإِلَى مَا أَعَدَّ اللهُ لِأَهْلِهَا فِيهَا، ثُمَّ جَاءَ [۵] فَقَالَ: أَيْ رَبِّ وَعِزَّتِكَ لَا يَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا، [۶] ثُمَّ حَفَّهَا بِالْمَكَارِهِ، ثُمَّ قَالَ: يَا جِبْرِيلُ، اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا، [۷] فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا، ثُمَّ جَاءَ [۸] فَقَالَ: أَيْ رَبِّ وَعِزَّتِكَ لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ يَدْخُلَهَا أَحَدٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره ﷺ د رسول الله ﷺ نه روایت کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] الله ﷻ چې جنت جوړ کړی [۳] نو حضرت جبرائیل علیه السلام ته یې وفرمایل لاړ شه او جنت طرف ته نظر وکه او ګوره چې ماخومره ښه خومره نازك او دیده زیب شی جوړ کړی دی [۴] نو هغه لاړل جنت او د هغه ټول څیزونه یې چې الله ﷻ جنتیانو د پاره جوړ کړي دي ولیدل [۵] نو واپس راتلو سره یې عرض وکړو اي پروردګاره! ستا په عزت مې دي قسم وي تا دومره اعلی او نفیس جنت جوړ کړی دی او داسې داسې نعمتونو او خوبیانو سره دي معمور کړی دی چې څوك هم د هغه په باره کې واوري هغه به په هغه کې د داخلې یقینًا خواهش کوي بیا الله ﷻ د جنت څلور طرف ته د هغه څیزونو احاطه قائمه کړه کوم چې نفس ته ناخوښ دی او وي فرمایل اي جبرائیله! لاړ شه جنت دوباره وګوره نو هغه لاړشی او جنت یې ددي اضافي سره چې څلور طرفه د احاطي په صورت کې شوي وه په لیدو سره واپس راغې نو عرض یې وکړو اي پروردګاره! ستا په عزت مې دي قسم وي ماته ویره ده اوس شاید څوك هم په جنت کې د داخلیدو خواهش ونکړي ځکه چې د هغه چاپیره د نفس د مکروهاتو کومه احاطه قائمه شوي ده د هغه عبور کولو د پاره به نفساني خواهشات وژل راځي او ښکاره ده چې انسان نفساني خواهشات وژلو سره جنت ته رسیدل به مشکل وګني

[۱] قَالَ: فَلَمَّا خَلَقَ اللهُ النَّارَ قَالَ: يَا جِبْرِيلُ، اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا، [۲] قَالَ فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ: [۳] أَيْ رَبِّ وَعِزَّتِكَ لَا يَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ فَيَدْخُلُهَا، [۴] فَحَفَّهَا بِالشَّهَوَاتِ، [۵] ثُمَّ قَالَ: يَا جِبْرِيلُ، اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا، [۶] قَالَ: فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ: [۷] أَيْ رَبِّ! وَعِزَّتِكَ [۸] لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ لَا يَبْقَى أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمایل دغه شان الله ﷻ چې دوزخ جوړ کی نو جبرائیل ته یې حکم

---

[۱] ) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب السنة /باب فی خلق الجنة والنار (رقم-۴۷۴۴) والترمذی فی کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء حفت الجنة بالمکاره وحفت النار بالشهوات (رقم-۲۵۶۰) والنسائی فی کتاب الأیمان والنذور /باب الحلف بعزة الله تعالی (رقم-۳۷۶۳) واحمد فی المسند: ۳۳۲/۲

ورکړو چې لاړ شه دوزخ وګوره چې ماڅومره خطرناك او خراب شی جوړ کړی دی [۲] حضور ﷺ وفرمایل نو جبرائیل لاړشی او دوزخ کتلو سره واپس راغې [۳] نو عرض یې وکړو اې ربه! ستا په عزت او جلال مې قسم څوك چې د دوزخ په باره کې واوري هغه به د ویرې نه د هغه نه لرې اوسي او هغه ته د تللو کوشش به نه کوي [۴] بیا الله ﷻ د دوزخ څلور طرفه د نفس د خواهشاتو او د دنیا د لذاتو احاطه قائمه کړه [۵] او جبرائیل ته یې وفرمایل اې جبرائیل! لاړ شه دوزخ دوباره وګوره [۶] حضور ﷺ وفرمایل نو حضرت جبرائیل لاړشی او دوزخ یې د هغه د احاطې داضافې لیدو سره واپس راغې [۷] نو عرض یې وکړو اې پروردګاره! ستا په عزت او جلال مې دې قسم وي [۸] ما ته ویره ده چې اوس به شاید څوك هم باقي بچ نشي چې دوزخ ته به لاړ نشي ځکه چې د کوم نفسي خواهشاتو او دنیاوي لذاتو د دوزخ څلور طرف ته احاطه قائمه شوې ده هغه دومره دلکش او دومره زیات مزیدارده چې د نفس طبیعت پیروی کونکو کې به هیڅوك داسې نه وي چې هغه خواهشاتو او لذاتو طرف ته مائل نشي او د هغه په نتیجه کې دوزخ ته لاړ نشي. (ابوداؤد ترمذي نسائي)

**حل اللغات:-** ① الشَّهَوَاتِ: نفساني خواهشات.

**تسهیلات:**

**قوله: لَمَّا خَلَقَ اللهُ الْجَنَّةَ قَالَ لِجِبْرِيلَ: اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا:**

**د مکاره څخه مراد دی:** په شرعی توګه باندې دَمکاره نه مراد هغه شرعی امور مراد دی دکوم دَ کولو یا نه کولوچه شریعت حکم ورکړې دې کوم چه دَامور تکلیفیه نه دی دکوم پابندی چه ضروری ده. دَ مکاره نه مثلاً مطلب داهم دې چه په سخته یخنئی کښې اودس کولوسره مونځ اوکړې شي یا په سخته ګرمئی کښې روژه اوساتلې شي. دَدې مشکلاتو نه تیریدو سره مخکښې دَ خوشحالو والا جنت دې کوم چه په دې مشکلاتو کښې پټ دې. دغه شان دَ شریعت نه آزادیدوسره دَ شراب اوکباب نه تیریدوسره مخکښې دوزخ دې کوم چه په دغه خوشحالو کښې پټ دې. دَ حدیث هم دغه مطلب دې چه جنت په مشکلاتوسره اودوزخ په خواهشاتو سره راګیرکړې شوې دې.

**[۵۶۹۷] حضور ﷺ ته د جنت او دوزخ مشاهده**

۵۶۹۷-()[۳] [۱] عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَّى لَنَا يَوْمًا الصَّلَاةَ، [۳] ثُمَّ رَقِيَ الْمِنْبَرَ، فَأَشَارَ بِيَدِهِ قِبَلَ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ، فَقَالَ: [۴] "قَدْ أُرِيتُ الْآنَ مُذْ صَلَّيْتُ لَكُمُ الصَّلَاةَ الْجَنَّةَ وَالنَّارَ مُمَثَّلَتَيْنِ فِي قِبَلِ هَذَا الْجِدَارِ، [۵] فَلَمْ أَرَ كَالْيَوْمِ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[1] ) اخرجه البخاري فی کتاب صلاة الجماعة والإمامة/باب رفع البصر إلى الإمام فی الصلاة (رقم-۷۴۹)

**ترجمه:** [۱] د حضرت انس رضی الله عنه بیان دی [۲] یوه ورځ رسول الله ﷺ مونږ ته مونځ راکی [۳] بیا منبرته وختی او د مسجد قبلې طرف ته خپل لاس مبارك سره اشاره کولو سره یې وفرمایل [۴] چې اوس ما تاسو ته مونځ درکی نو ماته د دې دیوال مخ طرف کې جنت او دوزخ وښودل شوه [۵] واقعه داده چې ماځومره ښه شي او څومره خراب شي نن لیدلی دی داسې ښه او خراب شی مې دې نه مخکې هیڅ کله نه دی لیدلی. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① رَقِیَ: أَيْ صَعِدَ: اوختلو، ② مُمَثَّلَتَیْنِ: أَيْ مُصَوَّرَتَیْنِ: تصویرجوړشوې.

**تسهیلات:**

**قوله:** صَلّٰی لَنَا یَوْمًا الصَّلَاةَ، ثُمَّ رَقِیَ الْمِنْبَرَ، فَأَشَارَ بِیَدِهٖ قِبَلَ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ:

**اشکال:** جنت اودوزخ خو ډیر وسیع اوعریض دې دا دَ جمات په محدود دیوال کښې حضورپاك څنګه اولیدلو؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① حضورپاك دَ دیوال طرف ته مخامخ حصه کښې په اصل حالت کښې جنت او دوزخ اولیدل. دَ مانځه په حالت کښې به حضورپاك ته انکشاف تامه کیدلو. دَ حدیث الفاظ دَدې مطلب سره ډیر نیزدې دی.

② دَ یوڅیز عکس دَ هغه څیز نه ډیر ورکوټې وی دلته دَ عکس ذکر دې دَ اصل ذکر نه دې. دَ نن صبا میډیا اوکمپیوټر په دور کښې دا سوال بې معنې دې.

**قوله:** فَلَمْ أَرَ كَالْیَوْمِ فِی الْخَیْرِ وَالشَّرِّ:

**دمذکوره جملې مطلب:** یعنی په دې دنیاکښې چه یوانسان کوم ښه څیز لیدلې شی دَ جنت نظاره دَ هغې نه ډیره زیاته ښکلې وه او په دې دنیاکښې که څو دَ خراب نه دَ خراب منظر نظاره کولې شی نودَ دوزخ نظاره دَ هغې نه ډیره زیاته خرابه اوبده وه.

# [٩] بَابُ بَدْءِ الْخَلْقِ وَذِكْرِ الْأَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ

## د پیدائش ابتداء او د انبیاء علیهم السلام و د ذکر بیان

**• خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية وثلاثون حديثاً مشتملة على ست عشرة مسئلة:**

① ذكر بد الخلق: عموماً وخصوصاً: ١، ٢، ٣، ۴، ۵، ٢٧، ٢٨، ٢٩، ٣۵، ٣۶.

② ذكر آدم عليه السلام : ۴، ۵، ٣٣، ٣٧، ٣٨.

③ ذكر إبراهيم عليه السلام: ۶، ٧، ٨، ١۶، ١٨.

④ ذكر موسى عليه السلام: ٩، ١١، ١۵، ١۶، ١٧، ١٨، ١٩، ٣٩.

⑤ ذكر أيوب عليه السلام: ١٠.

⑥ ذكر يونس عليه السلام: ١٢، ١٩.

⑦ ذكر خضر عليه السلام: ١٣، ١۴.

⑧ ذكر عيسى عليه السلام: ١۶، ١٧، ١٨، ٢۴، ٢۵.

⑨ ذكر داؤد عليه السلام: ٣، ٣١.

⑩ ذكر سليمان عليه السلام: ٢١، ٢٢.

⑪ ذكر زكريا عليه السلام: ٢٣.

⑫ ذكر لوط عليه السلام: ٨.

⑬ ذكر يوسف عليه السلام: ٨.

⑭ ذكر مريم وآسية وعائشة رضى الله عنهن (طردا): ٢۶.

⑮ ذكر جبريل عليه السلام وبعض الملائكة: ١۶، ٣٠، : ٣١، ٣٢، ٣٣، ٣۴،

⑯ ذكر عدد الأنبياء عليهم السلام: ٣٨.

**د کائناتو تخلیق او ددې شروع :** په اول کښې الله تعالی وو او هغه سره هیڅ نور څیزنه وو. بیا الله تعالی په خپل قدرت سره یوشنه مرغلره پیدا کړه او هغې ته ئې دَ غضب په نظرسره اوکتل هغه ویلې شوه په کوم سره چه اوبه پیدا شوې ﴿وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَآءِ﴾ کښې هم دې کیفیت طرف ته اشاره ده. بیا الله تعالی اوبوته دَ رعب او جلال په نظرسره اوکتل نو اوبه اوخوټکیدې او اوچې شوې. ښکته خیرې شان پاتې شو پورته لوګې اوچت شو هم دَدغه لوګی نه الله تعالی آسمانونه جوړ کړل. ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَآءِ وَهِيَ دُخَانٌ﴾ کښې هم دې حقیقت طرف ته اشاره ده. بیا الله تعالی زمکه هواره کړه ﴿وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا﴾ کښې هم دا پس منظر بیان کړې شوې دې.

**دزمکې آسمانونو او ددې دآرائش په پیدائش کې ترتیب**: دَ زمکو پیدائش رومبې دې مګر خوریدل روستو دی او دَ آسمانونو تخلیق دَزمکې دَ تخلیق نه پس دې. مګر ښکلا او ښائست دَ زمکې دَ ښائسته کولونه وړاندې دې ځکه چه قاعده ده چه دَ چت صفائی او ښائسته کول اول کیږی دَ فرش روستو کیږی. "بدائع الزهور في وقائع الدهور" نومې کتاب کښې ټول تفصیلات دی. اشعة اللمعات کښې هم شیخ عبدالحق رحمه الله مکمل تفصیل لیکلې دې.

**په حدوث عالم د اهل حق اجماع**: دَ بنی آدم دَتخلیق شروع دَحضرت آدم علیه السلام نه اوشوه. دَټولو اهل حق په دې باندې اتفاق دی چه دا عالم حادث دې یعنی اول نه وو بیا الله تعالی دې ته وجود ورکړو. لوح او قلم ئی پیدا کړل، زمکه او آسمان ئی جوړ کړل، په زمکه باندې ئی غرونه اودرول، عرش او کرسئی ئی پیدا کړل، فرښتې پیریان او انسانان ئی پیدا کړل، بیا به یو وخت دَقیامت داسې راځی چه دا ټول به فنا کیږی او صرف دَالله تعالی ذات به باقی پاتې کیږی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۵۶۹۸] مخکې د الله جل جلاله نه ماسوا هیڅ نه وه

۵۶۹۸-()[۱] [۱] «عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: إِنِّي كُنْتُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] إِذْ جَاءَهُ قَوْمٌ [۳] فَقَالَ: " اقْبَلُوا الْبُشْرَى يَا بَنِي تَمِيمٍ! [۴] " قَالُوا: بَشَّرْتَنَا فَأَعْطِنَا، [۵] فَدَخَلَ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ، [۶] فَقَالَ: " اقْبَلُوا الْبُشْرَى يَا أَهْلَ الْيَمَنِ إِذْ لَمْ يَقْبَلْهَا بَنُو تَمِيمٍ! ". [۷] قَالُوا: قَبِلْنَا، جِئْنَاكَ لِنَتَفَقَّهَ فِي الدِّينِ، [۸] وَلِنَسْأَلَكَ عَنْ أَوَّلِ هَذَا الْأَمْرِ مَا كَانَ؟

**ترجمه**: [۱] حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه وایي یوه ورځ زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ناست وم [۲] چې د مشهوري او عظیمي قبیلي بنو تمیم څه خلق د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شول [۳] حضور صلی الله علیه وسلم هغوئ ته وفرمایل اې د بنو تمیم خلقو! بشارت حاصل کئ [۴] هغوئ اوویل تاسو خو د دین د تعلیماتو په صورت کې بشارت مونږ ته راکړیدي اوس څه سامان راته عطا کئ [۵] بیا څه وخت وروسته د یمن خلق د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شول [۶] حضور صلی الله علیه وسلم هغوئ ته وفرمایل اې د یمن خلقو! بشارت حاصل کئ د بنو تمیم خلقو خو بشارت حاصل نه کی [۷] یمن والو عرض وکړو یارسول الله! مونږ بشارت حاصل کی [۸] او مونږ د دې دپاره ستاسو په خدمت کې حاضر شوي یو چې ستاسو نه دیني

[۱] ) ضاخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب ما جاء في قول الله تعالى: {وهو الذي يبدأ الخلق ثم يعيده وهو أهون عليه} [الروم: ۲۷] (رقم-۳۱۹۰) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في ثقيف وبني حنيفة (رقم-۳۹۵۱) واحمد في المسند: ۴/۴۲۶

معلومات او ديني شعور او فهم حاصل کړو نوموږ ستاسو نه د ابتدائي پيدائش او مبداء عالم په باره کې پوښتنه کول غواړو چې د دې کائناتو په وجود کې د راتلو او د مخلوقاتو د پيدائش نه مخکې څه شی موجود وو؟

**حل اللغات:-** ① الْبُشْرَى: أَيِ الْبِشَارَةُ: خوشخبری، زيری،

| |
|---|
| ۱ قَالَ: كَانَ اللهُ وَلَمْ يَكُنْ شَيْءٌ قَبْلَهُ، ۲ وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ، ۳ ثُمَّ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ، وَكَتَبَ فِي الذِّكْرِ كُلَّ شَيْءٍ، ۴ ثُمَّ أَتَانِي رَجُلٌ قَالَ: يَا عِمْرَانُ! أَدْرِكْ نَاقَتَكَ فَقَدْ ذَهَبَتْ، ۵ فَانْطَلَقْتُ أَطْلُبُهَا، ۶ وَاللهِ لَوَدِدْتُ أَنَّهَا قَدْ ذَهَبَتْ وَلَمْ أَقُمْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |

**ترجمه:** ۱ حضور ﷺ ورته وفرمايل صرف د الله ﷻ ذات موجود وو په ازل کې هغه سره او د هغه نه مخکې هيڅ شی موجود نه وو ۲ او د هغه عرش په اوبو وو ۳ بيا الله ﷻ آسمان او زمکه پيدا کړل او لوح محفوظ کې هرڅه وليکل ۴ د حديث راوي حضرت عمران ابن حصين وايي ما د حضور ﷺ ارشاد گرامي بس دي پوزې اوريدلی وو چې يو سړی ماته راغې او هغه اوويل چې عمرانه! لاړ شه او خپله اوښه تلاش که ۵ نوزه دخپلي اوښي په تلاش کې ووتم ۶ او اوس زه د الله قسم اخستو سره وايم اوارمان کوم چې کاشکې زه هغه وخت د مجلس نبوي نه نه وې ولاړ شوی خواه که څما اوښه ورکه شوی هم واي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ② أَدْرِكْ: أَيِ الْحَقْهَا: تلاش کړه، اوگوره، ③ لَوَدِدْتُ: أَيْ تَمَنَّيْتُ: خوښه گڼړم، ارمان کوم

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقَالَ: "اقْبَلُوا الْبُشْرَى يَا بَنِي تَمِيمٍ!" قَالُوا: بَشَّرْتَنَا فَأَعْطِنَا:

**د يمنيانو بشارت قبلول او د بنو تميم نه قبلول:** حضورپاك دَ بنوتميم په راتلو باندې هغوی ته دا زيرې ورکړو چه تفقه في الدين اوعلمی سوچ اوفکر حاصل کړئی اوبيا دَهغې په نتيجه کښې دَ جنت نعمتونه اودَعلم اوعمل زيرې قبول کړئی چونکه دَهغوی پوره نظر اومکمل خيال په دنيا باندې وو په دې وجه ئی اووئيل چه زيرې خوتاسو راکړو اوس مونږ ته مال راکړئی. کيدې شی چه هغوی دَ حضورپاك ظاهری الفاظ "البشری" نه دنيا اوگڼرله څکه چه نظرئی هم په فانی دنياباندې لگيدلې وو اودَ هميشه والی دَ آخرت نه غافل وو. بيا دا زيرې اهل يمن قبول کړو اودَ تخليق کائنات دَ شروع باره کښې تپوس اوکړو

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① كَانَ اللهُ: يعنی الله تعالی دَ ازل الازال نه وو اودَ ابدالاباد پورې به وی. دَ کائنات خالق هم دغه ذات دې. بهرحال نودَ الله تعالی نه مخکښې هيڅ هم نه وو.

② عَلَى الْمَاءِ: دَدې تشريح او تفصيل دې نه مخکښې ليکلې شوې دې دامراد نه دې چه دَ اوبو په مخ باندې عرش کيخودې شوې وو بلکه پورته عرش اوبنکته اوبه وې نورهيڅ نه وو

③ وَكَتَبَ فِي الذِّكْرِ: دذکر نه لوح محفوظ مراد دې اوکتب په معنى اثبت دې يعنى هرڅه ئې په لوح محفوظ کښې اوليکل

④ وَاللهِ: دَا جمله قسميه ده. "اي اقسم بالله" يعنى زما دې په الله قسم وی

**[۵۶۹۹]د نبی علیه السلام یو جامع تقریر**

۵۶۹۹ -()[۲] ①وَعَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ②«قَامَ فِينَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَقَامًا، ③فَأَخْبَرَنَا عَنْ بَدْءِ الْخَلْقِ حَتَّى دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ مَنَازِلَهُمْ، وَأَهْلُ النَّارِ مَنَازِلَهُمْ، ④حَفِظَ ذَلِكَ مَنْ حَفِظَهُ، ⑤وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او امير المؤمنين حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وايي ②يوه ورځ حضور ﷺ خطبه ورکولو د پاره زمونږ په مخکښې اودريدلو ③حضور ﷺ د هغه خطبې په دوران کښې ابتداءپيدائش نه (د قيامت په ورځ) جنت او دوزخ کښې دداخليدو پورې ټول احوال او کوائف ذکر کړل ④کوم سړی چې داخبري ياد وساتلي هغه ته يادي دي ⑤او کوم سړي چې هيري کړي هغه هيري کړلو . (بخاري)

**حل اللغات:-** ① بَدْءِ الْخَلْقِ: د مخلوق د پيدا کولو ابتداء

**تسهيلات:**

**قوله: حَفِظَ ذَلِكَ مَنْ حَفِظَهُ، وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ:**

**دمجلس د خبرو يادول:** دَحضرت عمر رضي الله عنه مطلب دا وو چه حضورپاك په هغه ورځ هم په يو مجلس کښې دَ ټولو مخلوقاتو دَ مبداء، معاش او دَ معاد ټول احوال په تفصيل سره بيان کړل دغه هغه خلقو ياد کړل چا چه دَ ياد ساتلو کوشش اوکړو او هغوی ته الله تعالى دَ ياد ساتلو توفيق ورکړو او هغه خلقو دغه خبرې هيرې کړلې. چا چه دَ ياد ساتلو کوشش اونه کړو حالانکه دَ ياد ساتلو او دَعمل کولو لائق وو. داسې مجلسونه بيا چاته نصيب کيږی.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب ما جاء في قول الله تعالى: {وهو الذي يبدأ الخلق ثم يعيده وهو أهون عليه} [الروم: ۲۷] (رقم-۳۱۹۲) وابوداود في كتاب الترجل /باب ذكر الفتن ودلائلها (رقم-۴۲۴۰) والترمذي في كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ما أخبر النبي صلى الله عليه وسلم أصحابه بما هو كائن إلى يوم القيامة (رقم-۲۱۹۱) واحمد في المسند:۳۸۵/۵

### [٥٧٠٠] د الله ﷻ رحمت د هغه په غضب سبقت وړی دی

٥٧٠٠-()[١] ١وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ٢" «إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى كَتَبَ كِتَابًا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ الْخَلْقَ: ٣إِنَّ رَحْمَتِي سَبَقَتْ غَضَبِي ; ٤فَهُوَ مَكْتُوبٌ عِنْدَهُ فَوْقَ الْعَرْشِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١او حضرت ابوهريره ؓ وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ٢چې الله ﷻ د مخلوق يعنی زمکې آسمان پيدا کولو نه مخکې يو کتاب وليکلی ٣په هغه کې درج دی چې څما رحمت په غضب سبقت وړی دی ٤او هغه کتاب يا مذکوره عبارت د الله ﷻ سره په عرش برسيره ليکلی موجود دی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① كِتَابًا: د کتاب نه مراد مکتوب دې او هغه لوح محفوظ دې ② سَبَقَتْ: أي غَلَبَتْ: مخکښې شوې او غالب شوې دې.

**تسهيلات:** **قوله:** إِنَّ رَحْمَتِي سَبَقَتْ غَضَبِي:

**د سبقت غضبی په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① يو دا چه رحمت دَ اول نه وو دکوم په برکت سره چه کائنات جوړ شو او هم رحمت په رحمت باندې موجود وو بيا چه چا سرکشي شروع کړه دَهغوی دَپاره دَ غضب ظهور اوشو دَحديث هم دغه مطلب دې چه په غضب باندې رحمت ته سبقت حاصل وو

② دويم مفهوم دا دې چه دَ الله تعالی رحمت دَ هغه دَ غضب نه ډير وسيع دې او په دې باندې سبقت او وړانديوالي اوړلې دې. هم دَدغه وسعت تقاضا ده چه دَ جنت طبقات دَ دوزخ دَ طبقاتو نه زيات دی او په کائنات باندې رحمت محيط او راګيرونکې دې

### [٥٧٠١] ملائکه جنات او د انسان د جوهر تخليق

٥٧٠١-()[٢] ١وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢قَالَ: «خُلِقَتِ الْمَلَائِكَةُ مِنْ نُورٍ ٣وَخُلِقَ الْجَانُّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ ٤وَخُلِقَ آدَمُ مِمَّا وُصِفَ لَكُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١او ام المؤمنين بي بي عائشه ؓ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي ٢چې رسول کريم ﷺ وفرمايل فرشتې د نور نه پيدا شوي دي ٣جنات يې د اور د شعلې نه پيدا کړي دي چې په هغه کې دود ګډ وي ٤او آدم د هغه شي نه پيدا شوي دي چې تاسو ته بنودل شوي دي (مسلم)

---

[١] ) اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب ما جاء فی قول الله تعالى: {وهو الذي يبدأ الخلق ثم يعيده وهو أهون عليه} [الروم: ٢٧] (رقم-٣١٩٤) ومسلم فی كتاب التوبة/باب فی سعة رحمة الله تعالى وأنها سبقت غضبه (رقم-١٤ - (٢٧٥١) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٥٤٣) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ما يرجى من رحمة الله يوم القيامة (رقم-٤٢٩٥) واحمد فی المسند: ٢/٤۶۶

[٢] ) اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب فی أحاديث متفرقة (رقم-۶٠ - (٢٩٩۶) واحمد فی المسند:۶/١۶٨

**حل اللغات:-** ① مِنْ نُورٍ: يعنی فرښتې دَيوقسم نورنه جوړې شوی دی داد الله تعالى نورنه دې يوبل نوردې. ② الْجَانُّ: دَ لفظ جان معنى يا خو جن اوجنات ده يا دَ جناتو دَ اصل او دَدوی دَپلار نوم جان دې. دَ كوم نه چه دَ جناتو نسل خورشوی دې. ③ مَارِجٍ: أَيْ لَهَبٍ: د اور شغلې چه اور هم وی او لوګې پکښې هم وی. ④ وُصِفَ لَكُمْ: أَيْ مِمَّا بَيَّنَهُ اللهُ لَكُمْ: كوم چه تاسو ته الله تعالى پوره وضاحت سره بيان كړی دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَخُلِقَ الْجَانُّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ:

**د جان څخه مراد:** يعنی حضرت آدم عليه السلام چه دَ كوم څيزنه پيدا كړې شو هغه په قرآن پاك كښې الله تعالى بيان كړې دې. آيت دادې ﴿خَلَقَهُ مِنْ تُرَابٍ﴾ يعنی دَخاورې نه پيدا كړې دې. په دې حديث كښې په بريليانوباندې سخت رددې بلكه دَهغوی خيالی او بناوتی عمارت په زمكه راګذارشوې دې. څكه چه دلته دَ فرښتو دَتخليق نسبت دَنور طرف ته كړې شوې دې اودانسان دَ تخليق نسبت دَخاورې طرف ته كړې شوې دې لهذا خاوره او نور دَ يوبل مقابل شو اوس اوښايئ چه دَ دغه مشركانو اوبدعتيانو هغه دَ دروغو عقيده چرته لاړه؟ داخلق تور زړه اوبدبخته دی چه قرآن هم په خاطر كښې نه راولی او احاديثو ته هم نه ګوری بلكه خپل دَدورغو اجتهاددَ ځان نه جوړوی اودَ كفر فتوې لګوی.

**[۵۷۰۲] د صورت آدم په باره کښي د شيطان اظهار خيال**

۵۷۰۲-()[۵] ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«لَمَّا صَوَّرَ اللهُ آدَمَ فِي الْجَنَّةِ تَرَكَهُ مَا شَاءَ أَنْ يَتْرُكَهُ، ③ فَجَعَلَ إِبْلِيسُ يُطِيفُ بِهِ يَنْظُرُ مَا هُوَ، ④ فَلَمَّا رَآهُ أَجْوَفَ عَرَفَ أَنَّهُ خُلِقَ خَلْقًا لَا يَتَمَالَكُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② هركله چې الله تعالى په جنت کې د آدم جسم وصورت يې جوړکی نو داجسم يې چې د څوپوري غوښتل په جنت کې وساتی ③ په دې موده کې ابليس به ددې جسم و صورت چاپيره چكر لګوی. او غور به يې كولو چې داڅه شی دی او څرنګه دی يعنی هغه دا مشاهده كول غوښتل چې الله تعالى د دې جسم خاکي صورت کې د خپلو بنده ګانو چې کوم نوې مخلوق پيداكول غواړي د هغوئ حيثيت او حقيقت به څه وي ④ او هركله چې هغه وليدل چې داخاكي صورت ددننه نه خالي دی نو پوهه شو چې دايوداسې مخلوق پيداشوې دې چې غير مضبوط به وي. (مسلم)

---

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب خلق الإنسان خلقًا لا يتمالک (رقم-۱۱۱ - (۲۶۱۱) واحمد فی المسند:۳/۲۲۹

**حل اللغات:-** ① صَوَّرَ: شکل او صورت ئې جوړ کړو د آدم علیه السلام ، ② تَرَكَهُ: پرې ئې خودلو یعنې اوئې ساتلو په جنت کښې، ③ يُطِيفُ: أي اسْتَدَارَ حَوْلَهُ: طواف نه مراد گیر چاپیره گرځیدل دی. ④ أَجْوَفَ: چه دننه خالي وی یعنی مینځ کښې ده وی (زه به پکښې خپلې وسوسې اچوم)، ⑤ لَا يَتَمَالَكُ: أي لَا قُوَّةَ وَلَا ثَبَاتَ: چه مضبوط او ثابت قدم به نه وی، په خپل ځان به ئې هم قابو نه وی، مختلف حالتونو والا.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمَّا صَوَّرَ اللّٰهُ آدَمَ فِي الْجَنَّةِ تَرَكَهُ مَا شَاءَ أَنْ يَتْرُكَهُ:

**د آدم علیه السلام د خلقت مختلف مراحل:**

دَحضرت آدم علیه السلام داصورت دَ څو مرحلونه تیریدوسره جوړکړې شوې دې اول خاوره بیا خته جوړه کړه بیائی اوچه کړه بیائی سانچه جوړه کړه اودَ قالب په شکل کښې وه ابلیس به په دې مرحله کښې تلو راتلو اوکتل به ئی.

**[۵۷۰۲] ختنه سنت ابراهمي ده**

٥٧٠٣-()[٢] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«اخْتَتَنَ إِبْرَاهِيمُ النَّبِيُّ وَهُوَ ابْنُ ثَمَانِينَ سَنَةً بِالْقَدُومِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] و حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] حضرت ابراهیم علیه السلام د اتیا کالو په عمر کې قدوم سره خپله ختنه وکړله یعنی ځان یې سنت کی (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① اخْتَتَنَ: سنت ئې کړو ځان، ② الْقَدُومِ د دال ضمه غیر مشدد: آلَةُ النَّجَّارِ: ترخذ، دا یوه آله ده کوم سره چه ترکانران لرگی تراشی. اوکه قَدُّوم کښې دال مشدد شی نو دا په شام کښې د یو ځائې نوم دې.

**تسهيلات: قوله:** اخْتَتَنَ إِبْرَاهِيمُ النَّبِيُّ وَهُوَ ابْنُ ثَمَانِينَ سَنَةً بِالْقَدُومِ:

**د قدوم په معنی کښې دوه احتمالات:**

① که قدوم مشدد اووئیلې شی نودَې مصداق دَ یوځائی نوم دې

② که چرې قدوم غیرمشدد اووئیلې شی نودا تیشئ ته وائی

حضرت ابراهیم علیه السلام دَ الله تعالی په حکم سره په بوداوالی کښې تیشئی واخستله او په مقام قدوم کښې خپل ځان سنت کړو.

**فائده:** دَ سنت کولو شروع حضرت ابراهیم علیه السلام کړې ده او اوس دا دَ اهل اسلام دَپاره شعار او سنت دې.

---

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله تعالى: {واتخذ الله إبراهيم خليلًا} [النساء: ١٢٥] (رقم-٣٣٥٦) ومسلم في كتاب الفضائل/باب من فضائل إبراهيم الخليل صلى الله عليه وسلم (رقم-١٥١ - (٢٣٧٠) واحمد في المسند:٣٢٢/٢

[٥٧٠٤] د حضرت ابراهيم علیه السلام دري دروغ

٥٧٠٤-() [٤] [١] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]" «لَمْ يَكْذِبْ إِبْرَاهِيمُ إِلَّا ثَلَاثَ كَذَبَاتٍ: [٣] ثِنْتَيْنِ مِنْهُنَّ فِي ذَاتِ اللّٰهِ. [٤] قَوْلُهُ: ﴿إِنِّي سَقِيمٌ﴾ [الصافات: ٨٩] [٥] وَقَوْلُهُ ﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا﴾ [الأنبياء: ٦٣] ، [٦] وَقَالَ: بَيْنَا هُوَ ذَاتَ يَوْمٍ وَسَارَةُ، إِذْ أَتَى عَلَى جَبَّارٍ مِنَ الْجَبَابِرَةِ، [٧] فَقِيلَ لَهُ: إِنَّ هَاهُنَا رَجُلًا مَعَهُ امْرَأَةٌ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ [٨] فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ، فَسَأَلَهُ عَنْهَا: مَنْ هَذِهِ؟ قَالَ: أُخْتِي.

**توجمه:** [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [٢] حضرت ابراهيم علیه السلام هيڅ كله دروغ نه وه ويلي علاوه د دريو دروغو نه [٣] او په هغه كې يې هم دوه دروغ د الله جل جلاله دپاره ويلي وه [٤] په هغه كې يو خو د هغوئ دا وئيل وه چې نن زه ناجوړه شان يم [٥] دويم يې دا وئيل وه چې دا كار لوى بت كړى دى [٦] او حضور ﷺ وفرمايل د حضرت ابراهيم علیه السلام د ژبي نه چې كوم دريم دروغ وتلي وه هغه د هغوئ دا وئيل وه چې دا خما خور ده او دا د هغه وخت واقعه ده هركله چې حضرت ابراهيم علیه السلام او د هغوئ ښځه بي بي ساره رضي الله عنها هجرت كولو سره د شام ملك طرف ته تلل چې د هغوئ تيريدل د يولوى ظالم او جابر حاكم په زمكه وشوه [٧] هغه حاكم ته وښودل شوه چې دلته دي زمكي ته يو سړى راغلى دى چې د هغه سره يوه ډيره حسينه او جميله ښائسته ښځه ده [٨] هغه حاكم په دي اوريدو سره يو كس د حضرت ابراهيم علیه السلام د بللو د پاره وليږى كوم وخت چې حضرت ابراهيم علیه السلام هغه حاكم ته ورسيدى نو هغه څني پوښتنه وكړه چې تا سره دا ښځه څوك ده او ستا څه ده؟ حضرت ابراهيم جواب وركړو چې هغه خما خورده

**حل اللغات:** - ① جَبَّار: أَيْ: ظَالِمٌ: ظالم او جابر،

[١] فَأَتَى سَارَةَ، فَقَالَ لَهَا: إِنَّ هَذَا الْجَبَّارَ إِنْ يَعْلَمْ أَنَّكِ امْرَأَتِي [٢] يَغْلِبْنِي عَلَيْكِ، [٣] فَإِنْ سَأَلَكِ فَأَخْبِرِيهِ أَنَّكِ أُخْتِي [٤] لِأَنَّكِ أُخْتِي فِي الْإِسْلَامِ [٥] لَيْسَ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ مُؤْمِنٌ غَيْرِي وَغَيْرُكِ، [٦] فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا، فَأُتِيَ بِهَا، [٧] قَامَ إِبْرَاهِيمُ يُصَلِّي، [٨] فَلَمَّا دَخَلَتْ عَلَيْهِ، ذَهَبَ يَتَنَاوَلُهَا بِيَدِهِ. [٩] فَأُخِذَ - وَيُرْوَى فَغُطَّ - [١٠] حَتَّى رَكَضَ بِرِجْلِهِ، فَقَالَ: ادْعِي اللّٰهَ لِي وَلَا أَضُرُّكِ، فَدَعَتِ اللّٰهَ فَأُطْلِقَ، ثُمَّ تَنَاوَلَهَا الثَّانِيَةَ، فَأُخِذَ مِثْلَهَا أَوْ أَشَدَّ،

**توجمه:** [١] بيا هغوئ بي بي ساره رضي الله عنها ته واپس راتلو سره هغه ته يي د هغه جابر حاكم د خرابي ارادي نه د بچ كيدو تدبير و خودى او ورته ويي وئيل كه هغه ظالم حاكم ته دا معلومه شي چې ته خما ښځه يي نو تا به زما نه په زبردستي سره واخلي [٢] نو كه هغه ستا او خما د تعلق په باره كې در نه پوښتنه وكړي نو هغه ته اووئيلو چې ته خما خور يي [٣] او

---

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله تعالى: {واتخذ الله إبراهيم خليلًا} [النساء: ١٢٥](رقم-٣٣٥٨) ومسلم في كتاب الفضائل/باب من فضائل إبراهيم الخليل صلى الله عليه وسلم (رقم-١٥٤ - (٢٣٧١) والترمذي في كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الشفاعة (رقم-٢٤٣٤) واحمد في المسند: ٢٨١/١

په دي کې څه شبهه هم نشته چې ته د دين د رشتي په اعتبار څما خوريي نو خان څما خوربنودلو سره د ديني اخوت نيت وکړه [۵] او دانيت به څکه هم صحيح وي چې په دې زمکه باندې څما او ستا نه علاوه يوبل مؤمن څوك نشته [۶] نو هغه ظالم يو کس ليږلو سره بي بي ساره ﷺ طلب کړه بي بي ساره ﷺ هغه ته بوتلل شوه [۷] او حضرت ابراهيم ﷺ خپلي قيامګاه کې مونځ کولو د پاره اودريدلو [۸] بي بي ساره ﷺ چې هغه ظالم ته ورسيده نو د هغه حسن وجمال ليدو سره هغه د هوښه اووتلو او د هغه نه يې پوښتنه او تحقيق کولو بغير چې هغه حضرت ابراهيم ﷺ سره څه رشته لري يا د پوښتني کولو او د بي بي ساره ﷺ د دې ويلو باوجود چې هغه د حضرت ابراهيم خورده هغه په هغه باندې لاس اچول او د هغه عفت او عصمت پاکدامني د خپل هوس نښه جوړول او غوښتل [۹] خو الله ﷻ د بي بي ساره ﷺ مدد وکړ او هغه ظالم ونيول شو په يوروايت کې دفأخذ په ځاى يا دي لفظ سره مزيد فَغُطَّ لفظ هم نقل شوي دي [۱۰] بهرحال هغه د عتاب خداوندي ګرفت کې راتلو نه وروسته زمکه باندې پښي وهل شروع کړل يعنى څرنګه چې يو آسيب زده يا ميرګي مرض کې مبتلا سړى زمکه باندې په زور زور سره پښي تکوي دغه شان هغه هم خپلي پښي تکولي

بيا هغه بي بي ساره ﷺ ته آوويل زه د خپلي بدي ارادي نه منع کيږم ته الله ﷻ نه دعا وغواړه چې ماته دي مصيبت نه خلاصون راکړي څما درسره وعده ده چې زه به تاته هيڅ نقصان نه رسوم يعنى تا سره به څه بد عملي نه کوم نو بي بي ساره ﷺ دعا وکړه او هغه ظالم خلاصون پيدا کړ ليکن هغه دوباره دست درازي کول او غوښتل نو بيا د مخکې په شان بلکه د هغه نه زيات سخت عتاب خداوندي کې ونيول شو هغه

**حل اللغات:** -② تَنَاوَلَهَا: أَيْ: تَأَخُذُهَا وَتَمُسُّهَا: لاس سره نيول. لاس ورته اوړل، ③ فَأُخِذَ: أَيْ: حُبِسَ نَفَسُهُ وَضُغِطَ: اونيولې شو يعنى ساه ئې بنده او خفه کړې شوه، ④ فَغُطَّ: أَيْ: خُنِقَ: يعنى خراړې شروع کړو ⑤ رَكَضَ: أَيْ: ضَرَبَ: لتې وهل. خپې په زمکه باندې ترپول لکه څنګه چه د مرګ راتلو په حالت کښې کيږي ⑥ فَأُطْلِقَ: نو هغه خلاص کړې شو(مصيبت ترې لرې شو)

> [۱] فَقَالَ: ادْعِي اللَّهَ لِي وَلَا أَضُرُّكِ، [۲] فَدَعَتِ اللَّهَ فَأُطْلِقَ، [۳] فَدَعَا بَعْضَ حَجَبَتِهِ، فَقَالَ: إِنَّكَ لَمْ تَأْتِنِي بِإِنْسَانٍ، إِنَّمَا أَتَيْتَنِي بِشَيْطَانٍ، [۴] فَأَخْدَمَهَا هَاجَرَ [۵] فَأَتَتْهُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي [۶] فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ مَهْيَمْ؟ [۷] قَالَتْ: رَدَّ اللَّهُ كَيْدَ الْكَافِرِ فِي نَحْرِهِ، وَأَخْدَمَ هَاجَرَ". [۸] قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: تِلْكَ أُمُّكُمْ يَا بَنِي مَاءِ السَّمَاءِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بيا بي بي ساره ﷺ ته درخواست وکړ چې الله ﷻ نه دعا وغواړه چې مادې مصيبت نه خلاص کړي اوس زه د زړه په صدق سره يقين درکوم چې تاته به هيڅ نقصان نه رسوم [۲] بي بي ساري ﷺ د الله ﷻ څخه دعا وغوښتله او هغه ظالم خلاصون پيدا کړ [۳] دې نه وروسته هغه ظالم خپلو پهره دارانو کې څوك راوبللي او هغه ته يې اوويل چې

تاماته انسان نه دی راوستلی چې زه باندې قابو پیدا کم بلکه تا خو څوك جن ماته راوستلی دی چې په هغه باندې قابو پیدا کیدو په ځاي زه برعکس مصیبت کې مبتلیږم دا خو تا زما د پاره د مرګ سامان فراهم کړی دی ۴بیا هغه د بي بي ساره ﷞ د پاره هاجره نوم یوه منځه هم ورکړه او هغه یي واپس ولیږله ۵بي بي ساره ﷞ چې حضرت ابراهیم ﷺ ته واپس ورسیدله نو هغوئ په ما نځه کې مشغول وو ځکه چې د څوپوري هغوئ ته د هغه ظالم د پنجي نه د بي بي ساره ﷞ د خلاصون خبر نه وو شوی هغوئ بدستور ما نځه کې الله ﷻ طرف ته متوجه وه او د بي بي ساره ﷞ دعفت او عافیت سره د واپس راتلو دعاګاني یي کولو ۶حضرت ابراهیم چې هغه ولیده نو ما نځه کې د خپل لاس په اشاري سره ځني پوښتنه وکړه چې څه حال دی او په تا باندې څه تیر شو ۷بي بي ساره ﷞ اوویل الله ﷻ د هغه کافر بده اراده د هغه سیني ته واپس کړله یعنی هغه زه د خپل هوس نښه جوړولو د پاره چې د کومي بدنیتي اظهار وکی هغه برعکس د هغه په غاړه کې راتله ماته خو هغه هیڅ نقصان ونه رسول شو خپله عذاب خداوندي کې ضرور ونښتی او هغه دخدمت د پاره هاجره هم راکړي ده ۸حضرت ابو هریره ﷜ داحدیث بیانولو نه وروسته اوویل اي د آسمان د اوبو ځامنو! دغه هاجره بي بي ﷞ ستاسو د ټولو مور ده. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**-۵ حَجَبَة: د حَاجِب جمع ده، دربان او پهره دار ته وائی ۸فَأَوْمَأَ: أَيْ: أَشَارَ: اشاره او کړه ابراهیم ﷺ ۹مَهْيَمْ: أَيْ: مَاشَأْنُكِ؟: ستا څه حال دې؟ یعنی څه دربان دې تیر شو؟ ۱۰کَیْدَ: بدچال او مکر. فریب. ۱۱نَحْرِهِ: أَيْ: عَلَى صَدْرِهِ: مرئ ته یعنی سیني ته ۱۲بَنِي مَاءِ السَّمَاءِ: د آسمان د اوبو اولاد. ددې نه د عرب خلق مراد دی ځکه چه هم عرب به دَ اوبو په لټون کښې تل راتلل اوچرته چه به اوبه ملاویدې هم هلته به ئې ډیره اچوله.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَمْ يَكْذِبْ إِبْرَاهِيمُ إِلَّا ثَلَاثَ كَذَبَاتٍ:

**دكذبات لغوی تحقیق:** ابو البقاء بغوی ﷫ فرمائی چه ذال مفتوح لوستل ډیر بهتر دی. او دې واحد کذبة دَ ذال په سکون سره دې او دا (ضیعة وضیعات) په شان نه دې ځکه هغه هم ساکن الاوسط دی مګر په جمع کښې به هم دا ساکن لوستلې کیږی (۱)

**قوله:** ثِنْتَيْنِ مِنْهُنَّ فِي ذَاتِ اللهِ:

**دالله تعالی دپاره کذبات ثلاثه:** یعنی دَدریو کذبات نه دوه کذبات خالص دَ الله تعالی دَپاره وو نو هم دغه شان کذب ثالث ئې هم دَ الله تعالی دَپاره وئیلې وو مګر چونکه ذاتی

(۱) للامع الصبیح بشرح الجامع الصحیح: ۴۴۵/۹.

نفع ته هم متضمن وو اومقصد ئې دَ خپلې بي بي پاکوالې بچ کول وو په دې وجه دَدې ارخ اعتبار کولو سره صرف کذب اول اوثاني باره کښې ئې تصريح اوفرمائيله چه هغې ته خالص لوجه الله اووئيلې شو [۱]

خو دَدې روايت په بل طريق کښې تصريح ده چه دريواړه کذبات ئې دَالله تعالى دَپاره وئيلى وو چنانچه دَهشام بن حسان رحمه الله په روايت کښې دی (ان ابراهيم لم يكذب قط إلا ثلاث كذبات، كل ذلك في ذات الله) [۲]

**قوله: إِنِّي سَقِيمٌ:**

① **اولنې کذب:** حضرت ابراهيم عليه السلام دَ اختر دَ پاره دَ قوم سره تللو نه معذرت کړې وو اوفرمائيلې وو (إِنِّي سَقِيمٌ) زه بيمار يم حالانکه بيمار نه وو

**د کذب په مفهوم کښې مختلف توجيهات:** ① دَ سقم اطلاق په خپل نفس باندې صورتًا وو حقيقتًا نه وو اومقصد ئې دا وو (إني سقيم القلب في الخروج معكم) يعنى زما زړه تاسو سره دَ وتلو دَپاره تيار نه دې چه تاسو به هلته دَ کفريه اوشرکيه اعمالو ارتکاب کوئى. [۳]

② سقيم دلته (سقيم الحجة) په معنى کښې دې اودَ ابراهيم عليه السلام مقصد دا وو چه (انى سقيم الحجة في الخروج معكم) [۴] زه سقيم الحجه يم زما سره ستاسو دَ تلودَپاره هيڅ دليل نشته دکوم په بنياد چه زه تاسو سره لاړ شم. که چرې ابراهيم عليه السلام دَ نه تلو حقيقت دا وينا کولو سره خودلې وې چه تاسو به دَاختر په ميلو کښې دَ شرکيه شغلونو ارتکاب کوئى اوزه دغه شرك كبيره گناه گنړم نوبښکاره خبره وه چه خلق به غصه کيدل اوحالات به يوناڅاپه دَهغوى په حق کښې خرابيدل

③ په دې کښې يو احتمال دادې چه سقيم دَ فعيل په وزن باندې اسم فاعل په معنى کښې وى او اسم فاعل دَ مستقبل په معنى کښې په کثرت سره استعماليږى په دې صورت کښې به (إِنِّي سَقِيمٌ) دَ سأسقم په معنى کښې شى مطلب به داشى چه زه په راتلونکى وخت کښې بيماريدونکې يم سرې بهر حال بيماريږى خو [۵]

دا هم کيدې شى چه دَ سقم نه مرګ مراد وى دَمرګ نه مفر نه وې کوم يو وخت هم راتلې شى په دې صورت کښې به دَ سقيم نه دَ حضرت ابراهيم عليه السلام مقصد دا شى چه زما مرګ

---

[۱] فتح الباري: ۴۸۲/۸ عمدة القارى: ۳۴۳/۱۵ شرح مسلم للإمام النووى: ۱۲۵/۱۵ المطبعة المصرية بالأزهر.
[۲] أخرجه البزار فى مسنده: ۳۰۵/۱۷ (۱۰۰۵۴) مكتبة العلوم والحكم المدينة المنورة.
[۳] فتح البارى: ۴۸۲/۸.
[۴] فتح البارى: ۴۸۲/۸.
[۵] فتح البارى: ۴۸۲/۸ شرح مسلم للنووى: ۱۲۵/۱۵ المطبعة المصرية بالأزهر.

کوم یو وخت هم راتلې شي زه راتلونکی وخت کښې مرکیدونکې یم.[1]

④ دَ سړي طبیعت اومزاج چه هروخت په اعتدال باندې وی داسې ډیرکم کیږي. اکثر په طبیعت اومزاج کښې اعتدال نه وی. کیدې شي دَ ابراهیم علیه السلام طبیعت په اعتدال باندې نه وو اودَمزاج دَ اعتدال نه وتلو کیفیت هغه په سقم سره تعبیرکړې وی.[2]

**قوله: بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هٰذَا:**

② **دويم كذب:** دا دَدويم كذب واقعه ده. کله چه خلق دَ اختردَمیلې دَپاره لاړل نوابراهیم علیه السلام بت خانې ته لاړو تبرئی اوچت کړو او بتان ئی ټکړې ټکړې کړه او تبر ئی دَ غټ بت په اوږه باندې زوړند کړو. خلق چه راغله وئی کتل نو ټول بتان په سجده پراته وو نوهغوی سخت پریشانه شو او دَ غم اوغصې نه تاویدل. هغوی ابراهیم علیه السلام نه تپوس اوکړو نوهغوی دَغټ بت طرف ته اشاره کولوسره اوفرمائیل (بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هٰذَا) داخودَ دغه غټ بت کار دې دَ بتانودَ ماتولو عمل خو ابراهیم علیه السلام پخپله کړې وو بیا دَدغه عمل نسبت دَ غټ بت طرف ته کولوڅه مطلب دې؟

**د بت ته د ماتولو په نسبت کولو کښې درې توجیهات:** ① دَفعل نسبت څنګه دَ هغې دَ فاعل طرف ته راګرځی هم دغه شان دَ دې په وجه دَمحرك طرف ته هم راګرځی دَبتانو عبادت به کیدلو دَهغې تعظیم به کیدلو اودَ ټولونه زیات تعظیم به دَ دغه غټ بت کیدلو ابراهیم علیه السلام به چه دغه بتانوته کتل نوخفه کیدلو به. خاص کر دَ دغه غټ بت طرف ته په کتلو سره به ډیر سخت خفه کیدلو او غصه کیدلو به چه دَ ټولو نه زیات تعظیم هم دَ ده کولې شی. چونکه دغه لوئی بت دَ دې واقعه سبب اومحرك وو په دې وجه ابراهیم علیه السلام دَبتانو ماتولو نسبت دغه لوئی بت طرف ته کولوسره اوفرمائیل (بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هٰذَا).

**دويمه توجيه:** دَ (إِنِّي سَقِيمٌ) په شان(بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هٰذَا) کښې هم دا توریه ده اودا قول دَ (إِنْ كَانُوا يَنْطِقُونَ) سره مشروط دې او تقدیری عبارت دادې چه (إن كانوا ينطقون فقد فعله كبيرهم هذا) مطلب دا چه که چرې دوی ژوندې دې اودَ ویناصلاحیت لری نوبیا خودې غټ دا کار کړې دې ګنی بیا بل چا دا حرکت کړې دې.[3]

سبحان الله څه ښکلې تعریض دې. ابراهیم علیه السلام ته معلومه وه چه دَ دغه بتانودَحقیقت نه دا مشرکان هم خبر دې چه هغه بې حس او بې حرکته دی اودَدوی نه دَ یوعمل صادر کیدل ممکن نه دی په دې وجه ئی تعریض کولوسره اوفرمائیل چه کله دَدوی نه دَ یو کار کیدلو

---

[1] فتح الباري: ۴۸۲/۸ إرشادالساري: ۲۸۲/۷ شرح مسلم للنوی: ۱۲۵/۱۵ المطبعة المصرية بالأزهر.

[2] إرشادالساري: ۲۸۲/۷.

[3] فتح الباري: ۴۸۲/۸.

امکان معدوم دي نوزما نه علاوه دا کار بل څوك کولې شي هم ما خو کړې دې نولکه چه ابراهیم عليه السلام د تعریض شاته دَدې عمل نسبت خپل ځان طرف ته کړې دې

**د مذکوره توجیه وضاحت د مثال په رڼا کښې:** علامه زمخشري رحمه الله په يو مثال سره ددې وضاحت کړې دې چه دوه سړی دی يو سړې ښکلې خط ليکونکې دې او بل کس په ليك لوست د سره پوهيږی نه خطاط يو خط اوليکلو هغه بل سړې تپوس کوی چه دا چاليکلې دې؟ خطاط جواب ورکړو چه هم تا خو ليکلې دې نو په دې جواب کښې دا خودل مقصود نه دی چه په حقيقت کښې دا هم تا ليکلې دې بلکه مخاطب پورې ټوقه مسخره کولو سره د تعريض شاته دغه خط ليکل هم خپل طرف ته منسوب کول مقصود دی. لکه چه په دې جملې سره دَخپل ذات طرف ته دَدې تحرير د نسبت نفی نه ده بلکه اثبات مقصود دې. هم دغه شان حضرت ابراهيم عليه السلام هم د بتانو ماتولو نسبت هم دَخپل ذات دَپاره ثابت وئيلې دې چه د تپوس څه ضرورت دې کله چه دَدغه غټ نه د دې عمل دَ صادر کيدل نه کيدونکې خبره ده نو بيازما نه علاوه دا کار بل دَ چا کيدې شی [۱]

③ **دريمه توجيه:** امام کسائی رحمه الله دا توجيه کوی چه (بل فعله) باندې به ئی وقف کولو اودا به ئی مستقل جمله ګڼړله او (كبيرهم هذا) به ئی په (بل فعله) باندې د وقف کولو نه پس لوستلو په دې صورت کښې (كبيرهم هذا) به جمله مستانفه شی اوتقديری عبارت به داسې شی (فعله من فعله، وكبيرهم هذا) يعنی دا کار چه چاکړې دې نو کړې دې اودَدې بتانو مشر دادې. حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائيل چه دا توجيه دَتکلف نه خالی نه ده [۲]

**قوله:** مَنْ هَذِهِ؟ قَالَ: أُخْتِي.

**دريم کذب:** يوه ورځ حضرت ابراهيم عليه السلام اوبی بی ساره (دواړه په سفر کښې وو) چه د يو ظالم بادشاه په خواکې تيريدل يعنی دَهغه ملك ته اورسيدل بادشاه ته اطلاع ورکړې شوه چه دلته يو سړې راغلې دې يو روايت کښې (هذا رجل) الفاظ دی يعنی دا سړې دې ده سره يوه ښائسته ښځه ده بادشاه د ابراهيم عليه السلام د (راغوښتلو دَپاره) پيغام اوليګلو اودَهغه نه ئی تپوس اوکړو دا ښځه څوك ده؟

**قوله:** إِذْ أَتَى عَلَى جَبَّارٍ مِنَ الْجَبَابِرَةِ

**دجابر بادشاه په نوم کښې اقوال:** ابن هشام رحمه الله اوسهيلی رحمه الله وائی د هغه نوم عمرو بن امرء القيس بن سبا وو اوداد مصر حاکم وو. [۳]

---

[۱] إرشادالساري: ۲۸۲/۷.
[۲] فتح الباري: ۴۸۲/۸.
[۳] فتح الباري: ۴۸۳/۸، إرشادالساري: ۲۸۳/۷.

② ابن قتيبه رحمه الله وائي چه دَ هغه نوم صادق وو اودَ اردن بادشاه وو. [۱]

③ علامه ابن اثير رحمه الله فرمائي دَهغه نوم سنان بن علوان بن عبيد بن عريج بن عملاق بن لاود بن سام بن نوح وو. [۲]

**قوله:** إِنَّ هَاهُنَا رَجُلًا مَعَهُ امْرَأَةٌ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ:

**د ساره بي بي تعارف کښې دوه اقوال:** ① په يو روايت کښې دي چه ساره دَملك حران بادشاه هاران لور وه. کله چه ابراهيم عليه السلام دَ خپل قوم دَ زمکې نه هجرت کولوسره حران ته تشريف يوړو نوساره سره ئې نکاح اوکړه. [۳]

② ابن قتيبه رحمه الله وئيلي چه ساره په اصل کښې دَ حضرت ابراهيم عليه السلام خورزه وه اودا څه ناجائز خبره نه وه ځکه چه دَهغه وخت په شريعت کښې خورزې سره نکاح کول جائز وو. [۴] ليکن ښکاره خبره ده چه دَدې قول مستبعد اوخلاف واقع کيدو کښې څه شك دې. بعض حضراتو وئيلي دادَ هغوي دَ تره لور وه. [۵]

**قوله:** قَالَ: أُخْتِي:

**ساره بي بي ته خور وئيل:** ابراهيم عليه السلام جواب ورکړو چه دا زما خور ده بيا حضرت ابراهيم عليه السلام حضرت ساره له راغلو وئي وئيل اې ساره دې وخت کښې په مخ دَ زمکې زما نه اوستانه بل هيڅوك مومن نشته دې. اودې ظالم بادشاه زمانه تپوس کړې دې چه دا ښځه څوك ده نوما ده ته اوخودل چه دا زما خور ده لهذا ته ما دروغژن نه کړې يعني هم دغه ورته وايه چه ته زما خور ئې.

**په رواياتو کښې تعارض:** په دې روايت کښې تصريح ده چه بادشاه اول دَ ابراهيم عليه السلام نه دَ ساره باره کښې تپوس اوکړو نوهغه جواب ورکړو چه ساره زما خور ده او بيا حضرت ابراهيم عليه السلام ساره له راغلو ورته ئې وصيت اوکړو چه ته زما تصديق اوکړه

په يو بل روايت کښې بادشاه سره دَملاقات ذکر روسته دې او ساره ته وصيت کولو مخکښې وارد شوى دى. چنانچه دَهشام بن حسان رحمه الله روايت دې چه حضرت ابراهيم عليه السلام ساره رضي الله عنها ته اوفرمائيل (إن هذا الجبار إن يعلم أنك امرأتي، يغلبني عليك، فإن سألك فأخبريه أنك أختي، وإنك أختي في الإسلام فلما دخل أرضه رآها بعض أهل الجبار، فأتاه فقال: لقد قدم أرضك امرءة لا

---

[۱] فتح الباري: ۴۸۳/۸ إرشادالساري: ۲۸۳/۷.

[۲] الكامل في التاريخ: ۷۷/۱ إرشادالساري: ۲۸۳/۷.

[۳] فتح الباري: ۸/۴۸۳

[۴] المرجع السابق.

[۵] المرجع السابق.

ينبغي أن تكون إلا لك، فأرسل إليها)[1]

يعنى كه دغه جابر بادشاه ته معلومه شوه چه ته زما ښځه يئى نوهغه به تا په خپله قبضه كښې واخلى په دې وجه كه هغه تانه تپوس اوكړى نوورته وايه زه دَابراهيم خور يم ښكاره خبره ده چه ته زما دينى خور يئى، چنانچه ابراهيم عليه السلام دَ بادشاه په مملكت كښې داخل شو نودَ هغه پيژندونكو ملګرو ساره اوليدله او راغله بادشاه ته ئى اووئيل چه ستا په مملكت كښې يوه داسې ښځه راغلې ده چه صرف هم ستا دَ شان لائقه ده لهذا ته هغه راوغواړه.

**په رواياتو كښې تطبيق**: په دواړو روايتونو كښې به تطبيق داسې اوشى چه ابراهيم عليه السلام ته به احساس شوې وى چه دَبادشاه دَطرف نه به دَ ساره مطالبه كيږى په دې وجه ئى دَ اول نه ساره ته وصيت اوكړو. بيا چه كله دَهغه دَ ګمان مطابق دَمطالبې واقعه پيښه شوه نودَهغه وصيت اعاده ئى اوكړه.[2]

**قوله**: لَيْسَ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ مُؤْمِنٌ غَيْرِي وَغَيْرُكِ.

**اشكال**: حضرت لوط عليه السلام خو هم ايمان راوړلې وو بلكه هغه په خپله نبى هم وو نوبيا ابراهيم عليه السلام ولې اوفرمائيل چه زما اوستا نه بغير په دې زمكه باندې څوك مومن نشته؟

**د اشكال جواب**: حضرت لوط عليه السلام دَحضرت ابراهيم عليه السلام سره په دې سفر كښې نه وو هغه په خپل كلى كښې وو. او ابراهيم عليه السلام دَ دغه مخصص علاقې په اعتبارسره دا خبره كړې وه چه دلته زما اوستا نه علاوه بل څوك مومن نشته.[3]

**اشكال**: ساره بى بى خود ابراهيم عليه السلام رفيق حيات وه خور ئې نه وه نو بيا ولې ابراهيم عليه السلام دا دروغ اوئيل؟

**د كذب په نسبت كښې درې توجيهات**: ① دَبادشاه عادت وو چه هغه به صرف دَ خلقو ښځې غصب كولې خوئيندو سره به ئى غرض نه لرلو په دې وجه ابراهيم عليه السلام دَ توريه نه كار اخستو سره هغه خور ظاهره كړه ښكاره خبره ده چه دا كذب نه ووځكه چه ساره دَهغه دينى خور وه.[4]

② كيدې شى دَحضرت ابراهيم عليه السلام مقصد (أهون البليتين) اختيارولو سره (أضر البليتين) دفع كول وو چه دَ ساره دَ غصب كولو اراده خو بهرحال بادشاه كړې وه لهذا كه چرې هغه ته

---

[1] صحيح مسلم: ۲۶۶/۲باب من فضائل إبراهيم الخليل رقم: ۲۳۷۱ والسنن الكبرى للبيهقي: ۵۹۹/۷كتاب الخلع والطلاق باب الرجل يقول لامرأته: يا أختي يريد الأخوة في الإسلام رقم: ۱۵۱۴۴.

[2] فتح الباري.۴۸۴/۸.

[3] فتح الباري: ۸، ۴۸۴.

[4] فتح الباري:۴۸۳/۸عمدة القاري: ۳۴۴/۱۵.

معلومه شوه چه ساره دَ ده ښځه ده نوبادشاه به په غيرت کښې راتلوسره يا خو ما قتل کړي يابه مې قيد کړي. دَدې په خلاف که بادشاه ته اووئيلې شي چه ابراهيم دَ هغې رور دې نودَغيرت دا غلبه به په ځائې دَ بادشاه په رور (ابراهيم عليه السلام) باندې شي. په دې صورت کښې به بادشاه ته دَ رور پرواه نه وي اودَ بادشاه دَ طرف نه به دَ نقصان انديښنه پاتې نه شي. [۱]

③ دَدې جابر بادشاه په دين کښې دَ خور او رور نکاح نه صرف جائز وه بلکه دَ نورو په مقابله کښې دَ خور سره دَ رور دَ نکاح حق زيات هم وو. چنانچه عبدبن حميد رحمه الله په خپل تفسيرکښې دَ وهب بن منبه روايت نقل کړې دې: (من دين الملك أن الأخ أحق بأن تكون أخته زوجته من غيره، فلذلك قال هي أختي اعتمادا على ما يعتقده الجبار فلا ينازعه فيها) نو حضرت ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل چه دا زما خور ده اومقصد ئې دا وو چه کله بادشاه ته معلومه شي چه ساره دَهغه خور ده نوهغه به دَ خپلې عقيدې دَ وجې نه به دَ ساره په معامله کښې دَ انختلو کوشش نه کوي اومونږ به په مصيبتا کښې دَ راګيريدو نه بچ شو. [۲]

**په ذريعه توجيه اعتراض:** په دې باندې اشکال کيږي چه که چرې دا روايت ثابت وي نوبيا ابراهيم عليه السلام (هي أختي) باندې دَ اکتفاء کولو په ځائې به ئې تصريح کوله چه (أختي وأنا زوجها) يعنې دا زما خور ده او زه دَدې خاوند يم.

**داعتراض جواب:** شراح حديث دَدې دا جواب ورکړې دې چه بادشاه دَ واده په ځائې دَ غصب نيت لرلو. دا تصريح به په هغه صورت کښې فائده منده وه چه کله دَ بادشاه اراده دَ واده وه. [۳]

**د توريه اوتعريض تعريف:** توريه يا تعريض داسې ذوه معنَى کلام ته وائې چه دَ يو ټيك او صحيح مقصد دَپاره اووئيلې شي. دَ متکلم مرادخو صحيح وي ليکن مخاطب په هغې باندې پوهه نه شي. دَ علم بديع او معانی په اصطلاح کښې دې اسلوب کلام ته تعريض او توريه وغيره سره يادولې شي. خو که مخاطب په دماغو باندې زور واچوي اودَ غور او فکر نه کار واخلي نوهغه دَمتکلم مراد باندې پوهيدې شي. [۴]

---

[۱] فتح الباري: ۴۸۳/۸ إرشادالساري: ۳۸۳/۷ قال ابن حجر رحمة الله عليه: اختلف في السبب الذى حمل إبراهيم على هذه الوصية مع أن ذلک يريد اغتصابها على نفسها أختا كانت أو زوجة. فقيل: كان من دين ذلک الملک أن لا يتعرض إلا لذوات الأزواج. كذا قيل. ويحتاج إلى تتمة. وهو أن إبراهيم اراد دفع أعظم الضررين بارتكاب أخفهما. وذلک أنّ اغتصاب الملک واقع لا محالة. لكن إن علم أن لها زوجا في الحياة حملته الغيرة على قتله وإعدامه أو حبسه وإضراره. بخلاف ما إذا علم أن لها أختا. فإن الغيرة حينئذ تكون من قبل الأخ خاصة. لا من قبل الملک فلا يبالي به.

[۲] فتح الباري: ۴۸۴/۸.

[۳] فتح الباري: ۴۸۴/۸.

[۴] فتح الباري: ۴۸۲/۸.

**په مواقع ثلاثه کښې توریه اوتعریض**: ابراهیم علیه السلام په دریوارو مواقعو کښې توریه اوتعریض کړې دې. په دې کښې په یوه موقع باندې هم دَهغه مخې ته ذاتی غرض او دنیاوی مفاد نه وو صرف دَ حمایت او دین دَ نصرت دَپاره په دریوارو مواقع باندې دَ توریه او تعریض لار خپله کړې ده. چنانچه دَ شفاعت په حدیث کښې تصریح ده چه رسول الله ﷺ فرمائیلی «مامنها کذبة إلا ماحل بها عن دین الله»[1] یعنی دَ ابراهیم علیه السلام دریواره کذبات نه هر یو صرف دَ الله تعالی دَدین دَ مدافعت او حمایت دَپاره اووئیلې شو.

**اشکال**: هرکله دَدریوارو نه په یو باندې هم حقیقتاً دَ دروغو اطلاق نه کیږی نو بیا په حدیث کښې دې ته کذبات سره تعبیر کولو سره ولې بیان کړې شو.

**داشکال جوابونه**: ① حافظ ابن حجر رحمه الله دَدې دا جواب ورکړې دې چونکه توریه ظاهراً او صورتاً کذب معلومیږی په دې وجه دَ ظاهر اعتبار کولو سره حدیث کښې په دې باندې دَ کذب اطلاق کړې شوې دې.[2]

② که دریوارو کلامونو ته دروغ هم اووئیلې شی نو دَ ظالم ظلم دفع کولو دَپاره دروغ وئیل جائز بلکه بعض صورتونو کښې واجب کیږی. اوحقیقت دادې چه حضور پاك دَدې کلام په ذریعه باندې په دې تنبیه کړې ده چه دا دروغ په هغه دروغو کښې شامل نه دی کوم چه کذب مذموم دې.[3]

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَ فقهاؤ په دې خبره باندې اتفاق دې چه بعض مقاماتو کښې دروغ وئیل واجب کیږی. دَ مثال په توګه که یو ظالم یو سړی سره موجود ودیعت غصب کول غواړی او مطالبه اوکړی نو صاحب ودیعت باندې واجب دی چه دروغ اووائی. داسې اووائی چه ماته معلومه نه ده چه هغه څیز چرته کیخودې شوې.[4]

**قوله**: ذَهَبَ يَتَنَاوَلُهَا بِيَدِهِ فَأُخِذَ:

**د ساره بی بی د ظالم بادشاه څخه حفاظت**: بادشاه ساره (په زور) راؤغوښتله. کله چه هغه بادشاه ته اورسیدله نو هغه په دې باندې لاس اچول غوښتل نوناڅاپی راګیرکړې شو (اودَهغه لاس شل شو) وئی وئیل اې ښځې ته زما دَپاره دَ الله تعالی نه دعااوکړه (چه زما لاس جوړشی نو) زه به تا نه تنګوم. ساره دعااوکړه نودَهغه لاس خلاص کړې شو (یعنی ښه شو) لیکن هغه بیا (بده اراده سره) لاس وراندې کړو نوبیا هم هغه آفت په نوره زیاته

---

[1] رواه الترمذی فی جامعه فی باب ومن سورة بنی إسرائیل رقم:۳۱۴۸ شرح النووی للإمام مسلم: ۱۲۴/۱۵ المطبعة المصریة بالأزهر.
[2] فتح الباری:۴۸۲/۸ إرشادالساری: ۲۸۱/۷.
[3] شرح مسلم للإمام النووی: ۱۲۴/۱۵.
[4] عمدة القاری: ۳۴۳/۱۵.

سختئی سره دَ هغه لاس اونیولو (یعنی لاس ئی شل شو یا دَدې نه هم سخته سزا ورکړې شوه) بیائی اووئیل اې ښځې ته ماته دعا اوکړه زه به تا نه تنګوم. ساره دعا اوکړه نودَ هغه لاس بیا جوړ شو. بیا هغه دَ خپلو خدمتګارانو نه یوه ډله راوْغوښتله او ورته ئی اووئیل (إنكم لم تأتوني بإنسان إنما أتيتموني بشيطان) یعنی تاسو ماله انسان نه بلکه یو پیرې راوړلې راغلې یئی.

**قوله: إِنَّمَا أَتَيْتَنِي بِشَيْطَانٍ،**

**ساره ته د شیطانة وئیلو وجه:** په نورو روایاتو کښې ثابتیږی چه جابر بادشاه کله هم بده اراده اوکړه هرځل باندې هغه ته مختلف سزا ورکړې شوه. کله به دَ هغه مرئی خفه کولې شوه نو دَ سختئی دَ وجې نه اودَتکلیف نه به ئی په زمکه ګیټئی مړلې او کله به په زمکه باندې راخلاصولې شو. [۱] داقسم خارق الامر واقعات دَدې زمانې خلق متمرد او سرکش جنات طرف ته منسوب کوی په دې وجه دَ ساره په نسبت هم هغه اووئیل چه دا چرته سرکشه جن دې. دَ شیطان نه دلته جن مراد دې. [۲]

**قوله: فَأَخْدَمَهَا هَاجَرَ:**

**ساره بی بی ته د بی بی هاجره هبه کول:** جابر بادشاه هاجره ساره ته حواله کړه چه دَدې خدمت کوه. ساره ابراهیم علیه السلام له راغله ابراهیم علیه السلام په هغه وخت ولاړ وو مونځ ئی کولو. ابراهیم علیه السلام (هم په مانځه کښې) دَلاس په اشاره کولو سره تپوس اوکړو څه خبر دې؟. حضرت ساره رضی الله عنها دَحضرت اسحاق علیه السلام مور بی بی ده. [۳]

**هاجره بی بی اود مصر دبادشاه لور کیدل:** مولانا حفظ الرحمن سیوهاروی دَحضرت ابراهیم علیه السلام حضرت ساره رضی الله عنها او بادشاه (فرعون مصر) دَدې واقعې سره متعلق وارد شوی روایاتو نقل کولو سره لیکلی دی چه دَدې ټولو روایاتونه دومره په یقینی توګه سره معلومیږی چه حضرت ابراهیم علیه السلام خپلې بی بی حضرت ساره رضی الله عنها او دَخپل رور ځوئی حضرت لوط علیه السلام سره مصر ته تشریف یوړو. دا هغه زمانه وه چه کله دَ مصر حکومت دَ یوداسې خاندان په لاس کښې وو چه سامی قوم سره ئی تعلق لرلو اودغه شان حضرت ابراهیم علیه السلام سره په نسبی سلسله کښې تړلې شوې وو. دلته په رسیدوسره دَ حضرت ابراهیم علیه السلام او فرعون مصر په مینځ کښې ضرور داسې واقعه پیښه شوه په کوم سره چه دَهغه یقین اوشو چه حضرت ابراهیم علیه السلام اودَهغه خاندان دَالله تعالی مقبول او برګزیده خاندان دې. دَدې په کتلو سره هغه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام او حضرت ساره رضی الله عنها ډیر اعزاز

---

[۱] فتح الباری: ۸/۴۸۴.

[۲] فتح الباری: ۸/۴۸۵ عمدة القاری: ۱۵/۳۴۴.

[۳] اللمع الصبیح بشرح الجامع الصحیح: ۹/۴۴۵ الکنزالمتواری: ۱۳/۲۸۴.

او اکرام او کړو او هغوی ته ئې هرقسم مال او اسباب ورکړو او صرف په دې باندې صبر نه شو بلکه خپله پخوانئې خانداني رشته د مضبوط کولو او مستحکم کولو د پاره خپله لور هاجره هم د هغه په زوجیت کښې ورکړه چه د هغه زمانې د رسم او رواج په اعتبار سره د رومیې او مشرې ښځې خدمتګاره اوګرځي.(١)

**قوله: فَأَتَتْهُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ مَهْيَمْ؟:**

**دمهیم لفظ تحقیق:** په اکثرو نسخو کښې دا لفظ هم دغه شان ضبط شوې دې. بعض نسخو کښې مهيا او مهين ضبط شوې دې. په دریواړو صورتونو کښې دا حرف استفهام دې او هم په یوه معنی کښې دې یعنی (ماحالك؟ وماشأنك، وماالخبر؟)(٢) وئیلی شي چه د ټولو نه اول دا لفظ حضرت ابراهیم عليه السلام استعمال کړې.(٣)

**قوله: تِلْكَ أُمُّكُمْ يَا بَنِي مَاءِ السَّمَاءِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**عربوته بنوماء السماء وئیلو بیان:** (قال أبوهريرة: تِلْكَ أُمُّكُمْ يَا بَنِي مَاءِ السَّمَاءِ......) حضرت ابوهریره رضي الله عنه مذکوره روایت بیانولو سره په آخره کښې د هاجره رضي الله عنها طرف ته اشاره کولو سره اوفرمائیل د آسمان د اوبو والو هم دغه (هاجره) ستاسو مور وه.

**عربوته ماء السماء وئیلو کښې درې توجیهات:**

① د حضرت ابوهریره رضي الله عنه مخاطب عرب وو. د عربو د زمکې زیاته حصه په ځنګلاتو او بیابانونو باندې مشتمل وه او د هغوی وخت تیریدل به د باران په اوبو سره وو په دې وجه ئې هغوی ته بنی ماء السماء اووئیل.(٤)

② یوقول دادې چه ماء السماء نه د زمزم اوبه مراد دی. الله تعالی د حضرت هاجره رضي الله عنها د پاره د زمکې نه د زمزم چینه جاري کړه او په دې سره ئې د حضرت اسماعیل عليه السلام تربیت اوپالنه اوکړه. اکثر عرب د حضرت اسماعیل عليه السلام د نسل نه دی په دې مناسبت سره هغوی ته بنو ماء السماء اووئیلې شو.(٥)

③ یو احتمال دا هم دې چه د ماء السماء نه مراد عامر وی چه د اوس او خزرج نیکه وو او عامر ته به ماء السماء په دې وجه وئیلې کیدو چه کله به هم قحط راتلو نو هغه به په خپل مال سره د خلقو امداد کولو یعنی د هغه مال به د باران په شان کیدلو په دې وجه

---

(١) قصص القرآن: ١/١٦٢ دارالإشاعة.
(٢) عمدة القارى: ١٥/٣٤٤ فتح البارى: ٨/٤٨٥.
(٣) المصدر السابق.
(٤) شرح النووى: ١٥/١٢٥ عمدة القارى: ١٥/٣٤٤.
(٥) أعلام الحديث للخطابى: ٣/١٥٣٨ عمدة القارى: ١٥/٣٤٥.

عامر ته ماء السماء وئيلې کيدو.(۱) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا قول هم په دې وجه باندې دې چه عرب ټول په ټول دَ حضرت اسماعيل عليه السلام اولاد نه دی.(۲)

**[۵۷۰۵] د درې پيغمبرانو د عظمت بيان**

۵۷۰۵-(۳)[۸] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «نَحْنُ أَحَقُّ بِالشَّكِّ مِنْ إِبْرَاهِيمَ إِذْ قَالَ: ﴿رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتَى﴾ [البقرة: ۲۶۰] [۳] وَيَرْحَمُ اللَّهُ لُوطًا، لَقَدْ كَانَ يَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ، [۴] وَلَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ طُولَ مَا لَبِثَ يُوسُفُ لَأَجَبْتُ الدَّاعِيَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] مونږ د حضرت ابراهيم نه د زيات شك كولو لائق يو هركله چې هغوئ ويلي وه: رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتَى اې پروردګاره! ماته وښايي چې ته مړی څرنګه ژوندی کوي؟ [۳] او الله تعالی دې په حضرت لوط عليه السلام رحم وكړي چې د ركن شديد پناه نيول يې غوښتل [۴] او كه زه قيدخانه كې دومره اوږدې مودې پورې وی، څومره موده چې حضرت يوسف عليه السلام وو نو مابه يقينًا د بلونكي دعوت قبول كړی وای. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَأْوِي: پناه ئې اخستله. ② رُكْنٍ شَدِيدٍ: أَيْ عَشِيرَةٍ قَوِيَّةٍ: مضبوط خاندان. ③ لَبِثْتُ: وخت مې تير كړې وې، ④ السِّجْنِ: جهيل، قيدخانه، ⑤ لَأَجَبْتُ: خامخا به مې قبول كړې وې، ⑥ الدَّاعِيَ: دعوت وركونكې، رابلونكې.

**تسهيلات:**

**قوله:** «نَحْنُ أَحَقُّ بِالشَّكِّ مِنْ إِبْرَاهِيمَ:

**دحديث پس منظر:** دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلی چه مونږ دَ ابراهيم عليه السلام په مقابله كښې دَ ډير شك مستحق يو. كوم وخت چه ابراهيم عليه السلام عرض كړې وو ﴿رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتَى﴾. دَدې حديث پس منظر دادې چه كله دَ سورت بقره آيت ﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتَى﴾ نازل شو نو بعض صحابه كرامو اووئيل (شك إبراهيم ولم يشك نبينا) نو رسول الله صلى الله عليه وسلم جواب وركړو (نحن أحق بالشك من إبراهيم).

**د احق بالشک په مفهوم كښې درې اقوال:** ① امام شافعي رحمه الله فرمائی چه دې جملې سره دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم منشاء دا وه چه دَ ابراهيم عليه السلام په زړه كښې شك او تردد پيدا كيدل محال وو ځكه چه دَ انبياء كرام په زړونو كښې كله هم شك او شبه نه پيدا كيږي. او فرض كړه كه

---

(۱) إرشادالساري: ۲۸۵/۷ فتح الباري: ۴۸۶/۸ عمدة القاري: ۲۴۵/۱۵.

(۲) فتح الباري: ۴۸۶/۸.

(۳) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب قوله عز وجل: {ونبئهم عن ضيف إبراهيم إذ دخلوا عليه} [الحجر: ۵۲](رقم-۳۳۷۲) ومسلم في كتاب الفضائل/باب من فضائل إبراهيم الخليل صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۵۲ - (۱۵۱) وابن ماجه في كتاب الفتن/باب الصبر على البلاء (رقم-۴۰۲۶) واحمد في المسند: ۳۲۶/۲

تسليم کړې شی چه دَ انبياء په زړونو کښې شکوك پيدا کيدې شی نودَ ابراهيم عليه السلام نه زيات زه مستحق ووم چه ماته شك پيدا شوې وې. هرکله چه ماته دَ الله تعالی په قدرت علی احياء الموتی باندې شك اوتردد کله هم نه دې پيدا شوې نو ابراهيم عليه السلام ته خو په طريقه اولی شك نه دې شوې.[1]

④ علامه کرمانی رحمه الله فرمائيلی دی چه رسول الله ﷺ دا جمله تواضعًا فرمائيلې ده.[2]

⑤ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَ بعض اهل لغت په نيز أفعل وزن نفی المعنی عن الشيئين دَپاره راځی. دَ قرآن مجيد آيت مبارك دې: ﴿أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ﴾ دَدې مطلب دادې چه دواړه فريقين دَ خيرنه محروم دی. دغه شان که څوك اووائی (الشيطان خير من فلان) نودَدې مطلب دا وی چه په دواړو کښې خير نشته دې. نودَحديث دَ مذکوره جملې مطلب دادې چه مونږ ټولو انبياء کرامو ته کله هم شك نه دې پيدا شوې.[3]

ليکن علامه قسطلانی رحمه الله په دې باندې رد کولو سره فرمائی چه دا توجيه دَ محققينو په نيز غيرمعروف ده. والله اعلم.[4]

**قوله:** وَيَرْحَمُ اللّٰهُ لُوطًا، لَقَدْ كَانَ يَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ،

**د مذکوره جملې مفهوم:** په دې جمله کښې هم دَ حضورپاك په حضرت لوط عليه السلام باندې اعتراض کول مقصودنه دی بلکه دَهغوی دَ تنګ والی او پريشانتيٰ دَ يوکيفيت بيان دې چه قوم لوط هغوی دومره تنګ کړل چه هغه په دې وينا کولو باندې مجبوره شو چه افسوس چرته يوه مضبوطه قلعه وه يا ماسره څه ښکاره طاقت وې چه دَدې قوم مقابله مې کړې وه. په دې مجبورتيٰ کښې دَ حضرت لوط عليه السلام خيال دَمادی طاقت طرف ته لاړو ګنی دَ يونبی دَپاره دَ الله تعالی ذات دَ ټولو نه زيات مضبوط اومحفوظ قلعه ده دې نه بغيربل څه مضبوطه قلعه کيدې شی؟

**قوله:** وَلَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ طُولَ مَا لَبِثَ يُوسُفُ لَأَجَبْتُ الدَّاعِيَ:

**د يوسف عليه السلام عظمت:** امام محی السنة رحمه الله فرمائی چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم حضرت يوسف دَ صبر اوتحمل غوندې عظيم اوصاف سره متصف کړې دې دکوم وجه چه داده چه کله يو ګناهګار سړی ته دَ قيد اوبند تکليفونه برداشت کولو سره دَ آزادئ پروانه ملاويږی نوهغه کوشش کوی چه زر نه زر هغه دَ دغه قيدنه بهراوځی نو يو بې ګناه سړې به يقينًا دَ دغه ړومبی سړی په نسبت ډير زيات دَدې خبرې کوشش کوی چه

---

[1] ارشادالساری: ۳۰۶/۷.
[2] شرح الکرمانی: ۴۳/۱۷.
[3] فتح الباری: ۵۰۹/۸.
[4] ارشادالساری: ۳۰۶/۷.

هغه دَ دې قيد نه بهرکړې شي. ليکن حضرت يوسف عليه السلام سره دَ بې گناه کيدو هم دَ آزادئ پروانه ملاويدونه پس تادي اونه کړه بلکه پيغام رسونکي ته ئې اوئيل لاړشه اول دَ بادشاه نه دَهغه ښځو دَحال پوښتنه اوکړه نو راشه چا چه خپل لاسونه پرې کړې وو. دَحضرت يوسف ه مقصد په دې خبره باندې حجت قائمول وو چه بادشاه هغه دَ يوې اوږدې مودې پورې بې ځايه په قيدکښې ساتلوسره دَ ډير ظلم او بې انصافئ سلوك کړې دې.

**د نبي عليه السلام د قول توجيه:** بل دَ نبی کريم ﷺ دَ حضرت يوسف عليه السلام په شان کښې دَتعريف جملې ارشاد کول على سبيل التواضع وو داسې هيڅ کله نه وه چه که حضورپاك وې نو دَ تادئ مظاهره به ئې کوله ځکه چه تواضع يو داسې وصف نه دې چه يو عظيم حقير يا يو رفيع وضيع يا دَيو صاحب حق، حق باطل کوي بلکه تواضع يو داسې محمود صفت دې دَ کوم په وجه چه انسان ته يو اضافي فضيلت شرافت او منزلت حاصليږي.([1])

**[۵۷۰٦] حضرت موسىٰ عليه السلام او ايذاء بني اسرائيل**

۵۷۰٦-([2]) [۹] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ مُوسَى كَانَ رَجُلًا حَيِيًّا سِتِّيرًا، ③ لَا يُرَى مِنْ جِلْدِهِ شَيْءٌ اسْتِحْيَاءً، ④ فَآذَاهُ مَنْ آذَاهُ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ، ⑤ فَقَالُوا: مَا تَسَتَّرَ هَذَا التَّسَتُّرَ إِلَّا مِنْ عَيْبٍ بِجِلْدِهِ: ⑥ إِمَّا بَرَصٌ أَوْ أُدْرَةٌ، ⑦ وَإِنَّ اللهَ أَرَادَ أَنْ يُبَرِّئَهُ، ⑧ فَخَلَا يَوْمًا وَحْدَهُ يَغْتَسِلُ، فَوَضَعَ ثَوْبَهُ عَلَى حَجَرٍ،

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② موسىٰ عليه السلام يو ډير شرم کونکی او د سختي پردي اهتول کونکی وو. د شرم او حياء باندې دومره غلبه وه چې پوره بدن به يي هروخت پټ ساتی ③ او د هغه د جسم د څرمن هيڅ حصه به هم نه ښکاره کيدله ④ يو وار د بني اسرائيلو څه خلقو هغه ته تکليف رسول وغوښتل ⑤ نو هغوئ مشهوره کړه چې موسىٰ عليه السلام خپل جسم دومره احتياط سره ځکه پټ ساتي چې د هغه جسم کې څه عيب دی ⑥ يا خوورته برص برگي مرض دی يائي خصيتين پړسيدلي دي هرکله چې داخبره ډيره خوره شوه ⑦ نو الله تعالىٰ اراده وفرمايله چې کوم عيب موسىٰ باندې لگولی شي هغه نه هغه محفوظ او مامون وساتي او د هغه بي عيبي ښکاره او ثابته کړي ⑧ نو يوه ورځ چې موسىٰ يو پټ ځاي ته د لمبيدو د پاره لاړشي او خپلي کپړي خکته کولو سره په يو کاڼي يي کيښوې

**حل اللغات:-** ① حَيِيًّا: د مبالغې صيغه ده، أَيْ مُسْتَحْيِيًا: حياناک، ډيره حيا کونکې، ② سِتِّيرًا: أَيْ: مَسْتُورٌ:

---

[1]) إرشادالساري: ۷/۳۰۷-۳۰۶.

[2]) اخرجه البخاري في كتاب الغسل /باب من اغتسل عريانًا وحده في الخلوة، ومن تستر فالتستر أفضل (رقم-۲۷۸) ومسلم في كتاب الفضائل/باب من فضائل موسى صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۵٦ - (۳۳۹) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الأحزاب (رقم-۳۲۲۱) واحمد في المسند:۲/۵۱٤

خان پټ ساتونکې، ③بَرَصٌ: برګې مرض، ④أُدْرَةٌ: اى نَفْخَةٌ بِالْخُصْيَةِ: چه هګۍ ئې پړسيدلې وى.
⑤خَلَا: أَيْ: انْفَرَدَ: خانله شو يعنى يو اخې شو دخلقو نه،

[۱] فَفَرَّ الْحَجَرُ بِثَوْبِهِ [۲] فَجَمَحَ مُوسَى فِي إِثْرِهِ يَقُولُ: ثَوْبِي يَا حَجَرُ! ثَوْبِي يَا حَجَرُ! [۳] حَتَّى انْتَهَى إِلَى مَلَإٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ، [۴] فَرَأَوْهُ عُرْيَانًا أَحْسَنَ مَا خَلَقَ اللهُ [۵] وَقَالُوا: وَاللهِ مَا بِمُوسَى مِنْ بَأْسٍ، وَأَخَذَ ثَوْبَهُ، [۶] وَطَفِقَ بِالْحَجَرِ ضَرْبًا، [۷] فَوَاللهِ إِنَّ بِالْحَجَرِ لَنَدَبًا مِنْ أَثَرِ ضَرْبِهِ "ثَلَاثًا أَوْ أَرْبَعًا أَوْ خَمْسًا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] نو هغه کاڼي د هغه کپړه سره وتښتيدی [۲] موسٰی دا واقعه ليدو سره د ډيري حيرانئ او پريشانئ په عالم کې هغه کاڼي پسي دي ويلو سره وزغستل چې اې کاڼړيه! خما کپړي راکړه اې کاڼړيه! خما کپړي راکړه [۳] ددي پورې چې مخکې مخکې هغه کاڼي او ورپسي ورپسي حضرت موسٰی عليه السلام زغستل چې د بني اسرائيلو يو هجوم ته ورسيدی [۴] هجوم ګڼي چې د حضرت موسٰی عليه السلام بربنډ جسم اوليدلو نو هغه يې د الله تعالیٰ په مخلوق کې يو بهترين او د بي عيبه جسم انسان اوليدلو [۵] بيا هغوئ په يو اواز اوويل قسم په الله د موسٰی بدن د هرعيب او نقصان نه پاك دی [۶] او موسی عليه السلام د کاڼړي نه جامي واخستلې او موسٰی عليه السلام کاڼي په همسا سره وهل شروع کړل [۷] قسم په الله د موسٰی د وهلو په وجه په هغه کاڼي باندې نښې شوي وي دري نښي يا څلورنښي يا پنځه نښي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-**⑥فَرَّ: اوتختيدو، ⑦فَجَمَحَ: أَيْ: ذَهَبَ: د فتح يفتح نه په جلتئ سره تللو او تيزې منډې وهلو ته وائی يعنی کاڼړی پسې په جلتئ روان شو، ⑧إِثْرِهِ: أَيْ: فِي عَقِبِ الْحَجَرِ: په هغې کاڼړی پسې. ⑨مَلَأٌ: سرداران، غټان د قوم، ⑩طَفِقَ: أَيْ: شَرَعَ: شروع شو ،يعنی کاڼړې وهلو باندې شروع شو، ⑪لَنَدَبًا: أَيْ: أَثَرًا وَعَلَامَةً: اثر او نښه، تازه په تازه زخم ته وائی په دې کښې دمعجزه ظهور شوی دی.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ مُوسَى كَانَ رَجُلًا حَيِيًّا سِتِّيرًا:**

**په حيياً او ستيراً کښې مبالغه:**

سِتِّيرًا: په سين باندې زبر دې د "فقيراً" په وزن باندې دې ملاعلي قاری رحمه الله ليکلی دی چه ظاهر دادی دا لفظ د سين کسره او تاء مشدده سره دې دا په ساتر کښې مبالغه ده يعنی ډير زيات پردې والا وو. هم ددې پرده او حياء د وجې نه دهغه قوم بنی اسرائيل اوئيل دې مونږ سره بربنډ ځکه نه لامبی چه دده په بدن کښې څه قبيح عيب دې. بل طرف ته د الله تعالی عادت مبارکه دې چه انبياء کرام هغه کامل رجال پيدا کړی دی او دهربدنی قبيح عيب نه ئې هغوی پاك ساتلی دی.

**قوله: وَإِنَّ اللَّهَ أَرَادَ أَنْ يُبَرِّئَهُ:**

**دبیمارۍ څخه دموسی علیه السلام براءت:** په همزه باندې ضمه ده دال ساکن دی او په راء باندې زبر دی. په خصیتین کښې دَ پړسوب یوه بیماری وی کوم ته چه "أُدْرَةٌ" وائی. قوم هم دَدې الزام اولګولو نو الله تعالی حضرت موسیٰ علیه السلام دَدې عیب نه پاکول غوښتل نو دا واقعه پیښه شوه کومه چه په دې حدیث کښې ده.

**[۵۷۰۷] د حضرت ایوب علیه السلام یوه واقعه**

۵۷۰۷-()[۱۰] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «بَيْنَا أَيُّوبُ يَغْتَسِلُ عُرْيَانًا، [۳] فَخَرَّ عَلَيْهِ جَرَادٌ مِنْ ذَهَبٍ، [۴] فَجَعَلَ أَيُّوبُ يَحْثِي فِي ثَوْبِهِ، [۵] فَنَادَاهُ رَبُّهُ: يَا أَيُّوبُ أَلَمْ أَكُنْ أَغْنَيْتُكَ عَمَّا تَرَى؟ [۶] قَالَ: بَلَى وَعِزَّتِكَ، [۷] وَلَكِنْ لَا غِنَى عَنْ بَرَكَتِكَ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] حضرت ایوب چې د اوږدې او سخت ترینې ناجوړی آزمائش او امتحان کې سرخرویه شو او صحت او عافیت یې نصیب شو نو د بیمارئ څخه د روغیدو غسل یې وکړو او د هغه د بیمارئ څخه د روغیدو غسل په دوران کې هغه بربنډ لامبل [۳] چې الله جل جلاله د هغه په کور د سروزرو ملخانو ورول شروع کړل [۴] او هغه د سروزرو ملخان په هغه برسیره یعنی ښي اوچپ طرف ته غورځیدل حضرت ایوب هغه ملخان راټولولو سره خپلو کپړو کې ایښودل شروع کړل [۵] د سروزرو ملخانو سره د هغه دا مشغولیت لیدو سره د هغه پروردګار هغه مخاطب کولو سره ورته وفرمایل اې ایوب علیه السلام! کوم شی چې ته وینې آیا مونږ ته دې نه بې نیازه کړی نه یې [۶] حضرت ایوب علیه السلام عرض وکړو بیشکه ستا په عزت مې دې قسم وی تا زه ددې شي نه بې پروا کړی یم [۷] لیکن ستا د نعمت د کثرت او ستا د رحمت د فراخې نه هیڅ کله بې نیازې نشته. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① خَرَّ: أَيْ: فَسَقَطَ: راپریوتل، راوغورزیدل، ② جَرَادٌ: مُلخان، ③ يَحْثِي: أَيْ يَجْمَعُهُ: راجمع کول ئې، راټولول ئې.

**تسهیلات:**

**قوله: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " «بَيْنَا أَيُّوبُ يَغْتَسِلُ عُرْيَانًا:**

**په بربنډ لامبلو کې درې احتمالات:**

① هغوی به لنګ اچولې وو

② دَهغوی په بدن باندې څه کپړه نه وو اودغه شان په بربنډه باندې لامبل دَ حضرت موسیٰ علیه السلام او حضرت ایوب علیه السلام په زمانه کښې جائز وو.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الغسل /باب من اغتسل عریانًا وحده فی الخلوة، ومن تستر فالتستر أفضل (رقم-۲۷۹)

③ بربندئې لامبل لیکن چرته په یو پټ ځائی کښې نوددې په شرعی جوازکښې څه قباحت هم نشته دې.

**قوله: يَا أَيُّوبُ أَلَمْ أَكُنْ أَغْنَيْتُكَ عَمَّا تَرَى**

**دالله تعالی د خطاب انداز:** چه کله حضرت ایوب علیه السلام غسل اوکړو نو الله تعالی دَ هغه نه نبی اوګس طرف ته دَ سرو زرو ملخان راورول شروع کړه. چنانچه حضرت ایوب علیه السلام هغه راغونډولوسره په خپل لنګ یا کپړه کښې اچول نو الله تعالی وحی نازل کړه چه ما ته دَدې نه بې پرواه کړې. داخطاب دَ خفګان او عتاب په توګه نه وو بلکه دَ شفقت او محبت دَ اظهار په توګه وو. په دې باندې حضرت ایوب علیه السلام عرض اوکړو چه دَ الله تعالی قسم چه زه دَ ډیر مالداره کیدو باوجود هم ستا ورکړه اوستا دَنعمت دَ کثرت او ستادَ رحمت دَ زیاتوالی نه هیڅ کله بې پرواه کیږم نه او ستا دَ رحمت او برکت په لټون کښې یم.

**[۵۷۰۸]یو نبي د بل نبي په مقابله کې زیاتولوسره د پیش کولو ممانعت**

۵۷۰۸-()[۱] [۱]وَعَنْهُ، قَالَ: «اسْتَبَّ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَرَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ. [۲]فَقَالَ الْمُسْلِمُ: وَالَّذِي اصْطَفَى مُحَمَّدًا عَلَى الْعَالَمِينَ. [۳]فَقَالَ الْيَهُودِيُّ: وَالَّذِي اصْطَفَى مُوسَى عَلَى الْعَالَمِينَ. [۴]فَرَفَعَ الْمُسْلِمُ يَدَهُ عِنْدَ ذَلِكَ [۵]فَلَطَمَ وَجْهَ الْيَهُودِيِّ، [۶]فَذَهَبَ الْيَهُودِيُّ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۷]فَأَخْبَرَهُ بِمَا كَانَ مِنْ أَمْرِهِ وَأَمْرِ الْمُسْلِمِ، [۸]فَدَعَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْمُسْلِمَ فَسَأَلَهُ عَنْ ذَلِكَ،

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي په یوه موقع د یو مسلمان او یو یهودي په منځ کې بدکلامي وشوه [۲]مسلمان اوویل په هغه الله قسم چې هغه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یې د ټول جهان په په خلقوکي بنه ګرځولي دی [۳]د دې په جواب کې یهودي دا اوویل په هغه الله مې دې قسم وي چې حضرت موسٰی یې د ټول جهان په خلقوکي د ټولو نه بنه ګرځولی دی [۴]په دې هغه مسلمان په قهر کې راتلو سره په هغه یهودي یې لاس پورته کی [۵]او په مخ یې څپیړه ورکړه [۶]یهودي شکایت سره رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ورغلی [۷]او د حضور صلی الله علیه وسلم مخکې یې خپله او د مسلمان پوره واقعه بیان کړله [۸]رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه مسلمان طلب کی او هغه نه یې د صورتِ حال تحقیق وکی هغه د یهودي د بیان کرده واقعې تردید ونه کړی بلکه حضور صلی الله علیه وسلم ته یې هغه واقعي خبره بیان کړله

**حل اللغات:-** ① اسْتَبَّ: یوبل ته ئې کنځل کول، بد رد ئې وئیل. ② اصْطَفَى: غوره کړې ئې دې، ③ فَلَطَمَ: أَيْ ضَرَبَهُ بِكَفِّهِ: په سپیړه ئې اووهلو.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب أحادیث الأنبیاء/باب وفاة موسی وذکره بعد (رقم-۳۴۰۷) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب من فضائل موسی صلی الله علیه وسلم (رقم-۱۶۰ - (۲۳۷۳) وابوداود فی کتاب السنة/باب فی التخییر بین الأنبیاء علیهم الصلاة والسلام (رقم-۴۶۷۱)واحمد فی المسند:۲/۲۶۴

① فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُخَيِّرُونِي عَلَى مُوسَى، ② فَإِنَّ النَّاسَ يُصْعَقُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ③ فَأَصْعَقُ مَعَهُمْ فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُفِيقُ ④ فَإِذَا مُوسَى بَاطِشٌ بِجَانِبِ الْعَرْشِ، ⑤ فَلَا أَدْرِي كَانَ فِيمَنْ صَعِقَ فَأَفَاقَ قَبْلِي، ⑥ أَوْ كَانَ فِيمَنِ اسْتَثْنَى اللهُ؟»".

**ترجمه:** ① رسول الله ﷺ د فريقينو بيانات اوريدو سره وفرمايل ماته په موسى فضيلت مه راكوئ ② كله چې د قيامت په ورځ به شپيلئ پوكلو باندې ټول خلق بيهوشه شي ③ نو هغوئ سره به زه هم بيهوشه شم بيا د ټولو نه مخكې په هوش كې راتلونكى سړى به زه يم ④ ليكن زه چې په هوش كې راشم نو وبه وينم چې موسى عليه السلام دعرش پايه نيولې ولاړ دى ⑤ او زه نشم ويلې چې آيا هغه وخت به داوي چې موسى عليه السلام به بيهوشه كيدونكو په خلقوكي شامل وي او د هغه بيهوشي به زما نه مخكې ختمه شوي وي ⑥ يادابه وي چې الله تعالى هغه مستثنى كړځولى وي او هغه بيهوشه كيدو نكو په خلقوكي نه وي

**حل اللغات:**- ③ لَا تُخَيِّرُونِي: د تَخْيِيرِ نه دې، په معنى د اِصْطِفَاء سره، أي لَا تُفَضِّلُونِي: ما مه غوره كوئ يعنى فضيلت مه راكوئ ماته، ⑤ يُصْعَقُونَ: إِذَا أَصَابَهُ فَزَعٌ فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ: د ويرې په حالت كښې بې هوشى راتلو ته صَعِقَ وائى. ⑥ يُفِيقُ: د إِفَاقَةٌ نه دې، د بې هوشئ نه په هوش كښې راتلو ته وائى. ⑦ بَاطِشٌ: أي آخِذٌ: نيونكې به وى.

① وَفِي رِوَايَةٍ: "② «فَلَا أَدْرِي أَحُوسِبَ بِصَعْقَةِ يَوْمِ الطُّورِ، أَوْ بُعِثَ قَبْلِي؟ ③ وَلَا أَقُولُ أَنَّ أَحَدًا أَفْضَلَ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى».

**ترجمه:** ① په يوه روايت كې دا الفاظ دي ② او زه نشم ويلى چې آيا هغه وقته داوي چې طور باندې دموسى بيهوشي به د قيامت په ورځ د دې بيهوشي حساب كې شمير شى يا دابه وي چې بيهوشه كيدو نكو كې به هغه هم شامل وي خو هغه به ځما نه مخكې په هوش كښې راغلى وي ③ بيا حضور ﷺ وفرمايل او زه خو داهم نه وايم چې يوسړى د يونس ابن متى نه افضل دى.

**حل اللغات:**- ⑧ يُونُسَ بْنِ مَتَّى: هِيَ اسْمُ أُمِّ يُونُسَ: مَتَّى د يونس عليه السلام د مور نوم دې، بعضې علماء وائى دا ئې دپلار نوم وو.

٥٧٠٩-()① وَفِي رِوَايَةِ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ② قَالَ: («لَا تُخَيِّرُوا بَيْنَ الْأَنْبِيَاءِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ③ وَفِي رِوَايَةِ أَبِي هُرَيْرَةَ: "«لَا تُفَضِّلُوا بَيْنَ أَنْبِيَاءِ اللهِ»".

**ترجمه:** ① او د حضرت ابو سعيد په روايت كې داسې دي ② چې حضور ﷺ د دواړو بياناتو اوريدو سره وفرمايل تاسو انبياوو كې يوته په بل ترجيح مه وركوئ. (بخاري،

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الفضائل /باب من فضائل موسى صلى الله عليه وسلم (رقم-١٦٣ - (٢٣٧٤) وابوداود فى كتاب السنة/باب فى التخيير بين الأنبياء عليهم الصلاة والسلام (رقم-٤٦٦٨)

مسلم، [۲] او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه د روایت الفاظ داسې دي چې تاسو د الله تعالی په نبیانو کې یو ته په بل فضیلت مه ورکوئ.

**حل اللغات:** - ① لَا تُخَيِّرُوا: أَيْ: لَا تُفَضِّلُوا: فضیلت مه ورکوئ.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا تُخَيِّرُوا بَيْنَ الْأَنْبِيَاءِ:

**یونبی لره په بل د فضیلت ورکولو حکم:** په انبیاء کرامو کښې یونبی ته په بل نبی باندې داسې فضیلت ورکول جائز نه دی ځنګه چه دَ یو نبی په شان کښې تنقیص راتلې شی. دا تنقیص حرام اوکفردي. بل په خصوصی توګه باندې دَ یو نبی نوم اخستو سره دَ هغه په مقابله کښې دَ بل نوم اخستوسره په هغه باندې فضیلت او ترجیح ورکول مناسب نه دی. او په اجمالی توګه باندې یونبی افضل ګرځول جائز دی. مثلاً که څوك داسې اووائی چه حضرت محمد ﷺ دَ ټولو انبیاء کرامو نه افضل دې.

**په زیر بحث حدیث کښې د حضرت اشرف علی تهانوی رحمه الله تحقیق:** دَ زیر بحث حدیث په تشریح کښې حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله په خپل ملفوظات کښې فرمائیلی چه فرض کړه په یوځائی کښې ټول انبیاء کرام راجمع شوی دی ټول مخامخ وی اودغه وخت یو سړې مخامخ یو نبی ته په بل نبی باندې دَ فضیلت ورکولو جرأت کولوسره خودې اوښائی؟ که چرې داسې نه شی کولې نوبیا په غائبانه توګه باندې هم نه دی کول پکار. رسول الله ﷺ چه دا دَ خفګان اظهار کړې دې نوداهم دغه دَ مقابلې او خصومت صورت وو دَ جګړې صورت وو دکوم نه چه دَ تحقیر صورت راوتلې شو. نو حضورپاك منع کړل. بیا چه حضورپاك خپل فضیلت په یونبی باندې دَ بیانولو کوم ممانعت کړې دې دا دَ هغه وخت خبره وه کوم وخت چه دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ مطلق فضیلت وحی نه وه راغلې روستو بیا دَ حضورپاك دَ مطلق فضیلت وحی راغله لهذا اوس حضورپاك دَ یونبی په مقابله کښې هم افضل او اشرف خودل صحیح دی دې نه پس که حضورپاك دَ خپل فضیلت ورکولونه منع کړې وی نودا به دَحضورپاك په تواضع باندې حمل کولې شی. په دې حدیث کښې دَحضرت موسیٰ علیه السلام جزئی فضیلت دې کلی نه دې.

**[۵۷۱۰] د حضرت یونس علیه السلام متعلق یوهدایت**

۵۷۱۰-(١)[۴] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «مَا يَنْبَغِي

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب أحادیث الأنبیاء/باب قول الله تعالی: {واتخذ الله إبراهيم خليلًا} [النساء: ۱۲۵] (رقم-۳۳۶۵) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب فی ذکر یونس علیه السلام، وقول النبی صلی الله علیه وسلم ولا ینبغی لعبد أن یقول أنا خیر من یونس بن متیء (رقم-۱۶۶ - (۲۳۷۶) وابوداود فی کتاب السنة/باب فی التخییر بین الأنبیاء علیهم الصلاة والسلام (رقم-۴۶۶۹)

لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ: إِنِّي خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
[۳] وَفِي رِوَايَةِ الْبُخَارِيِّ قَالَ: "«قَالَ: أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى فَقَدْ كَذَبَ»".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] دا هيڅ کله مناسب نه دی چې یو سړی دا اووائي چې زه د یونس علیه السلام ابن متّی نه ښه یم. (بخاري مسلم) [۳] او د بخاري په یوه روایت کې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمایل کوم سړی چې دا اووائي چې زه د یونس ابن متّی نه ښه یم نو هغه یقینًا دروغجن دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ: إِنِّي خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى:

**د انا خیر من یونس په مفهوم کښې دوه اقوال:**

یعنی په اصل نبوت کښې خو ټول انبیاء کرام یوشان اوبرابر دی په دې کښې خو هيڅ تفاضل نشته دې. او په درجاتو کښې تفاوت اوفرق شته. اوس که یو سړې "اناخیرمن یونس" وائی نودَې دوه مطلبونه کیدې شي:

① چه هغه سړې حضورپاك دَ حضرت یونس علیه السلام نه افضل ښائی حالانکه په نفس نبوت کښې مساوات دې لهذا دغه سړی دروغ اووئیل.

② اوکه چرې دا سړې په اناخیر سره دا خپل ځان دَ حضرت یونس علیه السلام نه افضل ښائی اوپخپله نبی نه دې نودا دروغژن کذاب دې اوکذب په معنی دکفر دې دا سړې کافر شو.

**د حضرت یونس علیه السلام د تخصیص وجه:** دَ فضیلت په دې میدان کښې دَحضرت یونس علیه السلام دَ تخصیص وجه داده چه هغوی باندې یوازمیښت اوامتحان راغلې وو چه دَ الله تعالی دَ خاص حکم دَ راتلو دَ انتظار نه مخکښې دَ ښار اوخلقو نه جدا کیدو سره اووتلو په کوم باندې چه الله تعالی ناراض شو دَ کوم په وجه سره چه هغوی دَ اولوالعزم پیغمبرانو فهرست کښې پاتې نه شو نوممکن ده چه دَ چا په زړه کښې دا خیال راشی چه حضرت یونس علیه السلام ته په هریو نبی باندې فوقیت او فضیلت ورکولې شی. په دې وجه حضورپاك په خاص توګه منع کړل.

**قوله:** أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى فَقَدْ كَذَبَ:

**په متی نوم کې دوه احتمالات:** ① متی دَ حضرت یونس علیه السلام دَ پلار نوم وو ② متی دَهغوی دَ مور نوم وو.

## [۵۷۱۱] د حضرت خضر علیه السلام ذکر

۵۷۱۰-(۱) [۳] ۞وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۞ "«إِنَّ الْغُلَامَ الَّذِي قَتَلَهُ الْخَضِرُ طُبِعَ كَافِرًا، ۞وَلَوْ عَاشَ لَأَرْهَقَ أَبَوَيْهِ طُغْيَانًا وَكُفْرًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞او حضرت ابي ابن کعب رضی الله عنه وايي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ۞حضرت خضر علیه السلام چې کوم هلك وژلی وو هغه د کفر طبيعت اخستو سره پيدا شوی وو ۞که هغه هلك ژوندی پاتې شوی وی، نو يقيناً خپل مور وپلار به يي کفر او سر کشي کې مبتلا کړی وه. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ① الْخَضِرُ: سر سبز، شنو وخو ته وائی. ② طُبِعَ: أَيْ: خُلِقَ: پيدا شوې وو په طبيعت د کفر باندې. ③ عَاشَ: ژوندې پاتې شوې وې. ④ لَأَرْهَقَ: أَيْ: لَكَلَّفَهُمَا: مبتلا کړی به ئې وې، ⑤ طُغْيَانًا: سرکشی.

**تسهیلات: قوله:** إِنَّ الْغُلَامَ الَّذِي قَتَلَهُ الْخَضِرُ طُبِعَ كَافِرًا:

**د خضر د مقتول غلام ازلی کفر:** يعنی پيدائشی توګه باندې فطری او طبعی کافر وو سره ددې چه هرماشوم په اسلام باندې پيدا کيږی مګر غلام خضر. د الله تعالی د قدرت کامله دمستثنيات نه وو چه الله تعالی داسې هم کولې شي. وائی چه دحضرت موسی علیه السلام په اعتراض باندې حضرت خضر علیه السلام د دغه غلام د اوګې نه څرمن راښکله نولاندې ليکلې شوی وو "هذاکافرمطبوعاً" يعنی دا پيدائشی او طبعی کافردې.

## [۵۷۱۲] د خضر وجه تسميه

۵۷۱۲-(۲) [۳] ۞وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۞ "«إِنَّمَا سُمِّيَ الْخَضِرُ لِأَنَّهُ جَلَسَ عَلَى فَرْوَةٍ بَيْضَاءَ ۞فَإِذَا هِيَ تَهْتَزُّ مِنْ خَلْفِهِ خَضْرَاءَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۞او حضرت ابوهريره رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل ۞د حضرت خضر نوم خضر يعنی سرسبز وشاداب په دي وجه مشهور شو چې هغه يووچ او بنجر داګه زمکه باندې يا بالکل وچوښو باندې کيناستی ۞اچانك هغه زمکي يا وچ وانبو کې هغه پسي سبزه شينکی پيدا شي.

**حل اللغات:**- ① فَرْوَةٍ: أَيِ الْحَشِيمُ الْيَابِسُ: اوچ وانبه، ② تَهْتَزُّ: تَتَحَرَّكُ: خوزيدل (يعنی وانبه د شينوالی په وجه خوزيدل).

---

[1] ) اخرجه مسلم فی كتاب الفضائل/باب من فضائل الخضر عليه السلام (رقم-۱۷۲ - (۲۳۸۰) وابوداود فی كتاب السنة/باب فی القدر (رقم-۴۷۰۵) والترمذی فی كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الكهف (رقم-۳۱۵۰)

[2] ) اخرجه البخاری فی كتاب أحاديث الأنبياء/باب حديث الخضر مع موسى عليهما السلام (رقم-۳۴۰۲) والترمذی فی كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الكهف (رقم-۳۱۵۱)

## [۵۷۱۳] حضرت موسیٰ علیه السلام او د مرګ فرښته

۵۷۱۳-(۱۴) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «جَاءَ مَلَكُ الْمَوْتِ إِلَى مُوسَى ابْنِ عِمْرَانَ، [۳] فَقَالَ لَهُ: أَجِبْ رَبَّكَ". [۴] قَالَ: "فَلَطَمَ مُوسَى عَيْنَ مَلَكِ الْمَوْتِ فَفَقَأَهَا". [۵] قَالَ: "فَرَجَعَ الْمَلَكُ إِلَى اللّٰهِ، [۶] فَقَالَ: إِنَّكَ أَرْسَلْتَنِي إِلَى عَبْدٍ لَكَ لَا يُرِيدُ الْمَوْتَ، وَقَدْ فَقَأَ عَيْنِي" [۷] قَالَ: "فَرَدَّ اللّٰهُ إِلَيْهِ عَيْنَهُ، وَقَالَ: ارْجِعْ إِلَى عَبْدِي فَقُلْ: الْحَيَاةَ تُرِيدُ؟

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هرکله چې دحضرت موسیٰ ابن عمران علیه السلام د مرګ وخت نزدې شو نو هغه ته د مرګ فرښته عزرائیل راغې [۳] او ورته یې اوویل د خپل پروردګار د طرف نه د اجل پیغام قبول کړې یعنی ستاسو د روح قبض کیدو وخت راغلی دی واصل الی الله کیدو د پاره تیار سئ [۴] حضور ﷺ وفرمایل حضرت موسیٰ په دې اوزیدو سره د مرګ فرښته په څپیړه ووهله چې په هغه سره د هغه سترګه وچاودله [۵] حضور ﷺ وفرمایل د مرګ فرښته دربار الهي ته لاړه [۶] او عرض یې وکړو اې ربه! تا زه روح قبض کولو د پاره یوداسې بنده ته ولیږلم چې مرګ نه غواړي او دا چې هغه څپیړې سره ځما سترګه هم وایستله [۷] حضور ﷺ وفرمایل الله ﷻ د مرګ د فرښتې دا شکایت اوریدوسره د هغه سترګه درسته کړه او حکم یې ورکی ځما بنده موسیٰ علیه السلام ته دوباره ورشه او ځما دا پیغام ورته ورسوه چې آیا ته اوږد عمر غواړې؟

**حل اللغات:-** ① أَجِبْ: أَيْ: بِقَبُولِ الْمَوْتِ: داجل یعنی دمرګ پیغام قبول کړه. ② فَلَطَمَ: أَيْ: ضَرَبَهَا بِبَاطِنِ كَفِّهِ: په څپیړه ئې اووهلو، د لاس په تلی باندې ئې اووهلو. ③ فَفَقَأَهَا: أَيْ: فَشَقَّهَا: اوچاودله سترګه (یعنی رنده شوه).

[۱] فَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْحَيَاةَ فَضَعْ يَدَكَ عَلَى مَتْنِ ثَوْرٍ، [۲] فَمَا تَوَارَتْ يَدُكَ مِنْ شَعْرِهِ فَإِنَّكَ تَعِيشُ بِهَا سَنَةً، [۳] قَالَ: ثُمَّ مَهْ؟، قَالَ: ثُمَّ تَمُوتُ. [۴] قَالَ: فَالْآنَ مِنْ قَرِيبٍ، [۵] رَبِّ أَدْنِنِي مِنَ الْأَرْضِ الْمُقَدَّسَةِ رَمْيَةً بِحَجَرٍ". [۶] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۷] " وَاللّٰهِ لَوْ أَنِّي عِنْدَهُ لَأَرَيْتُكُمْ قَبْرَهُ [۸] إِلَى جَنْبِ الطَّرِيقِ عِنْدَ الْكَثِيبِ الْأَحْمَرِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] که اوږد عمر غواړې نو د یو غوائې په شا خپل یولاس یا دواړه لاسونه کیږده [۲] ستاد یولاس یا دواړو لاسونو لاندې چې څومره ویښته راشي په هغه کې به د هر ویښته په عوض کې ستا په ژوند کې د یوکال اضافه وشي فرښته دوباره حاضریدو سره [۳] حضرت موسیٰ ته یې د الله ﷻ داپیغام واوروی نو هغوئ اوویل چې دې طویل اوږد

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب أحادیث الأنبیاء/باب وفاة موسی وذکره بعد (رقم-۳۴۰۷) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب من فضائل موسی صلی الله علیه وسلم (رقم-۱۵۸ - (۲۳۷۲))والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۴۹) والنسائی فی کتاب الجنائز/باب أرواح المؤمنین (رقم-۲۰۷۹) واحمد فی المسند: ۳۱۵/۲

ژوند نه وروسته به بیا څه وي؟ فرښتي ورته د الله ﷻ د طرف نه دا جواب ورکړو چې آخر بیا هم مرګ دی ۴ نو حضرت موسیٰ اوویل که د طویل ژوند هم آخري نتیجه مرګ دی نو بیا هغه دي نن ولې را نشي زه دا وخت یعني اوس د مرګ په غیږ کې ورتلو ته تیاریم ۵ لیکن څما دا دعا ضرور ده چې رب کریم دفن کولو د پاره ما ارض مقدس یعني بیت المقدس ته نزدې کړي که څه هم د یو ویشتل شوي کاڼي په قدر وي ٦ دي نه وروسته رسول الله ﷺ صحابه ﷡ مخاطب کولو سره ورته وفرمایل ۷ قسم په الله! که زه بیت المقدس ته نزدې وای نو تاسو ته به مې د حضرت موسیٰ علیه السلام د قبر نښه خو دلې وی ۸ چې د یوې لارې په غاړه سرې غونډۍ ته نزدې دی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ۴ فَضَعْ: نو کیږده، ۵ مَتْنِ: أَيْ: عَلَى ظَهْرِ: شا، ملا. ٦ ثَوْرٍ: أَيْ: بَقَرَةٍ: غوا، غوئی. ۷ تَوَارَتْ: أَيْ غَطَّتْ: راګیر کړی، ۸ ثُمَّ مَهْ؟: أَيْ: ثُمَّ مَاذَا يَكُونُ: بیا به څه وی (یعنی ددې دومره اوږد ژوند نه پس به بیا هم ژوند وی که مرګ به وی؟) ۹ الْمُقَدَّسَةِ: ددې نه مراد یا بیت المقدس دې یا دشام په ټوله زمکه باندې ددې اطلاق کیږی. ۱۰ رَمْيَةَ بِحَجَرٍ: ویشتلې شوې کاڼې. ۱۱ الْكَثِيبِ الْأَحْمَرِ: أَيِ التَّلِّ الْمُسْتَطِيلِ الْمُجْتَمِعِ مِنَ الرَّمْلِ: چرته چه ډیرې شګې راجمع شوې وی یعنی سره غونډۍ.

**تسهیلات:**

**قوله: فَلَطَمَ مُوسَى عَيْنَ مَلَكِ الْمَوْتِ فَفَقَأَهَا:**

**فرښتي ته څپیړه ورکول:** څپیړه وهلو ته لطم وائی یعنی موسیٰ علیه السلام دَمرګ فرښته په څپیړه اووهله. اوس دلته یو سوال اوجواب ته اوګورئ:

**فرښتي ته د څپیړي ورکولو د جواز درې وجوهات:** ① یو ناپیژندګلو انسان حضرت موسیٰ علیه السلام ته اووئیل چه زه ستا روح اخستلو له راغلې یم. دا خو یوه دړهکه وه چه زه تاقتل کوم. نو دا عمل هم دَ حضرت موسیٰ علیه السلام دَ غصې سبب شو

② یو انسان دا دعویٰ کوی چه زه دَ روح قبض کولو قدرت لرم داهم خلاف واقعه امر وو په دې وجه هم حضرت موسیٰ علیه السلام ته غصه ورغله او دَ حفاظت په توګه هغوی یو بې ادب انسان ته دَ سزا په توګه څپیړه ورکړه. چونکه اصول دادی چه کله یوه فرښته دَ انسان په شکل کښې وی نو انسانی اثرات په هغې باندې مرتب کیږی لهذا په دغه څپیړه باندې دَ دغه سړی سترګه راؤوتله.

③ دا فرښته په انسانی شکل کښې حضرت موسیٰ علیه السلام له راغلې وه. یو نقصان خودلته دا اوشو چه هغه دَ حضرت موسیٰ علیه السلام خلوت خانه کښې دَ داخلیدو دَپاره څه اجازت اونه غوښتلو داکار هم دَ موسیٰ علیه السلام دَ غصې سبب جوړ شو.

**د موسی علیه السلام په حق کښې فیصله:** دې دَ الله تعالی بنده اوس هم دا اونه خودل چه زه

فرښته یم اونیغ الله تعالی له شکایت کولو دپاره لاړو. الله تعالی حضرت موسی علیه السلام په حق باندې اوګرځولو اودَ اوږد عمر پیشکش ئی ورته اوکړو خوچه کله په آخره کښې بیا هم مرګ راتلل وو نوحضرت موسی علیه السلام دَ الله تعالی حکم ته لبیك اووئیل اومرګ ئی قبول کړو.

**قوله:** رَبِّ أَدْنِنِي مِنَ الْأَرْضِ الْمُقَدَّسَةِ:

**د موسی علیه السلام دخواهش وجه:** بیت المقدس مراد دې. بیت المقدس دَ انبیاء بنی اسرائیلو قبله وه اومقدس زمکه وه څنګه چه دَ عربو دپاره مکه مکرمه ده په دې وجه حضرت موسی علیه السلام خواهش اوکړو.

**قوله:** رَمْيَةً بِحَجَرٍ:

**د مذکوره جملې مفهوم:** یعنی انسان چه کاڼې اولی نوهغه دومره لرې نه ځی مګر بیا هم څه نا څه لرې ځی او په تللو کښې تیز هم وی. حضرت موسی علیه السلام هم دغه شوق ښکاره کړو چه څه نا څه دَ ارض مقدسه طرف ته زر زر وړاندې لاړ شم.

**[۵۷۱۴] دانبیاوو حُلیې**

۵۷۱۳-() [۳] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «عُرِضَ عَلَيَّ الْأَنْبِيَاءُ [۳] فَإِذَا مُوسَى ضَرْبٌ مِنَ الرِّجَالِ، كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ، [۴] وَرَأَيْتُ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ فَإِذَا أَقْرَبُ مَنْ رَأَيْتُ لَهُ شَبَهًا عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ، [۵] وَرَأَيْتُ إِبْرَاهِيمَ فَإِذَا أَقْرَبُ مَنْ رَأَيْتُ بِهِ شَبَهًا صَاحِبُكُمْ - يَعْنِي نَفْسَهُ - [۶] وَرَأَيْتُ جِبْرِيلَ، فَإِذَا أَقْرَبُ مَنْ رَأَيْتُ بِهِ شَبَهًا دِحْيَةُ بْنُ خَلِيفَةَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] چې انبیاء خما مخې ته راوستل شوه [۳] نو ما ولیدل چې موسی د سپك بدن والادی لکه چې هغه د قبیله بنو شنوءة یو سړی وي [۴] او ما عیسی ابن مریم اولیدلو نو هغه خماپه لیدلو په خلقوکي د عروه ابن مسعود ډیر مشابه په نظر راغې [۵] او ما ابراهیم علیه السلام اولیدلو نو کوم خلق چې مالیدلی دی په هغوئ کې ستاسو دوست یعنی ما سره هغه ډیر مشابه په نظر راغې [۶] او ماجبرائیل علیه السلام اولیدلو نو هغه په لیدلو په خلقوکي د حیه ابن خلیفه سره ډیر مشابه په نظر راغې. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① عُرِضَ: أَيْ أُظْهِرَ لَدَيَّ: زما مخې ته راوستلې شو، پیش کړې شو، ② ضَرْبٌ: أَيْ: نَوْعٌ: یوقسم، ③ ضَرْبٌ مِنَ الرِّجَالِ: أَيْ: خَفِيفُ اللَّحْمِ: د سړو یوقسم، چالاک او د سپک بدن والا سړې مراد دې. ④ شَنُوءَةَ: وَهِيَ قَبِيلَةٌ مَعْرُوفَةٌ: بنو شنوءة یوه مشهوره قبیله ده، (چه د خیری او فساد نه پاک وی هغې ته شنوءة وائی دوی ته هم شنوءة څکه وئیلې شو چه دا قبیله د حسب اونسب په لحاظ

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب الإسراء برسول الله صلی الله علیه وسلم إلی السماوات، وفرض الصلوات (رقم-۲۷۱ - (۱۶۷)

پاکه وه، اوښه سيرت او ښه اداب ئې لرل. ⑤ شَبَهًا: أَيْ نَظِيرًا: مشابه. يوشان. ⑥ دِحْيَةُ بْنُ خَلِيفَةَ: دا يو صحابی دې، د شکل نه ډير ښائسته وو.

**تسهيلات:**

**قوله: عُرِضَ عَلَيَّ الْأَنْبِيَاءُ:**

**د نبی علیه السلام د انبياؤ سره ملاقات:** حديث الباب کښې دَ معراج دَ شپې دَ واقعې ذکرکړې شوې دې. په شپه دَمعراج په مسجد اقصیٰ کښې دننه يا په آسمانونو باندې دَ حضورپاك دَ انبياؤ كرامو اصلی صورتونو سره ملاقات اوکړې شو. نو حضورپاك دغه انبياء كرام دَ خپل صحابه كرامو ﷺ په شکل او صورت باندې اوکتل نو په هغوی کښې ئی حضرت موسیٰ ﷺ دَ سپك بدن والا دَ قبيلهٔ شنوءة دَ خلقو په شان اوګرځولو. دې قبيلې دَ يمن دَزمکې سره تعلق لرلو اوحضرت عيسیٰ ﷺ ئی دَ خپل صحابی عروه بن مسعود ﷺ په شان اوخودلو اودَ حضرت ابراهيم ﷺ دَ مشابهت دَپاره ئی خپل ذات مبارك پيش کړو. دَدې نه ثابته شوه چه دَ حضرت ابراهيم ﷺ اودَ رسول الله ﷺ په خپل مينځ کښې ښه مشابهت وو. دَحضرت جبرائيل ﷺ باره کښې ئی اوخودل چه دې دَ دحيه بن خليفه ﷺ په شان وو او بعضې رواياتو کښې دحيه کلبی ﷺ ذکر دې دواړه نومونه هم دَ يو صحابی دی.

٥٥٠٥-() [١٧] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«رَأَيْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي مُوسَى، رَجُلًا آدَمَ طُوَالًا، ③ جَعْدًا كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ، ④ وَرَأَيْتُ عِيسَى رَجُلًا مَرْبُوعَ الْخَلْقِ، ⑤ إِلَى الْحُمْرَةِ وَالْبَيَاضِ، سَبْطَ الرَّأْسِ، ⑥ وَرَأَيْتُ مَالِكًا خَازِنَ النَّارِ، وَالدَّجَّالَ ⑦ فِي آيَاتٍ أَرَاهُنَّ اللّٰهُ إِيَّاهُ، ⑧ فَلَا تَكُنْ فِي مِرْيَةٍ مِنْ لِقَائِهِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② ما په شبِ معراج کې موسیٰ ﷺ اوليدلو هغه غنم رنګه او ږد قدوالا دنګ سړي وو ③ ويښته يي ولول وه او د جسم او بدن د اعتبار نه د قبيله شنوءة د يو سړي په شان په نظر راتلو ④ او ما عيسیٰ ﷺ اوليدلو هغه خلقي طور سره د متوسط قدوقامت والاوو نه ډير دنګ نه ډير لنډي نه ډير پنډ ⑤ او نه نَرى رنګ يي سور سپين وو څرنګه چې د حضور ﷺ د جسم مبارك رنګ وو او د هغه د سر ويښته سيده يعنی ولول نه وه ⑥ او ما د دوزخ مالك او دجال هم وليدل ⑦ او د حضور ﷺ د دي تولو ليدل د قدرت الهي د هغه نښو او علاماتو په ضمن کې وو چې الله ﷻ حضور ته شب معراج کې وښودل

[١] اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب إذا قال أحدكم: آمين والملائكة فی السماء. آمين [ص:١١٤] فوافقت إحداهما الأخرى، غفر له ما تقدم من ذنبه (رقم-٣٢٣٩) ومسلم فی كتاب الإيمان/باب الإسراء برسول الله صلى الله عليه وسلم إلى السماوات، وفرض الصلوات (رقم-٢٦٧ - (١٦٥) واحمد فی المسند: ٢٤٥/١

[۸]څکه اې د دې حديث ويونکو او اوريدونکو په دې امر کې څه شک شبهه مه کوه چې حضور ﷺ دا ټول وليدل او ملاقات يې ورسره وشو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① أُسْرِيَ بِي: چه بوتلې شوم ، (په شپه دمعراج). ② آدَمُ: أَيْ: أَسْمَرُ: غنم رنگې، ③ طُوَالًا: دا په طول کښې مبالغه ده، أَيْ: طَوِيلًا: يعني ډير اوږد ، ④ جَعْدًا: أَيْ غَيْرُ مُسْتَرْسِلِ الشَّعْرِ: چه ويښته ئې رازوږند نيغ نه وي، يعني گلگوچي ويښتو والا ، ول ول ويښتو والا. ⑤ مَرْبُوعُ الْخَلْقِ: أَيْ: مُتَوَسِّطًا: درميانه صورت والا (يعني نه ډير اوږد نه لنډ، نه ډير کمزوري نه ډير څرب، ددې نه د طبيعت اومزاج اعتدال طرف ته هم اشاره ده). ⑥ سَبْطَ الرَّأْسِ: مُسْتَرْسِلَ شَعْرِ الرَّأْسِ: چه د سر ويښته ئې رازوږند وي (دا په صفت دجمال باندې دلالت کوي). ⑦ مَالِكًا خَازِنَ النَّارِ: د جهنم نگرانه فرشتې ته مالک او خازن وائي. ⑧ آيَاتٍ: أَيْ: مَعَ عَلَامَاتٍ: آيات د آية جمع ده، نښې او علامت ته وائي. ⑨ أَرَاهُنَّ: چه اونې ښودلې دغه نښې نبي ﷺ ته، ⑩ مِرْيَةٍ: أَيْ فِي شَكٍّ: شک.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَرَأَيْتُ مَالِكًا خَازِنَ النَّارِ، وَالدَّجَّالَ فِي آيَاتٍ أَرَاهُنَّ اللَّهُ إِيَّاهُ:

**دمذکوره جملې قائل:** دا جمله دحضورپاك كلام نه دې دحضورپاك كلام دې نه پس د "فلا تكن" څخه شروع كيږي يعني داكوم څه چه حضورپاك اوليدل داد هغه نښاناتو اوعلاماتو څخه وو كوم چه الله تعالى دمعراج په شپه حضورپاك ته خودلي وو.

**[۵۷۱۶] په شب معراج کې انبياوو سره ملاقات او د حضور ﷺ د شرابو پيالې قبلولو نه انکار**

۵۷۱۶-(¹) [۱۸] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي لَقِيتُ مُوسَى - [۳] فَنَعَتَهُ: فَإِذَا رَجُلٌ مُضْطَرِبٌ، رَجِلُ الشَّعْرِ، كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ، [۴] وَلَقِيتُ عِيسَى رَبْعَةً أَحْمَرَ كَأَنَّمَا خَرَجَ مِنْ دِيمَاسٍ - يَعْنِي الْحَمَّامَ - [۵] وَرَأَيْتُ إِبْرَاهِيمَ وَأَنَا أَشْبَهُ وَلَدِهِ بِهِ " [۶] قَالَ: " فَأُتِيتُ بِإِنَاءَيْنِ: أَحَدُهُمَا لَبَنٌ وَالْآخَرُ فِيهِ خَمْرٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] ما د معراج په شپه کې حضرت موسٰی سره ملاقات وکی [۳] دې نه وروسته حضور ﷺ د حضرت موسٰی خصوصيات بيانولو سره وفرمايل چې هغه يو مضطرب سړی په نظر راغې د هغه د سر ويښته ول ول وه نه بالكل سيده او داسې لګيدی لکه چې هغه د قبيله شنوءة يو سړی وي [۴] حضرت عيسٰی ﷺ سره هم ځما ملاقات وشو هغه درميانه قد او د سور رنګ والاوو او داسې لګيدی چې اوس لمبيدو سره د حمام نه راوتلی وي [۵] وماحضرت ابراهيم ﷺ

¹) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله تعالى: {وهل أتاك حديث موسى} [طه: ۹] {وكلم الله موسى تكليمًا} [النساء: ۱۶۴] (رقم-۳۳۹۴) ومسلم في كتاب الإيمان/باب الإسراء برسول الله صلى الله عليه وسلم إلى السماوات، وفرض الصلوات (رقم-۲۷۲ - (۱۶۸) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة بني إسرائيل (رقم-۳۱۳۰)

هم وليدلو اوزه دده په اولاد كې دده سره ډيرزيات مشابه وم ،٦ حضور ﷺ وفرمايل بيا
خما مخكې دوه پيالي پيشي شوي يوه پياله كې پئي وي او په بلي كې شراب

**حل اللغات:-** ① نَعَتَهُ: أَيْ: فَوَصَفَ مُوسَى: صفات ئې بيان كړل د موسى ﷺ. ② مُضْطَرِبٌ: أي مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ: يعنى دَ دَ الله تعالى دَ ويرې نه رچيدونكې وو، يا چست چالاك بدن واالا سړې وو. ③ رَجِلُ الشَّعْرِ: په جيم باندې كسره ده يعنى دَ هغه دَ سر ويښتو پيچ خوړلو سره راتاؤ شوى وو، ګلګوچى ويښته ئې وو. ④ رَبْعَةً: أَيْ: مُتَوَسِّطًا: درميانه بدن والا ريعنى نه ډير اوږد نه لنډ، نه ډير كمزورې نه ډير خرب، ددې نه د طبيعت اومزاج اعتدال طرف ته هم اشاره ده). ⑤ دِيمَاسٍ: أي الْحَمَّامَ: حمام يعنى غسل خانه،

١ فَقِيلَ لِي: خُذْ أَيَّهُمَا شِئْتَ. فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ فَشَرِبْتُهُ، ٢ فَقِيلَ لِي: هُدِيتَ الْفِطْرَةَ، ٣ أَمَا إِنَّكَ لَوْ أَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ أُمَّتُكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ ماته اوويل شوه چې په دې كې كومه دې خوښه وي هغه واخله كه شراب خوښوي كه پئي ما د پيئو پياله واخسته او ومې څكله ٢ بيا ماته اوويل شوه يعنى فرشتو اوويل چې تاسو ته د فطرت لار وښودل شوه يعنى الله ﷻ تاسو ته د اسلام د دين هغه لار وښودله چې په اصل كې انساني فطرت دى او په هغه هرسړى پيدا كېږي ٣ پوهه شئ كه تاسو هغه وخت شراب څكلي وې نو ستاسو امت به ګمراه شوى وى. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ⑥ هُدِيتَ: أَي هَدَاكَ اللّٰهُ إِلَى الْفِطْرَةِ: اوښودله تاته الله تعالى لار د دين اسلام، لار د انساني فطرت. ⑦ الْفِطْرَةَ: طبيعت، ⑧ غَوَتْ: أَيْ: ضَلَّتْ: ګمراه شوې به وو.

**تسهيلات:**

**قوله فَإِذَا رَجُلٌ مُضْطَرِبٌ:**

**دمضطرب په معنى كښې درې احتمالات:** دَدې جملې مختلف معانى بيان كړې شوې دى.

① بعضې وئيلى دى چه دلته دَ مضطرب نه مراد كمه غوښه ده. نومطلب به داشى چه موسى ﷺ مانده كونته دكمې غوښې بدن والا وو.

② بعضې حضراتو وئيلى دى چه دلته دَ مضطرب نه مراد اوږد قد دې. يعنى دَموسى ﷺ قد اوږد وو.

③ بعضې حضراتو وئيلى دى چه دلته دَمضطرب نه مراد دَ ويرې نه رچيدونكې دې. په رواياتوكښې راځى چه حضرت موسى ﷺ به دَ مونځ او دَ الله تعالى دَ عبادت په وخت دَ الله دَ ويرې نه رچيدلو.

**قوله رَجِلُ الشَّعْرِ:**

**په رجل الشعر كښې لغات:** ① "رجل" دَ جيم زبر، زير اوجزم دريواړه شان نقل دې.

درجل الشعر په مصداق کښې دوه اقوال: ①دَدې لفظ اطلاق په هغه ویښتو باندې کیږی چه نه بالکل نیغ وی او نه ګورګوچي وی بلکه چه په ویښتو کښې لږ لږشان خم او تاؤ وی. ② ملاعلی قاری رحمه الله داليکلی دی چه دا ویناکول زيات موزون دی چه دَ رجل نه مراد داسې ويښته دی په کوم کښې چه خموالې غالب وی چه دې نه مخکښې روايت "جعد" سره تعارض لازم نه شی.

**اشکال:** په دې روايت کښې دَحضرت موسیٰ علیه السلام رنګ سور خودلې شوې دې او دې نه مخکښې روايت کښې دَهغه رنګ سپین خودلې شوې دې نو په دې دواړو کښې تعارض راغلو؟

**جواب:** په دې دواړو کښې هیڅ تعارض نشته ځکه چه دَ موسیٰ علیه السلام اصل رنګ سورچه سپین ته مائل وو اوکله به سرخی غالب راتله چه په غصه او جلالی شان کښې به وو اوچه کله به خوشحال وو نو سپینوالې به غالب وو.

**قوله:** مِنْ دِيمَاسٍ يَعْنِي الْحَمَّامَ:

**دمذکوره جملې مفهوم:** دَدې وضاحت الحمام سره کړې شوې دې معنی به داسې جوړیږی لکه چه هغوی اوس لامبلو سره دَ حمام نه راوتلې وی. دَدې په ذریعه حضورپاك په اصل کښې دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ رنګ دَ ښائست دَ بدن تازه والې او آبادوالې اودَ مخ مبارك رونړوالی طرف ته اشاره اوکړه.

**قوله:** فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ فَشَرِبْتُهُ:

**په خوب کښې د پیؤ څکلوتعبیر:** زما مخې ته دوه پیالئی راوړلې شوې په هغې کښې په یود کښې پیئی او دویمه کښې شراب وو. په دې دواړوکښې دَ یوې دَاختیارولو دَپاره اوویلې شو نومادَ پیئوپیالئی اختیارکړه. اوس دَدې دوو شیئونو دَ پیش کولو څه مقصد وو دې دَپاره چه په فرښتو باندې دَ رسول الله ﷺ عظمت او فضیلت ښکاره شی چه حضورپاك په هرحال کښې هغه خوښوی کوم چه دَ ښیګړې او بهترئی ضامن وی اوکوم څیز کښې بدی اوخرابی وی حضورپاك هغه نه خوښوی. په دې وجه ئی تعبیر اوکړو چه په دې عالم سفلی کښې پیئی یو داسې څیز دې چه پاك صفا، خالص او مزيدار کیدو سره سره دَ ماشوم دَپاره دَ شروع خوراك هم جوړیږی. دې نه معلومیږی چه دَ پیئو څکل اودَ هغې په خوب کښې لیدل دَعلم او هدایت طرف ته اشاره ده.

**قوله:** أَمَا إِنَّكَ لَوْ أَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ أُمَّتُكَ:

**په خوب کښې د شرابو څکلو څخه د نبی علیه السلام حفاظت:** یعنی که شراب دې اختیار کړې وې نو ستاسو امت به ګمراه شوې وو یعنی که حضورپاك صرف شراب نیولې وې

نو دَ حضورپاك امت به په څه نا څه درجه كښې دَدې ګمراهئی ښكار كيدلو اوكه چرې رسول الله ﷺ شراب څكلي وې نو شراب به دَدې امت دَپاره حلال شوې وې. چونكه په شرابو كښې دَ بدئی اثرات موجود وو اودَ حضورپاك ذات مبارك په هرقسم بدئی كښې دَاخته كيدو نه بالكل محفوظ دې بلكه دَحضورپاك دَ پاره خو په بدئی كښې پريوتلو تصور هم نه شی كيدلې. په دې وجه غويت ئی اونه وئيل بلكه "غوت امتك" ئی اووئيل. دَ حديث الباب نه معلومه شوه چه دَ مقتدٰی استقامت دَمتبعين دَ استقامت ذريعه او سبب جوړيږی. ځكه چه دَمقتدٰی حيثيت هم هغه دې چه په اندامونوكښې كوم دَ زړه حيثيت دې. والله اعلم.

**[۵۷۱۷] انبياء ددې دنيا نه درخصتيدو وروسته هم اعمال خير كوي**

۵۷۱۷-()[۹] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ[۲]: «سِرْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ، [۳] فَمَرَرْنَا بِوَادٍ، فَقَالَ: "أَيُّ وَادٍ هٰذَا؟" [۴] فَقَالُوا وَادِي الْأَزْرَقِ. [۵] فَقَالَ: "كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى مُوسَى" فَذَكَرَ مِنْ لَوْنِهِ وَشَعْرِهِ شَيْئًا، [۶] وَاضِعًا أُصْبُعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ، [۷] لَهُ جُؤَارٌ إِلَى اللّٰهِ بِالتَّلْبِيَةِ، مَارًّا بِهٰذَا الْوَادِي".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وايي [۲] په يوسفر كې چې د مكې او مدينې په منځ كې وو مونږ درسول الله ﷺ سره ملګري وو [۳] مونږ چې په يو جنګل تيريدو نو حضور ﷺ پوښتنه وكړه چې دا كوم جنګل دی؟ [۴] مونږ عرض وكړو دا وادي ازرق دی [۵] حضور ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل ګويا زه موسٰی عليه السلام وينم بيا حضور ﷺ د حضرت موسٰی عليه السلام د رنګ او ويښتانو څه ذكر وكی چې هغه غنم رنګه او ويښته يي خمدار ول دي [۶] او سلسله كلام جاري ساتلو سره مخكې يي وفرمايل چې هغه خپلي ګوتي غوږونو كې وركړي دي څرنګه چې مؤذن خپل اواز اوچتولو د پاره آذان كولو په وخت خپلي ګوتي غوږونو كې وركوي [۷] او په ژړا زاری په اوچت ا اواز د خپل پروردګار په حضور كې لبيك لبيك ويلو سره حرم طرف ته ځي

**حل اللغات:**- ① فَمَرَرْنَا: نو تيرشو مونږ. ② الْأَزْرَقِ: وَهُوَ مَوْضِعٌ بَيْنَ الْحَرَمَيْنِ: د مكې او مدينې په مينځ كښې د يوځائې او وادی نوم دې (د زيات سرسبز او شينوالی په وجه ورته ازرق وائی. ③ جُؤَارٌ: په اوچت آواز او په زاریٔ سره تلبيه ونيلوپه معنی كښې ده. ④ مَارًّا: تلونكې.

[۱] قَالَ: لُمَّ سِرْنَا حَتَّى أَتَيْنَا عَلَى ثَنِيَّةٍ. [۲] فَقَالَ: "أَيُّ ثَنِيَّةٍ هٰذِهِ؟" قَالُوا: هَرْشَى - أَوْلِفْتُ - [۳] فَقَالَ: "كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى يُونُسَ عَلَى نَاقَةٍ حَمْرَاءَ، عَلَيْهِ جُبَّةُ صُوفٍ، [۴] خِطَامُ نَاقَتِهِ خُلْبَةٌ، مَارًّا بِهٰذَا الْوَادِي مُلَبِّيًا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وايي دي سه وروسته دهغه ځاي نه تيريدو سره مونږ په مخكې لاړو او يوغونډي ته ورسيدونو [۲] حضور ﷺ پوښتنه وكړه دا كوم غراوغونډي

[1] ) اخرجه مسلم فی كتاب الايمان/باب الإسراء برسول الله صلی الله عليه وسلم إلی السماوات، وفرض الصلوات (رقم-۲۶۹ - (۱۶۶)) واحمد فی المسند:۲/۲۱۵

ده خلقو وبنـو دل داهرشي دى يالفت غر دى [۳] حضور ﷺ پـه دي اوريـدو سره وفرمايل گويـا زه يـونس عليه السلام ويـنم چـې پـه سـره اوښـه بانـدې سـپور دى اود غټـي وړي جبـه يـې اغوستي ده [۴] د هغـه د اوښي مهـار د خرمـاو درسـى دي او هغـه لبيـك لبيـك ويـلو سره دي غونډي نه تيريږي. (مسلم)

**حل اللغات:**- ⑤ثَنِيَّةٍ: أَيْ: عَقَبَةٍ وَهِيَ طَرِيقٌ عَـالٍ فِي الْجَبَلِ أَوْبَيْنَ الْجَبَلَيْنِ: پـه غر دپاسـه يا د دوه غرونـو پـه مينځ كـښې اوچتې لار تـه ثنيـه وائـي يعنـى غونډئ، ⑥هَرْشَى أَوْلِفْتُ: ثَنِيَّةٌ بِقُرْبِ الْجُحْفَةِ: جحفـه سـره نـزدې د يـوې غونډئ نوم دې، هَرْشَى او لِفْتُ ورتـه وائـي. ⑦خِطَامٌ: أَيْ: زِمَامٌ: دَ اوښـې پـه پـوزه كـښې اچولې شـوې پـيـزوان اوجلب تـه خطـام او زمـام وئيلـى شـى يعنـى پـيـزوان يـا ـ واگـې. ⑧خُلْبَةٌ: دَ كهجورې دَ پټ نه جوړې شوې رسئى ته خلبة وائي.

**تسهيلات:**

**قوله: مَـارًّا بِهَذَا الْوَادِي مُلَبِّيًا:**

**په عالم برزخ كښې د نيكانو خلقو عبادت كول:** يعنـى تلبيـه وئيلوسره وړانـدې روان وو. دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَمرګ نه پس پـه عـالم برزخ كـښې هـم نيكـان خلق عبـادت كوى. سره دَدې چه پـه عبادت باندې بـه ثـواب نـه ملاويږى ځكـه چـه هغـه دَ عمل ځائـى نـه دې ليكـن نيكـان خلق دَ شوق پوره كولودَپاره اودَ تسلئ اوسكون حاصلولو دَپاره دَ خوندپـه عبادت كـښې مشغول اوسيږى. دَ انبياء كرام او شـهداء وجودونـه چونكـه پـه قبرونوكـښې محفوظ وى په دې وجه دَهغوى باره كښې خو څه اشكال نشته دې. دغـه شـان كـه دَ نـورو اولياء كراموجودونه محفوظ وى نو هغوى به هم دغه شان په عبادت كښې مشغول وى.

## [۵۷۱۸] د حضرت داود عليه السلام ذكر

۵۷۱۸-() [۲۰] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«خُفِّفَ عَلَى دَاوُدَ الْقُرْآنُ، [۳] فَكَانَ يَأْمُرُ بِدَوَابِّهِ فَتُسْرَجُ، فَيَقْرَأُ الْقُرْآنَ قَبْلَ أَنْ تُسْرَجَ دَوَابُّهُ، [۴] وَلَا يَأْكُلُ إِلَّا مِنْ عَمَلِ يَدَيْهِ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1]

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابـوهريره رضي الله عنه د حـضور ﷺ نـه روايـت كـوي چـې رسـول كـريم ﷺ وفرمايل [۲] حضرت داود عليه السلام باندې د زبور تلاوت آسان شوى وو [۳] هغـه بـه خپلـو څـاروو باندې د زين تړلو حكم كوى او مخكې دې نه چې د زين تړلو كار پوره شي هغـه بـه د پـوره زبـور تـلاوت مكمـل كـوى [۴] او حـضرت داود عليه السلام بـه د خپـل لاس د محنـت روټـئ خوړله. (بخاري)

[1] ) اخرجه البخارى فى كتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله تعالى: {وآتينا داود زبوراً} " (رقم-۳٤۱۷) واحمد فى المسند: ۲/۳۱٤

**حل اللغات:**- ① خُفِّفَ: أَيْ: سُهِّلَ وَيُسِّرَ: آسان شوي وو. ② بِدَوَابِّهِ: أَيْ لِرَكُوبِهِ: په څاروود سوريدو دپاره ③ فَتُسْرَجَ: أَيْ فَيُشْرَعُ فِي سَرْجِهَا: دڅاروو د زين او ګدیانو برابرول به شروع شو. ④ عَمَلِ يَدَيْهِ: په لاس باندې کار او محنت مزدوري کولو سره روزي ګټل.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَيَقْرَأُ الْقُرْآنَ:

**د قرآن څخه مراد:** قرآن په معنی دَ مقرؤ دې کوم چه دَ لوستلې شوی په معنی کښې دې. قرآن مراد نه دې بلکه دې نه مراد دَ زبور لوستل دی. په دومره مختصر وخت کښې پوره زبور وئيل دَمعجزه په توګه وو لکه څنګه چه دَ طی الارض عمل وی دغه شان خارق عادت طی الوقت هم وی. دَ معراج شپه دَ حضورپاك دَ پاره طی الوقت شوې وو.

**[۵۷۱۹] په يوه قضيه کې د حضرت داود عليه السلام او حضرت سليمان عليه السلام جدا جدا فيصلي**

۵۷۱۹-() [۳۱] [۱] وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «كَانَتِ امْرَأَتَانِ مَعَهُمَا ابْنَاهُمَا، [۳] جَاءَ الذِّئْبُ فَذَهَبَ بِابْنِ إِحْدَاهُمَا، [۴] فَقَالَتْ صَاحِبَتُهَا: إِنَّمَا ذَهَبَ بِابْنِكِ. [۵] وَقَالَتِ الْأُخْرَى: إِنَّمَا ذَهَبَ بِابْنِكِ، [۶] فَتَحَاكَمَتَا إِلَى دَاوُدَ، فَقَضَى بِهِ لِلْكُبْرَى، [۷] فَخَرَجَتَا عَلَى سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ، فَأَخْبَرَتَاهُ، [۸] فَقَالَ: ائْتُونِي بِالسِّكِّينِ أَشُقُّهُ بَيْنَكُمَا [۹] فَقَالَتِ الصُّغْرَى: لَا تَفْعَلْ، يَرْحَمُكَ اللَّهُ، هُوَ ابْنُهَا، [۱۰] فَقَضَى بِهِ لِلصُّغْرَى» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم د حضرت داود د زماني داقصه بيان کړله [۲] چې دوه ښځې وي او هغوئ دواړو سره يويو هلك وو [۳] يوه ورځ يو شرمخ راغې او هغوئ کې د يوي ښځې هلك يې اوچتولو سره يووړلو اوس دواړو ښځو خپلو کې جګړه شروع کړه [۴] يوي وئيل چې شرمخ ستاخوی يووړلو او [۵] دويمي اوويل چې نه ستا څوی يې يووړلو [۶] آخر دواړو خپله مقدمه حضرت داود عليه السلام ته ورسول حضرت د دواړو بيانات اوريدو سره موجود هلك د لوی عمر ښځې ته ورکی [۷] بيا هغه دواړې ښځې حضرت سليمان عليه السلام ته راغې او خپله پوره قضيه او د حضرت داود فيصله يې ورته بيان کړله او هغوئ حضرت سليمان عليه السلام ته د خپلې فيصلې کولو اوويل [۸] حضرت سليمان د صورت واقعه په باريکي باندې پوهيدو سره خپلو خادمانو ته اوويل چې لږ چاړه راوړئ زه دا هلك په منځ دوه ټکړې کولو سره په دې دواړو يې تقسيموم [۹] د کم عمر ښځې چې دافيصله واوريده نو زهيره شوه او هغې اوويل الله جل جلاله دې په تاسو رحم وکړي داسې مه کوئ هلك د لوی عمر ښځې ته ورکړئ [۱۰] د دې په اوريدو سره حضرت سليمان عليه السلام د کم عمر ښځې په حق کې فيصله وکړله او د هغې څوی يې

[۱] ) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله تعالى: {ووهبنا لداود سليمان نعم العبد إنه أواب} الراجع المنيب " (رقم-۳۴۲۷) ومسلم في كتاب الأقضية/باب بيان اختلاف المجتهدين (رقم-۲۰ - (۱۷۲۰) والنسائي في كتاب آداب القضاة/باب حكم الحاكم بعلمه (رقم-۵۴۰۲) واحمد في المسند:۳۲۲/۲

هغې ته ورکې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① فَتَحَاكَمَتَا : أَيْ: فَرَفَعَتَا الْحُكُومَةَ: دواړو زنانو مقدمه پيش کړه.② السِّكِّين : چاړه. ③ أُشُقُّهُ: أَيْ: أَنَا أَقْطَعُ الْوَلَدَ: نيموم دا ماشوم يعنى دوه حصې کوم ئې.

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَتِ امْرَأَتَانِ مَعَهُمَا ابْنَاهُمَا:**

**د داؤدعليه السلام د عدالت يوه عجيبه واقعه:** يعنى دَحضرت داؤد عليه السلام په زمانه کښې دوه ښځې يوځائى چرته روانې وې ممکن ده چه دا دواړه خپل مينځ کښې ملګرې وې اوداهم ممکن ده چه دواړه په خپل مينځ کښې بنې وې. دا جګړه دَحضرت داؤد عليه السلام په زمانه کښې پيښه شوې وه. دَيوې دَ غيږ نه دَ هغې ماشوم ليوه اوچت کړو يويړو. اوس خپل مينځ کښې جګړه پيدا شوه چه دکومې يوې بچې اوړلي دې اودَ کومې يوې پاتې شوې دې. يوه دَ ډير عمروه او بله دکم عمر وه. دَ ډير عمروالا ښځې ونيل کوم ماشوم ئې چه اوړلي دې هغه ستادې اوکوم چه باقى دې هغه زما دې او په هغې باندې قبضه اوکړه.

دا مقدمه دَ حضرت داؤد عليه السلام په عدالت کښې پيش کړې شوه. چونکه په دواړو کښې يوې سره هم ګواه نه وو اودواړه دعويدارې وې نوحضرت داؤد عليه السلام قبضه ته کتلوسره فيصله دَ صاحب يد په حق کښې ورکړه يا دَ بل څه دليل په بنيادباندې دَ مشرې په حق کښې فيصله اوشوه. مګر دا خبره ده چه دافيصله حضرت داؤد عليه السلام دَ اجتهاد په بنياد باندې کړې وه آسمانى وحى نه وه او اصل حق دَ کشرې وو مشره قابض وه. حضرت سليمان عليه السلام په حکمت او نفسياتى توګه په دې جګړه باندې دَ پوهيدلو کوشش اوکړو او وئى هم پيژندله او فيصله ئى دَ کشرې په حق کښې اوکړه. معلومه شوه چه قاضى له دَ ظاهرى دلائلوسره باطنى عواملو جائزه اخستل هم ضرورى دى دې دَپاره چه حق ته اورسيږى.

**اشکال:** حضرت داؤد عليه السلام دَمشرې په حق کښې عدالتى فيصله کړې وه اوحضرت سليمان عليه السلام دغه فيصله ماتولوسره دَ کشرې په حق کښې فيصله اوفرمائيله. دا څنګه جائز وه سره دَدې چه دَ يوقاضى فيصله په خالص اجتهاد باندې وى بياهم دَ اصول قضاء لاندې نافذ شوې فيصله فسخ کيدې نه شى دلته داسې ولې اوشو. حالانکه دادَ يونبى نافذ کړې شوې فيصله وه؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① دَ حضرت داؤد عليه السلام په شريعت کښې داګنجائش وو چه دَ يو عدالت فيصله په دويم عدالت کښې دَ نوى سر دَتحقيق نه پس کالعدم ګرځولې کيدې شوه لکه چه دادَهغوى دَ شريعت خپله معامله وه زمونږ په شريعت کښې داسې نه شى کيدې.

② دَحضرت داؤد عليه السلام دَ طرف نه دا يوه فتوىٰ وه قضاء نه وه.

**[۵۷۲۰] د حضرت سليمان علیه السلام يوه واقعه**

۵۷۲۰-(¹) [۲۲] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «قَالَ سُلَيْمَانُ: لَأَطُوفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلَى تِسْعِينَ امْرَأَةً - وَفِي رِوَايَةٍ: بِمِائَةِ امْرَأَةٍ [۳] كُلُّهُنَّ تَأْتِي بِفَارِسٍ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ [۴] فَقَالَ لَهُ الْمَلَكُ: قُلْ إِنْ شَاءَ اللَّهُ. فَلَمْ يَقُلْ وَنَسِيَ، [۵] فَطَافَ عَلَيْهِنَّ، فَلَمْ تَحْمِلْ مِنْهُنَّ إِلَّا امْرَأَةٌ وَاحِدَةٌ جَاءَتْ بِشِقِّ رَجُلٍ، [۶] وَايْمُ الَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ، لَوْ قَالَ: إِنْ شَاءَ اللَّهُ، لَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فُرْسَانًا أَجْمَعُونَ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] يوه ورځ حضرت سليمان دا اوويل يعنی دا عزم او اراده يې وکړله چې نن شپه به زه خپلو نوي بيبيانو سره او په يوه روايت کې دادی چې خپلو سلو ښځو سره به مباشرت کوم [۳] او په هغوئ کې به هري ښځي نه يو سوار بهادر مرد پيدا شي چې د الله جل جلاله په لار کې به جهاد کوي [۴] هغوئ د دې عزم او ارادي په وخت که څه هم نيك مقصد د پاره وه انشاء الله ونه وئيل ځکه هغه فرشتي چې رسته طرف ته وي يا حضرت جبرائيل يا يو بلي فرشتي هغه ته اوويل چې انشاء الله اووائي ليکن حضرت سليمان علیه السلام نه انشاء الله وئيل هير شو [۵] بيا هغه د خپلي ارادي مطابق هغه ټولو بيبيانو سره مباشرت وکی او په هغوئ کې صرف د يوي ښځي نه علاوه بله هيڅ يوه حامله نه شوه او هغه هم نيم هلك يعنی ناقص الخلقت بچی راوړی [۶] حضور ﷺ فرمايي قسم دی په هغه پاك ذات چې د هغه د قدرت په لاس کې د محمد ساه ده سليمان که انشاء الله ويلي وې نو يقيناً د هري ښځي نه به يې يو يو ځوی پيدا شوی وو او هغوئ ټولو به د الله جل جلاله په لار کې جهاد کوی او سوار بهادر مرد به ثابت شوی وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَأَطُوفَنَّ: أَيْ لَأَدُورَنَّ وَهٰذَا كِنَايَةٌ عَنِ الْجِمَاعِ: زه به ورځم، ددې نه مراد جماع ده. ② بِفَارِسٍ: شهسوار، مجاهد، ③ الْمَلَكُ: فرشته، دملک نه مراد يا جبرئيل علیه السلام دی، يا مؤکل فرشته ده. ④ فَلَمْ تَحْمِلْ: أَيْ: لَمْ تَحْمِلْ: حامله يعنی د اولاد اميدواره نه شوه. ⑤ بِشِقِّ: أَيْ بِنِصْفِهِ، أَوْ بَعْضِهِ: نيمه يا بعضي حصه د سړی، ⑥ وَأَيْمُ: هُوَ اسْمٌ وُضِعَ لِلْقَسَمِ: دا لفظ د قسم دپاره وضع شوې دې يعنی ددې نه مراد قسم دې. ⑦ فُرْسَانًا: شهسواران، بهادر مجاهدين.

**تسهيلات:**

**قوله:** قَالَ سُلَيْمَانُ: لَأَطُوفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلَى تِسْعِينَ امْرَأَةً:

**سليمان عليه السلام ته د انشاء الله نه وئيلو تنبيه ورکول:** يعنی په يوه شپه کښې به سلو

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسير/باب من طلب الولد للجهاد (رقم-۲۸۱۹) ومسلم فی کتاب الأيمان/باب الاستثناء (رقم-۲۵ - (۱۶۵٤) والترمذی فی کتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الاستثناء فی اليمين (رقم-۱۵۳۲) (رقم-۱۵۳۱) والنسائی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب أنس بن مالک رضی الله عنه (رقم-۳۸۳۱)

بيبيانوسره جماع كوم، دې دپاره چه سل مجاهدين پيدا شي اود الله تعالى په لار كښې جهاد اوكړي. فرښتې وئيل ان شاء الله اووايه مگر هغه اونه وئيلې شو. نو يوناقص بچې پيدا شو اودې نه علاوه نور هيڅ رانغله. هغه خادمې اوچت كړو او په تخت سليمان باندې كيخودو. سليمان عليه السلام ته تنبيه اوشوه. دا حديث دقرآن د آيت ﴿ وَأَلْقَيْنَا عَلَى كُرْسِيِّهِ جَسَدًا ثُمَّ أَنَابَ ﴾ بهترين تفسير دې.

### [۵۷۲۱] كمالي دانبياوو سنت ده

۵۷۲۱-()[۲۳] [۱] وَعَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ[۲]: "«كَانَ زَكَرِيَّا نَجَّارًا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] حضرت زكريا عليه السلام نجار وو. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① نَجَّارًا: تركاڼ (چه د لرگو نه څيزونه جوړوي).

**تسهيلات: قوله:** كَانَ زَكَرِيَّا نَجَّارًا:

**دحلال كسب مسنونيت:** حضرت زكريا عليه السلام د لوهارئى كار كولو. ددې نه معلومه شوه چه دمحنت اومشقت په ذريعه حلال رزق حاصلول د انبياء كرامو سنت دى. دا دتوكل منافى نه دى. هم دغه شان په يو حديث مبارك كښې دى: «الكاسب حبيب الله» هم په دې وجه هر يو نبى خپل دژوند تيرولو طريقه دخپل لاس ګټه جوړه كړې. نبوت يو نبى خپله ذريعه د معاش نه ده جوړه كړې. امام غزالى رحمه الله دعبادت لس قسمونه ليكلى دى په دې كښې يوحلال رزق ګټل هم دى.

### [۵۷۲۲] حضرت عيسىٰ عليه السلام اود حضور صلى الله عليه وسلم خپل مينځ كښې نزديكت

۵۷۲۲-()[۲۴] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[۲] "«أَنَا أَوْلَى النَّاسِ بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ فِي الْأُولَى وَالْآخِرَةِ، [۳] الْأَنْبِيَاءُ إِخْوَةٌ مِنْ عَلَّاتٍ، وَأُمَّهَاتُهُمْ شَتَّى، [۴] وَدِينُهُمْ وَاحِدٌ، وَلَيْسَ بَيْنَنَا نَبِيٌّ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] په دنيا او په آخرت كې (يا آغاز او انجام كي) حضرت عيسىٰ عليه السلام ته د ټولو نه زيات نزدې او تعلق دارزه يم [۳] او ټول انبياء خپلو كې ميرني ورونه دي چې د هغوئ پلار يو دى او مندې يې جدا جدا دي [۴] د دې ټول اصل دين يو دى او زمونږ يعنى څما اود عيسىٰ په منځ كې هيڅ

---

[1] ) اخرجه مسلم كتاب الفضائل/باب فى فضائل زكرياء عليه السلام (رقم-۱۶۹ - (۲۳۷۹) وابن ماجه فى كتاب التجارات /باب الصناعات (رقم-۲۱۵۰) واحمد فى المسند:۲/۲۹۶

[2] ) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة/باب: لا يظلم المسلم المسلم ولا يسلمه (رقم-۲٤٤۲، ۲٤٤۳) ومسلم فى كتاب الفضائل/باب فضائل عيسى عليه السلام (رقم-۱٤۵ - (۲۳۶۵)

نبي نشته . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَوْلَى النَّاسِ: أَيْ: أَقْرَبُهُمْ: نزدې او تعلقدار. ② عَلَّاتٍ: أَيْ: هُمْ إِخْوَةٌ مِنْ أَبٍ وَاحِدٍ: چه پلار ئې يو وی او مياندې ئې جدا جدا وی يعنی ميرنی رونړه، ③ شَتَّى: جدا جدا، مختلف.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَا أَوْلَى النَّاسِ بِعِيسَى:

**د نبينا اوعيسى عليهما السلام په مينځ کښې د قرب شپږ صورتونه:** يعنی په انسانانو کښې دَ قرب په اعتبارسره زه حضرت عيسىٰ عليه السلام سره دَ ټولو نه زيات نيزدې يم. دا قرب په څو اعتبارو سره دې.

① حضرت عيسىٰ عليه السلام په آخره کښې دَ رسول الله ﷺ خليفه وی.

② حضورپاك حضرت عيسىٰ سره دَ زمانې په اعتبار دَټولو نه زيات نيزدې دې دَ دواړو په مينځ کښې څوك نبی نشته دې اوصرف دَ شپږو سوو کالو فاصله ده.

③ بعضې رواياتو کښې راغلی دی چه په جنت کښې به دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام والده حضرت مريم عليها السلام دَ حضورپاك په زوجيت کښې راځی. بهرحال دا قرب په دنياکښې هم دې اوپه آخرت کښې به هم وی.

④ حضرت عيسىٰ عليه السلام دَ حضورپاك دَبعثت خصوصی بشارت ورکړې دې.

⑤ دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام دين دَ رسول الله ﷺ دين سره متصل دې.

⑥ حضرت عيسىٰ عليه السلام کله وفات شی نودَ حضورپاك په اړخ کښې به خښيږی.

**قوله:** الْأَنْبِيَاءُ أُخْوَةٌ مِنْ عَلَّاتٍ، وَأُمَّهَاتُهُمْ شَتَّى:

**د پيغمبرانود علاتی رشتې وضاحت:** يعنی ټول انبياء کرام په خپل مينځ کښې ميرنی رونړه دی. مئيندې جدا جدا دی اوپلاردَ ټولو يودې. داکلام په تشبيه باندې محمول دې لهذا دَ پلار نه مراد دَدې ټولو انبياء کرامو دين او توحيد دې په کوم چه ټول متفق اومتحد راغلی دی. "ودينهم واحد" کښې هم دا حقيقت واضح کړې شوې دې. اودَ مئيندونه مراد دَ انبياء کرامو جدا جدا شريعتونه دی چه په هره زمانه کښې جدا دی.

**[۵۷۲۲] د حضرت عيسىٰ عليه السلام فضيلت**

۵۷۲۲-(١)[٢٥] ① وَعَنْهُ، قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «كُلُّ بَنِي آدَمَ يَطْعَنُ الشَّيْطَانُ فِي جَنْبَيْهِ بِإِصْبَعَيْهِ حِينَ يُولَدُ ③ غَيْرَ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَهَبَ يَطْعَنُ فَطَعَنَ فِي الْحِجَابِ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[1] اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب صفة إبليس وجنوده (رقم-۳۲۸۶) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب فضائل عيسى عليه السلام (رقم-۱۴۷ - (۲۳۶۶)

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] کله چې يو انسان پيدا کېږي نو شيطان د هغه دواړو تشو کې په ګوتو سره نوکاره ورکوي [۳] ليکن عيسى عليه السلام دي نه محفوظ پاتې شوي دي هغه د هغه تشي کې هم نوکاره ورکول وغوښتل خو هغه صرف پردي ته نوکاره ورکړه. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَطْعَنُ: أي يَمَسُّهُ وَيُصِيبُهُ: نوکاره لګوي، څکوندي ئې، ② فِي جَنْبَيْهِ: دواړه طرفونه د ماشوم، يعنى تشي.

**تسهيلات:**

**قوله:** كُلُّ بَنِي آدَمَ يَطْعَنُ الشَّيْطَانُ فِي جَنْبَيْهِ بِأُصْبُعَيْهِ حِينَ يُولَدُ:

**دپيدائش په وخت د شيطان نوكاره لګول:** دې نه مراد دَ آدم عليه السلام اولاد دي که نران وي او که ښځې. چونکه دَ شيطان انسان سره دَ زړه عداوت دې کمافي القرآن: ﴿إِنَّ الشَّيْطَٰنَ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ﴾ په دې وجه شيطان دَ ماشوم دَ پيدا کيدو په وخت هم انسان پسې لګی. په دې وجه ماشوم دَ پيدا کيدو په وخت دَ شيطان په وهلو سره فوري ژاړي.

**قوله:** غَيْرَ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَهَبَ يَطْعَنُ فَطَعَنَ فِي الْحِجَابِ:

**دعيسى عليه السلام دَ شيطان دَ طعن څخه حفاظت:** په حديث الباب کښې ذکر شوی "حجاب" نه مراد هغه جهلئی ده په کومه کښې چه ماشوم دَ پيدا کيدو په وخت رانغښتې وی. کوم وخت ئې چه دَ حضرت عيسى عليه السلام په تشی باندې نوکاره لګول غوښتل نو دَ هغه ګوتې حضرت عيسى عليه السلام ته اونه رسيدلې او په هغه جهلئی کښې اونختلې. دغه شان حضرت عيسى عليه السلام دَ شيطان دَ تکليف نه محفوظ پاتې شو. دَ دغه شان نوکارې نه ټول انبياء کرام محفوظ دی.

### [٥٧٢٤] دباکماله ښځوذکر

٥٧٢٣ - ()[٣١] [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «كَمَلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيرٌ، [۳] وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ، وَآسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ، [۴] وَفَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيدِ عَلَى سَائِرِ الطَّعَامِ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوموسى رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] په سړو کې خو ډير باکماله پيدا شوه لکه انبياء خلفاء علماء او اولياء الله

---

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله تعالى {وضرب الله مثلًا للذين آمنوا امراة فرعون} [التحريم: ١١]- إلى قوله - {وكانت من القانتين} [التحريم: ١٢] (رقم-٣٤١١) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فضائل خديجة أم المؤمنين رضى الله تعالى عنها (رقم-٧٠ - (٢٤٣١) والترمذى فى كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل الثريد (رقم-١٨٣٤) وابن ماجه فى كتاب الأطعمة/باب فضل الثريد. على الطعام (رقم-٣٢٨٠) واحمد فى المسند: ٣٩٤/٤

[۳] لیکن په ښځو کې يو څوته باکمال کیدل نصیب شوه او هغه بي بي مریم بنت عمران وه بي بي آسیه زوجه دفرعون ده [۴] او ټولو ښځو باندې عائشې رضي الله عنها ته هغه فضیلت حاصل دی څرنګه چې نورو طعامونو باندې ثرید وره شوی روټۍ ته (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① کَمَلَ: أَيْ: صَارَ كَامِلًا: کامل شو یعنی مرتبې دکمال ته اورسیدل. ② الثَّرِيدُ: په خوروا کښې ماته کړې روټۍ ته ثرید وائي.

> [۱] وَذَكَرَ حَدِيثَ أَنَسٍ: "يَا خَيْرَ الْبَرِيَّةِ". وَحَدِيثَ أَبِي هُرَيْرَةَ: "أَيُّ النَّاسِ أَكْرَمُ" وَحَدِيثَ ابْنِ عُمَرَ: "الْكَرِيمُ ابْنُ الْكَرِيمِ". [۲] فِي (بَابِ الْمُفَاخَرَةِ وَالْعَصَبِيَّةِ).

**ترجمه:** [۱] او د حضرت انس رضي الله عنه روایت یا خیر البریه الخ اود حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت ای الناس اکرم الخ او د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما روایت: الکریم ابن الکریم الخ [۲] په باب المفاخرة والعصبیه کې نقل شوي دي.

**حل اللغات:-** ③ خَيْرَ الْبَرِيَّةِ: د اوچې په مخلوق کښې دټولو نه غوره (دې نه مراد ابراهیم علیه السلام دې. ④ الْكَرِيمُ ابْنُ الْكَرِيمِ: ددې نه مراد یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم علیهم السلام دی.

**تسهیلات.**

**قوله:** وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ وَآسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ:

**اشکال:** په حصول کمال کښې حضرت مریم علیها السلام او حضرت آسیه رضي الله عنها ته اول درجه ورکړې شوې ده نو حضرت فاطمه الزهراء رضي الله عنها حضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت خدیجه رضي الله عنها هغه اوچت مقام چرته لاړو؟

**داشکال جواب:** دلته دَ امم سابقه دَ ښځودَ تکمیل کمالات ذکر دي. دَ امت محمدیه دَ ښځودَ شان بیان په ابواب المناقب کښې راتلونکې دي هلته ان شاء الله په تفصیل سره خبره کیږی لږ شان انتظار اوکړئ

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۷۲۵] دالله جل جلاله په باره کې يوسوال

> ۵۷۲۵-(¹)[۲۸] [۱] «عَنْ أَبِي رَزِينٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]: قُلْتُ: يَارَسُولَ اللَّهِ أَيْنَ كَانَ رَبُّنَا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ خَلْقَهُ؟ [۳] قَالَ: "كَانَ فِي عَمَاءٍ، مَا تَحْتَهُ هَوَاءٌ، وَمَا فَوْقَهُ هَوَاءٌ، [۴] وَخَلَقَ عَرْشَهُ عَلَى الْمَاءِ» ". [۵] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: قَالَ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ: الْعَمَاءُ أَيْ: لَيْسَ مَعَهُ شَيْءٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابورزین رضي الله عنه بیان دی [۲] ما عرض وکړو یارسول الله! زمونږ پروردګار د مخلوقاتو پیدا کولو نه مخکې کوم ځاي وو [۳] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل عماء کې

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة هود (رقم-۳۱۰۹) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فی ذکر الخوارج (رقم-۱۷۲)

وو نه د هغه نه لاندي هوا وه او نه د هغه برسيره [۴]هغه خپل عرش اوبو باندې پيدا كې [۵]دا روايت امام ترمذي نقل كړى دى او يزيد ابن هارون وضاحت كړې دى چې عماء نه مراد دادى چې هغه سره هيڅ شى نه وو.

**حل اللغات:-** ① **عَمَاءٍ**: اوريځ ته وائى خو دلته ترې مراد عدم دې يعنى صرف الله تعالى وو بل هيڅ نه وو.

**تسهيلات: قوله: كَانَ فِي عَمَاءٍ، مَا تَحْتَهُ هَوَاءٌ، وَمَا فَوْقَهُ هَوَاءٌ،**

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې څلور اقوال:**

① دعماء مفهوم دلته عدم او ليس معه شئ دې يعنى الله تعالى وو او هغه سره نور هيڅ څيز نه وو. مطلب دا چه الله تعالى په خپل ذات محضه كښې وو د هغه د صفاتو ظهور تر دغه وخته نه وو شوي لكه چه يوه پټه خزانه وه.

② حضرات صوفيه دعمآء مفهوم داسې بيان كړې دې. "العمآء هى الحضرة الاحدية" يعنى د عماء نه مراد د الله تعالى واحد لاشريك ذات دې.

③ په يوه نسخه او يو روايت كښې عمّى قصرسره دې كوم چه د پټوالى په معنى كښې دې د كوم مطلب چه دادې چه د الله تعالى ذات چرته وو ترهغه ځائى پورې نه د بنيادم نه د چا عقل رسيدلو اونه د يودانا سوچ هلته رسيدلې شو.

④ علامه ازهرى فرمائى چه مونږ په دې ظاهرى الفاظو باندې ايمان راوړو اودې كيفيت اودې بيخ ته د رسيدو كوشش نه كوو لكه چه دا الفاظ د متشابهات د قبيل نه دى.

**قوله: مَا تَحْتَهُ هَوَاءٌ:**

**دمذكوره جملې مفهوم:** په دې جمله كښې مانافيه ده يعنى هم په دې عمآء كښې نه لاندې هوا وه او نه پورته هوا وه. دې جمله سره داخودل مقصود دى چه اوريځ چرته وى هلته هوا وى كله چه ښكته پورته د هوا نفى اوكړې شوه نودا اوخودلې شو چه د عمآء نه مراد اوريځ نه ده بلكه دا د ليس معه شئ په معنى كښې دې. دې دپاره چه د الله تعالى د پاره جهت ثابت نه وى په كوم سره چه حدوث لازم راځى.

**قوله: عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ:**

**په اوبو باندې د عرش كيدو مطلب:** ددې مطلب دانه دې چه د الله تعالى عرش د اوبو د پاسه كيخودې شوې وو بلكه مطلب دادې چه لاندې اوبه وې او پورته په فضاء كښې عرش وو نور هيڅ هم نه وو.

## [۵۷۲۶] دآسمانونو ذکر

۵۷۲۶-() [۲۸] [۱] «وَعَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. [۲] أَنَّهُ كَانَ جَالِسًا فِي الْبَطْحَاءِ فِي عِصَابَةٍ وَرَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَالِسٌ فِيهِمْ، [۳] فَمَرَّتْ سَحَابَةٌ، فَنَظَرُوا إِلَيْهَا، [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا تُسَمُّونَ هَذِهِ؟ ": [۵] قَالُوا: السَّحَابَ. [۶] قَالَ: " وَالْمُزْنَ؟ " قَالُوا: وَالْمُزْنَ. [۷] قَالَ: " وَالْعَنَانَ ". قَالُوا وَالْعَنَانَ. [۸] قَالَ: " هَلْ تَدْرُونَ مَا بُعْدُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ؟ ". [۹] قَالُوا: لَا نَدْرِي

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ ابن عبد المطلب وايي [۲] هغه يوه ورځ بطحائي مکه کې يو ځاي محصب کې د خلقو يو جماعت سره ناست وو او رسول الله ﷺ هم په هغوئ کې تشريف فرماوو [۳] اچانک د وريځي يوه ټکړه تيره شوه خلقو هغه طرف ته کتل [۴] رسول الله ﷺ هغوئ نه پوښتنه وکړه تاسو دي وريځ ته څه وايئ [۵] هغوئ جواب ورکړو چې سحاب [۶] حضور ﷺ ورته وفرمايل او دي ته مزن هم وايي هغوئ اوويل چې هو مزن هم ورته وايو [۷] بيا حضور ﷺ وفرمايل او دي ته عنان هم وايي دوي اوويل چې عنان هم ورته وايو [۸] دي نه وروسته حضور ﷺ وفرمايل آيا تاسو خلقو ته معلومه ده چې: آسمان او زمکي په منځ کې څومره فاصله ده او هغه څومره اوږده ده [۹] هغوئ جواب ورکړو مونږ ته معلومه نه ده

**حل اللغات:** - ① عِصَابَةٍ: أَيْ جَمَاعَةٍ: جماعت، ډله، ② سَحَابَةٌ: د وريځې ټکړه. ③ الْمُزْنَ: هُوَ الْغَيْمُ: د وريځې دويم نوم دي. يا سپينې وريځ ته مُزن وائي. ④ الْعَنَانَ: په وزن د سَحَاب باندې د عَنَّ نه ماخوذ دي أَيْ ظَهَرَ: ښکاره. دلته د عنان نه مراد وريځ ده يعني وريځ ته عنان هم وائي

[۱] قَالَ: " إِنَّ بُعْدَ مَا بَيْنَهُمَا إِمَّا وَاحِدَةٌ وَإِمَّا اثْنَتَانِ أَوْ ثَلَاثٌ وَسَبْعُونَ سَنَةً، [۲] وَالسَّمَاءُ الَّتِي فَوْقَهَا كَذَلِكَ " حَتَّى عَدَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ. [۳] ثُمَّ فَوْقَ السَّمَاءِ السَّابِعَةِ بَحْرٌ، بَيْنَ أَعْلَاهُ وَأَسْفَلِهِ كَمَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلَى سَمَاءٍ، [۴] ثُمَّ فَوْقَ ذَلِكَ ثَمَانِيَةُ أَوْعَالٍ، [۵] بَيْنَ أَظْلَافِهِنَّ وَرُكَبِهِنَّ مِثْلُ مَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلَى سَمَاءٍ، [۶] ثُمَّ عَلَى ظُهُورِهِنَّ " الْعَرْشُ "، [۷] بَيْنَ أَسْفَلِهِ وَأَعْلَاهُ مَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلَى سَمَاءٍ، [۸] ثُمَّ اللَّهُ فَوْقَ ذَلِكَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ ورته وفرمايل د زمکي او آسمان په منځ کې فاصله يا خو يو اويا کاله يا دوه اويا کاله يا دريو اويا کاله د مسافت په قدر ده [۲] او دي مخکني آسمان برسيره دويم آسمان دی او د دې دوارو په منځ کې هم دومره فاصله ده ان تردی چې اوه آسمانونه يې وشميرل [۳] بيا د اووم آسمان برسيره سمندر دی چې د دواړو ترمنځ يعنې پورته او ښکته لکه د دوه اسمانونو ترمنځ فاصله ده [۴] او بيا د هغه برسيره اوعال دي [۵] چې د هغوئ پښو او د کوناتو ترمنځ هم د دو آسمانونو ترمنځ فاصلي په اندازه فاصله ده

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب السنة/باب فی الجهمية (رقم-۴۷۲۳) والترمذی فی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ومن سورة الحاقة (رقم-۳۳۲۰) وابن ماجه فی کتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فيما أنكرت الجهمية (رقم-۱۹۳) واحمد فی المسند: ۲۰۶/۱

[۶]د هغــوی برسـيره د الله ﷻ عـرش دی [۷]چـې د هغـه د پـورتني اولانـدينې تـرمنځ د دو آسمانونو تـرمنځ دفاصلې پـه انـدازه فاصـله ده [۸]او بيا تر هغـه پـورتـه د الله ﷻ ذات دي. دا حديث ترمذی او ابوداود روايت کړيدی.

**حل اللغات:**-⑤أَوْعَالٍ: دا د وَعْل جمع ده، وَهُوَالْعَنْزُالْوَحْشِيُّ: وحشي يعنی غرسنی چيلۍ تـه وائی. ⑥أَظْلَافِهِنَّ: د ظِلف جمع ده، د چيلو يا د غواګانو د نوکانو لاندې غوښې تـه وائی. ⑦وُرْكِهِنَّ: أَيْ مَافَوْقَ الْحَاذِهِنَّ: د پتونانو نه پورته حصه يعنی کوناتی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّهُ كَانَ جَالِسًا فِي الْبَطْحَاءِ فِي عِصَابَةٍ:

**دکافرانو په عام مجلس کښې د کيناستو جواز:** دغه وخت حضرت عباس رضی الله عنه مسلمان شوې نه وو. کوم وخت چه حضور پاك دَ سماوی نظام عجائبات بيانول. چونکه دامجمع هم پـه عمومی توګـه بانـدې پـه کـافرانو بانـدې مـشتمل وه نوحـضرت عبـاس رضی الله عنه دَهغـه وخـت اوريدلې شوې حديث روستو بيان کړو.

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① مَا تُسَمُّونَ هَذِهِ؟": قَالُوا: السَّحَابَ. قَالَ: "وَالْمُزْنَ؟" قَالُوا: وَالْمُزْنَ: يعنی سحاب تـه تاسو مزن او عنان هم وايئی؟ تولو وئيل او. "امأواحدةاو" داشك دَ راوی دې

② إِنَّ بُعْدَ مَا بَيْنَهُمَا إِمَّا وَاحِدَةٌ وَإِمَّا اثْنَتَانِ أَوْثَلَاثٌ وَسَبْعُونَ سَنَةً:

اودَ اويـا ذکردَتکثيردَپـاره دې څـه تعيـين نـه دې ځکـه چـه دا ډيرزيـات احاديـث دی دا تصريح موجود ده چه دَ هرو دوو آسمانونو په مينځ کښې دَ پنځو سوو کـالو مسافت دې. لهذا دلته دا عدد په تکثير باندې محمول دې نوځه تعارض نشته دې.

③ ثُمَّ فَوْقَ السَّمَاءِ السَّابِعَةِ بَحْرٌ: يو سمندردې دکوم دَ پاسه او لاندې مسافت هم دغـه شان دَ پنځو سوو کالودې.

**قوله:** ثُمَّ فَوْقَ ذَلِكَ ثَمَانِيَةُ أَوْعَالٍ:

**د لفظ اوعال معنی او تحقيق:** أَوْعَالٍ دَ وعـل جمـع ده غريزې چيلـی تـه وعـل وائـی دَدې مؤنث ته اروية وائی دکوم ذکر چه په نورو روايتونو کښې راغلې دې. دې ځناور تـه پـه پښتو کښې "غرخه" وائی. دَ ډير مضبوط بدن وی دا سې ښکاری لکه چه په خپو کښې مقناطيس لګيدلې وی چه غرونو سره انخلی اوداسې مشکل ځايونو کښې ګرځی چرتـه چه مرغئی تلې شی. دَ غوا نه لږ شان وړوکې وی دَ چيلی نـه لوئی وی. پـه سرباندې اوږده اوږده دوه ښکرې وی په منډه کښې دَ هوا په شان وی. دلته په حديث کښې بعينـه هم دغـه ځناور مراد نه دې بلکه فرښتې مراد دی چه دَ دغه حيوان په شکل کښې وی.

**قوله:** ثُمَّ اللّٰهُ فَوْقَ ذٰلِكَ:

**په متشابه الفاظو کښې د سلف صالحينو عقيده:** دَ نصوص قرآنيه او حديثيه نه واضح اشارې ملاو يږي بلکه تصريحات دی چه الله تعالی په آسمانونو باندې دې دلته هم دغه تفصيل دې مګر دا متشابه الفاظ دی. دکوم باره کښې چه امام مالك رحمه الله فرمائيلی "الاستواء معلوم والكيفية مجهولة والسؤال عنه بدعة" دَ سلف صالحين عقيده ده چه "ما يليق بشانه" کوم چه دَ الله تعالی دَ شان مناسب دی زمونږ په هغې باندې ايمان دې. بهرحال په دې حديث کښې دَ الله تعالی دَعظيم شان بيان کړې شوې دې.

### [۵۷۲۷] د عرش الهي ذکر

۵۷۲۷ - ( )[۲۹] [۱] «وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]: أَتَى رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَعْرَابِيٌّ، [۳] فَقَالَ: جُهِدَتِ الْأَنْفُسُ، وَجَاعَ الْعِيَالُ، وَنُهِكَتِ الْأَمْوَالُ، وَهَلَكَتِ الْأَنْعَامُ، [۴] فَاسْتَسْقِ اللّٰهَ لَنَا، [۵] فَإِنَّا نَسْتَشْفِعُ بِكَ عَلَى اللّٰهِ، وَنَسْتَشْفِعُ بِاللّٰهِ عَلَيْكَ. [۶] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "سُبْحَانَ اللّٰهِ، سُبْحَانَ اللّٰهِ". [۷] فَمَا زَالَ يُسَبِّحُ حَتَّى عُرِفَ ذٰلِكَ فِي وُجُوهِ الصَّحَابَةِ،

**ترجمه:** [۱] او د جبير ابن مطعم رضي الله عنه بيان دی [۲] يوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کې يو باندچي (کليوال) راغې [۳] او هغه اوويل يا رسول الله په مونږ د وچ کالی په وجه انساني جانونه د قحط ښکار کېږي بال بچ او مال وجائيداد مو بربادېږي او څاروي مو هلاکيږي [۴] نو تاسو د الله جل جلاله نه زمونږ د پاره باران وغواړئ [۵] مونږ د الله جل جلاله په حضور کې تاسو وسيله جوړوو او الله جل جلاله تاسو ته شفيع ګرځوو [۶] حضور ﷺ په دې اوريدو سره وفرمايل د الله جل جلاله ذات پاك او منزه دی د الله جل جلاله ذات پاك او منزه دی [۷] حضور ﷺ بار بار د تسبيح دا الفاظ فرمايل ددې پورې چې د حضور ﷺ د صحابه و رضي الله عنهم د مخونو رنګ بدل شو

**حل اللغات:**- ① جُهِدَتْ: أي الْمَشَقَّةُ: تکليف او مشقت ته وائی، دلته ترې مراد د وَس او طاقت نه زيات بوج اچول دی. ② الْأَنْفُسُ: انسانی جانونه يعنی انسانان (يعنی انسانی ځانونه دَ اوچ کالئ دَ وجې هلاکيږی). ③ وَجَاعَ الْعِيَالُ: بال بچ مو اوږی تږی شو. ④ نُهِكَتْ: أيْ نَقَصَتْ: کميږی، يعنی خرابيږی. ⑤ الْأَمْوَالُ: هغه مالونه کوم چه باران سره زياتيږی (هغه د باران نه کيدو په وجه بربادېږی). ⑥ الْأَنْعَامُ: جمع د غنم ده، ګډې، چيلئ وغيره. ⑦ نَسْتَشْفِعُ: أيْ: نَطْلُبُ الشَّفَاعَةَ: سفارش غواړو، وسيله پيش کوو.

[۱] ثُمَّ قَالَ: "وَيْحَكَ إِنَّهُ لَا يُسْتَشْفَعُ بِاللّٰهِ عَلَى أَحَدٍ، شَأْنُ اللّٰهِ أَعْظَمُ مِنْ ذٰلِكَ، [۲] وَيْحَكَ أَتَدْرِي مَا اللّٰهُ؟ [۳] إِنَّ عَرْشَهُ عَلَى سَمَاوَاتِهِ لَهٰكَذَا" [۴] وَقَالَ بِأَصَابِعِهِ مِثْلَ الْقُبَّةِ عَلَيْهِ" [۵] وَإِنَّهُ لَيَئِطُّ بِهِ أَطِيطَ الرَّحْلِ بِالرَّاكِبِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب السنة/باب فی الجهمية (رقم-۴۷۲۶) والنسائی فی کتاب الاستسقاء/باب رفع الإمام يديه عند مسألة إمساک المطر (رقم-۱۵۲۸) واحمد فی المسند:۲۵۶/۳

**ترجمه:** ۱ بیا حضور ﷺ وفرمایل اې سړیه! په تا افسوس دی په حقیقت کې الله ﷻ چاته شفیع نشي مقرر کیدی او نه هغه وسیله جوړیدی شی ۲ په تا آفسوس تاته معلومه نه ده چې د الله ﷻ عظمت او جلالت څه دی ۳ حقیقت دادی چې د هغه عرش د هغه آسمانونه داسې راګیر کړي دي ۴ په دي ویلو سره حضور ﷺ د خپلو ګوتو څخه یوه قبه جوړه کړه یعنی حضور ﷺ لاس د ګنبد صورت کې جوړولو سره و خودی چې څرنګه دي ګنبد د لاس تلی ګیر کړی دی دغه شان د الله ﷻ عرش زمکه خو زمکه ټول آسمانونو پورې خپل لاندي ګیر کړی دی ۵ او هغه عرش دومره وسیع او عریض کیدو باوجود داسې چرچر کوي څرنګه چې د اوبن پالان کته یا د آس زین د دروند سوار لاندي چرچر کوي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** -۸ وَيْحَكَ: بِمَعْنَى وَيْلَكَ: ویح او ویل دواړه په معنی د تباهئ راځی خو په ویح کښې معنی د شفقت ده د زلت او رسوایئ نه د بچ کیدو، او ویل خیرې دی په معنی دهلاکت. ۹ الْقُبَّةِ: ګنبد (یعنی عرش د ګنبد په شان راګیر کړی دی). ۱۰ لَيَئِطُّ: أَيْ يَرْتَعِدُ مِمَّا يَرْكَبُهُ: ریږی او چرچر کوی دخپل سوریدونکی د جلال او هیبت په وجه. ۱۱ أَطِيطَ الرَّحْلِ: په شان د چرچر کولو د کیجاوې یا د زین (یعنی څنګه چه د سوریدونکی په وجه زین یا کجاوه چغار کوی).

**تسهیلات:**

**قوله:** فَإِنَّا نَسْتَشْفِعُ بِكَ عَلَى اللّٰهِ، وَنَسْتَشْفِعُ بِاللّٰهِ عَلَيْكَ:

**د مذکوره جملې په وئیلود نبی علیه السلام خفګان:** نَسْتَشْفِعُ بِاللّٰهِ عَلَيْكَ: یعنی دَالله تعالی په وړاندې تاسو شفیع مقررکوو چه تاسو داسې اوکړئی. په دې جمله کښې چونکه دَالله تعالی دَ لوئی شان بې ادبی وه په دې وجه حضورپاك خفه شو او باربارئی سبحان الله اوئیلو. اودَ الله تعالی تقدس ئی بیان کړو. بیادَدې څخه روسته رسول الله ﷺ دَ الله تعالی دَ شان ډیرزیات عظمت بیان کړو.

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

۲ مَا اللّٰهُ: یعنی پیژنئی هم چه دَ الله تعالی عظمت اوشان څومره لوئی دې؟

۳ إِنَّ عَرْشَهُ: یعنی دَالله تعالی عرش په ټولو آسمانونوباندې داسې احاطه کوونکې دې لکه څنګه چه یو ګنبد په څه څیزباندې محیط یعنی راګیر کړې وی.

۴ هٰكَذَا: رسول الله ﷺ دَ ګوتونه دَدغه ګنبد اودَ هغه احاطه مشاهداتی صورت داسې بیان کړو مثلاً چه دَ یولاس تلې لاندې وی اودَ بل لاس ګوتې دَ ګنبدپه شکل کښې دَ بره نه په دې باندې محیط وی اوپوره تلې ئی راګیر کړې وی.

**قوله:** وَإِنَّهُ لَيَئِطُّ بِهِ أَطِيطَ الرَّحْلِ بِالرَّاكِبِ:

**دعرش دروندوالي:** دا چراري تـه وائـي نـوې کجاوه يـا نـوې کټ او پالنګ باندې کيناستو سره داسې قسم آواز هغه وخت راوځي کله چه د ناست سړي وزن ډير زيات وي. دلته حضورپاك اول د عرش وسعت او عظمت بيان کړو اودې نه پس ئې د هغې عجز تنګي او کمزوري بيان کړه چه د الله تعالى د عظمت په وړاندې د دې نه د چراري آواز راوځي دا ټول متشابهات دي. د سلف صالحين عقيده داده "مايليق بشأنه" يعنى کوم چه د الله تعالى د شان سره مناسب وي زمونږ په هغې باندې ايمان دې.

**[۵۷۲۸] هغه فريښتې چه عرش الهي يې پورته کړې دی**

۵۷۲۸-(١) [٣٠] ① وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«أُذِنَ لِي أَنْ أُحَدِّثَ عَنْ مَلَكٍ مِنْ مَلَائِكَةِ اللّٰهِ مِنْ حَمَلَةِ الْعَرْشِ، ③ أَنَّ مَا بَيْنَ شَحْمَةِ أُذُنِهِ إِلَى عَاتِقِهِ مَسِيرَةُ سَبْعِمِائَةِ عَامٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ابن عبد الله رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② ماته د الله جل جلاله د طرف نه دا اجازت حاصل شوی ده چې زه د الله جل جلاله د فرشتو نه د يوې فرشتي حال بيان کړم کومو چې عرش پورته کړې دی ③ د هغه فرشتی د غوږ د نرمۍ نه د هغه د اوږې پورې درمياني فاصله د اووه سوه کاله د مسافت برابر ده . ابوداود

**حل اللغات:-** ① حَمَلَةِ الْعَرْشِ: عرش پورته کونکی فرشتې. ② شَحْمَةِ: د غوږونو رازوړندې نرمې غوښې ته وائي يعنى نرم ګوش، د غوږ پوځکۍ.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث مضمون د ترجمې څخه حل کيږي.

**[۵۷۲۹] ديدار الهي او حضرت جبرائيل عليه السلام**

۵۷۲۹-(٢) [٣١] ① «وَعَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ② أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لِجِبْرِيلَ: ③ "هَلْ رَأَيْتَ رَبَّكَ، ④ فَانْتَفَضَ جِبْرِيلُ وَقَالَ: ⑤ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ بَيْنِي وَبَيْنَهُ سَبْعِينَ حِجَابًا مِنْ نُورٍ، ⑥ لَوْ دَنَوْتُ مِنْ بَعْضِهَا لَاحْتَرَقْتُ» ". هَكَذَا فِي الْمَصَابِيحِ.

**ترجمه:** ① او حضرت زراره ابن اوفى نه روايت دی ② چې رسول الله ﷺ د حضرت جبرائيل عليه السلام نه پوښتنه وکړه ③ آيا تا خپل پروردګار ليدلی دی؟ ④ حضرت جبرائيل په دې اوريدو سره په رپيدو شو بيا يې اوويل ⑤ اې محمد! ځما او د الله جل جلاله په منځ کې د نور اويا پردې دي ⑥ که زه هغه پردو نه يوې پردې ته نزدې يوه ګوته برابر هم ور مخکې شم نو اوبه سوزم

[1] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب السنة/باب فى الجهمية (رقم-۴۷۲۷)
[2] مصابيح السنة ۴/۳۰ حديث رقم: ۴۴۵۷

په مصابيح کې روايت دغه شان دی.

**حل اللغات:-** ① فَانْتَفَضَ: أَيْ: ارْتَعَدَ: ډېرسخت په رپيدو شو. ② حِجَابًا: پردې «د نُور پردې». ③ دَنَوْتُ: أَيْ: قَرُبْتُ: ورنزدې شم. ④ لَاحْتَرَقْتُ: اوبه سوزم.

۵۷۳۰-()[۱] وَرَوَاهُ أَبُونُعَيْمٍ فِي "الْحِلْيَةِ" عَنْ أَنَسٍ [۲] إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: "فَانْتَفَضَ جِبْرِيلُ".

**ترجمه:** [۱] البته ابونعيم خپل کتاب حليه کې دا روايت دحضرت انس رضي الله عنه نه نقل کړی دی [۲] خود ابونعيم نقل کرده روايت کې فانتفض د حضرت جبرائيل عليه السلام د رپيدو الفاظ نشته.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَا مُحَمَّدُ إِنَّ بَيْنِي وَبَيْنَهُ سَبْعِينَ حِجَابًا مِنْ نُورٍ:

**د سبعين عدد مقصد:** داعدد دَ تکثيرخودلودَپاره دې دَتحديداوتعين دَپاره نه دې. دَ عدد انتخاب هم دَ شارع عليه السلام په خوښه دې. په يوروايت کښې دَ اوياؤزرو حجاباتوذکردې.

**د حجاب څخه مراد:** داخبره يادلرئی چه داپردې دَ نوردی چه دکتونکودَپاره حجاب اومانع دی اودَ الله تعالی دَپاره حجاب اومانع نه دی. ځکه چه محجوب مغلوب وی اوالله تعالی به مغلوب نه محجوب بلکه الله تعالی غالب دې نو حاجب دې.

**[۵۷۳۱] د حضرت اسرافيل عليه السلام ذکر**

۵۷۳۱-()[۲۲][۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ- صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]«إِنَّ اللهَ خَلَقَ إِسْرَافِيلَ، مُنْذُ يَوْمَ خَلَقَهُ [۳] صَافًّا قَدَمَيْهِ لَا يَرْفَعُ بَصَرَهُ، [۴] بَيْنَهُ وَبَيْنَ الرَّبِّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى سَبْعُونَ نُورًا، [۵] مَا فِيهَا مِنْ نُورٍ يَدْنُو إِلَّا احْتَرَقَ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چی رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] الله تعالى چې کوم وخت حضرت اسرافيل عليه السلام پيدا کی [۳] هغه د هغه وخت نه خپلي دواړي پښي صف بسته کړي بالکل تيار ولاړ دی نظر نه پورته کوي [۴] د هغه او بزرګ وبرتر پروردګار په منځ کې د نور اويا پردې حائلي دي [۵] که اسرافيل عليه السلام بفرض محال د هغه نور د پردو څخه يوې پردې ته نزدې شي نو وبه سوزي دا روايت ترمذي رحمه الله نقل کړی دی او ويلي يي دي چې داحديث صحيح دی .

**حل اللغات:-** ① صَافًّا قَدَمَيْهِ: أَيْ وَاقِفًا: ولاړ دې په قدمونو «يعنی حکم منلو ته تابعدار ولاړ دې»، ② يَدْنُو: أَيْ: يَقْرُبُ: و رنزدې شی «جبرئيل عليه السلام».

**تسهيلات: قوله:** خَلَقَ إِسْرَافِيلَ........صَافًّا قَدَمَيْهِ لَا يَرْفَعُ بَصَرَهُ:

**داسرافيل عليه السلام شپيلئ پوک وهلو دپاره تيار اوسيدل:** يعنی دَ کله نه چه حضرت

[۱] ) ابو نعيم فی الحلية

[۲] ) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۱۵۷

اسرافیل علیه‌السلام پیدا شوې دي نو دَهغه وخت نه دواړه قدمونه ترلې تیار ولاړ دي اخوا دیخوا نه ګوري بلکه په شپیلئ باندې نظر ورخښ کړې دي چه کله به دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ شپیلئ دَ پوکوهلو حکم ملاویږي اوهغه په دې باندې عمل اوکړي.

**د حدیث نه درې مستنبط شوې مسئلې:**

① دَدې حدیث نه یوه خبره دا معلومه شوه چه فرښتو کښې خومره ډیر اطاعت دې.

② دویمه خبره دامعلومه شوه چه دَ قیامت دَ قائم کیدو لمحه دَ الله تعالی نه علاوه دَ ټول مخلوق نه خومره پټه ساتلې شوې ده.

③ دریمه خبره دامعلومه شوه چه دَالله تعالی انوارات اوتجلیات قاهره ته نیزدې، مقرب فرښتې هم نه شي تلې.

**[۵۷۳۲]دانسان فضیلت**

۵۷۳۲—()[۳۳] [۱]وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «خَلَقَ اللَّهُ آدَمَ وَذُرِّيَّتَهُ، [۳]قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ: يَا رَبِّ، [۴]خَلَقْتَهُمْ يَأْكُلُونَ وَيَشْرَبُونَ وَيَنْكِحُونَ وَيَرْكَبُونَ، [۵]فَاجْعَلْ لَهُمُ الدُّنْيَا وَلَنَا الْآخِرَةَ. [٦]قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: لَا أَجْعَلُ مَنْ خَلَقْتُهُ بِيَدَيَّ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِنْ رُوحِي [۷]كَمَنْ قُلْتُ لَهُ: كُنْ فَكَانَ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".[1]

**ترجمه:** [۱] او دحضرت جابر رضي الله عنه نه روایت دی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] هرکله چې الله تعالی آدم او د هغه اولاد پیدا کړل [۳] نو فرښتو عرض وکړو اې ربه! تاخوداسې مخلوق پیدا کی [۴] چې خوري څکي واده کوزده کوي او قسم قسم سورلو باندې سپریږي [۵] نو زمونږ درخواست دی چې د دنیا نعمتونه دې مخلوق ته ورکړه او د آخرت ټول نعمتونه مونږ ته مرحمت کړه [٦] الله تعالی ورته وفرمایل کوم مخلوق چې ما په خپل لاس سره پیدا کی او په هغه کې مې خپل روح واچوی [۷] هغه د هغه مخلوق پشان نه دي کوم ته چې ما کُن اوویل نو هغه پیدا شو دا روایت بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:**- ① بِيَدَيَّ: په خپلو دواړو لاسونو سره، ② نَفَخْتُ: پوک مې وهلو، وامې چولو. ③ كُنْ: موجود شه، ④ فَكَانَ: نوموجود شو.

**تسهیلات:**

**قوله: يَا رَبِّ، خَلَقْتَهُمْ يَأْكُلُونَ وَيَشْرَبُونَ وَيَنْكِحُونَ وَيَرْكَبُونَ:**

**د الله تعالی په دربار کښې دفرشتو غواست:** فرښتو اووئیل چه په دنیا کښې بنیادمانو مزې اوکړې په دې وجه دَهغوی دَپاره دې هم دنیا مختص کړې شي اوزمونږ دَپاره دې آخرت مختص کړې شي دې دَپاره چه مونږ په یوځان جهان کښې دَدې نعمتونونه

[1] ) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۱۷۲

خوندونه واخلو.

**قوله: قَالَ اللهُ لَا أَجْعَلُ مَنْ خَلَقْتُهُ بِيَدَيَّ:**

**په انساني تخليق د الله تعالى خاص كردار:** الله تعالى فرښتو ته په جواب كښې اوفرمائيل چه زه به داسې نه كوم. بنى آدم ما په خپلو لاسونو جوړكړې دې دَده په تخليق كښې ځومرحلې لګيدلى دى لكه چه ډير محنتونه پرې شوى دى اوتاسو خو صرف په لفظ "كن" سره جوړې كړې. لهذا تاسو دواړه برابركيدې نه شئى. دَدې حديث نه دَ بنى آدم لوئى فضيلت ثابتيږى. هم په دې وجه ده ته اشرف المخلوقات وئيلې شوې دې. چونكه فرښتې يومعصوم مخلوق دې دَدوى دَ دوزخ دَ سزا هيڅ خطره نشته دې. دَدوى په مقابله كښې دَ انسانانو نه خو به دوزخ هم ډكول وى. انسان امور تكليفيه په اوامر او نواهى باندې دَعمل كولو ځومره مكلف دې. لهذا العنم بالعزم والخراج بالضمان دَ اصول لاندې دَ انسان مقام دَ فرښتو نه جدا اوځان له دې.

**په فرشتو باندې د انسان فضيلت:** دَ جمهورو مسلك دادې چه عام مسلمان دَعام فرښتونه غوره دې اوخاص مسلمان دَ خاص فرښتونه غوره دې. دَعام مسلمانانو نه دكامل درجې مسلمان مراددې لكه خلفاء راشدين صحابه كرام علماء او اولياء دى. هركس اوناكس دَ فرښتونه غوره نه دې. اودَ خاص مسلمانانو نه انبياء كرام مراددى اودَ خاص فرښتو نه جبرائيل ميكائيل اسرافيل اوعزرائيل وغيره مراد دى.

**نوټ:** دزيربحث حديث د مضمون نور تفصيل په راروان حديث نمبر(۵۷۳۳) كښې راروان دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۷۳۳] فريښتو باندې د انسان فضيلت**

۵۷۳۳-()[۳۳] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«الْمُؤْمِنُ أَكْرَمُ عَلَى اللّٰهِ مِنْ بَعْضِ مَلَائِكَتِهِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] د كاملي درجي مؤمن يعنى انبياء او اولياء د الله ﷻ په نزد د هغه د بعضو فرشتو نه افضل او برتر دى. (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① الْمُؤْمِنُ: أَيِ الْكَامِلُ: د مؤمن نه مراد كامل ايمان والا مؤمن مراد دې. ② أَكْرَمُ: زيات عزت والا، افضل.

[1]) اخرجه ابن ما جه فى كتاب الفتن/باب المسلمون فى ذمة الله عز وجل (رقم-۳۹٤۷)

**تسهيلات:**

**قوله: الْمُؤْمِنُ أَكْرَمُ عَلَى اللهِ مِنْ بَعْضِ مَلَائِكَتِهِ:**

**د حديث په مطلب کښې څلور اقوال:** ① دَمؤمن نه دكامل درجې عام مؤمنان مراد دي. اودَ بعضې ملائكو نه عام فرښتې مراددي.

② شيخ محي ﷫ په السنة کښې ﴿ وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْ آدَمَ ﴾ لاندې ليکلی دی چه بهتردادی چه داسې اووئيلې شی چه عام مؤمنين دَعام فرښتونه افضل دی او خاص مؤمنين دَ خاص فرښتونه افضل دی.

③ علامه طيبی ﷫ فرمائی چه دَمؤمنين نه عام مؤمنين مراد دی اودَ فرښتونه هم عام فرښتې مراددی.

④ ملاعلی قاری ﷫ دَدغه ټولو اقوالو دَنقل کولو نه پس خپله فيصله داسې اوروله ده چه "ولايخفىٰ ان المراد بخواص المؤمنين الرسل والانبياء وبخواص الملائكة نحوجبرئيل وميكائيل واسرافيل وبعوام المؤمنين الكمل من الاولياء كالخلفاء وسائر العلماء وبعوام الملائكة سائرهم وهذا التفصيل اولىٰ من اجمال بعضهم"

**[٥٧٢٤] د مخلوقاتو د پيدائش ورځ**

٥٧٢٤-() [د-] ① وَعَنْهُ، قَالَ: أَخَذَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِيَدِي فَقَالَ: ② "«خَلَقَ اللهُ التُّرْبَةَ يَوْمَ السَّبْتِ، ③ وَخَلَقَ فِيهَا الْجِبَالَ يَوْمَ الْأَحَدِ، ④ وَخَلَقَ الشَّجَرَةَ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ، ⑤ وَخَلَقَ الْمَكْرُوهَ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ، ⑥ وَخَلَقَ النُّورَ يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ، ⑦ وَبَثَّ فِيهَا الدَّوَابَّ يَوْمَ الْخَمِيسِ، ⑧ وَخَلَقَ آدَمَ بَعْدَ الْعَصْرِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فِي آخِرِ الْخَلْقِ ⑨ وَآخِرِ سَاعَةٍ مِنَ النَّهَارِ فِيمَا بَيْنَ الْعَصْرِ إِلَى اللَّيْلِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﵁ وايي يوه ورځ حضور ﷺ ځما لاس په نيولو سره راته وفرمايل ② خبر يي چې الله ﷻ ټوله دنيا چې شپږ ورځو کې پيدا کړه نو کوم شی يې په کومه ورځ پيدا کړی دی نو واوره د بعضې څيزونو متعلق درته زه ښايم چې الله ﷻ خاوره زمکه د هفتې په ورځ يعنی د شنبې په ورځ پيدا کړه ③ او په زمکه يې غرونه د اتوار يعنی يکشنبه په ورځ پيدا کړل ④ ونې يې د پير يعنی دوشنبې په ورځ پيدا کړې بدې ⑤ او خراب څيزونه يې د سه شنبې په ورځ پيدا کړل ⑥ رڼا او روښنې يې د چهارشنبې په ورځ پيدا کړل ⑦ حيوانان يې په زمکه کې د زيارت يعنی په پنجشنبه پيدا کړل ⑧ او آدم يې د جمعې په ورځ دمازيګر نه وروسته پيدا کړی ⑨ او دا آخري پيدائش يې د ورځې بالکل په آخري حصه کې د مازيګر نه وروسته شپې پورې په منځ کې په عمل کې راوستی. (مسلم)

---

[۱] ) اخرجه مسلم فى كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب ابتداء الخلق وخلق آدم عليه السلام (رقم-٢٧ - (٢٧٨٩)

**حل اللغات:-** ① التُّرْبَةَ: أَيْ: التُّرَابَ وَهُوَ الْأَرْضُ: دخاورې نه مراد زمکه ده. ② الْمَكْرُوهَ: أَيْ: جِنْسُهُ: هر بدودارخرابو څیزونو. ③ آخِرَ الْخَلْقِ: آخری پیدائش.

**تسهیلات: قوله:** خَلَقَ اللَّهُ التُّرْبَةَ يَوْمَ السَّبْتِ:

**دمخلوق د پیدائش ورځ:** په دې حدیث کښې په صریح عبارت سره دَتخلیق کائنات تفصیل خودلې شوې دې چه کوم مخلوق په کومه ورځ پیدا شوې؟

**اشکال:** دَ کائنات دَتخلیق شروع دَ اتوار دَ ورځې نه شوې او خاتمه ئې په جمعه باندې شوې. حالانکه په دې حدیث کښې هفته دَ تخلیق رومبې ورځ گرځولې شوې ده؟

**د اشکال جواب:** دَ هفتې نه دَدې هغه آخرى حصه مراد ده چه په اصولی توګه دَ اتوار شپه پریوځی نو په حقیقت کښې دَ کائنات شروع دَ اتوار په ورځ شوې او په جمعه باندې خاتمه شوې.

## [۵۷۳۵] د ځمکې او آسمان ذکر

۵۷۳۵-()[۳۶] ① «وَعَنْهُ، قَالَ: بَيْنَمَا نَبِيُّ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- جَالِسٌ وَأَصْحَابُهُ ② إِذْ أَتَى عَلَيْهِمْ سَحَابٌ، فَقَالَ نَبِيُّ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ③ "هَلْ تَدْرُونَ مَا هَذَا؟". ④ قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. ⑤ قَالَ: "هَذِهِ الْعَنَانُ هَذِهِ رَوَايَا الْأَرْضِ، ⑥ يَسُوقُهَا اللَّهُ إِلَى قَوْمٍ لَا يَشْكُرُونَهُ، وَلَا يَدْعُونَهُ". ⑦ ثُمَّ قَالَ: "هَلْ تَدْرُونَ مَا فَوْقَكُمْ؟" ⑧ قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. ⑨ قَالَ: "فَإِنَّهَا الرَّقِيعُ، سَقْفٌ مَحْفُوظٌ، وَمَوْجٌ مَكْفُوفٌ".[1]

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ او صحابه کرام رضی الله عنهم ناست وه ② چې د وریځې یوه ټکړه تیره شوه ③ حضور ﷺ د وریځې هغه ټکړې ته اشاره کولو سره صحابه رضی الله عنهم نه پوښتنه وکړه پیژنئ چې دا څه شی دی؟ ④ صحابه وُ رضی الله عنهم د خپل عادت مطابق جواب ورکړو الله جل جلاله او د هغه رسول ښه پوهیږي ⑤ حضور ﷺ وفرمایل دا عنان یعنی وریځ ده او دا وریځ د زمکې روایا اوبه کونکي دی ⑥ چې الله جل جلاله یې هغه خلقو طرف ته شړي چې نه یې شکر اداء کوي او نه یې یادوي ⑦ بیا یې وفرمایل پوهیږئ چې ستاسو برسیره کوم آسمان دی هغه څه شی دی ⑧ صحابه وُ رضی الله عنهم جواب ورکړو الله جل جلاله او د هغه رسول ښه پوهیږي ⑨ حضور ﷺ وفرمایل ستاسو برسیره شی رقیع دی چې یو محفوظ چت او نه غورځیدونکی موج دی

**حل اللغات:-** ① الْعَنَانُ: په وزن د سَحَاب باندې د عَنَّ نه ماخوذ دې. أَيْ: ظَهَرَ: ښکاره، دلته د عنان نه مراد وریځ ده یعنی وریځ ته عنان هم وائی. ② رَوَايَا: ددې واحد رَاوِيَةٌ راځی، اوبه راوړونکی یا اوبه راوښکونکی اوښ ته وائی کوم سره چه پټی اوبه کولې شی، دلته د روایا نه مراد باران

[1] ) اخرجه وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۴۷۲۳ والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة الحدید (رقم-۳۲۹۸)وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فیما أنکرت الجهمیة (رقم-۱۹۳) واحمد فی المسند:۱/۲۰۶

ورونکي وريځي دی چه هغې سره لکه د اوبو په شان پټی اوبه کيږی. ③ تَسُوقُهَا: أَيْ: يَجُرُّهَا: شړی دا وريځې، راکاږی دې وريځو لره (الله تعالی). ④ الرَّقِيعُ: ددې جمع أَرْقِعَةٌ راځی، وَهُوَ اسْمٌ لِسَمَاءِ الدُّنْيَا: د دنيا آسمان يعنی کوم چه ښکاری دې ته رقيع وائی، يا ددې نه مراد هر آسمان دې. ⑤ مَوْجٌ: د اوبو چپه ⑥ مَكْفُوفٌ: أَيْ مَمْنُوعٌ مِنَ الإِسْتِرْسَالِ: د راغورځيدو نه بند کړې شوې او محفوظ ساتلې شوې دې (حالانکه بغير ستنو ولاړ دې).

[۱] ثُمَّ قَالَ: "هَلْ تَدْرُونَ مَا بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهَا؟" [۲] قَالُوا: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [۳] قَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهَا خَمْسُمِائَةِ عَامٍ" ثُمَّ قَالَ: "هَلْ تَدْرُونَ مَا فَوْقَ ذٰلِكَ؟". [۴] قَالُوا: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: [۵] "سَمَاءَيْنِ بُعْدُ مَا بَيْنَهُمَا خَمْسُمِائَةِ سَنَةٍ". [۶] ثُمَّ قَالَ كَذٰلِكَ حَتّٰى عَدَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ" [۷] مَا بَيْنَ كُلِّ سَمَاءَيْنِ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ" [۸] ثُمَّ قَالَ: "هَلْ تَدْرُونَ مَا فَوْقَ ذٰلِكَ؟" [۹] قَالُوا: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ [۱۰] قَالَ: "إِنَّ فَوْقَ؟ ذٰلِكَ الْعَرْشُ، وَبَيْنَهُ وَبَيْنَ السَّمَاءِ بُعْدُ مَا بَيْنَ السَّمَاءَيْنِ".

**ترجمه:** [۱] بيايي وفرمايل پوهيږئ چې ستاسو او د آسمان په منځ کې څومره فاصله ده؟ [۲] صحابه ﷺ جواب ورکی الله ﷻ او د هغه رسول ښه پوهيږي [۳] حضور ﷺ وفرمايل چې ستاسي او د آسمان په منځ کې د پنځه سوه کاله مسافت په قدر فاصله ده [۴] بيايي وفرمايل خبر يي چې د آسمان برسيره څه دي صحابه ﷺ جواب ورکړو الله ﷻ او د هغه رسول ښه پوهيږي [۵] حضور ﷺ وفرمايل ددي آسمان نه علاوه بيا اوچت او لاندي دوه آسمانونه دي او د هغه دوو آسمانونو په منځ کې هم د پنځه سوه کاله مسافت دی [۶] دغه شان حضور ﷺ يوبل پسي د هر آسمان ذکر وکی ددي پوري چې د اوو آسمانونو په باره کې وښودل [۷] چې په هغه کې د هر آسمان نه دويم آسمان پوري فاصله هغه ده کومه چې د زمکي او آسمان په منځ کې ده يعنی د پنځه سوه کاله د مسافت په قدر [۸] دي نه وروسته يي وفرمايل معلومه ده درته چې دآخري آسمان برسيره څه دی؟ [۹] صحابه ﷺ جواب ورکړو الله ﷻ او د هغه رسول ښه پوهيږي [۱۰] حضور ﷺ وفرمايل ددي اووم او آخري آسمان برسيره عرش دی او دهغه عرش او د هغه نه دلاندي آسمان په منځ کې هغه فاصله ده کومه چې د دوو آسمانونو په منځ کې ده

**حل اللغات:-** ⑤ سَمَاءَيْنِ: د سماء تثنيه ده يعنی دوه آسمانونه.

[۱] ثُمَّ قَالَ: "هَلْ تَدْرُونَ مَا الَّذِي تَحْتَكُمْ؟" [۲] قَالُوا: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [۳] قَالَ: "إِنَّهَا الْأَرْضُ". ثُمَّ قَالَ: "هَلْ تَدْرُونَ مَا تَحْتَ ذٰلِكَ؟". [۴] قَالُوا: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [۵] قَالَ: "إِنَّ تَحْتَهَا أَرْضًا أُخْرٰى، بَيْنَهُمَا مَسِيرَةُ خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ". [۶] حَتّٰى عَدَّ سَبْعَ أَرَضِينَ وَبَيْنَ كُلِّ أَرْضَيْنِ مَسِيرَةُ خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ". [۷] ثُمَّ قَالَ: "وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ [۸] لَوْ أَنَّكُمْ دَلَّيْتُمْ بِحَبْلٍ إِلَى الْأَرْضِ السُّفْلٰى لَهَبَطَ عَلَى اللّٰهِ" [۹] ثُمَّ قَرَأَ: ﴿هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ [الحديد: ۳]» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بيايي وفرمايل پوهيږئ ستاسو لاندي څه دي [۲] صحابه وُ ﷺ عرض وکړو الله ﷻ او د هغه رسول ښه پوهيږي [۳] حضور ﷺ وفرمايل د ټولو برسيره زمکه ده بيايي وفرمايل پوهيږئ د هغه لاندي څه دی [۴] صحابه وُ ﷺ عرض وکړو الله ﷻ او دهغه رسول ښه پوهيږي [۵] حضور ﷺ وفرمايل د هغه لاندي يوه بله زمکه ده او د دې دواړو زمکو په منځ کې پنځه سوه کاله د مسافت په قدر فاصله ده [۶] دغه شان حضور ﷺ اووه زمکي وشميرلي او وي ښودله چې په دي کې د هري زمکي نه دويمي زمکي پوري درميانه فاصله د پنځه سوه کاله د مسافت په قدر ده [۷] بيايي وفرمايل قسم دی په هغه ذات چې د هغه د قدرت په لاس کې د محمد ساه ده [۸] که تاسو د ټولو نه لاندي زمکي ته رسی وځړوئ نو په الله ﷻ باندې به ورخکته شي [۹] دي نه وروسته حضور ﷺ د خپل دي ارشاد د دليل په طور دا آيت اووئيلو: هُوَالْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ترجمه: هغه الله اول قديم دی چې د هغه د پاره هيڅ ابتداء نشته او آخر باقي دی چې د هغه د پاره څه انتهاء او اختتام نشته او د خپل صفاتو د اعتبار نه ظاهر دی او د خپل ذات د اعتبار نه باطن دی او د دواړو جهانو ټول کلي او جزئي څيزونه پيژني چې د هغه علم ډير کامل او اکمل دی او د يويو شي هره هره ګوشه ګوټ باندې محيط دی. دا روايت احمد رحمه الله او ترمذي رحمه الله نقل کړی دی

**حل اللغات:** -⑧ دَلَّيْتُمْ: أي أَرْسَلْتُمْ: تاسو راوليږئ، راوغورځوئ، ⑨ حَبْل: رسئ، پړې،

[۱] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: قِرَاءَةُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْآيَةَ تَدُلُّ عَلَى [۲] أَنَّهُ أَرَادَ: لَهَبَطَ عَلَى عِلْمِ اللَّهِ وَقُدْرَتِهِ وَسُلْطَانِهِ، [۳] وَعِلْمُ اللَّهِ وَقُدْرَتُهُ وَسُلْطَانُهُ فِي كُلِّ مَكَانٍ، وَهُوَ عَلَى الْعَرْشِ، [۴] كَمَا وَصَفَ نَفْسَهُ فِي كِتَابِهِ.

**ترجمه:** [۱] او ترمذي رحمه الله ويلي دي چې د رسول الله ﷺ خپل ارشاد نه وروسته دا آيت وئيل په دي دلالت کوي [۲] چې د الله ﷻ برسيره د رسی د خکته کيدو نه مراد دادی چې هغه رسی به د الله ﷻ په علم ورخکته شي [۳] ځکه چې دهغه علم او د هغه قدرت او د هغه حکومت په هرځاي کې دی او هغه بذات خود په عرش باندې دي [۴] څرنګه چې خپله هغه په خپل کتاب کې خپل وصف بيان کړی دی.

**حل اللغات:** -⑩ لَهَبَطَ: أي لَنَزَلَ: نو راښکته به شي.

**تسهيلات:** **قوله:** هَذِهِ الْعَنَانُ هَذِهِ رَوَايَا الْأَرْضِ:

**د لفظ روايا معنی او وجه تسميه:** رسول الله ﷺ دَ سحاب دويم نوم اوخودلو چه العنان دې بيا ئې دَ هغې کار اوخودلو چه دا "رواياالارض" دي. دادَ روايـة جمع ده دا هغه اوبښ ته وائي دکوم په ذريعه چه زمکې ته اوبه ورکولې شي. دغه اوريځوته روايا ځکه اووئيلې شو چه دا هم دَ روايه اوبښ په شان اوبه راښکوسره دَ يوځائې نه بل ځائې ته اوړي.

**قوله:** يَسُوقُهَا اللّٰهُ إِلَى قَوْمٍ لَا يَشْكُرُونَهُ، وَلَا يَدْعُونَهُ:

**د الله تعالى مشركانو ته روزي ور كول:** يعني دا اوريځې دغه خلقو طرف ته هم اوبه منتقل كولو سره اوري كوم خلق چه دَ الله تعالى دَنعمتونو شكرنه اداكوي بلكه داسې ناشكري كوي چه دَ اوبو نسبت دَ غيرالله طرف ته كوي. كله په شرك كښې پريوتلو سره غيرالله ته آوازونه كوي كله الله تعالى پريخودو سره بتانو پسې منډې وهي. دَدې معاصي تقاضا خو دا وه چه په دوي باندې اوبه دانه بندكړې شي ليكن دَ الله تعالى درستخوان عام دې هغه رحمان دې او ربوبيت عامه او تربيت عام دَهغه په لاس كښې دې هغه رب العالمين دې په دې وجه په ټولو باندې خوراك كوي.

**قوله:** مَوْجٌ مَكْفُوفٌ:

**آسمان دَ ژوړندو اوبو څپه:** يعني دا آسمان يوزبردست موج دې مگر دَ راپريوتلونه محفوظ دې دَ اوبو غورزونكونه وهونكې سمندر دې مگر اوبه رابهيږي نه. بندې او محفوظ دي لكه چه دا آسمان يو موج دې كوم چه په هوا كښې معلق يعني زوړند دې.

**قوله:** لَوْ أَنَّكُمْ دَلَّيْتُمْ بِحَبْلٍ إِلَى الْأَرْضِ السُّفْلَى لَهَبَطَ عَلَى اللّٰهِ:

**د لهبط على الله په مفهوم كښې دوه اقوال:** يعني دَ انسان دَ اوسيدو دَ زمكې نه علاوه لاندې شپږ زمكې نورې دي چه داسې قط په قط دي كه دَ پورته نه څوك رسئى ښكته راګذاركړي نوهغه به نيغه لاړه شي او الله تعالى ته به اورسي.

① څنګه چې پورته په آسمانونو كښې دَالله تعالى ذات موجود دې دغه شان لاندې هم دَ الله تعالى حكم اودَهغه علم دې. داسې نه ده چه پورته خودَ الله تعالى حكم چليږي او ښكته په سفليات كښې دَ بل چاحكم نافذ وي كوم چه دَ الله تعالى دَ اختيارنه بهر دې.

② لكه څنګه چه حضور پاك ته پورته په آسمانونو كښې معراج شوې دغه شان ښكته په اووه زمكو كښې دَ سمندر نه لاندې دَ حضرت يونس عليه السلام معراج شوې. قرآن كريم كښې هم دغه عموم قدرت او شمول الوهيت طرف ته دې آيت كښې اشاره ده. ﴿وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَٰهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَٰهٌ﴾.

**[٥٧٢٦] د حضرت آدم عليه السلام قد**

٥٧٢٦-()[٣٤] ١ وَعَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ ٢: «كَانَ طُولُ آدَمَ سِتِّينَ ذِرَاعًا فِي سَبْعِ أَذْرُعٍ عَرْضًا»[1]

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل ٢ دَ حضرت آدم قد شپيته لاسه اوږد او اووه لاسه پلن وو.

[1] اخرجه احمد في المسند: ٥٣٥/٢

**تسهیلات: قوله:** كَانَ طُولُ آدَمَ سِتِّينَ ذِرَاعًا:

**د ذراع مقدار:** هغه مقدار ته وئیلی شی چه دَ لاس دَ مینځ دَ ګوتې دَ سر نه دَ مټ دَ څنګلې پورې وی. دَ شرعی ګز اطلاق هم په دې باندې کیږی.

**اشکال:** دَحضرت آدم علیه السلام قد ته چه شپیته لاسه وئیلې شوی دی دَدې نه دَ چا لاس مراد دی؟

**د اشکال جواب:** زیاته صحیح خبره داده چه دَ حضرت آدم علیه السلام لاس مراد نه دې بلکه زمونږ دَ زمانې دَ موجوده خلقو لاس مراد دی ځکه چه دَ حضرت آدم علیه السلام قد دَ موجوده خلقو په اعتبار سره شپیته لاسه اوږد وو.

**[۵۷۳۷]دانبیاوو تعداد**

۵۷۳۷-()[۲۸][۱]«وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قُلْتُ[۲]: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيُّ الْأَنْبِيَاءِ كَانَ أَوَّلَ؟[۳]قَالَ: "آدَمُ". قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَنَبِيٌّ كَانَ؟[۴]قَالَ: "نَعَمْ نَبِيٌّ مُكَلَّمٌ". [۵]قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَمِ الْمُرْسَلُونَ؟[۶]قَالَ: "ثَلَاثُمِائَةٍ وَبِضْعَةَ عَشَرَ جَمًّا غَفِيرًا" [۷]وَفِي رِوَايَةِ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ أَبُو ذَرٍّ: قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَمْ وَفَاءُ عِدَّةِ الْأَنْبِيَاءِ [۸]قَالَ: "مِائَةُ أَلْفٍ وَأَرْبَعَةٌ وَعِشْرُونَ أَلْفًا، الرُّسُلُ مِنْ ذَلِكَ ثَلَاثُمِائَةٍ وَخَمْسَةَ عَشَرَ جَمًّا غَفِيرًا»[۱].

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي ما عرض وکړو [۲]یارسول الله! د ټولو نه مخکې نبي څوك دی؟ [۳]حضور ﷺ وفرمایل حضرت آدم ما بیا پوښتنه وکړه آیا حضرت آدم نبي وو؟ [۴]وي فرمایل هو نبي وو هغه ته الله رب العلمین سره شرف تکلم وتخاطب حاصل شوي دي [۵]دي نه وروسته ما پوښتنه وکړه یارسول الله! انبیاوو کې رسولان څومره تیر شوی دي؟ [۶]حضور ﷺ وفرمایل کافي تعداد کې دري سوه لس نه به څه زیات تعداد کې وي [۷]او په یوه روایت کې د ابوامامه تابعي رحمه الله نه دا الفاظ منقول دي چې حضرت ابوذر رضي الله عنه اوویل ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړو یارسول الله! د ټولو انبیاوو تعداد که رسول وي یا غیر رسول څومره دی؟ [۸]حضور ﷺ وفرمایل یولاك څلورویشت زره په دي کې رسولان دري شوه پنځلس دي چې کافي لوی تعداد دی.

**حل اللغات:** - ① مُكَلَّمٌ: خبرې ورسره کړې شوی دی، ② جَمًّا: دا د جُمُوم او جَمَّةٌ نه ماخوذ دی، وَهُوَ الِاجْتِمَاعُ وَالْكَثْرَةُ: لوئې جماعت اوډلې ته وائی. ③ غَفِيرًا: دا د غَفْر نه ماخوذ دی، وَهُوَ التَّغْطِيَةُ وَالسَّتْرُ: پټوالی او پردې ته وائی. ④ كَمْ وَفَاءُ: أَيْ كَمْ كَمَالُ: پوره تعداد ئې څومره دې؟

**تسهیلات:**

**قوله:** قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَمْ وَفَاءُ عِدَّةِ الْأَنْبِيَاءِ قَالَ: "مِائَةُ أَلْفٍ وَأَرْبَعَةٌ وَعِشْرُونَ أَلْفًا:

**د انبیاء کرامو په تعداد کښې د احتیاط څخه کار اخستل:** دَ انبیاء کرامو په تعداد کښې دَ احتیاط نه کار اخستل ضروری دی. بعضې حضراتو دَ نبی اوولی کیدو کښې اختلاف شوې دې نو په حتمی عدد ذکرکولو سره خطره ده چه چرته یوغیرنبی، دَ انبیاءکرامو په

[۱]) اخرجه احمد فی المسند: ۱۷۸/۵

صف كښې داخل نه شي اويو رښتوني نبي بهرنه شي. په دې وجه دَانبياء كرامو تعداد سره كم وزيات لفظ لګول پكاردي. مثلاً كم وزيات يو لك څليريش زره وئيل پكاردي. دَ حضرت خضر، ذوالقرنين او لقمان حكيم په نبي كيدو اونه كيدو كښې اختلاف دې په دې وجه احتياط ضروري دې.

## [۵۷۳۸] خبر د ليدو پشان نه دې

۵۷۳۸-() [۳۱] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «لَيْسَ الْخَبَرُ كَالْمُعَايَنَةِ، [۳] إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى أَخْبَرَ مُوسَى بِمَا صَنَعَ قَوْمُهُ فِي الْعِجْلِ، فَلَمْ يُلْقِ الْأَلْوَاحَ، [۴] فَلَمَّا عَايَنَ مَا صَنَعُوا أَلْقَى الْأَلْوَاحَ فَانْكَسَرَتْ» ". رَوَى الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] د څه شي په باره كې اوريدل هغه په سترګو سره د ليدو برابر كيدې نشي [۳] الله تعالى حضرت موسى عليه السلام ته د هغه د قوم د هغه عمل په باره كې خبر وركې چې هغوئ د ګيلګي پرستي په صورت كې كړې وو نو هغه د قهر نه تختې ونه غورځولې [۴] ليكن كوم وخت چې خپل قوم ته راغې او خپلو سترګوسره يې د قوم هغه عمل اوليدلو نو دومره غضب ناك شو چې تختې يې وغورځولې او هغه ماتې شوې دا درې سره حديثونه احمد نقل كړي دي.

**حل اللغات:-** ① الْخَبَرُ: اوريدلې شوې خبره، ② الْمُعَايَنَةِ: په سترګو سره ليدل. ③ الْعِجْلِ: سخې، ④ فَلَمْ يُلْقِ: اوئې نه غورځول، ⑤ الْأَلْوَاحَ: د لوح جمع ده، تختې (چه په هغې باندې هدايات رباني ليكلې شوې وو). ⑥ عَايَنَ: په سترګو ئې اوليدل. ⑦ فَانْكَسَرَتْ: نو ماتې شوې تختې.

**تسهيلات: قوله: لَيْسَ الْخَبَرُ كَالْمُعَايَنَةِ:**

**د ليس الخبر كالمعاينه مطلب:** يعنې پخپلو سترګو سره دكتلو يو طبعي اثروي ګني دَ رښتياؤ په اعتبارسره دَالله تعالى په خبر وركولو كښې څه شك كيدې شو مګردَخبر په وخت په حضرت موسىٰ عليه السلام باندې هغه اثر اونه شو كوم اثرچه په خپلو سترګودَ ليدلونه پس اوشو. هم په دې وجه اووئيلې شو شنيده كے بود مانند ديده. حضرت موسىٰ عليه السلام دَ تحقير تذليل او توهين دَپاره تختنې نه وې غورزولې بلكه دَ الله تعالى د دين دَ غيرت په بنيادباندې په زوره په زمكه باندې كيخودې په كوم سره چه هغه ماتې شوې. حضرت موسىٰ عليه السلام په كوه طورباندې معراج له تلې وو. هلته هغوى ته په تختوباندې ليكلې شوې تورات ملاؤ شو اوهم په هغه ځائې كښې الله تعالى اوخودل چه ستاقوم سامري دَ سخې په عبادت باندې لګولوسره ګمراه كړې دې. هلته دومره غصه ورنغله مګر چه كله ئې په خپلو سترګواوليدل نو دَ غصې په سختوالى كښې ئې تورات په زوره په زمكه كيخودو په كوم سره چه دَهغې تختنې ماتې شوې.

---

[۱]) اخرجه احمد في المسند: ۲۷۱/۱

# [۲۹] کِتَابُ المَنَاقِبِ]

## دمناقبو(فضائلو) بیان

**اشکال: سوال:** ما دکتاب الفتن په شروع کښې دې طرف ته اشاره کړې وه چه بعضې شارحینو اعتراض کړې دې چه صاحب مشکوة دَ کتاب الفتن دَ عنوان لاندې فضائل اومناقب څنګه درج کړی دی؟

**داشکال جواب:** دکوم ځائی پورې دَ فتن احادیث وی دَهغه ځائی پورې کتاب الفتن شامل دې وړاندې فتن نشته دې بلکه دې نه پس فضائل شروع دی. هلته داهم لیکلې شوی وو چه دَ بعضې شارحینووینا ده چه دلته دکتاب المناقب عنوان وو مګر دکاتبینونه چا دکتاب الفضائل په ځائی باب الفضائل لیکلې دې.

**قوله:** المناقب:

**دمناقب تحقیق:** المناقب جمع ده دَدې مفردمنقبة دې. اخلاق حمیده او افعال مرضیه اوصاف عالیه کمالیه باندې دَ منقبت اطلاق کیږی. دَدې ځائی نه ترآخره پورې په ټولو احادیثو کښې هم دغه اوصاف بیانیږی. دَحضورپاك دَمناقب نه واخله تر خلفاء راشدین او ټول صحابه او صحابیات، اهل بیت اوعشره مبشره ﷺ اومختلف قبائل اودَدې امت دَمناقب پورې ټول مناقب دَ دې کتاب المناقب لاندې راځی اوپوره معامله به آسانه شی.

## [ ۱ ]بَابُ فَضَائِلِ سَيِّدِ الْمُرْسَلِينَ صَلَوَاتُ اللَّهِ وَسَلَامُهُ عَلَيْهِ]

### د سید المرسلین حضرت محمد ﷺ د فضائلو او مناقبو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه خسمة و ثلاثون حديثاً مشتملة على أحد وخمسين فضيلة:**

① شرافة نسب نبينا عليه السلام: ۱، ۲، ۱۸-

② كون نبينا عليه السلام سيد ولد آدم: ۳، ۲۱-

③ كون نبينا عليه السلام أول من ينشق عنه القبر: ۳، ۲۱، ۲۵-

④ كون نبينا عليه السلام أول شافع: ۳، ۶، ۹، ۱۵-

⑤ كون نبينا عليه السلام أول مشفع: ۱۲، ۲۲، ۲۴، ۲۵-

⑥ كون نبينا عليه السلام أكثرالناس تبعاً: ۴-

⑦ كون نبينا عليه السلام أول من يقرع ويفتح باب الجنة: ۴، ۵، ۲۲، ۲۵-

⑧ كون نبينا عليه السلام كثيرة المصدقين: ۶-

⑨ كون نبينا عليه السلام خاتم النبيين : ۷، ۱۰، ۲۰، ۲۴،

⑩ كون نبينا عليه السلام صاحب المعجزات الكبرى: ٨-
⑪ كون نبينا عليه السلام منصوربالرعب: ٩، ١٠، ١١-
⑫ كون نبينا عليه السلام جعلت له الأرض مسجداً: ٩، ١٠،
⑬ كون نبينا عليه السلام حلت له الغنائم : ٩، ١٠-
⑭ كون نبينا عليه السلام صاحب البعثة العامة: ٩، ١٠، ٢٣-
⑮ كون نبينا عليه السلام صاحب جوامع الكلم: ١٠، ١١-
⑯ كون نبينا عليه السلام أوتيت له مفاتيح الأرض: ١١، ١٢-
⑰ كون نبينا عليه السلام لايهلك أمته بهلاك عام: ١٢، ١٣ ، ١٥، ١٦، ٢٣-
⑱ كون نبينا عليه السلام شاهداً ومبشراً: ١٤ـ
⑲ كون نبينا عليه السلام نذيراً:١٤
⑳ كون نبينا عليه السلام حرزاً: ١٤
㉑ كون نبينا عليه السلام عبداً عظيماً لله:١٤
㉒ كون نبينا عليه السلام رسول الله:١٤
㉓ كون نبينا عليه السلام متوكلاً على الله تعالى:١٤
㉔ كون نبينا عليه السلام ليس بفظ:١٤
㉕ كون نبينا عليه السلام ليس غليظ القلب:١٤
㉖ كون نبينا عليه السلام ليس سخاباً في الأسواق:١٤
㉗ كون نبينا عليه السلام ليس دافع السيئة بالسيئة:١٤
㉘ كون نبينا عليه السلام يقام به الملة العوجاء: ١٤، ٣١، ٣٢-
㉙ الملة العوجاء: ١٤، ٣١، ٣٢ـ
㉚ كون نبينا عليه السلام لايُسَلَّطُ على أمته عدواً: ١٢، ١٦، ١٧، ١٥، ٢٣-
㉛ كون نبينا عليه السلام لايجتمع أمته على الضلالة:١٦، ٢٣-
㉜ كون نبينا عليه السلام نبياً في الأزل: ١٩، ٢٠-
㉝ كون نبينا عليه السلام دعوة إبراهيم عليه السلام:٢٠
㉞ كون نبينا عليه السلام بشارة عيسى عليه السلام: ٢٠
㉟ كون نبينا عليه السلام رؤيا أمه آمنه: ٢٠-
㊱ كون نبينا عليه السلام بيده لواء الحمد: ٢١، ٢٢، ٢٣، ٢٥-

(۲۷) كون نبينا عليه السلام هو حبيب الله: ۱۳، ۲۲.
(۲۸) كون نبينا عليه السلام أكرم الأولين والآخرين : ۲۲.
(۲۹) كون نبينا عليه السلام قائد المرسلين: ۲۴، ۲۵، ۲۸.
(۳۰) كون نبينا عليه السلام خطيب الناس: ۲۵، ۲۸.
(۳۱) كون نبينا عليه السلام متمماً لمكارم الأخلاق: ۳۰.
(۳۲) كون نبينا عليه السلام ولي إبراهيم عليه السلام: ۲۹.
(۳۳) كون نبينا عليه السلام أكرم ولد آدم عليه السلام: ۲۲، ۲۵.
(۳۴) كون نبينا عليه السلام يكسى له الحلة من حلل الجنة: ۲۶.
(۳۵) كون نبينا عليه السلام يقوم في المقام المحمود يوم القيامة: ۲۶، ۲۷.
(۳۶) كون نبينا عليه السلام ثقيل على الناس فى الوزن: ۳۴.
(۳۷) كون نبينا عليه السلام صاحب الخصوصيات في بعض الأحكام: ۳۵.
(۴۸) كون مولد نبينا عليه السلام مكة: ۳۱
(۴۹) كون مهجر نبينا عليه السلام مدينة: ۳۱
(۵۰) كون ملک نبينا عليه السلام الشام : ۳۱
(۵۱) كون أمة نبينا عليه السلام الحمادين: ۳۱.

**دَرسول پاک ﷺ فضائل :** صاحب مشکوة رحمه الله دَحضورپاك دَ فضائلو سره متعلق يوځو احاديث دَدې عنوان لاندې درج کړی دی ګنی د نبی علیه السلام ذات هغه شخصيت دې چې په هره زمانه کښې د امت عالمانو د نبی علیه السلام سره د يو تعلق پيدا کولو په غرض د هغوی په سيرت کتابونه ليکلی دی او روسته به هم دا سلسله جاری وی

**د غير مسلمو په نظر کښې زمونږ پيغمبر :** خپل مسلمانان خو لا څه کوئ په غير مسلمو کښې هغه منصف مزاجه خلق چې تعصب په کښې نه وی د نبی علیه السلام په تعريف کښې بخل نه کوی. يوانګريز (هنډرډ من) يعنی په انسانی تاريخ کښې د سل عظيمو شخصياتو ذکر، خو د دې کتاب ئې د تاريخ په لحاظ سره نه دې مقرر کړې چې څوک اول تيرشوې وی دهغه ذکر ئې اول کړې وی د زمانې په لحاظ سره چې څوک د هغه نه پس تيرشوې وو دهغه ذکرئې کړې دې بلکه د دې کتاب ترتيب ئې د عظمت په اعتبار سره مقرر کړې دې چې د مصنف په نظرکښې څوک د ټولوځه د لوړ مقام خاوند وو نو دهغه سيرت ئې اول ليکلې دې اودغه شان ورپسې ځه،نو د حيرانتيا خبره دا ده چې هغوی په خپل کتاب

کښې د ټولو څخه اول د نبی علیه السلام ذکر کړې دې او د خپل پیغمبر حضرت عیسی علیه السلام ذکر ئې روسته کړې دې.نو چا عیسائی ترې تپوس اوکړو چې د مسلمانانو پیغمبر دې اول ولې ذکر کړې دې هغوی ورته په جواب کښې اووئیل چې د مسلمانانو د پیغمبر دتحریک په نتیجه کښې چې په دنیا کښې کوم انقلاب راغلې دې هغه انقلاب د چا د عوت اوتحریک په نتیجه کښې نه دې راغلې ځکه مې د ټولو څخه اول د مسلمانان د پیغمبرذکر کړې دې.

**پنځه اولو العزم پیغمبران:** ① دَعلماء کرامو په دې باندې اتفاق دې چه حضورپاك سیدالبشراو سیدولد آدم دې.

② دَحضورپاك نه پس دَحضرت ابراهیم خلیل الله علیه السلام مقام دې

③ اوبیادَحضرت موسیٰ علیه السلام مقام دې.

④ بیا دَ حضرت نوح علیه السلام مقام دې

⑤ بیا دحضرت عیسی علیه السلام مرتبه ده.

دا پنځه اولوالعزم انبیاءکرام دی دَدوی نه پس دَتعین دَپاره چه څه نه دی وئیلی نوموږ هم څه نه وایو.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۷۳۹] د حضور ﷺ خانداني او نسبي فضل اوشرف**

٥٧٣٩-()[١] ١عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢«بُعِثْتُ مِنْ خَيْرِ قُرُونِ بَنِي آدَمَ قَرْنًا فَقَرْنًا، ٣حَتَّى كُنْتُ مِنَ الْقَرْنِ الَّذِي كُنْتُ فِيهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ٢ زه یوبل پسې د هرقرن د بني آدمو ښه طبقو کې منتقل کولی شوم ٣ د دې پورې چې زه دې موجوده قرن کې پیدا شوم (بخاري)

**حل اللغات:-** ① بُعِثْتُ: أَيْ: وُلِدْتُ: پیدا کولې شوم، منتقل کولې شوم. ② قُرُونِ: دَ قرن جمع ده دَدې اطلاق په زمانه باندې هم کیږی اودَ انسانانو په یوه طبقه باندې هم کیږی. سل کاله، څلویښت کاله او اتیا کالو باندې هم دَ قرن اطلاق کیږی. دلته دَ مختلف زمانو مختلف طبقې مراد دی.

**تسهیلات:**

**قوله: بُعِثْتُ مِنْ خَيْرِ قُرُونِ بَنِي آدَمَ قَرْنًا فَقَرْنًا:**

**دنبی علیه السلام په خیر القرون کښې بعثت:** حضورپاك فرمائی زه په انسانی طبقاتو کښې دَ بهترین طبقو نه راتیرشوې راغلې یم. په کومه طبقه کښې چه پلاران اونیکونه

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب صفة النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-٣٥٥٧) واحمد في المسند:٢/٣٧٣

وو هغه بهترین طبقې وې دَ چا دَ ذات اوخانداني شرافت وطني عزت اوعظمت، تهذیب او متانت، قوت فیصله او بهادری اوشجاعت مشهور اومعروف وو. زه اوهغه خلق دَ معاشرې بهترین افراد شمیرلې کیدل.

**[۵۷٤۰] د حضور ﷺ برګزیدګی**

۵۷٤۰-() [۲] ۱ وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ۲ «إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَى كِنَانَةَ مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ، ۳ وَاصْطَفَى قُرَيْشًا مِنْ كِنَانَةَ، ۴ وَاصْطَفَى مِنْ قُرَيْشٍ بَنِي هَاشِمٍ، ۵ وَاصْطَفَانِي مِنْ بَنِي هَاشِمٍ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ۶ وَفِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ: «إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَى مِنْ وَلَدِ إِبْرَاهِيمَ إِسْمَاعِيلَ، ۷ وَاصْطَفَى مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ بَنِي كِنَانَةَ».

**ترجمه:** ۱ او حضرت واثله ابن اسقع رضي الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ۲ حقيقت دادی چې الله جل جلاله د حضرت اسمٰعيل عليه السلام د اولاد نه کنانه چَن کړل ۳ او د دې کنانه د اولاد نه يي قريش منتخب کړل ۴ او د قريشو د اولاد نه يي بني هاشم چَن کړل ۵ او بني هاشمو کې يي زه چَن کړم. (مسلم)

۶ او د ترمذي رحمه الله په يوه روايت کې دا الفاظ هم دي چې الله جل جلاله د ابراهيم په اولاد کې اسمٰعيل برګزيده کی ۷ او د اسمٰعيل اولاد کې يي بني کنانه برګزيده کړل.

**حل اللغات:-** ① اصْطَفَى: منتخب ئې کړو، چونړ ئې کړو. ② كِنَانَةَ: د خزيمه خوې دې او د قبيلې نيکه دې (دده د اولاد قبيله دده په نوم مشهوره شوه).

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَى كِنَانَةَ مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ:

**د حضور پاک صلى الله عليه وسلم نسب نامه:** ملاعلي قاری دَ رسول الله ﷺ نسب نامه دَعدنان پورې ليکلې ده اوفرمائيلي دي چه دَدې نه زيات بيانول صحيح نه دی. (يعنی په دې کښې اختلاف دې) چنانچه هغه فرمائي: "هُوَ أَبُو الْقَاسِمِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ بْنِ هَاشِمِ بْنِ عَبْدِ مَنَافِ بْنِ قُصَيِّ بْنِ كِلَابِ بْنِ مُرَّةَ بْنِ كَعْبِ بْنِ لُؤَيِّ بْنِ غَالِبِ بْنِ فِهْرِ بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّضْرِ بْنِ كِنَانَةَ بْنِ خُزَيْمَةَ بْنِ مُدْرِكَةَ بْنِ إِلْيَاسَ بْنِ النَّضْرِ بْنِ نِزَارِ بْنِ مَعْدِ بْنِ عَدْنَانَ. وَلَا يَصِحُّ حِفْظُ النَّسَبِ فَوْقَ عَدْنَانَ اه." (مرقات).

**قوله:** مِنْ وَلَدِ إِبْرَاهِيمَ:

**دابراهيم عليه السلام دوه ځامن او دهغوی د اولاد سلسله:** دَ حضرت ابراهيم عليه السلام دوه ځامن وو يو حضرت اسحاق عليه السلام وو دَ انبياء بني اسرائيل سلسله هم دَدوی نه روانه شوې

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب فضل نسب النبی صلی الله علیه وسلم، وتسلیم الحجر علیه قبل النبوة (رقم-۱ - (۲۲۷۶) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی فضل النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۶۰۵) واحمد فی المسند: ۱۰۷/٤

ده. دویم حضرت اسماعیل علیه السلام وو حضورپاك هم دَدوی په اولاد کښې راغلې دې اوصرف هم حضورپاك در یتیم نبی وو. چنانچه الله تعالی دَ حضرت اسماعیل علیه السلام په اولاد کښې کنانه منتخب کړو اودَ کنانه په اولاد کښې قریش خوښ کړل اودَ قریش په اولاد کښې بنوهاشم خوښ کړو اودَ بنوهاشم نه حضرت محمد ﷺ خوښ کړو او هغوی ئې سید الاولین والآخرین جوړ کړل.

**[٥٧٤١] د قیامت په ورځ د حضور ﷺ سرداري**

٥٧٤١-(۱)[۳] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «أَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ۳ وَأَوَّلُ مَنْ يَنْشَقُّ عَنْهُ الْقَبْرُ، ۴ وَأَوَّلُ شَافِعٍ، وَأَوَّلُ مُشَفَّعٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ۲ د قیامت په ورځ به زه د ټول اولاد آدم سرداریم ۳ او د ټولو نه مخکې به د قبر نه زه را پاځیږم ۴ او د ټولو نه مخکې به زه شفاعت کوم او د ټولو نه مخکې ځما شفاعت به قبلیږي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① سَيِّدٌ: سردار اومشر چه دَ خپل قوم نه د خیر په کارونو او په صفات حمیده کښې وړاندې شوې وی، یا داچه په مشکل وخت کښې خلق دده طرف ته رجوع کوی. ② يَنْشَقُّ: أَيْ: يُبْعَثُ: قبریه ئې شلیږي یعنی قبرنه به راپاځولې شی. ③ شَافِعٍ: شفارس کونکې، ④ مُشَفَّعٍ: چه شفارس به ئې قبلیږي.

**تسهیلات: قوله:** أَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:

**د نبی علیه السلام څلور خصوصیات:** په دې حدیث کښې د نبی علیه السلام د خصوصیاتو څخه د څلورو خصوصیاتو ذکر دې.

① د ټولو انسانانو سرداری.

② د ټولو څخه اول دقبر څخه راوژندی کیدل.

③ د ټولو څخه اول شفاعت کونکې.

④ د ټولو څخه اول د شفاعت اجازت موندونکې.

**[٥٧٤٢] دامت محمدیه تعداد به د ټولو نه زیات وي**

٥٧٤٢-(۲)[۳] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «أَنَا أَكْثَرُ الْأَنْبِيَاءِ تَبَعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ۳ وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ يَقْرَعُ بَابَ الْجَنَّةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب تفضیل نبینا صلی الله علیه وسلم علی جمیع الخلائق (رقم-۳ - (۲۲۷۸) وابوداود فی کتاب السنة/باب فی التخییر بین الأنبیاء علیهم الصلاة والسلام (رقم-۴۶۷۳) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۱۵) واحمد فی المسند: ۲/۳

[2] ) اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب فی قول النبی صلی الله علیه وسلم: «أنا أول الناس یشفع فی الجنة وأنا أکثر الأنبیاء تبعًا» (رقم-۳۳۱ - (۱۹۶)

**ترجمه:** [۱] و حضرت انس ﷺ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به د پيغمبرانو نه چې د كوم پيغمبر د منونكو تعداد د ټولو نه زيات وي هغه به زه يم [۳] او د جنت دروازه چې د ټولو نه مخكې كوم سړى ټكوي هغه به هم زه يم. مسلم،

**حل اللغات:-** ① تَبَعًا: د تَابِع جمع ده، أَيْ: أَتْبَاعًا: تابعدارى كونكى، متبعين. ② يَقْرَعُ: أَيْ: يَدُقُّ وَيَسْتَفْتِحُ: ټكوى به، كهلاوهى به.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَا أَكْثَرُ الْأَنْبِيَاءِ تَبَعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ:

**په قيامت كې د نبى عليه السلام د امت كثرت:** يعنى په قيامت كښې به متبعين او پيروكارد ټولونه زيات د حضورپاك وى ځكه چه د رسول الله ﷺ معجزه قرآن دې اوقرآن د عالم دپاره د هدايت ذريعه دې نوتركومې پورې چه كائنات باقى دې قرآن باقى دې. په كوم سره چه به خلق د اسلام طرف ته راځى.

**د رسول الله ﷺ ۲۲ مختلف خصوصيات:** دَدې باب په دې احاديثوكښې د محبوب كبريا مختلف خصوصيات بيان كړې شوى دى. مناسب معلوميږى چه دغه خصوصيات هم دلته يوځائى اوليكلې شى دې دپاره چه په يادولوكښې آسانى وى. د راتلونكى حديث نمبر۹ توضيح هم دا ده.

① حضورپاك د ټولونه په ښه طبقه كښې تشريف راوړې.

② د ټولو انسانانو سردار شو.

③ د حضورپاك متبعين به د ټولونه زيات وى.

④ حضورپاك به د ټولونه اول د خپل قبرنه پاسيږى.

⑤ د ټولونه اول شفاعت به حضورپاك كوى.

⑥ د ټولونه اول به د جنت دروازه حضورپاك كولاووى.

⑦ حضورپاك خاتم النبيين دې.

⑧ حضورپاك ته د قرآن پاك په شكل كښې دائمى معجزه وركړې شوه.

⑨ حضورپاك ته داسې رعب اودبدبه وركړې شوه د كوم نه چه به د يومياشت په مسافت سره دښمن په رعب كښې پريوتلو.

⑩ پوره زمكه د حضورپاك دپاره جمات جوړكړې شو.

⑪ خاوره ئى د حضورپاك دپاره د طهارت د تيمم ذريعه جوړه كړه.

⑫ حضورپاك د پوره دنياد انسانانودپاره نبى جوړولوسره راۇليگلو.

⑬ حضورپاك ته جوامع الكلم وركړې شو.

⑭ دَغنیمت مال دَ حضورپاك دَ پاره حلال کړې شو.

⑮ حضور پاك ته دَ زمکې دَ خزانو کنجیانې ورکړې شوې.

⑯ ټوله زمکه راغونډه کړې شوه او حضورپاك ته اوخودلې شوه.

⑰ دَ کوم ځائې پورې چه حضورپاك اوکتل دَهغه ځائی پورې به ئې حکومت اودین خورېږي.

⑱ حضورپاك ته سرې اوسپینې دواړه قسم خزانې ورکړې شوې یعنی دَ فارس اوروم فتح.

⑲ په عام قحط اودَښمن په عمومی غلبه به دَحضورپاك امت نه تباه کیږي.

⑳ حضورپاك ئې دَعربودَپاره دَ پناه ځائې جوړولوسره اولیګلو.

㉑ دَټولو نه وړاندې حضورپاك ته دَ نبوت انوارات ورکړل.

㉒ حضورپاك دَحضرت ابراهیم علیه السلام دَدعاپه نتیجه کښې نبی جوړ کړې راغلې.

㉓ دَحضرت عیسی علیه السلام دَ بشارت په نتیجه کښې راغلو.

㉔ ټول انبیاء کرام اوټول مخلوق به دَ قیامت په ورځ دَ حضورپاك دَجهنډې لاندې راجمع کیږي.

㉕ حضورپاك حبیب الله جوړشوې دې.

㉖ په میدان محشرکښې به صرف حضورپاك خطیب وي.

㉗ په قیامت کښې به دَټول مخلوق دَپاره حضورپاك مبشروي.

㉘ په محشرکښې به ښه تازه تکړه اوښائسته یوزرخادمان حضورپاك سره وي.

㉙ حضورپاك ته به دَقیامت په ورځ جنتی لباس دَ کرامت اغوستلوسره دَ عرش په خواکې مقام ورکولې شي.

㉚ حضورپاك ته به په جنت کښې مقام وسیله ملاویږي.

㉛ حضورپاك ته به خصوصی حوض کوثرملاویږي.

㉜ دَحضورپاك وړاندې روستوټولې خطاګانې معاف شوی دی.

㉝ حضورپاك ته دَ ساختی مونځ ورکړې شو.

㉞ که پوره مخلوق یو طرف ته وي اوحضورپاك بل طرف ته وي نودَحضورپاك وزن به زیات وي.

.........

**[۵۷۴۳] د جنت دروازه به د ټولو نه مخکې حضور د پاره خلاصه شي**

۵۷۴۳-() [۵] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]«آتِي بَابَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَأَسْتَفْتِحُ، [۳] فَيَقُولُ الْخَازِنُ: مَنْ أَنْتَ؟ فَأَقُولُ مُحَمَّدٌ. [۴] فَيَقُولُ: بِكَ أُمِرْتُ أَنْ لَا أَفْتَحَ لِأَحَدٍ قَبْلَكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] هرکله چې د قيامت په ورځ د جنت دروازې باندې راشم او هغه به خلاصول غواړم [۳] نو د جنت نګهبان به زما نه پوښتنه وکړي چې تاسو څوك يئ زه به ورته وايم چې زه محمد يم [۴] بيا به نګهبان اووائي چې ماته حکم راکول شوي دي چې ستاسو نه مخکې هيچا د پاره دروازه نه کړم خلاصه. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① فَأَسْتَفْتِحُ: أَيْ: أَطْلُبُ فَتْحَهُ: خلاصول او بيرته کول به غواړم. ② الْخَازِنُ: د جنت نګرانه فرشته (چونکه جنت د الله تعالى يوه خزانه ده په دې وجه ددې ذمه وارې فرشتې ته خازن اووئيلې شو).

**تسهيلات:**

**قوله: بِكَ أُمِرْتُ أَنْ لَا أَفْتَحَ لِأَحَدٍ قَبْلَكَ:**

**د نبی علیه السلام دپاره د جنت دروازه بيرته کول:** هسې خو د نبی علیه السلام بې شميره خصوصيات دی يو خصوصيت په کښې دا هم دې چې د ټولو څخه اول به جنت ته نبی علیه السلام داخليږی. او د جنت داروغه رضوان به ورته اووائی چې ماته دا حکم شوې دې چې د جنت دروازه به ستاسو څخه علاوه بل چا دپاره نه کولاوهم.

**[۵۷۴۴] د ټولو نه مخکې به حضور صلی الله علیه وسلم شفاعت کوي**

۵۷۴۴-() [۶] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]«أَنَا أَوَّلُ شَفِيعٍ فِي الْجَنَّةِ [۳] لَمْ يُصَدَّقْ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ مَا صُدِّقْتُ، [۴] وَإِنَّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ نَبِيًّا مَا صَدَّقَهُ مِنْ أُمَّتِهِ إِلَّا رَجُلٌ وَاحِدٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] په جنت کې به د ټولو نه مخکې سفارش کونکی زه يم يعنی خپل امت جنت کې د داخلولو يا د اهل جنت د مراتبو درجات د ترقي سفارش به د ټولو نه مخکې زه کوم [۳] په انبياوو کې چې څومره تصديق ځما شوي دي دومره د بل هيڅ نبي نه دی شوی يعنی ځما د نبوت او رسالت تصديق کونکو او په ماباندې دايمان راوړونکو او ايمان لرونکو تعداد د ټولو نه زيات دی دغه شان د ټولو امتونو په مقابله کې ځما د امت تعداد د ټولو نه لوی دی [۴] او حقيقت دادی چې انبياوو کې يو نبي داسې هم تيرشوي دي چې د هغه تصديق صرف يوه سړي

[۱]) اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب فى قول النبى صلى الله عليه وسلم: «أنا أول الناس يشفع فى الجنة وأنا أكثر الأنبياء تبعًا» (رقم-۳۳۳ - (۱۹۷) واحمد فى المسند:۳/۱۳۶

[۲]) اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب فى قول النبى صلى الله عليه وسلم: «أنا أول الناس يشفع فى الجنة وأنا أكثر الأنبياء تبعًا» (رقم-۳۳۲ - (۱۹۶) واحمد فى المسند:۳/۱۴۰

کړی دی . مسلم

**حل اللغات:-** ① شَفِيع: أي شَافِع: شفارس کونکې (دخپل امت د ګناهګارانو شفارس به کوی چه جنت ته داخل شی) ② لَمْ يُصَدَّقْ : چه تصدیق ئې نه دې شوې یعنی ایمان پرې نه دې راوړلې شوې.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① فِي الْجَنَّةِ: دلته دَ فی حرف دَتعلیل دَپاره دې. ای اول شفیع لاجل الجنة ای لدخولها.

② مَا صُدِّقْتُ: دلته مامصدریه دې ای مقدار تصدیقی یعنی څومره تصدیق چه زما شوې دومره دَ یونبی نه دې شوې.

③ لَمْ يُصَدَّقْ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ مَا صُدِّقْتُ:

**د نبی علیه السلام د زیاتو مصدقینو وجه:** دَدې اصل وجه داده چه دَ باقی پیغمبرانو معجزات دَ وخت وې چه کله به نبی دَدنیانه رخصت کیدونو دَهغې نه پس به دَهدایت سامان نه پاتې کیدو لیکن حضورپاك ته دَ قرآن معجزه ورکړې شوه چه دَقیامت پورې به باقی پاتې وی. په دې وجه به دَ حضورپاك منونکی زیات وی.

**[۵۷۴۵] حضور ﷺ خاتم النبیین دی**

۵۷۴۵-()[۷] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «مَثَلِي وَمَثَلُ الْأَنْبِيَاءِ كَمَثَلِ قَصْرٍ أُحْسِنَ بُنْيَانُهُ ③ تُرِكَ فِيهِ مَوْضِعُ لَبِنَةٍ، ④ فَطَافَ بِهِ النُّظَّارُ، يَتَعَجَّبُونَ مِنْ حُسْنِ بِنَائِهِ، ⑤ إِلَّا مَوْضِعَ تِلْكَ اللَّبِنَةِ، فَكُنْتُ أَنَا سَدَدْتُ مَوْضِعَ اللَّبِنَةِ، ⑥ خُتِمَ بِيَ الْبُنْيَانُ وَخُتِمَ بِيَ الرُّسُلُ ⑦ وَفِي رِوَايَةٍ: فَأَنَا اللَّبِنَةُ، وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ② څما او د نورو ټولو انبیاوو مثال د هغه محل په شان دی چې د هغه در و دیوار ډیر شاندار او ښه وي ③ لیکن په هغه دیوال کې د یوې خښتې ځاي خالي پاتې شوی وي ④ او هرکله چې خلق د هغه محل چاپیره ګرځیدو سره د عمارت شان وشوکت اود در و دیوار خوشنمائي به هغوئ حیرت کې واچوي ⑤ خو د یوې خښتې په قدر هغه خالي ځاي لیدو سره هغوئ ته به تعجب وي نو د هغه خښتې ځاي ډکونکی زه یم د هغه عمارت تکمیل څما ذات دی ⑥ او د انبیاوو او رسولانو د سلسلې اختتام په ما شوي دي ⑦ او په یوه روایت کې دا الفاظ دي چې زه هغه خښته یم چې د هغه ځاي خالي ایښودل شوی وو او زه د نبیانو

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب خاتم النبیین صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۵۳۵) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب ذکر کونه صلی الله علیه وسلم خاتم النبیین (رقم-۲۱ - (۲۲۸۶) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۱۳) واحمد فی المسند:۱۴۵/۵

سلسله اختتام ته رسونکی یم . (مسلم)

**حل اللغات:-** ①قَصْرٍ: أَيْ: بِنَـاءٍ مُرْتَفِعٍ: یـو عـالی شـان محـل، ②لَبِنَـةٍ: خښتـه، ③فَطَـافَ: أَيْ: دَارَ: گیـر چاپیره تـرې گرځـی، ننـداره او نظـاره ئـې کـوی. ④النُّظَّـارُ: ننـداره او نظـاره کـونکی، ⑤سَـدَدْتُ: بندوم به زه (دغه خالی ځائې ځکه چه نبی علیه السلام آخری نبی دې) ⑥خُتِمَ: ختم کړې شوې دې (په ما باندې محل او سلسله د پیغمبرانو).

**تسهیلات:**

**قوله: مَثَلِي وَمَثَلُ الْأَنْبِيَاءِ كَمَثَلِ قَصْرٍ أُحْسِنَ بُنْيَانُهُ:**

**د حضورپاک دَ ختم نبوت مثال:** دَ حدیث حاصل دادې چه حضورپاك دَخپل نبوت اختتام دَ یو مثال سره بیان کړې دې. لکه چه نبوت یو نورانی محل دې حضرات انبیاء کرام دَ دې نورانی خښتې او رسول کریم ﷺ دَ دغه نورانی محل آخری خښته ده په کوم چه دَ عمارت پوره والې دَ بنائست دَ نبوت په اعتبار سره اوشو. داحدیث په ختم نبوت باندې واضح دلیل دې چه دَ حضور پاك په زمانه کښې یا دَ حضورپاك نه پس به بل هیڅ یو نبی نه راځی.

امام طیبی رحمه الله فرمائی چه مخکینی ټول انبیاء او رسولانو ته دَ یو داسې مضبوط او شاندار عمارت سره تشبیه ورکړې شوه دکوم په دیوال کښې چه صرف دَ یوې خښتې برابر ځائې خالی پریخودې شوې وو. دغه ځائې زمونږ نبی کریم ﷺ راتلو سره پوره کړو بیا دَ نبوت دروازه دَهمیشه دَپاره بنده شوه.

**[۵۷۴٦] حضور ﷺ خاتم النبیین دی**

۵۷۴٦-() [۸] ①وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«مَا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا قَدْ أُعْطِيَ مِنَ الْآيَاتِ مَا مِثْلُهُ آمَنَ عَلَيْهِ الْبَشَرُ، ③وَإِنَّمَا كَانَ الَّذِي أُوتِيتُ وَحْيًا أَوْحَى اللّٰهُ إِلَيَّ، ④وَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَكْثَرَهُمْ تَابِعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ②انبیاوو کې هریونبي ته دمعجزاتو نه دومره ورکول شوي چې په هغه انسان ایمان راوړل شي ③او کومه معجزه چې ماته حاصله شوه هغه د الله جل جلاله وحي ده چې هغه ز ماطرف ته رالیږلي ده او همیشه باقي پاتې کیدونکي ده ④په دي بناء ځما یقین دی چې د قیامت په ورځ به ځما د منونکو تعداد د ټولو انبیاوو د منونکو د تعداد نه زیات وي.

**حل اللغات:-** ①أُعْطِيَ: ورکړې شوی دی. ②الْآيَاتِ: أَيْ: الْمُعْجِزَاتِ: معجزې، د عـام عـادت خلاف

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب فضائل القرآن/باب: کیف نزل الوحی. وأول ما نزل (رقم-۴۹۸۱) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب وجوب الإیمان برسالة نبینا محمد صلی الله علیه وسلم إلی جمیع الناس. ونسخ الملل بملته (رقم-۲۳۹ - (۱۵۲) واحمد فی المسند: ۳۴۱/۲

کارونه (چه د پیغمبر نه بغیر دهغې ظهور نه کیږی). ③ وَحْیًا: أَيْ: كَلَامًا مُنَزَّلًا عَلَیَّ: دوحی نه مراد قرآن دې کوم چه د جبرئیل علیه السلام په ذریعه په نبی علیه السلام باندې نازل شوې دې.

**تسهیلات:**

**قوله: مِنْ نَبِيٍّ:**

**د من نبی ترکیبی حالت:** دلته لفظ من زائده دې کوم چه علامه روح المعانی رحمه الله دَ سیف خطیب په نوم سره یادوی دې دَپاره چه ادب په ځائی وی اوبې ادبی نه وی ځکه چه دَخطیب توره خو په کتو کښې توره ده مګر دکار توره نه ده دغه شان داحرف دې.

**قوله: مِنَ الْاٰیَاتِ:**

**دآیات څخه مراد:** دَ آیات نه معجزات مراد دی یعنی هرنبی له دَ هغه دَ نبی کیدو دَ دعوی دَ اثبات دَپاره الله تعالی "مافوق العادة" معجزات ورکړی دی.

**قوله: مَا مِثْلُهُ:**

**دمذکوره جملې ترکیب:** ماموصوله ده کوم چه دَ "المقدار الذی" په معنی کښې دې. دې نه پس مثله مبتدا دې او "امن علیه البشر" دَدې خبر دې. مبتدا اوخبر ملاویدلو سره صله ده دَموصول، موصول خپلې صله سره ملاؤ شو دَ اعطی دَپاره مفعول ثانی دې تقدیری عبارت داسې دې یعنی "لیس نبی من الانبیاء الاقد اعطاه الله تعالی من المعجزات الدالة علی نبوته المقدار الذی من صفته انه اذا شوهد اضطر الشاهد الی الایمان به". (مرقات بتغییر یسیر)

**قوله: وَإِنَّمَا كَانَ الَّذِي أُوتِيتُ وَحْيًا أَوْحَى اللّٰهُ إِلَيَّ:**

**قرآن د نبی علیه السلام بوه نه ختمیدونکی معجزه:** دَ حدیث مطلب دادې چه الله تعالی نورو انبیاء کرام علیهم السلام ته هم په دومره مقدار کښې معجزات ورکړی دی په څومره چه خلقو ایمان راوړلې دې یعنی هغه معجزات پخې او دائمی نه وې بلکه چه کله خلقو اوکتلو او په هغې باندې ایمان راوړلو نو معجزه ختمه شوه یا دَ زیات نه زیات دَهغه نبی دَ ژوندون پورې هغه معجزه باقی پاتې وه لکه ید بیضاء، دَ موسی علیه السلام همسا، دَ عیسی علیه السلام دم، دَ صالح علیه السلام اوښه وغیره دا معجزات دَهغه انبیاء کرامو په دنیا کښې دَ موجودګئی پورې باقی وې بیا ختمې شوې. حضور پاك اوفرمائیل ماته چه کومه معجزه راکړې شوې ده هغه لوستونکې وحی ده کومه چه دَ قرآن کریم په صورت کښې ده دامعجزه هیڅ کله ختمیدونکې نه ده بلکه دائمی معجزه ده. په دې به خلق ایمان راوړی لهذا زما متبعین اوزما دَامت خلق به دَ ټولو نه زیات وی ځکه چه دعوت هم عام دې معجزه هم زنده تابنده کتاب الله دې.

**قوله:** مَا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا قَدْ أُعْطِيَ مِنَ الْآيَاتِ مَا مِثْلُهُ آمَنَ عَلَيْهِ الْبَشَرُ:

**د معجزاتو پس منظر:** الله تعالى معجزات دزمانې مطابق هرنبي ته ورکړې دي. دکوم نبي په زمانه کښې معاشره اوماحول باندې کوم څيز حاوي اوقابض وو دهغې دماتولودپاره به نبي ته معجزه ورکړې کيدله.

① دحضرت موسى عليه السلام په زمانه کښې جادو چليدو نودهغوى معجزات يدبيضاء اوعصاء هغه مات کړل.

② دحضرت عيسى عليه السلام په زمانه کښې دطب ډير زور وو نوهغوى ته داحياء اموات وغيره معجزه ورکړې شوه کوم چه طب عاجز کړو.

③ دحضرت صالح عليه السلام په زمانه کښې پوره نظام دکانړوتراشلوباندې قائم وه نوهغه ته ئې معجزه هم ديوکانړي پيدا شوې اوښې په شکل کښې ورکړه.

**د قرآن د مقابلې څخه د فصحاء او بلغاؤ عاجز کيدل:** درسول الله ﷺ په زمانه کښې عربيت اودهغې دعالمي فصاحت اوبلاغت دترقئى آسمان ته رسيدلې وو لهذا الله تعالى هغوى ته دقرآن عظيم په شکل کښې هغه فصيح او بليغ کتاب ورکړو کوم چه دعربو دفصحاء دفصاحت لوئى لوئى پولونه په زمکه راګذار کړل اوخاورو سره ئې خاورې کړل. دقريشو کافران کوم چه دفصاحت او بلاغت عالمي دعويدار وو دقرآن پاك ديووړوکى شان سورت مقابله اونه کړې شوه. قرآن پاك هغوى ته يو ځل نه بلکه څو څو ځل دمقابله چيلنج ورکړو مګر هغوى زباني مقابله اونه کړې شوه او ميدانونوته راکوز شو په تورو سره ئې مقابله اوکړه ستونه ئې پرې کړل ښځې کونډې کړې بچي يتيمان کړل مګر زباني مقابله ئې اونه کړې شوه. دا ددې خبرې واضح دليل وو چه دادانسان جوړکړې شوې کلام نه دې بلکه درب العالمين کلام دې دکوم دمثال راوړلو نه چه انسان عاجز دې. چنانچه دعربو فصحاؤ سره هغه حروف دفصاحت اوبلاغت اومورنئى ژبې ټول اسباب موجود وو مګر بيانئى هم دغه شان کلام رانوړلې شو. هم په دې تناظرکښې چا وئيلي:

ماتحد اکم به خير الانام　　　　ركب مما تركبوا الكلام

يعنى محمد ﷺ چه په کوم کلام سره تاسو چيلنج کړى يئى هغه کلام هم دغه حروفو نه جوړ دې دکوم نه چه تاسو کلام جوړوئى.

**په سورة الکوثر سره د عربو فصحاؤ ته د مقابلې اعلان:** يوځل حضرت على رضي الله عنه دسورت کوثر آيت ﴿إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ﴾ ليکلوسره دبيت الله په پرده باندې زوړند کړو اوچيلنج ئې اوکړو چه دې سره داسې مناسب کلام راوړئى اوليکئ چه په لفظي اومعنوي اعتبار سره

مقصود حاصل شی. دَ عربو فصحاء نه یو بوډا سړی ډیر سوچ اوفکر نه پس دَماتی خوړلو اعتراف کولو سره اووئیل "والله ماهذا قول البشر" بوډا دَ حقیقت اعتراف کولو سره لفاظی خو اوکړه مگر په معنوی اعتبار سره دَ سورت کوثر حقیقت په سوچ کښې هم رانه وستې شو.

**[۵۷۴۷] د حضور ﷺ خصائص**

۵۷۴۷-() [۱] ۱ وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «أُعْطِيتُ خَمْسًا لَمْ يُعْطَهُنَّ أَحَدٌ قَبْلِي ۳: نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ مَسِيرَةَ شَهْرٍ، ۴ وَجُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ مَسْجِدًا وَطَهُورًا ۵ فَأَيُّمَا رَجُلٍ مِنْ أُمَّتِي أَدْرَكَتْهُ الصَّلَاةُ فَلْيُصَلِّ، ۶ وَأُحِلَّتْ لِيَ الْغَنَائِمُ وَلَمْ تَحِلَّ لِأَحَدٍ قَبْلِي، ۷ وَأُعْطِيتُ الشَّفَاعَةَ، ۸ وَكَانَ النَّبِيُّ يُبْعَثُ إِلَى قَوْمِهِ خَاصَّةً وَبُعِثْتُ إِلَى النَّاسِ عَامَّةً». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ۲ ماته پنځه داسې څیزونه عطا شوي دي چې زما نه مخکې هیڅ نبي او رسول ته نه دي ورکړي شوي ۳ یوخوماته د هغه رعب په ذریعه نصرت راکړي شوي دي چې د یوي میاشتي د مسافت په لرې والی باندې اثر انداز کېږي ۴ دویم ټوله زمکه زما د پاره مسجد او پاکونکی ګرځول شوي ده ۵ څما د امت هرهغه سړی چې په هغه مونځ واجب وي د مونځ وخت ورباندې راشي که اوبه نه وي نو تیمم کولو سره دي مونځ وکړي ۶ دریم زما د پاره مال غنیمت حلال وګرځول شو چې زما نه مخکې هیچا د پاره حلال نه وو ۷ څلورم زه د شفاعت عظمٰی عامي مرتبې باندې مشرف شوي یم ۸ او پنځم زما نه مخکې هرنبي خاص طور سره خپل قوم ته لیږل شوی وو حال دا چې زه دزمکي د مخ ټولو خلقو طرف ته رالیږل شوی یم. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ۱ نُصِرْتُ: أَيْ: نَصَرَنِي رَبِّي عَلَى أَعْدَائِي: مدد کړي شوي دي زما یعنی زما رب زما د دشمنانو په خلاف زما مدد او نصرت کړي دي. ۲ الرُّعْبُ: أَيْ: بِخَوْفِ الْعَدُوِّ مِنِّي: رُعب داب یعنی زما ددشمن په زړه کښې ئې زما رعب او ویره اچولې ده. ۳ مَسْجِدًا: ځائې د مونځ، ۴ طَهُورًا: پاکونکې. ددې نه مراد تیمم دې چه پاکې خاورې سره تیمم صرف زما په شریعت کښې جائز دې. مانه مخکښې په هیڅ یو شریعت کښې تیمم جائز نه وو. ۵ الْغَنَائِمُ: وَهِيَ الْأَمْوَالُ الْمَأْخُوذَةُ مِنَ الْكُفَّارِ: کوم مال چه د کافرانو نه واخستلې شی هغې ته وائی یعنی غنیمتونه.

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

۱ أُعْطِيتُ خَمْسًا: په حدیث الباب کښې دَ پنځو عدد دَ حصر دَپاره نه دي بلکه مطلب دادې

---

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب التیمم (رقم-۳۳۵) ومسلم فی کتاب المساجد/باب ومواضع الصلاة (رقم-۳ - (۵۲۱) والنسائی فی کتاب الغسل والتیمم/باب التیمم بالصعید (رقم-۴۳۲)

چه دا پینځه خصوصیات داسې دی چه زما نه علاوه بل چاته نه دی ملاؤ شوی.

④ طَهُورًا: بعضې حضراتو دَدې مطلب دا هم بیان کړې دې چه دَ مخکینو امتونودَپاره ترهغه وخته پورې په یوځائی دَ مونځ کولو اجازت نه وو شوې ترکومې پورې چه به دَ هغه ځائی دَ پاکیدو یقین نه کیدلو خودَ امت محمدیه دَ پاره چه ترکومې پورې دَ ناباکه کیدو یقین نه وی په هرځائی کښې دَمونځ کولو اجازت دې بغیردَ بعضې مقاماتو نه چه هلته هم دَ څه عارضې دَ وجې نه دَ مونځ کولو اجازت نشته دکوم تفصیل چه تیرشوې دې.

③ نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ: دَ "رعب" معنی فزع او ویره ده یعنی چه کوم دښمن ماسره جنګ کولو دَپاره راشی دغه وخت هغوی زمانه دَ یوې میاشتې په مسافت باندې لرې وی چه زما رعب په هغوی باندې خور شی او هغوی زما نوم اوریدو سره په ړچیدو شی. اودَ ویرې دَ وجې نه تختی اوکه چرته هغوی جنګ هم کوی نو مرعوب کیدو سره ئی کوی.

④ وَجُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ مَسْجِدًا: مطلب دا چه مخکینوامتونوته دَ عبادت دَپاره دَ مخصوص مقاماتو نه علاوه چرته دَ مونځ کولو اجازت نه وولیکن الله پاك دَ امت محمدیه دَ آسانئی دَپاره حمام، قصاب خانه اومقبرې نه علاوه هر ځائی کښې دَمونځ کولو اجازت ورکړې دې.

⑤ وَأُحِلَّتْ لِيَ الْغَنَائِمُ: په مخکینو ادیانوکښې مال غنیمت دَ نبی سره دَ چا دَپاره هم حلال نه وو بلکه دَغنیمت مال به په یو اوچت ځائی باندې کیخودې شو که په هغې کښې به لږ شان غبن وو نو غیبی اور به هغه نه خوړلو اوکه غبن به نه وو نوغیبی اور به هغه خوړلو. خو زمونږ په شریعت کښې دَ غنیمت مال دَامت محمدیه دَپاره حلال دې اودَ نبی کریم ﷺ دَ پاره هم خمس او صفی اخستل جائز دی. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی په هغه زمانه کښې دَ غنیمت مال سوزولو کښې داحکمت وو چه دَ خلقو په جهادکښې نیت صحیح پاتې شی او په جهادکښې دَ اخلاص مرتبه باقی پاتې وی.

⑥ وَأُعْطِيتُ الشَّفَاعَةَ: الف لام عهدی دې یعنی ماته عام شفاعت راکړې شو داسې بل یو نبی ته نه دې حاصل.

⑦ وَبُعِثْتُ إِلَى النَّاسِ عَامَّةً: اوزما رالیږل دَ ټولو خلقو دَپاره اودَ قیامت پورې دی اودَ مخکینو انبیاء کرامو بعثت دَ خاص کسانو خاص علاقې او خاص زمانې دَ پاره وو.

۵۷۳۸-() [۱۰] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ ②: «فُضِّلْتُ عَلَى الْأَنْبِيَاءِ بِسِتٍّ: ③ أُعْطِيتُ جَوَامِعَ الْكَلِمِ، ④ وَنُصِرْتُ بِالرُّعْبِ، ⑤ وَأُحِلَّتْ لِيَ الْغَنَائِمُ، ⑥ وَجُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ مَسْجِدًا وَطَهُورًا، ⑦ وَأُرْسِلْتُ إِلَى الْخَلْقِ كَافَّةً، ⑧ وَخُتِمَ بِيَ النَّبِيُّونَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب المساجد/باب ومواضع الصلاة (رقم-۵ - (۵۲۳) واحمد فی المسند:۲/۴۱۲

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] ماته د شپږ مخصوص څیزونو په ذریعه نورو انبیاوو باندې فضیلت راکول شوي دي [۳] ماته جامع کلمات راکړې شو [۴] د دښمنانو په زړه کې د رعب اچولو په ذریعه ماته فتح او نصرت راکړې شو [۵] مال غنیمت زما د پاره حلال شو [۶] ټوله زمکه زما د پاره مسجد اوپاکونکې وګرځول شوه [۷] ټول مخلوق د پاره زه نبي راولیږل شوم [۸] او د نبوت او رسالت سلسله په ما ختمه شوه . (مسلم)

**حل اللغات:** - ① فُضِّلْتُ: فضیلت راکړې شوې دې ماته، ② جَوَامِعَ الْكَلِمِ: هِيَ الْكَلِمَاتُ الْيَسِيرَةُ الْمَعَانِيَ الْكَثِيرَةَ: چه الفاظ ئې کم وی خو معانی ئې ډیرزیات وی، یعنی الفاظو ئې کم وی خو دَ دین حکمتونه، احکام او دَ هدایت خبرې، مذهبی اودنیاوی امورو سره متعلق نور څیزونه پکښې ډیر وی. ③ كَافَّةً: ټولو دپاره (په دې کښې جن وانس، ملائک، حیوانات او جمادات ټول شامل دی).

**تسهیلات:**

**قوله:** أُعْطِيتُ جَوَامِعَ الْكَلِمِ:

**د جوامع الکلم څخه مراد:** دې نه مراد دَ دین حکمتونه، احکام او دَ هدایت خبرې، مذهبی اودنیاوی امورو سره متعلق نور څیزونه دَ بیانولو ماته یو مخصوص اسلوب راکړې شو یعنی ماته دَ الفاظو دَ مختصرکولو طاقت راکړې شوې دې چه زه په کمو الفاظو کښې دَجامع،مانع معانی اظهارکوم اودَدې اسلوب خصوصیت دادې چه «إنما الأعمال بالنيات، الدين نصيحة» دَدې په شان ډیرزیات احادیث دی په کوم کښې چه جملې خو وړې وی مګر ټول شریعت او طریقت په هغې کښې پروت وی. دا رنګ په شرح السنه کښې وئیلی شوی دی چه دَ جوامع الکلم نه مراد قرآن کریم دې. الله پاك په خپل لطف اوکرم سره په الفاظوکښې بې شمیره معانی اواحکام جمع کړی دی.

**قوله:** وَأُرْسِلْتُ إِلَى الْخَلْقِ كَافَّةً:

**د خلق څخه مراد:** "خلق" نه مراد ټول مخلوق دې که هغه ساه والا وی اوکه بې ساه والا وی. که عاقل وی اوکه غیرعاقل په ټولو باندې دَ رسول الله مبارك دَنبوت احکام نافذ کیږی. اودا جدا خبره ده چه احکام دَ هر مخلوق دپاره جدا جدا دی.

**[۵۷۴۹] حضور ﷺ د پاره د خزانو چابیانې**

| ۵۷۴۹ - ( ) [۱] [۱] وَعَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ [۲]: «بُعِثْتُ بِجَوَامِعِ الْكَلِمِ، [۳] وَنُصِرْتُ بِالرُّعْبِ، [۴] وَبَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِي أُتِيتُ بِمَفَاتِيحِ خَزَائِنِ الْأَرْضِ فَوُضِعَتْ فِي يَدِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «نصرت بالرعب مسيرة شهر» (رقم-۲۹۷۷) ومسلم فی کتاب المساجد/باب ومواضع الصلاة (رقم-۶ - (۵۲۳) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: وجوب الجهاد (رقم-۳۰۸۷) واحمد فی المسند:۳۷۱/۲

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] زه جامع کلماتو سره مبعوث شوی يم [۳] د رعب په ذريعه ماته نصرت راکړي شوي دي [۴] او يوه ورځ هرکله چې زه اوده وم نو ما په خوب کې وليدل چې د زمکې د خزانو چابياني ماته راکولو د پاره راوړل شوي او څما په مخکې پيش شوي. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَبَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِي أُتِيتُ بِمَفَاتِيحِ خَزَائِنِ الْأَرْضِ:

**د بمفاتيح خزائن الارض په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دَدې کلام نه مقصود دادې چه دا ټولې علاقې به فتح کيږي زما متبعين صحابه او تابعين به دا علاقې فتح کوی اوخزانې به حاصلوی.

② دا چه دَ دغه مفتوحه علاقو معدنيات به دوی ته ملاويږي. چنانچه دا پيشنګوئي رښتيا ثابته شوه اودَ مشرق اومغرب اکثر علاقې دَحضرت عمر رضي الله عنه اوحضرت عثمان رضي الله عنه په دور کښې اودَې نه پس دَ تابعينو دَ خلفاؤ په لاسونو کښې راغلې. نن صباهم دَمعدنيات اکثرخزانې دَمسلمانانو په لاس کښې دی اوکه چرې مسلمان حکمرانان جهاد اوکړي نو ټولې خزانې به دَهغوی لاسونو ته راشي اودَ مشرق اومغرب بلکه دَ ټولې دنيا مالکان به جوړشي. راتلونکې روايت او نور يوځو رواياتو تشريح اوتوضيح هم دغه شان ده.

**[۵۷۵۰] امت محمديه د پاره خصوصي عنايات ربّاني**

> ۵۷۵۰-() [۳] [۱] وَعَنْ ثَوْبَانَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ اللّٰهَ زَوَى لِيَ الْأَرْضَ، [۳] فَرَأَيْتُ مَشَارِقَهَا وَمَغَارِبَهَا، [۴] وَإِنَّ أُمَّتِي سَيَبْلُغُ مُلْكُهَا مَا زُوِيَ لِي مِنْهَا، [۵] وَأُعْطِيتُ الْكَنْزَيْنِ: الْأَحْمَرَ وَالْأَبْيَضَ، [۶] وَإِنِّي سَأَلْتُ رَبِّي لِأُمَّتِي أَنْ لَا يُهْلِكَهَا بِسَنَةٍ عَامَّةٍ، [۷] وَأَنْ لَا يُسَلِّطَ عَلَيْهِمْ عَدُوًّا مِنْ سِوَى أَنْفُسِهِمْ فَيَسْتَبِيحَ بَيْضَتَهُمْ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ثوبان رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] الله جل جلاله زما د پاره ټوله زمکه راغونډه کړه يعنې هغه راټولولو سره د يو تلې (هتهيلې) يي برابر کړه او بيايي ماته و خودی [۳] نو ما مخ د زمکې د مشرق نه مغرب پورې اوليدلو [۴] او زه په يقين سره ويلی شم چې څما امت به ډير نزدې په مخ د زمکې د هغه ټولو علاقو بادشاهي سره سرفراز شي چې راټولولو سره ماته ښودل شويدي [۵] او دا هم حقيقت دی چې ماته سرخ وسفيد سرې او سپينې دوه خزانې راکړي شوي وی دی [۶] او ماخپل پروردګار ته التجاء

---

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب هلاک هذه الأمة بعضهم ببعض (رقم-۱۹ - (۲۸۸۹) وابوداود فی کتاب الترجل /باب ذکر الفتن ودلائلها (رقم-۴۲۵۲) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی سؤال النبی صلی الله علیه وسلم ثلاثًا فی أمته (رقم-۲۱۷۶) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب ما یکون من الفتن (رقم-۳۹۵۲)واحمد فی المسند:۲۷۸/۵

وکړه چې څما د امت خلق عام قحط سره مه وژنه يعنی داسې قحط مه په مسلط کوه چې په هغه کې مبتلا کيدو سره پوره امت هلاك شي [۷] او داچې څما امت باندې د مسلمانانو نه علاوه څوك غير مسلم مسلط مه کړي چې د هغوئ اجتماعيت او د ملي نظام په مرکز قبضه وکړي

**حل اللغات:** - ① زَوَى: أَيْ: جَمَعَهَا: راټوله کړې ئې ده، ② سَيَبْلُغُ: اوبه رسيږی، حاصل به کړی، ③ الْكَنْزَيْنِ: د کنز تثنيه ده، دوه خزانې، ④ الْأَحْمَرَ: سور (ددې نه مراد د کسرٰی خزانې دی چه دهغوی زيات تر استعمال سره زردی). ⑤ الْأَبْيَضَ: سپين (ددې نه مراد د قيصر خزانې دی چه دهغوی اکثر استعمال سپين زر دی).

[۱] وَإِنَّ رَبِّي قَالَ [۲]: يَا مُحَمَّدُ إِنِّي إِذَا قَضَيْتُ قَضَاءً فَإِنَّهُ لَا يُرَدُّ، [۳] وَإِنِّي أَعْطَيْتُكَ لِأُمَّتِكَ أَنْ لَا أُهْلِكَهُمْ بِسَنَةٍ عَامَّةٍ، [۴] وَأَنْ لَا أُسَلِّطَ عَلَيْهِمْ عَدُوًّا مِنْ سِوَى أَنْفُسِهِمْ فَيَسْتَبِيحَ بَيْضَتَهُمْ، [۵] وَلَوِ اجْتَمَعَ عَلَيْهِمْ مَنْ بِأَقْطَارِهَا [۶] حَتَّى يَكُونَ بَعْضُهُمْ يُهْلِكُ بَعْضًا، وَيَسْبِي بَعْضُهُمْ بَعْضًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او څما رب وفرمايل [۲] اې محمد! هرکله چې زه د يوې خبرې فيصله وکړم نو هغه بدليدی نشی [۳] او زه ستا د امت په حق کې تاته خپل دا عهد او فيصله درکوم چې مسلمانان به نه خو عام قحط کې هلاك کړم [۴] او نه به خپله د هغوئ نه علاوه څه بل دښمن باندې مسلط کړم چې د هغوئ اجتماعيت او د ملي نظام په مرکز قبضه وکړي [۵] که څه هم هغه مسلمانانو باندې په مخ د زمکې غير مسلم دښمن راجمع کيدو سره حمله آور شي [۶] خو داچې ستا د امت خلق به خپلو کې يوبل قتلوي او يوبل به د قيد وبند تکليفونو کې اچوي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ⑥ بِسَنَةٍ: أَيْ: بِقَحْطٍ: قحط سالی، اوچ کالی. ⑦ عَامَّةٍ: أَيْ: شَائِعٍ لِجَمِيعِ بِلَادِ الْمُسْلِمِينَ: عام قحط چه د مسلمانانو ټول ښارونه پکښې اخته شی، او تباهئ سبب جوړ شی. ⑧ فَيَسْتَبِيحَ: أَی يَسْتَأْصِلُهُمْ: چه د بيخه ټول هلاک کړی (حلال ګڼړلو سره تباه کول مراددی.) ⑨ بَيْضَتَهُمْ: أَيْ: مُجْتَمَعَهُمْ مَوْضِعَ سُلْطَانِهِمْ: د بيضة نه مراد د بادشاهت او سلطنت ځائې مراد دې يعنی مرکز د مسلمانانو او مرکز د دين دمسلمانانو. ⑩ بِأَقْطَارِهَا: د قُطر جمع ده، أَيْ: بِأَطْرَافِهَا: اطراف او اړخونه د زمکې مراد دی. ⑪ يَسْبِي: أَيْ: يَأْسِرُ: قيد کړی يوبل لره.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① زَوَى: دَ زمکې دَ راغونډولو او مشرق اومغرب خودلونه مراد هم دغه فتوحات دی. دسرو اوسپينو خزانونه مراد سره زر اوسپين زر دی.

② بَيْضَتَهُمْ: بيضه مرکزی مقام ته وائی. مرکزيت اجتماعيت او انتظامی ملی نظام مراددې چه دا به دښمن ذره ذره کولې نه شی.

③ وَإِنِّي أَعْطَيْتُكَ لِأُمَّتِكَ أَنْ لَا أُهْلِكَهُمْ بِسَنَةٍ عَامَّةٍ:

**دامت محمدی د حفاظت دپاره د دوو څیزونو وعده:**

په دې حدیث کښې الله تعالی دَحضور پاك دَامت حفاظت او دَامن او سلامتیا دَپاره دَ دوه څیزونو وعده فرمائیلې ده.

① لَا أُهْلِكَهُمْ بِسَنَةٍ عَامَّةٍ: چه عام اولګه تنده او اوچ کالئ سره به دا امت نه شی هلاك کولې.

② لَا أُسَلِّطَ عَلَيْهِمْ عَدُوًّا: چه دَاسلام دښمنان به په دوی باندې داسې نه شی مسلط کولې چه دَدوی مرکزیت او دَ سلطنت بنیاد ختم کړی سره دَدې چه دَتولې دنیا دښمنان راجمع شی. اوکه په خپل مینځ کښې اوجنګیږی او دَ بهر نه دښمن راشی اودَهغوی مرکزیت ختمول غواړی نوهغه یوه جدا خبره ده. په دې حدیث سره معلومه شوه چه دې امت ته دَ خپل مینځ اختلاف او نفاق نقصان رسولې شی کوم چه دَ پوره دنیا کافران نه شی وررسولې.

**[۵۷۵۱] د خپل امت په حق کې د حضور ﷺ هغه دعا چه قبوله نه شوه**

۵۷۵۱-() [۳] ① وَعَنْ سَعْدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- ② «أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَرَّ بِمَسْجِدِ بَنِي مُعَاوِيَةَ، ③ دَخَلَ فَرَكَعَ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ وَصَلَّيْنَا مَعَهُ، ④ وَدَعَا رَبَّهُ طَوِيلًا، ثُمَّ انْصَرَفَ فَقَالَ: ⑤ سَأَلْتُ رَبِّي ثَلَاثًا، فَأَعْطَانِي ثِنْتَيْنِ، وَمَنَعَنِي وَاحِدَةً، ⑥ سَأَلْتُ رَبِّي أَنْ لَا يُهْلِكَ أُمَّتِي بِالسَّنَةِ، ⑦ فَأَعْطَانِيهَا، وَسَأَلْتُهُ أَنْ لَا يُهْلِكَ أُمَّتِي بِالْغَرَقِ فَأَعْطَانِيهَا، ⑧ وَسَأَلْتُهُ أَنْ لَا يَجْعَلَ بَأْسَهُمْ بَيْنَهُمْ فَمَنَعَنِيهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** ① او حضرت سعد ﷺ بیان کوي یوه ورځ رسول الله ﷺ د انصارو ② د یوې قبیلې بني معاویه د مسجد نه نزدې تیر شو ③ نو دننه مسجد ته یې تشریف راوړی او هلته یې دوه رکعاته مونځ وکړ په دې ما نځه کې حضور ﷺ سره مونږ هم شریك وو ④ د ما نځه نه وروسته حضور ﷺ خپل پروردګار نه ډیره اوږده دعا وغوښتله یعنی ډیر وخته پورې دعا کې مصروف وو بیا چې مونځ او دعا نه فارغه شو نو مونږ ته متوجه کېدو سره یې وفرمایل ⑤ مانن خپله دعاکې دخپل پروردګار نه درې څیزونه غوښتلي وه په هغه کې دوه څیزونه خوماته عطاسو او د یوشي منع وشوه ⑥ د یو شي درخواست ما داکړی وو چې څما امت دعام قحط په وجه هلاك نشي او څما دا درخواست قبول شو ⑦ اوما درخواست وکړو چې زما امت په غرقیدو سره مه هلاك کوه یعنی څرنګه چې د فرعون قوم دریائي نیل کې غرق کیدو سره هلاك شو یا د نوح قوم د اوبو په طوفان کې مبتلا کیدو سره نیست ونابود شو دغه شان څما امت په دې اوبو کې غرق یده سره هلاك نشي او څما دا درخواست هم قبول شو ⑧ دریم درخواست داوو چې څما د امت خلق په

---

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب هلاک هذه الأمة بعضهم ببعض (رقم-۲۱ - (۲۸۹۰) واحمد فی السند:۱/۱۸۲

خپلو کې دست وګريبان په جنګ نه وي يعنی مسلمان د مسلمان سره دي په جنګ نه وي او په خپلو کې دي د يوبل خلاف محاذ آرائي نه کوي ليکن ځما دا درخواست قبول نه شو. (مسلم)

**حل اللغات:-** ①الْغَرَق: ددې نه عام غرقيدل مراد دی چه په يوځل ټول په غرق شی لکه فرعونيان يا قوم د نوح عليه السلام چه هلاک شوی وو. ②بأسَهُمْ: أي: حَرْبَهُمْ: خپل مينځ کښې د يوبل سره جنګ جګړې کول.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَرَّ بِمَسْجِدِ بَنِي مُعَاوِيَةَ:

**د نبی عليه السلام درې دعاګانې غوښتل:** بنومعاويه دَ انصار مدينه دَ يوې قبيلې نوم دې. رسول الله ﷺ يوه ورځ دغه قبيلې ته تشريف يوړو. دَهغوی په جمات کښې حضورپاك دَتحية المسجد دوه رکعته نفل اوکړل او صحابه کرامو رضی الله عنهم هم ځان ځانله دَتحية المسجد نوافل اوکړل. بيا رسول الله ﷺ سلام ګرځولو سره يو اوږده دعا اوکړه. الله تعالی رسول الله ﷺ ته دَ دوو خبرومتعلق دَ دعا غوښتلو اجازت ورکړو اوهغه دعاګانې قبولې شوې. خودَ دريمې خبرې متعلق دَ دعا غوښتلو اجازت ئې ورنه کړو. دې نه معلومه شوه چه بعضې وخت به دَ انبياء کرامو دعا هم نه قبليدله کيدې شی چه دَ نه قبليدو نه مرادپه هغه وخت فوری نه قبليدل وی.

**اشکال:** دَ حضورپاك دَامت په حق کښې دوه دعاګانې قبولې شوې يو په قحط کالئی کښې دَ اخته کيدو نه بچ کيدل اودويمه دَ غرقيدو نه بچ کيدل ليکن مونږ خو ګورو چه خلق په قحط کالئی کښې راګيرېږی اودغه شان په سيلاب وغيره کښې غرقيږی هم نودا دَ حديث الباب خلاف دی؟

**د اشکال جواب:** دَ حضورپاك دَ دعا دَقبليدو مطلب دادې چه پوره امت به په اجتماعی توګه باندې په قحط او غرقيدو کښې نه راګيرېږی. په دې وجه بعضې ځايونوکښې دَ قحط او دَ غرقيدو وجې نه هلاکيدل په انفرادی توګه باندې دی لهذا هيڅ اشکال باقی پاتې نه شو.

**[۵۷۵۲] په تورات کې د حضور ﷺ د اوصافو ذکر**

۵۷۵۲-() [۳] ①وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، قَالَ②: لَقِيتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قُلْتُ③: أَخْبِرْنِي عَنْ صِفَةِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي التَّوْرَاةِ،④ قَالَ: أَجَلْ، وَاللّٰهِ إِنَّهُ لَمَوْصُوفٌ فِي التَّوْرَاةِ بِبَعْضِ صِفَتِهِ فِي الْقُرْآنِ⑤: ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا﴾ [الأحزاب: ۴۵] ⑥وَحِرْزًا لِلْأُمِّيِّينَ،

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب البیوع/باب کراهية السخب فی السوق (رقم-۲۱۲۵) واحمد فی المسند: ۲/۱۷۴

**ترجمه**: [۱] او حضرت عطاء ابن يسار مشهور جليل القدر تابعي وايي [۲] زه د حضرت عبد الله بن عمرو ابن العاص ﷜ په ملاقات مشرف شوم هغوئ ته مي عرض وكړو [۳] چې (د يهوديانو آسماني كتاب) په تورات كې د رسول الله ﷺ د كومو صفاتو او خصوصياتو ذكر دى د هغه په باره كې ماته څه وښايي [۴] حضرت عبد الله ﷜ وفرمايل ضرور به درته وښايم قسم په الله په تورات كې د حضور ﷺ د بعضي هغه صفاتو او خصوصياتو ذكر دى چې په قرآن كريم كې مذكور دى [۵] الله ﷻ چې په تورات كې د حضور ﷺ كوم صفات او خصوصيات ذكر كړي دي هغه په خپله ژبه او خپل اسلوب كې داسې بيا كيدى شي چې اې نبي ! مونږ ته د اهلِ ايمانو شاهد د اجر وانعام خوشخبري وركونكى د عذاب وعتاب نه بيرونكى [۶] او اميانو ته پناه وركونكى جوړولو سره ليږلى يي.

**حل اللغات**:- ① أَجَل: هُوَحَرْفٌ يُصَدَّقُ بِهَا الْخَبَرُ خَاصَّةً: په دې سره د يو خاص خبرې تصديق كولې شى، ددې معنى ده: أَيْ: نَعَمْ أُخْبِرُكَ: ښه بيانوم درته، ② شَاهِدًا: ګواه (په خپل امت باندې)، يا مشاهده كونكې د قدرتونو د الله تعالى، ③ مُبَشِّرًا: أَيْ: لِلْمُؤْمِنِينَ بِالْمَثُوبَةِ: زيرې وركونكې (مسلمانانو ته د ثواب د نيكو اعمالو). ④ نَذِيرًا: أَيْ: مُنْذِرًا وَمُخَوِّفًا لِلْكَافِرِينَ بِالْعُقُوبَةِ: ويرونكې (كافرانو لره په عذاب سره). ⑤ حِرْزًا: أَيْ: حِصْنًا: پناه وركونكې، بچ كونكې. محافظ. ⑥ لِلْأُمِّيِّينَ: انپړه چه نه ليكل كولې شى اونه په ليكلو پوهيږي (اكثر عرب دغسې وو څكه ورته اميان اوونيلى شو، يا ام القرى ته منسوب كيدو په وجه، يا په دې وجه چه پيغمبر دهغوى أُمى وو څكه ورته اميان اوونيلى شو).

[۱] أَنْتَ عَبْدِي وَرَسُولِي، سَمَّيْتُكَ الْمُتَوَكِّلَ، [۲] لَيْسَ بِفَظٍّ وَلَا غَلِيظٍ وَلَا سَخَّابٍ فِي الْأَسْوَاقِ، [۳] وَلَا يَدْفَعُ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ، وَلَكِنْ يَعْفُو وَيَغْفِرُ، [۴] وَلَنْ يَقْبِضَهُ اللّٰهُ حَتّٰى يُقِيمَ بِهِ الْمِلَّةَ الْعَوْجَاءَ بِأَنْ يَقُولُوا: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، [۵] وَيَفْتَحُ بِهَا أَعْيُنًا عُمْيًا وَآذَانًا صُمًّا وَقُلُوبًا غُلْفًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] اې محمد ! ته څما بنده يي چې د عبوديت او بندګي هغه خاص مرتبه خاص تاته حاصله ده چې بل چاته نصيب نه ده ته بنده ګانو طرف ته ليږل شوي څما خاص رسول يي ما ستا نوم متوكل اينبى دى يعنى تاته د توكل او اعتماد هغه دولت عطا شوي دي چې بل چاته نه دى حاصل په دي بناء ته خپل معاملاتو او مهماتو كې خپل طاقت او صلاحيت باندې د اعتماد كولو په ځاي صرف څما ذات او څما حكم باندې بهروسه لره [۲] نه خوته بدخويه يي نه سخت ګيرا ونه سخت زړه يي او نه بازارونو كې شور كونكى يي [۳] په تورات كې داهم بيان شوي دي چې هغه محمد به په بدى سره بدي نه لري كوي يعنى هغه به څان سره بدي كونكى نه بدل انتقام نه اخلي او هغه ته به سزا نه وركوي بلكه معافي به ورته كوي او احسان به ورباندې كوي چې بدي كونكي د پاره به دعائي مغفرت

کوي [٤] او الله ﷻ به د محمد روح هغه وقته پورې نه قبض کوي ترڅو پورې چې د هغوئ په ذريعه کَج رو او ګمراه قوم په سيده لار رانه ولي داسې چې د قوم خلق به اعتراف او اقرار وکړي چې الله ﷻ نه ماسوا بل معبود نشته [٥] او ترهغه وقته پورې به د هغوئ روح نه قبض کېږي د څوپورې چې د الله ﷻ د کلمه طيبه لااله الا الله په ذريعه ړندي سترګي کاڼه غوږونه او بي حس زړونه درست نه کړي دا روايت بخاري د عطاء ابن يسار نه نقل کړى دى،

**حل اللغات:**- ⑦ الْمُتَوَكِّل: ډير زيات توكل او اعتماد كونكې (په الله تعالى باندې). ⑧ لَيْسَ بِفَظٍّ: أى لَيْسَ بِسَيِّءِ الْخُلُقِ أوالقَوْلِ: بد اخلاقه او بد زبانه نه ئې، ⑨ غَلِيظٍ: أى غَلِيظِ الْقَلْبِ: سخت زړه، يا بدخويه، بدكاره، ⑩ سَخَّابٍ: أيْ: صَيَّاح: چغې وهونكې، شور كونكې، ⑪ يُقِيمَ: قائم كړى، نيغ كړى (يعنى په سمه لارئې كړى). ⑫ الْمِلَّةَ: قوم، امت (ملت ابراهيمى مراد دې) ⑬ الْعَوْجَاءَ: كَج رو، ګمراه او بي دينه خلق، ⑭ أعْيُنًا: د عين جمع ده، سترګې، ⑮ عُمْيًا: د أعْمَى جمع ده، ړندې، نابينا. ⑯ آذَانًا: د أُذُن جمع ده، غوږونه، ⑰ صُمًّا: د أصَمّ جمع ده، كڼې، ⑱ قُلُوبًا: د قلب جمع ده، زړونه، ⑲ غُلْفًا: د أغْلَف جمع ده، پرده.

٥٧٥٨- [١] وَكَذَا الدَّارِمِيُّ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ سَلَامٍ، نَحْوَهُ. [٢] وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ: نَحْنُ الْآخِرُونَ فِي بَابِ الْجُمُعَةِ.

**ترجمه:** [١] او دا حديث دارمي هم د عطاء ابن يسار نه نقل كړى دى البته دارمي كې د عطاء ابن يسار داروايت د عبد الله ابن عمرو ابن العاص په ځاي عبد الله ابن سلام رضي الله عنه نه منقول دى [٢] او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه هغه روايت چې د حضور ﷺ د فضائلو متعلق دى او د هغه ابتداء نحن الآخرون الفاظو نه كېږي باب الجمعه كې نقل شوي دي .

**حل اللغات:**- ① الْآخِرُونَ: دټولو نه آخر كښې يعنى روسته راتلونكى (په دنيا كښې).

**تسهيلات:**

**د بعضې مشكلو جملو وضاحت،**

① وَحِرْزًا: يعنى حضورپاك الله تعالى دَ عربودَپاره دَ پناه ځائى جوړكړو مضبوط جوړكړو په كوم كښې چه دَ شيطان دَ اغوا يا عجم دَ غلبه نه عرب خلق محفوظ پاتې شي.

② وَلَا سَخَّابٍ: بازارونوكښې دَ بداخلاقئى دَ وجې نه چغې صورې وهلو په معنى كښې دې. دې كښې ﴿فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ لِنتَ لَهُمْ﴾ طرف ته اشاره ده.

③ الْمِلَّةَ الْعَوْجَاءَ: دَملت ابراهيمى هغه صورت مراد دې كوم چه دَ مكې مشركانو كوګ جوړكړي وو. رسول الله ﷺ هغه نيغ كړو اودَين اسلام په شكل كښې پيش كړو. والحمد لله على ذلك.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٥٧٥٤] د مسلمانانو د پاره د حضور ﷺ دري دعاګاني

٥٧٥٤-() [١٥] [١] عَنْ خَبَّابِ بْنِ الْأَرَتِّ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَاةً، [٢] فَأَطَالَهَا. قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَصَلَّيْتَ صَلَاةً لَمْ تَكُنْ تُصَلِّيهَا، [٣] قَالَ: (أَجَلْ، إِنَّهَا صَلَاةُ رَغْبَةٍ وَرَهْبَةٍ، [٤] وَإِنِّي سَأَلْتُ اللّٰهَ فِيهَا ثَلَاثًا فَأَعْطَانِي اثْنَتَيْنِ وَمَنَعَنِي وَاحِدَةً، [٥] سَأَلْتُهُ أَنْ لَا يُهْلِكَ أُمَّتِي بِسَنَةٍ فَأَعْطَانِيهَا،

**ترجمه:** [١] حضرت خباب بن ارت رضي الله عنه وايي يوه ورځ رسول الله ﷺ مونږ ته مونځ راکی [٢] او هغه يي خلاف معمول کافي اوږد کی مونږ ما نځه نه فارغيدو نه وروسته عرض وکړو يارسول الله! تاسو دومره اوږد مونځ راکی چې دومره خو هيڅ کله نه وو راکړی [٣] وي فرمايل هو دا مونځ ډير زيات اوږد په دي وجه شو چې دا د اميد وخواهش اود خوف ودهشت مونځ وو يعنی د دې ما نځه په دوران کې الله جل جلاله نه مي څه دعاګاني غوښتلي او چيرته چې د هغه دعاګانو د قبوليت اميد وو هلته د عدم قبوليت نه قبليدو خوف هم وو ځکه زه ډير زيات خشوع وخضوع او عرض والتجا کی مصروف وم چې هغه سره پوره مونځ ډير طويل اوږد شو [٤] حقيقت دادی چې ما ما نځه کې د دريو خبرو التجاء وکړه درخواست مي وکړي هغه کې دوه ماته راکړي شوي او يوه نه انکار وشو [٥] ما الله جل جلاله ته يوه التجاء خو دا کړي وه چې هغه ځما امت په عام قحط يا داسې څه آفت او بلاکي مبتلا نه کړي چې هغه سره پوره امت تباه او هلاك شي ځما دا التجاء پوره شوه

**حل اللغات:-** ① رَغْبَةٍ: أَيْ: رَجَاءٍ: اميد، خواهش (د ثواب) ② رَهْبَةٍ: أَيْ: خَوْفٍ: ويره (د الله تعالى نه، يا د عذاب دهغه نه).

[١] وَسَأَلْتُهُ أَنْ لَا يُسَلِّطَ عَلَيْهِمْ عَدُوًّا مِنْ غَيْرِهِمْ، [٢] فَأَعْطَانِيهَا [٣] وَسَأَلْتُهُ أَنْ لَا يُذِيقَ بَعْضَهُمْ بَأْسَ بَعْضٍ فَمَنَعَنِيهَا» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] دويمه التجاء دا وه چې مسلمانانو باندې څه داسې غير مسلم دښمن مسلط نشي چې خپل اسلام او مسلم دښمني کې هغوئ نيست ونابود کې [٢] ځما دا التجاء هم پوره شوه [٣] ما دريمه التجاء دا کړي وه چې مسلمانان خپلو کې يوبل ته هلاکت او عقوبت کې مخ نشي يعنی د هغوئ باهمي اتحاد هميشه جوړوي. هغوئ د يوبل خلاف محاذ آرا نه وي او خپلو کې جنګ دنګړي کولو سره خپل ملي طاقت کمزوری نه کړي ليکن ځما دا التجاء قبوله نه شوه. (ترمذي نسائي)

[1] ) اخرجه النسائي في السنن كتاب قيام الليل وتطوع النهار/باب إحياء الليل (رقم-١٦٣٨) والترمذي في كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في سؤال النبي صلى الله عليه وسلم ثلاثا في أمته (رقم-٢١٧٥) واحمد في المسند١٠٩/٥

**حل اللغات:**-③لَايُذِيقَ: چه اونه څکی یعنی اخته او مبتلا نه شی د یوبل سره، ④بَأْسَ: أَيْ: حَرْب: جنګ، اختلاف.

**تسهیلات:**

**قوله:** صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-صَلَاةً، فَأَطَالَهَا:

**د فَأَطَالَهَا په مفهوم کښې درې اقوال:**

① رسول الله ﷺ یا خودَ مونځ ټول ارکان اوږده اوکړه.

② یا دَ مونځ نه پس په سجده کښې ئی دعا اوږده کړه.

③ یا دَ مونځ نه پس ئی دعا اوږده کړه.

**قوله:** قَالَ: أَجَلْ، إِنَّهَا صَلَاةُ رَغْبَةٍ وَرَهْبَةٍ:

**د امید او ویرې په وخت کښې مونځ اوږدول:** دَدې مطلب دادې چه په نورو مونځونو کښې امید غالب وی یا دَ الله تعالی ویره مګر دا داسې مونځ وو چه په دې کښې امید اودَ الله تعالی ویره دواړه په کامل توګه باندې جمع وو. لهذا چه کله داسې مونځ حاصل شی نو ښه اوږد کول پکار دی دې دَپاره چه ویرې او امید کمال دَ ډیر وخته پورې باقی پاتې شی.

**قوله:** إِنَّهَا صَلَاةُ رَغْبَةٍ وَرَهْبَةٍ:

**د ویرې او امید نه دوه مطلبونه:**

① دَ ویرې او امید نه مراد دَ خپل امت متعلق ویره او امید دې ګنی رسول کریم ﷺ ته دَ خپل محبوبیت او مقبولیت کامل یقین وو.

② رسول کریم ﷺ کومه دعا اوغوښتله دَ هغه دعا دَ قبلیدو امید ئی وو اودَ نه قبلیدو ویره ئی وه. چنانچه هم دغه شان اوشو چه دوه دعاګانې قبولې شوې اودَ یوې نه منع کړې شو.

**قوله:** سَأَلْتُهُ أَنْ لَا يُهْلِكَ أُمَّتِي بِسَنَةٍ:

**د سنة نه مراد اود دعا مقصد:** "سنة" نه مراد عام قحط دې او په دې کښې عام وباء هم داخله ده. دَ رسول الله ﷺ دَ دعا مقصد دا وو چه قحط سره زما امت دَمخ دَ زمکې نه ختم نه کړې شی.

**قوله:** عَدُوًّا مِنْ غَيْرِهِمْ:

**د "غیرهم" نه مراد:** ددې نه مراد کافران دی چه کافران په مسلمانانو باندې داسې مه مسلط کوې چه هغوی مسلمانان په مکمل توګه باندې هلاك کړی. لهذا دَدې نه دَ مسلمانانو خپل مینځ کښې دښمنی مراد نه ده ځکه چه په دې سره مجموعی هلاکت نه واقع کیږی. (مرقات: ۱۱/۵۶)

**[۵۷۵۵] مسلمانان دريو څيزونو نه محفوظ ساتل شوي دي**

۵۷۵۵-(۱) [۲] [۱] وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ أَجَارَكُمْ مِنْ ثَلَاثِ خِلَالٍ [۳]: أَنْ لَا يَدْعُوَ عَلَيْكُمْ نَبِيُّكُمْ فَتَهْلَكُوا جَمِيعًا، [۴] وَأَنْ لَا يَظْهَرَ أَهْلُ الْبَاطِلِ عَلَى أَهْلِ الْحَقِّ [۵] وَأَلَّا تَجْتَمِعُوا عَلَى ضَلَالَةٍ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] مسلمانانو الله جل جلاله تاسو دريو څيزونو نه محفوظ کړي يي [۳] يو خو دا چي ستاسو نبي ستاسو د پاره بد دعا نه کوي چې هغه سره تاسو هلاك شئ څرنګه چې مخکې بعضې انبياء بد دعا کولو سره خپل قوم هلاك او برباد کی [۴] دويم دا چي باطل او ګمراه خلق به اهل حقو باندې غالب نه وي [۵] دريم دا چي څما ټول امت به ګمراهۍ باندې نه جمع کېږي.(ابو داؤد)

**حل اللغات:-** ① أَجَارَكُمْ: أَيْ: حَفِظَكُمْ: محفوظ ئې کړئ تاسو، ② خِلَالٍ: أَيْ: خِصَالٍ: خوئی، خصلت، صفت، ③ فَتَهْلَكُوا: نو هلاک به شئ. ④ لَا يَظْهَرَ: أَيْ: لَا يَغْلِبَ: غالب نه شي، زور آور نه شي.

**تسهيلات:**

**قوله: وَأَنْ لَا يَظْهَرَ أَهْلُ الْبَاطِلِ عَلَى أَهْلِ الْحَقِّ:**

**د اهل باطل په اهل حق باندې د نه غالب کيدلو مطلب:** يعنی اهل باطل په اهل حق باندې داسې غالب نه شی راتلې چه اهل حق دَ بيخه ختم کړې شي. اهل حق به هميشه قائم اودائم وی سره دَدې چه مغلوب وی مګر دَاسلام شمع به هميشه روښانه وی:

نورِ حق ہے کفر کی حرکت پہ خندہ زن ۔۔۔ پھونکوں سے یہ چراغ بجھایا نہ جائے گا
حاسد حسد کی آگ میں خود ہی جلا کرے ۔۔۔ وہ شمع کیا بجھے جسے روشن خدا کرے

يعنی دَاسلام نور حق دې اودَ کفر په دې حرکت باندې سړی ته خندا ورځی په پوکو باندې دَ اسلام دا چراغ مړه کيدې نه شي. او حاسد به دَخپل حسد په اور کښې هم پخپله سوزيږی او هغه شمع به څوك مړه کړی کومه چه الله تعالی روښانه کړی يعنی دَ اسلام مقابله هيڅوك نه شی کولې.

**[۵۷۵٦] دښمن خلاف متحد وي**

۵۷۵٦-(۲) [۱۷] [۱] وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲]: «لَنْ يَجْمَعَ اللَّهُ عَلَى هَذِهِ الْأُمَّةِ سَيْفَيْنِ: [۳] سَيْفًا مِنْهَا وَسَيْفًا مِنْ عَدُوِّهَا» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عوف ابن مالك رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] الله جل جلاله به

---

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ذکر الفتن ودلائلها (رقم-۴۲۵۳)

(۲) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ارتفاع الفتنة فی الملاحم (رقم-۴۳۰۱) واحمد فی المسند:۵۷۴٦

د دې امت خلاف دوه توري نه يوځاي کوي ۲ يوه توره خو خپله د مسلمانانو او دويمه توره د هغوئ د دښمنانو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① سَيْفَيْنِ: د سيف تثنيه ده، توري.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَنْ يَجْمَعَ اللّٰهُ عَلَى هٰذِهِ الْأُمَّةِ سَيْفَيْنِ:

**دمذکوره جملې مطلب:** يعنې په يو وخت به په دې امت باندې دوه توري نه يوځائی کيږي. که چرې دښمن سره جنګ او جهاد فی سبيل الله وی نو خپل مينځ کښې به جنګ نه وی (او که چرې دمنافقانو يوه ډله دښمن سره ملاؤشی نو بيابه دوه توري په يوځائی جمع کيږی) او که چرې دښمن سره جنګ او جهادنه وی نو بيابه خپل مينځ کښې جنګيږی لکه چه يو جاهلی شاعر اووئيل:

واحياناً على بكر اخينا    اذا مالم نجد الا اخانا

دَدې حديث نه مسلمانانو ته دا تعليم ملاويږی چه جهاد مقدس دَهميشه دَپاره جاری ساتل پکاردی ګنی خپل مينځ کښې به جنګيږی.

**[۵۷۵۷] د حضور ﷺ نسلي او نسبي فضيلت**

۵۷۵۷-()[۸] ۱ «وَعَنِ الْعَبَّاسِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ۲ أَنَّهُ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَكَأَنَّهُ سَمِعَ شَيْئًا. ۳ فَقَامَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ (مَنْ أَنَا؟) ۴ فَقَالُوا: أَنْتَ رَسُولُ اللّٰهِ. ۵ فَقَالَ: أَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، ۶ إِنَّ اللّٰهَ خَلَقَ الْخَلْقَ فَجَعَلَنِي فِي خَيْرِهِمْ، ۷ ثُمَّ جَعَلَهُمْ فِرْقَتَيْنِ فَجَعَلَنِي فِي خَيْرِهِمْ فِرْقَةً،

**ترجمه:** ۱ او حضرت عباس ﷺ نه روايت کوي ۲ چې هغوئ يوه ورځ د کفارو نه د حضور ﷺ په شان کې بدګوئي کول واوريدل نو د افسوس او قهر نه ډك د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو او وي وئيل چې کفار دا بکواس کوي که الله ﷻ ته په مکه کې يو سړی خپل نبي او رسول جوړول غوښتل نو د هغه ښار لوی لوی صاحب دولت وثروت او د اوچتي درجي سرداران پريښودلو سره د محمد انتخاب يي ولي وکړو حضور ﷺ چې دا واوريدل نو واضحه کولو د پاره چې د نسلي او نسبي او د خانداني عظمت او عزت د اعتبار نه د حضور ﷺ شان څه دی او مرتبه نبوت باندې فائز کيدو د پاره د نورو په مقابله کې د حضور ﷺ حيثيت او اهميت څه دی ۳ منبر باندې ودريدو سره وي فرمايل تاسو خلقو ته معلومه ده چې زه څوك يم؟ ۴ صحابه ؤ ﷺ عرض وکړو ته د الله

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی فضل النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۶۰۷) واحمد فی المسند؛

رسول يي حضور ﷺ وفرمايل هو زه د الله ﷻ رسول يم ليكن ځما نسلي او نسبي او خانداني عظمت څه دى په دي پوهيدو د پاره [۵] واورئ زه د عبد الله بن عبد المطلب ځوى محمد يم او عبد المطلب هغه هستي ده چې په عربو كې ډير بزرګ ومعزز ډير شريف پاكباز او انتهائي درجه مشهور ومعروف وو [۶] حقيقت دادى چې الله ﷻ مخلوق جنات او انسانان پيدا كړل نو زه يي په دي مخلوق كې بهترين مخلوق نوع انساني كې پيدا كرم [۷] بيا د دې بهترين مخلوق نوع انساني الله ﷻ دوه طبقي كړي يو عرب او دويم عجم او زه يي دي دواړو طبقو نه بهترين طبقه عربو كې پيدا كرم

**حل اللغات:-** ① الْخَلْقَ: دَ دې نه انسانان او جنات مراددى. ② فِرْقَتَيْنِ: د فرقة تثنيه ده، دوه ډلې، ددې نه مراد عجم او عرب دى.

[۱] ثُمَّ جَعَلَهُمْ قَبَائِلَ [۲] فَجَعَلَنِي فِي خَيْرِهِمْ قَبِيلَةً، [۳] ثُمَّ جَعَلَهُمْ بُيُوتًا فَجَعَلَنِي فِي خَيْرِهِمْ بَيْتًا، [۴] فَأَنَا خَيْرُهُمْ نَفْسًا وَخَيْرُهُمْ بَيْتًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بيا الله ﷻ دا بهترينه طبقه عرب قبائل قبائل كړل يعنى داطبقه يي مختلفو قبيلو او قومونو كې تقسيم كړه [۲] او زه يي دي قبائلو نه بهترين قبيله (قريش) كې پيدا كرم [۳] بيا الله ﷻ د دې قبيله قريش مختلفي كورني جوړي كړي اوڅه په دغه كورونيو كې د ټولو نه ښه كورنۍ بنوهاشم كې پيدا كړم [۴] او زه په دي ټول نوع انساني او ټول اهل عرب كې د ذات او حسب د اعتبار نه هم د ټولو نه ښه او اعلى يم او د خاندان او كورنۍ د اعتبار نه هم د ټولو نه اوچت يم. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ③ قَبَائِلَ: د قبيلة جمع ده، قبيلې، خاندانونه. ④ بُيُوتًا: أَيْ: بُطُونًا: كورنۍ، خاندانونه.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشكلو جملو وضاحت:**

① خَلَقَ الْخَلْقَ: د خلق مصدر دې د مخلوق په معنى كښې استعمال شوې دې.

② خَيْرِهِمْ: يعنى دَ جنات او انسان نه ئې زه په بهترين مخلوق كښې پيدا كړم كوم چه انسانان دى. دې نه معلومه شوه چه انسان دَ جنات نه افضل دې.

③ فِي خَيْرِهِمْ: دَدغه بهترفرقې نه مراد عرب دى. معلومه شوه چه عرب دَ عجم نه افضل دى څكه چه دَحضورپاك خاندان دې.

④ جَعَلَهُمْ: يعنى عرب الله تعالى په قبيلو قبيلو كښې تقسيم كړل.

⑤ بَيْتًا: يعنى زه ئې په ټولو كښې په ښكلې اوبهتر كورنئى كښې پيدا كړم چه دَ بنوهاشم كورنئى ده. لهذا زه په حسب نسب كښې دَ ټولو نه اعلى او اوچت يم نوزما ترۀ عباس هم په نسلى اونسبى اعتبارسره دَ ټولو نه ښكلې پيدا كړې.

**قوله: ثُمَّ جَعَلَهُمْ قَبَائِلَ فَجَعَلَنِي فِي خَيْرِهِمْ قَبِيلَةً:**

**د قبائل په تقسیم کښې څو الفاظ او د هغې وضاحت:**

① شعوب داد تولو نه لوئی دي. ② بیا قبائل ③ بیا عماره ④ بیا بطن ⑤ بیا فخذ ⑥ بیا فصیله. چنانچه خزیمه شعب دي. کنانه قبیله ده، قریش عماره دی، قصی بطن دي، بنوهاشم فخذ دي او بنوعباس فصیله دي.

**[۵۷۵۸] د نبی علیه السلام د نبوت آغاز**

۵۷۵۸-() [۴] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] قَالُوا: «يَا رَسُولَ اللّٰهِ! مَتَى وَجَبَتْ لَكَ النُّبُوَّةُ؟ [۳] قَالَ: وَآدَمُ بَيْنَ الرُّوحِ وَالْجَسَدِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي [۲] یوه ورځ صحابه رضی الله عنهم پوښتنه وکړه یارسول الله! نبوت د پاره تاسو کوم وخت منتخب شوئ؟ [۳] رسول الله ﷺ وفرمايل هغه وخت چې آدم د روح او بدن په منځ کې وو. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① وَجَبَتْ: أَيْ: ثَبَتَتْ: ثابت شو، انتخاب اوشو.

**تسهيلات:**

**قوله: مَتَى وَجَبَتْ لَكَ النُّبُوَّةُ:**

**د حضورپاک ﷺ د نبوت ابتداء:** سائل سوال اوکړو یا رسول الله ﷺ د کوم وخت نه ستاسو نبوت شروع شوې وو؟ حضورپاك اوفرمائیل چه زه هغه وخت نبی جوړشوې ووم چه آدم علیه السلام لا د بدن اوروح په مینځ کښې وویعنی تردغه وخته پورې د هغه په بدن کښې روح نه وو اچولې شوې.

**اشکال:** په دنیاکښې د ظهورپه اعتبارسره د رسول الله ﷺ د تولونه په آخرکښې ظهورشوې دې اود نبوت منصب چه کله انبیاء کرامو ته ورکړې کیدې شو نوهغه وخت په عالم ارواح کښې تولو انبیاء کرامو په یوځائی نبی جوړکړې شو. نودلته په دې حدیث کښې د دې جملې څه مطلب دې چه زه نبی ووم او آدم د روح اوجسد په مینځ کښې وو یعنی د پیدائش په مراحل کښې وو؟

**د اشکال جواب:** په عالم ارواح کښې نبوت خو تولو ته په یوځائی ملاؤ شو لیکن دنبوت انوارات اودې برکات اوتجلیات پریوتلو سلسله حضورپاك سره په عالم ارواح کښې هغه وخت شروع شوه چه کوم وخت لا حضرت آدم علیه السلام پیدا شوې هم نهوو. په دې اعتبار سره حضوراکرم ﷺ په افاضۀ برکات نبوت کښې د تولو نه اول نبی دې اود نبوت د ظهور

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی فضل النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۶۰۹)

په اعتبارسره هغوی د ټولو نه آخری نبی دی. هم په دې اعتبارسره بعضې روایاتو کښې دی چه هرنبی په خپله خپله زمانه کښې د حضوراکرم ﷺ د نور نبوت نه استفاده کړې ده.

**[۵۷۵۹] حضور ﷺ او ختم نبوت**

۵۷۵۹-(١) [٢٠] ۞وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ قَالَ ۞«إِنِّي عِنْدَ اللّٰهِ مَكْتُوبٌ: خَاتَمُ النَّبِيِّينَ، ۞وَإِنَّ آدَمَ لَمُنْجَدِلٌ فِي طِينَتِهِ، ۞وَسَأُخْبِرُكُمْ بِأَوَّلِ أَمْرِي، دَعْوَةُ إِبْرَاهِيمَ، وَبِشَارَةُ عِيسَى، ۞وَرُؤْيَا أُمِّي الَّتِي رَأَتْ حِينَ وَضَعَتْنِي ۞وَقَدْ خَرَجَ لَهَا نُورٌ أَضَاءَ لَهَا مِنْهُ قُصُورُ الشَّامِ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** ۞او حضرت عرباض ابن ساریه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوي حضور ﷺ وفرمایل ۞زه د الله جل جلاله په نز د هغه وخت نه خاتم النبیین لیکل شوی یم ۞هرکله چې آدم خپلې اخښلې شوې خټه خاوره کې پروت وو ۞او زه تاسو ته ښایم خپل مخکنی امر د حضرت ابراهیم دعاده د حضرت عیسیٰ علیه السلام بشارت دی ۞او خپل د مور خوب دی چې هغه خپل د پیدائش په وخت لیدلی وو ۞حقیقت دادی چې خپل د مور مخې ته یو نور ښکاره شوی وو چې په هغه سره دې ته د شام محلات روښانه شوی وو دا روایت بغوي خپل اسنادو سره شرح السنه کې نقل کړی دی

**حل اللغات:**- ① مَكْتُوبٌ: لیکلې شوې وو، ② لَمُنْجَدِلٌ: أَيْ: وَالْحَالُ أَنَّهُ لَسَاقِطٌ وَمُلْقًى: په زمکه باندې پروت وو. ③ طِينَتِهِ: أَيْ: خِلْقَتِهِ: په خپله خټه کښې، یعنی دخپل پیدائش په اخښلې شوې خټه کښې پروت وو (روح پکښې لا نه وو اچولې شوې). ④ دَعْوَةُ: دعا، ⑤ بِشَارَةُ: زیرې، ⑥ رُؤْيَا: خوب، ⑦ وَضَعَتْنِي: زما د زیږولو په وخت، ⑧ أَضَاءَ: أَيْ: تَبَيَّنَ: ښکاره او روښانه ئې کړل. ⑨ قُصُورُ: د قصر جمع ده، محلات، بنګلې.

۵۷۶۰-(٢) ۞وَرَوَاهُ أَحْمَدُ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ۞عَنْ أَبِي أُمَامَةَ مِنْ قَوْلِهِ: (سَأُخْبِرُكُمْ) إِلَخ.

**ترجمه:** ۞او امام احمد رحمه الله ۞دا روایت سَأُخْبِرُكُمْ نه تر آخرپورې دابو امامه رضي الله عنه نه نقل کړی دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَإِنَّ آدَمَ لَمُنْجَدِلٌ فِي طِينَتِهِ:

**د منجدل مفهوم:** یعنی په زمکه باندې راغورزیدلې شوې پروت وو. د دې نه په زمکه باندې بې ساه پروت کیدل مراد دی.

[1]) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحدیث ۳۶۲۶
[2]) اخرجه احمد فی المسند: ۱۲۷/٤

**قوله: وَرُؤْيَا أُمِّي الَّتِي رَأَتْ حِينَ وَضَعَتْنِي:**

**د رؤيت په مراد کښې دوه احتمالات:**

① دَ دې نه دَ خوب حالت هم مراد اخستې شي. مطلب به دا شي چه دَ حضور پاك دَ پيدا کيدو نه څه وړاندې حضرت آمنه بی بی په خوب کښې يوه فرښته ليدلې وه چه وئيل ئې ته اووايه چه زه دا بچې (کوم چه زما په خيټه کښې دې) دَ هر حسد کونکی نه دَالله تعالی په پناه کښې ورکوم.

② دَدې جملې نه دَ بيدارئ حالت هم مراد اخستې شي. دَدې مطلب به داشي لکه څنګه چه بعضې رواياتو کښې راغلي دي چه حضرت آمنه بی بی دَحضور پاك دَ ولادت په وخت دَ بيدارئ په حالت کښې دَخپل بدن نه يو نور جدا کيدونکې اوليدلو چه دَ شام محلات ئې روښانه کړل. دَدې نه داخودل مقصودوو چه پيدا کيدونکې داماشوم به راتلونکی وخت کښې داعلاقې فتح کوی.

**[۵۷٦۱] د حضور ﷺ خصائص**

۵۷٦۱-(۱) [۳] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «أَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا فَخْرَ، [۳] وَبِيَدِي لِوَاءُ الْحَمْدِ وَلَا فَخْرَ. [۴] وَمَا مِنْ نَبِيٍّ يَوْمَئِذٍ آدَمُ فَمَنْ سِوَاهُ إِلَّا تَحْتَ لِوَائِي؟ [۵] وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْأَرْضُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**توجمه:** [۱] او حضرت ابو سعيد ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به زه د ټولو بني آدمو سردار يم او زه دا خبره د فخر په طور نه کوم [۳] د قيامت په ورځ به مقام محمود کې) د حمد جنډه زما په لاس کې وي او زه دا خبره د فخر په طور نه کوم [۴] په هغه ورځ هر نبي که هغه آدم وي يا بل څوك داسې به نه وي چې زما دبيرغ لاندی را نشي [۵] او د قيامت په ورځ به د ټولو نه مخکې قبر چاودلو سره را پاڅيږم او زه دا خبره د فخر په طور نه کوم بلکه د شکر په طور يې کوم. (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① سَيِّدُ: سردار او مشر چه دَ خپل قوم نه د خير په کارونو او په صفات حميده کښې وړاندې شوې وی، يا داچه په مشکل وخت کښې خلق دده طرف ته رجوع کوی. ② لَا فَخْرَ: فخرنه کوم، دفخر په طورئې نه وائم (بلکه دالله تعالی دَ فضل اونعمت ښکاره کولو په طور ئې وائم).
③ لِوَاءُ: أي العَلَمُ: جهنډا ، ④ تَنْشَقُّ: چوی به، شليږی به.

**تسهيلات: قوله:** أَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا فَخْرَ:

دا زه چه څه وايم دَ فخر په توګه نه وايم بلکه دَالله تعالی فضل شميرلو سره او تحديث بالنعمة او دَمامور به دَ تبليغ دَ وجې نه وائم.

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۱۶) وابن ماجه فی کتاب الجنائز/باب ما جاء فی عیادة المريض (رقم-۱۴۴۰) واحمد فی المسند:۲/۳

**د أنا سید ولد آدم وئیلو وجه:**

چې د امت د نبی ﷺ عظمت په زړونو کښې پیدا شي نو نبی ﷺ خپل مقام او مرتبه بیان کړه دا څه د تکبر په غرض نه وه.

**قوله:** بِيَدِي لِوَاءُ الْحَمْدِ:

**د لواء الحمد په مراد کښې درې اقوال:**

① امام طیبی رحمه الله فرمائی چه دَ لواء الحمد نه مراد شهرت دې چه په هغه ورځ به دَ نبی کریم ﷺ دَ امتیازی شان شهرت کیږی.

② که چرې دَ دې جهنډې نه مراد حقیقتًا جهنډا مراد وی نو بیا به مطلب داشی چه په هغه ورځ به ټول انبیاء کرام زما دَ جهنډې لاندې جمع کیدو سره دَ الله تعالی حمد بیانوی او زه به دَهغوی امام یم.

③ اوکه چرې دَ جنهډې نه مراد دَ الله تعالی حمد وی نو مطلب به داشی چه په هغه ورځ به ټول انبیاء زما په حمد ښودنې او زما دَ طرف نه ښودلې شوې حمد باندې به دَ الله تعالی حمد کوی. یعنی کله چه دا جهنډا زما لاس ته راشی نو الله تعالی به دَ حضورپاك زړه داسې کولاؤ کړی چه حضورپاك به دَ الله تعالی داسې تعریف کوی چه بل څوك به داسې تعریف نه شی کولې. په دې وجه دَ حضورپاك نوم مبارك محمد او احمد دې. حضورپاك دَ مقام محمود صاحب دې او دَ حضورپاك امت ته حمادین وائی. حضورپاك به دَ الله تعالی دَ تعریف په ذریعه دَ شفاعت دروازه کولاووی.

**قوله:** وَمَا وَمَا مِنْ نَبِيٍّ يَوْمَئِذٍ آدَمُ فَمَنْ سِوَاهُ إِلَّا تَحْتَ لِوَائِي:

**د نبی علیه السلام د جنډې لاندې د ټولو خلقو راجمع کیدل:** دَ رسول الله ﷺ دَ جهنډې لاندې به صرف عام خلق نه وی بلکه ټول انبیاء کرام او رسولان به هم دَ حضورپاك دَ جهنډې لاندې جمع کیږی. دَ حضورپاك دَ شفاعت طلبګار او دَ حضورپاك تابع به وی.

**[۵۷٦۲] حضور ﷺ د الله جل جلاله حبیب دی**

۵۷٦۲-(¹) [۲۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ [۲]: «جَلَسَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَخَرَجَ، حَتَّى إِذَا دَنَا مِنْهُمْ سَمِعَهُمْ يَتَذَاكَرُونَ، [۴] قَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّ اللَّهَ اتَّخَذَ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا، [۵] وَقَالَ آخَرُ: مُوسَى كَلَّمَهُ اللَّهُ تَكْلِيمًا، [٦] وَقَالَ آخَرُ: فَعِيسَى كَلِمَةُ اللَّهِ وَرُوحُهُ، [۷] قَالَ آخَرُ: آدَمُ اصْطَفَاهُ اللَّهُ، [۸] فَخَرَجَ عَلَيْهِمْ رَسُولُ اللَّهِ

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي [۲] يوه ورځ د رسول الله ﷺ څنې صحابه رضي الله عنهم په مسجد نبوي کې ناست وه په خپلو کې خبري کولي [۳] حضور ﷺ د خپلې حجري مبارکي

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۱۶) والدارمی فی السنن رقم الحدیث ٤٧

نه راووتلو او هر کله چه هغوئ ته نزدې ورسيدی نو د هغوئ خبرې يې په غوږ کې وې [۲] حضور ﷺ يو صحابي ﷺ نه دا واوريدل چې الله ﷻ حضرت ابراهيم خپل خليل وګرځوی [۵] دويم صحابي اوويل چې حضرت موسی الله ﷻ د تکلم شرف د خبرو کولو په شرافت سره ونوازی [٦] يو بل صحابي اوويل چې حضرت عيسی د الله ﷻ کلمه او د هغه روح دی يعنی هغه د نظام قدرت د مروجه اسبابو او ذرائعو نه بغير محض د الله ﷻ په کلمه ګن سره پيدا شو د شير خوارې يعنی پئې رودلو زمانه کې خلقو سره يې خبرې وکړې او الله ﷻ روح الامين جبرائيل د هغوئ مور بي بي ته وليږی په هغې کې يې و پو کل چې د هغه نتيجه کې دوئ پيدا شو دې نه علاوه د دوئ د روحانيت نور ډير آثار او کرشمې ښکاره شوې ددې پورې چې مړی به يې ژوندی کول [۷] يو صحابي ﷺ دا اوويل چې الله ﷻ حضرت آدم برګزيده کړې يعنی داول انسان کيدو د پاره هغه يې منتخب کی هغه ته يې د ټولو خيزونو نومونه وښودل او د هغه مخکې يې په فرشتو باندې سجده وکړله [۸] بهرحال صحابه ؤ ﷺ د خپلو خبرو په دوران کې د نبيانو د خصوصي اوصافو په تعجب سره ذکر کوی چې حضور ﷺ د هغوئ مجلس ته ورسيدی

[۱] وَقَالَ: (قَدْ سَمِعْتُ كَلَامَكُمْ وَعَجَبَكُمْ أَنَّ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلُ اللّٰهِ وَهُوَ كَذٰلِكَ، [۲] وَمُوسَى نَجِيُّ اللّٰهِ وَهُوَ كَذٰلِكَ [۳] وَعِيسَى رُوحُهُ وَكَلِمَتُهُ وَهُوَ كَذٰلِكَ، [۴] وَآدَمُ اصْطَفَاهُ اللّٰهُ وَهُوَ كَذٰلِكَ، [۵] أَلَا وَأَنَا حَبِيبُ اللّٰهِ وَلَا فَخْرَ، [٦] وَأَنَا حَامِلُ لِوَاءِ الْحَمْدِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، تَحْتَهُ آدَمُ فَمَنْ دُونَهُ وَلَا فَخْرَ، [۷] وَأَنَا أَوَّلُ شَافِعٍ وَأَوَّلُ مُشَفَّعٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا فَخْرَ، [۸] وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ يُحَرِّكُ حَلَقَ الْجَنَّةِ فَيَفْتَحُ اللّٰهُ لِي فَيُدْخِلُنِيهَا [۹] وَمَعِي فُقَرَاءُ الْمُؤْمِنِينَ وَلَا فَخْرَ، [۱۰] وَأَنَا أَكْرَمُ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ عَلَى اللّٰهِ وَلَا فَخْرَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او وې فرمايل ما ستاسو خبرې اوريدلې دې تاسو ته تعجب دی چې حضرت ابراهيم د الله ﷻ خليل يعنی دوست دی نو بيشکه د هغوئ داشان دی [۲] تاسو ته تعجب دی چې موسی ﷺ نجي الله دی چې الله ﷻ بالذات خبرې ورسره کړې وې نو بيشکه داهم د هغوئ شان دی [۳] او تاسي ته تعجب دی چې حضرت عيسی ﷺ د الله ﷻ کلمه او د هغه روح دی نو بيشکه داهم د هغوئ شان دی [۴] تاسو ته تعجب دی چې حضرت آدم الله پاك برګزيده کی نو بيشکه داسې ده او دا د هغوئ شان دی [۵] ليکن تاسو ته معلوميدل پکار دی چې زه د الله ﷻ حبيب يم او زه داخبره د فخر په طور نه کوم [٦] د قيامت په ورځ به د حمد جنډه زما په لاس کې وې چې د هغه لاندې به آدم ﷺ او نور ټول نبيان او رسولان وې او زه داخبره د فخر په طور نه کوم [۷] د قيامت په ورځ به د ټولو نه مخکنی شفاعت کونکی زه يم اود ټولو نه مخکې به زما شفاعت قبليږي او زه داخبره د فخر په طور نه کوم [۸] د جنت دروازه ټکونکی د ټولو نه مخکنی سړی به زه يم الله ﷻ به فرشتو ته د حکم په ذريعه د جنت دروازه زما د پاره خلاصه کړي او د ټولو نه به مخکې ما په

جنت کې داخل کړي [۹] هغه وخت به ما سره مؤمن فقراء وي او زه داخبره د فخر په طور نه کوم [۱۰] او بلاشبه په ټولو مخکینو او وروستنیوکې که هغوئ انبیاء وي یا نور خلق د ټولو نه افضل او اکرم زه یم او زه داخبره د فخر په طور نه کوم بلکه د شکر په طور یې کوم. (ترمذي دارمي)

**حل اللغات:-** ① دَنَا: نزدې شو، ② يَتَذَاكَرُونَ: خبرې ئې کولې په خپل مینځ کښې، ③ خَلِيلًا: دوست. ④ تَكْلِيمًا: أَيْ: بِلَا وَاسِطَةِ كِتَابٍ: خبرې ورسره شوې وې بغیر د واسطې دکتاب نه، یا بغیر د پردې نه. ⑤ كَلِمَةُ اللهِ: دالله کلمه (یعنی په کلمه د کُن سره پیدا شوې دې). ⑥ اصْطَفَاهُ: غوره کړې ئې دې آدم عليه السلام. ⑦ عَجَبُكُمْ: تعجب دې تاسو ته، ⑧ حَبِيبُ اللهِ: أَيْ: مُحِبُّهُ وَمَحْبُوبُهُ: چه الله ورسره محبت کوی او هغه ته محبوب وی. ⑨ حَامِلُ: پورته کونکې، ⑩ فَمَنْ دُونَهُ: څوک چه د آدم عليه السلام نه علاوه دی یعنی نور انبیاء کرام علیهم السلام. ⑪ يُحَرِّكُ: خوځوی به، تکوی به. ⑫ حَلَقَ: د حَلَقَة جمع ده، وَهِيَ هُنَا حَلَقَةُ بَابِ الْجَنَّةِ: ددې نه مراد د جنت د دروازې د ځنځیر کړئ دی. ⑬ أَكْرَمُ: ډیر عزت والا، افضل ترین.

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّ اللهَ اتَّخَذَ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا:**

**په حبیب او خلیل کښې درې فرقونه:**

① دَ حبیب الله دا صفت دَ ټولو صفاتونه زیات جامع دې ځکه چه حبیب په معنی دَمحبوب دې او څوك چه محبوب وی هغه خلیل هم وی، مکلم هم وی او مشرف او معظم هم وی.

② خلیل دَ طالب په درجه کښې وی یعنی سالك اومرید وی او حبیب دَ مطلوب اومراد په درجه کښې وی.

③ خلیل دَ مغفرت امید او طمع په درجه کښې وی اومحبوب دَ مغفرت یقین په درجه کښې وی. "وهذا واضح في القرآن" گورئی دَ خلیل باره کښې داسې دی ﴿ وَالَّذِيٓ أَطْمَعُ أَن يَغْفِرَ لِي خَطِيٓـَٔتِي يَوْمَ الدِّينِ ﴾ بل طرف ته دَ حبیب باره کښې دادی ﴿لِيَغْفِرَ لَكَ اللهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنۢبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ﴾ په دواړو کښې لوئی فرق دې "وانا حبیب الله" کښې دَدې ټول حقائق طرف ته اشاره ده.

**[۵۷۶۳] دامت محمدي خصوصیت**

۵۷۶۳-() [۲۳] [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ قَيْسٍ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ [۲]: نَحْنُ الْآخِرُونَ، [۳] وَنَحْنُ السَّابِقُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [۴] وَإِنِّي قَائِلٌ قَوْلًا غَيْرَ فَخْرٍ: [۵] إِبْرَاهِيمُ خَلِيلُ اللهِ وَمُوسَى صَفِيُّ اللهِ، [۶] وَأَنَا حَبِيبُ اللهِ، وَمَعِي لِوَاءُ الْحَمْدِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [۷] وَإِنَّ اللهَ وَعَدَنِي فِي أُمَّتِي وَأَجَارَهُمْ مِنْ

[۱]) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ۵۴ واحمد في المسند: ۲/۲۴۳

ثَلَاثٍ⑧: لَا يَعُمُّهُمْ بِسَنَةٍ،⑨ وَلَا يَسْتَأْصِلُهُمْ عَدُوٌّ،⑩ وَلَا يَجْمَعُهُمْ عَلَى ضَلَالَةٍ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت عمرو بن قیس رضي الله عنه نه روایت دی ②چې رسول کریم ﷺ وفرمایل په دنیا کې د ظهور او وجود د اعتبار نه مونږ په آخر کې یو ③لیکن د قیامت په ورځ به جنت کې داخلیدو او اعلیٰ مراتبو او درجاتو د اعتبار نه مونږ اول یو ④او زه تاسو ته یوه خبره کوم او د دې خبرې کولو نه د فخر اظهار مقصود نه دی بلکه د یو حقیقت اظهار مقصود دی ⑤او هغه دادی چې ابراهیم خو د الله جل جلاله خلیل دی موسیٰ د الله جل جلاله برگزیده دی ⑥او زه د الله جل جلاله حبیب یم چې په دنیا او آخرت کې څما حیثیت د محب هم دی او د محبوب هم او د قیامت په ورځ به مقام محمود کې د حمد جنډه ما سره وي چې څما دا حمد او محمد کیدو علامه به وي ⑦او الله جل جلاله څما امت ته د خیر کثیر عطا کولو او درې څیزونو نه د بچ کولو وعده فرمایلي ده ⑧یو خودا چې مسلمانان به عام قحط کې نه مبتلا کوي ⑨دویم داچې هیڅ دښمن به د هغوئ بیخ کني نشي کولی یعنی دښمنانِ اسلام به ټول مسلمانان نیست ونابود نشي کولی ⑩او دریم داچې ټول مسلمانان به یوې گمراهۍ باندې اتفاق نه کوي یعنی دا به ممکنه نه وي چې ټوله اسلامي دنیا دې یوې داسې خبرې باندې اتفاق وکړي کومه چې د گمراهۍ باعث وي. (دارمي)

**حل اللغات:-** ①الْآخِرُونَ: روستو راتلونکی (په اعتبار دظهور سره). ②السَّابِقُونَ: دټولو نه مخکښې تلونکی (جنت ته). ③صَفِيٌّ: أَيْ مُخْتَارٌ: غوره کړې شوې (په کلام د الله سره). ④أَجَارَهُمْ: أَيْ أَنْقَذَهُمْ: بچ ئې کړل هغوی (یعنی امت د نبی علیه السلام). ⑤بِسَنَةٍ: أَيْ: بِقَحْطٍ: قحط سالی، اوچ کالی. ⑥ لَا يَسْتَأْصِلُهُمْ: أَيْ: وَلَا يُهْلِكُهُمْ بِالْكُلِّيَّةِ: چه د بیخه ټول هلاک کړی. (حلال گنړلو سره تباه کول مراد دی.)

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① نَحْنُ الْآخِرُونَ: یعنی دنیاته دَظهورراوراتلوپه اعتبارسره مونږ دَ ټولونه په آخره کښې راغلي یو لیکن په قیامت کښې دَ جنت دَ داخلیدو په اعتبارسره به مونږ دَټولونه اول داخلیږو.

② وَعَدَنِي: یعنی خیرکثیر او بیشمیره نعمتونو وعده کړې ده.

**قوله: وَأَجَارَهُمْ:**

**دریو آفتونو څخه د امت محمدی حفاظت:**

یعنی دَ دریوخصلتونو اودریوآفتونو نه الله تعالی زما امت په امن کښې ساتلې دي.

① دَعام اوچ کالئی نه به نه تباه کیږی.

② دښمن به ټول هلاکولې نه شی.

③ په ګمراهئ باندې به ټول نه راجمع کيږي. دې نه امت اجابت مراد دې. امت دعوت يعنی کافرانو سره داوعده نه ده.

**[٥٧٦٤] حضور ﷺ قائد المرسلين او خاتم النبيين دی**

٥٧٦٣-() [٣٣] [١] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «أَنَا قَائِدُ الْمُرْسَلِينَ وَلَا فَخْرَ، [٣] وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ وَلَا فَخْرَ، [٤] وَأَنَا أَوَّلُ شَافِعٍ وَمُشَفَّعٍ وَلَا فَخْرَ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر رضي الله عنه روايت کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] د قيامت په ورځ به زه د ټولو نبيانو او رسولانو قائد يم چې ټول نبيان اورسولان به د حشر په ميدان کې راتلو د پاره په ماپسې راځي او زه داخبره د فخر په طور نه کوم [٣] وزه آخری پيغبريم خو فخرېږي نه کوم [٤] شفاعت کونکی د ټولو نه مخکنی سړی به زه يم او د ټولو نه مخکې به ځما شفاعت قبليږي او زه داخبره د فخر په طور نه کوم. (دارمي)

**حل اللغات:-** ① قَائِدُ: أَيْ: مُقَدَّمُهُمْ: مخکښې مخکښې تلونکې (دچا چه اقتداء کولې شي).

**[٥٧٦٥] د قيامت په ورځ د حضور ﷺ عظمت او برتري**

٥٧٦٥-() [٣٥] [١] وَعَنْ أَنَسٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] «أَنَا أَوَّلُ النَّاسِ خُرُوجًا إِذَا بُعِثُوا، [٣] وَأَنَا قَائِدُهُمْ إِذَا وَفَدُوا، [٤] وَأَنَا خَطِيبُهُمْ إِذَا أَنْصَتُوا، [٥] وَأَنَا مُسْتَشْفِعُهُمْ إِذَا حُبِسُوا، [٦] وَأَنَا مُبَشِّرُهُمْ إِذَا أَيِسُوا الْكَرَامَةُ، [٧] وَالْمَفَاتِيحُ يَوْمَئِذٍ بِيَدِي، وَلِوَاءُ الْحَمْدِ يَوْمَئِذٍ بِيَدِي، [٨] وَأَنَا أَكْرَمُ وَلَدِ آدَمَ عَلَى رَبِّي، [٩] يَطُوفُ عَلَيَّ أَلْفُ خَادِمٍ كَأَنَّهُمْ بَيْضٌ مَكْنُونٌ، أَوْ لُؤْلُؤٌ مَنْثُورٌ» [١٠] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، قَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] د قيامت په ورځ چې خلق را ژوندي کولو سره را پاڅي نو د ټولو نه مخکې به د قبر نه زه راوځم [٣] هرکله چې خلق بارګاهِ خداوندي کې پيش شي نو د هغوئ قيادت به زه کوم [٤] هرکله چې ټول خلق به خاموش وي نو ځما ژبه به د ټولو ترجماني کوي [٥] او هرکله چې خلق موقف کې حصار شي نو د هغوئ د خلاصون د پاره به شفاعت او سفارش زه کوم [٦] هرکله چې خلقو باندې نا اميدي او مايوسي خوره شوي وي نو اهلِ ايمانوته به د مغفرت او رحمت بشارت ورکونکی زه يم [٧] د قيامت په ورځ به د شرف او کرامت او د جنت چابياني ځما په لاس کې وي [٨] په هغه ورځ به د پروردګار په نز د آدم ځامنو کې د ټولو نه بزرګ او اشرف ځما ذات وي [٩] ځما مخکې او وروسته به په زرګونو خادمان ګرځي راګرځي لکه چې هغوئ ساتل شوي اګی يا خوري وري ملغلري دي [١٠] دا روايت ترمذي او دارمي نقل کړی دی او ترمذي ويلي دي چې داحديث غريب دی.

[1] ) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ٤٩
[2] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٦١٠)

**حل اللغات:-** ① إِذَا بُعِثُوا: أَيْ: مِنْ قُبُورِهِمْ: چه راپورته کولې به شی خلق دخپلو قبرونو نه. ② وَفَدُوا: أَيْ إِذَا قَدِمُوا: کله چه خلق پیش کیږی (خپل رب ته). ③ مُسْتَشْفِعُهُمْ: دخلقو سفارش کونکې، ④ حُبِسُوا: چه خلق ایسار کړې شی، ⑤ أَيِسُوا: أَيْ إِذَا غَلَبَ عَلَيْهِمُ الْيَأْسُ: کله چه خلق ناأمیده شی، مایوسه شی. ⑥ الْكَرَامَةُ: شرف اوعزت، ⑦ بَيْضٌ: هګۍ، ⑧ مَكْنُونٌ: أَيْ: مَصُونٌ عَنِ الْغُبَارِ: محفوظ ساتلې شوې (چه دوړه یا خاوره پرې اونه لګی)، ⑨ لُؤْلُؤٌ: ملغلرې، ⑩ مَنْثُورٌ: خورې ورې، شیندلې شوې.

**تسهیلات:**

**قوله: وَأَنَا خَطِيبُهُمْ إِذَا أَنْصَتُوا:**

**دمذکوره جملې مفهوم:** دې سره دَ شفاعت کبریٰ طرف ته اشاره ده چه حضورپاك به هلته دَ الله تعالی ښه تعریف کوی اوبیابه دَ شفاعت کبریٰ درخواست کوی. بل په میدان محشرکښې به ټول انسان دَ خبرو کولونه خاموش وی. دَالله تعالی په مخکښې به په چاکښې دَ وینا کولو همت نه وی. هغه وخت به حضورپاك کلام کوی اودَ شفاعت دپاره به حمد اوثنا کوی اودَمغفرت زیرې به ورکوی.

**[۵۷۶۶] حضور ﷺ به د عرش الهي رسته طرف ته ولاړ وي**

۵۷۶۶-(¹) [۲۶] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ [۲]: «فَأُكْسَى حُلَّةً مِنْ حُلَلِ الْجَنَّةِ، [۳] ثُمَّ أَقُومُ عَنْ يَمِينِ الْعَرْشِ [۴] لَيْسَ أَحَدٌ مِنَ الْخَلَائِقِ يَقُومُ ذَلِكَ الْمَقَامَ غَيْرِي») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. [۵] وَفِي رِوَايَةِ (جَامِعِ الْأُصُولِ): («وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْأَرْضُ فَأُكْسَى»).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] د قیامت په ورځ به ماته د جنت د جوړو نه یوه جوړه واغوستل شي [۳] او بیابه زه د عرش ښي طرف ته ودریږم [۴] چې هلته به څما نه ماسوا مخلوق کې بل هیڅوك ولاړ نه وي [۵] او د جامع الاصول روایت کې چې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه منقول دی داسې دی چې حضور ﷺ وفرمایل د ټولو نه مخکې به څما قبر کولاؤ شي او زه به بهر راووځم بیابه ماته یوه جنتي جوړه واغوستل شي الخ.

**حل اللغات:-** ① فَأُكْسَى: راوابه غوستلې شی ماته، ② حُلَّةً: جوړه، ③ الْخَلَائِقِ: مخلوق، ④ تَنْشَقُّ: اوبه چوی، اوبه شلیږی.

**[۵۷۶۷] حضور ﷺ د پاره وسیله طلب کوئ**

۵۷۶۷-(²) [۲۷] [۱] وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ [۲]: («سَلُوا اللّٰهَ لِيَ الْوَسِيلَةَ») [۳] قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَمَا الْوَسِيلَةُ؟ [۴] قَالَ: («أَعْلَى دَرَجَةٍ فِي الْجَنَّةِ لَا يَنَالُهَا إِلَّا رَجُلٌ [۵] وَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَنَا هُوَ») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۱۱)

²) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۱۲) واحمد فی المسند: ۲/۲۶۵

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] مسلمانانو زما د پاره د الله ﷻ نه وسيله غواړئ [۳] صحابه ﷺ په دې اوريدو سره عرض وكړو يارسول الله! دا وسيله څه شي دى؟ [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل د جنت د ټولو نه د لوى درجې نوم دى چې صرف يو سړي ته به حاصليږي [۵] او زه اميد لرم چې هغه سړى زه يم. (ترمذي)

**حل اللغات:** -① اَلْوَسِيلَةُ: هِيَ مَا يَتَوَصَّلُ بِهِ إِلَى الشَّيْءِ وَيَتَقَرَّبُ بِهِ: يو څيز ته د رسيدلو او نزدې كيدلو ذريعه.

**تسهيلات:**

**قوله:** سَلُوا اللّٰهَ لِيَ الْوَسِيلَةَ:

**دوسيلې د مقام په دعا كښې حكمت:** مقام محمود اووسيله دواړه يوڅيز دې دَاذان نه پس په دعاكښې دَ وسيله ذكر دې. حضورپاك دَ تواضع په انداز كښې كلام فرمائيلې دې گنى مقام محمود اووسيله دَ حضورپاك دَپاره مختص كړې شوى دى. په دې دعا كښې دَامت دَپاره دَ ثواب گټلو بهترين موقع ده. دَ "ارجو" لفظ بعضې شارحينو حضراتو دَ "اتيقن" په معنى كښې اخستې دې يعنى زما دا يقين دې چه دا مقام به ماته ملاويږي.

### [۵۷۶۸] حضور ﷺ به د تمامو انبياوو امام وي

۵۷۶۸-(¹) [۲۸] [۱] وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ [۲]: «إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ [۳] كُنْتُ إِمَامَ النَّبِيِّينَ وَخَطِيبَهُمْ، [۴] وَصَاحِبَ شَفَاعَتِهِمْ غَيْرَ فَخْرٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابي ابن كعب ﷺ رسول الله ﷺ نه روايت كوي رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هركله چې د قيامت ورځ شى [۳] نو زه به مقام محمود كې ولاړ يم او د ټولو انبياوو امام اوپيشوا به جوړ شم هركله چې په هغوئ كې هيڅوك به ويلو باندې قادر نه وي نو زه به د هغوئ ترجماني كوم [۴] او د ټولو شفاعت او سفارش به كوم او زه داخبره د فخر په طور نه كوم. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① إِمَامَ النَّبِيِّينَ: د انبياؤ امام او پيشوا.

### [۵۷۶۹] حضرت ابراهيم عليه السلام او حضور ﷺ

۵۷۶۹-(²) [۲۹] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ وُلَاةً مِنَ النَّبِيِّينَ، [۳] وَإِنَّ وَلِيِّيَ أَبِي وَخَلِيلُ رَبِّي. [۴] ثُمَّ قَرَأَ: إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ وَهَذَا النَّبِيُّ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِينَ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

¹) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۱۲) واحمد فى المسند:۵/۱۳۷

²) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة آل عمران (رقم-۲۹۹۵) واحمد فى المسند:۱/۴۰۱

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبد الله ابن مسعود ﷛ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ۲ د هرپيغمبر به د پيغمبرانو نه يو رفيق او ولي وي ۳ او پيغمبرانو کې چې کوم پيغمبر ځما رفيق او ولي دى هغه ځما پلار او د پروردګار خليل حضرت ابراهيم ﷵ دى ۴ دي نه وروسته حضور ﷺ د خپل دي قول د دليل په طور دا آيت اووئيلو: إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ وَهَٰذَا النَّبِيُّ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِينَ ترجمه بلاشبه په ټولو په خلقوکي زيات خصوصيت لرونکى د حضرت ابراهيم سره البته هغه خلق وه چې هغوئ د هغه په زمانه کې د هغه اتباع کړي وه او دا نبي ﷺ دى او هغه خلق دي چې ايمان يې راوړى او الله ﷻ د ايمان والاو حامي او کارساز دى. (ترمذي

**حل اللغات:-** ① وُلَاةً: دا دَ وَلِيّ جمع ده دَدوست په معنى کښې دې يعنى احباب محبوبين او ټول نيزدې خلق.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِنَّ وَلِيِّيَ أَبِي وَخَلِيلُ رَبِّي:

**د أبي مصداق:** دا نسخه صحيح ده او دَ ابى نه حضرت ابراهيم ﷵ مراد دې بعضې نسخو کښې دَ ربى لفظ دې هغه نسخه صحيح نه ده ځکه چه دَ رب معنى به دلته صحيح نه شي.

**[۵۷۷۰] د حضور ﷺ د بعثت مقصد**

۵۷۷۰ -(¹) [۳۰] ۱ وَعَنْ جَابِرٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ قَالَ ۲: «(إِنَّ اللّٰهَ بَعَثَنِي لِتَمَامِ مَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ، ۳ وَكَمَالِ مَحَاسِنِ الْأَفْعَالِ» رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر ﷛ نه روايت دى چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ۲ الله ﷻ زه ځکه راليږلى يم چې د ښو اخلاقو تکميل وکړم ۳ او ښه کارونه پوره کړم. (شرح السنه)

**حل اللغات:-** ① مَكَارِم: د مَكْرُمَة جمع ده، يعنى خوښ کړې شوې. ② الْأَخْلَاق: جمع د خلق ده يعنى عادت، خوئى او خصلت. ③ مَحَاسِن: دا د حَسَن جمع ده خلاف القياس، ښه کارونه مراد دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ اللّٰهَ بَعَثَنِي لِتَمَامِ مَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ:

**د رسول الله د مبعوث کيدو مقصد:** مطلب دا چه مخکينو انبياء کرامو به خلقوته دَ ښه عادتو خودلودَپاره تشريف راوړلو مګر مونږ دَ اعلى درجې دَ اخلاقو خودلودَپاره راغلى يو. ابن الملک ﷫ دَدې جملې په تشريح کښې فرمائى چه الله تعالى زه پيغمبر جوړ کړې يم او دَ پوره عالم طرف ته ئى دَدې مقصد دَپاره راليږلې يم چه زما په ذريعه دَ خپلو بنديګانو مکارم اخلاق او محاسن افعال مکمل کړى.

¹) اخرجه البغوى فى شرح السنة رقم الحديث ۳۶۲۲

**مکارم اخلاق لس څیزونه :** الله تعالی ته چه د کوم کس نیك بختی منظور وی نو هغه ته دا اخلاق نصیب کوی. کله دا اوصاف په پلار کښې موندلې شی په څوئی کښې نه وی او کله په څوئی کښې لیدلې شی او پلار کښې نه وی. کله په غلام کښې وی او په آقا کښې نه وی دا تقسیم دَ الله تعالی دَ طرف نه دې چاله چه غواړی ورنصیب ئې کړی هغه لس څیزوه دادی:

① صدق الحدیث، ② صدق البأس، ③ إعطاء السائل، ④ والمکافاة بالصنائع (دَ خو بدله په خو سره ورکول) ⑤ وحفظ الأمانة ⑥ وصلة الرحم ⑦ والتذمم للجار (ګاونډی سره ښه سلوك کول) ⑧ والتذمم للصاحب (ملګری سره ښه سلوك کول) ⑨ وإقراء الضيف (میلمستیا کول) او حیا کول ⑩ والتذمم أن يراعي ذمامه أي زمامه (دَ مسلمان دَ حرمت خیال ساتل) (مرقاة: ۱۱/۶۶).

**د الله تعالی د ښیګړې علامات:** حضرت عائشه ؓ فرمائی چه الله تعالی دَ چا سره ښیګړه کول غواړي هغه ته صدق مقال، اکل حلال، دَ سوال کونکو جاجت پوره کول، دَ امانت حفاظت کول، حیاء او شرم، ګاونډیانو سره ښه سلوك، دَ میلمنو میلمستیا کول، دَ مشرانو عزت کول، په کشرانو شفقت کول، دَ مورپلار خدمت کول ورنصیب کوی. او هم دغه دَ اخلاق محمدیه کرشمه ده. (مرقاة ایضاً)

**[۵۷۷۱] په تورات کې د حضور ﷺ او د امت محمدي د اوصافو ذکر**

| |
|---|
| ۵۷۷۱ –(١)[٣١] ①وَعَنْ كَعْبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ②يَحْكِي عَنِ التَّوْرَاةِ قَالَ: نَجِدُ مَكْتُوبًا مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللّٰهِ عَبْدِيَ الْمُخْتَارُ، ③لَا فَظٌّ وَلَا غَلِيظٌ، وَلَا سَخَّابٌ فِي الْأَسْوَاقِ، ④وَلَا يَجْزِي بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ، وَلَكِنْ يَعْفُو وَيَغْفِرُ، ⑤مَوْلِدُهُ بِمَكَّةَ، وَهِجْرَتُهُ بِطِيبَةَ، وَمُلْكُهُ بِالشَّامِ، ⑥وَأُمَّتُهُ الْحَمَّادُونَ، يَحْمَدُونَ اللّٰهَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ، ⑦يَحْمَدُونَ اللّٰهَ فِي كُلِّ مَنْزِلَةٍ، وَيُكَبِّرُونَهُ عَلَى كُلِّ شَرَفٍ، |

**ترجمه:** ①او حضرت کعب احبار ؒ چې یو جلیل القدر تابعي دی او مسلمانیدو نه مخکې زبردست یهودي عالم وو ②د تورات په حوالي سره نقل کوي چې ما په تورات کې دا لیکلي پیدا کړي دي محمد د الله رسول او د هغه برګزیده بنده به وي ③هغه به نه ترش خویه وي او نه سخت ګو نه به بازارونو کې شورکونکی وي ④او نه به د بدی بدله بدی سره اخستونکی بلکه معاف کونکی او بخښونکی به وي ⑤د هغوئ د پیدائش ځاي به مکه وي او د هغوئ د هجرت ځاي به طیبه مدینه وي او د هغوئ د حکومت ځاي به د شام ملك وي ⑥د هغه امت به د الله ډیر زیات حمد او تعریف کونکی ⑦او شکر کونکی وي چې په هرحالت کې غم و خوشحالي فراخي او تنګي کې به د الله ﷻ حمد وثناء او

[۱] ) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ۸

شکر اداکوي هغه خلق چې چیرته هم خکته کېږي یا حصارېږي د الله ﷻ شکر به په ځاي راوړي او چیرته هم چې خیژي نو الله اکبر به وایي

**حل اللغات:-** ① عَبْدِيَ: أَيْ الْخَاصُ: خاص بنده، ② الْمُخْتَارُ: دا اسم مفعول صیغه ده. أَيْ الْمُصْطَفٰى: غوره کړې شوي برگزیده بنده، ③ لَافَظٌّ: أَيْ أَنَّهُ لَيْسَ قَبِيحَ الْخُلُقِ: بد زبانه او بد خویه به نه وی. ④ لَا غَلِيظٌ: أَيْ سَيِّئُ الْخُلُقِ: سخت خویه، سخت زړه، ⑤ لَا سَخَّابٌ: أَيْ: صَيَّاحٌ: چغې وهونکې، شور کونکې، ⑥ لَا يَجْزِي: بدله نه اخلی، ⑦ يَعْفُو: معاف کونکې، ⑧ يَغْفِرُ: بخښونکې، ⑨ طِيبَةَ: أَيْ الْمَدِينَةِ: مدینه طیبه، ⑩ الْحَمَّادُونَ: أَيْ الْبَالِغُونَ فِي الْحَمْدِ: دالله تعالی ډیر زیات حمد اوثنا کونکی، ⑪ السَّرَّاءِ: أَيْ فِي حَالَةِ السُّرُورِ: خوشحالی، ⑫ الضَّرَّاءِ: أَيْ فِي حَالَةِ الضَّرَرِ: د تکلیف اودغم په وخت، ⑬ شَرَفٍ: أَيْ مَكَانٍ مُرْتَفِعٍ: اوچت ځاي.

[١] رُعَاةٌ لِلشَّمْسِ، يُصَلُّونَ الصَّلَاةَ إِذَا جَاءَ وَقْتُهَا، [٢] يَتَأَزَّرُونَ عَلَى أَنْصَافِهِمْ وَيَتَوَضَّئُونَ عَلَى أَطْرَافِهِمْ، [٣] مُنَادِيهِمْ يُنَادِي فِي جَوِّ السَّمَاءِ، [٤] صَفُّهُمْ فِي الْقِتَالِ وَصَفُّهُمْ فِي الصَّلَاةِ سَوَاءٌ، [٥] لَهُمْ بِاللَّيْلِ دَوِيٌّ كَدَوِيِّ النَّحْلِ. [٦] هَذَا لَفْظُ (الْمَصَابِيحِ). وَرَوَى الدَّارِمِيُّ مَعَ تَغَيُّرٍ يَسِيرٍ.

**ترجمه:** [١] او د نمر لحاظ به ساتي هرکله چې د ما نځه وخت شي مونځ به کوي [٢] خپل ملا (شا) باندې یعنی په نامه برسیره به پرتوغانې تړي یعنی د ستر پوشي به ډیر زیات خیال ساتي د جسم اعضاوو باندې به اودس کوي یعنی لاس پښې او مخ به منځي او پوره اودس به کوي [٣] د هغوئ منادي کونکی به د زمکې او آسمان په منځ کې منادي کوي یعنی مؤذن به یو اوچت ځاي لکه مناره وغیره باندې او ودریدو سره آذان ورکوي [٤] په جنګ کې اوپه ما نځه کې د هغوئ صف به یوشان وي یعنی هغوئ به د اسلام د دښمنانو خلاف د جنګ په میدان کې هم د صف بندي اصولو او قواعدو پابندي کوي او با جماعت مونځ اداء کولو د پاره هم خپل صفونه سیده کوي [٥] د شپې به د خپل نفس اود شیطان د سرکوبي د پاره د عبادت په وخت د هغوئ اواز پست وي یعنی تسبیح وتهلیل او ذکر او تلاوت به په خکته (هلکی) اواز سره کوي څرنګه چې دعسلو (شهد) د مچئ اواز وي [٦] دا دمصابیح الفاظ دي او دارمي په څه لږ تغیر سره نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ⑭ رُعَاةٌ: د رَاعٍ جمع ده، أَيْ مُرَاعُونَ: رعایت اولحاظ ساتونکی. ⑮ يَتَأَزَّرُونَ: أَيْ يَشُدُّونَ آزَارَهُمْ: لنګونه به تړی، ⑯ أَنْصَافِهِمْ: أَيْ: عَلَى أَوْسَاطِهِمْ: په منځ یعنی په نامه باندې به تړی یا داچه د نیمې پنډئ پورې به وی. ⑰ أَطْرَافِهِمْ: أَيْ عَلَى أَمَاكِنِ الْوُضُوءِ: د بدن طرفونه یعنی د اودس په اندامونو باندې، ⑱ جَوِّ السَّمَاءِ: أَيْ: فِي مَكَانٍ مُرْتَفِعٍ: اوچت ځاي یا مناره، ⑲ دَوِيٌّ: أَيْ صَوْتٌ خَفِيٌّ: بنګار، پټ یعنی رو آواز (یعنی ذکر تسبیح یا دعا وغیره په رو آواز سره کوي).

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① كَعْبٍ: داكعب احبار تابعي دې دَ تورات دِ بر لوئي عالم وو دَهغوی ګواهي يومستند حيثيت لري کوم چه دَ حضورپاك دَ نبوت اوصفات دَ پاره يوتائيد دې.

② مُحَمَّدٌرَسُولُ اللّٰهِ: دادَحضوپاك عام مشهورنوم دې. اګرچه په پخوانوكتابونو او آسمانونو كښې دَ حضورپاك نوم احمد ﷺ سره ډير مشهوردې.

③ الْمُخْتَارُ: الله تعالى حضورپاك خوښ كړې دې اومنتخب كړې دې. دَ مختاركل معنى داشوه چه حضوپاك دَ ټول كائنات خوښ كړې شوې دې. بريليان دَدې معنى غلطه كوى كوم چه دَهغوى دَ غلطې عقيده عكاس دې.

**قوله: مَوْلِدُهُ بِمَكَّةَ، وَهِجْرَتُهُ بِطِيبَةَ:**

**دسيرت النبى ﷺ مختصر خاكه:** عام الفيل ۲۹ اګست ۵۷۰عيسوى كښې پيدا شوې. ۴۰ كاله وراندې دَنبوت زمانه په مكه كښې تيره شوه بيا ۱۳كاله دورنبوت هم په مكه كښې تيرشو. ۵۳كالو په عمركښې مدينې منورې ته هجرت اوكړو. لس كاله ئې په مدينه كښې جهادمقدس اوكړو. په ۸هجرى كښې مكه فتح شوه. ۹هجرى كښې دَجزيرة العرب عام خلق په ا سلام كښې داخل شو. په لسم هجرى باندې حضورپاك په حجة الوداع باندې يونيم لاكه صحابه كراموسره مدينې ته واپس لاړو ۱۲ربيع الاول ۱۰هجرى كښې ۶۳ كالوپه عمركښې دَحضور پاك انتقال اوشو. دَحضورپاك په سرمبارك او ږيره مباركه كښې صرف ۲۰ ويښته سپين وو. دَحضرت عائشه صديقه ﷺ په حجره كښې دفن كړې شو او ترننه پورې هم په دغه حجره كښې په مسجدنبوى كښې دننه په آرام پروت دې. په اړخ كښې حضرت ابوبكر اوعمر ﷺ په رفاقت كښې موجوددى.

**قوله: وَمُلْكُهُ بِالشَّامِ:**

**د اسلامى خلافت پيشنګوئى:** دَهغوى ملكى اوخلافتى استحكام به په شام كښې وى يعنى اصل حكومت خو به په مدينه كښې وى مګر دَدې استحكام او مضبوطيابه په شام كښې وى. په دې كښې دې طرف ته اشاره ده چه دَ شام په زمكه كښې به لوئى جهادوى اودَهغې په نتيجه كښې به اسلامى خلافت مضبوط وى. چنانچه هم داسې اوشو يعنى دَ نبوت اثار او بركات اودَ اعلى كلمة الله په حق كښې به مشهورې نغمې او ترانې په شام كښې ښكاره كيږى.

**د بعضې نورو مشکلو جملو وضاحت:**

① شَرَفٍ: يعنى په هراوچت مقام باندې دَ تكبيرنعره اوچتيږى. دادَ جهادپه ميدان كښې په

خاص تو ګه کيږي او انشاء الله کيږي به.

②رُعَاةٌ لِلشَّمْسِ: يعنی دَ مونځونودَ وختونو پابندی به کوی. نمرتـه پـه کتلوسره بـه دَ مانځه وخت معلوموی لکه چه دَ نمرپېژنونکی به وی.

③يُنَادِي فِي جَوِّ السَّمَاءِ: يعنی دَهغوی اذان کونکی به پـه اوچت او لوړمقاماتوباندې اودريدوسره اذان کوی. پـه چتونـو اومناروباندې ختلوسره بـه دَ مونځ پـه وختونوکښې اذان کوی. پـه فـضـاء کـښې بـه دَهغوی اذانونـه راتـاويږی لکـه چـه پـه فضاګانوکښې اذان کيږی.

④فِي الْقِتَالِ: يعنی څنګه چـه دَ مانځـه صـفونـه ترلوسره مـونځ کـوی هـم دغـه شـان بـه دَ جهادپه ميدان کښې هم صف بندی کوی.

⑤دَوِيّ النَّحْلِ: يعنی دَ شپې په وخت دَتهجد پـه مونځونوکښې بـه دَالله تعـالی پـه ذکراو تلاوت کښې داسې بنړيږی لکه دَ شاتودَ مچو آوازکښې چه وی.

**[۵۷۷۲] حضرت عيسى عليه السلام به دَرسول الله ﷺ په اړخ کښې خښيږی**

| |
|---|
| ۵۷۷۲-()[۳۲] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ، قَالَ، مَكْتُوبٌ فِي التَّوْرَاةِ: صِفَةُ مُحَمَّدٍ ۲ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ يُدْفَنُ مَعَهُ. ۳ قَالَ أَبُو مَوْدُودٍ: وَقَدْ بَقِيَ فِي الْبَيْتِ مَوْضِعُ قَبْرٍ، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه وايي په تورات کې د حضرت محمد اوصاف ذکر دی ۲ او داهم ليکل شوي دي چې عيسىٰ ابن مريم به د حضور حجره اقدس کې دفن شی ۳ د حضرت ابـو مـودود رحمه الله چې د دې حـديث يـوراوي دی بيـان دی چـې دبـي بـي عائشې رضي الله عنها حجره مبارکه کې چيرته چې حضور ﷺ زمکه کې لاندې آرام فرمادي د يوقبر ځاي باقي دی . (ترمذي)

**حل اللغات:-** ①يُدْفَنُ: دفن کولې به شی.

**تسهيلات:**

**قوله: مَكْتُوبٌ فِي التَّوْرَاةِ: صِفَةُ مُحَمَّدٍ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ يُدْفَنُ مَعَهُ:**

**دَرسول الله ﷺ او دحـضـرت عيـسـى عليـه السـلام د مـدفـن پيـشنګولـی:** يعنی دَ حضرت عائشه رضي الله عنها پـه هجـره کـښې دَ حـضورپاك پـه مقبره کـښې بـه خښيږی. دَ رسـول الله ﷺ دَ قـدمونو مبـارکو نـه شـاطرف تـه صـديق اکبـر رضي الله عنه دي. دَ صـديق رضي الله عنه پـه اړخ کـښې شـاتـه حضرت عـمر رضي الله عنه دې او دَ حـضرت عمر رضي الله عنه پـه اړخ کـښې شـاطرف تـه دَ يـوقبر ځـائی خـالی دې هم هلته به حضرت عيسىٰ عليه السلام خښيږی.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۶۱۷

چنانچه کله چه حضرت عیسیٰ حج کوی نو د مکې او مدینې په مینځ کښې به د هغوی انتقال کیږی د هغه ځائی نه به هغوی مدینې منورې ته راوړلې شی او هلته به دفن کولې شی. لکه چه د دوو نبیانو په مینځ کښې به دوه شیخین وی تصوراتی نقشه داسې کیدې شی. حضرت محمد ﷺ حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه او حضرت عیسیٰ علیه السلام

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵۷۷۳] انبیاوو او آسمان والو باندې د حضور ﷺ د فضیلت دلیل

۵۷۷۳-(١) [٣٣] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ ٢: إِنَّ اللهَ تَعَالَى فَضَّلَ مُحَمَّدًا رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى الْأَنْبِيَاءِ وَعَلَى أَهْلِ السَّمَاءِ. ٣ فَقَالُوا: يَا أَبَا عَبَّاسٍ) ! بِمَ فَضَّلَهُ عَلَى أَهْلِ السَّمَاءِ؟ ٤ قَالَ: إِنَّ اللهَ تَعَالَى قَالَ لِأَهْلِ السَّمَاءِ: ﴿وَمَنْ يَقُلْ مِنْهُمْ إِنِّي إِلَهٌ مِنْ دُونِهِ فَذَلِكَ نَجْزِيهِ جَهَنَّمَ كَذَلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ﴾ [الأنبياء:٢٩]

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت هغوئ یو وخت په خپل مجلس کې وفرمایل ٢ الله جل جلاله حضرت محمد ﷺ ته په ټول انبیاء او اهل آسمان فرشتو باندې فضیلت عطا کړي دي ٣ د مجلس حاضرینو په دي اوریدو سره پوښتنه وکړه اې ابوعباس رضی الله عنه (دا د ابن عباس رضی الله عنه کنیه ده) اهل آسمان باندې حضور ﷺ ته الله جل جلاله څرنګه فضیلت ورکړی دی ٤ حضرت ابن عباس رضی الله عنه اوویل الله جل جلاله اهل آسمان ته خو داسې خطاب وفرمایې: وَمَنْ يَقُلْ مِنْهُمْ إِنِّي إِلَهٌ مِنْ دُونِهِ فَذَلِكَ نَجْزِيهِ جَهَنَّمَ كَذَلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ. ترجمه: فرشتو کې چې څوک دا اووائې چې د الله جل جلاله نه ماسوا زه معبود یم نو مونږ به هغه ته د جهنم سزا ورکړو او ظالمانو ته مونږ دغه شان سزا ورکوو ګویا دي خطاب کې نه صرف دا چې د ډیر سخت انداز او رعب او دبدبې اظهار دی بلکه د سخت عذاب خبر هم ورکول شو

١ وَقَالَ اللهُ تَعَالَى لِمُحَمَّدٍ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا - لِيَغْفِرَ لَكَ اللهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ﴾ [الفتح:١-٢] ٢ قَالُوا: وَمَا فَضْلُهُ عَلَى الْأَنْبِيَاءِ؟ ٣ قَالَ: قَالَ اللهُ تَعَالَى: ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهِ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ فَيُضِلُّ اللهُ مَنْ يَشَاءُ﴾ [إبراهيم: ٤] الْآيَةَ، ٤ وَقَالَ اللهُ تَعَالَى لِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ: ﴿وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَافَّةً لِلنَّاسِ﴾ [سبأ:٢٨] ٥ فَأَرْسَلَهُ إِلَى الْجِنِّ وَالْإِنْسِ.

**ترجمه:** ١ و هر کله چې حضور ﷺ ته خطاب وفرمایل شو نو ډیر ملائمت مهربانې او د کرم او عنایت انداز اختیار وفرمایل شو نو حضرت محمد ﷺ ته الله جل جلاله داسې وفرمایل إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا لِيَغْفِرَ لَكَ اللهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ ترجمه: ای محمد مونږ ستا د پاره د

---

[1] اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ۴۶

عظمتونو او برکتونو دروازي پوره طور سره خلاص دی (لکه د مکي فتح کيدل) او داځکه دی چې الله ﷻ ستاسو مخکني او وروستني ټول ګناهونه معاف کړي. [۲] خلقو عرض وکړو ښه دا ونبايي چې حضور ﷺ ته په ټولو نبيانو الله ﷻ څه طور سره فضيلت ورکړی دی [۳] حضرت ابن عباس رضي الله عنه اوويل الله ﷻ د نورو انبياوو په نسبت داسې وفرمايل: وَمَا أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهِ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ فَيُضِلُّ اللّٰهُ مَن يَشَاءُ الاية. ترجمه: مونږ هرنبي د هغه د قوم ژبي سره وليږی چې هغه د قوم مخکې د الله ﷻ احکام او قوانين بيان کړي او الله ﷻ چې څوك غواړي ګمراه کوي يي. الخ [۴] او الله ﷻ د حضرت محمد ﷺ په باره کې دا وفرمايل وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَافَّةً لِلنَّاسِ ترجمه: اې محمده مونږ ته د ټولو خلقو د پاره رسول راليږلی يي [۵] نو الله ﷻ حضور ﷺ د جِنّ او انسان دواړو پغيمبر جوړولو سره راليږلی دی.

**حل اللغات:-** ① فَتْحًا: فتح، کاميابی، ② مُبِينًا: ښکاره، واضحه (لکه فتح مکه). ③ مَا تَقَدَّمَ: مخکنی (ګناهونه)، ④ مَا تَأَخَّرَ: روستنی (ګناهونه). ⑤ فَيُضِلُّ: ګمراه کوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَافَّةً لِلنَّاسِ:

**دَرسول الله ﷺ دَ پوره کائنات دَ پاره نبی جوړيدل:** دا ارشاد په اصل کښې دَ اهل کتاب دَ هغه قول ترديد دې چه هغوی به وئيل چه حضورپاك صرف دَ اهل عرب دَپاره راليږلې شوې دې. په دې آيت سره ئی دَ هغوی ترديد اوکړو چه حضورپاك صرف دَ اهل عرب دَپاره نه بلکه دَ پوره کائنات دَ پاره نبی جوړکړې شوې او راليږلې شوې دې. او حديث الباب دَ رسول الله ﷺ په ټولو عرشيانو او فرشيانو باندې په فضيلت دلالت کوی.

**[٥٧٧٤] حضور ﷺ خپل نبوت څرنګه وپيژندی**

٥٧٧٤-() [٣٣] [١] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ الْغِفَارِيِّ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ [٢]: «قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! كَيْفَ عَلِمْتَ أَنَّكَ نَبِيٌّ حَتَّى اسْتَيْقَنْتَ؟ [٣] فَقَالَ: "يَا أَبَا ذَرٍّ! أَتَانِي مَلَكَانِ وَأَنَا بِبَعْضِ بَطْحَاءِ مَكَّةَ، [٤] فَوَقَعَ أَحَدُهُمَا إِلَى الْأَرْضِ، وَكَانَ الْآخَرُ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، [٥] فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: أَهُوَ هُوَ؟ [٦] قَالَ: نَعَمْ. [٧] قَالَ: فَزِنْهُ بِرَجُلٍ، [٨] فَوُزِنْتُ بِهِ فَوَزَنْتُهُ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه وايي [۲] مايو خل عرض وکړو يارسول الله! تاسو ته څرنګه معلومه شوه چې تاسو نبي يي او بيا تاسو ته د خپل نبوت يقين څرنګه وشو؟ [۳] حضور ﷺ وفرمايل اې ابوذره! زه بطحائي مکه کې يوځاي کې وم ماته دوه فرشتي راغې په هغه کې [۴] يوه فرشته د زمکي او آسمان په منځ کې وه [۵] بيا په هغوی کې يوي

[۱]) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ١٤

زما طرف ته اشاره کولو سره خپل ملګري فرشتي ته اوويل دا هغه سړی دی چې د هغه په باره کې الله ﷻ مونږ ته خو دلي دي چې څما يو پيغمبر دی هغه ته ورشئ [۶] هغه فرشتي جواب ورکړو هو دا هغه سړی دی [۷] بيا مخکني فرشتي دويمي فرشتي ته اوويل چې د دې پيغمبر د امت نه ديوسړی سره دَي وتلی (وزن کرنا) [۸] نو زه يې ديوسړي سره وتللم او زه د هغه سړي نه دروند شوم

**حل اللغات:** - ① اسْتَيْقَنْتَ: أَيْ بَلَغَ عِلْمُكَ غَايَتَهُ الَّتِي هِيَ الْيَقِينُ: چه يقيني طور سره تاته علم اوشو (چه تاسو نبی يئ). ② بَطْحَاءُ: دمکې شګلوړه زمکه. ③ فَوَقَعَ: أَيْ فَنَزَلَ: نازل شو. ④ أَهُوَهُوَ؟: دا په موضع د هذا کنبې واقع دې، يعنی آيا دا هغه سړې دې چاته چه د ورتلو الله تعالی حکم ورکړې دې. ⑤ فَزِنْهُ: زن صيغه د امر ده، يعنی وزن کړئ دا پيغمبر عليه السلام.

[۱] ثُمَّ قَالَ: زِنْهُ بِعَشَرَةٍ، [۲] فَوَزَنْتُ بِهِمْ فَرَجَحْتُهُمْ، [۳] ثُمَّ قَالَ: زِنْهُ بِمِائَةٍ، فَوَزَنْتُ بِهِمْ فَرَجَحْتُهُمْ، [۴] ثُمَّ قَالَ زِنْهُ بِأَلْفٍ، فَوَزَنْتُ بِهِمْ فَرَجَحْتُهُمْ، [۵] كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِمْ يَنْتَثِرُونَ عَلَيَّ مِنْ خِفَّةِ الْمِيزَانِ. [۶] قَالَ: فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: [۷] لَوْ وَزَنْتَهُ بِأُمَّتِهِ لَرَجَحَهَا» " رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بيا هغه فرشتي اوويل اوس يې لس سړو سره وتلئ [۲] نو لس سړو سره يې وتللم نود هغه لس سړو نه هم دروند شوم [۳] بيا هغه فرشتي اوويل سلو سړو سره يې وتلي نو سلو سړو سره يې وتللم اود هغه سلو نه هم دروند شوم [۴] بياد زرو سړو سره وتلل شوم او هغوئ نه هم دروند شوم [۵] او ګويا اوس هم زه هغه زر سړي وينم چې هغوئ دترازوپه کومه پله کې وو هغه څما په مقابله کې دومره سپك وختل او دومره پورته شوه چې ماته داسې ولګيده لکه چې اوس به تول په ما راوغورځيږي [۶] دې نه وروسته هغه دواړو فرشتو کې يوې دويمي ته اوويل [۷] که ته دوئ د دوئ دټول امت سره هم وتلې بيابه هم يقينًا د ټول امت په مقابله کې دروند وي دا دواړه روايتونه دارمي نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ⑥ يَنْتَثِرُونَ: أَيْ يَتَسَاقَطُونَ: راغورزيدل. ⑦ خِفَّةِ الْمِيزَانِ: سپکه تله، ⑧ لَرَجَحَهَا: راجح يعنی درنه به وې.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَوَزَنْتُ بِهِمْ فَرَجَحْتُهُمْ، كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِمْ يَنْتَثِرُونَ عَلَيَّ مِنْ خِفَّةِ الْمِيزَانِ:

**رسول الله ﷺ دټولو انبياؤ دکمالاتو مجموعه:** يعنی ماته په وخت دَوزن داسې ښکاريده چه دَهغوی دَ تلې دَ چابړی نه په ماباندې خلق راګذاريدل څکه چه دَهغوی چابړې سپك وو پورته زنګيدله. زما چابړې درندوو نولکه چه هغوی دَ بره نه په ما راپريوتل هغه چا څه ښه فرمائيلی دی:

جہاں کے سارے کمالات ایک تجھ میں ہیں — تیرا کمال کسی میں نہیں مگر دو چار

يعنى دَ ټول جهان چه كمالات دى هغه ټول صرف په تاكښې يوازې دى مگر ستا كمال په هيچا كښې نشته سوا دَ دوه څلورونه.

**[۵۷۷۵] حضور ﷺ باندې په هرحالت كې قرباني فرض وه**

۵۷۷۵-()[۳۵][۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«كُتِبَ عَلَيَّ النَّحْرُ وَلَمْ يُكْتَبْ عَلَيْكُمْ، [۳] وَأُمِرْتُ بِصَلَاةِ الْفَجْرِ وَلَمْ تُؤْمَرُوا بِهَا» " رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په ما په هرحالت كې قرباني فرض شوي ده كه زه مالي استطاعت لرم يانه لرم اوحال دا چې تاسو باندې داسې فرض نه ده بلكه داسې حالت كې پهره داردي فرض ده كله چې تاسو مالي استطاعت لرئ [۳] او ماته د چاشت مونځ حكم د وجوب په طور شوي دي حال دا چې تاسو ته نه دى شوى بلكه دا مونځ يي ستاسو دپاره صرف سنت گرځولى دى. (دار قطني)

**حل اللغات:-** ① النَّحْرُ: قرباني.

**تسهيلات:**

**قوله:** قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُتِبَ عَلَيَّ النَّحْرُ وَلَمْ يُكْتَبْ عَلَيْكُمْ:

**په رسول الله ﷺ دقرباني فرضيت:** كُتِبَ دَفرض كولوپه معنى كښې دې يعنى كه زه مالداريم اوكه مالدارنه يم په هرحالت كښې په ما قرباني فرض ده. اوتاسو امت والاكه چرې مالدار نه وى نو په تاسوباندې فرض نه ده اودَ ساختى وخت مونځ په ما واجب دې او په تاسو واجب نه دې.

**اشكال:** حضورپاك دَ ساختى وخت دَمونځ پابندى نه ده كړې بيادَ فرض كيدوڅه مطلب دې؟

**د اشكال جواب:** په حضورپاك باندې يوځل دَ ساختى وخت مونځ فرض وو چه حضورپاك اداكړو دَ هميشه دَپاره فرض نه وو او په امت باندې هم فرض نه وو صرف سنت دې.

---

[۱] اخرجه الدارقطنى فى السنن رقم الحديث ۴۲ من باب الصيد

# [۲] بَابُ أَسْمَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصِفَاتِهِ]

## د نبي کريم ﷺ اسماء مبارکه او د صفاتو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه خمسة وعشرون حديثاً مشتملة على اربع مسائل و على سبع خمسين صفةً و اسماً:**

① أسماء النبي صلى الله عليه وسلم: ۱ ، ۲، ۳۔

② صفات النبي صلى الله عليه وسلم: ۴، ۷، ۹، ۸، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۶، ۱۴، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۵، ۲۳، ۲۲، ۲۱، ۲۰

③ ذكرخاتم النبوة: ۴، ۵، ۶، ۱۶۔

④ ذكر نعت النبي ﷺ في التورة : ۲۴۔

**په باب کښې د صفاتو څخه مراد:** په دې باب کښې د نبی ﷺ په صفاتو کښې د اول قسم یعنی دَحضورپاك حلیه مبارکه پیش کولې شی اودې نه پس به دَحضور پاك دَ اخلاقو بیان راځی.

**په سابقه کتابونو کښې د نبی علیه السلام نوم:** دَرسول الله ﷺ مبارك نومونه سل دی مګر دَحضورپاك ذاتی نوم کوم چه ئی نیکه عبد المطلب کیخودې وو هغه محمد ﷺ دې. هم دغه ډیرمشهوردې البته په پخوانو دینونو او کتابونو کښې اودغه شان په آسمانی فرښتو کښې دَ حضورپاك ډیرمشهورنوم احمد دې.

په عربو کښې دَمحمد نوم کیخودو رواج ډیرکم وو بلکه دَنشت برابروو. دَحضورپاك دَنیکه نه پوښتنه هم اوکړې شوه چه تاسو دانوم ولې کیخودو؟ نوهغوی اوفرمائیل چه ما غوښتل چه دکائنات ذره ذره زمادَې بچی تعریف اومدح اوکړی اودې دَټولو محمود جوړشی یعنی تعریف کړې شوې جوړشی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۷۷۶] اسماء نبوي ﷺ**

۵۷۷۶ -(¹) [۱] ① عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " ② «إِنَّ لِي أَسْمَاءً: أَنَا مُحَمَّدٌ، وَأَنَا أَحْمَدُ، وَأَنَا الْمَاحِي الَّذِي يَمْحُو اللَّهُ بِي الْكُفْرَ، ③ وَأَنَا الْحَاشِرُ الَّذِي يُحْشَرُ النَّاسُ عَلَى قَدَمِي، ④ وَأَنَا الْعَاقِبُ الَّذِي لَيْسَ بَعْدَهُ نَبِيٌّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[¹] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب ما جاء فی أسماء رسول الله صلی الله علیه وسلم " (رقم-۳۵۳۲) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب فی أسمائه صلی الله علیه وسلم (رقم-۱۲۴ - (۲۳۵۴) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أسماء النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۲۸۴۰) ومالک فی الموطا فی کتاب أسماء النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۱) واحمد فی المسند: ۴/۴۰۷

**ترجمه:** [۱] حضرت جبير ابن مطعم ﷺ وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] چې ځما متعدد نومونه دي په هغه کې ځما مشهور نومونه محمد دی او احمد دي اوزه ماحي يم چې الله ﷻ ځما په ذريعه کفر ختموي [۳] ځما نوم حاشر هم دی چې خلق به ځما په نقش قدم پورته شي [۴] او ځما نوم عاقب هم دی يعنی هغه سړی چې د هغه نه وروسته بل نبي نشته. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① مُحَمَّدٌ: دا اسم مفعول دې د تحميد نه، وَهُوَالْمُبَالَغَةُ فِي الْحَمْدِ: په حمد کښې مبالغه مراد ده، يعنی ډير زيات حمد کونکې. ② أَحْمَدُ: دا د حمد نه د اسم تفضيل صيغه ده، د مبالغې په وجه ددې متعلق حذف شوې دې، أَيْ أَحْمَدُ مِنْ كُلِّ حَامِدٍ: ده ر حمد کونکی نه زيات حمد کونکې، ③ الْمَاحِي: باطل ختمونکې، ورانونکې (تيارې دکفر اود شرک لره). ④ الْحَاشِرُ: أَيْ ذُوالْحَشْرِ: جمع کونکې. ⑤ عَلَى قَدَمِي: أَيْ عَلَى أَثَرِي: زما په نقش قدم باندې. ⑥ الْعَاقِبُ: دټولو نه آخری (يعنی آخری نبی).

**تسهيلات:**

**قوله:** سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ لِي أَسْمَاءً:

**د حضور پاک صلی الله عليه وسلم د عظمت يو دليل:** دَ حضورپاک دَنومونو زياتيدل دَ حضورپاک دَعظمت او اوصاف حميده دکثرت دليل دې. دَ رسول الله ﷺ يونوم اسم ذاتی دې کوم چه محمد ﷺ دې کوم چه دَ حضورپاک نيکه کيخودې دې. باقی ټول صفاتی نومونه دی چه ټول سل نومونه معروف او مشهوردی.

**د بعضې مشکلو الفاظو وضاحت:**

① الْحَاشِرُ: يعنی دَ ټولو نه مخکښې به حضورپاک دَ قبر نه اوچتيږی. دَ حضورپاک په نقش قدم باندې به نور خلق راؤچتيږی او ميدان حشرکښې به يوځائی کيږی.

② الْعَاقِبُ: دَدې مطلب دادې چه حضورپاک خاتم النبيين دې دَ حضورپاک نه پس به بل نبی نه راځی. حضرت عيسٰی ﷺ به دَ حضورپاک امتی جوړيدو سره راځی دې نه علاوه دعویٰ کونکې به دروغژن اودجال وی.

**[۵۷۷۶] د نبی عليه السلام مختلف نومونه**

۵۷۷۶-() [۲] [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُسَمِّي لَنَا نَفْسَهُ أَسْمَاءً، [۳] فَقَالَ: "أَنَا مُحَمَّدٌ، وَأَحْمَدُ، وَالْمُقَفِّي، [۴] وَالْحَاشِرُ، وَنَبِيُّ التَّوْبَةِ، وَنَبِيُّ الرَّحْمَةِ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوموسٰی اشعري ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ به زمونږ مخکې د

---

[۱] ) اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب فی أسمائه صلی الله عليه وسلم (رقم-۱۲۶ - (۲۳۵۵) واحمد فی المسند: ۴/۳۹۵

خپل ذات مبارك متعدد نومونه بيانول ۞ يوه ورځ حضور ﷺ وفرمايل زه احمد يم زه محمد يم زه مُقَفِّي يم ټول پيغمبرانو نه وروسته راتلونكى يم ۞ زه حاشر يم يعنى د قيامت په ورځ ټول خلق جمع كونكى يم زه د توبې نبي يم او زه د رحمت نبي يم . (مسلم)

**حل اللغات:-** ① الْمُقَفِّي: دا د قفا نه دې، په معنى د آخر سره، يعنى خاتم النبيين دې، چه دهغه اتباع كولې شي يعنى خلق دهغه په نقش قدم روان وى. ② نَبِيُّ التَّوْبَةِ: د توبې نبى (نبى ﷺ دير زيات رجوع كونكې وو الله تعالى ته). ③ نَبِيُّ الرَّحْمَةِ: د رحمت نبى (نبى ﷺ په خپل امت دير مهربان وو).

**تسهيلات:**

**قوله:** نَبِيُّ التَّوْبَةِ، وَنَبِيُّ الرَّحْمَةِ:

**د نبى الرحمه او د نبى التوبه مطلب:** مطلب دا چه دَحضورپاك په لاس مبارك باندې ډيرو خلقو توبه كړې ده يامطلب دادې چه حضورپاك په شپه اوورځ كښې دير استغفاركونكي او توبه كونكي وو. دَمسجدنبوى په محرابى ديوال باندې هغې سره نبي السيف هم ليكلې دې او نبى الملاحم هم دَحضورپاك په نومونو كښې يونوم دې. يعنى دَ سختو جنګونو والانبى او دَتورو والا نبى.

### [۵۷۷۸] حضور ﷺ او د كافرو كنځل

٥٧٧٨ -(¹) [٣] ۞ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۞ " أَلَا تَعْجَبُونَ كَيْفَ يَصْرِفُ اللَّهُ عَنِّي شَتْمَ قُرَيْشٍ وَلَعْنَهُمْ؟ ۞ يَشْتُمُونَ مُذَمَّمًا، وَيَلْعَنُونَ مُذَمَّمًا، وَأَنَا مُحَمَّدٌ» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۞ وحضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ يوه ورځ صحابه رضي الله عنهم ته وفرمايل ۞ آيا تاسو ته په دې حيرت نه دى چې الله جل جلاله زه د قريش مكه د كنځلو او لعنتونو نه څرنګه محفوظ كړى يم ۞ هغوئ مذمم ته كنځل كوي او مذمم باندې لعنت ليږي حال دا چې زه محمد يم .بخارى

**حل اللغات:-** ① يَصْرِفُ اللَّهُ: اړوى الله پاك، ② مُذَمَّمًا: بدى بيان كړې شوې.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَشْتُمُونَ مُذَمَّمًا، وَيَلْعَنُونَ مُذَمَّمًا، وَأَنَا مُحَمَّدٌ:

**د حديث پس منظر:** قريش چونكه عربى باندې پوهيدل اودَ محمد معنى داده چه هغه سړې كوم چه ډيرزيات تعريف كړې شوې وى. كله چه به قريشو كنځلې كولې نودَ

¹) اخرجه البخارى فى كتاب المناقب/باب ما جاء فى أسماء رسول الله صلى الله عليه وسلم " (رقم-٣٥٣٣) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: الإبانة والإفصاح بالكلمة الملفوظ بها إذا قصد بها لما لا يحتمل معناها لم توجب شيئًا ولم تثبت حكمًا (رقم-٣٤٣٨) واحمد فى المسند:٢/٢٤٤

حضورپاك نوم اخستلو سره لكه چه اول به ئي تعريف كيدلو بيابه كنځلې راتلې. داځيزد قريشو كافرانو محسوس كړو په دې وجه هغوى فيصله اوكړه چه محمد ته به بيا مذمم وايو په دې نوم به ورته كنځلې كوو. چنانچه هغوى به مذمم وئيلوسره كنځلې كولې. حضورپاك اوفرمائيل چه الله تعالى اوغوښتل چه په لفظى توګه باندې هم دحضورپاك نوم مبارك سره كنځلې اونه انخلى، په دې وجه هغوى اوس مذمم ته كنځلې كوى مذمم څوك دې زه خو محمديم.

**[۵۷۷۹] مخ مبارك ويښته مبارك او د نبوت د مهر ذكر**

۵۷۷۹-()[۱]وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ[۲]: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَدْ شَمِطَ مُقَدَّمُ رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ، [۳]وَكَانَ إِذَا ادَّهَنَ لَمْ يَتَبَيَّنْ، [۴]وَإِذَا شَعِثَ رَأْسُهُ تَبَيَّنَ، [۵]وَكَانَ كَثِيرَ شَعْرِ اللِّحْيَةِ، [۶]فَقَالَ رَجُلٌ: وَجْهُهُ مِثْلُ السَّيْفِ؟ [۷]قَالَ: لَا بَلْ كَانَ مِثْلَ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ، [۸]وَكَانَ مُسْتَدِيرًا، [۹]وَرَأَيْتُ الْخَاتَمَ عِنْدَ كَتِفِهِ[۱۰]مِثْلَ بَيْضَةِ الْحَمَامَةِ يُشْبِهُ جَسَدَهُ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت جابر ابن سمره ﷺ وايي [۲]د رسول الله ﷺ د سر او ږيرې مباركې مخكنى حصه كې څه ويښته سپين شوي وه [۳]هركله به يې چې ويښتانو باندې تيل ولګول نو هغه سفيدي سپين والى به نه ښكاره كيدى [۴]البته د سر مبارك ويښته چې به خواره وه نو داسفيد به ښكاره كيدله [۵]او د حضور ﷺ ږيره مباركه كې ډيرزيات ويښته وه [۶]كوم وخت چې حضرت جابر ﷺ د حضور ﷺ داحليه شريف بيان كړه نو يوه سړي اوويل چې د حضور ﷺ مخ مبارك چمك دمك كې د توري په شان وو [۷]حضرت جابر ﷺ اوويل نه بلكه د نمر سپوږمۍ په شان وو [۸]او ګردې والى په كښې وو [۹]او ما د حضور ﷺ مهر نبوت اوليدلو چې اوږې ته نزدې وو [۱۰]او د كونترې د هګۍ په شان ګول وو د هغه رنګ د حضور ﷺ د جسم مبارك درنګ په شان وو مسلم

**حل اللغات:-** ① شَمِطَ: أَيْ: شَابَ: سپين شوى وو. ② ادَّهَنَ: تيل به ئې اولګول. ③ لَمْ يَتَبَيَّنْ: أَيْ: لَمْ يَظْهَرْ: نه به ښكاريدل (سپين ويښته). ④ شَعِثَ: أَيْ: تَفَرَّقَ: اوچيدوسره د ويښتو ګډوډوالى ته شعث وائى. ⑤ مُسْتَدِيرًا: أَيْ: مَائِلًا إِلَى التَّدْوِيرِ: ګولائى ته مائل وو (يعنى مكمل ګول نه وو). ⑥ الْخَاتَمَ: اى خَاتَمُ النُّبُوَّةِ: مهر نبوت. ⑦ بَيْضَةِ: هګئ. ⑧ الْحَمَامَةِ: كونتره.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقَالَ رَجُلٌ: وَجْهُهُ مِثْلُ السَّيْفِ؟ قَالَ: لَا بَلْ كَانَ مِثْلَ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ:

**د رسول الله ﷺ مخ مبارك د تورې پشان د روښانه كيدلو مطلب:** چونكه توره كښې پرق

---

[۱]) اخرجه مسلم فى كتاب الفضائل/باب شيبه صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۰۹ - (۲۳۴٤)) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۳۶) واحمد فى المسند:۵/۹۰

سره اوږدوالی اوپلنوالي وی نودا احتمال پیدا شو چه کیدې شی دَحضورپاك مخ مبارك داسې وو. دَدې جواب حضرت جابر ﷺ ورکړو چه داسې نه بلکه دَحضورپاك مخ مبارك دَ سپوږمئی په شان سپین اودَ نمر په شان روښانه وو.

**قوله:** وَرَأَيْتُ الْخَاتَمَ عِنْدَ كَتِفِهِ مِثْلَ بَيْضَةِ الْحَمَامَةِ يُشْبِهُ جَسَدَهُ:

**دمهر نبوت د غوښې رنګ:** یعنی دَ مهرنبوت غوښه دَ بدن دَغوښې په شان وه دَدې مطلب دادې چه دَ نبوت دَ مهر دَ غوښې رنګ هم هغه شان وو کوم چه دَعام بدن رنګ وو.

**د نوعمر صحابی د رسول الله ﷺ حلیه مبارکې بیانولو توجیه:** حضرت جابربن سمرة ﷺ نوعمر صحابی دې اودَحضورپاك دَ حلیه مبارکه هم وړوکی صحابی بیان کړې ده. بزرګانو صحابه کرامو داجرأت نه شوکولې دکوم اعتراف چه حضرت عمروبن العاص ﷺ دَخپل وفات په وخت کښې کړې وو چه ما کله هم په ډك نظر دَحضورپاك دیداراونه کړو ادب او رعب په مینځ کښې وو.

## [۵۷۸۰] مهر نبوت کوم ځاې وو؟

٥٧٨٠-() [٥] ①وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَرْجَسَ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ②: «رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَكَلْتُ مَعَهُ خُبْزًا وَلَحْمًا - ③أَوْقَالَ: ثَرِيدًا - ④ثُمَّ دُرْتُ خَلْفَهُ، فَنَظَرْتُ إِلَى خَاتَمِ النُّبُوَّةِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ عِنْدَ نَاغِضِ كَتِفِهِ الْيُسْرَى، ⑤جُمْعًا، عَلَيْهِ خِيلَانٌ كَأَمْثَالِ الثَّآلِيلِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت عبد الله ابن سرجس ﷺ وایي ②ما د رسول الله ﷺ د زیارت ملاقات او هغوئ سره د طعام خوړلو شرف حاصل کی طعام روټۍ او غوښه وه ③یا هغه دا اوویل ثرید وو (یعني روټۍ په ښوروا کې وړه شوي وه ④بیا زه د حضور ﷺ شا طرف ته راغلم او مهرِ نبوت مي اولیدلو چې د حضور ﷺ د دواړو اوږو په منځ کې د ګسي اوږې نرم هډوکی باندې وو ⑤او د هیئت د اعتبار نه د موټي په شان وو او په هغه د زخو په شان تِل ننبي وي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ①دُرْتُ: راتاؤ شوم، راغلم، ②نَاغِضِ: أي عَظْمٌ رَقِيقٌ: نرم هډوکي، ③جُمْعًا: هُوَأَنْ تَجْمَعَ الْأَصَابِعَ وَتَضُمَّهَا: دلاس ګوتې چه بند کړې شی هغې ته وائی یعنی موټې، ④خِيلَانٌ: د خَال جمع ده. وَهِيَ نُقْطَةٌ تَضْرِبُ إِلَى السَّوَادِ: تور والی ته مائل داغونه، ⑤الثَّآلِيلِ: د ثُؤلُول جمع ده، په بدن باندې یوقسم تور ټاکی راخیجی هغه مراد دی په فارسی کښې ورته زَخ او پشتو کښې ورته زخې وائی. (اردو کښې ورته تِل وائی).

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب إثبات خاتم النبوة، وصفته، ومحله من جسده صلی الله علیه وسلم (رقم-١١٢ - (٢٣٤٦) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی خاتم النبوة (رقم-٣٦٤٣) واحمد فی المسند:٨٢/٥

**تسهیلات:**

**قوله: فَنَظَرْتُ إِلَى خَاتَمِ النُّبُوَّةِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ عِنْدَ نَاغِضِ كَتِفِهِ الْيُسْرَى:**

**په مهر نبوت باندې لیکل شوی الفاظ:** دَ ختم نبوت دامهردَ رسول الله ﷺ دَشا دَ کسې اوګې لاندې وو. دَ نبوت ملاویدونه پس دا پیدا شوې وو. دا دَ غوښې یوه ګول ټکړه وه دکوم باره کښې چه په پخوانو آسمانی کتابونوکښې دَ وخت پیغمبرانو علیهم السلام په تفصیل سره خودنه کړې وه. اودَ حضورپاك دَ نبوت علامت ئې ګرځولې وو. په دې وجه به حضورپاك دا هرکتونکی ته خودلو او پټولوئی نه. په دې باندې لیکلې شوی وو "وحدلاشریك له توجه حیث کنت فانك منصور" دَحضورپاك وفات سره مهرنبوت په بدن مبارك کښې دننه ډوب شو لاړو.

**قوله: جُمْعًا، عَلَيْهِ خِيلَانٌ كَأَمْثَالِ الثَّآلِيلِ:**

**دمهر نبوت مقدار او کیفیت:** دَ لاس دَ موټی په شان دامهروو داتشبیه په هئیت اوکیفیت کښې ده په حجم کښې نه ده. په حجم کښې دامهر دَتیتر یا کونترې دَ هګئی برابر وو. داخبره یاده لرنی چه هرکتونکی دَدغه مهرساخت په یوه اندازه سره خودلې دې. په دې وجه مختلف الفاظ راغلی دی. بعضې دَتیتردَهګئی بعضې دکونترې دَ هګئی بعضې دَ منړې دَ دانې بعضې دَ غوټې برابر دَدې مهرساخت خودلې دې. اوبعضو دَ لاس دَ موټی برابر خودلې دې داټولې اندازې دی دې ته تعارض نه شی وئیلې. هریوخپله اندازه کړې اوخودلې دې.

**[۵۷۸۱] په بچوشفقت**

۵۷۸-() [۲] [۱] وَعَنْ أُمِّ خَالِدٍ بِنْتِ خَالِدِ بْنِ سَعِيدٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «أُتِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِثِيَابٍ [۳] فِيهَا خَمِيصَةٌ سَوْدَاءُ صَغِيرَةٌ، [۴] فَقَالَ: (ائْتُونِي بِأُمِّ خَالِدٍ) [۵] فَأُتِيَ بِهَا تُحْمَلُ، [۶] فَأَخَذَ الْخَمِيصَةَ بِيَدِهِ، فَأَلْبَسَهَا. [۷] قَالَ: (أَبْلِي وَأَخْلِقِي، ثُمَّ أَبْلِي وَأَخْلِقِي) [۸] وَكَانَ فِيهَا عَلَمٌ أَخْضَرُ أَوْ أَصْفَرُ. [۹] فَقَالَ: (يَا أُمَّ خَالِدٍ هَذَا سِنَاهُ) [۱۰] وَهِيَ بِالْحَبَشَةِ: حَسَنَةٌ.

**ترجمه:** [۱] او د خالد ابن سعید لور اُمِ خالدَ وايي [۲] یوه ورځ رسول الله ﷺ ته په هدیه کې څه کپړې راغلې [۳] په هغه کې یو وړه کمبله هم وه [۴] حضور ﷺ وفرمایل ام خالد ماته راولئ [۵] نو ام خالدَ چې بچی وه اوچتولو سره حضور ﷺ ته راوستل شوه [۶] حضور ﷺ هغه کمبله پورته کړه او خپل لاس مبارك سره يې ام خالد ته وروا غوستله [۷] او بیا څرنګه چې د حضور ﷺ عادت وو چې کله به چا نوي کپړه اغوستله نو حضور ﷺ به ورته دعا کوله ام خالد ته یې دا دعا وکړله داکپړه زړه کئ او بیایې زړه کئ یعنی الله ﷻ دې ستا

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر /باب من تکلم بالفارسیة والرطانة (رقم-۳۰۷۱)

عمر دراز کړي او بار بار دي ستا کپړه استعمالول او ډيره کپړه اغوستل نصيب شي [۸] هغه کمبل کې شني يا ژړي نبني جوړي شوي وي [۹] حضور ﷺ وفرمايل ام خالد ! داکپړه خو ډيره اعلی ده [۱۰] او لفظ سناه چې د هغه ترجمه ډيره ښه شويده د حبشي ژبي لفظ دی چې د هغه معنی د ښه او بهترينې دي

**حل اللغات:** - ① خَمِيصَةٌ: كِسَاءٌ أَسْوَدُ مُرَبَّعٌ: تور څلور ګوټه پيړ څادر، شړئ، کمبل. ② تُحْمَلُ: أَيْ: مَحْمُولَةٌ: يعنی اوچته ئې په غيږه کښې راوستله (ځکه چه ماشومه وه). ③ أَبْلِي: دا د إِبْلَاء نه دې، وَهُوَ جَعْلُ الثَّوْبِ خَلَقًا: جامې زړول مراد دی. ④ أَخْلِقِي: د إِخْلَاق نه دې، ددې معنی هم کپړه زړول دی، دا دواړه الفاظ د تاکيد دپاره راوړلی شوی دی (مطلب ئې د ډير عمر دعا کول دی). ⑤ عَلَمٌ: نښې، ⑥ أَخْضَرُ: شني، ⑦ سِنَاهٌ: أَيْ: حَسَنٌ: ډير ښه.

[۱] قَالَتْ: فَذَهَبْتُ أَلْعَبُ بِخَاتَمِ النُّبُوَّةِ، [۲] فَزَبَرَنِي أَبِي، [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (دَعْهَا»): رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ام خالد وايي بيا زه د حضور ﷺ شا مبارکي طرف ته لاړم او د ماشومتوب د ناپوهي په بناء مهرِ نبوت سره مي لوبي کولي [۲] خما پلار چې دا وليدل نو زه يې ورټلم او منع کړم [۳] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل پريږده چې لوبي کوي دا مه منع کوه . بخاری.

**حل اللغات:** - ⑧ فَزَبَرَنِي: أَيْ: زَجَرَنِي وَهَدَّدَنِي وَنَهَانِي عَنْ ذٰلِكَ: زه ئې اورټلم او منع ئې کړم.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو الفاظو وضاحت:**

① أُمِّ خَالِدٍ: دا وړه ماشومه وه.

② تُحْمَلُ: يعنی دَ وړوکوالی دَ وجې نه به اوچتولې شوه.

③ الْخَمِيصَةَ: دَ وړئی نه جوړشوې وړوکی شان ښائسته يعنی څادر ته وائی په کوم کښې چه ګلونه وی. لکه چه وئيلی شوی دی:

لبست الخميصة ابغي الخبيصة　　　وانشنت شصي في كل شيصة

④ سِنَاهْ: يعنی حضورپاك دَ حبشه والا لغت استعمال کړو کوم چه دَ سناه لفظ وو دکوم ترجمه چه حسن وو يعنی ډيرښائسته.

⑤ فَزَبَرَنِي: يعنی دَ بې ادبئی دَ ويرې نه زه پلار رامنع کړم بلکه رټلو سره ئی رامنع کړم.

## [۵۷۸۲] د حضور ﷺ د قد و قامت وغیره ذکر

۵۷۸۲-(۱) [۷] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ[۲]: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ بِالطَّوِيلِ الْبَائِنِ، وَلَا بِالْقَصِيرِ، [۳] وَلَيْسَ بِالْأَبْيَضِ الْأَمْهَقِ، وَلَا بِالْآدَمِ، [۴] وَلَيْسَ بِالْجَعْدِ الْقَطَطِ، وَلَا بِالسَّبْطِ، [۵] بَعَثَهُ اللَّهُ عَلَى رَأْسِ أَرْبَعِينَ سَنَةً [۶] فَأَقَامَ بِمَكَّةَ عَشْرَ سِنِينَ، وَبِالْمَدِينَةِ عَشْرَ سِنِينَ، [۷] وَتَوَفَّاهُ اللَّهُ عَلَى رَأْسِ سِتِّينَ سَنَةً [۸] وَلَيْسَ فِي رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ عِشْرُونَ شَعْرَةً بَيْضَاءَ»

**توجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه وايي [۲] د رسول الله ﷺ قد مبارك نه خو ډیر اوږد وو او نه مندري [۳] رنګ مبارك يي نه بالكل سپين وو نه بالكل ګندمي يعنى مائل به سياهي [۴] د سر مبارك ويښته يي نه بالكل خمدار او نه بالكل سيده وو [۵] او الله جل جلاله هغه وخت راولاېږى يعنى منصب رسالت باندې فائز كى كله چې د دوې عمر پوره څلويښت كاله شو [۶] بيا حضور ﷺ لس كاله مكه معظمه كې قيام وكى اولس كاله په مدينه منوره كې [۷] او الله جل جلاله حضور ﷺ ته د شپيتو كالو په عمر كې وفات وركى [۸] تر هغه وخت د حضور ﷺ د سرمبارك اوږيري كې صرف شل ويښته سپين وه

**حل اللغات:-** ① الْبَائِنِ: أَيْ: الْبَاعِدِ عَنْ حَدِّ الْاِعْتِدَالِ: دَ حد نه زيات، ② الْقَصِيرِ: أَيْ: الْمُتَرَدِّدِ: لنډ (يعنى نبى عليه السلام نه ډير زيات اوږد وو نه لنډ بلكه د لنډ والى په نسبت اوږدوالى ته زيات مائل ووكوم چه د سړو دپاره حسن دې). ③ الْأَبْيَضِ الْأَمْهَقِ: أَيْ: الَّذِي بَيَاضُهُ خَالِصٌ: خالص سپين، تك سپين لكه واوره يا پې، ④ بِالْآدَمِ: غنم رنګې، ⑤ الْجَعْدِ الْقَطَطِ: قَطَط د جَعْد دپاره تاكيد دې، يعنى ډير ګول ګوچي ويښته، ⑥ بِالسَّبْطِ: وَهُوَ الشَّعْرُ الْمُنْبَسِطُ الْمُسْتَرْسِلُ: رازوړند بالكل نيغ ويښته،

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ يَصِفُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ[۲]: «كَانَ رَبْعَةً مِنَ الْقَوْمِ، لَيْسَ بِالطَّوِيلِ، وَلَا بِالْقَصِيرِ، أَزْهَرَ اللَّوْنِ». [۳] وَقَالَ: كَانَ «شَعْرُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى أَنْصَافِ أُذُنَيْهِ»، [۴] وَفِي رِوَايَةٍ: بَيْنَ أُذُنَيْهِ وَعَاتِقِهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**توجمه:** [۱] په يوبل روايت كې حضرت انس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ اوصاف بيانولو سره دا اوويل [۲] چې حضور ﷺ په خلقو كي ميانه قد وو نه دنګ وو نه مندري د حضور ﷺ رنګ صاف وو ځلانده (ښائسته) وو [۳] حضرت انس رضي الله عنه داهم بيان وكړو چې د حضور ﷺ د سرمبارك ويښته د غوږونو ترنيمايي پورې وو [۴] او په يوه روايت كې دا الفاظ دي چې د حضور ﷺ د سرمبارك ويښته د غوږونو او اوږود منځه پورې اوږده وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ⑦ رَبْعَةً مِنَ الْقَوْمِ: أَيْ: مُتَوَسِّطًا: درميانه بدن والا (يعنى نه ډير اوږد نه لنډ، نه ډير

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب المناقب/باب صفة النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۵٤۸) ومسلم فى كتاب الفضائل/باب فى صفة النبى صلى الله عليه وسلم، ومبعثه، وسنه (رقم-۱۱۳ - (۲۳٤۷) والنسائى فى كتاب الزينة/باب اتخاذ الشعر (رقم-۵۰۶۱) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۳۷) ومالك فى الموطا فى كتاب صفة النبى صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صفة النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-۱)

کمزورۍ نه ډير خرب، ددې نه د طبيعت اومزاج اعتدال طرف ته هم اشاره ده. ⑧ أَزْهَرَ اللَّوْنِ: أَيْ نَيِّرَ اللَّوْنِ وَحَسَنَهُ: صفا رنګ والا يعنى ښائسته او ځلانده وو. ⑨ أَنْصَافَ أُذُنَيْهِ: د غوږونو نيمائى يعنى د مينځ پورې،

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ، قَالَ «كَانَ ضَخْمَ الرَّأْسِ وَالْقَدَمَيْنِ، [۲] لَمْ أَرَ بَعْدَهُ وَلَا قَبْلَهُ مِثْلَهُ، [۳] وَكَانَ سَبْطَ الْكَفَّيْنِ» [۴] وَفِي أُخْرَى لَهُ، قَالَ: كَانَ شَثْنَ الْقَدَمَيْنِ وَالْكَفَّيْنِ.

**ترجمه:** [۱] او په يوه روايت کې چې بخاري نقل کړې دی داسې دی چې حضرت انس رضي الله عنه بيان وکړو د حضور ﷺ سر مبارك غټ وو او پښې د غوښې نه ډکې وې [۲] ما د حضور ﷺ په شان وجيه او ښائسته انسان نه خو د حضور ﷺ نه مخکې ليدلی دی او نه د حضور ﷺ نه وروسته [۳] او د حضور ﷺ د لاس مبارك ورغوی فراخ وو [۴] د بخاري په يوه روايت کې دي حضرت انس رضي الله عنه بيان وکړو د حضور ﷺ دواړې متې (بازو) او ورغوی هوار او دغوښې نه ډك وو.

**حل اللغات:** - ⑩ ضَخْمَ الرَّأْسِ: أَيْ: عَظِيمَهُ: غټ سر والا (په عربو کښې دا صفت ممدوح ګڼړلې کيدو چه غټ سر په عظمت او سعادت د انسان باندې دلالت کوی او داسې انسان د رياست او سيادت قابل وی). ⑪ سَبْطَ الْكَفَّيْنِ: فراخه ورغوی يعنی د لاس تلی ئې فراخه او د غوښې نه ډک وو. ⑫ شَثْنَ الْقَدَمَيْنِ: أَيْ: غَلِيظَ الْأَطْرَافِ: خپې مبارکې ئې د غوښې نه ډکې او مضبوطې وې.

**تسهيلات:**

**قوله: بَعَثَهُ اللهُ عَلَى رَأْسِ أَرْبَعِينَ سَنَةً فَأَقَامَ بِمَكَّةَ عَشْرَ سِنِينَ، وَبِالْمَدِينَةِ عَشْرَ سِنِينَ:**

**د حضور پاک صلى الله عليه وسلم په وصال کښې د رواياتو اختلاف او تطبيق:**

يعنی دَ څلويښتو کالو په عمر کښې ورته نبوت ملاؤ شو اودَ نبوت زمانه په مکه کښې لس کاله وه او په مدينه کښې هم لس کاله خودلې شوې ده. دَ شپيتو کالو په عمر کښې دَ حضورپاك وصال شوې دې. په دې روايت کښې په مکه مکرمه کښې دَ حضورپاك قيام دَ نبوت ملاويدونه پس لس کاله خودلې شوې دې دَ کوم په رڼاکښې چه دَ وصال عمر ۶۰ کاله جوړيږی مګر په نورو صحيح او واضح رواياتو کښې دَ مکې مکرمې قيام دَ نبوت نه پس ديارلس کاله خودلې شوې دې دغه شان ټول عمر ۶۳ کاله جوړيږی. امام بخاری رحمه الله وغيره علماؤ هم دا راجح او صحيح ګرځولې دې. زير بحث روايت کښې دَ دهائی ذکرکړې شوې دې او کُسور پريخودلې شوی دی. عرب په خپلو محاورو کښې هم داسې کوی. بعضې رواياتو کښې دَ حضورپاك ټول عمر ۶۵ کاله خودلې شوې دې نو په دې کښې دَ ولادت او وفات دوه کاله شمير کړې شوی دی. صحيح هم هغه روايت دې په کوم کښې چه ۶۳ کاله ذکر دی په کوم کښې چه په مکه کښې ديارلس کاله او مدينه کښې لس کاله موده خودلې شوې ده. دغه شان ټول عمر ۶۳ کاله کيږی.

**قوله:** شَثْنَ الْقَدَمَيْنِ:

**د رسول الله ﷺ دلاسونو او د خپو بنا ولې:** يعنى دَ حضورپاك خپې اولاسونه دواړه دَ غوښې نه ډك او سخت مضبوط وو داهم په عربوكښې محمود او ممدوح وو مګر په سړو كښې نه چه په ښځو كښې. دَ ښځودَپاره شاعروائي:

وتعطوبرخص غيرشثن كأنها اساريع ظبي اومساويك اسحل

دَ خپو لاسونو دَ اطراف سختيدل دَ تخليق په اعتبارسره وو نه چه دا زاګه وو دَ زګوالى خونفى ده. مضبوط لاسونه او مضبوط قدمونه مراد دى. "اي غليظ الاطراف من شَثُن بالضم والكسر اذاغلظ" (مرقات) لكه "سبط الكفين او ششن الكفين" معنى هم يوه ده.

۵۷۸۳-() [۸] [۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَرْبُوعًا، بَعِيدَ مَا بَيْنَ الْمَنْكِبَيْنِ، [۳] لَهُ شَعْرٌ بَلَغَ شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ، [۴] رَأَيْتُهُ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ، لَمْ أَرَ شَيْئًا قَطُّ أَحْسَنَ مِنْهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
[۵] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ، قَالَ: «مَا رَأَيْتُ مِنْ ذِي لِمَّةٍ أَحْسَنَ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۶] شَعْرُهُ يَضْرِبُ مَنْكِبَيْهِ، [۷] بَعِيدُ مَا بَيْنَ الْمَنْكِبَيْنِ لَيْسَ بِالطَّوِيلِ وَلَا بِالْقَصِيرِ».

**ترجمه:** [۱] او حضرت براء ﷺ وايي [۲] رسول الله ﷺ ميانه قد وو او د دواړو اوږو په منځ كې كافي كشادګي وه دي نه داهم ثابته شوه چې د حضور ﷺ سينه مباركه ډيره پلنه وه [۳] دحضور ﷺ د سرمبارك ويښته د غوږونو د نرميو پورې وو [۴] او ما حضور ﷺ سور لباس كې چې د يمني كپړي تهبند (لنګ) او څادر باندې مشتمل وو اوليدلو په دې كې څه مبالغه نشته چې ما د حضور ﷺ نه زيات حسين هيڅ شى نه دى ليدلى. (بخاري مسلم) [۵] او د مسلم په يوه روايت كې دا الفاظ دي چې حضرت براء ﷺ اوويل ما هيڅ ويښتانو والا سړى سورلباس كې د رسول الله ﷺ نه زيات حسين او وجيه نه دى ليد لى [۶] د حضور ﷺ د سرمبارك ويښته د اوږو پورې وه [۷] د حضور ﷺ د دواړو اوږو په منځ كې كافي كشادګي وه او د حضور ﷺ قد نه ډير دنګ او نه مندري وو.

**حل اللغات:-** ① مَرْبُوعًا: أي: مُتَوَسِّطًا: درميانه قد والا (يعنى نه ډير اوږد وو نه ډير لنډ وو). ② شَحْمَةَ: د غوږونو نرمه غوښه. پوڅه كئ. ③ حُلَّةٍ: څادر. ④ ذِي لِمَّةٍ: غټو ويښتانو والا (لمّه هغه ويښتو ته وائي چه اوږو ته رسيدلې وي).

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب صفة النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۵۵۱) ومسلم في كتاب الفضائل/باب في صفة النبي صلى الله عليه وسلم وأنه كان أحسن الناس وجهًا (رقم-۹۱ - ۲۳۳۷) وابوداود في كتاب اللباس/باب في الرخصة في ذلك (رقم-۴۰۷۲) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صفة النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۶۳۵) والنسائي في كتاب الزينة/باب اتخاذ الجمة (رقم-۵۲۳۲) وابن ماجه في كتاب اللباس . باب لبس الأحمر للرجال (رقم-۳۵۹۹) واحمد في المسند: ۴/۳۰۰

**تسهیلات:**

**قوله:** بَعِيدُ مَا بَيْنَ الْمَنْكِبَيْنِ:

**د رسول الله ﷺ د اوګو په مینځ کښې فاصله:** یعنی اوګې ئې په فاصله باندې وې دَ کوم نه چه دَ سینې دَ کولاؤ والی پته لګیده کوم چه ممدوح دی. دَ حضورپاك دَ ویښتو مبارك مکمل تحقیق دې نه مخکښې کتاب اللباس کښې شوې دې.

**قوله:** كَانَ مَرْبُوعًا:

**د رسول الله ﷺ د ویښتو قسمونه:** مطلب دا چه دَ رسول کریم ﷺ قد مبارك دَ درمیانه نه لږ شان اوږد وو. دَ رسول الله ﷺ ویښته مبارك درې قسمه وو:

① وفره: دَ غوږونو نرمئی پورې.

② لمه: دَ غوږونو او اوږو دَمینځ پورې.

③ جمه: دَ اوږو پورې.

**دَ رسول الله ﷺ دَ زلفو مبارکو په روایاتو کښې تطبیق:** دَ رسول الله ﷺ دَ زلفو مبارکو باره کښې مختلف روایات دی. په دغه روایتونو کښې به داسې تطبیق ورکولې شی چه کله به حضور پاك خپلو ویښتو مبارکو کښې تیل لګول او ګمنزول به ئې نو په هغه وخت کښې به دَ حضورپاك ویښته اوږدیدل اودَ اوږو پورې به رسیدل اوکه چرې ګمنز یا تیل وغیره به ئې نه لګول نوهغه به راغونډ شو اودَ غوږونو دَ نرمئی پورې یا دَدې نه لږ شان ښکته به رسیدل یا حضورپاك ته دَ جهادی مصروفیاتو دَ وجې نه دَ ویښتو صحیح کولو موقع نه ملاویدله نو ویښته به ئې اوږدیدو سره اوږو ته رسیدل بیا چه به کله حضورپاك ویښته مبارك صحیح کول نو واړه کیدل به.بهرحال په دې روایتونو کښې هیڅ تعارض نشته.

**قوله:** رَأَيْتُهُ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ:

**د حلة حمراء مطلب:** "حلة" نه مراد دادې چه دَ حضورپاك په مبارك بدن باندې چه دَ کومې کپړې لنګ او څادر وو په هغې کښې سرې کربښې وې. دغه شان په کومو احادیثو کښې چه دَ شین لباس ذکر دې دَ هغې نه هم شین کربښو والا څادر مراد دې.

**[٥٧٨٤] دَ حضورپاك ﷺ حلیه مبارکه**

٥٧٨٤-() [٩] ١ وَعَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ ٢: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ضَلِيعَ الْفَمِ، ٣ أَشْكَلَ الْعَيْنَيْنِ، مَنْهُوشَ الْعَقِبَيْنِ. ٤ قِيلَ لِسِمَاكٍ: مَا ضَلِيعُ الْفَمِ؟ قَالَ: عَظِيمُ الْفَمِ ٥ قِيلَ: مَا أَشْكَلُ الْعَيْنَيْنِ؟ قَالَ: طَوِيلُ شَقِّ الْعَيْنِ. ٦ قِيلَ: مَا مَنْهُوشُ الْعَقِبَيْنِ؟ قَالَ: قَلِيلُ لَحْمِ الْعَقِبِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب فی صفة فم النبی صلی الله علیه وسلم وعینیه وعقبیه (رقم-٩٧ - (٢٣٣٩) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٣٦٤٧) واحمد فی المسند:١٠٣/٥

**ترجمه:** [۱] او حضرت سماك رحمه الله ابن حرب د حضرت جابر ابن سمره رضي الله عنه نه روايت كوي هغه اوويل [۲] رسول الله ﷺ كشاده دهن وو [۳] ستركوكي يي سُرخي وه او پوندي يي كمي غوښي والا وي [۴] راوي وايي چې حضرت سماك رحمه الله نه پوښتنه وشوه چې ضليع الفم نه څه مراد دی؟ نو هغه اوويل لوی خولي والا [۵] هغه نه پوښتنه وشوه چې دأشكل العين څه معنى ده؟ نو جواب يي وركى د دې معنى ده د ستركو ددائري لوى والي [۶] بيا ځني پوښتنه وشوه چې د منهوش العقبين څه معنى ده؟ نو جواب يي وركى هغه پوندي چې غوښي يي كمي وي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① ضَلِيعَ الْفَمِ: أَيْ: وَسِيعَهُ: فراخه خوله، (دا كنايه ده د زيات فصاحت او بلاغت نه). ② أَشْكَلَ الْعَيْنَيْنِ: الْأَشْكَلُ: مَا فِيهِ حُمْرَةٌ وَبَيَاضٌ: كومو ستركو كښې چه سور والې او سپينوالې مخلوط وى هغې ته وائى، يعنى سرخى مائل سپينوالې، ③ مَنْهُوشَ الْعَقِبَيْنِ: أَي قَلِيلَ لَحْمِ الْعَقِبِ: چه پوندو كښې ئې غوښه كمه وى. ④ شَقِّ الْعَيْنِ: د ستركو دائره او ګولائى.

**تسهيلات:**

**قوله: أَشْكَلَ الْعَيْنَيْنِ:**

**د رسول الله ﷺ د ستركو مباركو كيفيت:** يعنى چه غټې ستركې وى او سپينوالې ئى ښه ډير سپين وى او توروالې ئى ښه ډير تور وى او په سپينوالى كښې سرې كرخې روانې وى چه دَ ډير زيات ښائست علامت دې. سماك راوى چه كوم دَ اشكل العينين تفسير كړې دې عام شارحينو دا غلط ګرځولې دې. اودَ ستركودَ غټ والى دَپاره دا تفسير صحيح دې.

۵۷۸۵-()[۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] كَانَ أَبْيَضَ [۳] مَلِيحًا [۴] مُقَصَّدًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوطفيل رضي الله عنه وايي ما رسول الله ﷺ اوليدلو [۲] چې سپين خوش رنګ وو [۳] او متوسط القامت [۴] او متناسب الاعضاءوالا وو. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① مَلِيحًا: مالګين رنګ والا (يعنى ملاحت والا خوش رنګه). ② مُقَصَّدًا: أَيْ: مُتَوَسِّطًا مُعْتَدِلًا: درميانه قد والا (يعنى نه ډير اوږد وو نه ډير لنډ وو).

**تسهيلات:**

**قوله: مقَصَّداً:** يعنى دَ كمى زياتى نه ځان له كيدوسره دَحضورپاك قدمبارك متوسط اومعتدل وو. دې نه وړاندې دَ ربعة القوم چه كوم لفظ دې دَهغې معنى اودَ مقصد معنى هم يوه ده.

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الفضائل/باب كان النبى صلى الله عليه وسلم أبيض مليح الوجه (رقم-۹۹ - (۲۳۴۰)وابوداود فى كتاب الأدب/باب فى هدى الرجل (رقم-۴۸۶۴) واحمد فى المسند:۵/۴۵۴

**قوله:** رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ أَبْيَضَ مَلِيحًا:

**د رسول الله ﷺ حسن مبارک:** يوتك سپين وی هغه دومره ښائسته نه ښکاری سپينوالی سره چه دَملاحت والا نمکين رنګ وی هغه ډير زيات ښائست وی. دلته هم دغه خودل مقصود دی. په يو حديث کښې رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دي "انا مليح واخی يوسف صبيح".

**[۵۷۸۶] حضور ﷺ خضاب نه دی استعمال کړی؟**

۵۷۸۶-() [۲] [۱] وَعَنْ ثَابِتٍ، قَالَ: «سُئِلَ أَنَسٌ عَنْ خِضَابِ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] فَقَالَ: إِنَّهُ لَمْ يَبْلُغْ مَا يَخْضِبُ، [۳] لَوْ شِئْتُ أَنْ أَعُدَّ شَمَطَاتِهِ فِي لِحْيَتِهِ» - [۴] وَفِي رِوَايَةٍ: لَوْ شِئْتُ أَنْ أَعُدَّ شَمَطَاتٍ كُنَّ فِي رَأْسِهِ فَعَلْتُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۵] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ، قَالَ: «إِنَّمَا كَانَ الْبَيَاضُ فِي عَنْفَقَتِهِ، وَفِي الصُّدْغَيْنِ وَفِي الرَّأْسِ نَبْذٌ».[1]

**ترجمه:** [۱] او حضرت ثابت رضی الله عنه وايي چې حضرت انس رضی الله عنه نه د رسول الله ﷺ د خضاب په باره کې د ريافت وشو [۲] نو هغه وفرمايل د حضور ﷺ عمر دومره چيرته وو چې خضاب يې استعمال کړی وی [۳] که ما د حضور ﷺ د ږيري مبارکي سپين ويښتان شميرل غوښتل نو يقيناً شميرلی مي شوه [۴] په يوه روايت کې دا الفاظ دي که ما د حضور ﷺ د سرمبارك سپين ويښتان شميرل غوښتلی نو شميرلی مي شوه. (بخاري مسلم) [۵] او په يوه روايت کې داهم دي چې حضرت انس رضی الله عنه اوويل د ويښتانو سپين والی د حضور ﷺ د ږيري مبارکي لاندي حصه کې اوپه اننګو کښې او دسر مبارک په څه حصه کښې وو.

**حل اللغات:** - ① أَنْ أَعُدَّ: أَيْ: أُحْصِيَ: چه اوڼې شمارم، ② شَمَطَاتِهِ: أَيْ: شَعَرَاتِهِ الْبِيضَ: سپين ويښته (دَ بوډاوالی دَ وجې نه په سر او ږيره کښې چه کوم يوڅو سپين ويښته ښکاره کيږی هغې ته شمطات وائی). ③ عَنْفَقَتِهِ: أَيْ: شَعْرِ النَّابِتِ تَحْتَ شَفَتِهِ السُّفْلَى وَفَوْقَ الذَّقْنِ: د شونډې لاندې او څنې نه پورته چه کوم لږشان ويښته وی هغې ته عنفقة وائی. ④ الصُّدْغَيْنِ: أَيْ: الشَّعْرُ الْمُتَدَلِّي عَلَى مَا بَيْنَ الْعَيْنِ وَالْأُذُنِ: د غوږونو او سترګو تر مينځه چه کوم ويښته وی هغې ته صدغين وائی. ⑤ نَبْذٌ: أَيْ: شَيْءٌ يَسِيرٌ مِنْ شَيْبٍ: لږشان سپين ويښته.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّهُ لَمْ يَبْلُغْ مَا يَخْضِبُ:

**د رسول الله ﷺ د بوډاوالی کيفيت:** دې نه مخکښې حديث کښې دَ لو لفظ دَ شرط دَپاره دي دَ دې جزاء فعلت دې. حضرت انس رضی الله عنه دا خودل غواړی چه دَ حضورپاك بوډاوالې

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب ما يذكر فی الشيب رقم-۵۸۹۵) ومسلم فی كتاب الفضائل/باب شيبه صلی الله عليه وسلم (رقم-۱۰۴ - (۲۳۴۱) واحمد فی المسند: ۲۲۷/۳

ذي حد ته نه وو رسيدلې چه ټول ويښته ئې سپين شوى وو او حضور پاك د خضاب يعنى وسمې محتاج شوې وى.

**[۵۷۸۷] د نبى عليه السلام د ورغو نرم والى**

۵۷۸۷-()[۳] [۱]وَعَنْ أَنَسٍ، قَالَ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَزْهَرَ اللَّوْنِ، [۳]كَانَ عَرَقُهُ اللُّؤْلُؤُ، [۴]إِذَا مَشَى تَكَفَّأَ، [۵]وَمَا مَسِسْتُ دِيبَاجَةً وَلَا حَرِيرًا أَلْيَنَ مِنْ كَفِّ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۶]وَلَا شَمَمْتُ مِسْكًا وَلَا عَنْبَرَةً أَطْيَبَ مِنْ رَائِحَةِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت انس ﷺ وايي [۲]چې رسول الله ﷺ د بريښنيدونكي رنګ والاوو [۳]او د خولې (پسينې) مباركې قطرې يې بريښن او صفائي كې دملغلرې په شان وې [۴]حضور ﷺ چې به په لار روان وو نو مخ طرف ته خكته كيدو سره به تللو [۵]او ماهيڅ ديباج او حرير اطلس او وريښم هم د رسول الله ﷺ د ورغيو نه زيات نرم نه دى پيدا كړى [۶]او نه ماخه داسې مشك او عنبر بوى كړى دى چې په هغه كې د رسول الله ﷺ د بدن مبارك د خوشبوئې نه زياته خوشبوئې وي . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ①عَرَقُهُ: خوله (پسينه). ②اللُّؤْلُؤُ: ملغلرې. ③تَكَفَّأَ: أَيْ: تَمَايَلَ إِلَى قُدَّامٍ: مخې طرف ته به معمولى شان مائل وو. ④دِيبَاجَةً: وَهُوَنَوْعٌ مِنَ الْحَرِيرِ: يو قسم پير ريښم دى. ⑤حَرِيرًا: أَيْ: مُطْلَقًا: عام ريښم، هرقسم ريښم. ⑥أَلْيَنَ: ډير نرم، ⑦لَاشَمَمْتُ: نه دى بوئى كړى ما ، ⑧عَنْبَرَةً: يو قسم قيمتى خوشبو ده.

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث كښې مشكل لغات دى اودهغې وضاحت په حل اللغات كښې اوشو.د مزيد تشريح ضرورت نشته.

**[۵۷۸۸] خوله (پسينه ) مباركه**

۵۷۸۸-()[۳] [۱]وَعَنْ أُمِّ سُلَيْمٍ، [۲]«أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَأْتِيهَا، فَيَقِيلُ عِنْدَهَا. فَتَبْسُطُ نِطَعًا فَيَقِيلُ عَلَيْهِ، [۳]وَكَانَ كَثِيرَ الْعَرَقِ، فَكَانَتْ تَجْمَعُ عَرَقَهُ فَتَجْعَلُهُ فِي الطِّيبِ. [۴]فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أُمَّ سُلَيْمٍ! مَا هَذَا؟" [۵]قَالَتْ: عَرَقُكَ نَجْعَلُهُ فِي طِيبِنَا وَهُوَ مِنْ أَطْيَبِ الطِّيبِ».

**ترجمه:** [۱]او بي بي ام سليم ﷺ نه روايت دى [۲]چې رسول الله ﷺ به هغه كره راتلو او قيلوله به يې كوله يعنى د غرمې په وخت هغه كره به يې آرام كولو د پاره تشريف راوړى ام سليم ﷺ به حضور ﷺ د پاره د چمړې بستره غوړوله [۳]او حضور ﷺ به په هغه ارام

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب المناقب/باب صفة النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۵۶۱) ومسلم فى كتاب الفضائل/باب طيب رائحة النبى صلى الله عليه وسلم ولين مسه والتبرك بمسحه (رقم-۸۲ - (۲۳۳۰) واحمد فى المسند:۳/۲۲۸

[2]) اخرجه البخارى فى كتاب الاستئذان/باب من زار قومًا فقال عندهم (رقم-۶۲۸۱) ومسلم فى كتاب الفضائل/باب طيب عرق النبى صلى الله عليه وسلم والتبرك به (رقم-۸۳ - (۲۳۳۱) واحمد فى المسند: ۳/۱۳۶

کوی حضور ﷺ باندې به خوله پسینه ډیره راتله [ځکه چې حضور ﷺ کثیر الحیاء وو] ام سلیم به د حضور ﷺ خوله پسینه جمع کولو سره خپلو عطرو کې یوځای کوله ③یوه ورځ حضور ﷺ هغه خوله جمع کولو باندې ولیده نو پوښتنه یې ترینه وکړه ام سلیم داته څه کوي؟ ⑤ام سلیم ﷺ اوویل دا ستاسو خوله مبارکه ده چې مونږ یې په خپلو خوشبو یو کې ګډوو اودا د ټولو خوشبویو نه زیاته خوشبوداره ده

**حل اللغات:-** ①فَيَقِيلُ: دا د قَيْلُولَةِ نه دي، وَهِيَ الإِسْتِرَاحَةُ عِنْدَ الْهَجِيرَةِ: دغرمې په وخت معمولی شان څملاستل یا خوب کولو ته قیلوله وائی. ②فَتَبْسُطُ: أَيْ: تَفْرُشُ: خوروله به (أم سليم). ③نِطَعًا: أَيْ بِسَاطٌ مِنَ الأَدِيمِ: د څرمن دسترخوان (دلته دَ څرمن بستره مراد ده). ④الْعَرَقِ: خوله.

①وَفِي رِوَايَةٍ قَالَتْ: ②يَا رَسُولَ اللّٰهِ! نَرْجُو بَرَكَتَهُ لِصِبْيَانِنَا ③قَالَ: "أَصَبْتِ" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او په یوه روایت کې دا الفاظ دي چې ام سلیم ﷺ اوویل ②یارسول الله! دا خوله مبارکه مونږ خپلو بچو د پاره د برکت باعث ګڼو یعنی ستاسو خوله مبارکه مونږ د خپلو بچو په بدن او مخ مږو او یقین لرو چې هغه بچی به د دې خولې مبارکې په برکت د آفاتو او بلاګانو نه محفوظ وي ③حضور ﷺ وفرمایل تاصحیح اوویل او ښه دي وکړل.

(بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ⑤أَصَبْتِ: أَيْ: لَعَلْتِ الصَّوَابَ: ښه دې اوکړل.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَأْتِيهَا، فَيَقِيلُ عِنْدَهَا:

**حضور پاک صلی الله علیه وسلم سره د ام سلیم او ام حرام رشته:** ام سلیم ﷺ دَ حضورپاك رضاعی خاله یا پهوپهی وه. ام حرام ﷺ هم دغه شان رشته داره ده. لهذا دا دواړه ښځې دَ حضورپاك محارم نه دی.

**اشکال:** ام سلیم ﷺ او ام حرام ﷺ دَ رسول الله ﷺ رضاعی تروریانې څنګه شوې چه حضورپاك خو په مدینه کښې دَ چا پیئ نه دی څکلی اودا انصاری ښځې دَمدینه منوره دی؟

**د اشکال جواب:** کیدې شی چه دې دواړو ښځو خواجه عبدالله سره پیئ څکلې وی نوداد حضورپاك تروریانې شوې یا حضرت آمنه سره ئی پیئی څکلې وی نوبیا هم د حضورپاك تروریانې شوې. خواجه عبدالله او حضرت آمنه مدینه منوره کښې اوسیدل او ام سلیم ﷺ او ام حرام ﷺ مدینه کښې دَ بنونجار ښځې دی بنونجار دَ حضورپاك نیکانه ده. علامه طیبی ﷺ دا توجیه کولو سره اوفرمائیل چه یوشارح دَدې اهم نکتې طرف ته اشاره نه ده کړې زه الله تعالی په دې قیمتی مرغلره سره کامیاب کړم اوپه دې باندې پوهیدل ئی رانصیب کړل.

**[۵۷۸۹] د بچو سره مينه**

۵۷۸۹-() [۳] ① وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ ②: «صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَاةَ الْأُولَى، ③ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى أَهْلِهِ وَخَرَجْتُ مَعَهُ، فَاسْتَقْبَلَهُ وِلْدَانٌ، ④ فَجَعَلَ يَمْسَحُ خَدَّيْ أَحَدِهِمْ وَاحِدًا وَاحِدًا، ⑤ وَأَمَّا أَنَا فَمَسَحَ خَدِّي، ⑥ فَوَجَدْتُ لِيَدِهِ بَرْدًا أَوْ رِيحًا كَأَنَّمَا أَخْرَجَهَا مِنْ جُؤْنَةِ عَطَّارٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ابن سمره ﷺ وايي ② يو وخت ما رسول الله ﷺ سره د ماپښين مونځ وکی ③ ما نخه نه وروسته حضور ﷺ خپل کورته تلو د پاره مسجد نه بهر راووتلو او حضور ﷺ سره زه هم بهر راغلم اتفاقا د حضور ﷺ مخې ته څه بچې راغلل ④ حضور ﷺ ميني کولو د پاره د هربچي په رخسارونو لاس راتير کړو ⑤ او بيا څما په رخسارونو يي لاس راتير کړو ⑥ هغه وخت ما د حضور ﷺ د لاس مبارك داسې يخ والی او خوشبو محسوسه کړله لکه چې حضور ﷺ اوس د عطرو د شيشې نه خپل لاس را اوخکلي وي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① وِلْدَانٌ: د وَلِيد جمع ده، وَهُوَالصَّبِيُّ: وړو ماشومانو ته وائي. ② خَدَّيْ: رخسارونه، مخونه. ③ بَرْدًا: أَيْ: رَاحَةً: يخوالي يعنی راحت، تسلي اوسکون، ④ رِيحًا: أَيْ: رَائِحَةً طَيِّبَةً: خوشبوئی، ⑤ جُؤْنَةِ: أَيْ: سَلَّتِهِ أَوْحُقَّتِهِ: شيشه يا بوتل کوم کښې عطر اچولي شوي وی. ⑥ عَطَّارٍ: عطر خرخونکي.

① وَذَكَرَ حَدِيثَ جَابِرٍ: "سَمُّوا بِاسْمِي" فِي "بَابِ الْأَسَامِي". ② وَحَدِيثُ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ: نَظَرْتُ إِلَى خَاتَمِ النُّبُوَّةِ فِي "بَابِ أَحْكَامِ الْمِيَاهِ".

**ترجمه:** ① او د حضرت جابر روايت سموا باسمي الخ باب الاسامي کې ② او د حضرت سائب بن يزيد روايت: نظرت الى خاتم النبوة الخ باب احکام المياه کې نقل شوي دي صاحب مصابيح دا دواړه روايتونه په هغه باب کې نقل کړي وه.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَجَعَلَ يَمْسَحُ خَدَّيْ أَحَدِهِمْ وَاحِدًا وَاحِدًا، وَأَمَّا أَنَا فَمَسَحَ خَدِّي:

**حضرت جابر ﷺ فضيلت:** دغه شان حضرت جابر ﷺ خپل فضيلت ثابتول غواړی چه نورو ماشومانو ته ئی په يويو اننګی باندې لاس مبارك راښکلو اوزما په دواړو اننګوباندې ئی لاس راښکلو او په يوبل حديث کښې دَدې تصريح موجود ده.

**قوله:** بَرْدًا أَوْ رِيحًا.

**د ،،او،، په کلمه کښې دوه احتمالات:** ① دَ "أَوْ" کلمه په معنی دَ واؤ ده

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب طيب رائحة النبی صلی الله عليه وسلم ولين مسه والتبرك بمسحه (رقم-۸۰ - (۲۳۲۹)

② د او کلمه د بل په معنی ده.
یعنی یخوالې او خوشبو یا یخوالې بلکه خوشبو دا معنی شوه.
**قوله: فَوَجَدْتُ لِيَدِهِ بَرْدًا أَوْ رِيحًا كَأَنَّمَا أَخْرَجَهَا مِنْ جُؤْنَةِ عَطَّارٍ:**
**د رسول الله ﷺ د بدن مبارک خوشبوئی:** په جیم باندې ضمه ده اودې نه پس همزه ساکن ده. علامه نووی فرمائی چه دا خوشبوئی دحضورپاك د بدن مبارك وه سره ددې چه حضورپاك به عطرهم په کثرت سره استعمالول مګر دا خوشبوئی دحضورپاك ذاتی خوشبوئی وه. یعنی کله چه به حضورپاك دخپل لستونړی نه لاس مبارك راویستلو نو په هغې کښې به یخوالې هم وو او خوشبوئی هم دا دواړه څیزونه ذاتی وو.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۷۹۰]د نبی علیه السلام د بدن بناوټ**

۵۷۹۰-() [۱۵] ①عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ②: «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَيْسَ بِالطَّوِيلِ وَلَا بِالْقَصِيرِ، ③ضَخْمَ الرَّأْسِ وَاللِّحْيَةِ، ④شَثْنَ الْكَفَّيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ، ⑤مُشْرَبًا حُمْرَةً، ⑥ضَخْمَ الْكَرَادِيسِ، ⑦طَوِيلَ الْمَسْرُبَةِ، ⑧إِذَا مَشَى تَكَفَّأَ تَكَفُّؤًا كَأَنَّمَا يَنْحَطُّ مِنْ صَبَبٍ، ⑨لَمْ أَرَ قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ مِثْلَهُ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ①حضرت علي ابن ابي طالب ﷺ وايي ②رسول الله ﷺ نه اوږد قد والا وو نه پست قد مندري بلکه درمیانه قد والا وو ③غټ سر او ګڼې ږیرې والا وو ④د لاسونو تلی او پښې یې غوښنې وې ⑤رنګ یې سور او سپین وو ⑥د هډوکو جوړونه یې غټ وه ⑦او د سینې نه نامه پورې د ویښتانو یوه اوږده کرښه وه ⑧کوم وخت چې به حضور ﷺ روان وو نو د مخ طرف ته به ښکته روان وو لکه چې حضور ﷺ د اوچت ځائې څخه ښکته ځائې راځي ⑨حقیقت دادی چې ما د حضور ﷺ په شان هیڅ سړی نه د حضور ﷺ نه مخکې لیدلی دی او نه د حضور ﷺ نه وروسته په حضور ﷺ دې زمونږ ټولو سره د الله ﷻ رحمت او سلامتي وي دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث حسن صحیح دی.

**حل اللغات:-** ① ضَخْمَ الرَّأْسِ: أَيْ: عَظِيمَهُ: غټ سر والا (په عربو کښې دا صفت ممدوح ګڼرلې کیدو چه غټ سر په عظمت او سعادت د انسان باندې دلالت کوی او داسې انسان د ریاست او سیادت قابل وی). ② شَثْنَ الْكَفَّيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ: أَيْ: أَنَّهُمَا يَمِيلَانِ إِلَى الْغِلَظِ وَالْقِصَرِ: د لاسونو تلی او خپې مبارکې ئې د غوښې نه ډک وو (چه لاسونه یا خپې غوښنې وی نو لندوالی ته مائل ښکاری په قِصر کښې

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۳۷) واحمد فی المسند: ۹۶/۱

دي طرف ته اشاره ده. ③ مُشْرَبًا حُمْرَةً: أَيْ مَخْلُوطٌ لَوْنُهُ بِالْحُمْرَةِ: دَهغوی څه قدري سپين بدن باندې سرخي ښکولې شوې وه يعنې دَ سور او سپين رنګ مرکب وو(کوم چه ډير ښائسته رنګ دې). ④ الْكَرَادِيسِ: د كُرْدُوسٍ جمع ده، وَهُوَكُلُّ عَظْمَيْنِ الْتَقَيَا فِي مَفْصِلٍ: هرهغه هډوکی ته وائی چه بل هډوکی سره په يو جوړ باندې جمع کيږی.(يعنی دَهغوی دَ هډوکو جوړونه پيړ وو). ⑤ الْمَسْرُبَةَ: د سينې نه نامه پورې د ويښتو کرښه وه. ⑥ يَنْحَطُّ: أَيْ: يَنْفُطُ: د اوچتوالی نه ښکته طرف ته کوزيدو ته وائی. ⑦ صَبَبٍ: أَيْ: مَوْضِعٍ عَالٍ: د زمکې اوچت ځائې.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① مُشْرَبًا حُمْرَةً: دَ دوو مختلفو رنګونو آميزش او ګډوډوالی ته تشريب وائی لکه چه په يو رنګ باندې بل رنګ ښکولې شوې وی.

② مِنْ صَبَبٍ: مطلب دا لکه چه حضورپاك دَ اوچت ځائی نه لاندې طرف ته راکوزيږی دادَ تکفاء تفسيردې. کشتئی چه کله ټيټيدو سره وړاندې چليږی هغې ته تکفأ وائی.

**[۵۷۹۱] دَرسول الله ﷺ جامع صفتونه**

۵۷۹۱-(۱) [۲۰] ⓵ وَعَنْهُ، ⓶ «كَانَ إِذَا وَصَفَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: لَمْ يَكُنْ بِالطَّوِيلِ الْمُمَّغِطِ، وَلَا بِالْقَصِيرِ الْمُتَرَدِّدِ، وَكَانَ رَبْعَةً مِنَ الْقَوْمِ، ⓷ وَلَمْ يَكُنْ بِالْجَعْدِ الْقَطَطِ وَلَا بِالسَّبْطِ، كَانَ جَعْدًا رَجِلًا، ⓸ وَلَمْ يَكُنْ بِالْمُطَهَّمِ وَلَا بِالْمُكَلْثَمِ، وَكَانَ فِي الْوَجْهِ تَدْوِيرٌ ⓹ أَبْيَضُ مُشْرَبٌ، ⓺ أَدْعَجُ الْعَيْنَيْنِ، ⓻ أَهْدَبُ الْأَشْفَارِ، ⓼ جَلِيلُ الْمُشَاشِ وَالْكَتَدِ، ⓽ أَجْرَدُ، ذُو مَسْرُبَةٍ،

**ترجمه:** ⓵ او د حضرت علي بن ابي طالب ﷺ نه روايت دی ⓶ کله چې به هغوئ د رسول الله ﷺ اوصاف بيانول نو وئيل به يې حضور ﷺ نه ډير اوږد وو او نه ډير مندری بلکه ميانه قد په خلقوکي وو ⓷ د حضور ﷺ ويښتان نه ډير ولول وه نه بالکل سيده وه بلکه څه لږ وَل خوړلو سره وه ⓸ مخ يي نه بالکل ګول او درونډ وو او نه يي بارخوګان پړسيدلي وه بلکه پوره مخ اورخسار يي يوشان او برابر وو او تندی يي بلند وو مخ مبارك يي څه قدر ګولائي کې وو ⓹ رنګ يي سور سپين وو ⓺ سترګي يي توري وي ⓻ بانوګان يي اوږده اوږده وه ⓼ د بندونو هډوکي يي راپورته او د اوږو درميانه حصه يي چيرته چې د دواړو اوږو هډوکي يوځاي کيږي مضبوط او غوښن وه ⓽ په جسم مبارك يي ويښتان نه وه صرف د ويښتانو يوه کرښه وه چې سينې نه نامه پورې تللې وه

**حل اللغات:**- ① الْمُنْغِطِ: د باب انفعال نه د مَغْطٍ نه دي ، وَهُوَالْمَدُّ: اوږدوالی ته وائی. ② الْمُتَرَدِّدِ: دَحدنه زيات وړوکی قد والا ته وائی لکه چه بعضې اعضاء بعضې نورو کښې ننوتي کيږی. ③

---

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۳۸)

بِالْمُطَهَّمِ: دا لفظ دَ اضداد نه دې دَ زياتې غوښې والا چاق ته هم وائی اوکمې غوښې والا كمزورى ته هم وائى. پړسيدلي مخ ته هم وائى. ③ بِالْمُكَلْثَمِ: أَيِ: الْمُدَوَّرُ وَجْهُهُ غَايَةَ التَّدْوِيرِ: بيخى ډير ګولائى او غونډ مخ والا (يعنى بالكل ګول مخ ئې نه وو بلكه څه ګولائى پكښې وه). ⑤ مُشْرَبٌ: أَيْ: مَخْلُوطٌ بِحُمْرَةٍ: سپينوالى پرې څكولې شوې وو يعنى سور والى سره سپينوالې ورګډ شوې وو. ⑥ أَدْعَجُ الْعَيْنَيْنِ: أَيْ: أَسْوَدُ الْعَيْنَيْنِ مَعَ سِعَتِهِمَا: يعنى غټې غټې سترګې وې ډيرې تورې وې دې سره سپينوالې ورګډ شوې وو. ⑦ أَهْدَبُ الْأَشْفَارِ: أَيْ: طَوِيلُ شَعْرِ الْأَجْفَانِ: اهدب دَ اوږد او ګڼ په معنى كښې دې اشفار د شُفر جمع ده، دَ سترګو بڼړو ته وائى يعنى دَ سترګو ويښته ئې اوږده اوګڼ وو. ⑧ جَلِيلُ الْمُشَاشِ: أَيْ عَظِيمُ رُءُوسِ الْعِظَامِ: جليل: دَ غټ په معنى كښې دې. مشاش: هډوكى ته وائى (يعنى دَ هډوكو سرونه او جوړ ونه ئې غټ او مضبوط وو اودَ غوښې نه ډك وو). ⑨ الْكَتَدِ: هُوَ مُجْتَمَعُ الْكَتِفَيْنِ: دَ دواوړ اوګو په مينځ كښې چه كومه حصه وى هغې ته كتد وئيلې شوې دې يعنى اوګه ئې هم مضبوطه او غوښنه وه (دې ته كاهل هم وائى). ⑩ أَجْرَدُ: أَيِ: الَّذِي لَيْسَ عَلَى بَدَنِهِ شَعْرٌ: يعنى عام بدن باندې زيات ويښته نه وو. ⑪ ذُو مَسْرُبَةٍ: دَ مرئ دَ غوټې نه ترنامه پورې دَ ويښتو يوه ښائسته غونډې كرښه وه هغې ته مسربة وئيلې شوې دې.

[۱] شَثْنُ الْكَفَّيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ، [۲] إِذَا مَشَى يَتَقَلَّعُ كَأَنَّمَا يَمْشِي فِي صَبَبٍ، [۳] وَإِذَا الْتَفَتَ الْتَفَتَ مَعًا، [۴] بَيْنَ كَتِفَيْهِ خَاتَمُ النُّبُوَّةِ، وَهُوَ خَاتَمُ النَّبِيِّينَ، [۵] أَجْوَدُ النَّاسِ صَدْرًا، [۶] وَأَصْدَقُ النَّاسِ لَهْجَةً، [۷] وَأَلْيَنُهُمْ عَرِيكَةً، وَأَكْرَمُهُمْ عَشِيرَةً، [۸] مَنْ رَآهُ بَدِيهَةً هَابَهُ، وَمَنْ خَالَطَهُ مَعْرِفَةً أَحَبَّهُ، [۹] يَقُولُ نَاعِتُهُ: لَمْ أَرَ قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ مِثْلَهُ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] لاس او پښې يې ډك يعنى غوښن وه [۲] په لار چې به تللو نو قوت سره به يې قدم پورته كوى لكه چې د بلندى نه راكوزيږي [۳] هركله چې به ښي يا چَپ طرف ته متوجه كيدى نو پوره جسم سره به متوجه كيدى [۴] او د حضور ﷺ د دواړو اوږو په منځ كې مُهرِ نبوت وو او حضور ﷺ خاتم النبيين وو [۵] حضور ﷺ ټولو په خلقو كې د ټولو نه زيات د زړه سخي [۶] او د ژبې ډير رېښتنى وو د طبيعت ډير نرم [۷] او د ټولو نه معزز او مكرم انسان وو [۸] كوم سړى چې به په مخكني ځل اوليدلو نو هيبت به باندې راتلو او كوم سړى چې به حضور ﷺ سره واقفيت او ميل جول لرلو نو ډير محبت به يې ورسره كوى [۹] د حضور ﷺ داصفات او خصوصيات بيانونكى حضرت علي ﷺ وايي چې د حضور ﷺ په شان هيڅ سړى ما د حضور ﷺ نه نه مخكې ليدلى دى او نه د حضور ﷺ نه وروسته مې ليدلى دى د الله رحمت او سلامتيا دې وي په حضور ﷺ. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ② يَتَقَلَّعُ: أَيْ: يَرْفَعُ رِجْلَهُ مِنَ الْأَرْضِ رَفْعًا بَائِنًا بِقُوَّةٍ: يعنى دَ تګ په وخت به حضورپاك په چستئى سره په زمكه قدم اوچتولو سره تللو. دَ ښځو او سستو خلقو په شان چپړې راښكلوسره نه تللو. ③ الْتَفَتَ مَعًا: أَيْ يُقْبِلُ جَمِيعًا: پوره نظر او مخ تاوولو سره به ئې كتل يا دا مطلب چه پوره

به متوجه کيدلو. ⑬أَجْوَدُ النَّاسِ: ددې دوه معانې دی يا دا چه أي: أَوْسَعُهُمْ قَلْبًا: لوئې زړه والا وو سينه ئې فراخه وه، يا دا چه: أَنَّهُ أَسْخَى النَّاسِ قَلْبًا: زړه ئې ډير زيات سخی وو ⑮صَدْرًا: سينې ته وائی خو دلته صدر په معنی د قلب سره دې يعنی زړه، ⑯لَهْجَةً: أي: لِسَانًا: ژبه، ⑰وَأَلْيَنُهُمْ: زيات نرم، خوش طبع، ⑱عَرِيكَةً: أي: جَانِبًا وَطَبِيعَةً: طبيعت مزاج او اړخ ته وائی. ⑲عَشِيرَةً: أي: قَبِيلَةً: خاندان، په يو روايت کښې عِشْرَةً: دې، أي: مُعَاشَرَةً وَمُصَاحَبَةً: په معنی د ژوند تيرولو او معاشرت کولو. ⑳بَدِيهَةً: أي: فُجَاءَةً وَبَغْتَةً: ناڅاپه، اچانک، ㉑هَابَهُ: أي: خَافَهُ: دا د هيبت نه دې ويريدلو ته وائی. ㉒خَالَطَهُ: د اختلاط نه دې، يو ځائې ژوند تيرولو ته وائی. ㉓نَاعِتُهُ: أي: وَاصِفُهُ: صفت بيانونکې، تعريف کونکې.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

①جَعْدًا رَجِلًا: يعنی معمولی ګورګوچی پيچدار ويښته ئی وو.

②أَبْيَضُ مُشْرَبٌ: يعنی د هغوی رنګ سپين وو کوم ته چه سور رنګ ورګډکولې شوې وو يا سپين سور بخن وو.

③شَثْنُ الْكَفَّيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ: مطلب دادې چه د حضورپاك د هډوکو سرونه او جوړ غټ او مضبوط او د غوښې نه ډك وو لکه چه د زنګونونو اومړوندونو د هډوکو جوړ چه وی.

④ذُو مَسْرُبَةٍ: په وړوکوالی کښې د شرح صدر نه پس د فرښتې د ګنډلو په نښان باندې د ويښتو کرښه جوړه شوې وه د هغې ذکر دې.

⑤يَتَقَلَّعُ: هم په دې کيفيت کښې يتکفأ کيفيت هم پيدا کيږی د کوم ذکرچه اول شوې دې.

⑥الْتَفَتَ مَعًا: يعنی د کبرژنوخلقو په شان به ئی د سترګو په ګوټونو سره نه کتل بلکه چه کوم طرف ته به ئی کتل پوره نظر او مخ تاوولو سره به ئی کتل.

⑦هَابَهُ: يعنی حضورپاك ته الله تعالی چه کوم قدرتی رعب او دبدبه ورکړې وه د هغې د وجې نه به نوې راتلونکې سړې ويريدلو.

**قوله: وَمَنْ خَالَطَهُ مَعْرِفَةً أَحَبَّهُ، يَقُولُ نَاعِتُهُ: لَمْ أَرَ قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ مِثْلَهُ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**د متعلقينو د عاشق کيدو او زياتيدو وجه:** يعنی د نيزدې نه کتلوسره په واقف کيدو باندې به د حضورپاك عاشق کيدو. عاقلانو حکيمانو وئيلی دی چه د کوم سړی ظاهری اوباطنی ژوندون يوشان وی اودواړه کولاؤ شوې کتاب وی هيڅ يو اړخ پټ اومخفی نه وی نو د اسې سړی متعلقين د هغه نه جدا کيږی نه بلکه نور هم عاشقان کيږی. د رسول الله ﷺ د ژوند هراړخ لکه د کولاؤ کتاب په شان واضح وو په دې وجه چاچه حضورپاك

د نیزدې نه لیدلې قبول کړې نوبیا هغه سړې هم د حضرت شوې دې د بدن ټکړې به ئی الوتلې مګر هغه به شاته کیدو نه دَدې برعکس اکثر اوبیشتر د هغه سړی نه خلق دهوکه خوری دکوم چه یو اړخ ښکلې ښکاره وی مګر نور اړخونه ئی پټ وی. نن صبا غلط قسم خلق هم دغه شان وی که د دنیا په حواله سره هرخومره غټ جوړشوې وی یا د دین په حواله سره لوئی جوړشوې وی.

**[۵۷۹۲] د حضور ﷺ د جسم خوشبویه کذرګاه معطر کوله**

۵۷۹۲-(۱) [۱۷] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَمْ يَسْلُكْ طَرِيقًا فَيَتْبَعُهُ أَحَدٌ [۳] إِلَّا عَرَفَ أَنَّهُ قَدْ سَلَكَهُ، مِنْ طِيبِ عَرْفِهِ- أَوْ قَالَ: مِنْ رِيحِ عَرَقِهِ» - رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ نه روایت دی [۲] رسول الله ﷺ چې به په یوه لار تیر شو نو حضور ﷺ نه وروسته چې به یو سړی هغه لاري باندې تیریدی [۳] هغه به د حضور ﷺ د جسم مبارك خوشبو یا دائي اوویل د حضور ﷺ د خولې (پسینې) مبارکې خوشبو نه معلوموله چې حضور ﷺ په دې لار تشریف وړی دی. (دارمي)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَسْلُكْ طَرِيقًا فَيَتْبَعُهُ أَحَدٌ إِلَّا عَرَفَ أَنَّهُ قَدْ سَلَكَهُ:

**د حضور پاک صلی الله علیه وسلم ذاتی قدرتی خوشبوئی:** یعنی د حضورپاك قدرتی خوشبوئی به د حضورپاك پته ورکوله. دا د حضورپاك د بدن مبارك ذاتی خوشبوئی وه. دې سره سره به حضورپاك ډیره خوشبوئی هم استعمالوله. بهرحال د حضورپاك مبارك معطربدن به د حضورپاك د طرف خبرداري کولو. (اشعارص ۱۴۳)

**[۵۷۹۳] د حضور ﷺ وجود مبارك د نمر په شان وو**

۵۷۹۳-(۲) [۱۸] [۱] وَعَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، قَالَ [۲]: قُلْتُ لِلرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ بْنِ عَفْرَاءَ: [۳] «صِفِي لَنَا رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴] قَالَتْ: يَا بُنَيَّ لَوْ رَأَيْتَهُ رَأَيْتَ الشَّمْسَ طَالِعَةً» . رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د محمد ابن عمار ابن یاسر ﷺ صاحبزاده ابوعبیده ﷺ وایې [۲] چې ما د معوذ ابن عفراء ﷺ لور بي بي ربیع صحابیه ﷺ ته اوویل [۳] چې تاسو ځما مخکې د رسول الله ﷺ وصف بیان کړئ [۴] نو هغې اوویل ځما ځویه! که تا حضور ﷺ لیدلی وې نو داسې به دې ګڼل لکه چې بریښید ونکې نمر دې لیدلی دی. (دارمي)

**حل اللغات:-** ① صِفِي: د وَصَفَ نه د امر مخاطب صیغه ده، أي: انْعَتِي: صفت اوکړه، وصف بیان کړه ماته. ② طَالِعَةً: راختلې، ښکاره.

---

[۱] اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۶۶

[۲] اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۶۰

**تسهیلات:**

**قوله: يَابُنَيَّ لَوْرَأَيْتَهُ رَأَيْتَ الشَّمْسَ طَالِعَةً:**

**د رسول الله ﷺ د مخ مبارک ځلا او ښکلا:** یعنی دَحضور پاك مخ مبارك به داسې پرقیدلو زلقیدلو لکه چه نمر په نصف النهار کښې پرقیږي. بعضې صحابه کرام دَحضور پاك مخ مبارك دَ سپوږمئی په شان خودلې دې. هر یو دَخپل اندازمطابق خودلې دې. دې سره که دَرسول الله ﷺ دَ تورو زلفو مبارك ذکراوکړې شي نوبیابه څه وایې

**[۵۷۹۴] د مخ مبارک دومره ښایست چه سپوږمۍ ځني هم شرميږي**

۵۷۹۴ -(١) [٩][١]وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ[٢]: «رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي لَيْلَةٍ إِضْحِيَانٍ، [٣]فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَإِلَى الْقَمَرِ، [٤]وَعَلَيْهِ حُلَّةٌ حَمْرَاءُ، [٥]فَإِذَا هُوَ أَحْسَنُ عِنْدِي مِنَ الْقَمَرِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١]او حضرت جابر ابن سمره ﷺ وایي [٢]یووخت ما د سپوږمۍ په رڼا کې حضور ته کتل [٣]او صورت دا وو چې کله به مې د حضور ﷺ جمال عالمتاب ته کتل او کله سپوږمۍ ته [٤]هغه وخت د حضور ﷺ په جسم مبارك د هغه کپړي لباس وو چې په هغه کې سري او سپیني کرښې وي [٥]حقیقت دادی چې ځما په نزد د حضور ﷺ حسن او جمال د سپوږمۍ نه ډېر زیات وو. (ترمذي ودارمي)

**حل اللغات:-** ① إِضْحِيَانٍ: دا د ضَحْو نه دي، أَيْ: مُقْمِرَةٍ: د سپوږمۍ والا شپه، روښانه شپه، یا دا معنی چه: أَيْ: لَيْلَةٌ مُضِيئَةٌ لَاغَيْمَ فِيهَا: داسې شپه چه وریځ پکښې نه وی بالکل صفا او روښانه وی. ② حُلَّةٌ حَمْرَاءُ: د کپړو جوړا چه قمیص او پرتوګ ئې د یو قسم کپړې وی.

**تسهیلات:**

**قوله: وَعَلَيْهِ حُلَّةٌ حَمْرَاءُ:**

**د حلة حمراء نه مراد: حُلَّةٌ:** جاموته وائی په کوم کښې په کومه کښې چې سور والې وی خو سره جوړه اچول منع دی دلته دَحمراء نه سره جوړه مراد نه ده بلکه داسې کپړا مراد ده په کومه کښې چه سرې کرښې وی زمکه ئې سره نه وی.

**قوله: أَحْسَنُ عِنْدِي:**

**د عندی مطلب او معنی:** دَعندی مطلب دانه دې چه زما په نیز داسې وو او دَ نورو خلقو په نیز داسې نه وو بلکه مطلب دادې چه حضرت جابر ﷺ دَخپل ذاتی جذباتو اظهار کړې دې او عقیدت ښکاره کولو دَپاره ئې داسې وئیلی دی. دې نه ئې څه منفی اړخ مقصود نه

---

[١]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الرخصة فی لبس الحمرة للرجال (رقم-٢٨١١) والدارمی فی السنن رقم الحدیث ٥٧

دي. حضرت حسان ﷺ وئيلي دي:

واحسن منك لم ترقط عيني — واجمل منك لم تلد النساء
خلقت مبرأ من كل عيب — كانك قد خلقت كما تشاء
يا صاحب الجمال ويا سيد البشر — من وجهك المنير لقد نور القمر
لا يمكن الثناء كما كان حقه — بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر

اوريدلي شوي دي چه ابوعلي سينا دَ حضورپاك دَ سيرت متعلق يو كتاب ليكلي دي په هغې كښې ليكلي دي چه دَ حسن تناسب دَ اعضاء نوم دي اوحضوراكرم ﷺ په مكمل توګه باندې متناسب الاعضاء وو دَحضرت آدم ﷺ نه واخله ترحضوراكرم ﷺ پورې هيڅ يو سړې متناسب الاعضاء نه دي پيدا شوې اونه به دَ قيامت پورې پيدا شي. لهذا حسن اوجمال كښې حضورپاك بې مثال وو.

### [٥٧٩٥] د حضور ﷺ رفتار

٥٧٩٥ - () [٢٠] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ ②: «مَا رَأَيْتُ شَيْئًا أَحْسَنَ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ كَأَنَّ الشَّمْسَ تَجْرِي فِي وَجْهِهِ. ④ وَمَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَسْرَعَ فِي مَشْيِهِ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَأَنَّمَا الْأَرْضُ تُطْوَى لَهُ، ⑤ إِنَّا لَنُجْهِدُ أَنْفُسَنَا وَإِنَّهُ لَغَيْرُ مُكْتَرِثٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايې ② چې ما د رسول الله ﷺ نه زيات حسين او جميل هيڅ شی نه دی ليدلی داسې معلوميده ③ لکه چې يونمر دی چې د حضور ﷺ د مخ مبارك نه جلوه ريز کيږي ④ او ما د رسول الله ﷺ نه زيات تيز رفتار څوك نه دی ليدلی کوم وخت چې به حضور ﷺ تلی نو داسې به معلوميده چې د حضور ﷺ مخکې زمکه راټوليږي ⑤ حقيقت دادی چې مونږ خوبه سخت جدوجهد او کوشش کوی ليکن حضور ﷺ به په خپل بې نياز تګ تللو . (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① أَسْرَعَ: تيز رفتار (سره ددې چه وقار اوسكون سره به وو) ② تُطْوَى: أَيْ تُزْوَى وَتُجْمَعُ: راټوليده. راغونديدله به (زمکه، په طور د خرق عادت يوه معجزه وه). ③ لَنُجْهِدُ: دا د إِجْهَادٍ، يا د جُهْدٍ نه دي. هُوَحَمْلُ عَلَى الشَّيْءِ فَوْقَ طَاقَتِهِ: په يوځيز باندې د وس او طاقت نه زيات بوج اچولو ته وائي. يعنی مونږ به سره د کوشش نه تيز تلو. ④ غَيْرُ مُكْتَرِثٍ: دکثرت نه دې دَ زيات تيز تللو نفی ده. أي غَيْرُ مُسْرِعٍ: يعنی حضور پاک ﷺ به د تيز تللو کوشش نه کولو.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث د جملو وضاحت په نورو احاديثو کښې شوې دي.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٦٤٨) واحمد فی المسند:٢/٣٥٠

**[۵۷۹۶] د حضور ﷺ پنډۍ، سترګې او خندا**

۵۷۹۶-(۱) [۲۱] [۱] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: [۲] «كَانَ فِي سَاقَيْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حُمُوشَةٌ، [۳] وَكَانَ لَا يَضْحَكُ إِلَّا تَبَسُّمًا، [۴] وَكُنْتُ إِذَا نَظَرْتُ إِلَيْهِ قُلْتُ: أَكْحَلُ الْعَيْنَيْنِ، وَلَيْسَ بِأَكْحَلَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ابن سمره ﷺ وايي [۲] د رسول الله ﷺ پنډۍ سپکي او نازکي وي [۳] او حضور ﷺ به عام طور سره نه خندل بلکه مسکی کیدو به [۴] او ماچي به حضور ﷺ طرف ته کتل نو په زړه کې به مي وئيل چې حضور ﷺ رانجه لګولي دي حالانکه حضور ﷺ به رانجه سرمه نه وه لګولي. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① حُمُوشَةٌ: أَيْ: دِقَّةٌ وَلَطَافَةٌ مُنَاسِبَةٌ: نازک والي او لطافت چه ټول اندامونه په مناسب او ښائسته انداز کښې وی، دې ته حموشة وائی. ② تَبَسُّمًا: وَهُوَ مُقَدِّمَةُ الضَّحِكِ: دخندلو په شروع کښې چه کومه مُسکا وی هغې ته تبسم وائی. ③ أَكْحَلُ الْعَيْنَيْنِ: رانجه لګولې شوې سترګې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا نَظَرْتُ إِلَيْهِ قُلْتُ: أَكْحَلُ الْعَيْنَيْنِ، وَلَيْسَ بِأَكْحَلَ:

**د رسول الله ﷺ د سترګو مبارکو قدرتی توروالي:** يعنی په کتلو کښې به ښکاريدې چه حضورپاك رانجه استعمال کړی دی حالانکه داسې به نه وه دَ حضورپاك سترګې مبارکې پيدائشی تورګه باندې ښکلې وې. دغه شان حضورپاك سنت کړې شوې پيدا شوې وو اونوم کټ شوې پيدا شوې وو. دا دَحضورپاك بعضې خصوصيات وو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۷۹۷] د حضور ﷺ غاښونه مبارک**

۵۷۹۷-(۱) [۲۲] [۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ [۲]: «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَفْلَجَ الثَّنِيَّتَيْنِ، [۳] إِذَا تَكَلَّمَ رُئِيَ كَالنُّورِ يَخْرُجُ مِنْ بَيْنِ ثَنَايَاهُ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس ﷺ وايي [۲] د حضور ﷺ مخکني دوه غاښونه مبا رك کولاؤ وو [۳] هرکله چې حضور ﷺ به خبري کولي نو داسې به محسوسيده چې د حضور ﷺ د هغه دوه غاښونو د منځ نه نور وځي. (دارمي)

**حل اللغات:-** ① أَفْلَجَ الثَّنِيَّتَيْنِ: أَيْ فُرْجَةٌ مَا بَيْنَ الثَّنَايَا وَالرَّبَاعِيَاتِ: د غاښونو په مينځ کښې خالی خايونه مراد دی. ② رُئِيَ: أَيْ: أُبْصِرَ: ښکاريدل به.

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فی صفة النبی صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۶۴۵) واحمد فی المسند:۹۷/۵

[۲] ) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ۵۸ والبغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۳۶۴۴

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث د مشكلو لغاتو حل د حل اللغات په عنوان سره شوې دې باقي د حديث مفهوم آسان دې.

**[۵۷۹۸] د حضور ﷺ خوشدلی د مخ نه معلومېده**

۵۷۹۸-(¹) [۲۳] [۱] وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ [۲]: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا سُرَّ اسْتَنَارَ وَجْهُهُ، [۳] حَتَّى كَأَنَّ وَجْهَهُ قِطْعَةُ قَمَرٍ، [۴] وَكُنَّا نَعْرِفُ ذٰلِكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت كعب ابن مالك رضي الله عنه وايي [۲] رسول الله ﷺ چې به خوشحاله وو نو مخ مبارك به يې روښانه وو [۳] او داسې به معلومېدی چې د حضور ﷺ مخ مبارك د سپوږمۍ ټكړه ده [۴] او د دې شي نه به مونږ د حضور ﷺ آندروني كيفيت پيژندی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① سُرَّ: أَيْ: فَرِحَ: خوشحاله به وو. ② اسْتَنَارَ: روښانه به وو، ځليدو به.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا سُرَّ اسْتَنَارَ وَجْهُهُ:

**دخوشحالۍ په وخت كښې د نبی علیه السلام د مخ كيفيت:** دَ رسول الله ﷺ دَ زړه خوشحالي به دَ مخ مبارك نه ښكاره كيدله په كوم سره چه به ئې مخ مبارك پرقيدلو.

**[۵۷۹۹] د حضور ﷺ د صفاتو او خصوصياتو په تورات كې ذكر**

۵۷۹۹-(²) [۲۴] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ، [۲] «أَنَّ غُلَامًا يَهُودِيًّا كَانَ يَخْدُمُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَمَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَعُودُهُ، [۳] فَوَجَدَ أَبَاهُ عِنْدَ رَأْسِهِ يَقْرَأُ التَّوْرَاةَ، [۴] فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۵] "يَا يَهُودِيُّ أَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ الَّذِي أَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلَى مُوسَى، هَلْ تَجِدُ فِي التَّوْرَاةِ نَعْتِي وَصِفَتِي وَمَخْرَجِي؟". [۶] قَالَ: لَا،

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دی [۲] يو يهودي هلك چې د رسول الله ﷺ خدمت به يې كوی ناجوړه شو نو رسول الله ﷺ د هغه پوښتنې ته د هغه كورته تشريف يووړلو [۳] حضور ﷺ ولېدی چې پلار ورته سرته ناست دی د تورات څه حصه وايي څرنګه چې مسلمانانو كې د زكندن په وخت سورة يٰسين وئيل كيږي [۴] رسول الله ﷺ په دې لېدو

¹ ) اخرجه البخاری فی كتاب المغازی/باب حديث كعب بن مالک. وقول الله عز وجل: {وعلى الثلاثة الذين خلفوا} [التوبة: ۱۱۸] (رقم-۴۴۱۸) ومسلم فی كتاب التوبة/باب حديث توبة كعب بن مالک وصاحبيه (رقم-۵۳ - (۲۷۶۹)) واحمد فی المسند:۴۵۹/۳

² ) اخرجه البيهقی فی دلائل النبوة

سره هغه نه پوښتنه وکړه [٥] زه تاته په هغه الله ﷻ قسم درکولو سره پوښتنه درنه کوم چې هغه موسیٰ علیه السلام باندې تورات نازل کړی ریښتیا ریښتیا اووئیلو آیا ته په دې تورات کې څما تعریف وتوصیف او څما د وطن نه د وتلو ذکر پیدا کوی؟ [٦] هغه یهودي جواب ورکړو نه

**حل اللغات:**- ① يَعُودُهُ: د عيادت نه دې يعنى تپوس پوښتنه به ئې كوله. ② أَنْشُدُكَ: أَيْ: أُقْسِمُ عَلَيْكَ: زه قسم درکوم تاته. ③ نَعْتِي: أَيْ: بِاعْتِبَارِ ذَاتِي وَخَلْقِي: زما صفت زما د ذات او صورت په اعتبار سره، ④ وَصِفَتِي: أَيْ: بِاعْتِبَارِ أَفْعَالِي وَأَحْوَالِي: زما صفت زما د سيرت يعنى د احوالو اوافعالو په اعتبار سره. ⑤ وَمَخْرَجِي: أَيْ: مَكَانَ خُرُوجِي: زما د ويستلو په اعتبارسره (ددې نه مراد يا خروج مكانى دې يعنى مكه، يا خروج زمانى دې يعنى ولادت او بعثت يا هجرت).

[١] فَقَالَ الْفَتَى: بَلَى وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ! [٢] إِنَّا نَجِدُ لَكَ فِي التَّوْرَاةِ نَعْتَكَ وَوَصْفَكَ وَمَخْرَجَكَ، [٣] وَإِنِّي أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ. [٤] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِأَصْحَابِهِ: [٥] " أَقِيمُوا هَذَا مِنْ عِنْدِ رَأْسِهِ، [٦] وَلُوا أَخَاكُمْ» " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ".

**ترجمه:** [١] ليكن هغه هلك اوويل هو يا رسول الله! قسم په الله ﷻ [٢] په دې تورات كې مونږ ستاسو تعريف او توصيف او ستاسو د وتلو ذكر پيدا كړيدي [٣] او زه يقيني طور سره د دې امر گواهي وركوم چې الله ﷻ نه ماسوا بل معبود نشته او د دې امر هم گواهي كوم چې تاسو بلاشبه د الله ﷻ رسول يئ [٤] حضور ﷺ د هغه هلك رشتيا وينا او د هغه اظهارِ ايمان واسلام لېدو سره خپلو صحابه ؓ ته وفرمايل [٥] چې د ده پلار د ده د سر نه ولاړ كړي [٦] او تاسو د خپل ددې ديني ورور واليان جوړ شئ او كه دا هلك وفات شي نو بيا د ده د كفن دفن او جنازي امور تاسو سرانجام كئ دا روايت بيهقي رحمه الله دلائل النبوت كې ذكر كړى دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَقِيمُوا هَذَا مِنْ عِنْدِ رَأْسِهِ، وَلُوا أَخَاكُمْ:

**دولی ذمه واری:** ولی دَ ولايت اومشرى پوره كولو په معنى كښې دې يعنى دا مسلمان شوې دې اوس خپل رور په قبضه كښې واخلئى. دې اوس سنبال كړئى، پوښتنه ئى اوكړئى اوكه چرې دې وفات شى نو په اسلامى طريقه باندې دَ ده كفن دفن اوكړئى. دَ يهوديانو نه ئى لرې كړئى. دَدې حديث نه معلومه شوه چه يهودخومره دروغ وائى او شرميږى نه. خوئى دَ بيمارئى په حالت كښې پلار دروغ كړى.

**[۵۸۰۰] د حضور ﷺ بعثت د رحمت خداوندي ظهور دی**

۵۸۰۰-() [۲۵] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنَّهُ قَالَ ۲: «إِنَّمَا أَنَا رَحْمَةٌ مُهْدَاةٌ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوي حضور ﷺ وفرمایل ۲ حقیقت دادی چې زه د الله جل جلاله هدیه کړل شوی رحمت یم دا روایت دارمي او شعب الایمان کښې بیهقي نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① رَحْمَةٌ مُهْدَاةٌ: أَيْ: رَحْمَةٌ لِلْعَالَمِينَ أَهْدَاهَا اللهُ إِلَيْهِمْ: داسې رحمت چه دَ الله تعالی دَ طرف نه دَتحفې په توګه رالیګلې شوې وی.

**تسهیلات:**

**قوله: رَحْمَةٌ مُهْدَاةٌ:**

**نبی علیه السلام د الله تعالی د رحمت نمونه:** دَالله تعالی دَ طرف نه دَتحفې په توګه رالیګلې شوې رحمت. لهذا څوك چه ماقبلوی هغه به دَ الله تعالی دَ رحمت په سوری کښې راځی. په دې روایت کښې دَ یوځو الفاظو اضافه هم شوې ده هغه الفاظ دادی. "بُعِثْتُ بِرَفْعِ قَوْمٍ وَخَفْضِ آخَرِينَ" یعنی څوك چه ماقبلوی هغه به دَترقئی آسمان ته رسیږی او څوك چه مخالفت کوی هغه به دَ ذلت په کندوکښې ورپریوځی.

[1]) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ١٥ والبيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ١٤٤٦

# [۳]بَابٌ فِی أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضور ﷺ د اخلاقو او عاداتو بیان

## خلاصة الباب:

**فيه خمسة وثلاثون حديثاً مشتملة على نحو خمسن و أربعين خلقا:**

① عدم الزجر النبي صلى الله عليه وسلم أحداً لنفسه: ۱، ۱۹۔
② ضحک النبي صلى الله عليه وسلم فی محل الغضب: ۲، ۳۔
③ عدم خوف النبي صلى الله عليه وسلم من أحد: ۴۔
④ ذکرجود النبي صلى الله عليه وسلم: ۵، ۶، ۷۔
⑤ ذكر تواضع النبي صلى الله عليه وسلم مع الناس : ۸، ۹، ۱۰ ، ۳۳۔
⑥ عدم كون النبي صلى الله عليه وسلم فاحشاً: ۱۱، ۲۰، ۳۲۔
⑦ عدم كون النبي صلى الله عليه وسلم لعاناً: ۱۱
⑧ عدم كون النبي صلى الله عليه وسلم ساباً: ۱۱، ۱۲۔
⑨ كون النبي صلى الله عليه وسلم حيياً: ۱۳۔
⑩ عدم كون النبي صلى الله عليه وسلم صاحب ضحک تام: ۱۴۔
⑪ عدم كون النبي صلى الله عليه وسلم يسرد الكلام : ۱۵، ۲۷، ۲۸۔
⑫ كون النبي صلى الله عليه وسلم عاملاً أعمال البيت: ۱۶، ۲۶۔
⑬ كون النبي صلى الله عليه وسلم آخذاً بالأيسر: ۱۷۔
⑭ عدم كون النبي صلى الله عليه وسلم منتقماً لنفسه: ۱۷۔
⑮ عدم كون النبي صلى الله عليه وسلم ضارب أحد : ۱۸۔
⑯ عدم كون النبي صلى الله عليه وسلم متفحشاً: ۲۰۔
⑰ عدم كون النبي صلى الله عليه وسلم سخاباً في الأسواق: ۳۲۔
⑱ عدم كون النبي صلى الله عليه وسلم جازي السيئة بالسيئة: ۲۰۔
⑲ كون النبي صلى الله عليه وسلم عافاً وصافحاً: ۲۰۔
⑳ كون النبي صلى الله عليه وسلم عائداً للمرضى: ۲۱
㉑ كون النبي صلى الله عليه وسلم تابعاً للجنازة: ۲۱
㉒ كون النبي صلى الله عليه وسلم مجيباً لدعوة المملوك: ۲۱

Scanned with

**د اخلاق لغوی معنی:** اخلاق جمع ده دَدې مفرد خلق دې کوم چه طبعی خصلت او باطنی وصف ته وائی. دکوم لاندې چه دَحضور پاك اوصاف حمیده داخل دی

**دشمائل لغوی معنی:** شمائل جمع ده دَدې مفرد شمال دې. په شین کسره ده او دَدې اطلاق په اخلاقو باندې هم کیږی. او په سیرت باندې هم کیږی. که چرې دَسیرت په معنی کښې واخستې شی نو دَ یوې نوې معنې او مفهوم دَپاره به عنوان راپیداشی کوم چه به ډیر ښه وی.

**د نبي عليه السلام د اخلاقو بيان :** دَدې باب څخه وړاندې ابوابو کښې دَرسول الله ﷺ دَ جسماني اوشکل وشباهت ظاهري اوصاف بيان کړې شوي دي. دَدې باب په احاديثو کښې به دَ حضورپاك دَباطني اوصافو او خصلتونو بيان کيږي. يوڅو باطني اوصاف دادي مثلاً بهادري، سخاوت، رحمت اوشفقت، مروت او محبت، عاجزي اوتحمل اوحياء وغيره اوصاف مراددي.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۵۸۰۱] بې مثاله حُسن خُلق

۵۸۰۱-()[۱] [۱] «عَنْ أَنَسٍ قَالَ [۲]: خَدَمْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَشْرَ سِنِينَ [۳] فَمَا قَالَ لِي أُفٍّ وَلَا لِمَ صَنَعْتَ وَلَا أَلَّا صَنَعْتَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايې [۲] ما د رسول الله ﷺ لس کاله خدمت وکې په دې پوره موده کې [۳] حضور ﷺ ماته هيڅ کله اُف قدر هم ونه کړې او نه چېرې حضور ﷺ دا وفرمايل چې تا داکار ولې وکړو او دا کار دې ولې ونه کړې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① أُفٍّ: وَهِيَ كَلِمَةُ تَبَرُّمٍ: دا کلمه د ناخوښۍ او د ملامتيا د اظهار دپاره استعماليږي. ② لِمَ صَنَعْتَ: تا دا کار ولې کړې دې؟

**تسهيلات:**

**قوله:** خَدَمْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَشْرَ سِنِينَ فَمَا قَالَ لِي أُفٍّ:

**د لفظ اف تحقيق :** أُفٍّ دا کلمه دَهمزه پيښ سره وئيل هم جائز دي زير سره هم جائز ده او زبرسره هم جائز ده. فاء باندې شدهم دې او سکون هم دې. علامه نووي رحمه الله په دې کښې لس لغات بيان کړي دي. دا کلمه دَانسان دَ خلې نه هغه وخت اوځي کله چه هغه د يوناخوښ کړې شوي يا څه تکليف ورکونکي صورت حال سره مخ کيږي.

**د حديث پس منظر :** رسول الله ﷺ چه کله دَ مکې نه مدينې ته هجرت اوکړو نوحضرت ام سليم ﷺ خپل ځوئی حضرت انس ﷺ دَ حضورپاك خدمت کښې راوستو پيش ئې کړو اووئې فرمائيل "خويدمك فأدعوله" دا ستاسو وړوکې شان خادم دې دا قبول کړه اوده دَپاره دعا اوکړئي. دَحضرت انس ﷺ عمر په هغه وخت اته يا لس کاله وو. هغه تر لسو کالو پورې دَ حضورپاك خدمت اوکړو.

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب حسن الخلق والسخاء، وما يكره من البخل (رقم-۶۰۳۸) ومسلم فی كتاب الفضائل/باب كان رسول الله صلى الله عليه وسلم أحسن الناس خلقًا (رقم-۵۱ - (۲۳۰۹) وابوداود فی كتاب الأدب،/باب فی الحلم وأخلاق النبی صلى الله عليه وسلم (رقم-۴۷۷۴) والترمذی فی كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی خلق النبی صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۰۱۵)

**قوله:** فَمَا قَالَ لِي أُفٍّ وَلَا لِمَ صَنَعْتَ وَلَا أَلَّا صَنَعْتَ:

**دَ رسول الله ﷺ د اخلاقو او دَ شفقت منظر:** حضرت انس خپل خدمت او دَ رسول الله ﷺ دَ شفقت منظر وړاندې کوی چه دَ لسو کالو دَ اوږدې مودې په خدمت کښې حضورپاك زه نه چرته رټلې یم نه ئې راباندې چرته غصه کړې بلکه أف پورې راته نه دی کړی او نه ئې راته داسې تپوس پوښتنه کړې چه داکاردې ولې کړې اودادې ولې نه دې کړی؟ په دې کښې چه یوطرف ته دَ نبی مکرم دَ اخلاق اوچته نمونه مخې ته راځی نوبل طرف ته دَحضرت انس ﷺ دَ ښه کارکردګئی اوخدمت طریقه هم معلومیږی چه کله دَ داسې رټنې اوغصې موقع نه ده راغلې.

ملاعلی قاری ﷫ لیکی چه دَدې غصې اورټنې او تپوس پوښتنې نه کولوتعلق دَ حضورپاك ذاتی خدمت او آداب سره دې ګنی په شرعی امورو کښې که چرې څه غلطی کیدله نو په هغې باندې کله هم حضورپاك خاموشی نه ده اختیار کړې.

**[۵۸۰۲] شفقت اومروت**

۵۸۰۲-()[۲] [۱] وَعَنْهُ قَالَ [۲]: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ خُلُقًا [۳] فَأَرْسَلَنِي يَوْمًا لِحَاجَةٍ [۴] فَقُلْتُ وَاللَّهِ لَا أَذْهَبُ [۵] وَفِي نَفْسِي أَنْ أَذْهَبَ لِمَا أَمَرَنِي بِهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۶] فَخَرَجْتُ حَتَّى أَمُرَّ عَلَى صِبْيَانٍ وَهُمْ يَلْعَبُونَ فِي السُّوقِ [۷] فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَدْ قَبَضَ بِقَفَايَ مِنْ وَرَائِي [۸] قَالَ فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ وَهُوَ يَضْحَكُ

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وایي [۲] رسول الله ﷺ د اخلاقو او عاداتو دخوبي په اعتبارسره د ټولو خلقو نه زیات وو [۳] یوه ورځ داسې وشوه چې حضور ﷺ څه کار د پاره خما لیږل وغوښتل [۴] ما حضور ﷺ ته داسې اوویل قسم په الله چې زه نه ځم [۵] لیکن په زړه کې مي داوو چې رسول الله ﷺ کوم حکم راکړی دی د هغه د تعمیل د پاره به ضرور ځم [۶] نو زه روان شوم په بازارکي یوځاي و ړ و لوبي کولي زه هلته حصار شوم [۷] اچانك رسول الله ﷺ هلته راغي او د ورروسته نه یي ځما څټ اونیولو ما چې شا ته [۸] حضور ﷺ ته وکتل نو حضور ﷺ خندل

**حل اللغات:-** ① خُلُقًا: أَيْ عِشْرَةً: اخلاق اوښه عادات، ② أَمُرَّ: اي مَرَرْتُ فِي طَرِيقِي: روان ووم، تیریدم ③-قَبَضَ: أَيْ أَخَذَ: اوئې نیولو ④ بِقَفَايَ: اي مُؤَخَّرُ الْعُنُقِ: د مرئ شا طرف یعنی څټ.

[۱] فَقَالَ: يَا أُنَيْسُ ذَهَبْتَ حَيْثُ أَمَرْتُكَ. [۲] قُلْتُ: نَعَمْ، أَنَا أَذْهَبُ يَا رَسُولَ اللَّهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] بیا حضور ﷺ راته وفرمایل یا أنیس! ته هلته تللي یې که نه چیرته چې ماليږلي وې؟ [۲] ماعرض وکړو چې هو یارسول الله! زه اوس ځم. مسلم

[1]) اخرجه مسلم في كتاب الفضائل/باب كان رسول الله صلى الله عليه وسلم أحسن الناس خلقًا (رقم-٥٤ - ۲۳۱۰)وابوداود في كتاب الأدب/باب في الحلم وأخلاق النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-٤٧٧٣)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَقُلْتُ وَاللّٰهِ لَا أَذْهَبُ وَفِي نَفْسِي أَنْ......... رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د حدیث وضاحت:** حضرت انس ﷺ په ژبه سره داکلمات اداکړل مګر دهغوی دزړه اراده دتللووه. دویمه جمله "وفی نفسی" په دې باندې دال دې یعنی زما په زړه کښې وو چه زه به ځم. اوس دحضرت انس ﷺ په قول اوفعل باندې هیڅ اعتراض نشته دې.

**قوله:** فَإِذَا رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَدْ قَبَضَ بِقَفَايَ مِنْ وَرَائِي:

**دنبی علیه السلام د انس ځخه د عدم خفګان وجه:** کوم وخت چه دامعامله پیښه شوې وه کیدې شی چه هغه وړوکې هم وو اونابالغ هم وو غیرمکلف هم وو او په خدمت کښې نوې هم وو تجربه ئی هم نه وه. په دې وجه حضورپاك دَ خفګان اظهاراونه کړو بلکه دَ زړه دَ خوشحالولو دپاره ئی هغه دَ ستې دَ طرف نه اونیولو او په مسکی کیدوسره دَ شفقت په توګه ئی هغه دَ تصغیرپه صیغه أنیس سره یادکړو.

**[۵۸۰۲] بې مثاله تحمل او خوش اخلاقي**

۵۸۰۳-() [۳] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: «كُنْتُ أَمْشِي مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] وَعَلَيْهِ بُرْدٌ نَجْرَانِيٌّ غَلِيظُ الْحَاشِيَةِ [۳] فَأَدْرَكَهُ أَعْرَابِيٌّ فَجَبَذَهُ بِرِدَائِهِ جَبْذَةً شَدِيدَةً وَرَجَعَ نَبِيُّ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي نَحْرِ الْأَعْرَابِيِّ [۴] حَتَّى نَظَرْتُ إِلَى صَفْحَةِ عَاتِقِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَدْ أَثَّرَتْ بِهَا حَاشِيَةُ الْبُرْدِ مِنْ شِدَّةِ جَبْذَتِهِ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايي يوه ورځ زه درسول اللهﷺ سره روان وم [۲] هغه وخت د رسول اللهﷺ په جسم مبارك د يمن د نجران ښار جوړي شوي كرښي دار څادر وو چې د هغه غاړي د غټو وريښمو وي [۳] ناڅانك په لار كې يو باندچي (كليوال) حضورﷺ سره يوځاي شو او هغه څان ته متوجه كولو د پاره د حضورﷺ څادر نيولو سره دومره په زور سره راښكلو چې رسول اللهﷺ راښكلو سره د هغه سيني سره نزدې ولګيدلو [۴] ما نظر اوچتولو سره د رسول اللهﷺ غاړه مباركي ته وكتل نو د هغه باندچي (كليوال) دومره زور سره څادر راښكلو سره د رسول اللهﷺ غاړه مباركي باندې د څادر د غاړو نښه راله

**حل اللغات:-** ① بُرْدٌ: أي: ثَوْبٌ مُخَطَّطٌ: كرښي دار څادر، ② نَجْرَانِيٌّ: نجران طرف ته منسوب دې، يا په يمن كښې يوښار دې يا دا دحجاز، شام او يمن په يمن كښې واقع د يو ځائي نوم دې. ③ غَلِيظٌ: غټ يا پير ريښم، ④ الْحَاشِيَةِ: أي الطَّرَفِ: غاړې، بادرې، ⑤ فَجَبَذَهُ: دا لفظ جبذ دې يا دا د جذب نه مقلوب دې، په زور سره او جټكې سره راښكلو ته وائي. ⑥ نَحْرِ: أَيْ: فِي صَدْرِهِ: سينه (د باندېچي)

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب فرض الخمس/باب ما كان النبي صلى الله عليه وسلم يعطي المؤلفة قلوبهم وغيرهم من الخمس ونحوه (رقم-۳۱۴۹) ومسلم في كتاب الزكاة/باب إعطاء من سأل بفحش وغلظة (رقم-۱۲۸ - (۱۰۵۷) وابن ماجه في كتاب اللباس، كتاب الطب/باب لباس رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۵۵۳) واحمد في المسند: ۲۲۳/۴

⑦صَفْحَةِ: ښکاره کلاؤ طرف، مخامخ طرف (کوم چه اوګې طرف ته وی). ⑧عَاتِق: غاړه، مرئ. ⑨أَثَّرَتْ بِهَا: نښه ئې جوړه کړه په څټ د نبی ﷺ باندې.

[۱] ثُمَّ قَالَ: يَا مُحَمَّدُ، مُرْ لِي مِنْ مَالِ اللّٰهِ الَّذِي عِنْدَكَ، [۲] فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] ثُمَّ ضَحِكَ، ثُمَّ أَمَرَ لَهُ بِعَطَاءٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بیا هغه بانډچي (کلیوال) اوویل اې محمد! ستاسو سره چې د الله ﷻ کوم مال دی د هغه نه ماته څه راکړه [۲] حضور ﷺ مخکې خو حیرانتیا سره هغه ته وکتل [۳] بیا د مهربانۍ له مخه مسکی شو او هغه ته یې د څه ورکولو حکم یې وکړو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ⑩عَطَاءٍ: ورکړه.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَجَبَذَهُ بِرِدَائِهِ جَبْذَةً شَدِيدَةً وَرَجَعَ نَبِيُّ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي نَحْرِ الْأَعْرَابِيِّ:

**د رسول الله ﷺ د تکلیف برداشت کولو توجیه:** یعنی حضورپاك دَ دغه رابنکلودَ وجې نه دکلی وال سینې اومرئی ته نیزدې شو. کیدې شیَ دا څو داسې کلی وال وو چه دَمؤلفة القلوب نه وو په دې وجه حضورپاك دَهغه دا تکلیف ورکول برداشت کړه اودَدې خلاف ئی څه کاروائی اونه کړه. حضورپاك دَ لویو اخلاقو مظاهره اوکړه.

**[۵۸۰٤] د حضور ﷺ اکملیت او جامعیت**

۵۸۰۳-(١) [۳] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَحْسَنَ النَّاسِ وَأَجْوَدَ النَّاسِ وَأَشْجَعَ النَّاسِ، [۳] وَلَقَدْ فَزِعَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ ذَاتَ لَيْلَةٍ [۴] فَانْطَلَقَ النَّاسُ قِبَلَ الصَّوْتِ [۵] فَاسْتَقْبَلَهُمُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٦] قَدْ سَبَقَ النَّاسَ إِلَى الصَّوْتِ [۷] وَهُوَ يَقُولُ لَمْ تُرَاعُوا لَمْ تُرَاعُوا [۸] وَهُوَ عَلَى فَرَسٍ لِأَبِي طَلْحَةَ عُرْيٍ مَا عَلَيْهِ سَرْجٌ وَفِي عُنُقِهِ سَيْفٌ [۹] فَقَالَ لَقَدْ وَجَدْتُهُ بَحْرًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وایې [۲] چې رسول الله ﷺ حسن وجمال فضل وکمال صفات حمیده او اخلاق فاضله کې د ټولو خلقو نه زیات زړه ور او بهادر وو [۳] د یوې شپې واقعه ده د مدینې خلقو یوطرف نه د غل ډاکو یاڅه دښمن اوازه اوریدو سره پریشانه او خو فزده شو او یوبل ته اوازونه ورکول یې شروع کړل [۴] بیا څه خلق جمع کیدو سره دهغه اواز طرف ته ورغلل [۵] هلته یې خپل مخې ته رسول الله ﷺ موجود پیدا کی [٦] حقیقت دادی چې حضور ﷺ د ټولو نه مخکې د کور نه وتلی وو او تن تنها په یوازې تن دهغه اواز طرف ته ورغلی وو [۷] حضور ﷺ هغه ټولو خلقو ته اطمینان تسلي ورکولو سره وفرمایل ویریږي مه ویریږي مه هیڅ خطره نشته [۸] حضور ﷺ هغه وخت د

---

[١] ) اخرجه البخاری فی كتاب الأدب/باب حسن الخلق والسخاء. وما يكره من البخل (رقم-٦٠٣٣) ومسلم فی كتاب الفضائل/باب فی شجاعة النبی عليه السلام وتقدمه للحرب (رقم-٤٨ - (٢٣٠٧)

ابو طلحه ﷺ په آس سپور وو چې دآس شا توره وه يعنې بې زينه وو او د حضور ﷺ په غاړه کې توره وه ⑨بيا حضور ﷺ وفرمايل ما خو دا آس د درياب په شان تيز بيامونده.
بخاري ومسلم

**حل اللغات:-** ① أَجْوَدَ: أَيْ أَكْثَرَهُمْ سَخَاوَةً: ډير زيات سخي، ② أَشْجَعَ: أَيْ: قُوَّةً وَقَلْبًا: ډير زيات بهادر «د بدني قوت او د زړه ورتيا په اعتبارسره». ③ فَزِعَ: أَيْ خَافَ: اويريدل خلق، ④ فَانْطَلَقَ: روان شو خلق، ⑤ سَبَقَ: مخکښې تلې وو، ⑥ لَمْ تُرَاعُوا: د رَوْع نه ماخوذ دې، په معنی د فَزَع او خَوف سره، أَيْ: لَمْ تَخَافُوا: مه ويريږئ. ⑦ عُرْيٍ: شا ئې خالی وه «يعنی څه ګدئ يا زين پرې نه وو». ⑧ سَرْجٌ: زين، ⑨ بَحْرًا: أَيْ سَرِيعَ الْجَرْيِ: بحر سمندر ته وائی، دلته ترې تيز تلل مراد دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ...... وَأَشْجَعَ النَّاسِ:

**د رسول الله ﷺ بهاري:** دټولو خلقونه رسول الله ﷺ ډير بهادر وو په دې وجه خو حضرت خالد ﷺ او نورو لويو لويو مشهورو بهادرانو حضورپاك دځپل ځان نه زيات بهادر ګڼړلو سره نبي تسليم کړو. که چرې حضورپاك دځغوی نه زيات بهادر نه وې نوهغوی هيڅ کله هم حضورپاك نبي منلو ته تيارنه وو ځکه چه بهادر سړې دَ بزدل سړی تابعداری نه کوی.

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① فَزِعَ: يعنی اهل مدينه دَ دغه افواه دَ وجې نه سخت اوويريدل چه دښمن ناڅاپی په مدينه باندې حمله اوکړه دَ څه شور آوازونه هم راؤچت شوی وو

② لَمْ تُرَاعُوا: په يوه نسخه کښې "لن تراعوا" الفاظ دی.

**په عربی کښې د لم او لن استعمال:** لم جازمه جحد دَپاره دې دې سره مبالغه مقصود ده اولن هم دَنفی دَتاکيد دَ پاره دې. په عربی محاوره کښې لم او لن دواړه دَ لا په معنی کښې راځی مقصود دادې چه بالکل مه ويريږئی هيڅ خطره نشته. "اي لاتراعوا لاتراعوا"
"عري" يعنی دَزين نه بغير خالی شا اس باندې سور شو.

**قوله:** فَقَالَ لَقَدْ وَجَدْتُهُ بَحْرًا:

**د حديث نه مستنبط مسائل:** ① يعنی مادا اس په تګ کښې دَ سمندر په شان محسوس کړو دَ مبالغه په توګه دَ تشبيه سره داسې وئيل جائزدی
② دَدې حديث نه دا ثابت شو چه دَ يوځيز په کمال باندې دَهغې تعريف کول جائز دی.
③ دَدې حديث نه داهم ثابت شو کـه دَ دښمن دَطرف نـه معمولی شان کش کرپ هم محسوس شی نومسلمان لـه پکاردی چه يك تنها وردانګلو سره دَدغه خطرې دَختمولو دَپاره سبقت اوکړی نه داچه خپله سينه ښائی او دښمن دَ وژلودَپاره راغواړی.

## [۵۸۰۵] هيڅ کله يې يوسائل ته انکار نه دی کړی

۵۸۰۵-(۱) [۵] ۱ وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: ۲ «مَا سُئِلَ رَسُولُ اللهِ شَيْئًا قَطُّ فَقَالَ: لَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر ﷜ وايي ۲ داسې هيڅ کله نه دي شوي چې رسول الله ﷺ نه چا سوال کړی وي او حضور ﷺ هغه ته انکار کړی وي بخاري ومسلم ،

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ: لَا:** يعنى حضورپاك دَ يو سوال كونكى په سوال باندې چرته دَ لا كلمه دَ انكاردَپاره نه ده استعمال كړې.

**اشكال:** ډيرې زياتې موقعې داسې هم راغلې دى چرته چه رسول الله ﷺ دَ لا كلمه استعمال كړې ده. قرآن پاك كښې ﴿لَآ أَجِدُ مَآ أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ﴾ الفاظ موجود دى دَ كوم چه دې حديث سره په ظاهره تعارض معلوميږى؟

**د اشكال جواب:** ابن حجر ﷫ دَدې سوال جواب داسې وركړې دې سائل ته دَ وركولودَپاره چه كوم څه دَ حضورپاك په اختياركښې وو دَانكار نه بغيربه ئې وركول اوكه چرې په اختياركښې به ئې څه نه وو بيابه هم حضورپاك انكارنه كولو بلكه په ښه طريقه سره به ئې جواب وركولو. خلاصه داچه كله دَ حضورپاك په اختياركښې څه نه وى اوانكاربه ئې كولو هغه انكار دلته مراد نه دې بلكه حالت دَ اختيار دَ انكارنفى ده. فرزدق ډير ښه فرمائيلى دى:

ماقال لاقط الافي تشهده لولا التشهد لكانت لائه نعم

## [۵۸۰۶] د عطاء او بخشش كمال

۵۸۰۶-(۲) [۶] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ، ۲ «أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ غَنَمًا بَيْنَ جَبَلَيْنِ فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ ۳ فَأَتَى قَوْمَهُ فَقَالَ أَيْ قَوْمِ أَسْلِمُوا ۴ فَوَاللهِ إِنَّ مُحَمَّدًا لَيُعْطِي عَطَاءً مَا يَخَافُ الْفَقْرَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس ﷜ وايي ۲ يو سړى د حضور ﷺ نه دومره بزي (چيلۍ) وغوښتي چې د غرونو درمياني شله يې ډكه كړي وه نو حضور ﷺ هغومره بزي (چيلۍ) وركړلو ۳ دي نه وروسته هغه سړى خپل قوم ته راغې او ورته يې اوويل اې خما د قوم خلقو! اسلام قبول كړئ ۴ قسم په الله محمد دومره وركوي چې دفقر او افلاس نه هم نه ويريږي. (مسلم)

---

[۱] ) اخرجه البخارى فى كتاب الأدب/باب حسن الخلق والسخاء، وما يكره من البخل (رقم-۶۰۳۴) ومسلم فى كتاب الفضائل/باب ما سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم شيئًا قط فقال لا وكثرة عطائه(رقم-۵۶ - (۲۳۱۱)

[۲] ) اخرجه مسلم فى كتاب الفضائل/باب ما سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم شيئًا قط فقال لا وكثرة عطائه (رقم-۵۸ - (۲۳۱۲))واحمد فى المسند: ۱۰۸/۳

**تسهیلات:**

**قوله: أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ غَنَمًا بَيْنَ جَبَلَيْنِ فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ:**

**د رسول الله ﷺ په ملکیت کښې د ډیرو چیلو کیدلو ثبوت:** مطلب دادې چه دغه سړی ته رسول الله ﷺ دومره ډیرې چیلئی ورکړې په کوم سره چه دَ دوو غرونو په مینځ کښې ټول ځنګل ډك شوې وو اودا ټولې چیلئی دَ رسول کریم ﷺ ملکیت وو ځکه چه په غزوه حنین کښې رسول الله ﷺ ته دَ خمس په توګه دومره زیاتې چیلئی ملاؤ شوې وې.

**فَوَاللّٰهِ إِنَّ مُحَمَّدًا لَيُعْطِي عَطَاءً مَا يَخَافُ الْفَقْرَ:**

**قوله: د رسول الله ﷺ مالداری او سخاوت:** بعضې روایاتو کښې راځی چه سوال کونکی دومره ډیرې چیلئی لیدلو سره رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه تاسو خو ډیر مالداره شوی یئی چه دا دومره ډیرې چیلئی یوازې ستاسو په ملکیت کښې دی. نو حضورپاك هغه ته اوفرمائیل چه ته ئې واخله ما تاله درکړې. دَ حضورپاك دې کولاؤ زړه او سخاوت لره کتلوسره دَ هغه یقین پیدا شو چه حضورپاك خو دَ توکل، قناعت، زهد او استغناء دکمال درجې باندې فائز دې. نو هغه واپس خپل قوم ته لاړو خلقوته ئې په اخلاص سره تلقین اوکړو چه که چرې تاسو اعلی اخلاق، اقدار اودَ انسانی کردار عظمت حاصلول غواړئ نودَ محمدرسول الله ﷺ په دین کښې داخل شئی او دَ اسلام په حلقه کښې راشئ اودَ هغې منونکی جوړشئی کوم چه دَ سوال کونکی سوال داسې پوره کوی چه دَ خپل ضرورت نه بې پرواه شی او ټول هرڅه ورکړی. دَخپلې غریبئی او محتاجئ پرواه نه لری.

**[۵۸۰۷] خُلق نبوي ﷺ**

۵۸۰۷ -() [۷] [۱]«وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، بَيْنَمَا هُوَ يَسِيرُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ مَقْفَلَهُ مِنْ حُنَيْنٍ [۲]فَعَلِقَتِ الْأَعْرَابُ يَسْأَلُونَهُ حَتَّى اضْطَرُّوهُ إِلَى سَمُرَةٍ [۳]فَخَطِفَتْ رِدَاءَهُ [۴]فَوَقَفَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۵]فَقَالَ أَعْطُونِي رِدَائِي [۶]لَوْ كَانَ لِي عَدَدَ هَذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمٌ لَقَسَمْتُهُ بَيْنَكُمْ [۷]ثُمَّ لَا تَجِدُونِي بَخِيلًا وَلَا كَذُوبًا وَلَا جَبَانًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱]حضرت جبیر ابن مطعم رضی الله عنه د هغه وخت واقعه بیانوي هرکله چې هغه رسول کریم ﷺ سره د غزوه حنین نه واپس راتلو [۲]نو په لار کې یومقام باندې څه غریب بانډچي (کلیوال) خلق حضور ﷺ پوري ونښتل او د غنیمت مال یې ځني غوښتی [۳]او دي حده پورې ورپسي ولګیدل چې حضور ﷺ یې د کیکر یوي وني ته بوتللوسره مجبوره کړي هلته د حضور ﷺ څادر دکیکر په ازغیو کې ونښتی. [۴]حضور ﷺ په ډیري

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب الشجاعة فی الحرب والجبن (رقم-۲۸۲۱) والنسائی فی کتاب الهبة/باب هبة المشاع (رقم-۳۶۸۸) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب ما جاء فی الغلول (رقم-۲۲) واحمد فی المسند: ۸۲/۴

بي بسې سره حصار شو او وي فرمايل ⑤ راوړئ ځما څادر خو راکړئ ⑥ که چيرته ما سره د دې خاردارو ونو برابرهم څوپائي يعنی بزي (چيلئ) او اوښان وغيره وی نو ما به هغه ټول په تاسو تقسيم کړي وی ⑦ او تاسو به پوهه شوي وي چې زه بخيل نه يم نه دروغ وعده کونکی يم او نه کمزوری زړه والايم . (بخاري)

**حل اللغات:** - ① مَقْفَلَهُ: دا د قَفَلَ نه مصدرميمی دې يا اسم زمان دې په معنی د رَجَعَ سره، أَيْ: عِنْدَ رُجُوعِهِ أَوْوَقْتَ رُجُوعِهِ: د واپسئ په وخت. ② فَعَلِقَتِ: أَيْ نَشِبَتْ أَوْطَفِقَتْ: وريورې وينختل، شروع شو. ③ الْأَعْرَابُ: باندچيان، کلی وال خلق. ④ اضْطَرُّوهُ: أَيْ: أَلْجَئُوهُ: مجبوره ئې کړو نبی عليه السلام . ⑤ سَمُرَةٍ: أَيْ: شَجَرَةِ طَلْحٍ: دکيکر اونه (ازغی داره ترښه ونه ده). ⑥ فَخَطِفَتْ: أَيْ أَخَذَتِ: اوئې نيولو، وينختلو . ⑦ الْعِضَاهِ: ددې مفرد عِضَاهَةٌ يا عِضَةٌ (په حذف د هاء سره) ازغی داره اونه، د کيکر اونه. ⑧ نَعَمٌ: څاروی، ګډې بزې وغيره. ⑨ كَذُوبًا: دروغجن، دروغ وعده کونکې. ⑩ جَبَانًا: بزدله، کمزوری زړه والا.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو الفاظو وضاحت:**

① **مَقْفَلَهُ:** دَ غزوه نه واپس کيدل او دکور طرف ته واپس کيدو ته قفلة اوقفول وائی هم دَدې نه مقفلة په معنی دَ قفلة دې.

② **حُنَيْنٍ:** مکې مکرمې سره نيزدې يو وادئی نوم دې. دلته دَ فتح مکه نه پس يوزبردست جنګ شوې وو.

③ **نَعَمٌ:** حيوانات او څناورو ته وائی.

**قوله: لَوْكَانَ لِي عَدَدَ هَذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمٌ لَقَسَمْتُهُ بَيْنَكُمْ:**

**د العضاه مصداق او تفسير :** دَ جهاؤ مضبوطې ونې ته عضاه وئيلې شوې دې دې ته شجرة الطرفاء هم وائی دَ ځنګل دَ يوې مضبوطې ونې نوم دې. کوم ته چه په اردوکښې دَ جهاؤ ونه وائی. دَحضرت بنوری رحمه الله دکلام نه معلوميږی چه دا دَ غَز ونه ده. شارحين دې ته دَ کيکر يو قسم وائی هيڅ تعين اونه شو.

**[۵۸۰۸] د الله د مخلوق په حقله شفقت او همدردي**

۵۸۰۸ -(١) [٨] ① وَعَنْ أَنَسٍ، قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا صَلَّى الْغَدَاةَ ② جَاءَ خَدَمُ الْمَدِينَةِ بِآنِيَتِهِمْ فِيهَا الْمَاءُ ③ فَمَا يَأْتُونَ بِإِنَاءٍ إِلَّا غَمَسَ يَدَهُ فِيهَا ④ فَرُبَّمَا جَاءُوهُ بِالْغَدَاةِ الْبَارِدَةِ فَيَغْمِسُ يَدَهُ فِيهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم چې به د سهار د مـا نځـه نـه فارغـه شو

---

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الفضائل/باب قرب النبى عليه السلام من الناس وتبركهم به (رقم-٧٤ - (٢٣٢٤) واحمد فى المسند:١٣٧/٣

[۲] نو داهل مديني خدّام يعني منځي او غلامانو به خپلو خپلو لوښو کې اوبه اخستو سره رسيدل چې د حضور ﷺ لاس مبارك د بركته عافيت او بيماريو نه شفاء حاصله كړي [۳] نو كوم سړى چې به د اوبو لوښي سره راتلو حضور ﷺ به د هغه د خوشحالولو او هغه ته خپل بركت رسولو د پاره هغه لوښي کې خپل لاس مبارك اچوى [۴] اكثره به داسې كيدل چې خلق به د يخنۍ په موسم كې سهار سهار خپل لوښي سره راتلل او حضور ﷺ به په ډيري خوشحالۍ سره خپل لاس مبارك هغه لوښو كې اچولو.

**حل اللغات:**- ① الْغَدَاةُ: أَيِ الْفَجْرُ: دسحر مونځ، ② غَمَسَ: داخلولو به ئې، غوپه كولو به ئې ③ الْبَارِدَةُ: يخني، د يخنۍ موسم.

**تسهيلات:**

**قوله: جَاءَ خَدَمُ الْمَدِينَةِ بِآنِيَتِهِمْ فِيهَا الْمَاءُ:**

**د نبوی اخلاقو يوه نمونه:** په مدينه منوره كښې دَاوبو كمې وو. د كورونو خادمانو چه به كله اوبه ډكولې نو په اوبو كښې دَ بركت په غرض هغوى خپل لوښى په قطار كښې كيخودل دي دَپاره چه حضورپاك دَسحر دَ مونځ نه پس په دې لوښو كښې دَ بركت دَپاره خپل لاس مبارك اووهي. حضورپاك هغه غلام ګنړلو سره چرته هيركړې نه دي اونه دَاوږد قطار دَ وجې نه څه بوج محسوس كړې اونه ئې دَسختې يخنئې دَ وجې نه انكاركړې دې. داد اخلاق نبوى اوچته نمونه ده.

**[۵۸۰۹] غريب او پريشانه حال خلقو سره د حضور ﷺ معامله**

۵۸۰۹-() [۹] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: «كَانَتْ أَمَةٌ مِنْ إِمَاءِ أَهْلِ الْمَدِينَةِ [۲] تَأْخُذُ بِيَدِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَتَنْطَلِقُ بِهِ حَيْثُ شَاءَتْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايي د مديني والاو منځو کې د يوي منځي دامعامله وه چې كله به هغه ته څه پريشاني لاحق شوه [۲] نو د رسول الله ﷺ لاس مبارك به يي اونيولو او چيرته چې به د هغه زړه غوښته حضور ﷺ به يي بوتلو (بخاري)

**حل اللغات:**- ① أَمَةٌ: ددې جمع إِمَاءٌ راځي: أَيْ: جَارِيَةٌ: وينزه.

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَتْ أَمَةٌ مِنْ إِمَاءِ أَهْلِ الْمَدِينَةِ تَأْخُذُ بِيَدِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**په مذكوره حديث كښې دوه توجيهات:** ① ملاعلي قاري ﷫ دا پوره حديث په فرضى كلام باندې محمول كړې دې چه فرض كړه كه چرې يوې وينځې هم دَ حضورپاك لاس مبارك نيولې وې اوچرته ئې هم بوتلو نودَ حسن خلق دَوجې نه به حضورپاك هغې سره تلو.

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب الكبر (رقم-۶۰۷۲)

② دا حديث او راتلونکې دويم حديث دَ دوارو تعلق يو داسې ښځې سره دې چه دَ عقل په اعتبار سره معدوم العقل وه. هغې به قسم قسم خبرې او اوږدې قصې حضورپاك ته اورولې او حضورپاك به دَ حسن خلق دَ وجې نه دَهغې ټولې خبرې په ولاړه ولاړه اوريدې.
راتلونکی حديث کښې دی "في عقلها شئ" دغه شان دا حديث په فرضی کلام باندې حمل کولو نه بهتر دادی چه دا په حقيقت باندې مبنی وی او قصه هم دَ هغه بې عقل ښځې وی. دکوم نه چه دَ حضورپاك دَ اوچتو اخلاقو پته لګی.

۵۸۱۰-()[۱۰] ۱ وَعَنْهُ، «أَنَّ امْرَأَةً كَانَتْ فِي عَقْلِهَا شَيْءٌ، ۲ فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ لِي إِلَيْكَ حَاجَةً ۳ فَقَالَ يَا أُمَّ فُلَانٍ انْظُرِي أَيَّ السِّكَكِ شِئْتِ حَتَّى أَقْضِيَ لَكِ حَاجَتَكِ ۴ فَخَلَا مَعَهَا فِي بَعْضِ الطُّرُقِ حَتَّى فَرَغَتْ مِنْ حَاجَتِهَا» .رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضي الله عنه وايي په مدينه کې يوه ښځه وه چې د هغه په دماغ کې څه خلل وو ۲ هغه يوه ورځ اوويل يارسول الله ستاسو سره ځما څه کار دی چې د خلقو نه د پټ ويلو دی ۳ حضور ﷺ ورته وفرمايل د فلانی موري! ته چې کومه کوڅه د خلقو د نظرونو نه محفوظ ګڼي او ګوره زه تا سره هلته تلو ته تياريم ستا چې څه کار وي زه به يې ضرور وکړم يعنی ته چې کوم تنها مقام کې ما سره خبره کول غواړې زه به هلته تلو سره ستا خبره واورم ۴ نو حضور ﷺ هغه سره يوې کوڅې ته تشريف يووړلو او هلته تنهايې کې هغه ښځې چې څه وئيل اوريدل وو هغه اوويل واوريدل. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① عَقْلِهَا شَيْءٌ: په عقل او دماغ کښې ئې څه خلل يا ليونتوب وو. ② السِّكَكِ: د سِكَّةٍ جمع ده، ③ فَخَلَا: أَيْ: مَضَى: ځانله شو، لاړلو. ④ الطُّرُقِ: د طريق جمع ده، لاره

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ لِي إِلَيْكَ حَاجَةً:**

**د ليونۍ ښځې مطالبه منل:** دَ ليونئی ښځې په فرمائش باندې هغې سره تلل او دَهغې ګډې وډې خبرې اوريدل دَ نبوی اخلاقو يوه اوچته نمونه ده. خلق داسې ښځې سره نيزدې تيريدو نه او دَهغې طرف ته خيال کولو سره شرم محسوس کوی، او دَشان نه ئی خلاف ګڼری مګر حضورپاك دَهغې داستان اوری.

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب قرب النبی عليه السلام من الناس وتبرکهم به (رقم-۷۶ - (۲۳۲۶) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی الجلوس فی الطرقات (رقم-۴۸۱۸) واحمد فی المسند: ۱۱۹/۳

**[۵۸۱۱]د حضور ﷺ اوصاف حميده**

۵۸۱ -(¹) [۴] [۱]وَعَنْهُ، قَالَ[۲]: «لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَاحِشًا وَلَا لَعَّانًا وَلَا سَبَّابًا[۳]كَانَ يَقُولُ عِنْدَ الْمَعْتَبَةِ مَا لَهُ تَرِبَ جَبِينُهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت انس رضي الله عنه وايي [۲]رسول الله ﷺ نه خو فحش ګو وو نه لعنت کونکی نه بد کلامه وو [۳]کله چې به چاته په قهر شو نو بس دومره قدري به يې فرمايل ده ته څه شوي دي چې ده داخبره وکړه ياداکاريي وکړو د ده تندی دې په خاوره ککړ شي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① فَاحِشًا: أَيْ: ذَا الْفُحْشِ فِي أَقْوَالِهِ وَأَفْعَالِهِ: د بې حيايۍ کارونه يا خبرې کونکې، ② لَعَّانًا: لعنت کونکې، ③ سَبَّابًا: کنځل کونکې، ④ الْمَعْتَبَةِ: بِمَعْنَى الْمَلَامَةِ وَالْعِتَابِ: ملامتيا او زوروَنه (يعنی غصه). ⑤ مَالَهُ: څه شوی دی ده لره، دا کار ئې ولې اوکړو؟. ⑥ تَرِبَ جَبِينُهُ: ددې دوه مطلبه دی، بِمَعْنَى رَغِمَ أَنْفُكَ: چه دده پوزه دې په خاوره کښې ککړه شي. يا بِمَعْنَى سَجَدَ لِلّٰهِ وَجْهُكَ: چه دده مخ دې الله ته په سجده پريوځی.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-فَاحِشًا:

**د فحش معنی:-** أي أتيا بالفحش من الفعل. يعنی په څه کار کښې يا چاته جواب ورکولو کښې دَ حد نه زيات تجاوز کول او وړاندې کيدل. اکثر دَ فحش اطلاق دَ جماع والا بنکاره خبرو باندې کيږي. بعضې خلق ډير فحش خبرې کونکی وی او بعضې خلق ډير حيادار وی. تردې چه دَ تشو متيازو يا غټو متيازو ذکر هم په قضاء حاجت سره کوی.

**قوله:** لَعَّانًا وَلَا سَبَّابًا: دَدې دواړو نه مقصود دَ رسول کريم ﷺ نه دَ لعنت او دَ سب نفی کول دی. دَ لعنت لغوی معنی ده محروم کول، ذليل کول، کنځلې کول.

**د لعنت معنی:** ① دَ لعنت نسبت که چرې دَ الله تعالى طرف ته وی نو مطلب ئې دا وی چه دَ پروردګار چا لره دَ خپل رحمت نه محروم کول.

② او که دَدې لفظ نسبت دَ بنده طرف ته وی نو مراد ترې بد وئيل اودَ الله تعالى دَ رحمت نه لرې کيدلو او دَمحرومتيا بددعا کول وی.

**د لعنت وئيلو د جواز صورتونه:** ① لعنت په هغه سړی باندې کولې شی دَ چا باره کښې چه پوره يقين وی چه هغه دَ کفر په حالت کښې مړ شوې دې لکه ابوجهل عتبه شيبه وغيره.

② دغه شان په څه بدئی کښې اخته خلقو باندې عمومی په توګه باندې لعنت وئيل چه په کافرانو يا ظالمانو يا سودخورو وغيره باندې دې دَ الله تعالى لعنت وی دا حرام نه دی.

¹ ) اخرجه البخاری فی كتاب الأدب/باب ولم يكن النبی صلى الله عليه وسلم فاحشًا ولا متفحشًا (رقم-۶۰۳۱) واحمد فی المسند: ۱۵۸/۳

**لعنت ویونکو ته د رسول الله ﷺ جواب:** چا چه به حضورپاك سخت غصه کولو نو حضورپاك به دَ زیات نه زیات هغه ته دا فرمائیل چه ستا پوزه دې په خاورو کښې ککړه وی اودا جمله ذومعنی ده یو خو بددعا ده چه هغه سړې که پوزه راکاږی مگر هغه دې کامیاب نه شی او دویم دا چه دا په دعا باندې محمول کړې شی چه الله پاك دې هغه ته دَ سجدې توفیق ورکړی څکه چه سجده کولو سره پوزه خاورو کښې ککړیږی.

**[۵۸۱۲] د خپلو دښمنانو په حق کې به یې هم بد دعا نه کوله**

۵۸۳-() [۳] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: «قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ادْعُ عَلَى الْمُشْرِكِينَ [۲]قَالَ: إِنِّي لَمْ أُبْعَثْ لَعَّانًا، [۳]وَإِنَّمَا بُعِثْتُ رَحْمَةً». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایې حضور ﷺ ته عرض وشو یارسول الله! د خپلو دښمنانو کافرو په حق کې بددعا وکړئ چې هلاك شي او ویخ یې ووځي [۲]نو وې فرمایل زه لعنت کونکی نه یم رالیږل شوی [۳]بلکه زه خو رحمت جوړولو سره رالیږل شوی یم.(مسلم)

**حل اللغات:-** ①ادْعُ: ددعا په صله کښې چه کله علی راشی په معنی د خیرو او بددعا سره وی دلته هم په معنی د بددعا سره دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** قَالَ: إِنِّي لَمْ أُبْعَثْ لَعَّانًا، وَإِنَّمَا بُعِثْتُ رَحْمَةً:

**دَ رسول الله ﷺ رحمتِ خاص او عامه:** دَ رسول الله ﷺ رحمت خاص خو په مسلمانانو باندې هسې هم دې البته په کافرانو باندې هم دَهغوی رحمت عامه دې. هغه دا چه دَ رسول الله ﷺ دَ برکت نه په دنیاکښې په کافرانو باندې دَعذاب نه راتلو وعده کړې شوې ده لکه چه دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ ﴾.

**دَ حدیث الباب مطلب:** امام طیبی رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث الباب مطلب دادې چه زه دَدې دَ پاره نه یم راغلې چه خلق دَ الله تعالی دَ رحمت نه لرې کړم. زه دَدې دَ پاره راغلې یم چه دَ الله تعالی نازل کړې شوی هدایاتو او تعلیماتو سره خلق الله تعالی ته رانیزدې کړم. دَ چا خلاف بددعا کول یا په چا باندې لعنت کول زما دَ شان نه ډیر لرې دی او زما دَ حال سره غیر مناسب دی.

[1] اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب النهی عن لعن الدواب وغیرها (رقم-۸۷ - (۲۵۹۹)

**[۵۸۱۲] د حضور ﷺ شرم او حياء**

۵۸۱۳-() [۳] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَشَدَّ حَيَاءً مِنَ الْعَذْرَاءِ فِي خِدْرِهَا ② فَإِذَا رَأَى شَيْئًا -يَكْرَهُهُ ③ عَرَفْنَاهُ فِي وَجْهِهِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه وايي رسول الله ﷺ په پرده کې د پيغلو جينکو نه هم زيات حيادار وو ② هرکله چې به څه خلافِ مزاج خبره طعبي طور سره ناخوښه يا غير شرعي کيدو په وجه پيښه شوه ③ نو مونږ به د حضور ﷺ د مخ مبارك نه د حضور ﷺ ناخوښي محسوسوله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① الْعَذْرَاءِ: أَيِ: الْبِكْرِ: پيغله جينئ، ② خِدْرِهَا: أَيْ فِي سِتْرِهَا: په خپله پرده کښې، پرونی کښې.

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَشَدَّ حَيَاءً مِنَ الْعَذْرَاءِ فِي خِدْرِهَا:**

**په نبی عليه السلام د ناوې څخه زياته حيا:** خدر په اصل کښې هغه پردې ته وائی په کومه کښې چه داسې پيغله جينئی کينولې شی دَ چا واده چه نيزدې وی. په عام توګه داسې جينئی ډيره شرميږی تردې چه دَ خپل کور والو خلقو سره هم په ښکاره خبره نه شی کولې. دَ رسول الله ﷺ شرم دَ داسې جينئی نه هم زيات وو. دارنګ حياء چونکه دَ انسان يو خاص کالې دې په دې وجه چه څومره ايمان کلك وی حياء هم هغه هومره زياته وی.

**قوله: فَإِذَا رَأَى شَيْئًا يَكْرَهُهُ عَرَفْنَاهُ فِي وَجْهِهِ:**

**د نبی عليه السلام د شرم په وجه مخ متغير کيدل:** دَدې حاصل دادې چه کله به دَ حضورپاك په وړاندې دَ داسې څيز ذکرکيدلو چه دَ حضورپاك به په طبعی توګه ناخوښه وو نو حضورپاك به په خلې څه اظهار نه کولو بلکه دَ ناخوښئی دَ وجې نه به ئی اثر په مخ مبارك کښې فوری ښکاره کيدو اومتغيرکيدو به او دَ دغه تغير نه به صحابه کرامو دَ حضورپاك ناخوښی محسوسوله. امام نووی رحمه الله فرمائی چه دَ حضورپاك دَ مزاج مبارك به کومه خبره خلاف راپيښه شوه دَ حياء دَ غلبې دَ وجې نه به حضورپاك دَهغې اظهار په خلې سره نه کولو بلکه دَ هغې اثرات به دَ حضورپاك په مخ مبارك باندې ښکاره کيدل. نو صحابه کرامو به دَ رسول الله ﷺ دَ مخ مبارك نه ناخوښی او خفګان محسوسولو.

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب صفة النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۵۶۲) ومسلم في كتاب الفضائل/باب كثرة حيائه صلى الله عليه وسلم (رقم-۶۷ - (۲۳۲۰) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب الحياء (رقم-۴۱۸۰) واحمد في المسند:۳/۷۹

## [۵۸۱۴] حضور ﷺ به خوله خلاصولو سره نه خندل

۵۸۱۳-(۱)[۳] ۱ «وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُسْتَجْمِعًا قَطُّ ضَاحِكًا ۲ حَتَّى أَرَى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ، ۳ وَإِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ما رسول الله ﷺ هيڅ کله په داسې خندا نه دی ليدلی چې د حضور ﷺ توله خوله خلاصه شوي وي ۲ او ماته د حضور ﷺ حلق تالو په نظر راغلی وي ۳ د حضور ﷺ خندا بس مسکا پورې محدوده وه. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① مُسْتَجْمِعًا ضَاحِكًا: يعنی په مکمل توګه پوره خله کولاوولو سره په کوم کښې چه حلق اود تالو ژبه ښکاره شی داسې حضورپاك کله نه وو خندلی. ② لَهَوَاتِهِ: دا د لَهَاة جمع ده، وَهِيَ لَحْمَةٌ مُشْرِفَةٌ عَلَى أَقْصَى الْفَمِ مِنْ سَقْفِهِ: په تالو کښې چه پورته د غوښې کومه ټکړه رازوړنده وی هغې ته لهواة وائی يعنی د تالو ژبه.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُسْتَجْمِعًا قَطُّ ضَاحِكًا:

**د خندا درې درجې:** دخندا يوڅو درجې دی:

① **تبسم:** رسول الله ﷺ به هميشه تبسم فرمائيلو. دا د حضورپاك اکثر معمول راغلې دې.

② **ضحک:** حضورپاك به کله کله ضحك هم فرمائيلو په کوم سره چه به د حضورپاك د غاړې غاښونه نواجذ ښکاريدل مګر دا عام معمول نه وو کله کله به داسې کيدل.

③ **قهقهه:** حضورپاك کله داسې په تيزه نه دی خندلی. زير بحث حديث کښې چه دکومې خندا نفی ده دې نه مراد هم دغه تيزه خندا ده. په حديث کښې ددې تائيد هم ملاويږی ځکه چه حلق صرف د تيزې خندا په وخت ښکاره کيدې شی. په تبسم اوضحك کښې نه ښکاره کيږی.

## [۵۸۱۵] د حضور ﷺ د ګفتګو بهترين انداز

۵۸۱۵-(۲) [۵] ۱ وَعَنْهَا، قَالَتْ: «إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَمْ يَكُنْ يَسْرُدُ الْحَدِيثَ ۲ كَسَرْدِكُمْ ۳ كَانَ يُحَدِّثُ حَدِيثًا لَوْ عَدَّهُ الْعَادُّ لَأَحْصَاهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي حضور ﷺ به په تيزي تيزي او مسلسل خبري نه

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب صلاة الاستسقاء /باب التعوذ عند رؤية الريح والغيم، والفرح بالمطر (رقم-۱۵ - (۸۹۹) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب التبسم والضحک(رقم-۶۰۸۹) (رقم-۶۰۹۲) واحمد فی المسند:۶۶/۶

(۲) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب صفة النبی صلی الله عليه وسلم (رقم-۳۵۶۸) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل أبی هريرة الدوسی رضی الله عنه (رقم-۱۶۰ - (۲۴۹۳) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی کلام النبی صلی الله عليه وسلم (رقم-۳۶۳۹) واحمد فی المسند:۱۱۸/۶

کولي [۲] څنګه چې تاسو خلق مسلسل لګیا یئ [۳] حضور ﷺ به په قلاره قلاره خبري کولي که چا شمیرلی نو شمیرلی یي شوی بخاری ومسلم

**حل اللغات:-** ① لَمْ يَكُنْ يَسْرُدُ الْحَدِيثَ: أَيْ: لَمْ يَكُنْ يُتَابِعُ الْكَلَامَ: تيز تيز او مسلسل خبرو اترو کولو ته سرد الحديث ونيلې شوې دې يعنى نبى کريم ﷺ به زر زر خبرې نه کولې. ② الْعَادُّ: شمير کونکې، ③ لَأَحْصَاهُ: نو شميرلې ئې شوې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمْ يَكُنْ يَسْرُدُ الْحَدِيثَ كَسَرْدِكُمْ:

**د رسول الله ﷺ د خبرو انداز:** دَ حضورپاك دَكلام انداز داسې نه وو بلکه حضورپاك به په مزه مزه داسې واضح کلام کولو که چرته چا شميرلې نو شميرلې شوې لکه چه دَ مبارکې خلې نه به مرغلرې رژيدلې.

**[۵۸۱٦] حضورپاك به دَ كور كارهم كولو**

> ۵۸۱٦-() [۲] [۱] وَعَنِ الْأَسْوَدِ، قَالَ: «سَأَلْتُ عَائِشَةَ [۲] مَا كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَصْنَعُ فِي بَيْتِهِ [۳] قَالَتْ: كَانَ يَكُونُ فِي مَهْنَةِ أَهْلِهِ يَعْنِي خِدْمَةَ أَهْلِهِ [۴] فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت اسود ﷺ وايي يوه ورځ ما دبي بي عائشې ؓ نه پوښتنه وکړه [۲] چې رسول الله ﷺ به په کورکې څه څه کار کوی [۳] نو هغې وفرمايل حضور ﷺ به خپل کورکې خانګې کارکوی. [۴] او کله چې به د مانځه وخت راغې نو د ما نځه د پاره به پاڅیدو او هغه وخت به یې تول کار پریښودې وی اود کوروالاوو سره به یې هيڅ مطلب نه لرلو. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① يَصْنَعُ: كار به ئې كولو. ② مَهْنَةِ: أَيِ الْخِدْمَةُ: دكور كار او خدمت.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَ يَكُونُ فِي مَهْنَةِ أَهْلِهِ:

**دنبى عليه السلام د كور خلقو سره د كور په كار كښې مدد كول:** مهنة خدمت اودكوركار ته وائي. يعنى جضورپاك به دَ كور په كاركښې لګيا وو ليكن چه كله به دَ مونځ دَ پاره اذان كيدلو نوفورى به جمات ته تللو او په كوركښې به نه ښكاريدو.

---

[۱] ) اخرجه البخارى فى كتاب صلاة الجماعة والإمامة/باب: من كان فى حاجة أهله فأقيمت الصلاة فخرج (رقم-۶۷۶) وابوداود فى كتاب الأدب/باب فى التجاوز فى الأمر (رقم-۴۷۸۵) والترمذى فى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۴۸۹) واحمد فى المسند: ۴۹/۶

## [۵۸۱۷] هيڅ کله يې د چا نه بدل نه اخستی

۵۸۱۷-(¹) [۱۷] ① وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: «مَا خُيِّرَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَيْنَ أَمْرَيْنِ قَطُّ ② إِلَّا أَخَذَ أَيْسَرَهُمَا مَا لَمْ يَكُنْ إِثْمًا ③ فَإِنْ كَانَ إِثْمًا كَانَ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنْهُ، ④ وَمَا انْتَقَمَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِنَفْسِهِ فِي شَيْءٍ قَطُّ ⑤ إِلَّا أَنْ يُنْتَهَكَ حُرْمَةُ اللّٰهِ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ بِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي رسول الله ﷺ ته به چې کله هم دوه کارونو کې د يو کار کولو اختيار ورکول شو ② نو حضور ﷺ به همېشه هغه کار کوی کوم چې به آسانه وو ترڅو چې به هغه د ګناه کار نه وو ③ که کار به د ګناه موجب وو نو حضور ﷺ به د هغه نه د ټولو نه لرې اوسېدونکی سړی وو ④ او حضور ﷺ خپل ذات د پاره هيڅ کله د څه خبرې بدل نه اخستی ⑤ خو که څه خبره به داسې وه چې الله ﷻ حرامه کړې وه نو بيا حضور ﷺ به د الله ﷻ د حکم پيشِ نظر د هغه سزا ورکوله . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① خُيِّرَ: اختيار به ورکړې شو. ② أَبْعَدَ: لرې کېدلو به. ③ وَمَا انْتَقَمَ: أَيْ: مَا غَاضَبَ: انتقام اوبدله به ئې نه اخستله، غصه کېدلو به نه. ④ أَنْ يُنْتَهَكَ: أَيْ يُرْتَكَبُ: مرتکب به شو، اوبه ئې کړو. ⑤ حُرْمَةُ اللّٰهِ: أَيْ: مَا حَرَّمَ اللّٰهُ فِعْلَهُ: کوم کار چه الله تعالی حرام کړې وی.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا خُيِّرَ رَسُولُ اللّٰهِ:

**د رسول الله ﷺ په اختيار باندې اشکال:** دَ رسول الله ﷺ دَ خطاء نه معصوم کېدل دَ نص نه ثابت دی په دې وجه دَ يوې ګناه نسبت دَ حضورپاك طرف ته کېدې نه شي. دَدې وجهې نه دَ الله تعالی دَ طرف نه به حضورپاك ته دَ داسې دوو څيزونو نه دَ يو څيز دَ خوښولو اختيار څنګه ورکړې کېدو؟ په کوم کښې چه به يو څيز دَ ګناه سبب جوړېدو؟.

**د اشکال جواب:** حديث کښې دَ اثم نه مراد هغه څيز دې چه پخپله خو ګناه نه وی ليکن هغه په يوه درجه کښې ګناه ته دَ رسولو احتمال لری. دَ مثال په توګه الله تعالی حضورپاك ته دَ دنياوی ژوند تيرولو دَپاره دَ بادشاه په شان دَ ژوند تيرولو يا ساده ژوند تيرولو اختيار ورکړې وو نو رسول کريم ﷺ دَ بادشاهئ دَ ژوند په ځائ ساده ژوند تيرول اختيار کړل.

**قوله:** وَمَا انْتَقَمَ رَسُولُ اللّٰهِ لِنَفْسِهِ:

**د رسول الله ﷺ د انتقام نه اخستلو مطلب:** رسول الله ﷺ به دَ خپل ذات باره کښې دَ چانه

---

¹ ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب صفة النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۵۶۰) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب مباعدته صلی الله علیه وسلم للآثام واختیاره من المباح. أسهله وانتقامه لله عند انتهاک حرماته (رقم-۷۷ - (۲۳۲۷) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی التجاوز فی الأمر (رقم-۴۷۸۵) ومالک فی الموطا کتاب حسن الخلق/باب ما جاء فی حسن الخلق (رقم-۲) واحمد فی المسند:۳۲/۶

بدله نه اخستله. دَدې جملې مراد دادې چه حضورپاك به كله دَ يو جرم يا غلطئى سزا دَ خپل ذات دَ بدلې اخستلو يا دَ خپل طبعي خواهش دَ پوره كولو دپاره نه وركوله يا چا چه به حضورپاك ته تكليف وركولو نو حضورپاك به دَ هغه نه بدله نه اخستله بلكه معاف كولو به ئې.

## [٥٨١٨] حضور ﷺ هيڅ كله څوك نه دي وهلي

٥٨١٨-() [١٨] [١] وَعَنْهَا، قَالَتْ [٢] «مَا ضَرَبَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- شَيْئًا قَطُّ بِيَدِهِ، وَلَا امْرَأَةً وَلَا خَادِمًا [٣] إِلَّا أَنْ يُجَاهِدَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ [٤] وَمَا نِيلَ مِنْهُ شَيْءٌ قَطُّ فَيَنْتَقِمُ مِنْ صَاحِبِهِ [٥] إِلَّا أَنْ يُنْتَهَكَ شَيْءٌ مِنْ مَحَارِمِ اللّٰهِ فَيَنْتَقِمُ لِلّٰهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي [٢] حضور ﷺ هيڅ كله څه شي يعني يو سړي يې په خپل لاس سره نه دي وهلي ښځه او خادم هم نه، [٣] علاوه د هغه صورت نه چې حضور ﷺ به د الله جل جلاله په لار كې جهاد كوي [٤] او هيڅ كله داسې نه دي شوي چې د يو سړي د طرف نه حضور ﷺ ته څه تكليف رسيدلى وي او حضور ﷺ د هغه تكليف رسونكي نه انتقام بدل اخستى وي [٥] خو كه د الله جل جلاله دحرام كړى څه شي ارتكاب به كيدى نو حضور ﷺ به د الله جل جلاله د حكم د تعميل د پاره د هغه سزا وركوله . (مسلم)

**حل اللغات:-** ① يُجَاهِدَ: جهاد به ئې كولو. ② وَمَا نِيلَ: أي مَا أُصِيبَ مِنْهُ: كوم چه رسيدلې وى حضور ﷺ ته.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا امْرَأَةً وَلَا خَادِمًا:

**د ښځې او د خادم ذكر كولو وجه:** دَ دې دوارو ذكر دَ شان دَ اهتمام په وجه كړې شوې دې. چونكه په كور كښې دې دواړه سره زيات تعلق وى دَدې دوارو دَ تاديب زيات حاجت پيښيږى په دې وجه به حضورپاك په خادم يا وينځه باندې هم دَزياتې سختئى والا معامله نه كوله نودكور خلقو سره خو به ئې په اوله درجه كښې ښه سلوك فرمائيلو او رسول الله ﷺ به خادم او وينځه نه وهله او نه به ئې رټنه وركوله.

**قوله:** إِلَّا أَنْ يُجَاهِدَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ:

**په جهاد كښې لړمى نه كول:** دَ الله تعالى په لار كښې دَ الله دښمنانو سره جهاد كيږى. په دې وجه به هغه وخت كښې رسول الله ﷺ دَ چا سره دَمعافئى معامله نه كوله لكه چه يو دَ الله دښمن ابى بن خلف په غزوه احد كښې حضورپاك په خپل لاس قتل كړو. دارنګ دَ

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الفضائل/باب مباعدته صلى الله عليه وسلم للآثام واختياره من المباح. أسهله وانتقامه لله عند انتهاك حرماته (رقم-٧٩ - (٢٣٢٨) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ ضرب النساء (رقم-١٩٨٤)

الله تعالی په لار کښې دَ جهاد اطلاق صرف دَ الله په دښمنانو باندې نه کيږی بلکه په حدود او تعزيراتو باندې هم دَ جهاد اطلاق کيږي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۸۱۹] خادمانو سره د حضور ﷺ سلوک

۵۸۱۹-() [۱۹] [۱] «عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: خَدَمْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] وَأَنَا ابْنُ ثَمَانِ سِنِينَ خَدَمْتُهُ عَشْرَ سِنِينَ [۳] فَمَا لَامَنِي عَلَى شَيْءٍ قَطُّ أُتِيَ فِيهِ عَلَى يَدَيَّ، [۴] فَإِنْ لَامَنِي لَائِمٌ مِنْ أَهْلِهِ قَالَ دَعُوهُ [۵] فَإِنَّهُ لَوْ قُضِيَ شَيْءٌ كَانَ». [۶] هَذَا لَفْظُ الْمَصَابِيحِ، وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ مَعَ تَغْيِيرٍ يَسِيرٍ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس ﷺ وايي کوم وخت چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې پيش شوم [۲] نو هغه وخت ځما عمر اته کاله وو دهغه وخت نه مسلسل لس کاله پورې ما د حضور ﷺ د خدمت فرائض سرته رسول چې په مدينه کې د حضور ﷺ کُل مُدَت قيام دی په دې پوره موده کې [۳] د اسې هيڅ کله نه دی شوی چې ځما د لاس نه څه شی ضائع شوی وي او حضور ﷺ زه ملامت کړی يم [۴] که د حضور ﷺ د اهلِ بيتو نه به چا د څه شي په ضائع کيدو زه ملامت کولم نو حضور ﷺ به ورته فرمايل دی پريږدئ مه يې ملامت کوئ [۵] حقيقت دادی چې کومه خبره کيدونکي وي هغه ضرور کېږي [۶] د روايت دا الفاظ د مصابيح دی او بيهقي هم د دې روايت څه الفاظ تغير او تبدل سره شعب الايمان کې نقل کړی دی .

**حل اللغات:-** ① فَمَا لَامَنِي : ملامته کړې ئې نه يم، غصه شوې راته نه دې. ② أُتِيَ فِيهِ: دا د مجهول صيغه ده، أَيْ: أُهْلِكَ وَأُتْلِفَ: هلاک به شو، ضائع به شو. ③ دَعُوهُ: أَيْ: اتْرُكُوهُ: پريږدئ دې.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① ثَمَانِ سِنِينَ: دې نه معلوميږی چه حضرت ام سليم ﷺ انصاريه کوم وخت چه حضرت انس ﷺ دَ خادم په توګه دَ حضورپاك په خدمت کښې پيش کړې وو هغه وخت دَحضرت انس ﷺ عمر اته کاله وو.

② عَشْرَ سِنِينَ: يعنی تر لسو کالو پورې ما دَحضورپاك خدمت کړې دې اودَ حضورپاك هم دومره عمر په مدينه منوره کښې تيرشوې دې.

③ أُتِيَ فِيهِ: دا دَمجهول صيغه ده دَ ضائع کيدو اوهلاك کيدو په معنی کښې دې يعنی کوم څيزچه به زمادَلاس نه ضائع کيږی دا دَ شئ صفت واقع شوې دې.

[1] ) اخرجه احمد في المسند: ۳/ ۲۳۱ والبيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۸۰۷۰

④يَدَيَّ: تثنيه ده دواړه لاسونه مراد دي. يعنى داسې كله نه دي شوي چه زما دَ دواړو لاسونو نه څه څيز ضائع شوي وي او حضور پاك زه ملامت كولو سره رټلې يم. نورو خلقو چه به ملامت كولم نو حضور پاك به فرمائيل چه دې پرېږدئى.

⑤لَوْقُضِيَ شَيْءٌ كَانَ: يعنى دَالله تعالى په تقدير كښې چه كومه فيصله شوې وى هغه به خامخاكيږى. دَراتلونكى وخت دَپاره چه كومه خبره كيدونكې وى هغه خامخاكيږى.

**[۵۸۲۰] د حضور ﷺ اوصاف حميده**

۵۸۲۰-()[۲۰]①وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ②: «لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا③وَلَا سَخَّابًا فِي الْأَسْوَاقِ④وَلَا يَجْزِي بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ وَلَكِنْ يَعْفُو وَيَصْفَحُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ①او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ②رسول الله ﷺ نه خو خِلقي او طبعي طور سره فحش گو وو او نه يي قصداً فحش گوي كوله گويا په هيڅ حالت كې حضور ﷺ نه فحش گوئي نه ده شوې ③او نه بازارونو كې شور كونكى وو څرنګه چې عام طور سره د خلقو عادت وي ④او نه به يې د بدۍ بدله بدۍ سره آخستله بلكه بدي كونكى به يې په زړه سره معاف كوى او په ظاهر كې به يې هم هغه سره د عفو او درګذر معامله كوله او دغه شان حضور ﷺ به د حق تعالى په دې ارشاد عمل كوى فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ. (ترمذى)

**حل اللغات:-** ①فَاحِشًا: أَيْ: ذَا الْفُحْشِ فِي أَقْوَالِهِ وَأَفْعَالِهِ: د بې حيايئ كارونه يا خبرې كونكې، ② مُتَفَحِّشًا: أَيْ: مُتَكَلِّفًا: يعنى فحش كلام كولو كښې به ئې تكلف هم نه كولو چه قصداً او تكلفاً فحش كلام اختيار كړى. ③وَلَا سَخَّابًا: أَيْ: صَخَّابًا: چغې سورې وهونكې، ④وَلَا يَجْزِي: بدله به ئې نه اخستله، ⑤يَعْفُو: أَيْ: فِي الْبَاطِنِ: معاف كولو به ئې په ښكاره، ⑥يَصْفَحُ: أَيْ يُعْرِضُ فِي الظَّاهِرِ: درګذر به ئې كولو، معاف كولو به ئې په ښكاره هم.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا:

**په فاحش او متفحش كښې فرق:** په فاحش او متفاحش كښې فرق: فحش هغه خبرې يا عمل ته وائى كوم چې ډيرزيات قبيح وى بيا په فاحش او متفاحش كښې دا فرق دې چې فاحش هغه چا ته وائى چې فحش وينا كوى او متفاحش هغه چاته وائى چې په فحش وينا كولو كښې تكلف او مبالغه كوى. او كوم فحش چې شريعت منع كړى دى هغه وائى.

(۱) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى خلق النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۰۱۶) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب البراءة من الكبر والتواضع (رقم-۴۱۷۸) واحمد فى المسند: ۱۷۴/۶

**[۵۸۲۱] حضور ﷺ کې تواضع او انکساری**

۵۸۲۱ -(۱) [۲۱] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ يُحَدِّثُ «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] أَنَّهُ كَانَ يَعُودُ الْمَرِيضَ، [۳] وَيَتْبَعُ الْجِنَازَةَ، وَيُجِيبُ دَعْوَةَ الْمَمْلُوكِ، [۴] وَيَرْكَبُ الْحِمَارَ، [۵] وَلَقَدْ رَأَيْتُهُ يَوْمَ خَيْبَرَ عَلَى حِمَارٍ خِطَامُهُ لِيفٌ» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ په یوه موقع د رسول الله ﷺ متعلق د بهترین اخلاق وعادات ذکر کولو سره بیان وکړو [۲] چې حضور ﷺ به د بیمار پوښتنه کوله [۳] جنازې سره به تللو د مملوك او غلام دعوت به یې قبلوی [۴] او په خره باندې سوریدو کې یې هم څه تکلف نه محسوسوی [۵] د غزوه خیبر په ورځ ما حضور ﷺ په یو خره باندې سپور اولیدلو چې د هغه واګې د کجورو د پوستکې وې دا روایت ابن ماجه او شعب الایمان کې بیهقي نقل کړی دی .

**حل اللغات:-** ① يَعُودُ: د عیادت نه دې یعنی تپوس پوښتنه به ئې کوله. ② يَتْبَعُ الْجَنَازَةَ: أَيْ يَتَعَقَّبُ وَيُشَيِّعُ: په جنازې پسې شاته تللو ③ يُجِيبُ: قبلولو به ئې. ④ وَيَرْكَبُ: سوریدلو به، سورلی به ئې کوله. ⑤ خِطَامُهُ: أَيْ زِمَامُهُ: واګې، لګام. ⑥ لِيفٌ: د کجورو د ونې پوستکی، میزری. یعنی دَ واګې رسئی دکېجورې دَ پوستکی او پانړونه جوړه وه.

**تسهیلات:**

**قوله: وَيَرْكَبُ الْحِمَارَ، وَلَقَدْ رَأَيْتُهُ يَوْمَ خَيْبَرَ عَلَى حِمَارٍ خِطَامُهُ لِيفٌ:**

**د حضور پاک صلی الله علیه وسلم په خر باندې د سورلۍ کولو حکمتونه:**

یعنی دَغزوه خیبرپه موقع باندې خرباندې سور وو. حضورپاك دَ تواضع په توګه په خرباندې سورلی کړې ده.

① په دې کښې خویو حضرت عیسی علیه السلام سره په انکسارئی کښې مشابهت راغلو ځکه چه حضرت عیسیٰ علیه السلام همیشه په خرباندې سورلی کړې وه.

② دویمه خبره چه دا جائزشی چه دَخرسورلی جائزده. په دې وجه دَخر خوله پاکه ګرځولې شوې ده. دادَخرهم فائده شوه.

**د خر څخه مراد:** : دلته داخبره یادساتل پکاردی چه دغه خرونه دَعربستان لوئی سپین خره مراددی چه اس سره نیزدې وی. دَافغانستان خره هم دغه شان دَ اوږدقدوالاوی. دې نه هغه خرمرادنه دې کوم چه وړوکې وی په کوم چه سوریدل هم دَ شرم سبب ګڼړلې شی. حضورپاك سره به دویم کس هم سور وو. دَدې نه معلومیږی چه دا غټ خروو.

[۱]) اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب الزهد/باب البراءة من الكبر والتواضع (رقم-۴۱۷۸)

## [۵۸۲۲] خپلې څپلې به يې په خپله ګنډلې

۵۸۲۲-() [۲۲] [۱] «وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ [۲]: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَخْصِفُ نَعْلَهُ [۳] وَيَخِيطُ ثَوْبَهُ وَيَعْمَلُ فِي بَيْتِهِ كَمَا يَعْمَلُ أَحَدُكُمْ فِي بَيْتِهِ [۴] وَقَالَتْ كَانَ بَشَرًا مِنَ الْبَشَرِ [۵] يَفْلِي ثَوْبَهُ وَيَحْلُبُ شَاتَهُ وَيَخْدُمُ نَفْسَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي [۲] رسول الله ﷺ به خپلي چوتې په خپله ګنډلې خپله نوي يا زړه کپړه به يې [۳] خپله ګنډله او د خپل کور کار به يې داسې کوى څرنګه چې په تاسو کې يو سړى خپل کور کې کار کوى [۴] او بي بي عائشي ﷺ مزيد وفرمايل حضور ﷺ يو داسې انسان وو څرنګه چې نور انسانان وي [۵] حضور ﷺ به خپلو کپړو کې سپږې خپله کتلې د خپلې بزې (چيلۍ) پئې به يې خپله لوشلې او خپل خدمت به يې خپله کوى يعنې خپل ذاتي کار به يې خپله کوې بل چاته به يې کولو د پاره نه ور کم ويل. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① يَخْصِفُ: أَيْ: يَخْرُزُ وَيَرْقَعُ: ګنډلې به ئې، جوړولې به ئې. ② يَخِيطُ: ګنډلې به ئې. ③ بَشَرًا: سړى، انسان. ④ يَفْلِي: أَيْ: يَنْظُرُ: کتلې به ئې، فلى يفلى تفلية د باب تفعيل نه او تفلى يتفلى تفليا د باب تفعل نه په کپړو او سر وغيره کښې سپږې تلاش کولو په معنى کښې دې، دې د پاره هغه اخوا کړې شي. ⑤ يَحْلُبُ: لوشلې به ئې.

**تسهيلات:**

**قوله: وَقَالَتْ كَانَ بَشَرًا مِنَ الْبَشَرِ يَفْلِي ثَوْبَهُ وَيَحْلُبُ شَاتَهُ:**

**په رسول الله ﷺ باندې د بشرى عوارضو راتلل:** حضرت عائشه ﷺ هم دغه خودل غواړى چه هغوى انسان وو د فرښتو او جناتو نه وو. لهذا په هغوى باندې بشرى عوارض راتلل. په دې حديث سره د بريليانو په مخونو باندې يوه زبردسته علمى څپيړه پريوځى. مګر افسوس که هغوى پوهه شى. د کافرانو خيال وو چه که هغه "محمد" د الله تعالى رسول وې نو هغه به د عامو انسانانو په شان په وړو وړو کارونو کښې نه مشغول کيدو بلکه د بادشاهانو په شان به ئى د وړو کارونو نه ځان ساتلو لکه چه په آيت کښې دى ﴿ مَالِ هٰذَا الرَّسُوْلِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِيْ فِي الْأَسْوَاقِ ﴾ دا دې په جواب کښې حضرت عائشه ﷺ اوفرمائيل يو انسان وو او د تواضع په توګه حضور پاك د انسانانو په شان کارونه کول. د تکبر نه پاك وو او بشر وو. ﴿ قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ﴾ (خلاصه طيبى)

[۱] أخرجه احمد فى المسند: ۱۶۷/۶

**قوله: يَغْلِي ثَوْبَهُ:**

**اشکال:** مواهب لدنیه کښې ليکلې دي چه دَ حضورپاك په بدن يا کپړوکښې کله هم سپږې نه دي شوي بيا دلته دَ لټولو څه مطلب دې؟ دغه شان امام فخرالدين رازی ليکلي دي د حضورپاك په بدن باندې چرته مچ نه دې ناست اونه چرته ماشي حضورپاك په بدن باندې چيچلي دې دلته داد سپږو ذکر څنګه دې؟

**د اشکال جواب:** حضورپاك دَ بشري اظهار په غرض سره په توګه دَتواضع په خپلو کپړوکښې سپږې لټولي دي. دا صرف دَ تلاش او لټون دَ حده پورې وو. تلاش کولوسره دا نه لازم کيږي چه په هغې کښې سپږې موجود وې.شيخ عبدالحق ﷫ اشعة اللمعات کښې ليکلي دي سره ددې چه دَ حضورپاك په بدن کښې کله هم سپږې نه دي شوي نوچونکه ددې موذي ځيزونو دَ بدن نه علاوه په کپړو پورې دَ بهرنه لګيدل ممکن وو په دې وجه حضورپاك دَ لټولو کوشش کړې دې.

**[۵۸۲۳]د حضور ﷺ عوامي تعلق**

٥٨٢٣ – () [٢٣] [١]وَعَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ[٢]: دَخَلَ نَفَرٌ عَلَى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ [٣]فَقَالُوا لَهُ حَدِّثْنَا أَحَادِيثَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣]قَالَ: «كُنْتُ جَارَهُ فَكَانَ إِذَا نَزَلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ بَعَثَ إِلَيَّ فَكَتَبْتُهُ لَهُ [٥]فَكَانَ إِذَا ذَكَرْنَا الدُّنْيَا ذَكَرَهَا مَعَنَا، [٦]وَإِذَا ذَكَرْنَا الْآخِرَةَ ذَكَرَهَا مَعَنَا، [٧]وَإِذَا ذَكَرْنَا الطَّعَامَ ذَكَرَهُ مَعَنَا فَكُلُّ هَذَا أُحَدِّثُكُمْ عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١]او حضرت خارجه ابن زيد ابن ثابت وايي [٢]يوه ورځ د خلقو يوجماعت ځما والد محترم حضرت زيد ابن ثابت ﷛ ته . راغي [٣]او ورته يې اوويل زمونږ مخکې د رسول الله ﷺ هغه حديثونه بيان کړئ چې د حضور ﷺ خوش خلقي او عامو خلقو سره د حضور ﷺ بهترين او خوشګوار تعلقات سره د حضور ﷺ بهترين او خوشګوار تعلقات ظاهر وي [٤]حضرت زيد ﷛ ورته اوويل زه د حضور ﷺ بالکل ګاونډ کې اوسيدم حضور ﷺ باندې چې کله به وحي نازليدل نو زه به يې راغوښتلم زه به په خدمت کې حاضريدم او د حضور ﷺ حکم سره وحي به مې ليکله [٥]د حضور ﷺ عادت مبارك دا وو چې کله به مونږ د دنيا د خرابيو يا د دنيا د مزرعة الأخرة کيدو د اعتبار نه د دې د خوبيو ذکر کوی نو حضور ﷺ به زمونږ سره دي دنياوي ذکر کې شامليدی [٦]او کله چې به مونږ د آخرت ذکر کوی نو حضور ﷺ به هم مونږ سره د آخرت ذکر کوی [٧]او کله چې به مونږ د خوراك څکاك ذکر کوی نو حضور ﷺ به هم زمونږ سره د هغه ذکر کوی داټولې خبرې زه تاسو خلقوته د رسول الله ﷺ بنايم. (ترمذي)

[١]) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ٣۶٧٩

**حل اللغات:-** ① نَفَرٌ: أَيْ: جَمَاعَةٌ: جماعت، ولـه (د نفر اطلاق د دريـو سرو نه تر لـس سرو پورې جماعت باندې کيږي، ② جَارَهٗ: ګاونډى دنبى عليه السلام

**تسهيلات:**

**قوله: وَعَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: دَخَلَ نَفَرٌ عَلَى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ:**

**د حضرت خارجه تعارف او د فقهاء سبعه نومونه:** خارجه بن زيد بن ثابت جليل القدر تابعى دې انصارى دې مدنى دې دَحضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه زمانه ئې ليدلې ده. دَخپل پلار نه ئې دَ حضورپاك احاديث اوريدلى دى. دَمدينې منورې دَ فقهاء سبعه نه يو دې دَ فقهاء سبعه نومونه دادى. شاعروئيلى دى:

الاكل من لايقتدى بأئمة فقسمته ضيزى من الحق خارجه

فخذهم عبيدالله عروة قاسم سعيدُ ابوبكر سليمان خارجه

**قوله: فَكَانَ إِذَا ذَكَرْنَا الدُّنْيَا ذَكَرَهَا مَعَنَا:**

**د رسول الله ﷺ كمال بشريت:** حضورپاك دَهرمجلس خيال ساتلې دې او انسانانو سره ئې عمومى تعلق ساتلې دې او هم دغه كمال بشريت وو. داسې خشكى نه وه چه په هرمجلس كښې هم خپله خبره روانه كړې ده او هډو دَ چائى اوريدلى نه دى بلكه په حضورپاك كښې جامع كمال او جمال وو.

**[٥٨٢٤] مصافحه او مواجهه او په مجلس كې د ناستې طريقه**

٥٨٢٤-(١) [٣] ① وَعَنْ أَنَسٍ، ② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا صَافَحَ الرَّجُلَ ③ لَمْ يَنْزِعْ يَدَهُ مِنْ يَدِهِ حَتَّى يَكُونَ هُوَ الَّذِي يَنْزِعُ يَدَهُ، ④ وَلَا يَصْرِفُ وَجْهَهُ عَنْ وَجْهِهِ حَتَّى يَكُونَ هُوَ الَّذِي يَصْرِفُ وَجْهَهُ عَنْ وَجْهِهِ ⑤ وَلَمْ يُرَ مُقَدِّمًا رُكْبَتَيْهِ بَيْنَ يَدَيْ جَلِيسٍ لَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه وايي ② رسول الله ﷺ چې به يو سړي سره مصافحه او ملاقات كوى ③ نو خپل لاس مبارك به يې ترهغه وقته پورې نه ايسته كوى د څو پورې چې هغه سړي به خپل لاس نه وو جدا كړى ④ او حضور ﷺ به خپل مخ مبارك د هغه سړي د مخ نه دهغى پورې نه اړه وي د څو پورې چې هغه سړى به خپل مخ د حضور ﷺ د مخ مبارك نه واى اخوا كړى ⑤ او حضور ﷺ هيڅ كله چا په دې حال كې نه دى ليدلى چې حضور ﷺ خپلې ګوندې مباركې تر خپل هم نشين مخكې كولو سره ناست وي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① صَافَحَ: مصافحه به ئې كوله. لاس به ئې وركولو. ② لَمْ يَنْزِعْ: أَيْ لَمْ يُخَلِّصْ وَلَمْ يَفُكَّ: نه

[1]) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٤٩٠) وابن ماجه فى كتاب الأدب/باب إكرام الرجل جليسه (رقم-٣٧١٦)

به ئې خلاصولو لاس خپل. ③لَایَصْرِفُ: نه به ئې اړولو. ④جَلِیس: أَيْ: مُجَالِسٌ لَهُ: هم نشین، خواکښې ناست کس.

**تسهیلات: قوله:** كَانَ إِذَا صَافَحَ الرَّجُلَ لَمْ يَنْزِعْ يَدَهُ مِنْ يَدِهِ:

**د اوچتو اخلاقو یوه اعلی نمونه:** یعنی دَ مصافحه په وخت حضورپاك خپل لاس مبارك دَمصافحه کونکی دَ لاس نه پخپله راښکلو سره نه دې جدا کړې ترکومې پورې چه هغه سړی خپل لاس پخپله نه دې اخوا کړې. دغه شان دَمصافحه په وخت یا عام دَخبرو اترو په وخت ترکومې چه بل سړی مخ نه دې اړولې ترهغه وختـه پورې حضورپاك دَ مروت او حسن خلق دَ وجې نه خپل مخ مبارك نه دې اړولې. دَ اخلاق مروت تواضع او انکسارئی دا یوه اعلی نمونه ده.

**قوله:** وَلَمْ يُرَ مُقَدِّمًا رُكْبَتَهُ بَيْنَ يَدَيْ جَلِيسٍ لَهُ:

**د عربو خپې خورول عیب ګڼړل:** یعنی دَ حضورپاك عام مجلس کښې عام عادت هم دغه وو چه دَخلقو په مخکښې به ئی خپې نه خورولې ځکه چه دا دکبرژنو خلقو عادت او علامت دې. دلته دَ زنګونودَ خوررولو الفاظ دی بعضې شارحینو دَ رکبتین نه رجلین مراد اخستې دی دا ډیر واضح او آسان مطلب دې دَ زنګونو خورول په پوهه کښې نه راځی عرب خلقو به خپلې مخې ته خپې خورول او اوږدول ډیر لوئی عیب ګڼړلو. دَ بیت الله طرفته خو به ئی خپې اوږدولې لیکن دَانسان طرف ته په خپو خورولو به ئی جګړې کولې. بهرحال دَ حضورپاك په عام مجالسوکښې عام عادت هم دغه وو که چرې په خاص مجلس کې به ئی کله کله خپې خورولې نودې سره څه تعارض نه دې او نه څه فرق پریوځی.

**[۵۸۲۵] د نبی علیه السلام څه څیز نه ذخیره کول**

| ۵۸۲۵-() [۲۵] ①وَعَنْهُ، ②«أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-كَانَ لَا يَدَّخِرُ شَيْئًا لِغَدٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1] |
|---|

**ترجمه:** ①حضرت انس ﷺ فرمایی ②چی نبی کریم ﷺ به هیڅ شی صبا دپاره نه ذخیره کوی

**حل اللغات:-** ①لَا يَدَّخِرُ: أَيْ: لَا يُبْقِي: ذخیره کول به ئې نه، باقی به ئې نه ساتل. ②لِغَدٍ: دصبا دپاره.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-كَانَ لَا يَدَّخِرُ شَيْئًا لِغَدٍ:

**د نبی علیه السلام څه څیز نه ذخیره کول:** یعنی دَخپل ذات دَپاره ئی چرې هم دَ صبادَپاره ذخیره نه ده ساتلې. دا دَحضورپاك ذاتی معامله وه هم ددې تذکره په دې حدیث کښې ده. ددې برعکس حضورپاك دَخپلو ازواج مطهرات دَپاره ذخیره ساتلې ده. دَ بعضې دپاره

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی معیشة النبی صلی الله علیه وسلم وأهله (رقم-۲۳۶۲)

نی دَ یو کال پورې انتظام کړې دې مګر په خپله باره کښې حضورپاك په توکل باندې عمل کړې دې.

**[٥٨٢٦] د حضور ﷺ د کم کوني ذکر**

٥٨٢٦-()[٣٦][١]وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ:[٢]كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- طَوِيلَ الصَّمْتِ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه**: [١]او حضرت جابر ابن سمره رضی الله عنه وايي [٢]رسول الله ﷺ به زيات ترخاموشي اختيارولې دا روايت بغوي رحمه الله په شرح السنه کې نقل کړې دی.

**حل اللغات**:- ①طَوِيلَ الصَّمْتِ: أَيْ كَثِيرَ السُّكُوتِ: اكثر به خاموش وو.

**تسهيلات**:

**قوله**: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- طَوِيلَ الصَّمْتِ:

**د خاموشۍ فضيلتونه**: مطلب دا چه کمې خبرې دَ حضورپاك صفت وو. که چرته څه ضروری خبره به کول وو نو کوله به ئې ګنې خاموش به وو. بخاری، مسلم او نورو محدثينو يو روايت نقل کړې دې چه «من كان يؤمن بالله واليوم الاخرة فليقل خيراً اوليسكت» يعنی کوم سړې چه په الله تعالی او په ورځ دَ آخرت باندې ايمان لری هغه له پکار دی چه يا خودې ښه خبره دَ خلې اوباسی ګنې خاموش دې پاتې شی.

**[٥٨٢٧] د حضور ﷺ د ګفتګو انداز**

٥٨٢٧-()[٣٧][١]وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ[٢]: «كَانَ فِي كَلَامِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- تَرْتِيلٌ وَتَرْسِيلٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [١]حضرت جابر رضی الله عنه وايي [٢]درسول الله ﷺ د الفاظو په اداءيګۍ کې به د ترتيل او ترسيل لحاظ وو. (ابوداؤد)

**حل اللغات**:- ①تَرْتِيلٌ: أَيْ تَبْيِينٌ فِي قِرَاءَتِهِ: خبرې به ئې واضحه واضحه کولې (يا دا چه د قرآن تلاوت به ئې په ترتيل سره کوو چه حروف او حرکات به ئې صفا اداکول). ②تَرْسِيلٌ: أَيْ تَمْهِيلٌ فِي حَدِيثِهِ: خبرې به ئې په مزه مزه کولې (زر زر به ئې نه کولې).

**تسهيلات**:

**قوله**: كَانَ فِي كَلَامِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- تَرْتِيلٌ وَتَرْسِيلٌ:

**په ترتيل او ترسيل کښې فرق**:① تَرْتِيلٌ: حروف اوحرکات ښکاره کول اوپه مزه مزه

[١] اخرجه احمد فی المسند:٥/٨٦

[٢] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب الهدی فی الکلام (رقم-٤٨٣٨)

وئيلوته ترتيل وائي چه دَسرد الکلام برعکس وی دکوم تذکره چه دې ورسره حديث کښې ده. کوم چه ممدوح نه ده. دَترتيل تعلق دَ قرآن کريم لوستلوسره دې. ﴿ وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا ﴾

④ تَرْسِيلٌ: دا دَ ترسل نه دې په مزه مزه خبرې کولوته وائي. علماؤليکلی دی چه دا دواړه الفاظ دَمعنی په اعتبارسره يوشان دی. البته دَ ترسيل تعلق عام خبرواوتروسره دې اودَترتيل تعلق دَقرآن پاك لوستلوسره دې. دې ورسره حديث کښې "بينه فصل" کوم لفظ چه راغلې دې هم په دې معنی کښې دې جداجدا واضحه کلام به وو په کوم چه به هريو کس پوهيدلو.

٥٨٢٨ -(¹) [٢٨] ①وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ②: «مَا كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسْرُدُ سَرْدَكُمْ هٰذَا ③وَلٰكِنَّهُ كَانَ يَتَكَلَّمُ بِكَلَامٍ بَيْنَهُ فَصْلٌ ④يَحْفَظُهُ مَنْ جَلَسَ إِلَيْهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ①او بي بي عائشه رضي الله عنها بيان وکړو ②د رسول الله ﷺ ګفتګو به داسې نه وه څرنګه چې تاسو خلق مسلسل خبري کوئ ③کله چې به حضور ﷺ ګفتګو کوله نو يويو حرف او جمله به يې داسې په قلاره قلاره اداء کوله ④چې کوم سړی به حضور ﷺ سره ناست وو نو پوره ګفتګو خبري اتري به يې په ښه شان يادولای شوی. (ترمذي)

**حل اللغات:**- ①يَسْرُدُ: زر زر پرله پسې لګاتاراو مسلسل خبرې کولو ته وائي. ②فَصْلٌ: أَيْ فَرْقٌ: جدائی (يعنی هره خبره به ئې جدا جدا وه). ③يَحْفَظُهُ: يادولې به ئې شوې دغه خبرې

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلٰكِنَّهُ كَانَ يَتَكَلَّمُ بِكَلَامٍ بَيْنَهُ فَصْلٌ:

**دَ خبرو اترو آداب:** په حديث الباب کښې دَ خبرو اترو آداب بيان کړې شوی دی چه دَ حضورپاك خبرې اترې به دَ تصنع او تکلف نه پاکې بغيردَ قافيه او رديف نه وې چه هرکس به پرې په پوهيدو او يادولې به ئی. نه به الفاظ نيميدل چه انسان پرې نه پوهيږی او نه به په شوخوند سره بناوټی انداز وو بلکه حضورپاك به ښه ساده جامع مانع په ښکلی انداز کښې خبرې اترې کولې.

**[٥٨٢٩] په شونډو مبارکو به يې اکثره مسکاوه**

٥٨٢٩ -(²) [٢٩] ①وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ، قَالَ②: «مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَكْثَرَ تَبَسُّمًا مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی کلام النبی صلی الله عليه وسلم (رقم-٣٦٣٩) واحمد فی المسند:٦/٢٥٧

²) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی بشاشة النبی صلی الله عليه وسلم (رقم-٣٦٤١) واحمد فی المسند:٣/١١٢

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن حارث ابن جزء رضي الله عنه وايي [۲] ما د رسول الله ﷺ نه زيات مسكى كيدونكى هيڅوك نه دى ليدلى . (ترمذي)

**[۵۸۲۰] د وحي كثرت انتظار**

۵۸۲۰-() [۳۰] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ، قَالَ [۲]: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا جَلَسَ يَتَحَدَّثُ [۳] يُكْثِرُ أَنْ يَرْفَعَ طَرْفَهُ إِلَى السَّمَاءِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه وايي [۲] رسول الله ﷺ چې به خبرو كولو ته كيناستي [۳] نو اكثره به يې نظر آسمان طرف ته پورته كوى. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① طَرْفَهُ: أَيْ نَظَرَهُ: نظر خپل (يعنى آسمان طرف ته به ئې كتل).

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۸۲۱] د اهل وعيال په حقله شفقت او محبت**

۵۸۲۱-() [۳۱] [۱] عَنْ عَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: [۲] «مَا رَأَيْتُ أَحَدًا كَانَ أَرْحَمَ بِالْعِيَالِ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] وَكَانَ إِبْرَاهِيمُ ابْنُهُ مُسْتَرْضَعًا فِي عَوَالِي الْمَدِينَةِ [۴] فَكَانَ يَنْطَلِقُ وَنَحْنُ مَعَهُ [۵] فَيَدْخُلُ الْبَيْتَ وَإِنَّهُ لَيُدَّخَنُ [٦] وَكَانَ ظِئْرُهُ قَيْنًا [۷] فَيَأْخُذُهُ فَيُقَبِّلُهُ ثُمَّ يَرْجِعُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن سعيد د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت كوي هغوئ اوويل [۲] ما هيڅوك د رسول الله ﷺ نه زيات خپل اهل وعيال باندې مهربانه او مشفق نه دى ليدلى [۳] د حضور ﷺ د ځوئ ابراهيم رضي الله عنه د مدينې په پورتنې اطرافوكې په يو كوركې كفالت كيدې [۴] او حضور ﷺ به اكثره د خپل ځوى ليدو او خيرت معلومولو د پاره هغه محلې ته ورتلى مونږ به هم د حضور ﷺ سره وو [۵] حضور ﷺ هلته رسيدو سره د دائي كورته به يې تشريف راوړى او هلته په هغه كوركې به لوګى وو [٦] ځكه چې د دائي خاوند لوهاروو او د هغه د بهټى لوګې به په كوركې خلور طرف ته وو [۷] خو حضور ﷺ به د ځوى په محبت كې هغه لوګى نه ډك كورته ورتلى بيا ابراهيم رضي الله عنه به يې په غېږه مباركه كې اخستى مينه محبت به يې ورسره كوى او حال چال معلومولو سره خپل كورته واپس راغې

**حل اللغات:-** ① أَرْحَمَ بِالْعِيَالِ: ډير زيات مهربانه وو په اهل وعيال باندې. ② مُسْتَرْضَعًا: پرورش ئې كيدلو (د دغې دائنې بښځې نوم أم بردة دې). ③ عَوَالِي الْمَدِينَةِ: أَيْ الْقُرَى: عوالى د عالية جمع ده د مدينې نه پورته طرف ته كلى مراد دى. ④ يَنْطَلِقُ: تلو به. ⑤ لَيُدَّخَنُ: ډير لوګى به وو. ⑥ ظِئْرُهُ: خاوند د دغې دائنې، (كومه بښځه چه پردى بچى ته پئ وركوى نو د هغې خاوند د دغه بچى د پاره

() اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب الهدى فى الكلام (رقم-۴۸۳۷)

[۲] () اخرجه مسلم فى كتاب الفضائل/باب رحمته صلى الله عليه وسلم الصبيان والعيال وتواضعه وفضل ذلك (رقم-۶۳ - (۲۳۱۶))واحمد فى المسند:۱۱۲/۳

ظئر جوړيږي يعني رضاعي پلار، خود ظئر اطلاق په مذكر مؤنث دواړو باندې كيږي. ⑥ قَيْنًا :أي الحَدَّادُ: لوهار، آهينګر (ددې لوهار نوم براء بن أوس الانصاري او أبو سمين القين ئې لقب وو).

[۱] قَالَ عَمْرٌو: فَلَمَّا تُوُفِّيَ إِبْرَاهِيمُ [۲] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ إِبْرَاهِيمَ ابْنِي [۳] وَإِنَّهُ مَاتَ فِي الثَّدْيِ [۴] وَإِنَّ لَهُ لَظِئْرَيْنِ تُكَمِّلَانِ رَضَاعَهُ فِي الْجَنَّةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عمرو د حضرت انس رضی الله عنه نه نقل کولو سره بیان وکړو چې کوم وخت حضرت ابراهیم رضی الله عنه وفات شو [۲] نو رسول الله ﷺ وفرمایل ابراهیم ځما خوی دی [۳] هغه په سینه کې یعنی شیر خوارګی د پیئو ځکلو زمانه کې وفات شو [۴] د هغه د پاره دوې تیې ورکونکي مقرري شوي دي چې په جنت کې د هغه د شیرخوارګی موده پوره کوي. (مسلم)

**حل اللغات:** -⑧ الثَّدْيِ: سینې ته وائی خو دا کنایه ده د رضاعت یا د پیئونه، ⑨ لَظِئْرَيْنِ: د ظئر تثنیه ده، یعنی پئ ورکونکې دوه ښځې، ⑩ تُكَمِّلَانِ: د باب افعال نه دې یا د باب تفعیل نه دې. أي: تُوَفِّيَانِ وَتُتِمَّانِ: یعنی پوره کوی به (موده د پئیو).

**تسهیلات:**

**قوله:** وَكَانَ إِبْرَاهِيمُ ابْنُهُ مُسْتَرْضَعًا فِي عَوَالِي الْمَدِينَةِ:

**د حدیث پس منظر:** حضورپاك چه كله دَدنیا بادشاهانوته دعوتی خطونه لیکلې وو په هغوی کښې دَمصرعیسائی بادشاه مقوقس په نوم باندې هم یوخط وو. مقوقس حضورپاك ته دَتحفې په توګه یواس او یوه وینځه رالیګلې وه. دَدغه وینځې نوم ماریه قبطیه وه. دَهغې نه په مدینه منوره کښې یوبچې پیداشوډَ کوم نوم چه ابراهیم رضی الله عنه وو. دَ پیئو ورکولو دَپاره حضورپاك خپل دا ځوئی ابراهیم رضی الله عنه عوالی مدینه کښې یولوهارکره دیره کړو. دَ لوهار ښځه دایه کیدوسره په حضرت ابراهیم رضی الله عنه باندې پیئې ځکل. رسول الله ﷺ به کله کله دَ خپل دغه ځوئی دَ لیدودَپاره هلته تشریف اوړلو مکان تنګ وو په نغری کښې به لرګی سوزیدل په دې وجه به لوګی وو. حضورپاك به دا ټول مشقت برداشت کولو او په ځوئی باندې به ئې شفقت فرمائیلو اوهلته به تللو. اوولس اتلس میاشتې پس حضرت ابراهیم رضی الله عنه وفات شو.

**د بعضې مشکلو الفاظو وضاحت:**

① عَوَالِي: دَمدینې اطراف ته وئیلې شی بعضې عوالی څلورمیله بعضې شپږ میله اوبعضې عوالی اته میله فاصله باندې وو.

② ظِئْرٌ: په دې کښې ښځه اوسړې برابر دی. که چرې یوه ښځه دَ چابچې له پیئې ورکوی اوهغه ظئرجوړیږی نودَ دغه ښځې خاوند هم دَدغه بچی رضاعی پلارجوړیږی په عربی کښې په دې باندې هم دَظئراطلاق کیږی. دلته هم دغه شان شوی دی.

③ قَيْنًا: کیدې شی چه دَ لوګی دَ زیاتوالی وجه خودلې شی څکه چه لوهارانو سره اوسپنه ګرمیږی نو اور ورته لګولې شی.
④ فِي الثَّدْيِ: یعنی چه دَ رضاعت په موده کښې دننه مړشو پیښی څکلوسره مړشو. حضرت ابراهیم ﷺ دَ اوولس اتلسو میاشتو په عمرکښې وفات شوې وو. په دې وجه په جنت کښې دَهغه دَپاره دَ دوو دایانو انتظام اوکړې شو.

**[۵۸۲۲] د حضور ﷺ حُسنِ اخلاق او یو یهودي**

۵۸۲۲-() [۳۲] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ، [۲] «أَنَّ يَهُودِيًّا كَانَ يُقَالُ لَهُ فُلَانٌ حَبْرٌ [۳] كَانَ لَهُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دَنَانِيرُ [۴] فَتَقَاضَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ يَا يَهُودِيُّ مَا عِنْدِي مَا أُعْطِيكَ [۵] قَالَ: فَإِنِّي لَا أُفَارِقُكَ يَا مُحَمَّدُ حَتَّى تُعْطِيَنِي، [۶] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذًا أَجْلِسُ مَعَكَ، [۷] فَجَلَسَ مَعَهُ فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ الْآخِرَةَ وَالْغَدَاةَ

**ترجمه:** [۱] حضرت علي کرم الله وجهه راوي دی [۲] په مدينه کې د فلاني نوم يو يهودي عالم وو [۳] د هغه څو ديناره په حضور ﷺ باندې قرض وو [۴] يوه ورځ هغه يهودي راغې رسول الله ﷺ نه يې د هغه دينارو تقاضه وکړله حضور ﷺ هغه ته وفرمايل اې يهودي! تاته درکولو د پاره دا وخت ما سره هيڅ شی نشته يعنی نه خو ما سره دينار شته چې ستا قرض اداء کړم او نه څه داسې شی شته چې د هغه دينارونو په بدله کې درکولو سره ستا مطالبه پوره کړم [۵] يهودي اوويل اې محمد! زه تر هغه وقته پورې ستا نه نه لرې کېږم ترڅو پورې چې څما قرض اداء نکړې [۶] حضور ﷺ جواب ورکړو بنه دی چې هرکله داخبره ده چې د څوپورې زه ستا قرض اداء نه کړم ته ما نه پرېږدې او زما نه نه څې نو بيا زه تا سره کينم د څوپورې چې ته ونه وايې ستا د مخ نه به نه اخواته کېږم [۷] او په دې فرمايلو سره حضور ﷺ هغه سره کينا ستی او په هغه ځای کې د يهودي په مخکې رسول الله ﷺ د ماپښين مازيګر ماښام ماسخوتن او بيا د راتلونکې سهار مونځ وکی

**حل اللغات:**- ① فُلَانٌ: دا د يهودی د نوم نه کنايه ده. ② حَبْرٌ: ددې جمع احبار راځی، أَيْ: عَالِمٌ مِنْ عُلَمَاءِ الْيَهُودِ: د يهوديانو عالم. ③ فَتَقَاضَى: أَيْ: فَطَالَبَهُ: مطالبه ئې ترې اوکړه. ④ لَا أُفَارِقُكَ: زه ستانه نه جدا کيږم.

[۱] وَكَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَهَدَّدُونَهُ وَيَتَوَعَّدُونَهُ [۲] فَفَطِنَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا الَّذِي يَصْنَعُونَ بِهِ، [۳] فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ يَهُودِيٌّ يَحْبِسُكَ؟ [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَنَعَنِي رَبِّي أَنْ أَظْلِمَ مُعَاهِدًا وَغَيْرَهُ [۵] فَلَمَّا تَرَحَّلَ النَّهَارُ قَالَ الْيَهُودِيُّ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ، [۶] وَشَطْرُ مَالِي فِي سَبِيلِ اللَّهِ،

[۱]) اخرجه البیهقی فی دلائل النبوة ۶/ ۲۸۰

**ترجمه:** [۱] صحابه وو ﷺ داصورت حال ليدو سره سخت قهر کې شوه او بار بار به يې هغه يهودي ويرولو او دهمکی به يې ورکوله او ورته به يې وئيل که ته خپلې گستاخي نه نه منع کېږي او حضور ﷺ دغه شان پابند ساتي نوموږ به مجبوراً تا د دغه ځاي نه وغورځوو ياقتل به دي کړو [۲] ليکن حضور ﷺ چې وليدل چې صحابه ﷺ هغه يهودي بيروی او دهمکی ورکوي نو حضور ﷺ هغوئ په سختي سره منعه کړل يا غضبناك نظر سره هغوئ طرف ته کتلو سره گويا واضحه يې کړله چې ستاسو داعمل ماته بالکل خوښ نه دی [۳] صحابه وو ﷺ د حضور ﷺ ناخوښي ليدلو سره د معذرت انداز کې عرض وکړو يا رسول الله! دي يويهودي کيدو سره تاسو يې پابند کړي يي او دلته په ناستې بانـدې يـې مجبـوره کـړي يـې مـونږ د ده داگستاخانه حرکت څرنگـه برداشـت کـړو [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل آيا تاسو ته نه ده معلومه چې الله ﷻ زه منع کړی يم چې په هغه سړي ظلم وکړم چې هغه سره وعده شوی ده هغه چې هرڅوك وي [۵] هرکله چې ورځ راوختله نو هغه يهودي د حضور ﷺ کردار او اخلاق ليدو سره بې ساخته اوويل زه شاهدي اداکوم چې الله نه ماسوا بل معبود نشته او شاهدي اداکوم چې يقيناً ته د الله ﷻ رسول يې [٦] بيا هغه اوويل يارسول الله! زه د قبول اسلام د توفيق پيداکيدو په شکرانه کې او د الله ﷻ د طرف نه د نور زيات اجر او انعام اميد کې د خپل مال وزرنيمه حصه د الله ﷻ په لار کې صدقه کوم تاسو او دلته موجود ټولو صحابه ﷺ ته دي معلومه وي

**حل اللغات:**- ⑤-يَتَهَدَّدُونَهُ: ويرولو ئې يهودی، (يعنی رټلو ئې چه منع شي). ⑥وَيَتَوَعَّدُونَهُ: دهمکيانې ئې ورکولې (مثلا چه اوبه دې باسو، مړ به دې کړو وغيره). ⑦فَفَطِنَ: أَيْ: فَعَلِمَ: معلومه شوه، پته ورته اولگيده، ⑧مُعَاهِدًا: چاسره چه عهد يا لوظ شوې وی (لکه ذمی يا مستأمن). ⑨تَرَجَّلَ النَّهَارُ: أَي: ارْتَفَعَ: راوختلو صبا يعنی صبا شو. ⑩شَطْرُ: أَيْ: نِصْفُهُ: نيمه حصه،

[۱] وَأَمَا وَاللَّهِ مَا فَعَلْتُ بِكَ الَّذِي فَعَلْتُ لَكَ إِلَّا لِأَنْظُرَ إِلَى نَعْتِكَ فِي التَّوْرَاةِ: [۲] مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ مَوْلِدُهُ بِمَكَّةَ وَمُهَاجَرُهُ بِطَيْبَةَ وَمُلْكُهُ بِالشَّامِ [۳] لَيْسَ بِفَظٍّ وَلَا غَلِيظٍ وَلَا سَخَّابٍ فِي الْأَسْوَاقِ [۴] وَلَا مُتَزَيٍّ بِالْفُحْشِ وَلَا قَوْلِ الْخَنَا [۵] أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ [٦] وَهَذَا مَالِي فَاحْكُمْ فِيهِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ وَكَانَ الْيَهُودِيُّ كَثِيرَ الْمَالِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.

**ترجمه:** [۱] قسم په الله ماچې دا وخت ستاسو سره کومه سخته رويه اختيار کړه د هغه سبب ددې نه علاوه نورهيڅ نه وو چې ما په تاسو کې هغه اوصاف آزمائيل غوښتل د کومو ذکر چې په تورات کې موجود دی [۲] او په تورات کې هغه اوصاف داسې مذکور دي چې د هغه نوم مبارك به محمد وي د عبد الله ځوی به وي پيدائش به يې په مکه کې وي مدينه طيبه ته به هجرت کوي د هغوئ د مملکت سرحدونه به ملك شام او د هغه گردونواح پورې خواره وي [۳] هغه به نه بدزبانه وي نه به سنگدل وي نه به بازارونو کې

شور کونکي وي ④نه به فحش اختيارونکي وي او نه به بيهوده خبره کونکي وي ⑤هغه په تورات کې مذکوره داخبر اوروله نه وروسته يو وار بيا کلمه شهادت اوويل چې زه ګواهي کوم چې د الله ﷻ نه ماسوا بل معبود نشته او داچې يقينًا تاسو د الله ﷺ رسول ياست. ⑥اي د الله رسوله! دا ځما مال حاضر دی تاسو د الله ﷻ د حکم په رڼا کې د دې متعلق چې څه مناسب ګڼئ فيصله وفرمايئ د راوي بيان دی چې هغه يهودي ډېر مال دار وو او الله ﷺ په هغه مال سره د هغه حال او قال آنجام هم ښه کی دا روايت بيهقي دلائل النبوة کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ①نَعْتِكَ: أَيْ: وَصْفِكَ: صفات ستا، ②بِفَظٍّ: أَيْ: سَيِّئِ اللِّسَانِ: بد زبانه، بد کلامه. ③غَلِيظٍ: سخت خويه، سخت طبيعته، ④سَخَّابٍ: أَيْ: صَيَّاحٍ: چغې سورې وهونکې ⑤وَلَا مُتَزَيٍّ: أَيْ: مُتَّصِفٍ: ښائسته کړې شوې، موصوف يا مشهور شوې، ⑥وَلَا قَوَّالِ الْخَنَا: أَيْ: الْفُحْشِ وَالْخُشُونَةِ: يعنی د قول اوژبې په توګه فحش او قبيح خبرې اترې کونکې.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو الفاظو وضاحت:**

①دَنَانِيرُ: د تصغير او تقليل د پاره دا الفظ راغلې دې يعنی يو څو دينار وو معمولی شان قرض وو.

②مَاعِنْدِي: هغه وخت حضور پاك سره دا رقم نه وو کيدې شی چه د دې د اداکولو وخت اوس لا نه وو راغلې. يهودی د وخت نه وړاندې مطالبه اوکړه او داسې معلوميږی چه يو صحابی سره هم څه نه وی.

③أَجْلِسُ مَعَكَ: په ظاهره داسې معلوميږی چه دغه يهودی حضور پاك په مسجد نبوی کښې کينولو او پخپله هم ورسره کيناستو.

④وَالْغَدَاةَ: دې نه مراد د سحر مونځ دې نو د پوره پنځو مونځونو د وختونو پورې ئې حضور پاك حصار کړې وو.

⑤يَتَوَعَّدُونَهُ: دړه کې او رټلو ته وائی.

⑥وَغَيْرَهُ: دا تعميم بعد تخصيص دې چه زه نه په يو معاهد باندې ظلم کوم او نه د دې نه علاوه په چا باندې ظلم کوم زما رب زه د ظلم نه منع کړې يم.

⑦ تَرَجَّلَ النَّهَارُ: د ورځې راختلو او د نمر اوچتيدلو ته وائی.

⑧بِفَظٍّ: په زبانی توګه به بد اخلاق نه وی غليظ. د زړه په اعتبار سره به سخت زړه نه وی.

⑨سَخَّابٍ: په بازارونو کښې به چغې وهونکی نه وی.

⑩ مُتَزَيِّ: يعنى په عملى توگه به دَفحش ارتکاب کونکى نه وى.

⑪ قَوْلِ الْخَنَا: په دې حديث کښې دَحضورپاك دَهغه اخلاقو ظهوراوشو دکوم چه تصورنه شى کيدې. هغه چاربنتياوئيلى:

| | |
|---|---|
| نفسى الفداي لمن اخلاقه شهدت | بانه خيرمولود من البشر |
| لم يخلق الرحمان مثل محمد | ابدًا وعلمى انه لا يخلق |
| فاق النبيين فى خلق وفى خلق | ولم يدانوه فى علم ولا كرم |

**[۵۸۲۳] غريب اوبې کسه خلقو سره حُسن سلوک**

۵۸۲۳- (¹) [۳۳] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، قَالَ ②: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُكْثِرُ الذِّكْرَ ③ وَيُقِلُّ اللَّغْوَ ④ وَيُطِيلُ الصَّلَاةَ وَيُقْصِرُ الْخُطْبَةَ ⑤ وَلَا يَأْنَفُ أَنْ يَمْشِيَ مَعَ الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِينِ فَيَقْضِيَ لَهُ الْحَاجَةَ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبدالله ابن ابي اوفى وايي ② رسول الله ﷺ به په ذکر کې زيات مشغول وو ③ لغو (فضول) خبري به يې نه کولي ④ مونځ به يې طويل او خطبه به يې مختصره ويله ⑤ او کُنډې او مسکين سره په تلو کې به يې څه عار نه محسوسوى او د هغوئ کار به يې کوى. (نسائي ودارمي)

**حل اللغات:-** ① وَيُقِلُّ اللَّغْوَ: علماؤليکلى دى چه دَ قلت اطلاق په عدم باندې هم کيږى دلته هم دغه عدم اومعدوم مراد اخستې شوې دې. يعنى حضورپاك به دَ لغو اوفضول کارونو طرف ته بالکل التفات نه کولو. ② وَلَا يَأْنَفُ: د أَنَفَة نه دې، أَيْ: لَا يَسْتَكْبِرُ: ناخوښه او مکروه گڼړلوته وائى يعنى تکبر به ئې نه کولو. ③ الْأَرْمَلَةِ: ددې واحد أَرْمَلُ يا أَرْمَلَةٌ راځى، أى النَّسَاكِينُ: فقير اومحتاجه ښځې او سړو دواړو دپاره استعماليږى.

**تسهيلات: قوله:** كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُكْثِرُ الذِّكْرَ:

**د نبى عليه السلام کثرت ذکر:** دې نه مراد هرهغه عمل دې چه دَالله تعالى يادسره متعلق وى. دَ رسول الله ﷺ دَ ژوندهره لمحه دَالله تعالى په ذکرباندې مشتمل وه.

**قوله:** وَيُقِلُّ اللَّغْوَ:

**دلغو څه مراد:** دې نه مرادهرهغه عمل دې په کوم کښې چه نه دَ دنياڅه فائده وى اونه دآخرت څه فائده وى بلکه هغه عمل دَ الله تعالى دَذکرنه علاوه صرف دنياسره متعلق وى امام عزالى دَ بې مقصد اوبې مصلحت منطقى تاليفاتو متعلق فرمائيلى دى "ضيعت قطعة من العمر العزيز فى تأليف البسيط والوسيط والوجيز" بهر حال دَ ذکرحقيقى په مقابله کښې دَ نورو امورو هم دغه حيثيت دې.

¹) اخرجه النسائى فى السنن كتاب الجمعة/باب ما يستحب من تقصير الخطبة (رقم-۱۴۱۴)

## [۵۸۲۴] د مکي قریشو د حضور ﷺ تکذیب ولي کوی

۵۸۲۴-() [۳۳][۱]وَعَنْ عَلِيٍّ،[۲]«أَنَّ أَبَا جَهْلٍ قَالَ لِلنَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[۳]إِنَّا لَا نُكَذِّبُكَ وَلَكِنْ نُكَذِّبُ بِمَا جِئْتَ بِهِ[۴]فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى فِيهِمْ: ﴿فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللهِ يَجْحَدُونَ﴾ [الأنعام: ۳۳]». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت علي کرم الله وجهه نه روایت دی [۲]چې ابوجهل رسول الله ﷺ ته دا اوویل [۳]اې محمد! مونږ یعنی د مکي قریش تا دروغجن نه گڼو ځکه چې ستا صدق گوئي په مونږ ښه ښکاره ده او نه مونږ ته چیرته په دروغ ویلو لیدلی یې ځکه ته په خپلو او غیرو ټولو کې په صدق او امانت سره مشهور یې مونږ خو هغه شي ته دروغ وایو کوم چې تا راوړی دی [۴]نو الله ﷻ د دې مکي د قریشو یعنی ابوجهل وغیره په حق کې دا ایت نازل کی. فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللهِ يَجْحَدُونَ پس یقینا دوي تا ته دروغجن نه وایي بلکه دا ظالمان خو د الله دآیتونو نه انکار کوي. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① يَجْحَدُونَ: أي أنكره مع علمه: انکار کوی سره د پوهې نه.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَكِنْ نُكَذِّبُ بِمَا جِئْتَ بِهِ:

**د حدیث مفهوم:** حدیث الباب کښې دی چه دَ ابوجهل نبی کریم ﷺ ته دا وینا چه زمونږ اختلاف تاسو سره دَ دین او شریعت دَ وجې نه دې په څه دنیاوی معامله کښې نه دې ځکه چه په دنیاوی معامله کښې خو مونږ تاته صادق او امین وایو. اختلاف صرف ستاسو دَ راوړلې شوی شریعت دَ وجې نه دې. که چرې تاسو دا شریعت پرېږدئی نو زمونږ اختلاف به ختم شی. لیکن ابوجهل په دې خبره باندې پوهه نه شو چه کله نبی ﷺ دَ دنیا په معاملاتو کښې دروغ نه وائی نو په الله باندې به څنګه دروغ اووائی.

**قوله:** فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى فِيهِمْ: فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ: یعنی دا کافران تاتو ته دروغژن نه وائی بلکه ظالمان د الله تعالی د آیاتونو څخه انکار کوی.

**دَ مذکوره آیت تفسیر:**

﴿فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ﴾ یعنی دا کفار په حقیقت کښې تاسو ته دروغژن نهٔ وائی بلکه دالله ﷻ آیتونو ته د دروغو نسبت کوی! د دې واقعه په روایت دسُدی سره تفسیر مظهری داسې نقل کړیده چه یوځل دقریشو دکُفارو ددوؤ سردارانو اوخنس بن شریق او ابوجهل خپل منځ کښې سره مُلاقات اوشو-اخنس ابی جهل نه تپوس اوکړو چه اې ابوالحکم: اوس بالکل یواځې یو، څوک دریمګړې زمونږ ددوارو خبره نهٔ آوری، اوس راته دااووایه چه دمحمدبن عبدالله ﷺ په باره کښې دڅه خیال دې، صحیح صحیح راته اووایه چه رشتینې نې ګڼرې

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الأنعام (رقم-۳۰۶۴)

اوکه دروغژن؟ په عربو کښې به ابوجهل د ابوالحکم په نوم یادید وخوهر کله چه اسلام اومسلمانانوسره ئې ضد اودشمني کوله په دغې وجه هغه به بیاد ابی جهل په نوم یادیدلو] ابوجهل په قسم سره ورته اوونیل چه ماته محمد ﷺ څکه رشتینې ښکاری چه ټول عمرئې چرې دروغ نه دی وئیلی البته دانه شو برداشت کولې چه دقریشو دقبیلې په یوخاندان، بنی قصی کښې ټولې ښوبې اوکمالات راجمع شی اوباقی قریش خالی لاس پاتې شی، جنډه دبنی قصی په لاس ده، په حرم کښې حاجیانو باندې د اوبو څکولو دیرمقصودی انتظام دوئ سره دې، دبیت الله شریف دروانچیان دوئی دی اوکنجی دوئ سره په لاس کښې ده، نوکه دااومنو چه پیغمبری دهم دوئ سره وی نوروقریشو سره به څه پاتې شی.

یوبل روایت دناجیه ابن کعب نه داسې منقول دې چه یوځل ابوجهل، رسول الله ﷺ ته پخپله داسې اوونیل چه مونږ په تاسوباند ددروغو ګمان نه لرو اونه درته ددروغو نسبت کوو، البته هغه کتاب یادین ته په دروغه وایو، کوم چه تاسوراوړې دې[مظهری] (۱)

ددې روایتونوپه بنا، دآیت حقیقي مطلب هم داسې اغستې شی چه دا کفار، تاسوته نسبت د دروغونه کوی بلکه دالله ﷻ آیتونه ته ددروغونسبت کوی، اودامطلب ئې هم کیدې شی چه دا کفار، اګرچه دوئ په ښکاره درسول کریم ﷺ تکذیب کوی مګر په حقیقت کښې درسول کریم ﷺ د دروغژن کولو انجام هم دا راوځی چې دوئ دالله ﷻ اودهغه آیتونونه ددروغونسبت کوي، څنګه چه په یوحدیث شریف کښې هم راغلی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل څوک چه ماته زیان تکلیف رارسوی هغه په حقیقت کښې الله ﷻ ته دزیان تکلیف رسولوپه حکم کښې دې. (۲)

**[۵۸۳۵] حضور ﷺ د ځان د پاره دولت مندي خوښه نه کړه**

۵۸۳۵ـ (۳) [۳۵] ① وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«يَا عَائِشَةُ لَوْ شِئْتُ لَسَارَتْ مَعِي جِبَالُ الذَّهَبِ ③ جَاءَنِي مَلَكٌ وَإِنَّ حُجْزَتَهُ لَتُسَاوِي الْكَعْبَةَ، ④ فَقَالَ: إِنَّ رَبَّكَ يَقْرَأُ عَلَيْكَ السَّلَامَ وَيَقُولُ إِنْ شِئْتَ نَبِيًّا عَبْدًا وَإِنْ شِئْتَ نَبِيًّا مَلِكًا ⑤ فَنَظَرْتُ إِلَى جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ ⑥ فَأَشَارَ إِلَيَّ أَنْ ضَعْ نَفْسَكَ»".

**توجمه:** ① او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي يوه ورځ رسول الله ﷺ ماته وفرمايل ② اې عائشې رضي الله عنها که زه وغواړم او خپل پروردګار نه ځان د پاره د دنيا مال ومنال طلب کړم نو يقينًا ماته به د سروزرو غرونه راکړي ③ زه تاته د يوي ورځي خبره کوم ماته يوه فرشته راغله چې دومره غټه وه چې د هغه ملا (شا) د کعبي برابره وه ④ هغه ماته اوويل چې ستاسو پروردګار په تاسو سلام وايي او فرمايي چې ته بنده پيغمبر جوړيدل غواړې که بادشاه پيغمبر جوړيدل منظور دي؟ يعنی تاسو ته د دواړو خبر اختيار درکول کېږي که داسې

۱) التفسير المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۲۳۲، وتفسير البغوی تحت هٰذه الآیة ج ۳، ص ۱۲۸، ۱۳۹

۲) شعب الإيمان للبيهقی رابع عشر، باب فی حب النبی صلی الله عليه وسلم رقم الحديث: ۱۵۱۱

۳) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۳۶۸۳

پيغمبر جوړ شي چې د عجزو بي چارګي تنګي او د فقر ومشقت ژوند تيروئ يا د بادشاهي او دولتمندۍ ژوند؟ ۵ما پدي اوريدو سره دجبرائيل طرف ته سواليه انداز کې وکتل او ګويا د هغه نه مي مشوره طلب کړه چې ته اووئيلو زما د پاره به کوم صورت ښه وي؟ ٦نو هغه اوويل خپل نفس پست کړه يعنی د فقر محتاجۍ ژوند اختيار کړه نه چې د عيش وراحت ژوند.

**حل اللغات:-** ① لَسَارَتْ: روان شوی به وې، ② حُجْزَتَهُ: أَيْ: مَعْقِدَ إِزَارِهِ: د لنګ د تړلو ځائې (يعنی شا). ③ ضَعْ: أي حُطَّ: ښکته کړه، محتاجه کړه.

۵۸۳٦-() ١ وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ: ٢ «فَالْتَفَتَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ ٣ كَالْمُسْتَشِيرِ لَهُ فَأَشَارَ جِبْرِيلُ بِيَدِهِ أَنْ تَوَاضَعْ، ٤ فَقُلْتُ: نَبِيًّا عَبْدًا. ٥ قَالَتْ: فَكَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ لَا يَأْكُلُ مُتَّكِئًا ٦ يَقُولُ آكُلُ كَمَا يَأْكُلُ الْعَبْدُ وَأَجْلِسُ كَمَا يَجْلِسُ الْعَبْدُ» رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ١ او دحضرت ابن عباس رضي الله عنه په روايت کی دا دی ٢ چی حضور ﷺ دالله تعالی ذکر شوی پيغام آوريدو سره جبرائيل عليه السلام ته متوجه شو، ٣ او مشوره طلب آندازکی هغه طرف ته وکتل، نو جبرائيل په خپل لاس سره زمکی طرف ته اشاره کولو سره وښودل، چی پستی او انکساری اختيار کړه، ٤ نو حضور ﷺ وفرمايل ما اوويل چی يقينا زه بنده پيغمبر جوړيدل غواړم، ٥ بی بی عائشی رضي الله عنها بيان وکړو چی ددي نه وروسته حضور ﷺ هيڅ کله ځنګ لګولو سره طعام نه دي خوړلي، ٦ او فرمايل يي زه داسی طعام خورم، څرنګه چی غلام يي خوری، او داسی کينم څرنګه چی غلام کينی، دا روايت بغوی په شرح السنة کی نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ① فَالْتَفَتَ: متوجه شو. ② كَالْمُسْتَشِيرِ: په شان د مشوره غوښتونکی. ③ تَوَاضَعْ: أَيْ: اخْتَرِ الْفَقْرَ وَالْعُبُودِيَّةَ: عاجزی اختيارکړه يعنی محتاجی او بندګی اختيار کړه. ④ مُتَّكِئًا: أي الْمَيْلُ إِلَى أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ: په يوطرف کيدل يعنی ډډه لګولو سره کيناستل.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقَالَ: إِنَّ رَبَّكَ يَقْرَأُ عَلَيْكَ السَّلَامَ وَيَقُولُ إِنْ شِئْتَ نَبِيًّا عَبْدًا وَإِنْ شِئْتَ نَبِيًّا مَلِكًا:

**نبی عليه السلام ته د دوه څيزونو اختيار ورکول:** ① که چرې حضورپاك داغواړی چه نبوت سره بادشاهی هم وی نو الله تعالی به داسې اوکړی.

② او که چرې غواړی چه نبوت او عبديت دې وی نو داهم دهغوی اختيار دی.

حضورپاك د حضرت جبرائيل عليه السلام په مشوره نبوت او عبديت اختيار کړو او بادشاهت ئی منع کړو. دا په فقيرئی کښې بادشاهی ده.

(الحمد لله! يولسم جلد ختم شو.)

---

[1] اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۳۶۸٤